بسم الله الرحمن الرحيم

## د تفسير نوم

دے تفسير له ابتداء کښې (تفسیرفهم القرآن) نوم منتخب کړے شوے وو، ځکه چه پدے کښې په ډير ښائسته انداز سره د الله تعالیٰ د کتاب پوهه او علم بیان شویدے۔ ان شاء الله تعالیٰ۔ لیکن شیخ صاحب ته خوب کښې اُوخودلے شو چه د الله تعالیٰ د کتاب یو تفسیر اُولیکه چه په هغې کښې حکمتونه او رازونه وی او د «الحکمة» نوم ورله کیده نو پدے کښې یو قسم بشارت او تائید الهی پروت دے او غالب گمان دا دے چه دا خوب به د الله تعالیٰ د طرفه وی ځکه چه په نیکئ باندے پکښې امر شویدے۔ نو ځکه دے له همغه د «الحکمة» نوم منتخب کړے شو او ددے وجه نه پدے کښې به ضروری فوائد او د حکمة په نوم باندے د الله تعالیٰ د کتاب رازونه او حکمتونه بیانیږی۔ خوبونو سره په شریعت کښې څه احکام نهٔ ثابتیږی لیکن دمؤمن دپاره پکښې یو زیرے پروت وی ځکه چه حدیث کښې دی: [اَلرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ جُزْءٌ مِنْ سِتَّةٍ وَّاَرْبَعِيْنَ جُزْءً مِنَ النُّبُوَّةِ] (بخاری ومسلم) (نیك خوب د نبوت نه شپږ څلویښتمه برخه ده)۔ لهذا مسلمانانو له پدے باندے خوشحالی پکار ده۔ والله اعلم۔

بنده حقیر ابوزهیر سیف الله البشاوری عفی الله عنه۔

شوال المکرم ۱۰/ ۱٤۳۰ه) الموافق : ۲۰۰۹/ستمبر/۳۰ء)

بسم الله الرحمن الرحيم

## د تفسیر متعلق د شیخ صاحب (حفظه الله) کلمات

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ، نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ اَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّئَاتِ اَعْمَالِنَا مَنْ يَّهْدِهِ اللّٰهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْ فَلَا هَادِيَ لَهٗ وَاَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ ، يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ حَقَّ تُقٰتِهٖ وَلَا تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ، يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ وَّخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيْرًا وَّنِسَآءً ، وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْ تَسَآءَلُوْنَ بِهٖ وَالْاَرْحَامَ ، اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيْبًا ، يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَقُوْلُوْا قَوْلًا سَدِيْدًا ، يُّصْلِحْ لَكُمْ اَعْمَالَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيْمًا ، اَمَّا بَعْدُ :

دا تفسير کوم چه ستاسو مخکښې پروت دے (تفسير الحکمة دے) په قرآن کريم باندے ډير تفسيرونه علماء کرامو ليکلی دی او پوره خدمت ئے کړيدے، الله تعالیٰ دے هغوی ته پوره اجر او بدله ورکړی او په ميزان د حسناتو کښې دے ئے الله تعالیٰ ورلره راچوی (آمين).

ليکن علماء کرامو ليکلی دی : چه [كَمْ تَرَكَ الْاَوَّلُ لِلْاٰخِرِ] ډيرے خبرے پخوانو علماؤ روستنو خلقو ته پريخوستی دی چه هغوی تحقيق اُوکړی نو څکه هره زمانه کښې ليکلو ته ضرورت شته. خصوصاً په پښتو ژبه کښې تفسيرونه ډير کم دی او کوم چه دی نو ناقص دی، په اخيره کښې زمونږ شيخ ابوزکريا عبد السلام حفظه الله - يو مکمل او ښکلے تفسير په نوم د (احسن الکلام) اُوليکلو چه موافقينو او مخالفينو ټولو ترے فائده واخستله او ډير مقبول شو، دا د مصنف په زيات اخلاص او تبحر علمی دليل دے نو څکه دا درجه الله تعالیٰ ورکړه.

د دغه تفسير نه روستو بل تفسير ليکلو ته حاجت نشته، صرف تکرار به کيږی ليکن د قرآن کريم د ډير محبت په وجه مونږ اراده اُوکړه چه مختصراً څه ليکل اُوکړو چه هميشه مو د قرآن سره تعلق وی قراءةً و تدبراً ودرساً وکتابةً ودعوةً. او شايد چه الله تعالیٰ داسے دقائق او باريکات رانصيب کړی چه ډيرو کتابونو کښې نهٔ وی څکه [فَرُبَّ حَامِلِ فِقْهٍ اِلٰى مَنْ هُوَ اَفْقَهُ مِنْهُ] حديث هم دے ته اشاره کوی او علوم شرعيه ژ کښې تقسيم د الله تعالیٰ دے، چا

ته ډیر او چا ته کم ورکوي.

بله وجه او باعث په تفسیر لیکلو باندې د بعض دوستانو اصرار وو چه څه نا څه لیکل په تفسیر کښې اُوکړې شي. دارنګه کیدې شي امید دې چه الله تعالیٰ مونږ د قیامت په ورځ د خپل کتاب په خادمانو کښې راپاڅوي او دا عظیم کتاب زمونږ شفاعت اُوکړي. وَمَا ذٰلِكَ عَلَى اللهِ بِعَزِيْزٍ.

بلـه وجه دا ده چه خپل علم او عمل کښې اضافه پیدا کولو دپاره مو دې کار ته ځان پیش کړو اګرکه دا ډیر ګران کار دې که الله تعالیٰ ئې آسان نکړي. او مقصود پکښې دعوت الی الله تعالیٰ هم دې.

او نبي علیه الصلاة والسلام فرمائي: [خَيْرُكُمْ مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْآنَ وَعَلَّمَهُ] (رواه مسلم) چه ددې حدیث مصداق جوړ شو. بمشیة الله تعالیٰ وفضله وکرمه.

او شاید چه څوك به فائده واخلي او مونږ به په خپلو مستجابو دعاګانو کښې یاد کړي او د صدقه جاریه سره زمونږ محبت ډیر دې، نو شاید چه الله تعالیٰ دا په خپل فضل صدقه جاریه اُوګرزوي (اَوْ عِلْمٌ يُنْتَفَعُ بِهِ) کښې داخل شي.

بل باعث دا هم وو چه یو خل دوه درې کاله مخکښې ما خوب لیدلې وو چه زه تفسیر لیکم او نوم ئې الحکمة دې. بیا دا خوب پدې کال هم ما اُولیدلو نو شاید چه الله تعالیٰ دا خوب صادق کړي او دا تفسیر وجود ته راشي او حکمت ددې په وجه په ډیرو انسانانو کښې راشي.

بل تدبر القرآن یو لوئې عبادت دې پدې کښې شغل بهترین شغل دې او بالفعل مقصود سره تعلق دې. او الله تعالیٰ په خپل خصوصي فضل سره قرآن کښې مونږ ته بعض نکتې او دقائق او اسرار خودلي دي چه عامو تفاسیرو کښې نشته. وَذٰلِكَ فَضْلُ اللهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَاءُ. ددې خبرې اندازه به تـه هله اُوکړې چه دا تفسیر اُوګورې او بیا نور تفاسیر. نو ما اُوغوښتل چه دغه اسرارو ته به اشاره په لیکلو د یو تفسیر اُوکړو چه نفع ئې عامه شي.

## د تفسیر "حکمة القرآن" خصوصیات او میزات

هر مصنف لـه پکار دي چه داسې یو کتاب اُولیکي چه څه جدیده فائده پکښې وي که صرف نقل وي بیا خو ډیر تکلیف ته حاجت نشته چه انسان ئې په لیکلو کښې برداشت کړي ځکه پخواني کتابونه کافي دي لیکن که جدیده فائده وي او ډیره وي بیا لیکل کول پکار دي کما قال القاسمي رحمه الله في قواعد التحدیث.

نو زمونږ ددې تفسیر الحمد لله ډیر خصوصیات دي چه په مختصر انداز کښې ورته زه اشاره کړم:

(۱) پدې کښې تفسیر القرآن بالقرآن دې.

(۲) تفسیر القرآن بالاحادیث النبویه دې.

(۳) تفسیر القرآن بآثار الصحابه رضی الله عنهم دې.

(٤) تفسیر القرآن بآثار السلفؒ دې.

(۵) دارنګه تفسیر القرآن بتحقیق اللغات دې چه دا یوه مهمه طریقه ده د فهم قرآن.

(٦) د محاوراتو عربیه او محاورات عادیه ؤ بیان پکښې دې چه د هغې په وجه تفسیر کښې ډیر کمال پیدا شویدې، قرآن کریم د عربو او د عقلاؤ د محاورې موافق نازل دې نو د هغې پیژندل ضروري دي د فهم قرآن دپاره.

(۷) تاریخ د اهل جاهلیت پیژندل هم ضروري دي او هغه دې تفسیر کښې بیان شویدې. ولله الحمد.

(۸) توضیح د بعض آیتونو په امثالو سره چه ذهن کښې بالکل کیني.

(۹) بیان د صحت او ضعف د احادیثو کوم چه دلته راوړې شویدي.

(۱۰) حواله او مرجع د هغې بیانونو چه عند الضرورة رجوع هغې ته آسانه شي.

(۱۱) د اصولو د شریعت پابندي کول او د هغې نه د قرآن تفسیر راویستل او د هغې مخالفت نهٔ کول. دا ددې تفسیر مهم خصوصیت دې.

(۱۲) د هر سورت مقصد کوم چه زمونږ مشائخ بیانوي سره د خپل تدبر نه چه کوم مقصد راویستلې شویدې د هغې بیان. سره د دلیل نه. نو مقاصد السور په دې تفسیر کښې ډیر مهم او ضروري دي او بهترین دي چه ټول سورت ورسره لګیږي او د هغې د راویستلو طریقه هم خودلې شویده.

(۱۳) مناسبات د آیتونو خپل مینځ کښې دارنګه مناسبات د آیتونو د موضوع د سورت سره هم بیان شویدي چه ټول سورت یوه خطبه او مربوط بیان جوړ شوې دې.

(۱٤) د آیتونو عناوین په طرز جدید سره بیان شویدي.

(۱۵) حاصل او خلاصه د یو یو درس بیانه شویده چه ذهن کښې پریوځي.

(۱٦) د سورت مناسبات د مخکښې سورت سره.

(۱۷) او د امتیازاتو بیان هم شویدې.

(۱۸) فقهي مسائل هم راوړل شویدي.

(۱۹) او ناشنا ناشنا حکمتونه راوړل شویدي او فوائد هم بیان شوي دي.

(۲۰) یو مهم خصوصیت دا دے چه دے کتاب کښې فقه التفسیر بیان شویده چه ددے نه عام تفاسیر خالي دي. اِلَّا مَنْ رَّحِمَ رَبُّكَ. د فقه التفسیر مطلب دا دے چه یو آیت کښې ډیر احتمالات وي نو په هغے کښې راجح بیانول په دلیل سره ددے خصوصي اهتمام کړے شویدے. که یو مفسر ډیر توجیهات یو آیت کښې جمع کړي او راجح بیان نکړي نو دا کمال نهٔ دے.

(۲۱) بعض د حکمت نه ډك شعرونه هم راوړل شویدي.

(۲۲) کوم فوائد چه د بل تفسیر نه نقل دي نو د هغے حواله هم ذکر ده.

(۲۳) دا تفسیر د غلط اسرائیلیاتو نه خالي دے که ذکر شوي دي نو بیرته پرے رد هم ذکر دے.

(۲٤) دارنګه د تعصب مذهبي او ډله بازي نه خالي دے، صرف او صرف کتاب او سنت طرف ته دعوت دے.

(۲۵) د صحابه کرامو او د ائمه کرامو د طرف نه پکښې دفاع شویده که چا چرته د هغوی پسے طعن ویلے وي.

(۲٦) یو عجیب خصوصیت دا دے چه قرآن اولا د نبي علیه السلام د زمانے سره لګول شویدے بیا د خپلے زمانے موافق مصداق هم خودل شویدے چه په لوستونکي باندے آیت پوره واضح شي او هغه ترے پوره فائده واخلي باذن الله تعالیٰ.

(۲۷) د تحریف او غلط تاویلاتو نه خالي دے او الحمد لله د اسماء او صفاتو په باب کښې د سلفو مذهب اختیار شویدے کوم چه حق مذهب دے.

(۲۸) د یو یے جملے او یو آیت ډیر مصداقات پکښې بیان شویدي.

(۲۹) اصولو کښې مونږ لیکلي دي چه قرآن به په ظاهر بناء وي نو دا تفسیر په ظاهري کلماتو روان دے یعنې بے ځایه تاویلات پکښې نشته بلکه د قرآن ظاهري الفاظ او کلمات کافي ګڼړل شویدي. (الا عند الضرورة).

(۳۰) د اهل السنة والجماعة د مذهب خلاف پکښې نشته یعنې سلفي تفسیر دے.

(۳۱) د غلطو عقائدو او نظریاتو او بدعاتو او خرافاتو نه پاك دے بلکه په هغے تفصیلي رد دے.

(۳۲) تذکیري تفسیر هم دے، نصائح (نصیحتونه) رقت قلب (د زړه نرمي) تعلق بالله، د الله تعالیٰ محبت او د رسول الله ﷺ محبت ته پکښې ډیر دعوت دے.

(۳۳) نحوي ترکیبونه هم پکښې شته کوم ځائے کښې چه ضرورت وي.

(۳٤) په ډیرو ځایونو کښې د پخوانو کتابونو نه نقل هم شته لکه تورات، انجیل او زبور

(بائيبل) دپاره د زيادت وضاحت۔ او حجت په يهود او نصاراؤ۔
(۳۵) كومو تفاسيرو كښې چه غلطې خبرې ليكل شويدي او مشهورې شويدي د هغې رد هم شويدے بالدليل۔
(۳٦) د الله رب العالمين او د رسول الله ﷺ او د نورو انبياء عليهم السلام او د ملائكو عليهم السلام او د صحابه كرامو رضي الله عنهم ادب او احترام بقدر استطاعة پكښې شويدے۔ دارنگه د قرآن كريم او احاديث نبويه ؤ او د حق پرستو علماء كرام او ائمه عظامو هم۔ داسې ندې لكه بعض تفاسيرو كښې په قرآن باندې اعتراض اُوكړي په بې ادبه الفاظو بيا ضعيف جواب ذكر كړي لكه تفسير د رازي صاحب شو۔
(۳۷) كومه خبره چه ظاهر القرآن او احاديثو كښې وي او سلفو پرې قول كړے وي، مونږ د هغې خلاف نۀ دې كړې يعني دا صرف خپل عقليات بيانول ندي لكه بعض تفاسيرو كښې صرف خپل عقل جنگول شويدي۔
(۳۸) ليكل او ژبه هم آسانه او سليسه ده۔
(۳۹) متشابه آيتونو كښې وجوه د فرق هم بيان شويدي چه دا د علوم د قرآن نه يو علم دے۔
(٤٠) دلالة الاقتران هم پكښې ډير استعمال دے چه دا هم د قرآن د باريكاتو نه يو باريك علم دے او فائده مند ډير دے۔
(٤١) دارنگه حكمة د تقديم او تاخير هم بيان شويدے چه دا هم بهترين علم دے۔
(٤٢) فوائد خارجيه پكښې هم بيان شويدي۔
(٤٣) د رسول الله ﷺ د سيرت نه پكښې هم مكمل فائده اخستل شويده يعني د هغې بيان د آيتونو د حل دپاره شويدے۔
(٤٤) شان نزول د آيت هم بيان شويدے۔
(٤٥) بيان د ناسخ او منسوخ هم پكښې شته۔
(٤٦) د آيتونو په تتمه كښې چه د الله تعالىٰ كوم نومونه او صفتونه راځي د هغې مناسبات هم بيان شويدي۔
(٤٧) فضائل السور والآيات۔
(٤٨) دارنگه اسماء السور (د سورتونو نومونه) هم بيان شويدي۔
(٤٩) په ټولو فِرق باطله ؤ باندې علمي رد دے لكه خوارج، معتزله، مرجئه، شيعه گان،

بریلیان، جاهلان تکفیریان، قادیانی ډلے والا (مرزایان) او پرویزیان، دهریه، کمیونسټ، مشرکین قبر پرست او غلطے سیاسی ډلے وغیره وغیره او دا رد صرف د الله تعالیٰ د رضا او د دین د حفاظت په خاطر دے ورنه زمونږ ذاتی دشمنی د هیچا سره نشته۔

(۵۰) بیان الفروق اللغویه چه دا هم یو فائده مند علم دے۔

**مختصر** دا وایو چه دا تفسیر د چا سره وی (فَإِنَّهُ يُغْنِيهِ عَنْ كَثِيرٍ مِنَ الْكُتُبِ وَالتَّفَاسِيرِ وَيَنْفَعُهُ فِي الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَىٰ) (نو ډیرو کتابونو او تفاسیرو نه ئے بے پرواه کوی او ان شاء الله تعالیٰ په دنیا او آخرت کښ فائده ورکوی)۔

زهٔ د ټولو اهل علمو او مسلمانانو رونړو او خویندو نه درخواست کوم چه انسان کمزورے دے که بیا هم زمونږ د کوشش سره څه خطائی په تفسیر کښ اُووینی نو مونږ ته دے خبر راکړی ان شاء الله تعالیٰ مونږ خپله خطائی منو او واپس ئے اخلو، ضد او عناد نهٔ کوو ان شاء الله۔ دارنګه که یوه خبره ستا په نظر بده اُولګیږی نو دا درخواست کوم چه سمدست ئے مهٔ رد کوه، بنه علمی تحقیق اُوکړه، آخرت او حساب ځان ته مستحضر کړه که بیا هم غلطه وه نو رد کول ئے جائز دی ځکه (كُلُّ أَحَدٍ يُؤْخَذُ مِنْ قَوْلِهِ وَيُرَدُّ عَلَيْهِ إِلَّا صَاحِبُ هٰذَا الْقَبْرِ) لکه امام مالك رحمه الله وئیلی دی۔

او که چرته څه فائده دے واخستله نو ضرور مونږ دپاره (او راجمع کونکی) دپاره د استغفار دعا اُوکړه ځکه مونږ د الله تعالیٰ مغفرت ته زیات ضرورت لرو۔

بیا په دے تفسیر کښ شیخ ابوزهیر سیف الله (حفظه الله تعالیٰ) ما سره ډیر کومك کړے دے (بعد توفیق الله تعالیٰ) چه دهٔ زمونږ د کیستونه هم نقل کړے او ورسره نوره اضافه ئے هم کړیده او بیا ما تصحیح کړیده او نور فوائد چه ذهن کښ راغلی دی یا په کتابونو کښ مو لیدلی دی هغه مو زیات کړیدی او مولوی صاحب پکښ ډیر محنت کړیدے۔ الله تعالیٰ دِ د هغه او زمونږ دپاره ذریعه د نجات اُوګرځوی او په میزان د حسناتو کښ دِے الله تعالیٰ راولی۔ دارنګه ټول لوستونکی او اوریدونکی دِے ترے الله تعالیٰ مستفید کړی۔ وما ذلك على الله بعزيز۔

حرره ابومحمد امین الله

یوم الثلثاء ذی القعدة (۱) (۱۴۳۰هـ) مسجد حمزة بشاور باکستان۔

بسم الله الرحمن الرحیم

# مُقَدِّمَة

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ، نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ اَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّاٰتِ اَعْمَالِنَا مَنْ يَّهْدِهِ اللّٰهُ فَلَامُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْ فَلَا هَادِيَ لَهٗ وَاَشْهَدُ اَنْ لَّآاِلٰهَ اِلَّااللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ ء يٰٓاَيُّهَاالَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوااللّٰهَ حَقَّ تُقٰتِهٖ وَلَاتَمُوْتُنَّ اِلَّاوَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ، يٰٓاَيُّهَاالنَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ وَّخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيْرًا وَّنِسَآءً ا ء وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْ تَسَآءَلُوْنَ بِهٖ وَالْاَرْحَامَ ء اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيْبًا، ء يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اتَّقُوااللّٰهَ وَقُوْلُوْا قَوْلًا سَدِيْدًا، يُّصْلِحْ لَكُمْ اَعْمَالَكُمْ وَيَغْفِرْلَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيْمًا، اَمَّا بَعْدُ :

قرآن کریم د رب العالمین یقیني او رښتیني کتاب دے، د الله عزوجل او د رسول الله ﷺ تابعداري انسان پوره طریقے سره نشي کولے بلکه بالکل ئے نشي کولے، مګر په یادولو د قرآن او د حدیث، چه قرآن کریم باندے بنده پو هه شي نو د الله تعالیٰ تابعداري به اُوکړي، او د رسول الله ﷺ په احادیثو چه پو هه شي نو د الله عز وجل او د هغهٔ د رسول الله ﷺ تابعداري به اُوکړي، دے وجه نه هر سړي او ښځے له د قرآن کریم او د احادیثو علم زده کول ډیر ضروري دي، نبي ﷺ فرمائیلي دي : [طَلَبُ الْعِلْمِ فَرِيْضَةٌ عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ]

[صحیح ابن ماجه (۱۸۳) وصحیح الترغیب : (۷۲) بسند صحیح]

(د علم طلب کول په هر مسلمان فرض دي) د علم طلب کول دا دي چه بنده په قرآن کریم او د نبي ﷺ په احادیثِ مبارکه ؤ باندے ځان پو هه کړي، خو مره ئے چه وسعه رسیږي، که مُتبحر (زوړ) عالم نهٔ شي، خو چه څه نا څه د خپل عمل په نیت باندے ځان په قرآن کریم پو هه کړي۔

او قرآن کریم چه مونږه او تاسو لولو، نو صرف د تعلیم او بل ته د خودلو په نیت به نهٔ وي بلکه اول به د خپل ځان اِصلاح مقصد وي، چه زهٔ الله جل جلاله اُوپیژنم۔ او دا رنګه د هغه حکم اُوپیژنم، ځکه د الله تعالیٰ پیژندګلي په غیر د قرآن نه نهٔ کیږي، او د الله تعالیٰ حکمونه بغیر د قرآن او د حدیث نه نهٔ پیژندلے کیږي، او الله تعالیٰ ته د رسیدلو همدا یوه عظیمه وسیله ده۔ د یو حدیث نه معلومیږي [فَاِنَّ هٰذَا الْقُرْاٰنَ سَبَبٌ طَرَفُهٗ بِيَدِ اللّٰهِ وَطَرَفُهٗ

بِأَيْدِيكُمْ فَتَمَسَّكُوا بِهِ فَإِنَّكُمْ لَنْ تَضِلُّوا وَلَنْ تَهْلِكُوا بَعْدَهُ أَبَدًا]

(صحيح الجامع (٣٤) الصحيحة (٧١٣)

(دا قرآن كريم د الله تعالىٰ رسئ (پړے) دے، (ځمكے ته ئے راكوز كړے دے)، يو طرف ئے د الله تعالىٰ لاس كښې دے، بل طرف ئے ستاسو (بندګانو) په لاس كښې دے، نو پدے پورے اُونخلئ ځكه چه تاسو به ددے پورے د انختلو نه پس هيڅكله ګمراه او هلاك نۀ شئ).

نو بس دے قرآن كريم پورے چه څوك اُونخلي، الله تعالىٰ ته به ورسيږي، او قرآن پورے چه څوك نۀ انخلي نو هغه به ښكته كو هي كښې پروت وي، او هغه رب العالمين ته نۀ شي رسيدلے،

نبي ﷺ فرمائي : [مَنْ سَلَكَ طَرِيقًا يَبْتَغِيْ بِهِ عِلْمًا سَهَّلَ اللَّهُ بِهِ طَرِيقًا إِلَى الْجَنَّةِ]

[مسلم والترمذي وابوداود].

(څوك چه روان شو په يوه لاره چه په هغے كښې علم طلب كوي، الله رب العزت به دۀ ته د جنت لارے آساني كړي)، نو د علم لاره دا ده چه انسان د قرآن كريم يا د آحاديثو درس ته كيني، او ددے نه استفاده اُوكړي، الله رب العزت په دے خپل كتاب كښې دے كتاب ته ډير دعوت وركړيدے، تقريباً دريمه حصه د قرآن كريم به داسے وي چه په هغے كښې به قرآن كريم طرف ته ترغيب وي چه د الله تعالىٰ دا عظيم كتاب دے، ددے عظمتِ شان د بندګانو زړه كښې كينوي، الله تعالىٰ د هغه كسانو بدي بيانوي څوك چه د قرآن كريم نه إعراض كوي : ﴿ وَمَنْ أَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِيْ فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنْكًا﴾ (طه : ١٢٤)

(د قرآن كريم نه چه چا اعراض اُوكړو، الله به ورله ژوند تنګ كړي) ايمان ئے پرے رانۀ وړو، عمل ئے پرے اُونۀ كړو، تو چه ئے ورته اُونكړه نو د داسے انسان ژندګي تنګيږي، او دے كتاب كښې الله تعالىٰ فرمائيلي دي : چه نبي ﷺ به د قيامت په ورځ شكايت كوي په هغه چا چه قرآن مجيد ئے پريخوستے دے :

﴿ وَقَالَ الرَّسُولُ يَا رَبِّ إِنَّ قَوْمِي اتَّخَذُوا هَذَا الْقُرْآنَ مَهْجُورًا﴾ (الفرقان : آية ٣٠)

(رسول الله ﷺ به وائي اے الله تعالىٰ ! زما دے قوم قرآن كريم پريخوستے وو).

علماء كرامو (رحمهم الله) ليكلي دي : د (مهجوراً) معنىٰ دا ده چه قرآن باندے ايمان نۀ راوړي، او عمل پرے نۀ كوي، نو دا د قرآن كريم غټ هجران او پريخودل دي، دارنګه د قرآن كريم نه شفاء او علاج نۀ حاصلول، قرآن كريم په دليل كښې نۀ پيش كول، شعرونو، نعتونو

له په قرآن کریم باندے غلبه ورکول، چه قرآن سرے پریږدی او شعرونه وائی، اَخبارونه گوری، او د فضائلو کتابونه گوری او قرآن ئے شاته کړے وی، نو دا ډیر د نقصان خبره ده، لکه په دے وخت کښې زمونږ په عامو مدارسو او عوامو کښې دا مرض دے چه د قرآن کریم (عظیم کتاب) درسونه پکښې نهٔ وی، او هغے ته دومره نهٔ کینی، الغرض! د قرآن کریم د لوستلو ډیر فضائل او ډیرے فائدے دی، او د حدیثو کتابونو کښې هم ذکر شوی دی۔

او څو مره لویه خبره ده چه الله تعالیٰ فرمائی:

﴿يُؤْتِي الْحِكْمَةَ مَنْ يَّشَاءُ وَمَنْ يُّؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوْتِيَ خَيْرًا كَثِيْرًا﴾ (بقره: ۲۶۹)

(الله تعالیٰ ورکوی علم د قرآن چا ته چه اُوغواړی او کوم انسان ته چه د الله تعالیٰ د کتاب علم ورکړے شو یقیناً دهٔ له ډیر خیر ورکړے شو) ... الله تعالیٰ دے ته خیر کثیر وئیلے دے، ډیر خیر والا انسان هغه نهٔ دے چه مال ورسره ډیر وی، ډیر خیر والا هغه دے چه د الله تعالیٰ په کتاب پوهه شی او عمل پرے اُوکړی۔ الله تعالیٰ سورة یونس (۵۸) کښې فرمائیلی دی: ﴿هُوَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ﴾ (قرآن کریم غوره دے د دنیا د لوئی مالونو نه چه دا خلق ئے راجمع کوی)، ځکه مال دنیا کښې پاتے کیږی او دا کتاب قبر او آخرت ته هم ځی، خو هله چه سړے پرے عمل اُوکړی، ددے کتاب عظمت او محبت ئے په زړه کښې راشی او بیا ئے اتباع اُوکړی، نو ددے فضائلو د وجه او باعث نه د قرآن کریم لفظی ترجمه او تفسیر او فوائد لیکلے کیږی دے دپاره چه عوام مسلمانان، زنانه او طالبان د دین او علماء کرام د الله تعالیٰ په کتاب باندے په صحیح معنو کښې پوهه شی۔ مونږ دا تفسیر درمیانه انداز کښې لیکو، نهٔ طویل او نهٔ قصیر، لیکن ډیرو فوائد ته په لنډ الفاظو کښې اشاره شوے ده ان شاء الله تعالیٰ۔ او فقه فی التفسیر په کښې بیان شوے ده۔ وَاللّٰهُ وَلِيُّ التَّوْفِيْقِ۔

د تفسیر د شروع کولو نه مخکښې بطور مقدمه درے مباحث بیانیږی، د باقی اصول القرآن دپاره مستقل کتاب لیکلے شی ان شاء الله تعالیٰ۔

## د قرآن کریم آداب

د قرآن کریم د لوستلو نه مخکښې څه آداب لوستونکی له پکار دی، دے دپاره چه په لوستلو کښې برکت راشی او مقام د قبولیت ته اُورسیږی:

۱- [أَنْ يَّجْلِسَ بِوُضُوْءٍ] په اوداسه کښې کیناستل: صحیح خبره دا ده چه قرآن کریم له په

بے اُودسۍ کوتے وروړل نۀ دي پکار۔لکه ﴿لَا یَمَسُّہٗۤ اِلَّا الۡمُطَهَّرُوۡنَ﴾ کښې ورته اشاره ده۔
۲- [اَنۡ یَّکُوۡنَ نَظِیۡفَ الثِّیَابِ] (جامے به ئے پاکے وي) ځکه قرآن د الله تعالیٰ کلام دے، دے دپاره به صفائي کولے شي۔
۳- [اَنۡ یَّجۡلِسَ بِخُشُوۡعٍ]
(قرآن کریم ته به په خشوع او عاجزۍ کېني،مرور او په حالت د تکیه کښې به نۀ کیني)۔
٤- [اَنۡ لَّا یَتَکَلَّمَ اَثۡنَاءَ الۡقِرَاءَةِ] ۔(د قرآن د لوستلو په مینځ کښې به خبرے نۀ کوي)۔که چرته یوه ضروري خبره مینځ ته راشي نو د هغے نه پس به دوباره اعوذ بالله وئیلے شي۔
٤- [اَنۡ یَّتَعَوَّذَ بِاللهِ] په اوله کښې اعوذ بالله وئیل ضروري دي که ابتداء د سورة وي نو بسم الله به هم ورسره یو ځائے کوي او که مینځ د سورة وي نو بیا صرف اعوذ بالله وئیل کافي دي۔ بسم الله وئیل ورسره په سنت کښې نۀ دي نقل۔
۵- [اَنۡ یَّقۡرَاَهٗ نَظۡرَةً] (قرآن ته په کتلو سره ئے لوستل) دا ډیر بهتر دي اگرکه په یاده لوستل هم جوازلري)۔ حدیث کښې دي : [مَنۡ سَرَّهٗ اَنۡ یُّحِبَّ اللهَ وَرَسُوۡلَهٗ فَلۡیَقۡرَاۡ فِی الۡمُصۡحَفِ] [حسن : شعب الایمان ۲/ ٤٠٨- الصحیحة : ۲۳٤۲) (څوك چه دا خوښوي چه د الله تعالیٰ او د هغه رسول سره مینه اُوکړي نو په قرآن کښې دې لوستل کوي)۔
٦- [اَنۡ یَّاۡخُذَهٗ بِیَمِیۡنِهٖ] په ښي لاس کښې به ئے اخلي، په گس لاس کښې قرآن کریم او دیني کتاب نیول بے ادبي ده۔ ۷- [اَنۡ لَّا یَتَخَطَّ عَلَیۡهِ] ۔ (په قرآن کریم باندے دپاسه قدمونه پورته کول او په هغے باندے اُوړیدل) بے ادبي ده، بلکه سلفو به ددے نه هم منع کوله چه په تپائي او تخته او رحیل باندے انسان خپه واړوي۔
﴿ذٰلِکَ وَمَنۡ یُّعَظِّمۡ شَعَآئِرَ اللهِ فَاِنَّهَا مِنۡ تَقۡوَی الۡقُلُوۡبِ﴾ (الحج :۳۲)
۸- [اَنۡ لَّا یَتَوَسَّدَ عِنۡدَ قِرَاءَتِهٖ] ۔قرآن کریم ته به تکیه نۀ وهي۔ البته که په یاده ئے لولي نو په ملاسته هم رسول الله ﷺ لوستلے دے۔ بیهقي یو روایت راوړیدے :
[یَا اَهۡلَ الۡقُرۡاٰنِ لَا تَتَوَسَّدُوا الۡقُرۡاٰنَ] (ددے یوه معنیٰ دا ده چه قرآن کریم ته تکیه مه وهئ)،
دویم دا چه د قرآن کریم نه بالخت هم مۀ جوړوئ چه انسان پرے دپاسه ډډه اُووهي۔
اودریم دا چه ددے د حقوقو او تلاوت نه غفلت هم مۀ کوئ۔ (وفي سنده مقال)۔
۹- په قرآن کښې به دننه لیکل نۀ کوي۔ دا وجه ده سلفو پکښې آمین هم نۀ دے لیکلے۔ البته که د تفسیر په طور په حاشیه باندے ورته په ښائسته خط لیکل اُوکړي نو جواز

لري۔ دا خو ظاهري آداب وو۔ نور هم شته۔

**او باطني آدابو** کښې دا دي: ۱- [تَدَبُّرُ الْقُرْآنِ الْكَرِيْمِ]۔ (قرآن کريم کښې سوچ کول)۔

تَدَبَّرِ الْقُرْآنَ اِنْ رُمْتَ الْهُدٰى فَالْعِلْمُ تَحْتَ تَدَبُّرِ الْقُرْآنِ

(که د هدايت اراده لرې نو قرآن کريم کښې تدبر کوه ځکه چه ټول علم د قرآن کريم په تدبر کښې دے)

۲- [عَظْمَةُ الْقُرْآنِ فِي الْقَلْبِ] (په زړه کښې به د قرآن کريم عظمت او تعظيم ساتې) چه دا د عظيم ذات کلام او کتاب دے۔ عکرمة نه نقل دي چه هغه به کله د قرآن کريم تلاوت کولو نو داسې به ئې وئيل: [هٰذَا كَلَامُ رَبِّيْ وَمَنْشُوْرُ رَبِّيْ] ۔(دا زما د رب کلام دے او زما د رب منشور دے) پدے سره به ئې د قرآن کريم عظمت په زړه کښې راغلو۔ (مجمع الزوائد)

۳- [اَلدُّعَاءُ عِنْدَ الْآيَاتِ] (په بعض آيتونو کښې دعا غوختل) لکه دا د نبي ﷺ طريقه هم وه۔ لکه داسې راشي ﴿اِنَّ رَحْمَتَ اللهِ قَرِيْبٌ مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ﴾ نو انسان داسې اُووائي: [اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ رَحْمَتَكَ] د جنت بحث راشي داسې اُووائي: [اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ الْجَنَّةَ] او داسې نور۔ او دا هله کيږي چه انسان د قرآن کريم په معنىٰ پوهه شي۔

٤- حقيقي ادب ئې دا دے: [اَلْعَمَلُ بِالْقُرْآنِ] ...... (قرآن کريم باندے عمل کول)

کله چه انسان قرآن کريم لولي او د هغه عملي زندگي نۀ جوړيږي نو دا د قرآن کريم احترام نۀ دے۔ددے مثال دا جوړيږي چه يو انسان چا ته اُووائي: زۀ تا منم او ستا احترام زما په زړه کښې موجود دے خو خدمت ته دِے تيارنۀ يم، نوداسې انسان د چا خوښ وي؟!۔ وبالله التوفيق۔ والله اعلم وعلمه اتم واحکم۔

## د قرآن کريم نه د فائدے اخستو اسباب

د قرآن کريم نه د فائدے اخستو ډير اسباب او ذرائع دي، دلته مختصراً يو څو ذکر کولے شي:

(۱) اول سبب: [طَلَبُ مَرْضَاةِ اللهِ سُبْحَانَهٗ وَتَعَالٰى] ۔(د الله تعالىٰ د رضا طلب کول) چه د بنده دا نيت وي چه ما نه الله تعالىٰ راضي شي۔ سورة المائده (۱٦) آيت کښې دي:

﴿يَهْدِيْ بِهِ اللهُ مَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَهٗ﴾ (الله تعالىٰ پدے قرآن هدايت کوي هغه چا ته چه د الله تعالىٰ د رضا پسے روان شي) نو معلومه شوه چه څوك د الله تعالىٰ رضا لټوي نو قرآن

کریم هغه ته هدایت کوی او هغه د قرآن کریم نه فائده اخستے شی۔
(۲) اَلتَّقْوٰی : (تقویٰ، د الله تعالیٰ یره چه چا کښې راشی نو هغه د قرآن کریم نه فائده اخستے شی) قرآن کریم خو ډیر قسمه خلق لولی، انګریزان، شیعه ګان، هندوان، مبتدعین بریلیان وغیره لیکن د هغوی پرے عقیده نۀ جوړیږی، اعمال ئے نۀ برابریږی، وجه دا ده چه تقویٰ پکښې نشته۔ الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ﴾۔
(۳) دریم سبب : [خَشْيَةُ اللهِ وَالْإِشْفَاقُ مِنَ السَّاعَةِ] ۔(د الله نه یره او د قیامت نه سخت یریدل) تقویٰ دے ته وائی چه انسان د الله تعالیٰ د حکمونو تابعداری کوی او خشیت دے ته وائی چه د الله تعالیٰ د ذات نه یره کوی۔ د الله تعالیٰ او د قیامت نه یره مجموعه د ټولو خیرونو ده۔ او دا قسم خلق د قرآن کریم نه فائده اخستے شی، لکه الله تعالیٰ فرمائی :
﴿ وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوْسٰى وَهَارُوْنَ الْفُرْقَانَ وَضِيَاءً وَّذِكْرًا لِّلْمُتَّقِيْنَ الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ وَهُمْ مِنَ السَّاعَةِ مُشْفِقُوْنَ﴾ (الانبیاء : ۴۸،۴۹)۔
(مونږ موسی او هارون (علیهما السلام) ته فرقان او رڼړا (تورات) ورکړے وه او یاداشت دپاره د متقینو کوم چه د الله تعالیٰ نه یریدل او د قیامت نه ئے خوف لرلو)۔
(۴) – [اَلْاِسْتِمَاعُ وَالْإِنْصَاتُ] (قرآن کریم ته غوږ کیخودل او متوجه کیدل او مشاغل پریخودل)۔ لکه فرمائی : ﴿ وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ﴾ (الاعراف : ۲۰۴) (کله چه قرآن کریم لوستلے شی نو غوږ ورته کیدئ او چپ شئ دے دپاره چه په تاسو رحم اُوکړے شی) د لیث بن سعد رحمه الله نه نقل دی :
[لَيْسَ شَيْءٌ اَسْرَعَ اِلَيْهِ الرَّحْمَةُ مِنْ مُسْتَمِعِ الْقُرْآنِ] ۔ (داسے یو شے نشته چه رحمت هغے ته په جلتئ روان وی لکه څنګه چه د قرآن کریم آوریدونکی ته په جلتئ راځی)۔
دارنګه فرمائی : ﴿ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَذِكْرٰى لِمَنْ كَانَ لَهٗ قَلْبٌ اَوْ اَلْقَى السَّمْعَ وَهُوَ شَهِيْدٌ﴾
(ق : ۳۷)۔
(یدے قرآن کښې یاداشت دے د هغه چا دپاره چه زړه لری اوغوږ کیدی او زړه ئے حاضر وی) نو فائده به د قرآن کریم نه واخلی۔ که د انسان زړه بل طرف ته متوجه وی نو پوره فائده نشی اخستے۔
(۵) [خَوْفُ وَعِيْدِ اللهِ] (الله تعالیٰ چه په قرآن کریم کښې کوم وعیدونه او عذابونه او سزاګانے د مجرمانو دپاره بیانے کړیدی د هغے نه یره کولو سره بنده د قرآن کریم نه فائده اخستے شی) ۔ لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿فَذَكِّرْ بِالْقُرْآنِ مَنْ يَّخَافُ وَعِيْدِ﴾ (ق : ۴۵)

(قرآن بيان كړه هغه چا ته چه زما د عذابونو نه يره كوى)

﴿سَيَذَّكَّرُ مَنْ يَّخْشٰى﴾ (الاعلى: ١٠)

(زردے چه نصيحت به واخلى هغه څوك چه د الله تعالىٰ نه يره كوى)

(٦) - [عَدَمُ الرُّكُوْنِ اِلَى الدُّنْيَا وَاتِّبَاعِ الْهَوٰى]

(دنيا ته نۀ مائله كيدل او د خپلو خواهشاتو پسے نۀ روانيدل) په قرآن كريم باندے دنيا پرست خلق او هغه څوك چه د خپلو خواهشاتو تابع وى نشى پوهيدلے۔ لكه بلعام بن باعورا په اوله كښې د تورات عالم وو بيا پكښې دوه مرضونه پيدا شو :

١ - حُبُّ الدُّنْيَا (د نيا سره ئے مينه پيدا شوه) ٢ - دويم اتباع الهوى۔ د خپلو خواهشاتو تابعدارى۔ نو بس گمراه شو۔ لكه سورة الاعراف (١٧٦) كښې به راشى :

﴿وَلٰكِنَّهٗ اَخْلَدَ اِلَى الْاَرْضِ وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ﴾۔(دے زمكے (دنيا) ته مائل شو او د خپل خواهش تابعدارى ئے اوكړه) نو دغه علم ورته فائده ورنكړه۔

سفيان ثوريؒ نه نقل دى : [لَا يَجْتَمِعُ فَهْمُ الْقُرْاٰنِ وَالْاِشْتِغَالُ بِحُطَامِ الدُّنْيَا فِىْ قَلْبِ مُؤْمِنٍ اَبَدًا]

(د قرآن كريم پوهه او د دنيا په سامانو مشغوله كيدل، دواړه د مؤمن په زړه كښې هيڅكله نۀ شى راجمع كيدے)

(٧) - [اَلْاِيْمَانُ الْكَامِلُ بِاللّٰهِ وَبِوَعْدِهٖ وَوَعِيْدِهٖ]۔

(قوى او كامل ايمان لرل په الله تعالىٰ او د هغه په وعدو او د هغه په عذابونو) كه داسے نۀ وى او ايمان ئے ضعيف وى نو دا پوره طريقے سره د قرآن نه فائده نشى اخستے، هسے الفاظ به وائى او قرآن به ختم كړى، درس نه به فارغ شى مگر ډيره فائده به اُونكړى۔ لكه الله تعالىٰ فرمائى : ﴿قُلْ هُوَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا هُدًى وَّشِفَآءٌ﴾ (فصلت : ٤٤)

(اُووايه دا قرآن د ايمان والو دپاره هدايت او شفاء ده)۔

دارنگه فرمائى : ﴿اَوَلَمْ يَكْفِهِمْ اَنَّآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ يُتْلٰى عَلَيْهِمْ اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَرَحْمَةً وَّذِكْرٰى لِقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ﴾ (عنكبوت : ٥١) (آيا دوى له دا كافى نۀ دے چه مونږ دوى ته كتاب نازل كړيدے او په دوى باندے لوستلے شى، يقيناً پدے كښې ضرور رحمت دے او ياداشت دے د ايمان والودپاره) ﴿وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ﴾ (يونس:٥٧)

(دا كتاب هدايت او رحمة دے د ايمان والودپاره)

(٨) [طَهَارَةُ الْقَلْبِ] (د زړه صفائى) د حسد، كينه، ضد او بغض او گنده اخلاقو نه) يعنى

د چا تزکیه دنفس چه شوی وی نو هغه د قرآن کریم نه حقیقی فائده اخستے شی. لکه فرمائی: ﴿لَا يَمَسُّهُ إِلَّا الْمُطَهَّرُوْنَ﴾ ددے یوه معنیٰ مفسرینو داسے کړیده:
[لَا يَنَالُ فَهْمَ مَعَانِيْهِ إِلَّا الْقُلُوْبُ الطَّاهِرَةُ]
(صرف پاکو زړونو والا په معانی او مقاصدو د قرآن کریم پو هیږی) چه زړه ته اُورسیږی.
(۹) (اَلْعَزْمُ الْجَازِمُ) (کلکه اراده کول چه زهٔ به د قرآن کریم نه فائده اخلم) علماً، عملًا او عقیدةً. لکه د سورة التکویر آیت (۲۸) کښې دی: ﴿لِمَنْ شَاءَ مِنْكُمْ أَنْ يَّسْتَقِيْمَ﴾ (د قرآن کریم نه فائده هغه څوك اخستے شی چه د هغه اراده د استقامت وی) د ځان د برابرولو اراده ئے کړے وی.
(۱۰) - (اَلْيَقِيْنُ) (دا یقین کول چه قرآن کریم به ما ته ضرور فائده راکوی).
(۱۱) (اَلصَّبْرُ) (دا ټولے خبرے انسان ته هله حاصلیږی چه صبر پکښې راشی. بنده نهٔ علم کولے شی او نهٔ عمل کولے شی او نهٔ د نفس کومه تزکیه کولے شی او نهٔ د کوم بد اخلاقو نه بچ کیدے شی مګر هله چه صبر اختیار کړی. پدے وجه په قرآن کریم کښې د صبر بیان ډیر راغلے دے. الله تعالیٰ فرمائی:
﴿وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ أَئِمَّةً يَّهْدُوْنَ بِأَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوْا وَكَانُوْا بِآيٰتِنَا يُوْقِنُوْنَ﴾ (الم السجده: ۲٤)
(ما د بنی اسرائیلو نه امامان د دین جوړ کړی وو چه خلقو ته به ئے د الله تعالیٰ دین بیانولو کله چه هغوی کښې صبر راغلو او زما په آیتونو ئے یقین لرلو).

## د قرآن کریم د پوهے نه منع کونکی څیزونه

علامه زرکشیؒ په البرهان کښې لیکلی دی چه چا کښې نهه صفات راشی نو هغه د قرآن کریم پو هه نشی حاصلولے او فائده نشی ورکولے. د فائدے په طور مختصراً بیانیږی:
۱ - [اَلْبِدْعَةُ] (بدعتی دقرآن کریم نه فائده نشی اخستے).
(۲) [اَلْإِصْرَارُ عَلَى الذَّنْبِ] (په ګناه باندے یو انسان همیش والے کوی او توبه ترے نهٔ اُوباسی نو دا هم د قرآن نه فائده نشی اخستے).
(۳) [اَلْكِبْرُ] (د چا په زړه کښې چه تکبر وی چه حق له دیکه ورکوی او خلق ورته سپك ښکاری) لکه آیت کښې دی:
﴿سَأَصْرِفُ عَنْ آيٰتِيَ الَّذِيْنَ يَتَكَبَّرُوْنَ فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ﴾ (الاعراف: ۱٤٦)

(يعني زه د خپلو آيتونو نه هغه څوك اړوم چه په زړه کښې ئې تکبر دے)

(٤) [اَلْهَوٰى] (د خواهشاتو تابعداري).

(٥) [حُبُّ الدُّنْيَا] (د دنيا سره محبت) لکه ددے تشريح به روستو قرآن کريم کښې راځي چه د دنيا محبت څه شے دے؟ هغه دا چه د الله تعالىٰ حکم پرے مات کړے شي.

(٦) [اَنْ يَّكُوْنَ غَيْرَ مُتَحَقِّقِ الْاِيْمَانِ]. (چه ايمان ئې قوي نۀ وي).

(٧) [اَنْ يَّكُوْنَ ضَعِيْفَ التَّحْقِيْقِ].

(چه د خبرے تحقيق پوره نۀ کوي) يعني بغير د تحقيق نه د خبرے تابعداري کوي او خپل تدبر او سوچ او کتب التفاسير ته رجوع نۀ کوي).

(٨) ...... [اَنْ يَّكُوْنَ مُعْتَمِدًا عَلٰى قَوْلِ مُفَسِّرٍ فَقَطْ].

(صرف د يو مفسر په قول اعتماد کوي) د خپل شيخ نه ئې څه اوريدلي وي بس هميشه دپاره هغه ترجمه او تفسير کوي او نور تفاسير نۀ ګوري او خپل تدبر نکوي).

(٩) ...... [اَنْ يَّكُوْنَ رَاجِعًا اِلٰى مَعْقُوْلِهٖ]

(په خپل عقل اعتماد کوي چه بس زۀ پو هيږم) د استاذانو نه فائدے نۀ اخلي نو داسے انسان هم په قرآن کريم پوره نشي پو هيدلے بلکه اُلټه به د قرآن کريم تحريف کوي. وبالله التوفيق.

OOOOOOO

# مقدمة سورة الفاتحة :

د سورة الفاتحې د وضاحت نه مخکښې یو څو خبرې یادول پکار دی :

## اول بحث : د مکی او مدنی سورتونو معلومات او پیژندل دی :

وحی په دوه ځایونو کښې نازله شویده یو په مکه معظمه کښې او بل په مدینه منوره کښې۔ د مکی او مدنی سورتونو جدا جدا پیژندلو فائده دا ده چه د مکی سورة یو قسم مضمون وی او د مدنی بیل قسم۔ په مکه کښې جهاد نهٔ وو، هلته صرف دعوت کیدو او تکلیف او پریشانی وه، په مسلمانانو باندې د کفارو د طرف نه عذابونه وو نو د هغې مطابق آیتونه به نازلیدل، د صبر خبرې به کیدې او د جنت او آخرت خبرې به کیدې۔ د آخرت استحضار او د دنیا فناء اوبې محبتی به بیانیدله۔ او مدینه کښې خو بادشاهی او خلافت وو۔ نو احکام به بیانیدل د خلافت مسئلې، د مسلمانانو د اجتماع او د هغوی جماعت جوړول او د مسلمانانو اتفاق او اتحاد او جهاد او انفاق او حج وغیره به بیانیدل۔ نو څوك چه مکی او مدنی جدا جدا اُوپیژنی نو د سورة په مضمون او مقصد به ښه او زر پو هیږی چه دا مکی سورت دې، مکی موضوعات پکښې دی او دا مدنی سورة دې، مدنی موضوعات پکښې دی، ناسخ او منسوخ هم ددې سره معلومیږی چه ناسخ مؤخر (روستو) وی او منسوخ مقدم (مخکښې) وی او مکی مقدم وی په مدنی۔ نو که څوك وائی چه دا آیت منسوخ دې او دائې ناسخ دې نو تقدیم تاخیر ته به کتلې شی۔ دارنګه یو لفظ چه مکی سورة کښې استعمال شو او هغه عمل په مکه کښې نهٔ وی لکه د جهاد، یا د زکوٰة لفظ شو نو پدې مقام کښې په معنیٰ د آیت ته ګورې چه ددې نه څه مراد دې؟ ۔

تفسیر فتح البیان کښې علامه نواب صدیق حسن خانؒ لیکی : [مَعْرِفَةُ الْمَكِّيِّ وَالْمَدَنِيِّ لَازِمٌ فِيْ فَهْمِ الْقُرْآنِ] ۔ (د مکی او مدنی سورتونو پیژندل په فهم د قرآن کښې لازم دی) او دا احسان مفسرینو کړیدې چه هغوی دا معلوم کړیدی او هر آیت ئې جدا کړیدې چه دا مکی دې او دا مدنی۔ او چه کوم کښې اختلاف دې هغه ئې هم معلوم کړیدې او غالباً د قرآن کریم د هر سورة په اول کښې ئې لیکلی هم دی چه دا سورة مکی دې او دا مدنی دې۔ بیا د مکی او مدنی دپاره د هر یو خصائص او تعریف پیژندل ضروری دی۔

**تعریف المکی**: ۱- مکی هغه سورتونه دی چه په مکه او د هغې په ماحول کښې نازل شوی وی او مدنی ددې برعکس دی.

۲- **تعریف**: مکی سورتونو کښې اکثر تزهید فی الدنیا والرغبة فی الآخرة ذکر وی او غالباً د عقیدې او اعمالو مسئلې وی، د دنیا بې رغبتی او د آخرت سره محبت پیدا کیدل. صبر او استقامت او قصص او واقعات پکښې د عبرت دپاره بیانیږی. او مکی سورتونه ډیر هم دی.

او په مدنی سورتونو کښې ترغیب وی د مسلمانانو اتفاق ته، د خلافت مسئلې وی لکه سورة البقرة او آل عمران کښې به دا مسئلې راځی. د جماعت او خلافت جوړولو او د هغه متعلقات لکه د تدبیر المنزل احکام، د طلاقو او نکاحونو، رضاعت، جهاد او قتال وغیره هغه ټول مسائل چه د تدبیر المنزل یا سیاست مدنیه سره تعلق لری دا په مدنی سورتونو کښې بیانیږی. او دا دعوت ورکوی چه اے خلقو! نفس پاك کړئ او اخلاق برابر کړئ.

۳- **دریم تعریف**: مکی هغې ته وئیلې شی چه د نبی ﷺ د هجرت نه مخکښې نازل وی که په هر ځائے کښې نازل وی، طائف کښې نازل وی او که په مکه کښې، یا په بل ځائے کښې. او مدنی: چه د هجرت نه روستو نازل وی که په تبوك کښې نازل وی چه د مدینې نه ډیر لرې ځائے دے. یا په عرفات کښې نازل شوی وی چه دا په مکه کښې دے نو دے ټولو ته مدنی وائی لکه (الیوم اکملت لکم دینکم) آیت په مکه کښې په عرفات کښې نازل دے او مدنی ورته خلك وائی، نبی ﷺ په اُوښه باندې سور وو، الله پاك دا آیت نازل کړو چه دین پوره شو. نو آیت مکه کښې نازل دے او مدنی ورته وئیل کیږی ځکه چه د هجرت نه روستو نازل دے. نو ددې دپاره د نبی ﷺ سیرت زده کولو ته هم ضرورت دے.

## دویم بحث: -- د تعوذ (اعوذ بالله) وئیلو:

د تعوذ معنیٰ ده (اعوذ بالله) وئیل یعنی الله پورې پناهی طلب کول د شیطان نه چه هغهٔ د انسان ازلی دشمن دے. ددې حکم او فائده او الفاظ څهٔ دی؟ نو هغهٔ بیانیږی:

**حکم د تعوذ**: د قراءت د شروع کولو نه مخکښې د (اعوذ بالله) وئیل فرض دی په راجح قول د علماؤ کښې ځکه چه الله تعالیٰ پدې باندې امر کړیدے ﴿فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ﴾ (النحل ۹۸) (کله چه قرآن کریم لولې نو اعوذ بالله وایه)، او امر د وجوب دپاره وی کله چه دلیل صارف عن الوجوب والفرضیة نهٔ وی راغلې.

دویم دلیل : پدے بانـدے رسـول الله ﷺ دوام او همیش والے کړیدے په مانځه او بهر د مانځه نه نوکومو علماءِ کرامو چه مستحبه ګرځولے ده نو دا مرجوح قول دے۔ امام مالك رحمه الله وائی چه اعوذ بالله وئیل په مانځه کښ نشته۔ (امام مالك زمونږ د امت د اماماتو نه یو لوئی امام دے لیکن دا مسئله ئے د دلیل په لحاظ سره کمزورے ده، ځکه چه نبی علیه السلام به دا لوستله)۔ دا د واجباتو نه ده، ضرور ددے لوستل پکار دی۔ او په ابتداءِ د قراءت کښ به ئے وائی، ځکه دا د رسول الله ﷺ طریقه وه۔

## فائدة الاستعاذة : (د اعوذ بالله وئیلو فائدے)

۱ – [اِمۡتِثَالُ اَمۡرِ اللهِ وَرَسُوۡلِهٖ] اعوذ بالله وئیلو سره د الله تعالیٰ او د هغه د رسول ﷺ حکم عملی کیږی۔ چه پدے کښ د دنیا او د آخرت سعادت دے۔

۲ – [اَلۡاِلۡتِجَاءُ اِلَی اللهِ] الله تعالیٰ ته التجاء ده ددے ظالم دشمن نه۔ دشمنان دوه قسمه دی یو ښکاره دی نو د هغه دپاره وسائل دی، اسلحه وغیره سره هغهٔ وهلے شی لکه یهود ونصاریٰ او نور کفار او اهل بدع شول۔

دویم باطنی دشمنان دی چه په سترګو نهٔ ښکاری نو د هغے دپاره شریعت اذکار او دعاګانے خودلی دی، هغه په ظاهری اسبابو نهٔ دفع کیږی۔ نو په اعوذ بالله وئیلو سره شیطان دفع کیږی۔ (الله تعالیٰ ته تضرع او عاجزی او هغه ته منډه وهل او هغه پورے پناهی نیول د هر شر نه دا الله تعالیٰ ته ډیر خوښ دی، هم ددے وجه نه ئے شیطان په انسان مسلط کړیدے چه بنده الله تعالیٰ ته تضرع اُوکړی لکه روستو بقره (۳۸) کښ به راشی ان شاء الله تعالیٰ۔

نو د تلاوت په سر کښ تعوذ ددے دپاره وئیل کیږی چه د شیطان د شر نه محفوظ شی۔ بعض علماءِ کرامو وئیلی دی چه تعوذ به د قراءت نه روستو وائی، لیکن د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو (رضی الله عنهم) نه ددے نقل نشته۔بلکه هغوی به ابتداء کښ لوستله۔

۳– بله فائده دا ده چه قرآن کریم لوئی عمل صالح دے، شیطان ددے نه د اړولو او د فکر بدلولو ډیر کوشش کوی نو په تعوذ بالله سره د شیطان دا کوشش رد کول دی۔

٤– فائده : تعوذ کښ اشاره ده یکسوئی ته یعنی چه صرف توجه الی الله تعالیٰ اُوکړی نو هله به د قرآن کریم په مزه پوهه شی۔

## د تعوذ الفاظ :

(اعوذ بالله) به په کومو الفاظو سره وائی؟ : نو په احادیثو کښې څلور قسمه الفاظ راغلی دی :

١- [اَعُوْذُ بِاللهِ السَّمِيْعِ الْعَلِيْمِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ مِنْ نَفْخِهٖ وَنَفْثِهٖ وَهَمْزِهٖ]

(ابو داود، وابن ماجه بسند صحيح)

(پناه غوارم په الله تعالیٰ پورے چه اوریدونکے او پوهه ذات دے د شیطان رټلی شوی نه، د هغه د پوکی نه او د هغه چُپ نه (مراد ترے سحر او جادو دے) او د هغه د وسوسو نه)

٢- دویم [اَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ مِنْ نَفْخِهٖ وَنَفْثِهٖ وَهَمْزِهٖ]

٣- [اَعُوْذُ بِاللهِ السَّمِيْعِ الْعَلِيْمِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ] دا درے واړه بهتر تعوذات دی.

٤- څلورم : صرف [اَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ] دا د غصے په وخت ثابت دی او د تلاوت په وخت د نبی ﷺ نه ندی نقل، البته د سیدنا عمر فاروق او ابن عمر رضی الله عنهما نه نقل دی چه هغوی به دغه شان تعوذ کولو. (مصنف عبد الرزاق (٢/٨٤) ابن ابی شیبة (١/١٩٢))

دارنګه یو مرفوع مرسل روایت ابوداود کښې شته او بل روایت عبد الرزاق (٢/٨٦) کښې شته. نو د تلاوت په وخت یا په مانځه کښې دا تعوذ لوستل هم جائز دی اګرکه اولنی درے واړه بهتر دی.

او د فقه حنفی په کتابونو کښې داسے اختلاف راغلے دے چه اعوذ به وائی او که استعیذ ؟ : نو په دے کښې فقهاؤ اختلاف کړیدے مګر دغه اجتهادی اختلاف دے او په احادیثو کښې استعیذ نشته صرف (اعوذ بالله) راغلے دے، همدا وئیل پکار دی، قطع نظر د هغه اختلاف نه. ځکه د رسول الله ﷺ په کلماتو کښې برکت او خیر دے. وبالله التوفیق.

او په مانځه کښې اعوذ بالله صرف په اول رکعت کښې وئیل پکار دی ځکه چه حدیث د مسلم کښې راځی [كَانَ اِذَا قَامَ مِنَ الثَّانِيَةِ لَمْ يَسْكُتْ]

(نبی ﷺ به چه کله دویم رکعت ته راپورته شو نو نهٔ به غلے کیدو).

○ بله دا چه په هر رکعت کښې د تعوذ وئیلو نقل نشته، او کوم علماء کرام چه د عموم ددے آیت (فَاِذَا قَرَاْتَ الْقُرْآنَ) نه استدلال کوی، نو هغه قول مرجوح دے (غَفَرَ اللهُ لَنَا وَلَهُمْ).

## ٣- دریم بحث : د بسم الله متعلق :

او بسم الله به په ابتداء د سورت کښې وائی. د قراءت په مینځ کښې بسم الله وئیل د رسول الله ﷺ نه ثابت نهٔ دی. نو سنت دا ده چه بسم الله په ابتداء د سورة کښې اُووئیلے شی.

## آيا بسم الله د قرآن نه جزء ده؟

صحابه كرامو د عثمان ﷺ په زمانه كښې چه كوم مصحف تيار كړے وو، چه ټولو صحابه كرامو د هغے تائيد او توثيق كړے وو، په هغه مصحف كښې د سورة براءت نه علاوه د ټولو سورتونو په ابتداء كښې بسم الله ليكلے شوے وه، په هغهٔ مصحف كښې داسے څيز نهٔ وو ليكلے شوے چه هغهٔ د قرآن كريم حصه نهٔ وه، نهٔ د سورتونو نومونه ليكلے شوي وو، نهٔ د آيتونو تعداد او نهٔ كلمه د آمين وه، دے دپاره چه څوك غير قرآن د قرآن نه اُونهٔ گڼري. ددے ډير احتياط باوجود (بِسْمِ الله) صرف د يو سورت نه علاوه د تمامو سورتونو په ابتداء كښې اُوليكلے شوه چه د هغے تعداد يو سل ديارلس دے.

ددے نه معلومه شوه چه دا د قرآن كريم نه جُزء دے. او پدے كښې اتفاق دے چه د سورة نمل نه خو جزء دے، او پدے هم چه د سورهٔ براءت په ابتداء كښې به نشي لوستلے كيدے. خو اختلاف دے چه آيا دا د سورت فاتحے يا د هر سورت نه جزء دے او كهٔ نهٔ ؟.

پدے كښې راجح دا ده چه بسم الله يو مستقل آيت دے، هرځائے چه قرآن كريم كښې ليكلے شوي وي، نهٔ جزء د فاتحے دے او نهٔ جزء د هر سورت نه دے، او دا نازله شويده دپاره ددے چه پدے باندے افتتاح د قراءت اُوشي او ددے دپاره چه د دوه سورتونو ترمينځ فصل راشي لكه عبد الله بن عباس ﷺ نه روايت دے چه رسول الله ﷺ د يو سورت انتهاء او د بل سورت ابتداء نهٔ پيژندله تردے چه بسم الله الرحمن الرحيم نازله شوه.

(ابو داود، حاكم بسند صحيح)

ددے وجه نه دا په بيله كرخه كښې مستقل ليكلے شي. او دا قول د عبد الله بن المبارك رحمه الله دے چه شيخ الاسلام ابن تيمية ورته اعدل الاقوال وئيلے دے. (القواعد النورانية ص (٤٧) او دلائل ددے په الحق الصريح (٤/ ٣٠) كښې تفصيلاً اُوكوره.

او كله نا كله په جهري مانځه كښې پدے باندے جهر كول جائز دي بعض احاديثو كښې راغلي دي. اگر كه اكثر اوقاتو كښې پټ وئيل سنت دي. خصوصاً د څلورو صحابه كرامو عمل وو كما في الترمذي او هغوي دا كار تعليماً كړيدے نو د هغوي د اتباع په نيت كله نا كله جهر كول پكار دي. والله اعلم.

## ٤- بحث : د سورت فاتحې فضائل

د عام قرآن فضائل په احاديثو کښې ډير راغلی دی او د هر سورت بيل بيل فضيلت باره کښې روايات ضعيف او موضوع دي، البته د بعض سورتونو فضائل په صحيح احاديثو کښې ثابت دي. چه خپل خپل مقام کښې به راځي ان شاء الله. دلته د سورة فاتحې بعض فضائل أوګوره!

۱- حديث د بخاري وغيره کښې دی : ابوسعيد بن المعلیٰ ﷺ ته رسول الله ﷺ أوفرمايل : زۀ تا ته د مسجد د وتلو نه مخکښې د قرآن کريم يو عظيم ترين سورت ښايم. بيا کله چه مسجد نه وتلو نو ابوسعيد فرمائي : ما ورته خبره ياده کړه نو نبی ﷺ راته أوفرمايل : الحمد لله رب العالمين (يعني سورة فاتحه) ده. چه دا سبع مثاني دے او هغه قرآن عظيم دے چه ما ته راکړے شويدے.

۲- دغه شان موطأ مالك او مستدرك د حاکم کښې روايت دے چه ابوسعيد مولیٰ عامر بن کريز فرمائي : رسول الله ﷺ ابی بن کعب ﷺ ته أوفرمايل : [اَلَا اُعَلِّمُكَ سُوْرَةً مَا اُنْزِلَتْ فِي التَّوْرَاةِ وَلَا فِي الْاِنْجِيْلِ وَلَا فِي الْفُرْقَانِ مِثْلُهَا] آيا زۀ تا ته د مسجد نه د وتلو نه مخکښې يو داسے سورت نۀ ښايم چه په تورات او انجيل کښې نۀ دے نازل شوے او نۀ په قرآن کريم کښې داسے بل کوم سورت شته، بيا نبی ﷺ تپوس أوکړو، تۀ چه کله مونځ شروع کوے نو څۀ لولے؟ هغۀ : الحمد لله رب العالمين أووئيله نو نبی ﷺ أوفرمايل : دا هغۀ سورت دے.

۳- ابوسعيد خدری ﷺ د خپلو ملګرو سره په سفر کښې وو، د يو کلی نه ئے ميلمستيا طلب کړه، هغوی ورنکړه نو د کلی سردار مار يا لړم أوچيچلو، د دم دپاره ئے د دوی نه مطالبه أوکړه نو دوی ورته أووئيل : مونږ له به عوض راکوئ نو ابوسعيد خدری ﷺ ورپاخيدو او هغۀ ئے په سورة فاتحه باندے دم کړو چه أووه کرته ئے پرے أووئيله نو هغۀ بالکل صحيح شو. او ديرش ګډے ئے ترے واخستے. دا روايت امام بخاری او مسلم او ابو داود راوړيدے) مختلف الفاظ دي.

٤- امام مسلمؒ او نسائيؒ د ابن عباس ﷺ روايت نقل کړيدے چه رسول الله ﷺ زمونږ په درميان کښې ناست وو او جبرئيل ﷺ د هغه سره موجود وو چه د بره نه يو آواز واوريدے شو، جبرئيل ﷺ آسمان ته نظر پورته کړو او وے فرمايل : دا د آسمان دروازه د نن نه مخکښې أوسه پورے نۀ وه کولاوه شوے، ددے نه يو ملائك راکوز شو او رسول الله ﷺ ته

راغلو او وے فرمایل : [اَبْشِرْ بِنُوْرَیْنِ قَدْ اُوْتِیْتَهُمَا لَمْ یُؤْتَهُمَا نَبِیٌّ قَبْلَكَ : فَاتِحَةُ الْکِتَابِ وَخَوَاتِیْمُ سُوْرَةِ الْبَقَرَةِ، وَلَنْ تَقْرَأَ حَرْفًا مِنْهُمَا اِلَّا اُوْتِیْتَهٗ] زهٔ تا ته د دوه نُور (رنړاګانو) زیرے درکوم، چه تا نه مخکښ هیڅ نبی ته نهٔ دی ورکړے شوی : چه سورهٔ فاتحه او د سورهٔ بقرے آخری (دوه) آیتونه دی۔ ددے یو حرف هم تهٔ نهٔ لولے مګر د هغے بدل به تا ته (ضرور) درکړے کیږی))۔

سبحان الله ! څومره عظیم احسان د رب العالمین دے که څوك ئے قدر پیژنی !۔

٥- فضیلت دا دے چه دا سورة د قرآن په ځائے کار ورکوی او باقی قرآن ددے په ځائے کار نهٔ ورکوی۔ (کما فی مستدرك الحاکم (٨٦٧) والدارقطنی والبیهقی)۔

که چا په مانځه کښ ټول قرآن اولوستو او فاتحه ئے اُونه وئیله نو مونځ ئے نهٔ کیږی په اتفاق د علماءِ کرامو پدے کښ څه اختلاف نشته، خو احناف وائی چه واجب ترے پاتی دی او جمهور علماء وائی چه فرض ترے پاتی دی۔ که نه وی د احنافو په نزد هم فاتحه لوستل واجب دی او که چا اُونه وئیله، مونځ ئے واجب الاعاده دے۔ او جمهور علماء وائی : دا فرض ده، ددے په نهٔ وئیلو مونځ فاسدیږی۔

٦- د سورة فاتحے بل فضیلت دا دے چه دا د الله تعالیٰ او د بنده په مابین کښ خبری دی، صحیح مسلم کښ راځی : [قُسِمَتِ الصَّلَاةُ بَیْنِیْ وَبَیْنَ عَبْدِیْ] الله تعالیٰ فرمائی : (زما او د بنده په مینځ کښ فاتحه ویشلے شویده، نیمه زما ده او نیمه د بنده ده، بنده چه (الحمد لله رب العالمین) اُووائی، الله تعالیٰ فرمائی : [حَمِدَنِیْ عَبْدِیْ] بنده زما صفت اُوکړو۔ کله چه بنده الرحمن الرحیم اُووائی: الله تعالیٰ جواب ورکوی [اَثْنٰی عَلَیَّ عَبْدِیْ] -(بنده زما ثناء اُووئیله)۔ کله چه (مالك یوم الدین) اُووائی، الله تعالیٰ فرمائی : [مَجَّدَنِیْ عَبْدِیْ] (بنده زما شرافت او عزت بیان کړو)۔ کله چه (ایاك نعبد وایاك نستعین) اُووائی۔

الله تعالیٰ فرمائی : [هٰذَا بَیْنِیْ وَبَیْنَ عَبْدِیْ] -دا زما او د بنده په مابین کښ شے دے، چه ما په بنده لازم کړے دے، چه زما عبادت به کوی، مدد به زما نه غواړی، او بنده چه ما نه څه غواړی، زه به ئے ورکوم، (الله تعالیٰ وعده کړے ده)۔ او چه اهدنا الصراط آخره پورے اُووائی : نو الله تعالیٰ فرمائی: دا زما د بنده شو۔ (دا دعا به ورله قبلوم)۔

(دلته ئے فاتحے ته مونځ اُووئیلو، څکه دا په مانځه کښ وئیلے کیږی او د تقسیم معنیٰ دا ده چه نیمائی حصه کښ د الله تعالیٰ حمد وثنا او د هغه د رحمت، ربوبیت او عدل او بادشاهت بیان دے او په نیمائی حصه کښ دعاء او مناجات دے چه بنده ئے د الله تعالیٰ په

دربار کښې کوی)۔
ددې حدیث نه دا فائده هم معلومه شوه چه په هر آیت باندې وقف پکار دې۔ په یو ساه باندې وئیل ئې جائز دی لیکن افضله طریقه نهٔ ده۔ لکه دا د بعض قاریانو طریقه ده۔ او پدې سورة کښې د هدایت وعده ده۔ چه الله رب العالمین ددې سورت په لوستلو سړی ته هدایت کوی، خصوصاً چه مانځه کښې ئې لولي، نو الله رب العزت سړی ته پرې هدایت کوی، هدایت د الله تعالیٰ په خزانو کښې غټه خزانه ده۔ کما سیأتی۔
ددې وجه نه په هر رکعت کښې شریعت مطهره دا سورت لازم کړې دې، چه هر رکعت کښې به ئې تاسو لولئ!۔

٧- حدیث کښې دی: [لَاصَلَاةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ] [بخاری]
(د فاتحې نه بغیر مونځ صحیح نهٔ دې)۔

**مسئله: په مانځه کښې فاتحه لوستل په امام او مقتدی ټولو باندې واجب دی**

فاتحه لوستل په مانځه کښې په هر مقتدی یا امام او منفرد ټولو باندې لازم دی او ددې په باره کښې ډیر دلائل صحیح احادیث دی چه بعض دا دی:

۱- حدیث دې: [لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ] [صحیح البخاری وصحیح مسلم، کتاب الصلاة باب وجوب القراءة الخ] (د هغه چا مونځ نشته چه سورة فاتحه اُونهٔ لولی)
پدې حدیث کښې (مَنْ) لفظ عام دې، هر مونځ کونکی ته شامل دې، سړې وی که ښځه، منفرد وی، که امام او که مقتدی، سری مونځ وی او که جهری، فرض مونځ وی او که نفل وی، د هر مونځ کونکی دپاره سورة فاتحه لوستل ضروری دی۔

۲- یو ځل د سهر په مانځه کښې صحابه کرامو د رسول الله ﷺ سره قراءت لوستلو چه د هغې په وجه په نبی ﷺ باندې قراءت درونډ شو، د مانځه د ختمیدو نه روستو ئې تپوس اُوکړو آیا تاسو ما سره قراءت لوستلو؟ هغوی جواب ورکړو، آو۔ نو نبی ﷺ اُوفرمایل: [فَلَا تَفْعَلُوا إِلَّا بِأُمِّ الْقُرْآنِ فَإِنَّهُ لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِهَا] [ابوداود، ترمذی، نسائی بسند صحیح] (قراءت مهٔ کوئ مګر صرف فاتحه لولئ ځکه چه د هغه چا مونځ نهٔ کیږی چه سوره فاتحه اُونهٔ وائی)۔
دې حدیث نه معلومه شوه چه جهری مونځ کښې به هم مقتدی سورة فاتحه وائی او د

باقي قراءت نه ئې منع اُوفرمايله. لهذا په جهري مونځ کښې په د فاتحې نه علاوه مقتدي غلي ولاړ وي. نو په حديث کښې دوه خبرې راغلي يو دا چه د فاتحې لوستل لازمي دي. او دويم دا چه د امام د قرائت په وخت به د فاتحې نه علاوه قراءت مقتدي نۀ کوي. او دا يو حديث هم د مسئلې د حل کولو دپاره کافي دے.

۳- د ابو هريره ﷺ نه روايت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمايل :

[مَنْ صَلَّى صَلَاةً لَمْ يَقْرَأْ فِيهَا بِأُمِّ الْقُرْآنِ فَهِيَ خِدَاجٌ ثَلَاثًا- غَيْرُ تَمَامٍ] .

(چا چه مونځ اُوکړو چه فاتحه ئې پکښې اُونۀ لوستله نو د هغۀ مونځ ناقص يعني ناتمام دے. درې ځل ئې دا خبره اُوکړه. ابو هريره ﷺ ته اُووئيل شو : [إِنَّا نَكُونُ وَرَاءَ الْإِمَامِ] (د امام نه روستو هم مونږ مونځ کوو، نو هغۀ وخت څۀ اُوکړو؟) ابو هريره ﷺ اُوفرمايل : [اِقْرَأْ بِهَا فِيْ نَفْسِكَ] .(د امام نه روستو سورة فاتحه ځان سره (په آرام) وايه)

(صحيح مسلم كتاب الصلاة باب نمبر ۱۱).

ددې احاديثو نه دا واضحه شوه چه آيت ﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾ الاعراف (۲۰۴) . او حديث [وَإِذَا قَرَأَ فَأَنْصِتُوْا] يا [مَنْ كَانَ لَهُ إِمَامٌ فَقِرَاءَةُ الْإِمَامِ لَهُ قِرَاءَةٌ] . (بفرض صحت) (يعني کله چه امام قراءت کوي نو خاموش شئ) ددې مطلب دا دے چه په جهري مونځونو کښې به مقتدي د سورة فاتحې نه علاوه باقي قراءت کښې خاموش وي او د امام قراءت به اُوري او هر چه فاتحه ده نو هغۀ به د امام سره د آيتونو په وقفو کښې وائي. پدې طريقه سره په آيت د قرآن کريم او احاديثو کښې هيڅ قسم تعارض نۀ پاتې کيږي، په دواړو باندې عمل کيږي. او کله چه سورة فاتحې نه منع اُوشي نو بيا د قرآن کريم او د صحيح احاديثو ترمينځ ټکراؤ پيدا کيږي، او بيا په دواړو په يو وقت کښې عمل ممکن نۀ پاتې کيږي. او حال دا چه قرآن او حديث خپل مينځ کښې هيڅکله ټکراؤ نۀ لري. که چا په عدل او انصاف او پاك زړه سره اُوکتل. والله المستعان. او مزيد تفصيل دپاره الحق الصريح (۱۸۸/٤) ته رجوع اُوکړه.

## ٦- شپږم بحث : ددې سورت نومونه

کوم سورتونه چه ګڼ نومونه لري دا دليل دے په شرافت ددغه سورت ځکه ګڼړوالے د نومونو دلالت کوي په شرافت د (شي) مسمٰی باندې. لکه د قرآن کريم (۷۵) نومونه دي،

(احسن الكلام) د نبي ﷺ (۲۰۰) نوم نه دي (زاد المعاد).
امام قرطبيؒ ددې سورت (۱۲) نوم نه ذکر کړيدي. چه هغه دا دي :

۱- **اَلْفَاتِحَةُ او فَاتِحَةُ الْكِتَابِ** : معنیٰ ئې ده شروع کول دا هغه سورة دې چه په مانځه کښې پدې شروع کيږي، خطبه او مصحف (قرآن) هم پدې شروع کيږي. اګرچه په اعتبار د نزول سره پنځم سورة دې. ددې نه مخکښې د (اِقْرَأْ) بعضې آيتونه راغلي دي، بيا سورة ن والقلم بيا مزمل بيا مدثر او بيا فاتحه. بعض وائي ددې نزول دوه ځل شوې دې، په مکه کښې هم، په مدينه کښې هم، ځکه الله تعالىٰ پدې باندې حواله ورکړې په سورة حجر کښې [وَلَقَدْ آتَيْنَاكَ سَبْعًا مِنَ الْمَثَانِيْ وَالْقُرْآنَ الْعَظِيْمَ] نو دا سورت په مکه کښې نازل وو او په مدينه کښې دوباره نازل شوې دې.

۲- **اَعْظَمُ السُّوْرَةِ** : لکه مخکښې د بخاري حديث تير شو
[لَأُعَلِّمَنَّكَ اَعْظَمَ السُّوْرَةِ قَبْلَ اَنْ تَخْرُجَ مِنَ الْمَسْجِدِ].

۳- **اَلصَّلَاةُ** : ځکه چه دا په مانځه کښې وئيلې کيږي مخکښې حديث قدسي تير شو.

٤- **سُوْرَةُ الْحَمْدِ**: (ځکه پدې سورت کښې حمد ذکر دې).

۵- **اَسَاسُ الْقُرْآنِ** : عبد الله بن عباس رضي الله عنه نه نقل دي چه د قرآن اساس (بنياد) سورة فاتحه ده. ځکه چه دا په ابتداء د قرآن کريم کښې راغلې دې، دويم د قرآن کريم چه څه مضامين دي ټول پدې سورت کښې راجمع دي. (تفسير قرطبي) کما سيأتي. (الدر المنثور ايضاً)

٦- **اَلسَّبْعُ الْمَثَانِي** : ځکه دا سورت په اُووه آيتونو مشتمل دې او د مانځه په هر رکعت کښې (باربار) لوستلې کيږي.

۷- **اَلْقُرْآنُ الْعَظِيْمُ** : (غټ قرآن) . ځکه پدې کښې تمام قرآني علوم ذکر شويدي. [وَلَقَدْ آتَيْنَاكَ سَبْعًا مِنَ الْمَثَانِيْ وَالْقُرْآنَ الْعَظِيْمَ] کښې يو تفسير دا دې چه ددې نه فاتحه مراد ده.

۸- **سُوْرَةُ تَعْلِيْمِ الْمَسْئَلَةِ** : (کما في الدر المنثور ۱/٦) دا هغه سورة دې چه د سوال او دعاء ناشنا طريقه ئې خودلې ده چه اول به حمد او ثناء اُووائې (او حديث نه ثابته ده چه درود به په نبي عليه السلام اُووائې). الله تعالىٰ ته به خپله عاجزي پيش کړې (اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ) او بيا به په آخره کښې آمين اُووائې. او پدې طريقه دعاء کول د الله تعالىٰ ادب دې. بعض خلق آمين مخکښې وائي دا سنت ندی.

۹- **سُوْرَةُ الشِّفَاءِ** (شفاء ظاهري او باطني پکښې ده) حديث کښې دي : [فِيْ فَاتِحَةِ الْكِتَابِ

شِفَاءٌ مِنْ كُلِّ دَاءٍ] [سنن الدارمی – قال المحقق حسین سلیم اسد : إِسْنَادُهُ صَحِيحٌ غَيْرَ أَنَّهُ مُرْسَلٌ)
(یعنی په سورة فاتحه کښې الله تعالیٰ د هرې بیمارئ دپاره شفاء ایخودې ده)

**۱۰ – سُوْرَةُ الشُّكْرِ** : دا د شکر سورة دې الحمد لله چه دې اُووئیله نو دا رأس الشکر دې.
(عبد الرزاق بیهقی فی شعب الایمان، الدر المنثور)

**۱۱ – سُوْرَةُ التَّفْوِيْضِ**: دا هغه سورة دې چه الله تعالیٰ ته پکښې ځان سپارل دی.

**۱۲ – سُوْرَةُ الرُّقْيَةِ** : نبی ﷺ ابوسعید خدری رضی الله عنه ته اُوفرمایل : [وَمَا أَدْرَاكَ أَنَّهَا رُقْيَةٌ]
(ته څه پوهیږې چه دا سورت دم دې). مخکښې حدیث تیر شو. (رواه البخاری)

**۱۳ – سُوْرَةُ الْكَافِيَةِ** : یحیی بن ابی کثیرؒ وائی : کافیه ورته ځکه وائی چه دا کافی دې د ټول قرآن نه او نور قرآن ددې په ځائې کار نهٔ ورکوی په مانځه کښې. (تیسیر الرحمن)

**۱٤ – سُوْرَةُ الْوَافِيَةِ** : سفیان بن عیینهؒ وائی : وافیه ورته ځکه وائی چه دا به په مانځه کښې پوره وائی، که بل سورة نیم په یو رکعت کښې اُووائی او نیم په بل رکعت کښې نو مونځ دُرست دې خو سورة الفاتحة نشی نیمولې. که ددې سورة په آیتونو کښې تقدیم تاخیر راغې یا کوم آیت پاتې شو نو مونځ نهٔ صحیح کیږی، په خلاف د نورو قراءت چه هغه ددې برعکس دې. چه په هغې کښې سهواً تقدیم تاخیر مانځه ته ضرر نهٔ ورکوی.

**۱۵ – سُوْرَةُ الْمُنَاجَاةِ** : یعنی د الله تعالیٰ سره د جرګې او خبرې کولو سورت. او پکار دا ده چه دا سورة مونږه داسې اُولولو لکه د الله تعالیٰ سره چه خبرې کوو او دا هله کیږی چه سړې لږه مجاهده اُوکړی.

**۱٦ – سُوْرَةُ الْوَاقِيَةِ** : (حفاظت کونکې سورت).

**۱۷ – اُمُّ الْقُرْآنِ** : امام ترمذیؒ د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت کوی چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : سورة الحمد لله اُمُّ القرآن دې، ام الکتاب دې او سبع مثانی دې.

## سورة الفاتحې ته د ام الکتاب نوم ورکولو وجوهات

**۱۸ – ام الکتاب** : اُمّ مَرْجِع او اصل ته وائی. او پدې سورت کښې هم د قرآن کریم د تمام معانیو، احکامو او مضامینو ذکر په اجمالی طریقه شویدې. (بخاری کتاب التفسیر)

حسن بصری رحمه الله نه نقل دی فرمائی : الله تعالیٰ یو سل څلور (۱۰٤) کتابونه نازل کړیدی او د هغه ټولو علم ئې په څلورو کښې ایخې دې چه تورات، انجیل، زبور او قرآن

کریم دے۔ او بیا ئے ددے ځلورو کتابونو علم په قرآن کریم کښې ایخے دے او د قرآن کریم علمونه ئے په مفصل کښې راجمع کړیدی (مفصلات د سورة الحجرات نه د آخر د قرآن پورے دی)۔ او د مفصلاتو علم ئے په فاتحه کښې ایخے دے نو سورة فاتحه د ټول قرآن کریم او د پخوانو کتابونو خلاصه ده۔

[فَمَنْ عَلِمَ تَفْسِيْرَهَا كَانَ كَمَنْ عَلِمَ تَفْسِيْرَ جَمِيْعِ الْكُتُبِ الْمُنَزَّلَةِ]

[الدر المنثور ۱/ ۱٦) الکشف والبیان للثعلبی، اضواء البیان سورة النحل- وشعب الایمان للبیهقی]-

(څوك چه ددے په تفسیر پوهه شو نو دا داسے دے لکه چه په ټول منزل کتابونو باندے پوهه شوے وی)۔

همدا وجه ده چه حافظ عماد الدین ابن کثیر رحمه الله هم وئیلی دی چه دے سورة کښې یو دوه کلمے دی د ټولو علمونو رجعه هغے ته کیږی۔ [هَاتَانِ الْكَلِمَتَانِ تَرْجِعُ الْاَدْيَانُ كُلُّهَا إِلَيْهِمَا] (دا دوه کلمے (ایاك نعبد وایاك نستعین) چه د ټولو آدیانو رجع دے دواړو ته کیږی)، ځکه چه ټول ادیان الله تعالیٰ د همدے خبرے دپاره رالیږلی وو چه د الله تعالیٰ عبادت اُوکړے شی او د هغه نه مدد اُوغوختلے شی۔

○ شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله لیکلی دی: زه اُوکرځیدم چه غوره دعا پیدا کړم نو ددے دوه کلماتو نه غوره دعا مے پیدا نکړه۔ پدے کښې کمال دا دے چه اَلْاِسْتِعَانَةُ بِاللهِ تَعَالٰى عَلٰى عِبَادَةِ اللهِ تَعَالٰى -(د الله تعالیٰ نه د هغه په عبادت باندے مدد غوختل) ذکر شویدی۔ ځکه د الله تعالیٰ په بندګئ کښې شر نشته نور سوالونه د مال اولاد، جائیداد وغیره چه بنده اُوکړی۔ نو په هغے کښې د شر امکان شته، چه بنده دپاره نقصان او ضرر اُوګرځی۔ لهذا دا په ټولو دعاګانو کښې غوره دعاء ده۔ (مدارج السالکین ۱/۱۱۷)

دارنګه ابن عباس ﷺ فرمائی: دیته سورة فاتحه ته ام الکتاب ځکه وائی چه [لِكُلِّ شَيْءٍ لُبَابٌ] د هر شی دپاره یو خلاصه او مَغز وی [وَلُبَابُ الْقُرْآنِ الْحَوَامِيْمُ] او د قرآن لباب، مغز او خلاصه حوامیم دی او د حوامیمو مغز سورة فاتحه ده)۔ (رواه ابوعبید فی فضائل القرآن)

○ امام قرطبیؒ فرمائی: ټول قرآن په سورة فاتحه کښې دے او دا پنځه ویشت کلمے دی، د قرآن کریم د ټولو علمونو ضامنے دی۔ (یعنی د اسماء او صفاتو مسائل، اعمال، اخلاق، تاریخ د دلو وغیره د هر څه علمونه پکښې دی)۔

○ تفسیر قاسمیؒ لیکی: فاتحه د ټول قرآن راز دے او د فاتحے راز پدے کلماتو کښې دے

(ایاك نعبد وایاك نستعین) څکه چه پدے اوله کلمه کښې د شرك نه جدا والے دے او په دویمه کښې خپله عاجزي ده۔ او دا دواړه مهمے خبرے دي چه د الله عز و جل سره شریك نهٔ جوړول او ځان عاجز کنړل، ځنے خلق د الله تعالیٰ سره نور شیان شریکوي او ځنے ورسره خپل ځان شریکوي، ډیر موحدین خلق داسے وائي چه که زه نه وے نو دا علاقه به فاسده شوے وے او زه دعوت کوم او دا دے او هغه دے۔ تهٔ څوك یٔ، چه الله توفیق درنکړي، ته به څه اُوکړے نو پدے کښې تفویض الی الله دے۔

او دا معنیٰ په یو بل آیت کښې هم راغلے ده ﴿ فَاعْبُدْهُ وَتَوَكَّلْ عَلَيْهِ﴾ [هود :۱۲۳] (فَاعْبُدْهُ) کښې د إِيَّاكَ نَعْبُدُ معنیٰ پرته ده او (وَتَوَكَّلْ عَلَيْهِ) کښې د ایاك نستعین معنیٰ پرته ده۔ د توکل معنیٰ ده، الله تعالیٰ ته ځان سپارل او په هغه باندے اعتماد کول او په (لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ فَاتَّخِذْهُ وَكِيلًا) کښې هم دا معنیٰ پرته ده (لا اله الا هو) کښې دي چه بندګي صرف د الله پکار ده او فاتخذه وکیلا) کښې دي چه هغه باندے ځان اُوسپاره۔

○ حسن بصریؒ نه تفسیر فتح البیان نقل کړیدي چه هغه فرمائي (مرسل حدیث دے) «چا چه سورت فاتحه اُولوستله لکه چه دهٔ تورات، انجیل، زبور او قرآن څلور واړه اُولوستل» ۔

ددے سورة شرافت دا هم دے چه الله تعالیٰ د بنده سره نیمائي کړیده [وَلَا تَصِحُّ الْقُرْبُ إِلَّا بِهَا] او قربت (نزدیکت) نهٔ صحیح کیږي مګر پدے سره۔ یعنی مونځ نه صحیح کیږي مګر په فاتحه) او یو عمل ددے ثواب ته نهٔ رسیږي۔ نو قرطبیؒ وائي : [وَبِهٰذَا الْمَعْنٰى صَارَتْ أُمَّ الْقُرْآنِ] ددے وجے نه دا ام القرآن اُوګرځیده۔

○ - **زمونږ مشائخ** ددے یوه بله وجه هم بیانوي چه هغے کښې هم څه فائده شته دے، او قرآن کریم کښې ئے د تدبر نه پس اجتهاد غوندے کړیدے، فرمائي : قرآن کریم کښې څلور حصے دي او هره حصه کښې بیله بیله موضوع پرته ده او هره حصه په الحمد باندے شروع ده لکه اوله حصه د سورة فاتحے نه تر انعام پورے ده، پدے حصه کښې د خالقیة مسئله ډیره بیانیږي۔ دویمه حصه د انعام نه تر کهف پورے ده، پدے کښې د ربوبیة مسئله ده او دریمه حصه د کهف نه سبا پورے ده (۱٦) سورتونه پکښې دي او غالباً پدے کښې دوه مسئلے بیانیږي د الله عز وجل رحمانیة او بل دا چه برکت ورکونکے الله تعالیٰ دے۔ څلورمه حصه د سبا نه تر والناس پورے پدے کښې (۸۱) سورتونه دي هغه هم په الحمد باندے شروع ده، په

هغې کښې اثبات الآخرة او د الله تعالیٰ مالکیت او رد د شفاعت قهری بیانیږی. نو وائی چه دے څلورو حصو کښې چه کومې مسئلې دی هغه په سورة الفاتحه کښې دی. په الحمد کښې د اُلوهیة بیان دے ورسره د خالقیة بیان دے او رب العالمین کښې ربوبیة دے او په الرحمن الرحیم کښې د الله د رحمانیة رحیمیة مسئله ده او په مالك یوم الدین کښې هغه روستنئ خبره ده، اثبات د قیامت، نفی د شفاعت قهری، اثبات د مالکیة د الله تعالیٰ. نو په دے آیتونو کښې د ټول قرآن کریم مقصد راګیر دے.

او بعضو په کښې لا دا مبالغه هم کړیده چه ټول قرآن کریم په (ب) د بسم الله کښې راګیر دے او د بسم الله مقصد په (ب) کښې پروت دے ځکه باء د استعانة دپاره ده او استعانت (د الله نه مدد طلب کول) مقصد د ټول قرآن کریم دے. دا خبره امام رازی منطقی فلسفی په تفسیر کبیر کښې کړیده. او عام مفسرین د هغه دا قول ښه نهٔ ګنړی ځکه دا د قرآن کریم تحسین او کمال ختموی ځکه دومره لوئی قرآن په یوه باء کښې راګیروی او ددے خبرے نقل هم نشته.

**زما** د ناچیز رأیه دا ده چه ام القرآن سورت فاتحے ته ځکه وائی چه مقصد د ټولو کتب الهیه ؤ اصلاح الانسان دے ظاهراً وباطناً او ددے اصلاح بنیاد لس صفات دی او نور صفتونه د دغه صفاتو نه پیدا کیږی او دغه لس صفات دے سورت کښې شته چه د هغې بیان به لږ روستو په فوائد السورة کښې راځی ان شاء الله تعالیٰ.

## ۷- اُوم بحث : د هر سورة په ابتداء کښې څلور خبرے

دا زمونږ د مشائخو طریقه ده چه د هر سورة په ابتداء کښې څلور خبرے بیانوی.

۱- **ربط یا مناسبت** ددے سورت د مخکښې سورت سره نو په سورة فاتحه کښې دا نشته ځکه مخکښې ددے نه بل سورة نشته چه ددهٔ مناسبت ورسره بیا ن کړے شی. بعض مفسرینو د سورة ن او مدثر او مزمل سره ورله مناسبت بیان کړیدے خو هغه تکلف دے. هغوی وائی په ترتیب نزولی کښې ئے مناسبت شته.

۲- **دعوی السورة** :دویمه خبره دعویٰ او مقصد د سورت پیژندل دی یعنی موضوع د سورت معلومول دی، هر سورت موضوع او مقصد لری ځکه هر سورت په شان د یو تقریر دے د الله تعالیٰ د طرف نه چه خپلو بندګانو ته ئے کړے دے، او قانون دا دے چه هر

تقریر او خطبه یو موضوع لري چه هغه په کښې مقصود وي او باقي نورې خبرې د هغې متعلقات وي او وضاحت وي، بیا کله په یو تقریر کښې موضوع یوه وي، کله ډیرې وي، دغسې د قرآن کریم د سورتونو حال هم دے لیکن د انسان په تقریر او خطبه کښې موضوع معلوموول آسان وي او د قرآن کریم په سورتونو کښې موضوع معلوموول لږ تدبر غواړي۔ وجه دا ده چه د انسان یوه خبره مقصودي وي او باقي خبرې صرف د هغې وضاحت وي، نو مقصد او غیر مقصد بیل ښکاري، په خلاف د قرآن کریم نه چه د هغه: هر سورت موضوع هم مقصودي وي او کوم مثال او دلیل او قصه چه د هغې د وضاحت دپاره راوړي هغه هم مُثمر (میوه دار) وي او د نورو مهمو مقاصدو نه ډك وي، نو انسان حیران شي چه کومه خبره دلته اُوس موضوع د سورت جوړیږي؟۔

دا وجه ده چه مفسرین په معرفت د موضوع کښې اختلاف کوي، څوك ئې یوه بیانوي او څوك بله۔ د بعض مفسرینو طریقه دا ده چه موضوع گانې بیانوي لکه نظم الدرر د بقاعي، فی ظلال القرآن د سید قطبؒ شو او زمونږ د مشائخو طریقه هم دغه ده چه هغوی پدې باب کښې خلاصې لیکلې دي۔

**زما** د حقیر په تدبر سره د موضوع د معلوملو طریقه دا ده چه د سورت اول او آخر ته نظر واچول شي، نو دے سره موضوع راښکاره کیږي (بفضله وتوفیقه سبحانه)

ځکه چه قرآن کریم کښې الله تعالیٰ اکثر په ابتداء د سورة کښې موضوع راوړي وي او کله څو آیتونه روسته موضوع یا مقصد راوړي او اول کښې مقدمه راوړي خو غالباً موضوع د اولنی آیتونو نه معلومیږي پدے طریقه چه اول د سورة کښې یوه موضوع راوړي همغه موضوع په همغه لفظ یا لږه بدله په مرادف لفظ سره په آخره کښې بیا راوړي وي نو اول او آخر ئې یو شان شي۔

لکه ددے سورت موضوع دکلمه د (الحمد لله) نه او د [أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ] نه معلومیږي، چه انعمت علیهم علت دے او الحمد لله معلول دے (یعنی الله لره حمدونه ولے ثابت دي ځکه چه بندگانو سره ئې انعام او احسان کړیدے) دارنگه د سورت بقرې موضوع هم د اول یؤمنون بالغیب او د آخر نه چه آمن الرسول دے معلومیږي۔ لکه چه رابه شي ان شاء الله تعالیٰ۔

## د سورتونو د موضوعاتو پیژندلو فوائد

بیا موضوع او مقصد د سورت پیژندلو کښې ډیر فوائد دي : ۱- پدے کښې تدبر القرآن دے۔ ۲- اهتمام د دغه خبرے کومه چه موضوع گرزول شویده۔

۳- مناسبت د آیتونو خپل مینځ کښې او د مقصود د سورت سره معلومول بالکل آسان شي او قرآن ټول یو مربوط او ښکلے مرتب کلام جوړ شي، او که مقصد اُونهٔ پیژندل شي نو بیا د ډیرو آیتونو مناسبت نهٔ ښکاري، ته به تعجب کوے چه دا آیت دلته ولے راوړل شویدے؟ تفصیل به ئے راشي ان شاء الله تعالیٰ۔

**بیا** مقصد د سورت معلومول څه نوے خبره نهٔ ده بلکه دا فهم د قرآن کریم دے چه الله تعالیٰ ئے چا ته ورکړي، او د جناب امامنا الاعظم سید العالمین نبي کریم ﷺ نه نقل دي چه هغه د ابي بن کعب ﷛ نه تپوس اُوکړو [اَیُّ آیَةٍ مَعَكَ اَعْظَمُ؟ قَالَ : آیَةُ الْكُرْسِيِّ، فَقَالَ لِیَهْنِكَ الْعِلْمُ اَبَا الْمُنْذِرِ] [رواه البخاري]

نو اُوګوره د آیت د مقصد په باره کښې نبي کریم ﷺ تپوس کړے دے۔

دارنګه د بخاري شریف مشهور حدیث د سیدنا عمر بن الخطاب ﷛ دے چه هغه د صحابه کرامو ﷡ نه امتحان واخستلو چه د سورة النصر مقصد بیان کړئ؟ نو سیدنا ابن عباس ﷛ اُوفرمایل : [هُوَ اَجَلُ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ، فَقَالَ مَا اَعْلَمُ مِنْهَا اِلَّا مَا تَعْلَمُ]

(پدے سورت کښې د رسول الله ﷺ اجل (نیټه د وفات) ده۔ نو عمر فاروق ﷛ اُوفرمایل : ما ته هم ددے همدا مقصد معلوم دے کوم چه تا ته معلوم دے)۔

دارنګه نور دلائل ددے خبرے په فضائلو د آیة الکرسی کښې راځي ان شاء الله تعالیٰ۔

۴- **خلاصه** : دریمه خبره خلاصه او حاصل د سورة دے، پدے کښې زمونږ د بعضے مشائخو طریقه دا ده چه حصو او بابونو ته سورتونه تقسیموي۔ پدے کښې ماته غوره طریقه دا ښکاري چه په قرآن کریم کښې که د بابونو او فصلونو ډیروالے اُوکړے شي نو کیدے شي چه د سړي نه مقصد ورك کړي نو د یو یو درس حاصل او خلاصه بیانول پکار دي، یا د ټول سورت تجزیه مطالب مختصراً بیانول پکار دي، پدے کښې آسانی ده۔ او د مشائخو په طریقه کښې هم کوم نقصان نشته، هغوی به په هغه طریقه پو هه کول کولے شي نو ښه ئے کړي دي چه هغه طریقه ئے اختیار کړیده هغوی له به الله تعالیٰ په هغے کښې

اجر ورکوی۔

## ٤ - امتيازات السورة :

د امتيازات معنیٰ دا ده چه دا سورت د نورو سورتونو نه په کومو فوائدو او خصوصياتو جدا دے۔ او ددے فائده دا ده چه د هر سورت خپل خپل ذاتی خصوصيات جدا جدا معلوم شی ځکه چه د هر سورت په مقاصدو کښې ضرور فرق موجود وی۔

## د سورة الفاتحة موضوع، مقصد او حاصل

۱ - زمونږ بعضِ استاذان وائی چه په دے سورت کښې مقصد دا دے [اَلْعِبَادَةُ لِلّٰهِ وَحْدَهٗ وَالْاِسْتِعَانَةُ بِاللّٰهِ وَحْدَهٗ] (عبادت به يواځې د الله تعالیٰ کيږی او مدد به يواځې د الله سبحانه نه غوختلے کيږی)، گورے اے خلقو! عبادت به يواځې د الله عزوجل کوئ او مدد به يواځې د الله تعالیٰ نه غواړئ، ولے؟ ځکه الله تعالیٰ رب دے، رحمٰن دے، رحيم دے، مالك دے، عبادت به په کومه طريقه کوئ [اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ]۔ (الله تعالیٰ نه به ئے غواړئ، هغه به درته طريقے درښائی، په واسطه د انبياء کرام عليهم السلام۔

۲ - او ډيره صحيح دا ده چه په سورة فاتحه کښې مقصد [اِثْبَاتُ الْحَمْدِ لِلّٰهِ عَزَّوَجَلَّ] دے (يعنی دکمال صفتونه الله تعالیٰ لره ثابت دی، بل څوك د تولو صفتونو قابل نشته) او د رب العالمين شکر گذاری ده پدے لوئی لوئی نعمتونو باندے) نو دا ئے مقصد او دعویٰ کړه او قانون دا وی چه په هره دعویٰ باندے دليل پيش کول پکار وی چه دليل نهٔ وی، دعویٰ باطله وی، ځکه دليل د قرآن، حديث او تولو عقلاؤ طريقه ده، بے دليله خبرے له اعتبار نهٔ ورکوی نو الله تعالیٰ په دے باندے دلائل بيانوی چه رب العالمين دے ځکه چه څوك ستا تربيت کوی نو د هغه به صفت کوے۔ بل دليل (الرحمن الرحيم) دا الله بے حده مهربان ذات دے نو مدح ئے پکار ده۔ بل دليل: رحيم دے چه د دائمی رحمتونو والا دے نو حمد ئے پکار دے۔ د دائمی نعمتونو مثال لکه سترگے، غوږونه، لاسونه وغيره۔ بل دليل: مالك يوم الدين) بادشاه د ورځے د جزاء دے، نو پکار ده چه صفتونه ئے اُوشی۔ اُوس هرکله چه دعویٰ او دلائل بيان شو نو نتيجه دا ده چه مونږ له پکار دی چه عبادت ئے اُوکړو، د هغه دپاره مونځ اُوکړو، د هغه دپاره روژے اُونيسو، وينه تويه کړو، د هغه دپاره جهاد اُوکړو۔ بيا د نتيجے نه روستو الله تعالی بندگانو ته تعليم د دعا ورکوی چه اے بنده گانو! هر کله

چه تاسو زما عبادت کوئ او مانه مدد غواړئ نو د دعا غوختو طریقه درښایم نو بیا د درے ډلو تذکره چه (اَنۡعَمۡتَ عَلَیۡهِمۡ غَیۡرِ الۡمَغۡضُوۡبِ عَلَیۡهِمۡ وَلَا الضَّآلِّیۡنَ) دی، ددے درے ډلو تذکره ولے شویده؟ وجه دا ده چه دا انعمت علیهم په منزله د لاره خودونکی دی، رهنما دی، په لاره کښ رهنما پکار دے ځکه چه الله تعالیٰ خو پخپله بنده ته بیان نهٔ کوی، نو د هغے دپاره رهنما پکار دے نو انبیاء علیهم الصلاة والسلام رهنما دی او کله چه سړے الله تعالیٰ والا جوړیږی نو د شمنان او راهزن ډیر پیدا کیږی، د الله تعالیٰ نه اړوونکی مخلوقات ډیر دی، نو د هغوی نه په الله تعالیٰ پورے پناهی غوختل۔ چه بعض خلق دی موئږ به ستا د بندګی او توحید نه اړوی نو اے الله! د هغوی نه مونږ اُوساته چه د هغوی پشان ګډوډ نشو۔ دا د سورة حاصل او خلاصه شوه او امتیازات به ورسته بیان شی۔ ان شاء الله تعالیٰ۔

## لنډه خلاصه د سورت :

نو سورت کښ موضوع : الحمد لله ده او پدے دلائل راوړی او بیا نتیجه بیانوی او بیا طلب د هدایت چه بندګانو ته الله تعالیٰ وائی چه ما نه طلب د هدایت اُوکړئ۔ او درے ډلے ئے بیان کړیدی، چه یو ۱- [اَنۡعَمۡتَ عَلَیۡهِمۡ] نیکان بندګان دی، ۲- او دویم مَغۡضُوۡبُ عَلَیۡهِمۡ، (غضب کړے شوی بندګان)۔ ۳- او دریمه ډله ضالین ده، نو دا مختصر سورت دے، ډیر عجیبه فائدے پکښ دی۔

۲- داسے هم وئیلے شی : چه مضمون السورة دا دے (چه پدے سورت کښ [تَوۡلِیۡدُ جَذۡبَةِ الشُّکۡرِ فِی الۡاِنۡسَانِ السَّلِیۡمِ الۡفِطۡرَةِ ثُمَّ جَذۡبَةُ الۡاِسۡتِعَانَةِ عَلَی الشُّکۡرِ ثُمَّ طَلَبُ الزِّیَادَةِ مِنۡهُ] (په سلیم الفطرت انسان کښ د شکر جذبه راپیدا کوی بیا په شکر ګذارئ باندے جذبه د استعانت راپیدا کوی بیا د شکر د زیاتوالی د طلب جذبه راپیدا کوی)۔

## ۸-اتم بحث : تشریح الکلمات وفوائدها :

په سَر ددے سورة کښ بسم الله راغلے ده، د بسم الله متعلق ډیر مسائل دی، بعض د هغے نه چه ددے ځائے سره مناسب دی- بیانیږی :

## د بسم الله تاریخی حال :

**اوله مسئله** : بسم الله، الله تعالیٰ عامو انبیاء علیهم السلام ته ورکړے وه لکه سلیمان

علیه السلام هم په خط کښې لیکلے وه او نورو انبیاؤ به هم دا استعمالوله، نبی کریم علیه السلام به د نبوت نه مخکښې (باسمه تعالیٰ) لفظ استعمالولو. بیا ورته روسته الله تعالیٰ حکم اُوکړو چه (بسم الله الرحمن الرحیم) استعمالوه ـ ددې وجه نه (باسمه تعالیٰ) لفظ په خطونو کښې لیکل د مشرکانو رواج وو. او په صلح حدیبیه کښې پرې مشرکانو مجبوراً (باسمه تعالیٰ) اُولیکلو۔ دارنګه (۷۸۶) اُوه سوه شپږ اتیا) حساب په ابتداء د خطونو کښې (د بسم الله په ځائے) لیکل هم بدعت دے۔

## د بسم الله فضیلت او اهمیت :

د بسم الله فضیلت دا دے چه په ډیرو مقاماتو کښې شریعت دا لازمه کړیده لکه اودس، خوراك، څکاك، ذبح، بیت الخلاء ته داخلیدو وخت کښې، مسجد ته داخلیدو وخت کښې، کور والی وخت کښې، یا کله چه انسان اُوخوږیږی یا ئے ترے څه پریوځی نو بسم الله وئیل پکار دی۔ پدے سره شیطان (وړوکے) ذلیله کیږی۔ لکه چه په حدیث کښې راغلی دی۔ (مسند احمد بسند جید قوی – ابن کثیر) وعمل الیوم واللیلة للنسائی)۔

لنډه دا چه په احادیثو کښې د هر اهم کار د شروع کولو نه مخکښې د بسم الله وئیلو تاکید شوے دے۔ او کل امر ذی بال روایت هم پدے دلیل دے او هغه د بعض علماؤ په نیز حسن حدیث دے۔ (انظر الاذکار للنووی وابن کثیر)

## په بسم الله کښې فوائد :

۱ - **اوله فائده** : بسم الله الرحمن الرحیم جمله دعائیه ده په ترتیب د جمله خبریه ده، اشاره ده دے ته چه د هر سلیم الفطرة انسان په خوله او زړه دا کلمه جاری کیږی، کله چه یو مهم کار شروع کوی، څکه پرے الله تعالیٰ حکم اُونه کړو چه (قُوْلُوْا بِسْمِ اللهِ) (بسم الله اُووایئ) وجه دا ده چه دا کلمه فطری ده۔

۲ - **فائده**: د بسم الله په وئیلو کښې د اول نه اشاره ده چه زه کوم کار شروع کوم، نو هغه د الله رب العالمین نافرمانی نهٔ ده، بلکه د الله سبحانه وتعالیٰ د مرضی او پسند موافق کار دے۔

۳ - **فائده** : د بسم الله په وئیلو کښې انسان د الله تعالیٰ د عظیم نومونو نه چه (الله، رحمن، رحیم) دی، برکت او مدد اخلی او دا نومونه ددے ضمانت اخلی، چه دے کار کښې به برکت اچوی، او که بالفرض څه خطائی یا غلطی ترے اُوشی، نو دغه بابرکت ذات به ئے

معاف کوی۔ او دارنګه ددے په لوستلو کښې اشاره ده چه انسان ته به الله تعالیٰ ددے کار د تکمیل قوت او همت ورکوی، او د شیطان د فریبونو نه به ئے بچ کوی، او په دنیا او آخرت کښې به دا کار د نجات ذریعه جوړه وی۔ نو څوك چه بسم الله نهٔ وائی، ددے تولو برکتونو نه محروم دے۔

**حکمة** : په هر کار کښې د بسم الله وئیلو مذکوره فائدے دی لیکن د قرآن کریم په ابتداء کښې د بسم الله وئیلو نور عجیب اسرار دا دی : ۱- اولاً : پدے کښې تعمیل دے د اولنئ وحی چه ﴿ اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِیْ خَلَقَ﴾ قراءت د الله تعالیٰ په نوم شروع کړه۔

۲- ثانیاً : دے خبرے ته اشاره ده چه د الله تعالیٰ لوئی نعمت په انسان باندے نطق او بیان دے چه د هغے د وجه نه انسان مستحق د قرآن کریم ګرزیدلے دے، نو اُوس دهٔ له پکار دی چه ابتداءً د دغه مهربان ذات نوم واخلی، ددے نعمتِ عظیمه په مقابل کښې۔ او دے ته اشاره ده په دے قول د الله تعالیٰ کښې ﴿ اَلرَّحْمٰنُ عَلَّمَ الْقُرْاٰنَ، خَلَقَ الْاِنْسَانَ عَلَّمَهُ الْبَیَانَ﴾ (سورة الرحمن : ۱)۔

۳- ثالثاً : په بسم الله وئیلو کښې د پخوانو کتابونو تصدیق دے څکه تورات (کتاب (۵) باب (۱۸) کښې ئے لیکلی دی چه محمد رسول الله (ﷺ) کله خلقو ته تعلیم ورکوی نو د الله تعالیٰ د نوم نه به شروع کوی۔

٤- رابعاً : لکه قرآن کریم د الله تعالیٰ د رحمانیت د صفت مَظهر دے نو دغه شان د قرآن کریم چابی او فتح د باب، صفت د رحمانیة د الله تعالیٰ دے، د هغه په رحمت به د قرآن کریم مشکلات او اسرار په قاری د قرآن او تدبر کونکی د قرآن باندے راکولاویږی۔

٥- خامساً : په بسم الله کښې د الله تعالیٰ درے خوارهٔ نومونه یو ځائے شوی دی، په دے کښې سر بدیع (ناشنا راز) دے، دے ته اشاره ده چه د قرآن کریم سره تعلق عبادت هم دے او د دنیا او د آخرت رحمت هم دے۔ نو ګویا کښې تهٔ لوئی عبادت کښې شروع شوے او په سمندر د رحمت کښې ورداخل شوے او دا عبادت تکلیف او مشقت نهٔ دے بلکه رحمت دے۔ ﴿ طٰهٰ مَآ اَنْزَلْنَا عَلَیْكَ الْقُرْاٰنَ لِتَشْقٰٓی﴾ کښې هم دا اشاره شته۔

قرآن کریم ته بار بار رحمة وئیلے شویدے لکه پدے قول د الله تعالیٰ کښې :

﴿ قُلْ بِفَضْلِ اللّٰهِ وَبِرَحْمَتِهٖ فَبِذٰلِكَ فَلْیَفْرَحُوْا هُوَ خَیْرٌ مِّمَّا یَجْمَعُوْنَ ﴾ [یونس:۵۷]

وَقَالَ ﴿ اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَرَحْمَةً وَّذِكْرٰی لِقَوْمٍ یُّؤْمِنُوْنَ﴾ (العنکبوت:۵۱)

٦- سادساً : په دے اسماءِ حسنیٰ کښې یوه لطیفه اشاره ده چه د قرآن کریم نه فائده

اخستلو والا خلق هغه دي چه اصحاب القلوب اللينة (نرم زړونو والا) واصحاب الابدان العابدة (او عبادت گزار بدنونو والا) وي، هر لوستونکے ترے پوره فائده نشي اخستلے۔ ددے تفصیل به روستو راشي ان شاء الله تعالیٰ۔

د بسم الله معنیٰ : خاص په مدد د نوم د الله تعالیٰ سره شروع کوم۔

**تحقیق** : د بسم الله نه مخکښ یا روستو (اَقْرَأُ) یا (اَبْدَأُ) یا (اَتْلُوْ) محذوف دے۔ یعنی زهٔ د الله په نوم سره لولم، یا شروع کوم، یا تلاوت کوم۔ ظاهر دا ده چه ددے تقدیر روستو راویستل پکار دي او مخکښ راویستل جائز قدرے دي ځکه چه ابتداء په نوم د الله تعالیٰ پکار ده، نهٔ په لفظ د اَبْتَدِأُ وغیره سره۔

(ب) په بسم الله کښ دا باء یا د استعانت (مدد طلب کولو) یا د الصاق (پیوسته کولو) یا د تبرك (برکت حاصلولو) دپاره ده۔ او د مدد معنیٰ ئے غوره ده۔ معنیٰ به دا وي : زهٔ په امداد د نوم د الله سره شروع کوم۔ یا قراء ت کوم یا تلاوت کوم۔

(اَبْتَدِأُ) به روسته راویاسے جارمجرور په هغے پورے متعلق دے۔ ځکه چه تقدیم ما حقه التاخیر مفید د حصر او تخصیص وي نو پدے تخصیص سره به رد د شرك اُوشي ځکه چه مشرکانو به په کارونو کښ د لات او منات او عزیٰ په نوم سره شروع کوله نو موحد په هغوی تعریض کوي چه زهٔ خو خاص د الله تعالیٰ په نوم سره شروع کوم۔

او چه باء د الصاق دپاره شي نو معنیٰ به دا وي چه په نوم د الله تعالیٰ پورے ځان پیوسته کوم چه رحمن رحیم ذات دے او بیا شروع کوم۔

او چه باء د تبرك دپاره شي نو معنیٰ به دا وي : زهٔ شروع کوم، برکت حاصلونکے یم په نوم د الله تعالیٰ سره۔

**قاعدة** : د قرآن کریم په کلماتو کښ چه دوه یا زیات تفسیرونه راځي نو دا په دوه قسمه وي یو هغه وي چه متضاد وي نو پدے کښ قاعده دا ده چه یو به اخلے، دواړه نشي اخستے ځکه د الله تعالیٰ مراد کښ تضاد نهٔ وي، هغه معنیٰ به اخلے چه ظاهري لغت یا احادیث او یا اصول د شریعت مطهره ئے تقاضا کوي۔ بعض مفسرین ترجمه والا ټول تفسیرونه او توجیهات راوړي او راجح معلوم نهٔ کړي نو دا کمال ندے بلکه د عوام الناس شك پیدا کوي۔

دویم هغه تفسیر دے چه یوه کلمے ډیرے معاني لري او متضاد دے نهٔ وي نو ټولے معاني ترے په یو ځائے اخستے شي او د اد قرآن جامعیت او کمال دے چه داسے الفاظ راوړي چه

کـښې مطالب پکښې وي نو دلته دا درے واړه معاني صحیح دي څه تضاد پکښې نشته۔ او دا قـاعـده مـونـږ بار بار استعمالوو او محققینو علماؤ هم استعمال کړیده ځکه پدے سره ډیر فهم پـه کتـاب الله کښې حاصلیږي۔ ځکه مفسرین کله د لفظ معنیٰ مطابقي لیکي او کله تضمني او کله التزامي او کله اشاره د آیت وي۔

**(اسم)** : لـفـظ د اسـم ئـے راوړو د الله د تعظیم دپاره ځکه هر کله چه د الله تعالیٰ په نوم کښې برکت دے نو په ذات کښې ئے خو خامخا شته۔ ددے وجه نه ئے بالله اُونهٔ وئیل۔

بیا اسم کله په معنیٰ د علَم (نوم) سره وي او کله په معنیٰ د صفت سره وي او کله دواړو ته عـام وي او دلته هم عامه معنیٰ مراد ده۔ ځکه د الله تعالیٰ په هر نوم او صفت کښې برکت او خیر دے۔ او په هغے سره استعانت (مدد طلب کول) پکار دي۔

﴿ اَللّٰهُ ﴾ : اسم ذاتـي د الله تـعـالـیٰ دے، بـل چـا تـه ئـے نـسبت نهٔ کیږي او وضاحت ئے روستـه کـوو۔ د رحـمـن او رحـیـم مـعـنـیٰ هم روستـه راروانه ده الرحمن معنیٰ ده : بے حده مهربان الـرحـیـم مـعـنـی ده هـمیشـه مهربان۔ بعض تفسیرونو کښې ئے معنی لیکلے ده ښخونکے۔ د رحـمـن مـعـنـی پـه ښـخـونـکـي سـره صحیح نهٔ ده، بلکه ددے معنیٰ ده بے حده مهربان۔ او الرحیم همیشه مهربان۔

**حکمة** : په بسـم الله ذکر کولو کښې حکمة دا دے چه پدے کښې خپلے کمزورئ ته اشاره ده چه زه ددے عمل نه عاجز یم مگر که الله تعالیٰ راسره مدد اُوکړي۔

○○○○○○

| سورة الفاتحة مکیة | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ (۱) | آیاتها :۷ رکوعاتها : ۱ |
|---|---|---|

خاص په امداد د نوم د الله تعالیٰ شروع کوم چه زیات رحم کونکے، همیشه مهربان دے۔

اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ رَبِّ الۡعٰلَمِیۡنَ ﴿۱﴾ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ﴿۲﴾

ټول کامل صفتونه خاص الله تعالیٰ لره دی چه پالونکے د ټول عالم دے، عام مهربان، خاص رحم کونکے دے۔

مٰلِكِ یَوۡمِ الدِّیۡنِ ﴿۳﴾ اِیَّاكَ نَعۡبُدُ وَاِیَّاكَ نَسۡتَعِیۡنُ ﴿۴﴾

اختیار مند د ورځے د جزاء دے، خاص تا لره بندګی کوو مونږ او خاص ستا نه مدد غواړو (په هر کار کښې)

اِهۡدِنَا الصِّرَاطَ الۡمُسۡتَقِیۡمَ ﴿۵﴾ صِرَاطَ الَّذِیۡنَ اَنۡعَمۡتَ عَلَیۡهِمۡ

اُوښایه مونږ ته لاره نیغه، لار د هغه کسانو چه نعمت کړیدے تا په هغوی،

غَیۡرِ الۡمَغۡضُوۡبِ عَلَیۡهِمۡ وَلَا الضَّآلِّیۡنَ ﴿۷﴾

نۀ دی هغه کسان چه غضب کړے شویدے په هغوی او نۀ ګمراهان دی۔

## تفسیر و تشریح الکلمات:

بسم الله او اعوذ بالله نه مخکښې (قُوۡلُوۡا) (داسے اُووایئ) پټ دے، ځکه پدے سورت کښې الله تعالیٰ بندګانو ته د سوال تعلیم ورکوی۔

**حکمة** : بیا پدے کښې الله تعالیٰ ولے قولوا اُونۀ وئیلو ؟ وجه دا ده چه الله تعالیٰ پخپله د خپل خان دپاره هم حمد وائی او مونږ ئے هم وایو نو مونږ ته پکښې امر دے چه تاسو الحمد لله اُووایئ۔ ۲- دویم **حکمة** : د سورت فاتحے اسلوب، دعائی دے لیکن ظاهراً مخاطبینو تـه الله تعالیٰ حکم اُونکړو بلکه د جمله خبریه په شان ئے دا سورت زمونږ په ژبه جاری کړو، اشاره ده یو عظیم حقیقت ته، هغه دا چه د هر سلیم الفطرت انسان د زړه او د ژبے آواز به دا وی چه د الله تعالیٰ په حمد به ګویا وی۔ الله تعالیٰ د انسان فطرت داسے جوړ کړیدے نو هغه دا ښکلے تعبیر اُوکړو چه ددے نه د بهتر تعبیر تصور نشی کیدلے۔ او دا آواز به د هغه

چا نهٔ وي چه هغوي خپل فطرت برباد کړے دے، نو الحمد لله فطري آواز دے ځکه ئے پکښې (قُوْلُوْا) (اُووایئ) راغهٔ وړو.

(**الحمد**) : حمد په قرآن کښې (٤٣) کرته استعمال دے۔ لغت کښې (ستائش، ستودن) صفت کولو ته وئیلے شي او په اصطلاح کښې امام جرجانيؒ فرمائي : حمد [هُوَ الثَّنَاءُ عَلَى الْجَمِيْلِ مِنْ جِهَةِ التَّعْظِيْمِ مِنْ نِعْمَةٍ وَغَيْرِهَا] (عبارت دے د ثناء کولو نه په ښائسته صفاتو، په طریقه د تعظیم سره، برابره ده که په مقابله د نعمت کښې وي او که نهٔ وي)

(التعریفات للجرجاني ص (۹۳))

نو د الحمد لله مقصد دا دے چه مونږ د الله تعالیٰ د کمال صفتونه بیانوو کوم چه د الله تعالیٰ ښکلے صفات دي۔

۲ – حافظ ابن قیمؒ لیکي : [اَلْحَمْدُ : اِخْبَارٌ عَنْ مَحَاسِنِ الْمَحْمُوْدِ مَعَ حُبِّهٖ وَاِجْلَالِهٖ وَتَعْظِيْمِهٖ وَلِهٰذَا كَانَ خَبَرًا يَتَضَمَّنُ الْاِنْشَاءَ بِخِلَافِ الْمَدْحِ فَاِنَّهٗ خَبَرٌ مُجَرَّدٌ – اِلَى آخِرِهٖ] ۔

(یعنی حمد خبر ورکول دي د ښائسته صفاتو د محمود نه، سره د محبت او اکرام او تعظیم د هغه نه، ددے وجه نه دا خبر دے متضمن دے انشاء لره په خلاف د مدح نه چه هغه خالص خبر دے نو کله چه یو ویونکی داسے اُووائي : الحمد لله یا داسے اُووائي : رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ) نو ددهٔ کلام متضمن شو خبر ورکولو ته د ټولو هغه صفاتو نه چه د الله تعالیٰ دپاره وئیلے شي په یو جامع راګیرونکے اسم سره چه ټول افراد د حمد راګیروي، که هغه محقق وي او که مقدر، او دا مستلزم دے اثبات د هر کمال لره چه د رب حمد پرے وئیلے شي، ددے وجه نه ددے لفظ استعمال صرف د حمید مجید ذات پورے خاص دے، بل چا دپاره ئے استعمال جائز نهٔ دے۔ (بدائع الفوائد ۲/۹۳)

۳ – [اَلْحَمْدُ : هُوَ الْاِعْتِرَافُ لِلْمَحْمُوْدِ بِصِفَاتِ الْكَمَالِ، مَعَ مَحَبَّتِهٖ وَتَعْظِيْمِهٖ]

[دلیل السالك الى الفية ابن مالك – لعبد الله بن صالح الفوزان]

(حمد : اقرار کول دي محمود دپاره په صفاتو د کمال، سره د محبت او تعظیم د هغه نه)

او حمد د شریعت په اصطلاح کښې د الله تعالیٰ ثناء او صفت کول دي په هغه اسماء او صفاتو سره چه الله تعالیٰ خپل ځان له په قرآن کریم کښې ثابت کړي وي یا د هغه رسول ﷺ په احادیثو کښې د هغه دپاره ثابت کړي وي۔ او دا صفت کول به عقیدةً او قولاً او عملاً وي۔ نو په قرآن کریم کښې او په احادیثو کښې د الله تعالیٰ صفات او اسماء اُوګوره او

هغې باندې عقیده اُوساتـه او بیا ئې د الله تعالیٰ دپاره ثابته وه او هغې سره دعاګانې غواړه او د هغې په مقتضیٰ باندې عمل کوه۔

امام راغبؒ فرمائي : د الحمد لله معنیٰ ده : اَلثَّنَاءُ عَلَيْهِ بِالْفَضِيْلَةِ (د الله تعالیٰ صفت کول دي په فضیلت د هغه) (المفردات) یعنې د الله تعالیٰ ډیر فضائل او فواضل دي چه ته هغه په زړه ذکر کوې نو دا ستا حمد شو د هغه دپاره۔

**فائده**: الحمد لله ئې اُووئیل، الشکر لله ئې ونۀ وئیلو ؟ حکمة دا دې چه (۱) شکر د نعمت مقابله کښې وي او حمد که نعمت وي او که نۀ وي نو وئیل کیږي۔ نو په دې کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ د حمد لائق دې اګرکه حامد او بنده ته ئې هیڅ نۀ وي ورکړي، ځکه چه الله تعالیٰ د حمد لائق دې د وجه د کمال د ذات او د اسماء او صفاتو د هغه نه۔

(۲) دویم دا چه حمد الله رب العالمین ته محبوب دې لکه حدیث کښې دي :

[اَمَا اِنَّ رَبَّكَ يُحِبُّ الْحَمْدَ] [احمد، والطبراني واسناده حسن عند الالباني]۔

(ستا رب صفتونه د کمال خوښوي) چه هغه دپاره اُووئیلې شي۔

## د حمد فضائل

○ – عمر ﷺ یوه ورځ اُووئیل : [قَدْ عَلِمْنَا سُبْحَانَ اللّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ فَمَا الْحَمْدُ لِلّٰهِ؟] یعنې مونږ خو سبحان الله او لا اله الا الله والله اکبر پیژنو لیکن د الحمد لله څه مطلب دې ؟ نو علي کرم الله وجهه جواب ورکړو چه [كَلِمَةٌ رَضِيَهَا اللّٰهُ لِنَفْسِهٖ] (ابن كثير)

(دا یوه کلمه ده چه الله عزوجل د خپل نفس دپاره غوره کړیده) یعنې الله تعالیٰ ددې په وئیلو رضا کیږي۔

○–عبد الله بن عباس ﷺ فرمائي : [هِيَ كَلِمَةُ كُلِّ شَاكِرٍ] (دا د هر شکر ګذار کلمه ده)۔

○ –آدم ﷺ کښې چه کله الله تعالیٰ روح واچولو او روح ئې سر ته راورسیدو نو پرنجې ئې اُوکړو او الحمد لله رب العالمین ئې اُووئیل نو الله تبارك وتعالیٰ ورته اُوفرمایل : (یرحمك الله) (الله دې په تا رحم اُوکړي) (الصحيحة رقم : ۲۱۵۹) ۔

او دغسې نور انبیاء کرام علیهم السلام هم دا کلمه وئیلې ده۔

تفسیر ابن عباس کښې دي چه د حمد درې مصداقه دي [اَلْاُلُوْهِيَّةُ – وَالْوَحْدَانِيَّةُ – وَالشُّكْرُ لَهٗ سُبْحَانَهٗ] (اُلوهیت (عبادت) یواځې والې او شکر خاص الله لره ثابت دي۔

**فائده** : بیا حمد ډیر غوره دے د سبحان الله نه پدے وجه ئے په حمد شروع اُوکړه۔ ځکه د سبحان الله معنیٰ ده پاکوالے د عیبونو نه، او دا سلبی صفت دے او الحمد لله کښې صفات ثبوتیه دی، نو الحمد لله کښې د سبحان الله معنیٰ هم شته۔ ددے وجے نه حدیث کښې دی چه سبحان الله نیم میزان ډکوی او الحمد لله مکمل میزان ډکوی۔ او دا قانون دے چه صفات ثبوتیه کښې کمال زیات وی په صفات سلبیه ؤ باندے لکه یو انسان چاله ورشی او ورته وائی چه تا کښې دا عیب نشته، ته بخیل نه ئے او دا دا۔ نو دیکښې دومره کمال نشته لکه ته چه ورته اُووائی چه ته سخی ئے؛ ښائسته ئے او دا صفات دریکښې دی۔ (د صفات ثبوتی او سلبی تشریح آیة الکرسی کښې ان شاء الله تعالیٰ راروانه ده)۔

امام ابن القیمؒ په (طریق الهجرتین) کښې لیکی : چه هر اعلیٰ صفت، هر ښه کار، هر عمده تعریف، او هر حمد او مدح، هر تسبیح او تقدیس او د هر جلال او عزت چه کوم کامل ترین او دائمی او ابدی شکل کیدے شی هغهٔ ټول الله تعالیٰ دپاره ثابت دے۔ د الله چه کوم صفتونه بیانیږی او په کومو نومونو چه هغهٔ یادیږی او هرڅه چه د الله په برائی او لوئی والی کښې وئیلے شی دا ټول د الله تعریفونه دی او د هغه حمد او تقدیس دے، مخلوق هیڅ فرد د هغهٔ د تعریفاتو نشی شمارلے۔ (تیسیر الرحمن) په مخلوق کښې چه کوم حُسن یا کمال دے نو هغهٔ هم الله تعالیٰ پیدا کړیدے پدے وجه د حمد (صفتونو) مستحق هم هغهٔ دے۔ حمد د الله تعالیٰ ډیر خوښ دے ځکه ئے پرے قرآن کریم شروع کړو او د حمد فضائل قرآن او احادیثو کښې اُوګوره خصوصاً کتاب (نضرة النعیم) مطالعه کړه۔ هغه پدے باره کښې (٥٧) احادیث راوړیدی۔ او دغه شان آیتونه او د سلفو اقوال ئے ذکر کړیدی۔

○ یو صحابی (اسود بن سَریع) عرض اُوکړو یا رسول الله ! ما اشعار وئیلی دی او په هغے کښې مے د الله تعالیٰ حمد کړیدے۔رسول الله ﷺ ورته اُوفرمایل :[أَمَا إِنَّ رَبَّكَ يُحِبُّ الْحَمْدَ] (خبر دار ستا رب حمد خوښوی) [الأدب المفرد والحاكم بسند صحيح]۔

په حدیث د مسلم کښې دی :[لَيْسَ شَيْءٌ أَحَبَّ إِلَيْهِ الْمِدْحَةُ مِنَ اللهِ] (هیڅوک داسے نشته چه د الله تعالیٰ په شان د حمد سره محبت لری) [وَمِنْ أَجْلِ ذٰلِكَ وَعَدَ اللهُ الْجَنَّةَ] (او ددے وجه نه الله تعالیٰ د جنت وعده کړیده) مطلب دا دے چه الله تعالی د جنت وعده کړیده چه خلق ډیر حمدونه اُووائی۔

○ بل حدیث کښې دی : اول چه جنت ته دعوت کولے شی په آخرت کښې هغه خلق دی

چه د الله تعالیٰ حمدونه وائی په خوشحالئ او خفگان کښ.
(حاکم، شعب الایمان، شرح السنة بسند صحیح)

○ په یو حدیث د ابن ماجه کښ راغلی دی: [مَا اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلٰى عَبْدٍ نِعْمَةً فَقَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ، إِلَّا كَانَ الَّذِيْ اَعْطَاهُ اَفْضَلَ مِمَّا اَخَذَ] [حدیث حسن صحیح ابن ماجة (۳۸۰۵)]. (یعنی دا کوم نعمت چه الله تعالیٰ تا له درکړے دے نه دا توفیق د شکر او الحمد لله وئیل غټ نعمت دے)، د ټولے دنیا د نعمتونو نه یو الحمد لله غوره ده.

او حدیث د ترمذی کښ دی: [اَفْضَلُ الدُّعَاءِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ] (غوره دعاء الحمد لله ده).

○ بل حدیث کښ دی: (بهترین ذکر لا اله الا الله دے او افضل شکر الحمد لله دے)
(حسن- الصحیحة رقم: ۱٤۹۷)

○ د مؤمن صفت دا دے چه د هغه نه روح اُوځی هم الحمد لله به وائی، (كما فی الصحیحة) که مصیبت وی هم الحمد لله به وائی، د نبی ﷺ عادت مبارك دا وو چه کله به خفه وو نو هم (اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلٰى كُلِّ حَالٍ) به ئے وئیل او که خوشحاله به وو نو هم الحمد لله رب العالمین به ئے وئیل.

○ مفسرینو لیکلی دی چه نوح ﷺ ته الله تعالیٰ شکر گزار پدے وجه وئیلے دے چه هغه به کله جامے اغوستے، الحمد لله به ئے وئیله او که خوراك، څکاك به ئے کولو او سوریدو به نو الحمد لله به ئے په خوله وه.

○ څوك چه د ورځے سل کرت الحمد لله اُووائی دومره اجر به ورته ملاؤ شی لکه سل اسونه بار کړی د الله په نوم باندے خیرات کړی. (حدیث حسن عن ام هانئ- صحیح الترغیب ومسند احمد)

○ حدیث کښ دی چه الحمد لله رب العالمین د نعمت په مقابله کښ اُووئیل شی نو شل نیکئ دی او که بغیر د نعمت نه اُووئیل شی نو (۳۰) دیرش نیکئ دی. (احمد، حاکم، بزارو ابن ابی شیبة بسند صحیح)

نو ددے وجه نه قرآن کریم په الحمد لله باندے شروع اُوکړه.

○ دارنگه مسلمان چه سحر د خوب نه رابیدار شی نو اول وائی: [اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ اَحْيَانَا بَعْدَ مَا اَمَاتَنَا وَاِلَيْهِ النُّشُوْرُ] بیا بیت الخلاء نه بعد (الحمد لله) بیا مانځه کښ ډیر کرت وائی (الحمد لله رب العالمین، سمع الله لمن حمده، ربنا لك الحمد) د طعام نه بعد الحمد لله او د

جامے اغوستلو نه بعد الحمد لله مختصراً دا چه هر حالت د مؤمن به د حمد وی نو مؤمن له حمد وئیل پکار دی او داسے عادت به نهٔ جوړوی چه کله ورته څوك اُووائی څنګه یې ؟ هغه وائی : ښه یم۔ نهٔ بلکه الحمد لله کلمه وایه۔

○ قتاده رحمه الله – وئیلی دی چه حمد هغه شے دے چه پدے باندے الله سبحانه مخلوق شروع کړیدے او پدے باندے ئې ختم کړیدے۔ څکه چه د سورة انعام په اوله کښې (اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ) او د زمر آخری آیت کښې (وَقِيْلَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ) دے۔

○ ابن زید رحمه الله – فرمائی : په یو مجلس کښې یو سړے وی چه د الله تعالیٰ حمدونه وائی نو د دغه ټول مجلس والو حاجتونه ددهٔ د حمد په وئیلو سره پوره کولے شی۔ (نضرة النعیم)

○ فضیل بن عیاض رحمه الله –فرمائی : [مَنْ عَرَفَ نِعْمَةَ اللهِ بِقَلْبِهٖ وَحَمِدَهٗ بِلِسَانِهٖ لَمْ يَسْتَتِمَّ ذٰلِكَ حَتّٰى يَرَى الزِّيَادَةَ، لِقَوْلِهٖ :(لَئِنْ شَكَرْتُمْ لَاَزِيْدَنَّكُمْ) [ابراهیم : ۷] (چا چه د الله تعالیٰ نعمت په زړه سره اُوپیژندلو او په ژبه ئې د هغه حمد اُووئیلو نو دا به ئې لا پوره کړے نهٔ وی چه زیادت به وینی۔ دلیل پرے دا قول د الله تعالیٰ دے (که تاسو شکر اُوکړو نو زهٔ به زیادت اُوکړم (ستاسو په نعمتونو کښې) (عدة الصابرین ص (۱۲۳) ونضرة النعیم)

## د حمد اقسام

۱ – اَلْحَمْدُ الْقَوْلِي : [هُوَ حَمْدُ اللِّسَانِ وَثَنَاؤُهٗ عَلَى الْحَقِّ بِمَا اَثْنٰى بِهٖ عَلٰى نَفْسِهٖ عَلٰى لِسَانِ اَنْبِيَائِهٖ] (په ژبه سره د الله تعالیٰ هغه صفات او ثناء کول دی کوم چه الله تعالیٰ خپل ځان له د انبیاء علیهم السلام په ژبه بیان کړیدی)۔

۲ – اَلْحَمْدُ الْفِعْلِي : [هُوَ الْاِتْيَانُ بِالْاَعْمَالِ الْبَدَنِيَّةِ اِبْتِغَاءَ لِوَجْهِ اللهِ تَعَالٰى]

(بدنی اعمال د الله تعالیٰ د رضا دپاره کول)۔

۳ – اَلْحَمْدُ الْحَالِي : [هُوَ الَّذِيْ يَكُوْنُ بِحَسَبِ الرُّوْحِ وَالْقَلْبِ كَالْاِتِّصَافِ بِالْكَمَالَاتِ الْعِلْمِيَّةِ وَالْعَمَلِيَّةِ وَالتَّخَلُّقِ بِالْاَخْلَاقِ الْاِلٰهِيَّةِ] ...... (دا په روح او زړه سره وی لکه علمی او عملی کمالاتو باندے متصف کیدل او د اِلٰهی اخلاقو په شان اخلاق حاصلول)۔

٤ – اَلْحَمْدُ اللُّغَوِی : [هُوَ الْوَصْفُ بِالْجَمِيْلِ عَلٰى جِهَةِ التَّعْظِيْمِ وَالتَّبْجِيْلِ بِاللِّسَانِ وَحْدَهٗ]۔

(صرف په ژبه سره د ښائسته صفات وئیل په طریقه د تعظیم)

٥ – اَلْحَمْدُ الْعُرْفِيُّ : [فِعْلٌ يُشْعِرُ بِتَعْظِيْمِ الْمُنْعِمِ بِسَبَبِ كَوْنِهٖ مُنْعِمًا وَهُوَ اَعَمُّ مِنْ اَنْ يَكُوْنَ فِعْلَ

اللِّسَانِ اَوِ الْاَرْكَانِ] ...... (داسے کار کول چه په هغے کښې تعظیم د انعام کونکی وی پدے وجه چه هغه مُنعم دے۔ او دا کار عام دے که په ژبه سره وی او که په بدن سره)۔

(کتاب التعریفات للجرجانی (۹۳) ونضرة النعیم (۱۷۵٤)

## د حمد فوائد

۱ - [اِنَّهُ مِنْ اَعْلٰی مَقَامَاتِ الْاِیْمَانِ] (دا د ایمان د اعلیٰ مقاماتو نه دے)

۲ - مَحَبَّةُ اللهِ - عَزَّوَجَلَّ - وَنُصْرَتُهُ] - (پدے سره د الله تعالیٰ محبت او مدد حاصلیږی)

۳ - جَلْبُ النِّعَمِ الْمَفْقُوْدَةِ وَالْمُحَافَظَةُ عَلَی الْمَوْجُوْدَةِ]۔

(ورك شوی نعمتونه راکاږی او د موجود نعمتونو حفاظت کوی)

٤ - مُجَاوَرَةُ الْعَبْدِ رَبَّهُ فِیْ اَعْلٰی مَقَامَاتِ الْجَنَّةِ] ۔

(په حمد سره بنده د خپل رب سره د جنت په اعلیٰ مقاماتو کښې ګاونډی کیږی)

۵ - [غُفْرَانُ الذُّنُوْبِ وَسَتْرُ الْعُیُوْبِ] (په حمد سره ګناهونه بخلے شی او عیبونه پټولے شی)

٦ - [مُجَاوَرَةُ الْحَمَّادِیْنَ سَعَادَةٌ لِمَنْ جَاوَرَهُمْ وَجَالَسَهُمْ] - (پدے سره د حمد ویونکو خلقو سره ګاونډیتوب او مجالست حاصلیږی چه دا سعادت او نیکبختی ده)

۷ - [اِنْشِغَالُ الْاِنْسَانِ بِذِکْرِ رَبِّهٖ عَنِ الْغِیْبَةِ وَالنَّمِیْمَةِ وَعَنْ کُلِّ مَا یُسْخِطُ اللهَ - عَزَّوَجَلَّ] (انسان په حمد سره د خپل رب په یادولو د غیبت او چغلئ او هرے ګناه نه مشغول کیږی)

۸ - [قُوَّةُ الْبَدَنِ وَعَافِیَتُهٗ] - (پدے سره د بدن قوت او عافیت (روغوالے) راځی)

۹ - [اَفْضَلُ مِنْ عِتْقِ الرِّقَابِ وَالصَّدَقَةِ بِحُرِّ الْمَالِ]۔

(حمد ویل د غلامانو د آزادولو او د شریف (حلال) مال د صدقه کولو نه غوره دی)۔

۱۰ - [یَجْعَلُ الْعَبْدَ دَائِمًا مُطْمَئِنًّا لِقَضَاءِ اللهِ وَیُوْصِلُهٗ لِمَقَامِ الرِّضَا] ۔

(بنده همیشه د الله تعالیٰ په فیصله مطمئن کوی او مقام د رضا ته ئے رسوی)

۱۱ - [یَنْفِیْ عَنِ الْعَبْدِ صِفَةَ الْمُعْتَرِضِ عَلٰی قَضَائِهٖ الْمُهْمِلِ لِشُکْرِ نَعْمَائِهٖ] ۔

(په تقدیر باندے د اعتراض کولو او د نعمتونو د ناشکری کولو صفت د بنده نه ختموی)

۱۲ - اَلْحَمْدُ مِنْ اَجْمَلِ الصِّفَاتِ الَّتِیْ تَحَلّٰی بِهَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَاَوْصٰی بِهَا اُمَّتَهٗ] ۔

(حمد د هغه ښائسته صفاتو نه دے چه رسول الله ﷺ پرے ځان ښائسته کړے وو او امت ته ئے پدے باندے وصیت کړیدے) - ینظر نضرة النعیم: ۱۷۵۷)۔

## د حمد شرائط

د حمد درې شرائط دي : ۱- [إِذَا أَعْطَاكَ اللهُ نِعْمَةً تَعْرِفُ مَنْ أَعْطَاكَ]
(کله چه تا له الله تعالیٰ نعمت درکړي نو خپل نعمت درکونکے به پیژنې)۔
۲- أَنْ تَرْضٰى بِمَا أَعْطَاكَ (کوم شے ئے چه درکړو په هغے به راضے کیږے)۔
۳- [مَا دَامَ قُوَّتُهُ فِيْ جَسَدِكَ فَلَا تَعْصِهِ] (ترڅو چه ستا په بدن کښې د هغه نعمت طاقت موجود وي نو د هغه خلاف به نهٔ کوے) (قاله شقیق بن ابراهیم- القرطبی ۱/۱۳٤)
او ددې وضاحت به په کلمه د شکر کښې په سورة البقره کښې رازي ان شاء الله تعالیٰ۔
**۲- فائده** : د حمد او د شکر فرق شته او که نه ؟ ۱- بعض اهل علم وائي : دواړه یو شے دے۔
۲- لیکن صحیح دا ده چه فرق شته [اَلْحَمْدُ عَلٰى أَسْمَائِهِ وَصِفَاتِهِ وَالشُّكْرُ عَلٰى نِعَمِهِ وَأَيَادِيْهِ] (کما فی ابن کثیر) (حمد د الله تعالیٰ په ښکلي صفاتو او نومو باندے وي او شکر په مقابله د نعمتونو کښې وي۔ ۳- بعض علماء وائي : حمد خاص دے د ژبے سره او شکر په زړه او ژبه او بدن ټولو باندے کیږي، حمد یو جزء او عظیمه برخه ده د شکر۔ پدے وجه که ته د نجات اراده لرے نو حمدونه انتهائي ډیر کړه۔
**۳- فائده** : قرآن کریم کښې الله تعالیٰ د ایمان والو دا صفت ډیر بیان کړیدے (الحامدون) (ایمان والا به همیشه حمد ویونکي وي) او په حمد ویلو باندے ئے امر هم کړیدے : ﴿ وَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ ﴾ الاسراء (۱۱۱) (د الله تعالیٰ حمدونه وایه) او د جنتیانو مدح ئے پدے قول سره کړیده : ﴿ وَآخِرُ دَعْوَاهُمْ أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ ﴾ (یونس: ۱۰) (او آخري وینا د جنتیانو به دا وي چه حمدونه د کمال صرف الله رب العالمین لره خاص دي)
او لس آیتونو کښې ئے داسے امر کړیدے ۔ ﴿ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ الْغُرُوْبِ ﴾ (ق: ۳۹) (صبا او بیګاه د الله تعالیٰ تسبیحات او حمدونه وایه)۔
د کفارو په هلاکت هم حمد ویلے شویدے۔
﴿ فَقُطِعَ دَابِرُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ ﴾ (انعام: ٤٥)۔
د قبر نه چه انسانان راپاڅیږي نو هم حمد به وائي ﴿ يَوْمَ يَدْعُوْكُمْ فَتَسْتَجِيْبُوْنَ بِحَمْدِهِ وَتَظُنُّوْنَ إِنْ لَّبِثْتُمْ إِلَّا قَلِيْلًا ﴾ (الاسراء: ٥٢)۔
که قرآن کریم ته رجوع اُوکړے شي نو د حمدونو کمال به اُولیدل شي۔

اَللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ كُلُّهُ فِی الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ۔

**حکمة** : لا الـه الا الله ئـے اُونـه ونیـلـه ځـکـه هـغـے کښې فقط توحید دے او الحمد لله کښې توحید هم شته او د الله صفات هم پکښې دی، خلاصه دا ده چه بس پدے مقام کښې لفظ د الحمد لله ډیر مناسب دے۔

**فائده** : لله الحمد ئے اُونهٔ ونیلو حکمة دا دے چه دلته حمد مقصود دے نو ځکه ئے مقدم کړو۔ یعنی د اهمیة مقامی د وجه نه حمد مقدم شو او همدا بلاغت دے۔

پـه الحمد کښې الف لام یا د استغراق دپاره یا د اختصاص دپاره دی یعنی د کمال ټول صفتونه خاص الله تعالیٰ لره دی۔

**لله** : د الله معنیٰ ده المعبود بالحق (حقدار او لائق د بندګئ) دا وجه ده چه څوك بندګی نهٔ کوی نو هغـه بـه تـرل کیږی ځکه د الله تعالیٰ حق ئے ضائع کړیدے ﴿كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ رَهِينَةٌ﴾ ﴿وَلَا يُوثِقُ وَثَاقَهُ أَحَدٌ﴾ مثال لکه د یو سړی بل پورے قرض وی او هغه ئے نهٔ ورکوی نو ترل ئے پکار دی۔

او دا معنیٰ په کلمه د توحید کښې مراد ده۔ او کله عامه معنیٰ مراد وی یعنی اختیار مند د ټول عالم، حاجات پوره کونکے او مشکلات لرے کونکے او تدبیر چلونکے د ټولو کائناتو پدے وجه حافظ ابن قیمؒ لیکی : د الله نوم په اجمالی (مختصره) طریقه سره په ټول اسماءِ حسنیٰ ؤ باندے دلالت کوی۔ (بدائع التفسیر ۱/۱۳۹) او دا معنیٰ په سورة نمل (۶۰ تر ۶۴) او سورے قصص (۷۱، ۷۲) او سورة انعام (۴۶) کښې هم راغلے ده۔ پدے معنیٰ باندے شیخ عبد القادر جیلانیؒ فرمائی :

[كُلُّ مَنْ خِفْتَهُ وَرَجَوْتَهُ وَتَعْتَمِدُ عَلَيْهِ فَهُوَ إِلٰهُكَ] (هر هغه څوك چه ته ترے یریږے او امید ترے لرے او ته پرے اعتماد کوے او هغه اختیار مند د نفع او ضرر ګنړے نو هغه ستا اِله دے)

(الفتح الربانی ص (۵۲) او (۵۷) للجیلانی۔

یعنی څوك چه اختیار د نفع او ضرر ګنړے۔ او بغیر د ظاهری اسبابو نه د هغه نه امید او یره کوے۔ نو دا عبادت دے د غیر الله او دا شرك دے۔ پدے معنیٰ سره ډیر کم خلق توحید والا دی۔

لفظ د (الله) پـه قرآن کـریـم کـښې (۲۶۹۷) کرته استعمال شویدے۔ بعض علماؤ دعویٰ کـړیده چه دا د الله اسم اعظم دے د وجه د کثرت استعمال نه او بل د الله تعالیٰ د خصوصیاتو نه دے، بل چا ته دا نوم ونیل جائز نهٔ دی۔

(الله) اسم دے د هغه ذات دپاره چه واجب الوجود دے او مستحق د ټولو محامدو دے۔ (التنویر لابن عاشور) دا د الله تعالیٰ اسم ذاتی دے چه په مخلوق ددے اطلاق نهٔ کیږی۔

**حکمة** : د علماؤ اختلاف دے چه لفظِ (الله) مشتق دے او که نهٔ؟ راجح دا ده چه دا مشتق دے د آلَه (بفتح اللام) نه په معنیٰ د عَبَدَ۔ ۲- یا مشتق دے د (اَلِه) بکسر اللام) نه په معنیٰ د تحیر (حیران شو) یا سَکَنَ (په آرام شو) یا فَزِعَ (پناهی ئے حاصله کړه) یا وَلَعَ (مینه ئے پیدا شوه) سره دے او هر هغه الفاظ چه داسے معنیٰ ته ئے رجوع کیږی چه هغه ملزوم د خضوع او تعظیم وی۔ نو دا په د اله معنیٰ وی۔ (التنویر)

عارف رومی وائی :

معنی الله گفت آن سیبویه یُوْلِهُوْنَ فِی الْحَوَائِجِ هُمْ لَدَیْهِ
گفت اَلَیْنَا فِیْ حَوَائِجِنَا اِلَیْكَ فَالْتَمَسْنَاهَا وَجَدْنَاهَا لَدَیْكَ

یعنی د حاجتونو په وخت کښې الله تعالیٰ طرف ته متوجه کیدل او هغه ته پناهی راوړل۔ او تفسیر د اِلٰه په قرآن کریم کښې اُوګوره سورة الانعام (۴۶) والنمل (۶۰) والقصص (۷۱)۔

**فائده** : په الحمد لله کښې حصر دے ځکه چه مبتدا او خبر دواړه معرفے دی نو ټول حمدونه د اِلوهیت الله تعالیٰ پورے خاص دی۔ نو پدے کښې رد دے په ټولو اقسامو د شرك او مشرکانو باندے ځکه مشرکان د غیر الله بندګی کوی، د هغه نه حاجتونه غواړی، د هغه په نوم نذر او منختے کوی په هغه باندے توکل کوی، د هغه نه امید د نفع او د ضرر ساتی نو ضرور هغه لره عام قدرت او تصرف ثابتوی او هغه عالم الغیب ګنړی او د هغه معبود ستائینے کوی چه دا مختار کل دے، غوث اعظم دے، حاضر ناظر دے، نو د دوی په رد کښې اُوونیلے شو چه صفتونه د اُلوهیت خو صرف الله سبحانه پورے خاص دی، مشرکان د الله تعالیٰ صفات مخلوق له ورکوی دا سو چه په ګمراهئ روان دی۔

**فائده**: الحمد لله قضیه فطریه ده، پدے کښې دلیل او مدعیٰ دواړه شته، الله دپاره حمدونه خاص دی ځکه چه هغه اله دے، واجب الوجود دے، راجمع کونکے د ټولو ښائسته صفاتو دے او هر هغه ذات چه دغه شان وی نو هغه مستحق د حمد وی نو الله تعالیٰ هم مستحق د حمد دے۔

﴿رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ﴾ (رَبّ) : دا صیغه د مصدر ده، یا د اسم فاعل ده یا صفت مشبه ده۔ ماخوذ دے د تربیت نه او د تربیت معنیٰ ده : [تَبْلِیْغُ الشَّیْئِ اِلٰی كَمَالِهٖ شَیْئًا فَشَیْئًا] (بیضاوی) (یو شے خپل مناسب کمال ته په آرام آرام سره رسول)۔ نو رب دیته وائی چه د هر شی

پیدا کونکے او د هغهٔ ضروریات پوره کونکے او هغهٔ تکمیل ته رسونکے وی)۔

د الله تعالیٰ د تربیت طریقه دا ده چه دنیاوی اعتبار سره هم انسانان او مخلوقات په تدریجی طرز سره کمال ته رسوی لکه ماشوم د پیدائش سره سمدست بلوغ ته نهٔ رسوی، عقل ورله پوره نهٔ ورکوی۔ بلکه د بدن د ترقی سره سره عقل ئے هم زیاتیږی۔ ولے که عقل ئے پوره وی نو یو شی ته به حاجت محسوسوی او ورته رسیدے به نشی نو خراب به شی۔ دارنگه د مور په خیټه کښ اول نطفه وی، بیا عَلَقه بیا مُضغه ترے جوړه شی چه بیا روح پکښ واچوی نو یوه لاره ورله معدے ته کولاوه کړی، د هغے په ذریعه د مور د خیټے نه رزق ورځی، بیا ئے سمدست دنیا ته نهٔ راوباسی ځکه چه د دنیا هوا سخته ده، دا نشی برداشت کولے نو د نهه میاشتو نه بعد ئے دنیا ته رابهر کړی، نو رزق ته ئے ضرورت وی نو الله تعالیٰ ورته سمدست د مور په تیونو کښ دوه لارے راکولاوے کړی او کله چه د مور تیونه بند شی نو بیا ورله الله تعالیٰ نورے لارے کولاوے کړی، د وچو او لمدو میوونه، د جوارو او غنمو وغیره نه۔ نو الله تعالیٰ ئے ترمرګه همداسے تربیت کوی۔

دارنگه د الله تعالیٰ دینی تربیت هم په تدریجی شکل وی، انسان داسے نشی کیدے چه ټول دین په بدن کښ په یوه ورځ راولی بلکه وخت په وخت د اعمالو موقعے پرے راولی، نو ددے په ذریعه انسان مجاهده کوی او کوشش کوی چه نن د تقویٰ یو کار اُوکړی، صبا دوه او بله ورځ درے، آخر دا چه الله تعالیٰ به ئے د ایمان او د تقویٰ او د احسان اعلیٰ درجے ته اُورسوی نو دا د الله تعالیٰ تربیت دے۔

**بیا** په تربیت کښ دوه څیزونه ضروری وی: ۱- د پالنے څیزونه پیدا کول لکه بارانونه نازلول، د زمکے نه خوراکونه او څکاکونه راویستل بیا انسان له د خوراك څکاك اسباب پیدا کول لکه خوله، شونډے، غاښونه او مرئ او معده وغیره۔

۲- دویم په دغه څیزونو کښ اثر پیدا کول۔ یعنی د خوراك او څکاك څیزونو سره مرید او بدن ته ترقی او صحت ورکول۔ او دا معنیٰ د رب په سورة الشعراء (۷۸ - ۸۲) کښ په تفصیل سره ذکر ده۔ دارنگه سورة الواقعه (۵۸ / ۷۳) سورة عبس (۱۸ / ۳۲) او بقره (۲۲) کښ مواد د تربیت ذکر دی۔ (احسن الکلام)۔

رب د اسماءِ حسنیٰ نه دے، ددے استعمال بغیر د اضافت نه مخلوق دپاره جائز نهٔ دے۔ البته د اضافت سره جائز دے۔ لکه رب الدار، رب المنزل (د کور مالك) خو چه عالَم ته ئے

اضافت اُوشی بیا هم د الله تعالیٰ پورے خاص دے۔
لفظ د رب قرآن کریم کښې (۹۶۹) کرته استعمال دے۔
عبد الله بن عباس ﷺ نه نقل دی چه دا اسم اعظم د الله تعالیٰ دے چه ددے په ذریعه دعاګانے قبلیږی۔ (مستدرك و الترغیب والترهیب) دلیل دا دے چه په قرآن کښې د ټولو دعاګانو په اول کښې رب لفظ راغلے دے (رَبَّنَا ظَلَمْنَا) (رَبَّنَا إِنَّنَا آمَنَّا) (رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا) (رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَا) (رَبِّ هَبْ لِیْ) (رَبِّ زِدْنِیْ عِلْمًا) (رَبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ)۔
**حکمة** : د ربوبیت عقیده هم ډیره ضروری ده، داسے به سړے نهٔ جوړیږی لکه د دهریو په شان چه خپل رب او پالونکے نهٔ پیژنی۔ حال دا چه رزق درله څوك درکوی، صحت درله څوك درکوی، پالنه دِ ے څوك کوی؟۔ په هر آن کښې مونږ الله ته محتاج یو، او دا ډیره غټه بے وفائی ده او ظلم او جهالت دے چه سړے د الله تعالیٰ نه غافله شی او مخ ترے واړوی تر مرګه پورے۔ حال دا چه الله تعالیٰ ورله وجود، عقل، صحت ورکړو بیا رزق ورکوی، لنډه دا چه د باران د څاڅکو نه زیات نعمتونه په تا کیږی۔ نو په تا باندے د دغه رب معرفت او بندګی واجب ده۔ دا وجه ده په قبر کښې به تپوس د ربوبیت کیږی (مَنْ رَّبُّكَ) (ستا رب څوك وو؟) او په عباداتو کښې الله تعالیٰ مونږ خپل ربوبیت طرفته متوجه کوی په رکوع او سجده کښې ئے مونږ ته داسے تعلیم راکړیدے چه داسے وایئ (سُبْحَانَ رَبِّیَ الْعَظِیْمِ، سُبْحَانَ رَبِّیَ الْاَعْلٰی)۔
دا الحمد لله دعویٰ ده او دا روسته ورله دلیلونه دی۔ یو دلیل دا دے چه الله لره حمدونه خکه دی چه الله رب العالمین دے۔

## د تربیت اقسام

د الله تعالیٰ تربیت په څو څو طریقو سره وی (۱) بِالْاِیْجَادِ وَالْهِدَایَةِ وَالنِّعَمِ وَالرِّزْقِ وَالْحِفْظِ وَالْاَجْرِ فِی الدُّنْیَا وَالْآخِرَةِ وَتَسْخِیْرِ الْاَشْیَاءِ لَهٗ وَغَیْرِ ذٰلِكَ ...... (یعنی الله تعالیٰ بنده لره پیدا کړو، بیا ئے ورته هدایت اُوکړو، نعمتونه او رزقونه ورکوی، حفاظت ئے کوی، په دنیا او آخرت کښې اجرونه ورکوی، د دنیا څیزونه ئے دده په خدمت کښې لګولی دی وغیره)۔
د الله تعالیٰ دا تربیت مخلوقاتو لره دوه قسمه دے (۱) یو ظاهری جسمانی او عام تربیت دے لکه هغهٔ ټول مخلوقات پیدا کړل، هغوی له رزق ورکوی او هغهٔ څیزونو طرفته د هغوی رهنمائی کوی کوم چه هغوی له په دنیاوی ژندګئ کښې فائده مند وی۔ (۲) او بل خاص (روحانی) تربیت دے۔ددے هم مختلفے طریقے دی یو بانزال الوحی وبالقاء الایمان

(چه الله وحی نازله کړیده او زړونو کښې ئې ایمان اچولے دے) او په زړه کښې د تقویٰ او خشیت صفت اچوی لکه د اولیاء الله د ایمان په ذریعه تربیت کوی، هغوی ته د ایمان توفیق ورکوی او کمال ته ئې رسوی، او هغهٔ رکاوټونه تربے لرے کوی کوم چه د الله او د هغهٔ د اولیاؤ ترمینځ واقع کیږی یعنی هغوی له د هر خیر توفیق ورکوی او د هر شر نه ئې محفوظ ساتی او غالباً همدا راز دے چه د انبیاء کرامو ټولے دعاګانے د رب لفظ نه شروع کیږی. ځکه چه د هغوی ټول مطالب د خاص ربوبیت په ضمن کښې راځی.

او د حدیث نه معلومیږی چه د بعض بندګانو تربیت په صحت سره کوی، که بدن روغ ورنکړی نو بیا خرابیږی، بعضو له په مرضونو تربیت کوی، ولے که روغ وی نو بیا متکبر او مستیږی. د بعضو په مالداریٔ او د بعضو په فقیریٔ تربیت کوی. لکه چه دا خبره مفسرینو ددے قول د الله تعالیٰ ﴿ وَلَوْ بَسَطَ اللّٰهُ الرِّزْقَ لِعِبَادِهٖ لَبَغَوْا فِي الْأَرْضِ﴾ (الشوریٰ:۲۷) د لاندے لیکلے ده.

**فائده** : رب ته د متوجه کیدو فائده دا ده چه کله انسان د الله تعالیٰ دے قسم ربوبیت ته متوجه شی نو په دهٔ کښې د توکل او تعظیم د الله تعالیٰ او د رغبت الی الله ماده پیدا کیږی.

**حکمة** : رب العالمین لفظ ئې د (الله) نه روستو ذکر کړو اشاره ده چه الله تعالیٰ دا مخلوقات مهمل ندی پریخی بلکه پیدا ئې کړه او بیا ئې پالنه هم کوی هغه کل یو م هو فی شأن دے. لکه ارسطو فلسفی وئیلی دی. [اَلْعَظِیْمُ لَا یُفَکِّرُ اِلَّا فِیْ ذَاتِهٖ] . (عظیم ذات صرف په خپل ذات کښې فکر کوی) او هدایة الحکمة کښې دی : [اَلْوَاحِدُ لَا یَصْدُرُ عَنْهُ اِلَّا الْوَاحِدُ] (الله تعالیٰ یو ذات دے صرف یو کار کولے شی) نو بیا وائی : عقل اول ئې پیدا کړو بیا عقل اول راولګیدو عقل ثانی ئې پیدا کړو او هغه عقل ثالث. پدے طریقه تر عقل عاشر پورے چه دیته جبرئیل وائی نو نظام ئې بیا هغه ته اُوسپارلو، پدے وجه هغه ته عقل فعال وائی. نو دا کفری عقیده ده او د تمام انبیاء علیهم السلام او د قرآن کریم او عقل خلاف ده. اسلامی عقیده دا ده چه الله تعالیٰ ددے ټولو کارونو کونکے دے او ملائك د الله تعالیٰ د خادمانو، مزدورانو او پولیسو په منزله دی، الله تعالیٰ پدے کارونو مقرر کړیدی. او پدے ترتیب سره د مخلوقاتو تربیت کوی.

## د رب لفظ اطلاقات او معانی

د رب لفظ په قرآن کریم کښې ډیر معاني استعمال دي او بعض په لغت عربي کښې. ددے معلومول پکار دي ځکه هر ځائے کښې په یوه معنی نۀ وي نو ١- رب کله په معنی د مصلح (اصلاح کونکی) او ناصح سره راځي. (هود: ٣٤) ٢- په معنیٰ د مالك (سورة النمل ٩٠ آیت) : (رَبُّ هٰذِهِ الْبَلْدَةِ). (فَلْيَعْبُدُوْا رَبَّ هٰذَا الْبَيْتِ) (سورة قریش ٣:)-

٣- په معنیٰ د مَولا (سید) لکه سورة یوسف (٤٢ آیت) (اِرْجِعْ اِلٰى رَبِّكَ) (خپل مولا ته واپس شه). ٤- په معنیٰ د حاکم یعني قانون ساز، شارع سره. لکه ﴿اِتَّخَذُوْٓا اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ (التوبة : ٣١) ٥- پالنه کونکے لکه په سورة البقره (٢١) کښې.

٦- او رب کله په معنیٰ د جامع (جمع کونکی) راځي. عرب وائي : فُلَانٌ يَرُبُّ النَّاسَ اَىْ يَجْمَعُهُمْ.

٧- او په معنیٰ د معبود په قرآن کریم کښې زیات استعمال دے لکه په آل عمران (٥١/٨٠) او مفسرینو دلته یو شعر راوړے دے چه یو اعرابي (غاوي بن عبد العزی السلمي) په لاره روان وو (او د هغوی طریقه دا وه چه بتان به ئے د ځان سره کرځول دپاره ددے چه عبادت ئے اُوکړي، پدے مصیبت اخته وو)، (سنن دارمي (١/١٤) کښې راځي چه صحابه ناست وو، په خپل ځان پورے به ئے خندل چه مونږه د اسلام نه مخکښې څو مره لیونتوب کولو چه په سفر به لاړو نو په یو ځائے کښې به معبود نۀ وو نو شکے به مو راجمع کړے او ګډه به مو پرے را اُولوشله او بیا به مو د هغه شکو عبادت کولو چه دا زمونږ اِلٰه دے. نو دوي بتان ځان سره ګرځول) نو دغه اعرابي دا خپل بت په لاره کښې کیخودو او دے اَودس ماتي ته ستون شو نو سورلنډے راغے او په سر ئے ورته متیازے اُوکړے، دے چه راغے دا حالت ئے اُولیدو نو داسے ئے اُووئیل :

أَرَبٌّ يَبُوْلُ الثُّعْلُبَانُ بِرَأْسِهٖ ۔۔۔ لَقَدْ ذَلَّ مَنْ بَالَتْ عَلَيْهِ الثَّعَالِبُ

(آیا هغه څه معبود دے چه سور لنډی (ګیدړان) ئے په سر متیازے کوي، یقیناً ذلیله دے هغه معبود چه ګیدړان ئے په سر متیازے کوي) او د ځان نه ئے نشي دفع کولے. نو هغه ئے کوزار کړو او بندګی ئے ورله پریخوده او بیا راغے نبي ﷺ ورله راشد بن عبد ربه نوم کیخودلو. (الفوائد ٢/٤٤٢) وحیاة الحیوان (١/٢٤٨) .

او ډیر کسان پدے طریقه موحدین شوي دي.

○ یو صحابي وائي زه پدے موحد شوم چه ما د یو بت عبادت کولو او د یو کوهي په

غاړه باندې پروت وو نو بله ورځ هغه بت کو هی ته غورځیدلے وو، سر ئے خکته او خپے ئے اُوچتے وے. نو ما اُوونیل دا څنګه اِلٰه دے چه ځان هم نشی بچ کولے نو ما ایمان راوړو.

او دلته د رب څو معانی دی معبود، مدبر، او تربیت کونکے د مخلوقاتو.

(عالمین): جمع د عالم ده د الله نه ماسویٰ ټول مخلوقاتو ته وائی.

۲- دارنګه هر هغه شے چه موجود دے په خارج کښ برابره ده که بالقوه وی او که بالفعل.

۳- زجاج فرمائی: [اَلْعَالَمُ: كُلُّ مَا خَلَقَهُ اللهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ].

(هر هغه شے چه الله تعالیٰ په دنیا او آخرت کښ پیدا کړیدے دیته عالم وائی)

٤- حسین بن مفضل وائی: [اَهْلُ كُلِّ زَمَانٍ عَالَمٌ].

(د هرے زمانے خلقو ته عالم وائی) ...... (فتح البيان للصديق حسن خان ١/٤٥)

عالَم ماخوذ دے د علامے نه عالَم ورته ځکه وائی (لدلالته علی الله) ځکه دا کائنات علامه ده د الله تعالیٰ په وجود، د هغه په قدرت:

وَفِي كُلِّ شَيْءٍ لَهُ آيَةٌ تَدُلُّ عَلَى أَنَّهُ وَاحِدٌ

(په هر شی کښ د الله د وحدانیت نښه ده) چه چا کښ لږ شان عقل وی.

﴿قُلِ انْظُرُوا مَاذَا فِي السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا تُغْنِي الْآيَاتُ وَالنُّذُرُ عَنْ قَوْمٍ لَا يُؤْمِنُونَ﴾

(یونس: ۱۰۱)

الله تعالیٰ فرمائی: دے آسمانونو او زمکو کښ اُوګورئ د الله تعالیٰ د پیژندلو څومره څیزونه دی. لیکن څوک چه ایمان نۀ راوړی نو هغوی له فائده نۀ ورکوی).

**حکمة**: هر کله چه عالَم (مفرد) ټول ماسوی الله ته وائی، جمع راوړلو ته ضرورت نۀ وو، لیکن چونکه دلته د الله تعالیٰ د ربوبیتِ کامله اظهار مقصد وو، نو ددے وجه نه د عالَم جمع راوړے شوه چه شامل شی ټولو اجناسو د عالَم ته، مثلاً عالَم د جناتو، عالَم د انسانانو، عالَم د ملائکو او عالَم د وحوش او طیورو (حیوانانو)، عالَم د جماداتو، عالَم د مائعاتو، عالَم البر والبحر، عالَم الافلاك، عالَم خاکی، عالَم ناری، عالَم الجواهر، عالَم النور والظلمة وغیره. ددے ټولو ضرورتونه د یو بل نه مختلف دی لیکن الله تعالیٰ د ټولو ضروریات، د هغوی د احوالو او ظروفو او طبائع او اجسامو مطابق مهیا کوی. پدے جمله کښ یوه فائده دا ده چه الله عظیم ذات دے.

٢- دویم دا چه په هغه توکل، په هغه اعتماد اُوکړے شی چه الله تعالیٰ د زمکے آسمان، ملائکو او پیریانو او ددے ټولو مخلوقاتو تربیت کوی نو زما ددے وړوکی بدن تربیت به نکوی څه؟ ولے نه!۔ په دنیا کښې ډیر زیات عالمونه دی چه اُوس سائنسدانانو د آلاتو په ذریعه کشف کړیدی چه هغه د انسانانو په دماغو کښې هم نۀ راځی۔ د دریابونو اندازه چا نۀ ده معلومه کړے۔ د ملائکو تربیت کوی۔ حدیث کښې راغلی دی په آسمانونو کښې د څلورو ګوتو په مقدار ځائے نشته مگر ملائك څوك په قیام او څوك په رکوع او څوك په سجده کښې مشغول دی۔

**حکمة** : الله تعالیٰ د عالَم نه مُستغنی دے لیکن دا مخلوقات ئے علامه ګرځولے ده په خپل ذات او په خپل وجود باندے، پدے کښې زمونږ دپاره فائده ده چه مونږ دے ته اُوګورو او خپل خالق او مُربی معلوم کړو۔ او دا د الله تعالیٰ عظیم احسان دے بندګانو سره۔ ددے وجه نه الله تعالیٰ په خپل کتاب کښې د کائناتو تذکره بندګانو ته ډیره کوی چه ددے نه فائده واخلی؛ او د خپل رب معرفت پرے حاصل کړی۔

**فائده** : رب العالمین راوړو کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ مستحق د حمد دے ذاتاً نو دارنګه وصفاً۔

## په قرآن کریم کښې د عالمین لفظ اطلاقات او استعمالات

عالمین لفظ په قرآن کریم کښې دوه قسمه استعمالیږی۔ یو په ټولو موجوداتو ماسوی الله باندے اطلاق کیږی لکه دلته ئے همدا معنیٰ ده۔

٢- دویم عالمین کله صرف انسانان او پیرانو (مکلفینو) دپاره استعمالیږی۔ لکه سورة فرقان (١) آیت ﴿تَبَارَكَ الَّذِىْ نَزَّلَ الْفُرْقَانَ عَلٰى عَبْدِهٖ لِيَكُوْنَ لِلْعَالَمِيْنَ نَذِيْرًا﴾ اګرکه دلته عمومی معنیٰ مراد ګول هم بعید نۀ دی ځکه چه ملائك، حیوانات، جمادات او زمکے او اسمانونه هم د الله نه یریږی اګرکه مکلف صرف انسانان او پیریان دی۔

(الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ) اُوس بل دلیل راوړی چه الله تعالیٰ د صفتونو لائق دے ځکه چه رحمن او رحیم دے۔

## د رحمن او رحیم ترمینځ فرقونه

دا دواړه د مبالغے صیغے دی چه پدے کښې د کثرت (ډیر والی) او دوام (همیش والی)

معنیٰ پرته ده. ۱ - ضحاك رحمه الله - نه نقل دی چه [اَلرَّحْمٰنُ بِالنِّسْبَةِ اِلَی السَّمَآءِ] دے یعنی هغه ذات چه آسمان والو باندے مهربان دے او [اَلرَّحِیْمُ بِالنِّسْبَةِ اِلَی الْاَرْضِ] دے، هغه ذات دے چه زمکے والو باندے مهربان دے. ضحاك پدے کښ یوے نکتے ته اشاره کړیده هغه دا ده چه د آسمان والا بے گناه دی نو د الله تعالیٰ رحم پرے ډیر دے او د زمکے والو گناهونه شته نو ددے وجه نه رحم سره عذابونه هم وی. په آسمان کښ صرف رحمت دے، عذاب نشته نو په آسمان کښ مبالغه ده نو ځکه رحمن هغه پورے خاص کړو.

۲ - دویم فرق: [اَلرَّحْمٰنُ الَّذِیْ یُعْطِیْ اِذَا سُئِلَ] رحمٰن هغهٔ دے چه د سوال نه پس ئے ورکوی. او [اَلرَّحِیْمُ: اَلَّذِیْ یَقْضِی الْحَاجَاتِ بِنْ غَیْرِ سُؤَالٍ] او رحیم هغهٔ دے چه بغیر د غوختلو نه حاجات پوره کوی ځکه زمونږ ډیر حاجتونه داسے دی چه زمونږ ورته فکر هم نهٔ وی او الله تعالیٰ پوره کړی دی، زمونږ په بدن کښ دننه دومره اندامونه دی او دومره رګونه او مشینریانے دی چه مونږ له ئے نوم هم نهٔ راځی او هغه لګیا دی کار کوی زمونږ حاجت پوره کوی.

۳ - دریم فرق: ابوحیان په البحر المحیط کښ کړیدے [اَلرَّحْمٰنُ الَّذِیْ تَكْثُرُ رَحْمَتُهٗ وَالرَّحِیْمُ الَّذِیْ تَتَكَرَّرُ رَحْمَتُهٗ] رحمٰن کثیر الرحمة (ډیر رحمت والا) ته وائی او رحیم مکرر رحمت والا ته وائی چه بار بار رحمت کوی.

٤ - فرق: فراء بغویؒ وئیلی دی [اَلرَّحْمٰنُ بِالنِّسْبَةِ اِلَی الدُّنْیَا وَالرَّحِیْمُ بِالنِّسْبَةِ اِلَی الآخِرَةِ] دے لکه دا مشهوره معنیٰ ده. لیکن دا قول غوره نهٔ دے روستو راځی.

۵ - پنځم فرق: [اَلرَّحْمٰنُ بِالنِّعَمِ الْجَلِیْلَةِ] رحمٰن هغه چا ته وائی چه غټ نعمتونه ورکوی او رحیم بالنعم الصغیره دے. (بیضاوی) (چه واړه واړه نعمتونه ورکوی).

پدے کښ اشاره ده رد د مشرکانو ته چه الله تعالیٰ لکه څنګه چه غټ نعمتونه ورکوی نو واړه واړه نعمتونه هم ورکوی او دا ئے مخلوق او باباګانو او اُولیاؤ ته نهٔ دی سپارلی.

٦ - شپږم فرق: رحمٰن هغه ذات ته وائی چه استعمالیږی (لِجَلْبِ الْمَنْفَعَةِ) (د بندګانو د فائدے ورکولو دپاره یعنی بندګانو ته فائدے ورکوی او رحیم استعمالیږی (لِدَفْعِ الْمَضَرَّةِ) (یعنی چه خلقو نه ضرر دفع کوی). نو الله رحمٰن هم دے خلقو ته فائدے ورکوی او رحیم هم دے ضررونه دفع کوی.

۷ - مشهوره دا ده چه رحمٰن هغهٔ دے چه عام مخلوق له نعمتونه ورکوی، کافر وی که

مسلمان، او رحیم خاص په مؤمنانو دے په آخرت کښې۔

۸- راجح او غوره دا ده چه رحمٰن کښې معنیٰ د مبالغے ده یعنی ډیر احسانانو کولو والا په یو ځل۔ یعنی رحمٰن بے حده مهربان ته وائی، دا وجه ده چه مخلوق ته رحمٰن وئیل جائز نهٔ دی۔ او رحیم د فعیل وزن دے او دا غالباً د صفت مشبه وزن وی چه په معنیٰ کښې ئے دوام دے۔ یعنی همیشه دپاره رحم کونکے، همیشه انعامات کولو والا۔ علامه قاسمیؒ رحمه الله فرمائی:

[وَالْأَصَحُّ اَنَّ الرَّحْمٰنَ وَصْفٌ فِعْلِيٌّ فِيْهِ مَعْنَى الْمُبَالَغَةِ وَيُسْتَعْمَلُ فِي الصِّفَاتِ الْعَارِضَةِ كَعَطْشَانَ وَغَرْثَانَ وَاَمَّا الرَّحِيْمُ فَيَدُلُّ عَلَى الْمَعَانِي الثَّابِتَةِ كَالْاَخْلَاقِ فَاِنَّهُ عَلٰى وَزْنِ حَكِيْمٍ وَكَرِيْمٍ وَهُوَ يَدُلُّ عَلَى الثُّبُوْتِ فَجَاءَ بِالرَّحِيْمِ بَعْدَهُ دَفْعًا لِتَوَهُّمِ اِنْقِطَاعِ الرَّحْمَةِ]

او دا تفسیر ځکه غوره دے چه د ټولو نه ډیره صحیح طریقه د تفسیر د قرآن تفسیر کول دی خپله په قرآن سره او دا تفسیر د قرآن کریم د دوه آیتونو نه معلومیږی۔ ﴿وَرَحْمَتِيْ وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ﴾ سورة الاعراف (١٥٦) (رحمت د الله تعالیٰ هر شی ته پراخه دے)۔

﴿رَبَّنَا وَسِعْتَ كُلَّ شَيْءٍ رَّحْمَةً وَّعِلْمًا﴾ سورة مومن (٧) نو دا د رحمٰن معنیٰ ده چه رحمت ئے زیات او عام دے، بے حده مهربان دے۔ ﴿كَتَبَ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ﴾ سورة الانعام (١٢) (٥٤)

(الله تعالیٰ په ځان رحمت لیکلے دے) همیشه رحم والا دے۔ او دا معنیٰ د رحیم ده۔

ددے خبرے وضاحت پدے طریقه کیږی چه رحمان د فعلان وزن دے دا وزن اکثر د مبالغے او د صفات عارضه ؤ دپاره استعمالیږی لکه عطشان معنیٰ تږے او غرثان او جوعان وزن چه معنیٰ ئے د وږی ده۔ نو سړے همیشه تګے او وږے نهٔ وی لږ ساعت تږے او وږے شی نو په رحمٰن کښې مبالغه ده، خو صفت عارضی دے، لفظ د رحیم د مبالغے سره سره صیغه د صفتِ مشبه ده پدے کښې د ثبوت او د دوام معنیٰ پرته وی [تَدُلُّ عَلَى الْمَعَانِي الثَّابِتَةِ] په هغه معنیٰ باندے دلالت کوی چه په هغے کښې همیشه والے وی لکه اخلاق، کریم، حکیم، نو ددے دا معنیٰ نهٔ ده چه لږ ساعت عزتمند شو او حکمت والا شو او بیا ختم شو۔ نو اوس معنیٰ دا شوه چه رحمان هغه ذات دے چه په یو ځل باندے ډیرے حده رحم اوکړی خو بیا منقطع شی بیا ئے اوکړی بیا منقطع شی، نو رحمٰن معنی بے حده مهربان او رحیم هغه ذات دے چه د هغه رحمت همیشه دپاره دے، هیڅکله ئے نهٔ منقطع کوی نو د الله تعالیٰ رحمتونه دوه قسمه دی یو هغه دی چه عارضی وی، په مونږ باندے یو ځل اوشی بیا

منقطع شی، لکه الله تعالیٰ درله علم درکړو، د حج ویزه ډیے راوختله، فتح او غلبه اُوشوه نو دا عارضی نعمتونه دی، الله تعالیٰ ئے کوی خوبے حده او ډیر دی او د رحیم معنیٰ دا چه د الله تعالیٰ په مونږ باندے همیشه او دائمی رحمتونه هم شته۔ لکه زمونږ د بدن هر اندام، آسمان، زمکه، ورځ او شپه لکه قرآن کښې دی ﴿وَمِنْ رَّحْمَتِهٖ جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ﴾ [القصص: ۷۳] اُوبه، خوراك، ونے او بوټی دی۔ نو دا غوره فرق دے، او پدے بنیاد باندے معنیٰ کول غوره دی۔

او د فراء رحمه الله دا تفسیر چه رحمٰن د دنیا سره تعلق لری او رحیم د آخرت سره- صحیح نهٔ دے ځکه حدیث کښې راځی [رَحْمٰنَ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَرَحِيْمَهُمَا]

(طبرانی صغیر ۱/۳۳٦) باسناد جید والحاکم (۱/٦۹٦) و صححه۔ مجمع الزوائد ۱۰/۱۸٦)

(الله تعالیٰ د دنیا او د آخرت رحمان هم دے او رحیم هم دے)

۹- بل فرق دا هم دے چه رحمان عام دے او رحیم کامل دے۔

یعنی د الله تعالیٰ رحمت ډیر او عام دے او کامل هم دے، او دا اعلیٰ درجه د رحمت ده چه عام هم وی او کامل هم وی۔

**فائده**: رحمت د الله تعالیٰ حقیقی صفت دے ځنکه چه د هغهٔ د شان مناسب او لائق وی او معنیٰ ئے ده فضل او احسان او انعام کول۔ او پدے کښې تاویل کول د الله تعالیٰ د صفت نه انکار دے۔ نو هغه متکلمین ځومره محروم دی چه د الله تعالیٰ د رحمت نه انکار کوی او وائی مراد د رحمت نه صرف انعام دے!۔

**حکمة**: د رب العالمین نه بعد د رحمن رحیم راوړو حکمت دا دے:

۱-[إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّ تَعَلُّقَ الرَّبِّ بِعِبَادِهٖ تَعَلُّقَ الْاَبِ الرَّحِيْمِ لَا الْمُنْتَقِمِ الظَّلِيْمِ] (فی ظلال القرآن)

(اشاره ده چه تعلق د رب د خپلو بندګانو سره داسے دے لکه د رحم کونکی پلار تعلق د خپلو بچو سره، او داسے نهٔ دے لکه د ظالم او انتقام اخستونکی) یعنی الله تعالیٰ په بندګانو ظلم هم نهٔ کوی او بغیر د څه جرم نه ترے انتقام هم نهٔ اخلی۔ بلکه د الله تعالیٰ رحمت غالب دے۔

۲- [إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّ تَرْبِيَتَهٗ لِعِبَادِهٖ لَيْسَ لِضَغْطِ اَحَدٍ وَلَا لِجَلْبِ مَنْفَعَةٍ إِلَى نَفْسِهٖ وَإِنَّمَا ذٰلِكَ لِرَحْمَتِهٖ]

(اشاره ده دے ته چه د الله تعالیٰ تربیت د بندګانو دپاره د چا د زور په وجه نهٔ دے او نهٔ د فائدے راخکلو دے ځان ته، بلکه دا تربیت د هغه د رحمت د وجه نه دے)۔

۳- د قرآن کریم اسلوب (طریقه) دا دے چه ترهیب د ترغیب سره ملګرے کوی نو په رب العالمین کښې ترهیب وو او په الرحمن الرحیم کښې ترغیب دے۔

**فائده**: د الله رب العالمین د رحمت انتهاء مخلوق ته نۀ ده معلومه، په دے وجه د رحمٰن اطلاق په بل چا جائز نۀ دے۔ (قرطبیؒ) د الله تعالیٰ د رحمت اندازه ددے حدیث نه لږه اُوکړه ! [اِنَّ اللهَ خَلَقَ مِائَةَ رَحْمَةٍ اَنْزَلَ مِنْهَا وَاحِدَةً وَبِهَا يَتَرَاحَمُ الْخَلْقُ وَبِهَا تَعَاطَفُ الْوَحْشُ عَلٰى وَلَدِهَا- الحدیث] رواه مسلم والبخاری نحوه) ۔ (الله تعالیٰ سل رحمتونه پیدا کړیدی یو ئے د هغے نه (دنیا ته) نازل کړیدے او ددے (یو رحمت) په وجه ټول مخلوقات په یو بل رحمت کوی او ددے په وجه حیوانات په خپلو بچو مهربانی کوی او کله چه د قیامت ورځ راشی نو الله تعالیٰ به سل واړه رحمتونه پوره کړی او په هغے سره به په بندګانو رحم کوی)۔

د الله تعالیٰ رحمت په هر انسان باندے شوے دے، هر قسم، لږ استحضار خو اُوکړه۔ پیدائش، ایمان، رزق، صحت، علم، دنیا او آخرت، قرآن او حدیث، صحیح عقیده، اتباع د سنت، د ګناه پټول او د نیکی ښکاره کیدل، چه هغه بے حسابه او بے شماره دی نو کله چه ته ددے تدبر اُوکړے نو ته به د رحمٰن په معنیٰ پوهه شے او د هغه سره به دِ بے محبت پیدا شی او همدا استحضار د قرآن کریم د لوستلو مطلب دے۔

**سوال**: هر کله چه په لفظ د رحمٰن کښې ډیره مبالغه ده نو دے نه روسته ئے رحیم ولے راوړو؟ **جواب**: ۱- پدے سره دا ګمان دفع کوی چه ګنے د الله تعالیٰ رحمت به منقطع کیږی نو په رحیم کښې ئے اشاره اُوکړه دوام ته۔ ۲-دویم دا چه د رحمت دوه نوعے شوے یو عارضی او بل مستمر او دائمی نو دواړو ته اشاره شوه۔

**سوال**: بسم الله کښې د رحمٰن او رحیم راوړو نه روسته بیا د رحمٰن او رحیم د ذکر څه فائده ده ؟ نو ددے یو څو وجے دی ۱- اوله وجه دا ده [لِيَدُلَّ عَلٰى اَنَّ التَّسْمِيَةَ لَيْسَتْ مِنَ الْفَاتِحَةِ] (چه دلالت اُوکړی چه بسم الله د فاتحے نه جزء نۀ دے)۔

دا وجه بعض مفسرینو لیکلے ده لیکن دومره قوی نۀ ده۔

۲- وجه: [لِلدَّلِيْلِ عَلَى الدَّعْوٰى] په بسم الله کښې ذکر شو دپاره د طلب د استعانت او دلته ذکر شو دپاره د دلیل چه الله تعالیٰ دپاره حمدونه ځکه ثابت دی چه هغۀ رحمتونو والا دے۔

۳- وجه: لِدَفْعِ الْهَيْبَةِ الْحَاصِلَةِ] په بسم الله کښې چه د الله تعالیٰ نوم ذکر شو نو وجل او هیبت پیدا شو نو د هغے د زائل کولو دپاره ئے په رحمٰن رحیم سره بشارت ورکړو او دلته

رب العالمین ذکر شو نو امید د انعاماتو پیدا شو نو د امید د تائید دپاره ئې دوباره راوړل۔

٤- وجه : [فِيهِ إِشَارَةٌ إِلَى غَلَبَةِ الرَّحْمَةِ] پدې کښې اشاره ده غلبې او فراخوالی د رحمت د الله تعالیٰ ته۔ څکه حدیث کښې دی : [سَبَقَتْ رَحْمَتِي غَضَبِي]

[بخاری ومسلم ٢١٠٧/٤ -عن ابی هریرة]

(زما رحمت غالب او مقدم دے په غضب زما) او الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَرَحْمَتِي وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ ﴾ (اعراف :١٥٦) (زما رحمت هر شی ته فراخه دے)۔

[احسن الکلام لشیخنا القمقام السید عبد السلام حفظه الله]

## د الله د رحمت د حاصلیدو اسباب

هر کله چه رحمة د الله تعالیٰ ډیر زیات او فراخه دے، نو اُوس هر انسان اګرکه کافر دے هغه هم ددے طمع لری نو دا به چا ته حاصلیږی؟ ددے اهل به څوك وی؟ نو ددے د حاصلولو دپاره یو څو اسباب او اعمال دی چه څوك هغه اختیار کړی نو الله تعالیٰ ئې په خپل رحمت کښې داخلوی :

١- اَلْإِحْسَانُ : (د الله تعالیٰ داسې بندګی کول ګویا کښې ته الله تعالیٰ وینې، یا داسې یقین سره چه الله تعالیٰ تا ته ګوری) ﴿ إِنَّ رَحْمَتَ اللَّهِ قَرِيبٌ مِنَ الْمُحْسِنِينَ ﴾ (اعراف:٥٦)۔

٢- اَلتَّقْوٰى (٣) اَلزَّكٰوةُ (٤) اَلْإِيْمَانُ بِالْآيَاتِ۔ (د الله تعالیٰ په آیتونو باندے ایمان راوړل)

٥- اِتِّبَاعُ الرَّسُوْلِ ۔(د رسول الله ﷺ په هر کار کښې تابعداری کول) دا ټول په یو آیت کښې ذکر دی ﴿ فَسَأَكْتُبُهَا لِلَّذِينَ يَتَّقُونَ وَيُؤْتُونَ الزَّكٰوةَ وَالَّذِينَ هُمْ بِآيَاتِنَا يُؤْمِنُونَ الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الرَّسُولَ......الآية ﴾ (اعراف:١٥٦/١٥٧) ۔

٦ - اَلشَّهَادَةُ فِي سَبِيلِ اللهِ ۔(څوك چه د الله تعالیٰ په لار کښې شهید شی) ﴿ وَلَئِنْ قُتِلْتُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ مُتُّمْ لَمَغْفِرَةٌ مِنَ اللَّهِ وَرَحْمَةٌ خَيْرٌ مِمَّا يَجْمَعُونَ ﴾ (آل عمران :١٥٧)۔

٧- اِطَاعَةُ اللهِ وَالرَّسُوْلِ

(د الله تعالیٰ او د هغه د رسول اطاعت کول) ﴿ وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴾ [آل عمران:١٣٢]

٨ - [اَلْإِنْصَاتُ وَاسْتِمَاعُ الْقُرْآنِ]۔(قرآن کریم آوریدل او هغې ته په توجه سره غوږ کیخودل) ﴿ وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴾ (اعراف :٢٠٤)۔

۹- [اَلْاِسْتِغْفَارُ] (استغفار طلب کول) ﴿لَوْلَا تَسْتَغْفِرُوْنَ اللهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ﴾ (النمل:٤٦)

۱۰- [خَوْفُ عَذَابِ اللهِ الدُّنْيَوِيِّ وَالْاُخْرَوِيِّ].

(د الله تعالیٰ د دنیا او د آخرت د عذاب نه یریدل)

﴿وَلِيُنْذِرَكُمْ وَلِتَتَّقُوْا وَلَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ﴾ (اعراف:٦٣)

۱۱- اَلْاِصْلَاحُ بَيْنَ الْمُؤْمِنِيْنَ] (د مؤمنانو ترمینځ اتفاق او جوړ جاړے راوستل) ﴿فَاَصْلِحُوْا بَيْنَ اَخَوَيْكُمْ وَاتَّقُوا اللهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ﴾ (الحجرات: ۱۰).

۱۲- [اَلصَّبْرُ عَلَى الْمَصَائِبِ] (په مصیبتونو باندے صبر کول) ﴿اُولٰئِكَ عَلَيْهِمْ صَلَوَاتٌ مِنْ رَبِّهِمْ وَرَحْمَةٌ﴾ (البقرة: ۱۵۷).

۱۳- [اَلْاِيْمَانُ بِاللهِ وَالْاِعْتِصَامُ بِهٖ] (په الله تعالیٰ ایمان راوړل او په هغه باندے منګولے لګول) ﴿فَاَمَّا الَّذِيْنَ آمَنُوْا بِاللهِ وَاعْتَصَمُوْا بِهٖ فَسَيُدْخِلُهُمْ فِيْ رَحْمَةٍ مِنْهُ﴾ (النساء: ۱۷۵)

۱٤- [اَلْجِهَادُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ]. (د الله تعالیٰ په لار کښې جهاد کول) ﴿يُبَشِّرُهُمْ رَبُّهُمْ بِرَحْمَةٍ مِنْهُ وَرِضْوَانٍ وَجَنّٰتٍ﴾ (التوبة: ۲۱)

۱۵- اَلْاِيْمَانُ بِالرَّسُوْلِ وَتَقْوَى اللهِ (د الله په رسول باندے صحیح ایمان راوړل او بیا تقویٰ اختیارول) ﴿يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوا اتَّقُوا اللهَ وَآمِنُوْا بِرَسُوْلِهٖ يُؤْتِكُمْ كِفْلَيْنِ مِنْ رَحْمَتِهٖ﴾ (الحديد: ۲۸).

دا ټول د قرآن کریم نه ماخوذ صفات دي. الله تعالیٰ دے مونږ ددے صفاتو اهل اُوګرځوی چه د الله تعالیٰ په رحمت کښې داخل شو. وَمَا ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ بِعَزِيْزٍ.

مونږ په «الفوائد» (۱) کښې یوه فائده لیکلے ده چه په هغې کښې د رحمت د حاصلیدو (٦٧) اسباب خودلے شویدی مفصلاً.

(مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ) : اُوس بل دلیل ذکر کوی دغه الله تعالیٰ څکه د صفتونو لائق دے چه مالك دے د ورځې د جزاء. مالك معنیٰ ده : اختیار مند، واکدار دے د ورځې د جزاء.

**تعریف د مالک** : مالك ونیلے کیږی [اَلْمُتَصَرِّفُ فِي الْاَعْيَانِ الْمَمْلُوْكَةِ بِاخْتِيَارِهٖ كَيْفَ يَشَاءُ] (بیضاوی) (یعنی هغه ذات چه په خپلو مملوکاتو کښې په خپله طبع او اختیار تصرف کوی) یعنی په څیزونو باندے ئے داسے قبضه کړی وی چه په هغې کښې د تصرف کولو په خپله خوښه قدرت لری.

۲- دویم تعریف : [اَلْقَادِرُ عَلَى اسْتِخْرَاجِ الْاَعْيَانِ مِنَ الْعَدَمِ اِلَى الْوُجُوْدِ]

(الله ته مالك پدے معنیٰ وائی چه قادر دے په راوستو د اعیانو (ذواتو) د عدم نه وجود

ته) (معالم التنزیل د امام بغویؒ)

دا د مالك خپله معنیٰ نهٔ ده بلکه التزامی معنیٰ ده۔

**مناسبت**: نو مخکښې سره ددے آیت یو مناسبت دا دے چه دا دلیل شو د الحمد لله دپاره۔

۲- دویم: ددے مناسبت د رب العالمین سره دے چه الله تاسو ته رحمتونه درکړل نو سوال دا پیدا شو چه ددے نعمتونو کښې به دا بندګان پابند وی که آزاد؟

نو جواب ئے دا دے چه ددے نعمتونو حساب شته، پابندی پکښې ده، ځکه الله مالك یوم الدین دے او د جزاء ورځ شته دے۔

۳- یو بل مناسبت دا هم دے چه اثبات د معاد (آخرت) رحمت دے، ځکه په آخرت کښې به د الله تعالیٰ کامل رحمت او عدل راښکاره کیږی او عدل د الله تعالیٰ عین رحمت دے لکه پدے باندے دلیل قول د الله تعالیٰ دے ﴿كَتَبَ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيْهِ﴾ (انعام: ۱۲)

**سوال**: الله تعالیٰ خو لکه څنګه چه د قیامت د ورځے مالك دے نو دغه شان د ټولو ورځو مالك دے؟ نو تخصیص ئے ولے اُوکړو؟ **جواب**: په دنیا کښې عارضی طور سره ماتحت الاسباب نورو ته هم مجازاً اختیار شته امتحاناً، او په آخرت کښې هیچا ته مجازاً اختیار هم نشته۔ قیامت کښې به داسے زمکه وی چه د هیچا ښپے به پرے نهٔ وی۔

۲- دارنګه تخصیص د یو شی په ذکر سره نفی د ما عدا نهٔ کوی۔

۳- یا عمومی ملکیت د الله تعالیٰ په رب العالمین کښې ذکر شو ځکه د رب یو معنیٰ مالك ده نو مالك العالمین کښې عموم دے او دلته تخصیص د ملکیت اُوشو په قیامت پورے۔ نو دا تخصیص بعد التعمیم دے چه الله د دنیا او آخرت دواړو مالك دے خو د یوم الدین خصوصی مالك دے نو پدے کښې استحضار الآخرة هم غرض دے۔

٤- یوم الدین ئے خاص کړه د وجه د هیبت د دغه ورځے نه۔

۵- تفسیر سراج المنیر (۱/ ۱۸) لیکی: هرکله چه الله تعالیٰ ډیر رحمت خپل ذکر کړو نو په مالك یوم الدین کښې ئے تخویف ورکړو ګویا کښې داسے ئے اُووئیل: [لَا تَغْتَرُّوْا بِذٰلِكَ فَإِنِّيْ مَالِكُ يَوْمِ الدِّيْنِ] د الله په ډیر رحمت دوهوکه نشئ چه د هغه خلاف شروع کړئ ځکه چه الله تعالیٰ مالك د ورځے د جزاء دے سزاء به درکړی۔ آه۔ نو ګویا کښې خوف او رجاء ئے راجمع کړل۔ لیکن دا وجه غوره نهٔ ده۔

**فائده** : دلته بل قراءت کښې مَلِكِ یوم الدین دے، هغه هم متواتر قراءت دے۔

بیا **فرق د مالک او ملک** (بادشاه) په ډیرو طریقو سره دے (۱) مالك عام دے او مِلك خاص دے۔ (۲) غلامان مالك لره نشی معزول کولے په خلاف د مَلِك نه۔

۳- په غلامانو باندے خدمت د مالك واجب دے، په خلاف د مَلِك نه چه د هغه خدمت په رعیت واجب نۀ وی۔ اګرکه اطاعت فی المعروف ئے شته۔

٤- غلام بلا اجازت د مالك نه کار نشی کولے او رعیت د مَلِك د اجازت نه بغیر هم کار کولے شی۔ پدے وجه لفظ د مالك غوره دے په مَلِك۔ لیکن دا فرقونه د انسان په باره کښې دی، الله تعالیٰ مَلِك هم دے او مالك د بندګانو هم دے۔

**فائده** : کلمه د مَلِك په قرآن کریم کښې (۱۴) کرته راغلے ده او مالك (۳) کرته او (مَالِكُوْنَ) یو کرت (۱) سورة یٰس (۳۲) آیت کښې۔

او مَلِك هغه ذات دے [اَلَّذِیْ یَتَصَرَّفُ فِیْ خَلْقِهٖ بِالْاَمْرِ وَالنَّهْیِ] (چه په امر او نهی سره په انسانانو کښې تصرف کوی) او دا خاص دے په سیاست د ناطقینو پورے ددے وجه نه ملك الناس وئیلے شی او مَلِك الاشیاء نشی وئیلے۔ او ملك یوم الدین چه راغلے دے نو د هغے معنیٰ ده (مَلِك فی یوم الدین) یعنی بادشاه دے په ورځ د قیامت کښې۔ (مفردات راغب)

**فائده**: په لفظ د مالك کښې د انسانانو مملوکیت او ذلت او عجز ته اشاره ده او په کلمه د مَلِك کښې د الله تعالیٰ هیبت او عظمت ته اشاره ده نو د قیامت په ورځ به په انسانانو دوه قسمه هیبتونه طاری او جاری وی (۱) یو هیبت د خپلے کمزورئ او مملوکیت۔

او (۲) دویم د الله سبحانه وتعالیٰ د عظمت او ملوکیت۔ دارنګه دنیا کښې که چا د الله رب العالمین دغه مذکوره دواړه خبرے استحضار کړے نو د عبادت په لذت او حلاوت به پوهه شی۔ لکه روستو په لفظ د عبادت کښې رازی۔

**یوم** : لفظ د یوم په قرآن کریم کښې (۳٤۹) کرته استعمال شوید ے۔

## د یوم لفظ معانی

د یوم مختلفے معانی دی :۱- : کله د یوم نه د قیامت ورځ مراد وی یعنی د دنیا آخر سر او د آخرت اول سر او دا ورځ پنځوس زره کاله ده۔ دیته یوم القیامة هم وائی او یوم الدین هم۔ بیا روسته له دے نه یوم الخلود دے (بیا یا په جنت کښې همیش والے دے او یا په جهنم

کښې همیش والے دے۔ اَعَاذَنَا اللّٰہُ مِنۡهَا) دا هم قیامت دے۔ لیکن د پنځوس زره کالو نه روستـه بیا بل قسم فیصلـه ده او د پنځوس زره کاله اُودریدل او حسابونه، عذابونه او غمونـه او دردونه دی د هغے نه روستو په جنت یا جهنم کښې همیشوالے دے چه هغه هم د قیامت حصه ده خو د هغے انتهاء نشته دے اول ئے شته او آخر ئے نشته۔ او دا شروع کیږی د دویمے شپیلئ نه په کوم سره چه به خلق د زمکے نه راوځی۔

۲- یوم کلـه وخت مقرره تـه وائی چه د سهار نه تر ماښام پورے وی چه مونږ ورته ورځ وایو۔ پـه عربئ کښې ورتـه نهار وائی۔ (دا پـه عرف کښې د طلوع الشمس نه تر غروب الشمس پـورے وی او پـه شریعت مطهره کښې د طلوع الفجر الثانی نه تر غروب الشمس پورے ده) (فتح البیان)

۳- دریم ددے اطلاق پـه لږ ساعت او مطلق زمانه او وقت ممتد باندے هم کیږی لکه ﴿ وَمَنۡ یُّوَلِّهِمۡ یَوۡمَئِذٍ دُبُرَهٗ﴾ (انفال : ۱٦) ﴿ اَلَا یَوۡمَ یَاۡتِیۡهِمۡ لَیۡسَ مَصۡرُوۡفًا عَنۡهُمۡ﴾ سورة هود (۸)
دا معنیٰ قرآن کریم کښې هم استعمال ده او په لغت عربی کښې هم۔

## د قیامت د ورځے نومونه

قرآن کریم کښې د قیامت د ورځے ډیر نومونه راغلی دی، تقریباً (۳۲) تـه رسیږی، دا ډیر نـومـونـه ورتـه د هیبـت، عظمت او ثقل د وجه نه ایخودل شویدی۔ بعضې د هغینه دا دی: (۱) یوم الـدین (۲) یوم القیامة (۳) الساعة (٤) الواقعة (۵) الحاقة (٦) القارعة (۷) الطامة الـکبریٰ (۸) الصاخة (۹) یـوم الحسرة (۱۰) یوم التناد (۱۱) یوم التلاق (۱۲) یوماً ثقیلاً (۱۳) یوم الاشهاد (۱٤) یوم مشهود (۱۵) یوم الموعود (۱٦) یوم العرض الاکبر۔
او داسے نـور نـومـونـه هـم شتـه چه دوه ډیرش فقط په قرآن کښې راغلی دی او حدیثونو کښې هم شته۔

**الدین**: دین په معنیٰ د جزاء او حساب سره دے که خیر وی او که شر۔ (فتح البیان)۔

## د دین لفظ معانی

لفظ د دین قرآن کښې (٦۷) کرته راغلے دے په ډیرو معنو سره:

۱- دان یدین پـه معنیٰ د حساب او جزاء سره راغلی لکه (کَمَا تَدِیۡنُ تُدَانُ) او ﴿اِنَّ الدِّیۡنَ لَوَاقِعٌ﴾ [الذاریات: ٦] یُکَذِّبُ بِالدِّیۡنِ (ماعون: ۱) ﴿ وَمَا اَدۡرٰىكَ مَا یَوۡمُ الدِّیۡنِ﴾ (انفطار: ۱٦)

۲- دین بمعنی العقیدة لکه ۔ ﴿لَا إِكْرَاهَ فِي الدِّينِ﴾ ـ سورة البقره (۲۵٦)

۳- الدین بمعنی الشریعة: کوم چه الله تعالیٰ رالیږلے دے یعنی اوامر او نواهی (احکام) او دیته دین ځکه وائی چه پدے بدلے ملاویږی.

﴿إِنَّ الدِّينَ عِنْدَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ﴾ سورة آلعمران (۱۹)

٤- دین په معنیٰ د الغلبة (په دشمن باندے غلبه)

﴿فَلَوْلَا إِنْ كُنْتُمْ غَيْرَ مَدِينِينَ﴾ سورة الواقعة (۸٦) ـ یعنی غیر مغلوبین۔

۵- الدین بمعنی الطاعة۔

﴿وَلَا يَدِينُونَ دِينَ الْحَقِّ﴾ سورة التوبة (۲۹) یعنی [لَا يُطِيعُونَ دِينَ الْحَقِّ] او

﴿وَلَهُ الدِّينُ وَاصِبًا﴾ سورة نحل (٤۲)

٦- الدین بمعنی القانون الملکی: (بادشاهی قانون) ﴿مَا كَانَ لِيَأْخُذَ أَخَاهُ فِي دِينِ الْمَلِكِ﴾ سورة یوسف (۷٦) ۷- الدین بمعنی الحد الشرعی: (حدود شرعیه ۋ ته هم دین وائی) دیته تسمیة الجزء باسم الکل وائی، د دین یوه حصه ده او د دین نوم ورته کیخودل شویدے۔

﴿وَلَا تَأْخُذْكُمْ بِهِمَا رَأْفَةٌ فِي دِينِ اللَّهِ﴾ سورة نور (۲) [أَيْ فِي إِجْرَاءِ حَدِّ اللَّهِ]

۸- الدین بمعنی العبادة۔ لکه ﴿فَاعْبُدِ اللَّهَ مُخْلِصًا لَهُ الدِّينَ أَلَا لِلَّهِ الدِّينُ الْخَالِصُ﴾ سورة زمر (۲) [أَيِ الْعِبَادَةُ الْخَالِصَةُ]۔

۹- الدین بمعنی الدعاء لکه ﴿فَادْعُوا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ﴾ مؤمن (۱۷) آیة۔

دلته ظاهر معنیٰ دا ده: مالك د ورځ د جزاء دے۔ مطلب دا دے چه سزاء او جزاء به په دغه ورځ صرف د الله تعالیٰ وی د بل هیچا به هیڅ اختیار نهٔ وی لکه ﴿الْمُلْكُ يَوْمَئِذٍ لِلَّهِ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ﴾ (الحج: ۵٦) دارنګه فرمائی: ﴿لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ لِلَّهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ﴾ (المؤمن: ۱٦)

نو ځکه مؤمن له د الله تعالیٰ رضا ګټل او د هغه حمدونه وئیل ډیر ضروری شو۔

۲- دیکښې بعیده معنیٰ دا هم ده چه دین دلته په معنیٰ شریعت شی او عبارت به بناء شی په حذف د فعل باندے۔ اصل کښې داسے دے: [مَالِكُ يَوْمِ يُجَازَى بِالدِّينِ] (اختیار مند د هغه ورځے دے چه خلقو ته به په دین او شریعت باندے جزاء او سزاء ورکولے شی)

دا معنیٰ جائز ده لیکن تقدیرات پکښې زیات دی. لهذا بعیده ده۔ او ددے او د مخکنی معنے حاصل مطلب یو راوځی۔

**فائده**: تردے ځائے پورے د الله تعالیٰ ښکاره پنځه نومونه ذکر شو۔

**حکمة** : د پنځه نو مونو د خاص کولو ۱- یو حکمت دا دے : حافظ ابن القیمؒ په (مدارج السالکین) کښې فرمائی : دا پنځه صفتونه ئے ځکه خاص کړیدی چه دا د الله تعالیٰ د ټولو صفاتو مرجع او خلاصه ده. د الله تعالیٰ بعضے صفات د اُلوهیت دی نو دا داخل دی په لفظ د (الله) کښې. او صفات د تربیت، تدبیر، تصرف او قدرت داخل دی په کلمه د (رب) کښې.

او صفات جمالیه (د احسان، سخاوت، رحمت او شفقت) راجع دی (رحمن او رحیم) ته. او صفات جلالیه لکه (القهار، الجبار، ذوالجلال، العظیم، الجلیل، الکبیر المتعالی، المنتقم، الضار، الهادی المعز المذل) دیته په مالك یوم الدین کښې اشاره ده او دا د قرآن کریم کمال او جامعیت دے. چه په لږو کلماتو کښې ډیرو فائده مندو علومو ته اشاره کوی.

۲- خطیب شربینیؒ لیکلی دی چه د پنځه نومونو د تخصیص سبب دا دے چه ګویا کښې الله تعالیٰ اُوفرمایل : اے بنده ! ما ته اول کښې پیدا کړے نو زهٔ ستا الله یم، بیا مے د نعمتونو په موجودولو ستا تربیت اُوکړو، نو زهٔ رب یم، بیا ته عصیان (ګناه) کوے او ما دربانديے پرده اچولے ده، نو زهٔ رحمٰن یم، بیا مے تا له د توبے توفیق درکړو نو زه رحیم یم، بیا تا ته جزاء رسول هم ضروری دی نو زهٔ مالك یوم الدین یم. (تفسیر السراج المنیر ۱/۱۷)

﴿اِیَّاكَ نَعْبُدُ وَاِیَّاكَ نَسْتَعِیْنُ﴾

پدے آیت کښې نتیجه د دعوے ده، چه دعویٰ سره د دلیلونو نه ثابته شوه یعنی حمدونه او د کمال ښکلے صفتونه الله تعالیٰ لره ثابت دی په دغه دلائلو سره نو نتیجه دا شوه چه د هغهٔ عبادت به کولے شی او د هغهٔ نه به مدد طلب کولے شی. او په نتیجه کښې ئے عبادت ذکر کړو ځکه چه دا د مؤمن اُوچته مرتبه ده. قال الشاعر :

لَا تَدْعُنِیْ اِلَّا بِیَا عَبْدَهَا    فَاِنَّهٗ اَشْرَفُ اَسْمَائِنَا

**د عبادت لغوی معنیٰ** : د عبادت لغوی معنیٰ ده ذلت او خشوع او خضوع. لکه طریق معبد. یعنی هغه لاره چه مذلل ده.

**د عبادت تعریف** : په شریعت اسلامیه کښې عبادت :

۱- اَلطَّاعَةُ مَعَ غَایَةِ الْخُضُوْعِ وَالتَّذَلُّلِ عَلٰی وَفْقِ مَا کُلِّفَ بِهٖ مَعَ اعْتِقَادِ اُلُوْهِیَّةِ الْمَعْبُوْدِ

(طاعت کول دی سره د ډیرے عاجزئ نه، موافق د تکلیف شرعی سره، سره د عقیدے د اُلوهیت د معبود نه) نو کوم اطاعت چه بغیر د خضوع او تذلل نه وی نو هغه عبادت نهٔ

دے لکه طاعت د رسول یا د امیر یا د امام بغیر د معصیت نه۔
دارنګه خضوع او تذلل بغیر د طاعت نه عبادت نهٔ دے لکه اصحاب الباطن او متصوفه چه خضوع الی الله خو پکښې شته لیکن طاعت د هغه نهٔ کوی، دارنګه طاعت بغیر د موافقت د قرآن او سنت نه عبادت نهٔ دے، دارنګه طاعت او خضوع بغیر د عقیدے د الوهیت نه هم عبادت نهٔ دے۔ (احسن الکلام)
(۲) هِيَ بَذْلُ الْوُسْعِ فِيْ طَاعَةِ اللهِ تَعَالٰى مَعَ مُرَاقَبَةِ عَظَمَتِهٖ وَخَوْفِهٖ۔ [روح البیان]
(د الله په طاعت کښې خپل کوشش لګول سره د لحاظ د عظمت او خوف د هغه نه)
۳- دارنګه عبادت هر هغهٔ عمل ته وائی چه په هغے کښې د کمالِ محبت سره انتهائی درجه خشوع او خضوع او خوف وی۔ (ابن کثیر ۱/۱۳٤)
یعنی د کوم ذات سره چه محبت هم وی او د هغهٔ مافوق الاسباب طاقت مخے ته د خپلے عاجزئ او کمزورئ اظهار هم وی او د اسباب او مافوق الاسباب ذرائعو سره د هغه د راتیولو نه یره هم وی دیته عبادت وائی۔
او دا په اصل کښې هغه ذلت دے چه انسان عزتمند کوی۔ ذلتونه په دوه قسمه دی۔ الله تعالیٰ ته چه ډیے ځان ذلیله کړو، عزتمند به شے، او چه الله تعالیٰ باندے ډیے ځان عزتمند اوګنړلو، او عبادت ډیے ورله پریخودو، نو الله سبحانه به ډیے ذلیله کړی، لکه دا دواړه خبرے قرآن کریم کښې راغلی دی﴿وَمَنْ يُّهِنِ اللهُ فَمَالَهٗ مِنْ مُّكْرِمٍ﴾ (الحج: ۱۸)
﴿اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمٰنُ وُدًّا﴾ (مریم: ۹٦)
٤- دارنګه د عبادت معنیٰ ده د چا د رضا دپاره د انتهائی تذلل او عاجزئ او د کمالِ خشوع اظهار۔ (احسن البیان)
۵- د خوف، رجاء او محبت جمع کولو ته عبادت وائی۔ چه ته د الله تعالیٰ د محبت د وجے نه، د هغه د ویرے د وجه نه، د هغه نه د امید د وجه نه عمل کوے نو دا عبادت دے، نو کله چه ته عمل کوے د رواج، عادت یا د مخ ملازے د وجه نه، د الله تعالیٰ محبت پکښې غرض نهٔ وی نو دا عبادت نهٔ دے لکه ډیر داسے سپین ګیری وی چه مسجدونو ته ډیر ځی راځی، تهجد هم کوی، ذکرونه هم کوی، لیکن د هغه په عبادت کښې د ذرے هومره اثر نهٔ وی، نهٔ ئے په مخ کښې اثر وی، نهٔ ئے په عمل کښې اثر وی، ځکه هغه عمل د عادت په بناء کوی او دا درے مادے د عبادت پکښې نهٔ وی۔

حافظ ابن قیمؒ په (مدارج السالکین) کښې فرمائي : عبادت په دوه مادو مشتمل دے، که هغه د الله تعالیٰ دپاره چا کښې راغلي نو د الله تعالیٰ عبادت دے، او که د غیر دپاره راغلي نو د غیر عبادت دے، چه هغه ډیره مینه او ډیر محبت سره د ډیر ذلت نه. نو که یو سړے په ډیره عاجزئ عبادت کوي لیکن محبت د الله تعالیٰ ئې په زړه کښې نهٔ وي نو دا عبادت نهٔ دے او که ډیر محبت وي او عاجزي او ذلت نهٔ وي، چه کله غوړونو کښې ګوتے وهي او کله ګیره کښې او یا داسے ولاړ وي لکه یو بدمعاش. نو دا عبادت نهٔ دے، بعض خلق په بدمعاشۍ مونځ کوي.

بیا فرمائي : ددے سره دوه نور اصول دي چه هغه د سر په شان مثال لري : اول د الله تعالیٰ دپاره اخلاص دے چه شرك او ریاء پکښې نهٔ وي. او دویم په اتباع د سنت د رسول الله ﷺ کښې وي.

**نو** انسانان څلور قسمه شو: ۱- یو هغه چه نهٔ پکښې اخلاص شته او نهٔ پکښې د رسول الله ﷺ تابعداري. نو دا خو ناکاره مخلوق دے. ۲- دویم : ددے برعکس دي چه هغوی مخلصین هم دي او متبعین هم. دا په ټول عالَم کښې بهترین خلق دي.

۳- دریم جماعت د انسانانو هغه دے چه اخلاص پکښې شته خو د نبي علیه السلام تابعداري پکښې نشته، دا مبتدعین دي. د دوی اعمال برباد دي.

٤- څلورم : متبعین د سنت دي خو اخلاص پکښې نشته، عملونه د پیسو او د دنیا دپاره کوي، دا عملونه ئې برباد دي.

**فائده** : د عبادت حقیقت، ذلت او محبت دے نو څکه د الله تعالیٰ محبت لوئي عبادت دے او الله تعالیٰ ته ځان ذلیل کول لویه بندګي ده، دا وجه ده چه د الله تعالیٰ دپاره قرباني د جهاد ورکول، او بیت الله ته تلل، قرآن کریم سره تعلق ساتل، د الله تعالیٰ د نومونو او صفتونو سره مینه کول، دا لوئي عملونه شریعت کښې حسابیږي. دارنګه سجده، رکوع، خشوع، تواضع وغیره الله تعالیٰ ته ډیر محبوب دي څکه ذلت په کښې ډیر وي. ددے برعکس شریعت کښې د هغه څیزونو نه منع کیږي چه د الله تعالیٰ محبت کموي لکه حب الجاه، حب الدنیا، محبة النساء والاولاد والأموال، زړه په لغویاتو، مُلهیاتو مشغوله کول. دارنګه کوم کارونه چه د تذلل خلاف دي د هغے نه منع راغلي ده لکه (۱) إِسْبَالُ الْإِزَارِ وَالْقَمِيْصِ وَالْعِمَامَةِ (قمیص، پرتوګ پټکے د ګیټو نه خکته کول) (۲) د سرو او سپینو په لوښو کښې خوراك څکاك کول، (۳) اللباس الفاخر (د فخر والا لباس اچول)

حدیث کښې دی [مَنْ تَرَكَ لُبْسَ ثَوْبِ جَمَالٍ تَوَاضُعًا لِلّٰهِ تَعَالٰی دَعَاهُ اللّٰهُ تعالٰی عَلٰی رُؤُوْسِ الْخَلَائِقِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ حَتّٰی يُخَيِّرَهُ فِيْ اَیِّ حُلَلِ الْاِيْمَانِ شَآءَ] (ابوداود: ۴۷۸۰ وصحیح الترغیب [۲۰۷۲] بسند حسن)۔

(څوك چه ښائسته جامه اغوستل الله تعالیٰ ته د عاجزئ په طور پریږدی، الله تعالیٰ به ئے د قیامت په ورځ د ټولو خلقو مخامخ راوبلی او اختیار به ورکړی چه د ایمان کومے جامے ئے خوښے وی وادیے غوندی۔ (٤) [اَلْاَكْلُ مُتَّكِئًا] (په تکیه سره خوراك کول۔ حدیث کښې دی: [اَجْلِسُ كَمَا يَجْلِسُ الْعَبْدُ وَآكُلُ كَمَا يَاْكُلُ الْعَبْدُ فَاِنَّمَا اَنَا عَبْدٌ. رَوَاهُ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ، الصحیحة: ۵۴۴]

(زه د غلام په شان کینم او د غلام په شان خوراك کوم ځکه چه زهٔ د الله تعالیٰ بنده او غلام یم)۔

(۵) اَلْمُطَيْطَاءُ (په ناز او نخرو باندے کوږ مزل کول)۔

(۶) د (اَنَا) (لِيْ) (عِنْدِيْ) کلمات وئیلو نه منع راغلے ده۔

(۷) د درنده ګانو په څرمنو باندے ناسته پاسته کول۔

(۸) اَلرُّكُوْبُ عَلٰی مِيْثَرَةِ الْاُرْجُوَانِ (په سره وریښمنی ګدئ باندے سوریدل) ۔

(۹) د سرو دپاره وریښم او سره زر استعمالول۔

(۱۰) طُوْلُ الْجُمَّه (اوږده ویښته پریخودل)۔

(۱۱) - اَنْ لَّا يَطَاُ عَقِبَهٗ رَجُلَانِ (د یو چا پسے دوه سړی (یا ډیر) روستو روانیدل)۔

دارنګه نور ډیر کارونه شته نو ددے نه منع ځکه راغلے ده چه دا رب العالمین ته د عبودیة او تذلل خلاف دی۔ دا مهمه فائده ده، پدے سره په انسان ډیر باریکات راکولاویږی، دا وجه ده چه رسول الله ﷺ سید الخاشعین وو، او سید المحبین وو نو ځکه سید العابدین شو۔ (صلی الله علیه وآله وصحبه وسلم)

**فائده**: ذلت د بنده خپل رب ته په یو څو قسمه دے (۱) ذِلَّةُ الْمَخْلُوْقِ لِلْخَالِقِ (د مخلوق ذلت خالق ته) (۲) ذِلَّةُ الْعَبْدِ لِسَيِّدِهٖ وَمَوْلَاهُ](د غلام ذلت خپل مالك او مولیٰ ته) (۳) ذِلَّةُ مَنْ هُوَ اَحْوَجُ شَيْءٍ اِلَی اللّٰهِ تَعَالٰی ـ(ذلت د هغه چا چه هغه ډیر محتاج وی الله تعالیٰ ته) (٤) ذِلَّةُ الْمُحِبِّ لِمَحْبُوْبِهٖ وَهُوَ اَعْلَاهَا ـ(د محب ذلت خپل محبوب ته او دا په کښې اعلیٰ ترین ذلت دے۔ دا ټول ذلتونه الله تعالیٰ ته کول پکار دی او احساس پکار دے چه صحیح عابد شی لیکن انسانان ددے نه غافله دی الا من شاء الله تعالیٰ۔

## د عبادت فائده:

۱- بعض خلق وائي : چه عبادت محض د الله تعالىٰ امر دے او مونږ ئے په ځائے کوو، ددے وجه نه دے ته تکالیف شرعیه وائي لکه دا د جبریه ؤ عقیده ده. او دا خلق د الله تعالىٰ عبادت په مزه نهٔ پوهیږی بلکه دا یو بوج گنړی چه د خپلو اُوګو نه ئے گوزاری.

۲- بعض خلق ئے د ریاضت دپاره کوی فقط او وائي چه پدے سره نفس د بهیمیت او سَبُعِیت نه اُوځی او د عقول مجرده او نفوس قدسیه ؤ سره مشابه کیږی. او په عبادت سره مستعد کیږی دپاره د نازلیدلو د علومو او معارفو په دهٔ باندے. که داسے نهٔ وی نو نفس به د سباع (درنده گانو) او بهائمو (چارپیانو) په شان وی.

۳- بعض (قدریه) خلق وائي : عبادت ثمن او قیمت او عوض دے د اجر او ثواب نو بنده چه عبادت کوی نو په الله تعالىٰ باندے واجب ده چه اجر به ورکوی، او جنت بدله د عمل او عبادت ده. نو بندگان عبادت د ثواب او جنت دپاره کوی. یعنی د الله تعالىٰ مشیئت پکښې نهٔ مني بلکه وائي چه بنده عبادت په خپل واک کوی.

٤- او د مسلمانانو غرض به په عبادت کښې دا وی چه یو دا حکم د الله تعالىٰ دے او د بندگانو تخلیق صرف د عبادت دپاره شوید ے، دویم پدے الله تعالىٰ رضا کول دی. دریم : د الله تعالىٰ تعظیم دے او د هغه حق دے په بندگانو نو ددے ادا کول فریضه ده په بندگانو. څلورم دا شکر دے د هغه د نعمتونو. نو په الله تعالىٰ باندے دا لازم نهٔ ده چه ضرور به بنده ته بدله ورکوی ځکه چه دا د بنده ذمه واری ده او د الله تعالىٰ حق دے په بنده باندے نو الله تعالىٰ اختیار مند دے که اجر ورکوی او که نهٔ ئے ورکوی، لیکن که الله تعالىٰ اجر ورکوی نو دا به محض د هغه احسان او تَفَضُّل وی ځکه چه بنده کما حقهٗ د الله تعالىٰ حق نشی ادا کولے او د هغه د نعمتونو پوره شکر نشی ادا کولے. (مدارج السالکین باختصار یسیر ۱/ ۹۱)

(**ایاک**): پدے آیت کښې عبادت او استعانت دواړه د الله تعالىٰ دپاره خاص کړے شویدی او د الله تعالىٰ نه علاوه د تمام مخلوقاتو نه نفی شویده، په عربی ژبه کښې که مفعول په فعل باندے مقدم کړے شی نو د حصر او تخصیص معنىٰ ورکوی. یعنی خاص ستا عبادت کوو، نهٔ د بل چا. بل په لفظ د ایاك کښې هم معنىٰ د خاص والی شته دا وجه ده سیدنا ابن عباس ﷺ ددے معنىٰ کوی : [نَعْبُدُكَ وَلَا نَعْبُدُ غَيْرَكَ] (خاص ستا عبادت کوو، ستا نه علاوه د

بل چا عبادت نهٔ کوو۔

**فائده:** لفظ د اياك مقدم شو دپاره د تعظیم د الله تعالیٰ۔ ۲- یا د تخصیص دپاره۔

۳- یا د تناسق دپاره۔ ځکه که اياك مؤخر شي او نَعْبُدُكَ وَنَسْتَعِيْنُكَ اُووئيل شي نو د کلماتو ترتیب خرابیږی۔

٤- وجه : دا تقدیم د هغه شي دے چه هغه په وجود کښ مقدم دے۔

٥- یا پدے وجه چه د مؤمن شوق وی د مخاطبے او خبرو کولو د هغه ذات سره چه د هغه دغه صفات دی په اول وهلت کښ لکه څنګه چه د محبینو دا عادت دے چه دوی خپلو محبوبینو ته په اول د ملاقات کښ متوجه کیږی بلکه هغوی طرف ته جلتی کوی۔

٦- دارنګه پدے کښ تنبیه ده چه عابد له پکار دی چه د هغه نظر اولاً په معبود بالذات لګی بیا په عبادت۔ پدے وجه چه دا یو شریف نسبت دے دهٔ ته او ددهٔ او د الله تعالیٰ ترمینځ یو تعلق دے۔ (السراج المنیر ۱/٥)

(**بلاغة**) په لفظ د اياك کښ ترقی ده د بُرهان نه عَیَان ته (یعنی د دلیل نه مشاهدے ته) یا د غیبت نه شهود ته او د معقول نه محسوس ته۔ ۲- دارنګه د عربو عادت دے چه په خطاب کښ تفنن (قسا قسم طریقو سره عبارت راوړل) کوی دے دپاره چه کلام کښ تحسین پیدا کړی او سامع ته نشاط (تازګی) حاصل شي۔

(**قاعدة** ) په التفات کښ چه د غائب نه دے مخاطب ته دلیل د محبت دے او التفات د مخاطب نه غائب ته دلیل د مَقت وی لکه پدے قول د الله تعالیٰ کښ ﴿ بِئْسَ لِلظَّالِمِيْنَ بَدَلًا﴾ الکهف : ٥٠]۔

## فائده: د عبادت معانی :

کلمه د عبادت په قرآن کریم کښ (۲۷٥) کرته راغلے ده او مختلفے معانی ئے دی : (۱) المملوکیة ۔ سورة مومنون (٤٧) کښ دی، د فرعون نه حکایت کوی (وقومهما لنا عابدون)(آیا مونږ به په موسی او هارون ایمان راوړو او قوم ئے زمونږ غلامان دی) نو عابدون معنیٰ دلته د مملوك ده۔

۲- الخشوع والذلة۔ ﴿ اَنْ عَبَّدْتَّ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ﴾ سورة الشعراء (۲۲) یعنی (تا بنی اسرائیل ذلیله کړی دی)۔ او ددے نه دے (طَرِيْقٌ مُعَبَّدٌ اَیْ مُذَلَّلٌ)۔

۳- بمعنی الطاعة : ﴿ وَّاَنِ اعْبُدُوْنِيْ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ﴾ سورة یس (٦۱) ﴿ اَلَمْ اَعْهَدْ اِلَيْكُمْ یٰا

يَبَنِيْ آدَمَ اَنْ لَا تَعْبُدُوا الشَّيْطَانَ) سورة يس (٦٠) (اَیْ لَا تُطِيعُوا الشَّيْطَانَ) ۔ ٤- بمعنى النفرة والغضب راځي۔ (عَبِدَ ای غَضِبَ وَنَفَرَ)۔ (غصه شو او نفرت ئې اُوکړو) سورة زخرف (۸۱) آیت کښې دا معنی راغلې ده بنا په یو تفسیر ﴿قُلْ اِنْ كَانَ لِلرَّحْمٰنِ وَلَدٌ فَاَنَا اَوَّلُ الْعَابِدِيْنَ﴾

٥- عبادة په معنی د حَبْس : حبس بندولو ته وائی، عبادت ته هم عبادت ځکه وائی چه دا سړے بندوی د ګناهونو نه۔ يو عبادت کښې چه مصروف شوے بل کار نشے کولے لکه عرب وائی (مَاعَبَدَكَ) يعنی ما حَبَسَكَ (څه شی بند کړے وے)۔

٦- العبادة التكوينيه۔ (تخليقی طور سره د الله تعالیٰ تابع او ذليله کيدل) لکه ﴿اِلَّا آتِي الرَّحْمٰنِ عَبْدًا﴾ سورة مريم (٩٣) (ټول الله تعالیٰ ته راتلونکی دی غلامان تکوينا)۔

٧- په معنیٰ د اطاعة الله۔ د الله طاعت دا اصلی عبادت دے لکه ﴿وَعِبَادُ الرَّحْمٰنِ﴾ سورة فرقان (٦٣) : (مطيع بندګان)۔

٨- عبادة په معنیٰ د عبادة الدنيا سره چه سړے د دنيا داسے خبره اُومنی چه د روپئ سره اوړی راوړی۔ حديث کښې راځی ۔ [تَعِسَ عَبْدُ الدِّيْنَارِ وَعَبْدُ الدِّرْهَمِ وَعَبْدُ الْخَمِيْصَةِ، اِنْ اُعْطِيَ رَضِيَ وَاِنْ لَّمْ يُعْطَ سَخِطَ] (هلاك دِے شی د روپئ او اشرفئ بنده او د شرئ بنده، که څوك ئې ورکوی خوشحاليږی او که نه ئې ورکوی نو خفه وی نو دا دين پسے روان نه دے دولت پسے روان دے [تَعِسَ وَانْتَكَسَ وَاِذَا شِيْكَ فَلَا انْتُقِشَ] [رواه البخاری] ...... (هلاك دِے شی او سرکوزے دِے شی او چه خپه کښې ئې ازغی لاړ شی نو الله دِے ئې ترے اُونهٔ باسی) ۔

نبی ﷺ ورته بنيرے اُوکړے او دا خوشے مرض دے چه سړے دنيا پرست شی، ډير کرته سړے دين پريږدی د پيسو دپاره يهودی، نصرانی او قاديانی شی۔ نو دا د عبادت مختلفې معانی دی۔

**فائده** : بيا عبوديت دوه قسمه دے : ١- عبوديت تکوينيه۔ پدے معنیٰ باندے ټول مخلوق د الله تعالیٰ عباد دی لکه سورة مريم (٩٣) کښې دی۔ مخکښې تير شو۔

٢- دويم عبادت شرعيه کوم عبادت باندے چه حکم شويدے، هغے ته عبوديت شرعيه وائی او دا مقصودی عبادت دے ﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْاِنْسَ اِلَّا لِيَعْبُدُوْنِ﴾ (ذاريات:٥٦)

وَقَالَ تَعَالٰی ﴿وَعِبَادُ الرَّحْمٰنِ الَّذِيْنَ يَمْشُوْنَ عَلَى الْاَرْضِ هَوْنًا﴾ (فرقان :٦٣) الآية۔

**دلته کومه معنی مراد ده** ؟ دلته ئې يوه معنیٰ ده ذلت لکه عرب وائی (طَرِيْقٌ مُعَبَّدٌ) اَیْ مُذَلَّلٌ۔ نو عبد ته عبد ولے وائی ؟ ځکه چه دا به الله تعالیٰ ته ذليله وی۔

دویم د لغت په اعتبار سره ترے د الله تعالیٰ طاعت هم اخستل کیږی- لیکن دلته شرعی معنیٰ مراد ده چه د الله تعالیٰ تولے بندګیانے په ذلت او محبت سره کول دی-

**حکمة**: نعبد او نستعین ئے د جمع صیغه راوړه- ددے حکمتونه دا دی (۱) اول: خکه سورت فاتحه کښې د تول اُمت د فطرت تعبیر دے او د هغوی د زړونو او خولے آواز دے- او خطاب دے د الله تعالیٰ تولو بندګانو ته نو جمعیت کښې اشاره ده چه تول دا آواز اُوکړی-

۲- دویم حکمة دا دے چه قاری د ځان سره ملائک او حاضرین د مانځه هم ملګری کړیدی- اشاره ده چه تول مخلوق الله سبحانه وتعالیٰ ته محتاج دے-

۳- یا صیغه د جمع ئے ځکه راوړه چه ځان او تول مؤمنان موحدین ئے د ځان سره په دعاء کښې ملګری کړل شاید ددهٔ دعاء د هغوی د برکت نهٔ قبوله شی-

٤- په محاوره کښې کله صیغه د جمع د تواضع دپاره وی او په مفرد کښې أنانیت وی-

٥- وجه: د جمع صیغه چه مونږ استعمالوو نو اتباعاً للوحی (د وجه د تابعداریٔ د وحی نه)، کوم لفظ چه څنګه نازل شویدے هغه شان به ئے وائی لکه دا خبره په (قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ) کښې یو روایت کښې راغلے ده چه مونږ چه (قل) ورسره وایو نو وجه دا ده چه په وحی کښې همداسے راغلے ده او که دا پکښې نهٔ وایو نو په وحی کښې تغییر راځی-

بیا دا جمله لفظاً جمله خبریه ده او معنیٔ انشائیه ده- دلته (قُوْلُوْا) پټ دے یعنی تاسو وایئ: چه خاص ستا عبادت کوو- لیکن دا ئے رانښکاره نکړو ځکه چه دا آواز فطری دے، امر ته پکښې حاجت نشته

**فائده**: دلته ئے د عبادة لفظ په نتیجه کښې ولے راوړو؟ بل شے ئے ولے رانهٔ وړو؟ ددے حکمت دا دے چه [اَلْعِبَادَةُ اَشْرَفُ مَرَاتِبِ الْاِنْسَانِ] اُوچته مرتبه دا ده چه سړے عابد جوړ شی ځکه چه ددے نسبت الله تعالیٰ ته دے لکه دا په قرآن کریم کښې هم دی او په امثال العرب کښې هم دی لکه یو شاعر د خپلے محبوبے په باره کښې وائی [لَا تَدْعُنِیْ اِلَّا بِیَا عَبْدَهَا فَاِنَّهٗ اَشْرَفُ اَسْمَائِنَا] (ما ته آواز مهٔ کوه مګر د فلانئ: د غلام په نامه ځکه زما په نومونو کښې دا غوره نوم دے)- بعض شاعران لیونی وی نو دے خانے کښې ئے خپل لیونتوب رانښکاره کړیدے- په قرآن کریم کښې هم چه الله تعالیٰ کله د خپل نبی عزتمند مقام ذکر کوی نو هلته عبد لفظ راوړی لکه سورة بقره (۲۳) آیت کښې راځی ﴿وَاِنْ كُنْتُمْ فِیْ رَیْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلٰی عَبْدِنَا﴾ سورة بنی اسرائیل (۱) کښې وائی: ﴿سُبْحَانَ الَّذِیْٓ اَسْرٰی بِعَبْدِهٖ﴾ او ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ

الَّذِیْ اَنْزَلَ عَلٰی عَبْدِهِ الْکِتَابَ﴾ سورة کهف (۱) او ﴿وَاَنَّهٗ لَمَّا قَامَ عَبْدُ اللهِ یَدْعُوْهُ﴾ سورة الجن (۱۹) ځکه چه دا اشرف نوم دے۔ نبی ﷺ هم فرمائی : [قُوْلُوْا عَبْدُ اللهِ وَرَسُوْلُهٗ] (تاسو زما په باره کښې داسے وایئ چه دا د الله بنده او رسول دے) [اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ] هر ځائے کښې د عزت په مقام کښې لفظ د عبد راوړی۔ نو دا اُوچته مرتبه ده۔

## د عبادت مراتب او اقسام

د عبادت ډیر اقسام دی چا چه هغه پوره کړل نو د الله تعالیٰ صحیح بنده به جوړ شی :
**اول عبادة** دوه قسمه دے ۱- عبادة عامه ۲- عبادة خاصه. عبادة عامه څه ته وائی ؟ [عُبُوْدِیَّةُ اَهْلِ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ بَرِّهِمْ وفَاجِرِهِمْ، مُؤْمِنِهِمْ وَکَافِرِهِمْ وَهِیَ عُبُوْدِیَّةُ الْقَهْرِ وَالْمِلْکِ] د الله تعالیٰ عبادت چه د زمکے او آسمان والا، عام خلق ئے کوی، که نیکان دی، که بدان، که مؤمنان دی، که کافر او دا عبادة د زور او اختیار دے یعنی ټول د الله د زور لاندے دی چرته تړے تختیدے نشی او د هغه په اختیار کښې دی)۔ لکه دا سورة مریم (۸۸) آیت کښې دی : ﴿اِنْ کُلُّ مَنْ فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اِلَّا آتِی الرَّحْمٰنِ عَبْدًا﴾ (ټول د زمکو او آسمانونو والا الله تعالیٰ ته عاجز دی، ذلیله او تابع دی په تکوینی امورو کښې)۔ دلته عبادة نه مونځ روژه نۀ ده مراد بلکه د الله تعالیٰ لازمی کیدونکی فیصلو ته غاړه ایخودل مراد دی۔ دے عبادة کښې فائده نشته ځکه دا عبادت مجبوراً دے او مجبوراً عبادت کمال نۀ دے۔
۲- **دویم العبودیة الخاصة** : [وَهِیَ عُبُوْدِیَّةُ الطَّاعَةِ وَالْمَحَبَّةِ وَاتِّبَاعِ الْاَوَامِرِ] دا د الله تعالیٰ د طاعت بندګی ده، د هغه خبره منل، هغه سره محبت ساتل او د هغه د حکمونو تابع کیدل۔ او دا کمال دے لکه سورة زخرف (۶۸) آیت کښې دی : ﴿یَا عِبَادِ لَا خَوْفٌ عَلَیْکُمُ الْیَوْمَ وَلَا اَنْتُمْ تَحْزَنُوْنَ﴾ (اے زما بندګانو (چه تاسو زما اطاعت کړیدے ما سره مو مینه کړیده او زما امر مو منلے دے) په تاسو به نن ویره نۀ وی او نۀ به غمجن شئ)۔ دارنګه سورة حجر (۳۹) آیت کښې دا معنیٰ ده ﴿اِنَّ عِبَادِیْ لَیْسَ لَکَ عَلَیْهِمْ سُلْطَانٌ﴾ (زما په هغه بندګانو چه ما سره مینه لری زما بندګی کوی په هغوی د شیطان زور نشته)۔ دا اصلی عبادت دے، پدے سړے عزتمند کیږی او دا د شرف سبب دے۔ اُوس دے عبادت کښې انواع او اقسام دی، پدے باندے هم ځان پوهه کول پکار دی چه پدے سره مونږ ځان مقصد ته اُورسوو۔

### اقسام العبادة الخاصة :

دعبادت خاصه بیا دوه مرتبې دي یو علمیه او دویم عملیه، هر عبادت کښې دوه مرتبې دي یو علمي مرتبه او بله عملي. بیا مرتبه علمیه دوه نوعې او درجې لري.

(۱) اول اَلْعِلْمُ بِاللّٰهِ (په الله تعالیٰ باندې علم راوستل).

۲- دویم اَلْعِلْمُ بِدِیْنِهٖ (د هغه په دین باندې علم راوستل).

بیا د علم بالله پنځه اقسام دي: ۱- اول اَلْعِلْمُ بِذَاتِهٖ تَعَالٰی. (د الله تعالیٰ ذات پیژندل د قرآن حدیث مطابق). ۲- اَلْعِلْمُ بِصِفَاتِهٖ (د الله تعالیٰ په صفاتو علم، چه هغه بې شماره دي، قرآن او حدیث کښې ذکر دي، علم، قدرت، شفقت، رحم وغیره وغیره). ۳- اَلْعِلْمُ بِاَفْعَالِهٖ (د الله تعالیٰ افعال پیژندل). ٤- اَلْعِلْمُ بِاَسْمَائِهٖ (د الله تعالیٰ نومونه پیژندل).

٥- تَنْزِیْهُهٗ عَمَّا لَا یَلِیْقُ بِهٖ) ( الله تعالیٰ د هغه څه نه پاك ګنړل چه د الله تعالیٰ سره مناسب نهٔ وي، لکه شریك نه، عیب نه، مددګارملګری نه، غفلت نه، خوب نه، عاجزئ نه، ستړي والی نه وغیره وغیره.

علم بدین اللّٰه دا دوه قسمه دي: ۱- علم بِالدِّیْنِ الشَّرْعِيِّ وَهُوَ الصِّرَاطُ الْمُسْتَقِیْمُ

(دا قرآن او حدیث طاعات، عبادات مونځونه روژې زکاتونه پیژندل دیته علم شرعي وائي او ددې پیژندل ځانله پکار دي چه هر حکم د الله تعالیٰ اُوپیژنې. د مانځه، روژو او زکاتونو او حجونو او جهادونو او امر بالمعروف، ذکر اذکار او قرآن او حدیث علم داټول دین شرعي دې.

۲- دویم (دِیْنُهُ الْجَزَائِيُّ الْمُتَضَمِّنُ لِثَوَابِهٖ وَعِقَابِهٖ) (دین جزائي د الله تعالیٰ پیژندل چه ددې نه مراد د آخرت ورځ ده په هغې کښې به ثواب او عقاب وي. ددې وجه نه تاسو به په قرآن او حدیث کښې د قیامت احوال ډیر اُورئ، ددې پیژندل هم د الله تعالیٰ بندګي ده.

او عملي مرتبه کښې بیا دوه مرتبې دي: ۱- اصحاب الیمین. ۲- دویم سابقین.

۱- مرتبه د اصحاب الیمین: دا هغه خلق دي چه فرائض په پابندئ سره کوي او د محرماتو نه ځان ساتي، مباحاتو کښې واقع وي، او کله کله مکروهاتو کښې هم واقع کیږي او بعض مستحبات هم ترې پاتې کیږي. دا به الله تعالیٰ جنت ته بوځي خو مرتبه ئې کمه ده، دا هغه خلق دي چه سهار پاځي مونځ اُوکړي، بیا خپل کار ته حاضریږي، ټول فرائض په پابندئ سره کوي. د ډیرو مستحباتو پابند وي. لکه ددې تفصیل په (الفوائد في تزکیة النفوس ۱ / ۳۱۲) کښې اُوګوره.

۲- دويمه مرتبه د سابقينو ده: چه د ټولو فرائضو او واجباتو پابندي کوي او حرام او مکروه شيان پريږدي او کوم شے چه آخرت کښې فائده نۀ ورکوي، هغے کښې بے رغبتي کوي نو د ډيرو مباحاتو نه هم ځان ساتي او د هغه څه نه چه د ضرر ويره ئے وي۔ د هغے نه هم ځان ساتي، ورسره دوی کښې باطني اعمال ټول موجود وي، توکل، صبر، يقين، محبت، رضا، شکر وغيره۔ دارنگه زړونه ئے د الله تعالیٰ د محبت نه ډير ډك دي، د الله تعالیٰ نه علاوه د دوی بل هيڅ همت نۀ وي۔ دا ډيره اُوچته مرتبه ده۔ دے ته د ځان رسولو کوشش پکار دے۔ دا اقسام او مراتب په بدائع التفسير (۲۲۳/۱) کښې تفصيلاً ذکر دي، هغے ته رجوع اُوکړئ۔

## قواعد العبادة : د عبادة پنځلس قاعدے :

شيخ الاسلام فرمائي : [رَحَى الْعُبُوْدِيَّةِ تَدُوْرُ عَلٰى خَمْسَ عَشْرَةَ قَاعِدَةً] (يعني د عبادت پنځلس قاعدے دي چه په هغے باندے عبادتونه گرځي راګرځي) ۔ [فَإِنَّ الْعِبَادَةَ إِمَّا أَنْ تَكُوْنَ بِالْقَلْبِ وَاللِّسَانِ وَالْيَدَيْنِ وَالرِّجْلَيْنِ وَالْاَنْفِ وَاللَّمْسِ وَالسَّمْعِ وَالْبَصَرِ وَالْفَرْجِ وَالرُّكُوْبِ] (ځکه عبادت به يا په زړه وي يا په ژبه يا په لاسونو يا په خپو يا په پوزه يا په مسح کولو يا په غوږونو يا په سترګو يا په عورت او يا د سوريدو) يعني يو موټر وغيره ته چه خيژے نو دے کښې هم عبادت شته)۔

بيا احکام پنځه قسمه دي يا به واجب وي يا به مستحب وي يا به حرام وي يا به مکروه وي يا به مباح وي نو پدے هر يو کښې بيا خپل خپل عبادت دے په زړه کښې هم دا پنځه انواع د عبادت شته لاسونو او خپو او دارنگه په هر اندام کښې چه بعضے د هغے نه دا دي :

[فَعُبُوْدِيَّةُ الْقَلْبِ الْإِخْلَاصُ وَالتَّوَكُّلُ، وَالْمَحَبَّةُ، الصَّبْرُ وَالْإِنَابَةُ وَالْخَوْفُ وَالتَّصْدِيْقُ، وَالنِّيَّةُ، وَتَرْكُ الْكِبْرِ وَالرِّيَاءِ وَالْعُجْبِ وَالْحَسَدِ وَالْغَفْلَةِ وَالنِّفَاقِ وَشَهْوَةِ الْمُحَرَّمَاتِ وَتَمَنِّيْهَا، وَإِرَادَةِ الْمَعْصِيَةِ]

(نو د زړه عبادتونه دا دي : اخلاص، توکل، محبت، صبر، انابت (الله ته رجوع کول)، خوف (ويره)، تصديق، صحيح نيت، تکبر او رياء او خود پسندي او حسد (کينه) او غفلت او منافقت او د حرامو څيزونو شوق او تمني او اراده د گناه پريخودل) ددے ټولو وضاحت به په قرآن کريم کښې دننه ځائے په ځائے راځي ان شاء الله تعالیٰ۔

[وَعُبُوْدِيَّةُ اللِّسَانِ النُّطْقُ بِالشَّهَادَتَيْنِ وَتِلَاوَةُ الْقُرْآنِ وَالذِّكْرُ، وَرَدُّ السَّلَامِ وَالدَّعْوَةُ وَتَعْلِيْمُ الْجَاهِلِ

وَارْشَادُ الْجَاهِلِ وَاَدَاءُ الشَّهَادَةِ وَالصِّدْقُ وَتِلَاوَةُ الْقُرْآنِ وَالْاَذْكَارُ الْمُسْتَحَبَّةُ وَتَرْكُ النُّطْقِ بِمَا يُبْغِضُ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ كَالْبِدْعَةِ وَالدَّعْوَةِ اِلَيْهَا وَالْقَذْفِ وَالسَّبِّ وَالْكِذْبِ وَشَهَادَةِ الزُّوْرِ وَالْقَوْلِ عَلَى اللّٰهِ بِلَا عِلْمٍ وَتَرْكُ الْكَلَامِ الْمُبَاحِ وَالصَّمْتُ ] (د ژبے عبادتونه دا دی: کلمهٔ توحید او رسالت وئیل، د قرآن ضروری تلاوت کول، او ذکر، او د سلام جواب ورکول او دعوت کول او جاهل ته تعلیم ورکول او ناپوهه ته لاره خودل، او د حق ګواهی کول او رشتیا وئیل او د قرآن تلاوت کول او مستحب اذکار وئیل، (مخکښې اذکار واجبه او دا مستحب تلاوت او ذکر دے) او تکرار د علم کول- او هغه خبرے پریخودل چه الله او رسول ئے بد ګنړی لکه بدعت او هغے ته دعوت او پریخودل د تهمت لګولو او کنځلے او دروغ او د دروغو ګواهی او په الله تعالیٰ باندے بغیر د علم نه تقول او دروغ وئیل، او بے فائدے خبرے پریخودل، او چپ والے کول).

[وَعُبُوْدِيَّةُ السَّمْعِ: وُجُوْبُ الْاِنْصَاتِ وَالْاِسْتِمَاعِ لِمَا اَوْجَبَهُ مِنَ الْاِيْمَانِ وَالْاِسْلَامِ وَالْقِرَاءَةِ الْجَهْرِيَّةِ فِي الصَّلَوَاتِ وَاسْتِمَاعُ الْخُطْبَةِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَيُكْرَهُ اسْتِمَاعُ الْكُفْرِ وَالْبِدَعِ اِلَّا اِذَا تَرَتَّبَتْ عَلَيْهِ الْفَائِدَةُ ]

(او هر چه د غوږونو عبادت دے نو کوم ایمان او اسلام چه الله تعالیٰ فرض کړیدے هغه به اوری، غوږ به ورته ایږدی، (یعنی د ایمان خبرے به ضرور اوری)- په جهری مانځه کښې قرائت کیږی هغه ته به غوږ اږدی او اوریدل د خطبے په ورځ د جمعه او د کفر او د بدعت خبرے اوریدل حرام دی، مګر که د څه فائدے دپاره ئے اوری) بیا خیر دے مثلاً چه عقیده ئے معلوموی، د مقابلے دپاره ئے اوری- او که فائده پکښې نۀ وی او هغه واوری نو قرآن کریم کښې راځی چه الله تعالیٰ فرمائی: تاسو به د هغوی په شان شئ!-

[وَيَحْرُمُ اسْتِمَاعُ نِسَاءِ الْاَجَانِبِ وَاسْتِمَاعُ الْمَعَازِفِ وَيُسْتَحَبُّ اسْتِمَاعُ الْعِلْمِ وَقِرَاءَةِ الْقُرْآنِ وَالذِّكْرِ وَكُلِّ مَا يُحِبُّهُ اللّٰهُ ] (د شهوت پاره د پردیٔ زنانو خبرے اوریدل، او تهنګ ټکور او ګانے اوریدل حرام دی او د علم خبرے، او د قرآن کریم قرائت او ذکر او هر هغه څه چه الله تعالیٰ نے خوښوی اوریدل مستحب دی).

وَاَمَّا عُبُوْدِيَّةُ الْبَصَرِ فَالنَّظَرُ فِي الْمُصْحَفِ وَكُتُبِ الْعِلْمِ وَتَمْيِيْزُ الْحَلَالِ مِنَ الْحَرَامِ وَالْاَمَانَةِ عِنْدَ اَدَائِهَا اِلَى اَرْبَابِهَا وَيَحْرُمُ النَّظَرُ اِلَى النِّسَاءِ الْاَجْنَبِيَّاتِ وَيُسْتَحَبُّ النَّظَرُ اِلَى الْعُلَمَاءِ وَالنَّظَرُ اِلَى الْوَالِدَيْنِ ].

(هرچه د سترګو عبادت دے نو قرآن ته کتل او د علم په کتابونو کښې مطالعه کول او حلال حرام د یو بل نه جدا کول او امانت ته کتل په وخت د اداء کولو کښې خپلو مالکانو ته او پردو زنانو ته کتل حرام دی او د علماؤ او د مور او پلار مخ ته کتل عبادت دے).

[وَالنَّظَرُ فِيْ آيَاتِ اللّٰهِ الْمَشْهُوْدَةِ وَيُكْرَهُ فُضُوْلُ النَّظَرِ كَفُضُوْلِ الْكَلَامِ]

(او کائناتو ته کتل، آسمان، زمکے، غرونو ته او بے ځایه نظر کول (یو شی بل شی ته) مکروه دی، د بے ځایه خبرو په شان).

[وَعُبُوْدِيَّةُ الْبَدَنِيْ الْكَسْبُ لِلنَّفَقَةِ وَإِعَانَةُ الْمُضْطَرِّ وَرَمْيُ الْجِمَارِ وَمُبَاشَرَةُ الْوُضُوْءِ وَالتَّيَمُّمُ وَيُحَرَّمُ قَتْلُ النَّفْسِ وَنَهْبُ الْمَالِ وَضَرْبُ الْمَظْلُوْمِيْنَ وَاللَّعِبُ الْحَرَامُ وَكِتَابَةُ مَا لَا فَائِدَةَ فِيْهِ وَيُسْتَحَبُّ مَا فِيْهِ فَائِدَةٌ وَيُحَرَّمُ الْكِتَابُ عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ. وَمِنَ الْعِبَادَةِ لَمْسُ الْحَجَرِ الْاَسْوَدِ وَالرُّكْنِ الْيَمَانِيْ].

(د لاسونو عبادت دا دے چه د نفقے دپاره کار کسب کول، او د مضطر انسان سره مدد کول او شیطانان ویشتل په حج کښې او پخپله اودس کول او تیمم وهل، خلق نۀ وژل او پردے مال نۀ لوټ کول او مظلوم نۀ وهل، حرامے لوبے (لکه زمری او کریم بورډ او قطعے تاش) څکه دا ټول حرام دی، هغه څه لیکل چه فائده پکښې نۀ وی او کومه خبره کښې چه فائده وی د هغے لیکل مستحب دی، او حرام دی لیکل د هغه کتاب چه د دین په خلاف وی یا د مسلمان په خلاف وی لکه مبتدعین په اهل حقو پسے کتابونه لیکی دا ظلم دے او حجر اسود او رکن یمانی ته لاس وروړل عبادت دے).

[وَعِبَادَةُ الرِّجْلِ: اَلْمَشْيُ إِلَى الْجُمُعَةِ وَالْجَمَاعَاتِ وَزِيَارَةِ الْإِخْوَانِ وَالْأَصْدِقَاءِ وَبِرِّ الْوَالِدَيْنِ وَالْمَشْيُ إِلَى مَجَالِسِ الْعِلْمِ وَالْحَجِّ وَيُحَرَّمُ الْمَشْيُ إِلَى مَعْصِيَةِ اللّٰهِ].

(او د خپو عبادت دا دے چه د جُمعے او جَمعے مانځه ته حاضریدل او د ورونو او دوستانو ملاقات له تلل او د مور او پلار سره نیکی کولو دپاره تلل او د کور نه د علم مجلس ته تلل، او حج ته تلل عبادت دے او ګناه ته تلل حرام دی)

(او د رکوب عبادة دا دے چه د جهاد دپاره سورلی باندے تلل او حج له تلل، د مسلمان ملاقات له تلل، د مریض پوښتنے له تلل).

(د فرج عبادت دا دے چه د حرامو نه ئے اُوساته او حلالو کښې ئے استعمال کړه، د خپلے ښځے حق اداء کړه)، داسے مۀ کوه چه خارج ته لاړ شے او هلته لس او شل کاله تیروے، لکه ډیر داسے ظالمان شته چه هغوی د خپل کور نه لاړ شی او هلته د پیسو په خوند کښې ورشی او بے حیاء کارونه کوی نو خپلے ښځے ته ئے توجه نۀ وی. نو په فرج کښې هم عبادت شته. لهذا د مسلمان دپاره پکار دی چه د خپلو احوالو تفقد اُوکړی او د خپلو عملونو اصلاح اُوکړی. الله تعالیٰ دے مونږ ته د عمل توفیق راکړی. وبالله التوفیق.

(نَسْتَعِيْنُ) مدد به صرف او صرف د الله تعالی نه طلب کولے شي، البته د اسبابو په درجه کښې د مخلوق نه مدد غوختل مونږ ته الله تعالیٰ جائز کړيدی یعنی مدد په دوه قسمه دے:

۱- یو د اسبابو نه لاندے دے چه یو سړی سره اسباب شته دے او ته ترے کومك او مدد اُوغواړے دا جائز ده، خو افضل نهٔ ده لکه تهٔ یو ژوندی سړی نه اُوبه اُوغواړے وغیره وغیره۔ ذو القرنین وئیلی وو ﴿اَعِيْنُوْنِىْ بِقُوَّةٍ﴾ (تاسو ما سره مدد اُوکړئ)۔ موسیٰ ؑ نه یو سړی مدد اُوغوختو ﴿فَاِذَا الَّذِى اسْتَنْصَرَهٗ بِالْاَمْسِ يَسْتَصْرِخُهٗ﴾ ﴿فَاسْتَغَاثَهُ الَّذِىْ﴾ لفظ راغلی دے۔ ﴿وَتَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوٰى﴾۔

(په نیکئ کښې یو بل سره مدد اُوکړئ) دا قسم مددونه جائز دی۔

۲- دویم داسے مدد غوختل دی چه د یو چا سره اسباب نهٔ وی، هغه شخص غائب وی یا مړے وی، هغه ته پته نشته او ته ورته ددے ځائے نه آواز کوے چه راورسیږه نو غائب یا مړو نه مدد غوختل، یا پیره بابا راورسیږے، یا غوثه مدد اُوکړے، یا شیخ عبد القادر جیلانی شَيْئًا لِلّٰهِ وئیل یا رسول الله مدد۔ دا ټول شرك دے۔ انسان پدے سره مشرك کیږی بلکه د رسول الله ﷺ د وفات نه پس د هغه نه مدد غوښتل هم شرك دے۔

عبد الله بن عباس رضی الله عنه ته نبی علیه الصلاة والسلام داسے نصیحت کړے وو:

[اِذَا سَئَلْتَ فَاسْئَلِ اللّٰهَ وَاِذَا اسْتَعَنْتَ فَاسْتَعِنْ بِاللّٰهِ- الحديث) [احمد والترمذی بسند صحیح]۔

(کله چه سوال کوے نو صرف د الله تعالیٰ نه ئے کوه او کله چه مدد غواړے نو صرف د الله تعالیٰ نه ئے غواړه، اوپدے خبره پوهه شه! که دا انسانان پیران ټول راجمع شی پدے چه تا ته فائده درکړی د یو شی نو تا له فائده نشی درکولے مگر هغه چه الله تعالیٰ درله لیکلی وی او که ټول امت راجمع شی چه تا له تکلیف او ضرر درکړی نو دوی تا له ضرر نشی درکولے مگر په هغه څه چه الله تعالیٰ درله لیکلے دے)۔ آه۔

دا حدیث چه د سړی زړه کښې کینی نو بیا د مخلوق نه طمع او ویره ختمیږی ځکه د مخلوق په لاس کښې څه نشته۔ دا معنیٰ قرآن کښې هم ده۔ ﴿مَا يَفْتَحِ اللّٰهُ لِلنَّاسِ مِنْ رَّحْمَةٍ فَلَا مُمْسِكَ لَهَا وَمَا يُمْسِكْ فَلَا مُرْسِلَ لَهٗ مِنْ بَعْدِهٖ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ﴾ سورة فاطر (۲،۳)

(الله تعالیٰ چه درته یوه لاره راکولاؤ کړه څوك ئے نشی بندولے او چه بنده ئے کړه څوك ئے نشی کولاوولے)

بس دا قانون یاد ساته۔ نو دا قسم مدد د الله تعالیٰ پورے خاص دے، غیر ته آواز کول پدے

طريقه كفر دے او ډير مُلايان پدے كښې اخته دى۔
د بريلي عقيدے والا وائى دا شرك نهٔ دے، دا د محبت د وجه نه دے۔ مونږ وايو : دغه محبت هم شرك دے، بلكه د مخلوق نه دا ظاهرى سوال كولو كښې هم درے نقصانه دى اګركه عند الضرورة جائز دى خپل ځائے كښې به راشي ان شاء الله تعالىٰ۔ مختصراً دا چه (١) پدے كښې شائبه ده د شرك خفى۔ (٢) پدے كښې ذلت د نفس دے۔ (٣) مسئول باندے ظلم او هغه ته ضرر وركول دى۔ دا وجه ده چه رسول الله ﷺ خپل صحابه كرام پدے عادت كړى وو چه [مَنْ يَّتَكَفَّلُ لِىْ اَنْ لَا يَسْأَلَ النَّاسَ شَيْئًا فَاَتَكَفَّلُ لَهٗ بِالْجَنَّةِ] [رواه احمد]
(څوك ما دپاره ذمه وارى اخلى چه د خلقو نه به د هيڅ شى سوال نكوى نو زه به ورله د جنت ذمه وارى وركړم) (احمد) لهذا پدے سوال كښې هم مخلوق ته خپل يو نوع احتياج ښكاره كول دى۔ نو استعانة د الله تعالىٰ پورے خاص شو۔اهل زيغ خلق د غير الله نه مدد غوارى او هغه مخكنى قسم والا دلائل پيش كوى، د متشابهاتو پسے روان دى۔
**فائده** : بنده د استعانة په وخت كښې الله تعالىٰ ته ډير نزدے وى څكه علماؤ وئيلى دى چه اَقْرَبُ الطُّرُقِ اِلَى اللهِ اَلْفَقْرُ وَالْاِحْتِيَاجُ] الله ته ډيره نزدے لاره د فقر او احتياج ده، چه ته ځان فقير او محتاج اُوګنړے بيا د الله مدد نقد راځى۔ او ډير غليظ ترين حجاب او پرده د الله او د بنده په مينځ كښې دعوىٰ ده چه سړے دعوىٰ اُوكړى چه زه دا كولے شم۔نو استعانة ډير ښه عمل مونږ ته الله تعالىٰ خودلے دے۔ حديث كښې هم دا معنىٰ پرته ده [لَيْسَ شَيْئٌ اَكْرَمَ عَلَى اللهِ مِنَ الدُّعَآءِ] [الادب المفرد: ٧١٢ ومسند احمد ٨٧٣٣ بسند حسن] الله تعالىٰ ته د دعاء نه بل عمل ډير عزتمند نشته) د مسلمان طريقه به دا وى چه د شپے او د ورځے به د الله تعالىٰ نه دعاګانے او مددونه غوارى، دے له ورخت وركول پكار دى، زړه ورسره نرميږى، حاجات ورسره پوره كيږى، دعاء د مؤمن هغه وسيله ده چه ددے سره مؤمن نهٔ هلاك كيږى۔ يو حديث كښې دى [لَا يَهْلِكُ مَعَ الدُّعَآءِ اَحَدٌ] [حاكم، اسناده ضعيف]
(دعاء سره هيڅوك نهٔ هلاك كيږى) دعاء سره هر قسم مصائب الله تعالىٰ لرے كوى، الله تعالىٰ مونږ ته د هغه د خزانو نه د حاصلولو دپاره وسيلے او اسباب راكړيدى۔
نو دا استعانة الله ته ډير خوښ دے د همدے وجه نه ئے دے سورة كښې خاص كړے هم دے۔
حافظ ابن قيمؒ فرمائى : اياك نعبد واياك نستعين غوره دعاء ده۔ او دا خبره په حديث كښې هم راغلے ده چه نبى ﷺ فرمائى : څوك چه دا خوښوى چه په دعاء كښې ښه كوشش

اُوکړی نو داسے دِے اُووائی او دارنگه معاذ بن جبل ته ئے هم داسے وئیلی وو چه دا دعاء د هر فرض مانځه نه روستو وایه : [اَللّٰهُمَّ اَعِنِّیۡ عَلٰی ذِکۡرِكَ وَشُکۡرِكَ وَحُسۡنِ عِبَادَتِكَ]

[احمد، ابو داود، نسائی بسند صحیح]

(اے الله ! ما سره ستا په ذکر، شکر او ښائسته عبادت کولو کښ مدد اُوکړه)۔

نو په عبادت کښ د الله تعالیٰ نه مدد او دعاء غوختل بهترین عمل دے۔ لهذا کله چه انسان په مانځه کښ ولاړ وی نو پکار دا ده چه هغه خپل ذهن دے طرفته متوجه کړی چه اے الله ! زه ستا نه په عبادت کښ مدد غواړم۔

**فائده** : بیائے استعانت د عبادت نه روستو ذکر کړو ددے څو فائدے دی : ۱ – فائده : عبادت ئے ځکه مخکښ کړیدے چه دا ضروری او مهم دے او أ هم مقدم وی او استعانة دومره اَهم نهٔ وو نو هغه ئے روستو کړو۔ ۲ – وجه : ځکه چه عبادت وسیله د استعانت ده۔ چه اے الله ! مونږ ستا بندګان یو او ستا عبادت کوو نو مونږ سره به مدد کوے، او اشاره ده چه عبادت بهترینه وسیله ده، ددے په وجه د بنده سره ناشنا مددونه راځی۔

۳ – دریمه وجه : [لِاِزَالَةِ الۡکِبۡرِ وَالۡعُجۡبِ عَنِ النَّفۡسِ] د نفس نه د کبر او خود پسندی دفع کولو دپاره۔ ځکه د (نعبد) لفظ نه وهم د عجب او کبر پیدا کیږی نو نستعین ئے وریسے روستو راوړو چه اے الله ! مونږ ستا عبادت ستا د مدد نه بغیر نشو کولے۔

٤ – وجه : استعانت عام دے او عبادت خاص دے نو دا تعمیم بعد التخصیص دے دپاره د اهتمام شان۔ ځکه نستعین معنیٰ ده د الله تعالیٰ نه مدد غوختل که په عباداتو کښ وی او که په غیر د عبادت نه لکه مباح اُمور دنیویه کښ مدد غوختل شول۔ او اشاره ده چه بهترین عبادت د الله تعالیٰ نه دعاء او مدد غوختل دی۔

٥ – وجه : پدے طریقه کښ تنسیق او ترتیب د کلماتو دے۔ ځکه که ایاك نعبد ئے روستو کړے وے نو فاصله د آیت کښ ترتیب خرابیدو۔

**فائده** : په نعبد کښ د جبر باطلول دی او په نستعین کښ د قدریه وُ رد کول دی۔ (فتح البیان)

﴿اِهۡدِنَا الصِّرَاطَ الۡمُسۡتَقِیۡمَ﴾۔ اُوښایه مونږ ته لاره سمه)

پدے کښ هم لفظ د (قولوا) مقدر دے۔ اے بندګانو! تاسو مانه داسے اُوغواړئ۔

پدے آیتونو کښ تعلیم د دعاء دے۔ **مناسبت** دا دے چه مخکښ تعظیم د الله تعالیٰ بیان شو۔ بنده الله تعالیٰ ته ډیر ورقریب شو نو کله چه سړے د بادشاه خواله ورشی نو هغه نه

څـه حـاصلول پکار دی ؟ نو بنده له الله سبحانه وتعالیٰ اختیار ورنه کړو چه څهٔ ته په خپله طبـع يـو شـے اُوغواړه ځکه بنده ظاهر بين دے، دنيا پرست دے، دا به پدے اعلیٰ مقام کښې د عـظيـم بـادشـاه نه دنيا غواړی او هغه ددهٔ دپاره دومره مهم نهٔ ده۔ نو الله تعالیٰ اُوفرمايل چه زهٔ بـه درتـه دعـاء در اُوښـايـم، هغـه دا چه ما نه هدايت اُوغواړه ځکه د الله تعالیٰ د خزانو نه غوره خزانه هدايت دے۔

۲ – دويم تعلق ئے د (اياك نعبد) سره دے۔ اے الله ! مونږ ستا بندګی کوو، ستا نه په بندګئ کـښې مـدد غـواړو، خـو د عـبادت چـل مـونـږ له نهٔ راځی نو اهدنا (اے الله ما ته دا را وښايه) [اِهْدِنَا طَرِيْقَ الْعُبُوْدِيَّةِ] (د بندګئ چل راوښايه)۔

۳ – پـه حـديث کښې ئے مناسبت راغلے دے چه فاتحه نيمه د الله تعالیٰ ده، او نيمه د بنده ده نو مخکښې حقوق الله بيان شو او دلته حقوق العباد دی۔

٤ – مناسبت : ګويا کښې دا جواب د سوال دے [كَيْفَ أُعِيْنُكُمْ فَقَالُوْا اِهْدِنَا]

(اے بـنـدګانو ستاسو مدد څنګه اُوکړم نو دوی اُووئيـل : اے الله ! مونږ ته هدايت اُوکړه) نو دا بيان دے د معونةِ مطلوبه۔

بيا علماء فرمائی چه هدايت ئے ولے خاص ذکر کړيدے؟ ځکه چه بنده دے ته ډير حاجت لری۔

## د هداية تشريح:

لـفظ د هدايـة قرآن کريم کښې (۲۹۸) کرته استعمال شويدے، امر ئے (۲) ځل راغلے دے او لفظ د صراط (٤٠) کرته راغلے دے او مستقيم لفظ (۳۷) کرته راغلے دے۔

هدايت په لغت کښې [دَلَالَةُ الْخَيْرِ بِاللُّطْفِ] ته وائی (چاته د خير لاره په نرمئ سره ورخودل) کـه پـه بدو او سـختـو الـفاظو وی نو دا هداية نهٔ دے، او که د شر لاره ورے اُوخودله نو دا هم هدايت نـهٔ دے۔ هـدايـت کـلـه کله د شر په ځائے کښې هم استعمال شويدے هلته تهکم او استهزاء غرض وی لکه ﴿فَاهْدُوْهُمْ اِلٰى صِرَاطِ الْجَحِيْمِ﴾ [الصافات: ۲۳] (يعنی د جهنم لاره ورته اُوخايئ) ﴿وَيَهْدِيْهِ اِلٰى عَذَابِ السَّعِيْرِ﴾ (الحج: ٤)۔

## د هداية معانی:

بيـا د هـدايـة درے مـعـانـی دی : ۱ – کله په الیٰ سره متعدی وی دويم مفعول ته لکه سورة نـحل (۱۲۱) ﴿اِجْتَبٰهُ وَهَدٰىهُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ﴾ او سـورة شوریٰ (۵۲) ﴿وَاِنَّكَ لَتَهْدِيْٓ اِلٰى

﴿صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾ او سورة انعام (۸۷) ﴿وَهَدَيْنَٰهُمْ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾ او سورة نازعات (۱۹) ﴿وَأَهْدِيَكَ إِلَىٰ رَبِّكَ﴾ او سورة البقرة (۲۱۳) ﴿وَاللَّهُ يَهْدِي مَن يَشَاءُ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾ کښې نو پدے کښې به معنیٰ د حقے لارے خودل وی بل چا ته، برابره ده چه هغه شخص په هغه لار روان شي او که نهٔ، او مقصد ته اُورسي یا نهٔ۔ او دیته ارشاد الصراط او ارائة الطریق (لار خودل) وائي۔ ۲- دویم متعدی کیدل په لام سره لکه سورة اسراء (۹) ﴿إِنَّ هَٰذَا الْقُرْآنَ يَهْدِي لِلَّتِي هِيَ أَقْوَمُ﴾ او سورة حجرات (۱۷) ﴿أَنْ هَدَاكُمْ لِلْإِيمَانِ﴾ نو پدے کښې معنیٰ ده: ښودل د حقے لارے سره د رسولو نه دغه لارے ته، برابره خبره ده چه هغه شخص مقصد ته اُورسي او که نهٔ۔ ددے نه تعبیر کیږی په ایصال الی الطریق (لارے ته رسولو) سره۔

حافظ ابن قیمؒ ددے نه تعبیر کوی په (التَّخْصِيصُ بِالشَّيْءِ) سره (یعنی یو شے د بل پورے خاص کول لکه د (يَهْدِي لِلَّتِي هِيَ أَقْوَمُ) معنیٰ ده چه د قرآن کریم هدایت مختص دے په نیغه لاره پورے۔

۳- دریم: بغیر د واسطے نه متعدی کیدل دی لکه پدے آیت کښې یا سورة نساء (۱۷۵) ﴿وَيَهْدِيهِمْ إِلَيْهِ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا﴾ او سورة قصص (۲۲) ﴿عَسَىٰ رَبِّي أَن يَهْدِيَنِي سَوَاءَ السَّبِيلِ﴾ او سورة فتح (۲) ﴿وَيَهْدِيَكَ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا﴾ او سورة صافات (۱۱۸) ﴿وَهَدَيْنَاهُمَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ﴾ کښې نو پدے کښې به معنیٰ وی: ښودل د حقے لارے او په هغے باندے روانول او مقصد ته رسول۔ او ددے نه تعبیر کیږی په (إِيصَالٌ إِلَى الْمُنْتَهَىٰ) سره (یعنی آخری مقصد ته رسول) او دا آخری طریقه په الله تعالیٰ پورے خاص ده او د مخکنو معنو نسبت کله رسول الله ﷺ او کله قرآن کریم ته کیږی۔

## د هدایة اقسام

بیا هدایت دوه قسمه دے: ۱- یو عام دے هغه (إِرَاءَةُ الطَّرِيقِ وَالدَّلَالَةُ) دے (یعنی لاره خودل، رهنمائی کول) او دا بنده هم کولے شی لکه الله تعالیٰ نبی علیه السلام ته فرمائی: ﴿وَإِنَّكَ لَتَهْدِي إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾ (شوریٰ ۵۲)۔ (ته هدایت کوے نیغے لارے ته) او ﴿وَلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ﴾ (رعد: ۷) (د هر قوم دپاره یو هادی (لاره خودونکے) دے)۔

۲- دویم هدایت خاصه دے، دا په معنیٰ د (إِلْقَاءُ الْإِيمَانِ وَالتَّوْفِيقِ) دے، یعنی د ایمان او عمل توفیق ورکول او ایمان په زړه کښې آچول۔ دا هدایت د الله تعالیٰ پورے خاص دے، پیغمبرئے هم نشی کولے لکه نبی علیه السلام ته الله تعالیٰ فرمائی:

﴿ إِنَّكَ لَا تَهْدِيْ مَنْ أَحْبَبْتَ وَلَـٰكِنَّ اللهَ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ﴾، سورة القصص (٥٦) ـ
(اے زما نبی ! ته هدایت نشی کولے چا له چه ته غواړے)
نو دلته د هدایت نه توفیق مراد دے۔
او دا معنیٰ په قرآن کریم کښې زیاته استعمال ده لکه ﴿ وَاللهُ يَدْعُوْ إِلَىٰ دَارِ السَّلَامِ وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ﴾، سوره یونس (۲۵) ددے معنیٰ دا ده چه توفیق ورکول د الله تعالیٰ په لاس کښې دی، بل چا سره نشته۔ نو دا بیل بیل مراتب دی دا چه اُوپیژنے، بیا به دریاندے قرآن کریم کښې اشکال نهٔ راځی، ان شاء الله تعالیٰ۔
دلته د هدایت په باره کښې **درے مباحث** دی ۔ اول :

## د هدایت مرتبے

د هدایت یو څو مرتبے دی قرآن کریم کښې ذکر کیږی :
۱ – اوله مرتبه : **الْاِلْهَامُ وَالْفِطْرَةُ** (په زړه کښې خبره اچول او فطری طور سره هدایت ښکه الله تعالیٰ بندګان په خپل معرفت او توحید باندے پیدا کړیدی یعنی په دوی کښې ئے د حق د قبلولو استعداد اچولے دے) لکه ﴿ قَالَ رَبُّنَا الَّذِيْ أَعْطَىٰ كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهُ ثُمَّ هَدَىٰ﴾ (طه : ۵۰) (یعنی الله تعالیٰ هر شے پیدا کړیدے، بیا ئے ورته هدایة کړے)
یعنی الهام او فطرت کښې ئے ورله توحید اچولے دے)
او دا هدایة هر مخلوق ته شویدے۔ او دا ډیر ناشنا هدایت دے هر یو حیوان ته الله تعالیٰ خپل الهام کړیدے، چرګے ته د هګئ په کیناستو الهام، او د چرګی بچی ته د هګئ په ماتولو الهام، او د راوتلو نه سمدست روسته د ګرځیدو ۔ دارنګه چرګے ته د هیلئ انډے کیده چه بچے ترے پیدا شی نو الهام ورته کیږی چه هغه اُوبو ته دانګی د اُوبو نه نهٔ ویریږی، دا الهامونه عامو حیواناتو ته شویدی۔ د شهدو مچو ته الهام۔
۲ – مرتبه : **الْهِدَايَةُ بِالْحَوَاسِّ الظَّاهِرَةِ** : د سترګو، غوږونو وغیره په ذریعه یو شے معلومول۔ او پدے هدایت کښې انسان او حیوان دواړه شریك دی۔ لکه ﴿ وَالَّذِيْ قَدَّرَ فَهَدَىٰ﴾ (سورة اعلیٰ : ۳)
(الله تعالیٰ هغه ذات دے چه ټول اندامونه ئے د انسان اندازه کړی او بیا ئے ورته په حواسو سره هدایت کړیدے)۔ ﴿ أَعْطَىٰ كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهُ ثُمَّ هَدَىٰ﴾ [طه (۵۰)]

۳- **الهِدَايَةُ بِالعَقْل**: الله تعالیٰ بندګانو ته هدایت په عقل هم کړیدے، یعنی قوت عاقله ئے ورکړیده. چه پدے سره منافع او مضرات او حق او باطل پیژنی، لیکن دا یواځے کافی نهٔ دے ترڅو چه ورسره نور مراتب یوځائے شوی نهٔ وی. لکه سورة اعراف (۱۰۰)
﴿ أَوَلَمْ يَهْدِ لِلَّذِينَ يَرِثُونَ الْأَرْضَ ﴾ او (۱۲۸) ﴿ أَفَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ أَهْلَكْنَا ﴾ (طه:۱۲۸)
﴿ وَهَدَيْنَاهُ النَّجْدَيْنِ ﴾ (البلد:۱۰).
ډیرو مفسرینو دلته هدایت فطری او عقلی مراد کړیدے. (فتح البیان، ایسر التفاسیر)

٤- **الهِدَايَةُ بِنَصْبِ الدَّلَائِلِ الفَارِقَةِ بَيْنَ الحَقِّ وَالبَاطِلِ**:
په عالَم کښ عقلی دلیلونه پیدا کول، چه په هغے سره حق او باطل جدا جدا معلومیږی، او انسان پدے سره الله تعالیٰ او د هغه معرفت او عظمت او کمال ته لاره موندلے شی.
دا معنیٰ سورة بلد (۱۰) ﴿ وَهَدَيْنَاهُ النَّجْدَيْنِ ﴾ (الله بنده ته دوه لارے خودلے دی) یعنی دلائل ئے پرے اُودرولی دی. او سورة اللیل (۱۲) ﴿ إِنَّ عَلَيْنَا لَلْهُدَىٰ ﴾ او ﴿ وَبِالنَّجْمِ هُمْ يَهْتَدُونَ ﴾ [النحل: ۱٦]
او دے ته هدایت عقلیه او هدایت بصریه هم وائی.

۵- **بِإِرْسَالِ الرُّسُلِ وَإِنْزَالِ الكُتُبِ**: د پیغمبرانو او کتابونو د رالیږلو په واسطه بندګانو ته هدایت. لکه سورة الرعد (۷) ﴿ وَلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ ﴾ او سورة الم السجده (۲٤) ﴿ وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ أَئِمَّةً يَهْدُونَ بِأَمْرِنَا ﴾ او ﴿ هُدًى لِلنَّاسِ ﴾ (البقرة) ﴿ إِنَّا هَدَيْنَاهُ السَّبِيلَ إِمَّا شَاكِرًا وَإِمَّا كَفُورًا ﴾ (الانسان: ۳) ﴿ إِنَّ هَٰذَا الْقُرْآنَ يَهْدِي لِلَّتِي هِيَ أَقْوَمُ ﴾ (الاسراء: ۷). او په سورة البقره (۳۸) آیت کښ ﴿ فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُمْ مِنِّي هُدًى ﴾ (که زما د طرفه تاسو ته هدایت راغے) نو دلته ترے الکتب والرسل مراد دی. او په ټولو انواعو د هدایت کښ ټول دے هدایت ته محتاج دی، حقیقی هدایت ته رسیدل ممکن نهٔ دی مګر په لاره د رسولانو او کتابونو د الله تعالیٰ سره.

٦- **التَّثْبِيتُ وَالتَّوْفِيقُ**: یو سړے مضبوطول او توفیق او دوام ورکول په حقه لار باندے لکه سورة عنکبوت (٦۹) ﴿ لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا ﴾ او سورة الفتح (۲) ﴿ وَيَهْدِيَكَ صِرَاطًا مُسْتَقِيمًا ﴾ او سورة القصص (۵٦) ﴿ إِنَّكَ لَا تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ ﴾ او ﴿ وَالَّذِينَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ هُدًى ﴾ (محمد: ۱۷) ﴿ وَمَنْ يُؤْمِنْ بِاللَّهِ يَهْدِ قَلْبَهُ ﴾ (التغابن: ۱۱) او ﴿ وَيَهْدِيَكُمْ سُنَنَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ ﴾ [النساء: ۲٦] نو هلته توفیق مراد دے) او دا هدایت خاص دے د مؤمنانو پورے، کافرانو او مجرمانو دپاره نشته او دا هدایتِ خاصه دے.

۷- اَلْوُصُوْلُ اِلَی الْجَنَّةِ: دا اُوچتـه مرتبه ده چه جنت ته ئې اُورسوی او دا اصل کښې ثمره د ایمان ده. دا په سورة اعراف (۴۳) آیت کښې ذکر ده:

﴿وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ هَدَانَا لِهٰذَا﴾ او ﴿سَیَهْدِیْهِمْ وَیُصْلِحُ بَالَهُمْ﴾ (محمد: ۷)

(مؤمنان به وائي الله تعالیٰ لره شکر دے چه مونږ ته ئې هدایت اُوکړو ددے جنت).

(یعنی د ایمان او صحیح عقیدے په وجه ئې جنت ته راورسولو).

۸- هدایة: لِیْنُ الْقُلُوْبِ وَاقْشِعْرَارُ الْجُلُوْدِ مِنْ خَشْیَةِ اللّٰهِ تَعَالیٰ: (زړه نرمیدل او د الله تعالیٰ د یرے نه غونے او څرمن زیګ کیدل) او دا هم د خواص بندګانو هدایت دے لکه

﴿اَللّٰهُ نَزَّلَ اَحْسَنَ الْحَدِیْثِ کِتَابًا مُّتَشَابِهًا مَّثَانِیَ تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُوْدُ الَّذِیْنَ یَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ ثُمَّ تَلِیْنُ جُلُوْدُهُمْ وَقُلُوْبُهُمْ اِلٰی ذِکْرِ اللّٰهِ ذٰلِکَ هُدَی اللّٰهِ یَهْدِیْ بِهٖ مَنْ یَّشَآءُ﴾ (الزمر: ۲۳).

﴿وَمَنْ یُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ هَادٍ﴾ (الزمر: ۳۶)

او د قسوة القلوب والو په باره کښې وائي:

﴿فَوَیْلٌ لِّلْقَاسِیَةِ قُلُوْبُهُمْ مِّنْ ذِکْرِ اللّٰهِ اُولٰٓئِکَ فِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ﴾ (الزمر: ۲۲)

۹- هدایة بَعْدَ الْاِیْمَانِ الْکَامِلِ عِنْدَ نُزُوْلِ الْمَصَائِبِ وَالْحَوَادِثِ:

(د کامل ایمان نه روستو د مصیبتونو او حوادثو د نازلیدو په وخت هدایت کول)

او دیته هدایت د رضا بالقضاء او شکر په نعمتونو وائي.

﴿مَا اَصَابَ مِنْ مُّصِیْبَةٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ وَمَنْ یُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ یَهْدِ قَلْبَهٗ﴾ (التغابن: ۱۱).

مفسرینو ددے ډیرے معانی کړیدی لیکن د قرآن کریم د سیاق نه معلومیږی چه ددے هدایت نه مراد هدایت د طاعت د الله تعالیٰ او د هغه د رسول دے په دغه تنګ وخت کښې، او هدایت د توکل دے په هغه باندے او اعتماد کول په هغه باندے پداسے طریقه چه جزع فزع او فریاد مخلوق ته نهٔ کوی. او دا عظیم هدایت دے او دا د کامل ایمان جزاء ده چه بنده په ټول اقوالو، افعالو او حالاتو کښې د مصیبتونو په وخت مهتدی وی.

(تیسیر الکریم الرحمن، والسراج)

۱۰- هدایة اِکْتَسَبَهَا الْعَبْدُ بِمُجَاهَدَتِهٖ: (هغه هدایت چه بنده په خپله مجاهده سره حاصل کړے وی). لکه ﴿وَالَّذِیْنَ جَاهَدُوْا فِیْنَا لَنَهْدِیَنَّهُمْ سُبُلَنَا﴾ (العنکبوت: ۶۹)

نو الله تعالیٰ بندګانو ته پدے مختلفو طریقو او مرتبو هدایت کوی، همداسے جاهل ئې نهٔ پریږدی او بیا ترے تپوس کوی چه الله تاله عقل درکړے وو، کتابونه ئې رالیږلی وو،

پیغمبران ئے رالیږلی وو، لارئے درته خودلے ده، نو تا ولے هدایت نهٔ وو حاصل کړے۔
اُوس هر کله چه هدایت بهترین شے دے او حاصلول ئے ضروری دی نو ددے د حصول دپاره۔ دویم بحث:

## د هدایت حاصلیدو اسباب

په څه وجه الله تعالىٰ انسان ته هدایت کوی ؟ هدایت د الله تعالىٰ په خزانو کښې غوره او عظیمه خزانه ده او په نعمتونو کښې غوره نعمت دے ؟ وجه دا ده چه هدایت درته اُوشو نو لاره درته برابره شوه، ایمان به هم راوړے او نیك عمل به هم کولے شے، هر د خیر کار به درته کیږی نو ایمان یو جزء دے د هدایت، نو ددے د حاصلولو اسباب حاصلول پکار دی :

۱- سبب : مونځ لکه ددے سورت په فضائلو کښې حدیث تیر شو۔ [وَلِعَبْدِیْ مَا سَأَلَ]

۲- **الکعبة** : سورة آل‌عمران (۹۶) آیت کښې دی : ﴿إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ مُبَارَكًا وَهُدًى لِلْعَالَمِينَ﴾ (دا د ټولو مخلوقاتو دپاره ځائے د هدایت دے)۔ او دا تجربه ده چه څوك حج له په صحیح نیت لاړ شی نو ضرور ورته هدایت کیږی۔

۳- **القرآن** : دا قرآن خو ډیر غټ سبب دے، ﴿هُدًى لِلْمُتَّقِينَ﴾ (بقرة: ۱) ﴿هَذَا هُدًى﴾ (الجاثیة: ۱۱) ﴿هُدًى لِلنَّاسِ﴾ (البقرة :۱۸۵) ﴿إِنَّ هَذَا الْقُرْآنَ يَهْدِي لِلَّتِي هِيَ أَقْوَمُ﴾ (الاسراء :۹) ﴿وَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِلْمُؤْمِنِينَ﴾ (یونس: ۵۷)

٤- **الجهاد فی سبیل الله**: او هر قسم مجاهده۔
﴿وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا﴾ عنکبوت : ٦۹)

٥- **الدعاء** : (دعاء غوختل سبب د هدایة دے)۔ حدیث قدسی کښې دی۔ الله تعالىٰ فرمائی: [كُلُّكُمْ ضَالٌّ إِلَّا مَنْ هَدَيْتُهُ فَاسْتَهْدُونِي أَهْدِكُمْ] [رواه مسلم] (اے زما بندګانو ! تاسو ټول ګمراهان یئ مګر هغه څوك چه زهٔ ورته هدایت اُوکړم نو بس ما نه هدایت اُوغواړئ، زهٔ به درته هدایت اُوکړم) او دا سبب پدے آیت کښې هم راغلے دے۔ (اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ)۔

٦- **اِتِّبَاعُ الرَّسُوْل ﷺ** : ﴿وَإِنْ تُطِيعُوهُ تَهْتَدُوا﴾ (النور:٥٤) ﴿وَإِنَّكَ لَتَهْدِي إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ﴾ (الشوریٰ : ٥۲)

۷- **اَلْاِنَابَةُ** : ﴿وَيَهْدِي إِلَيْهِ مَنْ يُنِيبُ﴾ (الشوریٰ :۱۳) ﴿قُلْ إِنَّ اللَّهَ يُضِلُّ مَنْ يَشَاءُ وَيَهْدِي إِلَيْهِ مَنْ أَنَابَ﴾ (رعد :۲۷)

۸- **اَلْاِیْمَانُ** : ﴿يَهْدِيهِمْ رَبُّهُمْ بِإِيمَانِهِمْ﴾ (یونس:۹) ﴿وَمَنْ يُؤْمِنْ بِاللَّهِ يَهْدِ قَلْبَهُ﴾ (التغابن :۱۱)

۹ - اِتِّبَاعُ رِضْوَانِ اللهِ ۔ (د الله تعالیٰ د رضا پسے روانیدل) ﴿يَهْدِي بِهِ اللَّهُ مَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَهُ سُبُلَ السَّلَامِ﴾ (المائدة: ۱٦)

۱۰ - رَحْمَةُ اللهِ وَفَضْلُهُ وَكَرَمُهُ : د الله تعالیٰ رحمت او احسان سره هدایت حاصلیږی۔ ﴿وَاللَّهُ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ﴾ (البقرة: ۲۱٤)

**سوال** : اِهْدِنَا سوال بندګان ولے کوی؟ حال دا چه قرآن ته کیناستل دا پخپله هدایت دے، مانځه ته اُودریدل هدایت دے، بیا سوال ولے کوی؟

۱ - **جواب** : چا دا جواب کړیدے چه مراد زیادت د هدایت دے۔ لکه سورة محمد کښې دی : ﴿وَالَّذِينَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ هُدًى وَآتَاهُمْ تَقْوَاهُمْ﴾.

۲ - چا وئیلی دی : تثبت او استقامت په هدایت مراد دے۔ د علی ﷺ نه نقل دی: [ثَبِّتْنَا عَلَيْهِ] (مونږ پدے لاره مضبوط کړے). کلبیؒ وائی : [أَمِتْنَا عَلَى دِينِ الاسلامِ] (په دین اسلام باندے مونږ وفات کړے) (بحر العلوم ۱/ ٤ للسمرقندی)

۳ - یا هدایت په دوه قسمه دے یو حالی دے او بل استقبالی، نو فی الحال خو هدایت شویدے خو راتلونکی زمانه کښې پته نۀ لګی نو معنیٰ دا ده: [اِهْدِنَا فِي الْاِسْتِقْبَالِ كَمَا هَدَيْتَنَا فِي الْحَالِ] ۔ (په آینده کښې هم راته هدایت اُوکړه لکه څنګه چه دے فی الحال راته کړیدے) حاصل ددے معنیٰ او مخکښې یو دے۔ دا جوابونه تفسیر قرطبیؒ وغیره نقل کړیدی۔ دا جوابونه هم بد نۀ دی ۔

٤ - **لیکن** ددے تحقیقی جواب دا دے چه دا سوال هغه څوك کوی چه چا د هدایت په معنیٰ خان نۀ وی پو هه کړے۔ دوی هدایت دیته وائی چه یو سړے ایمان راوړی نو بس هغه ته هدایت اُوشو۔ یا په مانځه اُودریدو نو هغه ته هدایت اُوشو، دا د هدایت نیمګړے تصور دے۔ بلکه د هدایت معنیٰ ده، د الله تعالیٰ حکم معلومول ، دهغے موقع پیژندل او د دغه حکم مرتبه پیژندل او په خپل وخت کښې رایادیدل او بیا د دغه حکم د عمل توفیق ملاویدل۔ او بیا پدے عمل باندے همیش والے کول او د الله په رضا کښې همیشه دپاره کوشش کول، دیته هدایت وئیلے شی، او دے هدایت ته هر سړے محتاج دے، نبی ﷺ هم ورته محتاج دے، صحابه کرام او علماءِ کرام او عوام مسلمانان او نور انسانان ټول ورته محتاج دی، ددے مثال داسے دے، مثلاً ته مسجد ته راغلے دلته ډیر حکمونه شته، نفل کول، تلاوت کول، ذکر کول، جمعه کول نو یو سړے جماعت ته راغے دلته جمع ولاړه ده او

دے تلاوت ته کیناستو چه دا خو ډیر فضیلت لری په یو ټکی الله تعالیٰ لس نیکئ ورکوی نو پدے وجه ئے جَمع پریخوده نو دهٔ ته هدایت اُونهٔ شو. د عمل مرتبه ئے اُونهٔ پیژندله، د الله تعالیٰ حکم ئے صحیح اُونهٔ پیژندو، یو سړے راغے جُمعه ولاړه ده او دا په نفلو یا سنتو اُودریږی نو دا نفل او سنت بنه عمل دے، سړے پرے الله سبحانه وتعالیٰ ته نژدے کیږی، لیکن دهٔ ورله موقع اُونهٔ پیژندله نو دا هدایت نشو، کله چه ته راشے او د الله تعالیٰ حکم درته رایاد شی او مرتبه ئے اُوپیژنے او توفیق د عمل درکړے شی نو دا هدایت دے. او دا ډیره مهمه معنیٰ ده، سوچ پرے اُوکړه.

نو د کوم کسانو فکر چه نیك عمل ته اُونهٔ شی نو دا هم هدایت نهٔ دے. او که خبره او عمل ورته یاد شو لیکن بے ځایه ئے استعمال کړو نو دا هم هدایت نهٔ دے، او که عمل ورته یاد شو لیکن توفیق ورنکړے شو نو دا هم هدایت نهٔ دے. ډیر کرته خلقو ته موقع د اعمالو معلومه وی چه پدے وخت کښ داسے نیك عمل پکار دے لیکن توفیق ورته نهٔ ورکړے کیږی نو دا هم د هدایت نه خالی شو. نو (اِهْدِنَا) دعاء مونږ پدے وجه کوو چه اے الله! ستا حکم مونږ ته راوخایه، بیا موقع ئے راته اُوخایه، او په خپله موقع د هغه حکم د عملی کولو توفیق راکړه نو دا هدایت مونږه غواړو که په مانځه اُودریږو، هم هدایت ته مونږ محتاج یو. او بهر د مانځه نه هم. که د هدایت په دے مفهوم پوهه شوے نو دا سوال هم ختمیږی او د هدایت د غوختلو شوق هم پیدا کیږی، او که تا ته څوك په یوه مسئله کښ اُووائی چه د الله تعالیٰ نه هدایت اُوغواړه نو تا له به غصه هم نهٔ درځی. د نبی ﷺ نه د هدایت د غوختلو په باره کښ ډیرے دعاګانے نقل دی، او هدایت به هر بنده د الله تعالیٰ نه همیشه دپاره بار بار غواړی.

**فائده :** الصراط المستقیم کښ تشبیه د معقول ده د محسوس سره، مقصود ته په رسیدلو کښ دوه شیان ضروری وی: ۱ - الطریق. (لاره وی) ۲ - کونه مستقیماً (او د هغے برابر والے وی) که لاره نهٔ وی نو مقصود ته رسیدل نشی کیدے او که کږه وی نو نشی کیدے یا په مشکل سره کیږی نو دغه رنګ الله تعالیٰ د مؤمن مقصود دے، او لاره د قرآن او حدیث ده، او دا سیده هم ده، په خلاف د بدعت نه چه هغه مقصود ته نهٔ ده رسیدلے نو څومره چه مبتدع تیزی کوی دومره د الله نه جدا کیږی لکه ایوب سختیانیؒ او حسن بصریؒ فرمائی: [مَا ازْدَادَ الْمُبْتَدِعُ اجْتِهَادًا اِلَّا ازْدَادَ مِنَ اللهِ بُعْدًا]

(البدع والنهي عنها لابن وضاح والوجيز في عقيدة السلف) مختصر کتاب الاعتصام (۲۸/۱)
(مبتدع چه څومره کوشش کوی نو هغومره د الله تعالیٰ نه لرے کیږی).
**الصراط المستقيم**: د الصراط المستقیم ددے لفظی معنیٰ خو واضحه ده خو پدے کښ استعاره شویده، داسے چه ددے معنوی لارے دپاره د ظاهری لارے دا لفظ الله تعالیٰ استعمال کړیدے استعارةً نو دلته ظاهری لاره ذکر ده مراد ترینه معنوی لاره ده نو ددے مصداق څه دے؟ یعنی په څه شی مونږ روان شو هغه نیغه لاره څه شے دے؟:

## د صراط مستقیم مصداقات:

ددے ډیر مصداقات علماؤ بیان کړیدی چه د ټولو حاصل تقریباً یو راوځی.
حافظ ابن کثیرؒ او ابن جریرؒ فرمائی: [هُوَ الطَّرِيقُ الَّذِيْ لَا اعْوِجَاجَ فِيْهِ] (د اُمت اتفاق دے پدے چه صراط مستقیم هغه روښانه لارے ته وائی چه په هغے کښ هیڅ کوږ والے نهٔ وی).
مصداقات ئے دا دی:
۱- اول قول: مراد ددے نه دین الاسلام دے، الله تعالیٰ ته د رسیدو نیغه لاره فقط اسلام دے بل دین نهٔ دے. ۲- حافظ ابن کثیرؒ وائی: اتباع الکتاب والسنة. د قرآن او حدیث تابعداری ده) ۳- تفسیر مدارك کښ دی: (اَلدِّيْنُ الْحَقُّ). او دا د ابن عباسؓ نه تفسیر فتح البیان نقل کړیدی [اَلْهِمْنَا دِيْنَكَ الْحَقَّ] (اے الله! ستا د حق دین الهام او خودنه مونږ ته اُوکړه) او حق دین صرف اسلام دے نو څوك چه د اسلام نه بهر شو هغه په نیغه لار ندے، یهود نصاریٰ هندوان او شیعه ګان وغیره په نیغه لار ندی.
٤- عبد الله بن عباس ﷺ نه نقل دی چه دینه مراد کتاب الله دے یعنی قرآن مجید.
٥- تفسیر قاسمیؒ کښ لیکلی دی: [طَرِيْقُ الْعُبُوْدِيَّةِ] د الله د بندګئ لارے ته وائی.
(معلومه شوه چه بندګی به د ځان نه نهٔ جوړوی).
٦- بعض مفسرینو لیکلی دی چه صراط مستقیم دیته وائی:
[اَلَّذِيْ لَا اِفْرَاطَ فِيْهِ وَلَا تَفْرِيْطَ]. هغه لارے ته وائی چه زیادت او نقصان پکښ نهٔ وی او دا نهٔ دے مګر اسلام دے چه پاك دے د زیادت او نقصان نه نو زمونږ په دین کښ افراط او تفریط نشته، په خلاف د یهودیت او نصرانیت نه او قدریة او جبریة نه.
٧- بله معنیٰ په عمدة التفسیر کښ د عبد الله بن مسعود ﷺ نه نقل ده هغه فرمائی:

[اَلصِّرَاطُ الْمُسْتَقِيمُ هُوَ مَا تَرَكَنَا عَلَيْهِ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ]

(دا هغه لار ده چه رسول الله ﷺ پرے مونږ (صحابه کرامؓ) پریخی یو)۔

۸- بعض خلق وائی ددینه مراد (السنة والجماعة) دے، (فتح البیان)

سنت د رسول الله ﷺ طریقے ته وائی او الجماعة د صحابه کرامؓ طرزِ زندگی ته وائی۔

اُوس اهل السنة والجماعة تهکے اغواء شویدے، بریلوی ډله ئے هم خانته وائی سره ددینه چه مینخ کښ مشرکانه عقائد لری۔ نو بریلوی جماعت او د احمد رضاخان فاسدو طریقو ته اهل السنة والجماعة نهٔ وائی بلکه د رسول الله ﷺ سنت او د صحابه کرامو طرز زندگی ته وئیل کیږی، نو د سنت او جماعت اختیارونکی ته اهل السنة والجماعة وائی او دا په صحیح حدیث کښ هم راغلی دی۔ هغه جماعت چه ناجیه (نجات موندونکے) دے هغه نبی علیه السلام خودلے دے چه (مَا اَنَا عَلَيْهِ وَاَصْحَابِيْ) (یعنی په هغه لاره چه څوک روان وی په کومه چه زه او زما صحابه روان وی) بس دا نجات والا دے۔

د صحابه کرامو په زمانه کښ تنظیمونه وغیره نهٔ وو او نهٔ دا تقلیدونه وو، تولو صحابه کرامؓ به آیت او حدیث اُوریدو او په هغے به ئے عمل کولو، د حق تلاش به ئے کولو او د چا نه که به گناه صادره شوه نو تلقین د توبے به ئے ورته کولو او نورے قیصے نهٔ وے، امر بالمعروف او نهی عن المنکر به کیدلو، جهادو نه به کیدل، په حق کښ به د خلیفه تابعداری به کیدله۔ نو مراد د صراط مستقیم نه دغه د صحابه کرامو لاره ده۔ او د رسول الله ﷺ سنت دی۔

۸- امام مجاهدؒ وائی : ددے نه مراد د حق لاره ده۔

۹- ابو العالیهؒ نه روایت دے چه ددے نه نبی علیه السلام او د هغه نه بعد ابوبکر او عمر رضی الله عنهما مراد دی۔

۱۰- بهترین مصداق هغه دے چه امام ابن قیمؒ په بدائع التفسیر (۱/۲۵۵) کښ ذکر کړیدے :

هُوَ طَرِيْقُ اللّٰهِ الَّذِيْ نَصَبَهُ لِعِبَادِهٖ عَلٰى اَلْسُنِ رُسُلِهٖ مُوْصِلًا لِلْعِبَادِ اِلَيْهِ لَا طَرِيْقَ لَهُمْ سِوَاهُ بَلِ الطُّرُقُ كُلُّهَا مَسْدُوْدَةٌ اِلَّا هٰذَا وَهُوَ اِفْرَادُهٗ بِالْعُبُوْدِيَّةِ وَاِفْرَادُ رَسُوْلِهٖ بِالطَّاعَةِ فَلَا يُشْرِكُ بِهٖ اَحَدًا فِيْ عُبُوْدِيَّتِهٖ وَلَا يُشْرِكُ بِرَسُوْلِهٖ اَحَدًا فِيْ طَاعَتِهٖ فَيُجَرِّدُ التَّوْحِيْدَ وَيُجَرِّدُ مُتَابَعَةَ الرَّسُوْلِ ﷺ.

(یعنی دا د الله تعالیٰ هغه لاره ده چه بندگانو دپاره ئے په ژبه د رسولانو مقرر کړیده چه

پدے سره بندگان الله تعالیٰ ته اُورسوی، د بندگانو دپاره ددے لارے نه سوئ بله لاره نشته، بلکه ټولے لارے بندے دی سوئ ددے لارے نه، او هغه لاره: د الله تعالیٰ يواځے بندگی کول دی او د رسول الله ﷺ يواځے اطاعت کول دی، نو د الله تعالیٰ سره به هيڅوك په عبادت کښ نۀ شريکوی او د رسول الله ﷺ سره به په طاعت کښ څوك نۀ شريکوی، نو توحيد به هم خالص کړی او د رسول الله ﷺ متابعت (تابعداری) به هم خالص کړی)۔ انتهیٰ يعنی د الله تعالیٰ به بلا واسطه بندگی کوی او د نبی ﷺ به بلا واسطه تابعداری کوی نو هله به په صراط مستقيم روان شي۔ او که د نبی ﷺ او د هغه د احاديثو تابعداری ئے د چا د وجه نه کوله چه مثلاً دا زما د امام د قول مطابق دے ځکه ئے منم نو دا يے دينی ده او د شرك خطره ده۔ بلکه په هر عمل کښ به د الله تعالیٰ او د هغه د رسول نه متأثره کيږے۔

## د اهل حقو او اکثرو مقلدينو طريقه کښ فرق:

د اهل حقو طريقه دا ده چه د يو عالم نه د مسئلے تپوس کوی او هغه ورته د قرآن او حديث نه جواب ورکړی نو مقصود ئے نبی ﷺ وی او هغه عالِم ئے مقصود نۀ وی بلکه د هغه نه ئے رڼرا واخسته او هغۀ ئے صرف رهنمائی اُوکړه او ځان ئے پرے مقصد ته اُورسولو، او هغه ته دعاء کوی چه الله تعالیٰ دِے درله اجر درکړی چه ما ته دِے زما مقصد اُوخودلو۔ او د اکثرو مقلدينو طريقه دا ده چه دوی عمل کوی، مقصود ئے امام او عالِم وی، عمل د امام د وجه نه کوی د الله تعالیٰ او د رسول نه پکښ تأثر نۀ اخلی۔ لکه د عامو مقلدينو حالاتو باندے نظر واچوه چه د فقه عبارت ورته د قرآن او حديث په شان ښکاری اگرکه په هغے هيڅ قسم صحيح دليل نۀ وی بلکه په فتاوو کښ قرآن او حديث ليکل عيب گنړی۔ او دا وهمی خبره نۀ ده، په خارج کښ وجود لری۔

نو هر مسلمان له پکار دی چه په هر عمل کښ به د الله تعالیٰ او د رسول الله ﷺ نه متأثر کيږی چه دا د الله تعالیٰ امر دے، د محمد رسول الله ﷺ طريقه ده نو دغه عمل الله رب العالمين ته قبول دے، که يو سړے پدے نيت عمل اُوکړی چه دا د الله تعالیٰ او رسول ﷺ حکم دے نو الله تعالیٰ ورته اجر ورکوی۔ ځکه په دۀ کښ اخلاص دے۔

او که پدے نيت عمل کوی چه د امام صاحب د مذهب سره سمون خوری ځکه پرے عمل پکار دے نو دده که دا هر څومره ښه عمل وی او په حديث کښ هم راغلے وی نو هم اجر ئے

نشته ځکه دا په کښې د الله تعالیٰ او د رسول الله ﷺ نه متأثر نهٔ دے۔ نو مسلمانانو د خپلو عملونو تفقد پکار دے۔!!

**خلاصه** : حقیقت دا دے چه دا ټول اقوال صحیح دی او د ټولو یو مطلب راوځی ځکه چا چه د نبی اکرم ﷺ اتباع اُوکړه او د هغه نه روستو د هغهٔ د صاحبینو اقتداء ئے اُوکړه نو هغهٔ د حق اتباع اُوکړه او چا چه د حق اتباع اُوکړه نو هغه د اسلام اتباع اُوکړه او چا چه د اسلام اتباع اُوکړه نو هغهٔ د قرآن اتباع اُوکړه او همدا قرآن د الله تعالیٰ کتاب دے، د هغهٔ مضبوطه رسئ ده او د هغهٔ نیغه لاره ده۔ او دا لاره د اهل السنة والجماعة ده او دا لاره د مسلمینو ده او دا لاره د اهل حدیث ده۔ والله المستعان۔

## په قرآن کریم کښې د صراط مستقیم مصداقات

اوس دا واوره چه **قرآن** پخپله صراط مستقیم څه ته وئیلے دے؟:

۱- العبادة لله وحده : لکه ﴿وَإِنَّ اللهَ رَبِّي وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ﴾ (آلعمران : ٥١) (ومریم : ٣٦) ﴿وَأَنِ اعْبُدُونِي هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ﴾ سورة یس (٦١) آية۔

۲- دویم کتاب الله۔ لکه سورة انعام (۱۲۶) او (۱۵۳) کښې ذکر دے۔

۳- د رسولانو لار۔ لکه سورة یس (٤) آیت کښې :﴿إِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾۔ محمد رسول الله ﷺ په نیغه لار روان وو۔ احادیث د رسول الله ﷺ نیغه لار ده۔ او سورة زخرف (٤٣) او سورة صافات (۱۱۸) او سورة فتح (۲) کښې ذکر دے۔

٤- د رسول الله ﷺ تابعداری کول لکه سورة زخرف (٦١) کښې ذکر دے۔

## ﴿صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ﴾

دا عبارت په ترکیب کښې بدل واقع شویدے د صراط المستقیم نه۔ او ددے جملې په ذکر کولو کښې **یوه فائده** دا ده چه هدایت د انبیاء کرامو علیهم السلام په لاره کښې دے، او دا تنبیه ده اُمت ته چه ډیر خلق به تاسو ته دعوت درکوی خو ستاسو مطلوب به د انبیاء علیهم الصلاة والسلام لاروی، ددے وجه نه که د انبیاء علیهم السلام د لارے نه د هر جماعت خبره جدا وه نو دا به ورانه لاروی لکه په تصوف کښې درے څلور ډلے جوړے شویدی او خلقو د هغے تقلید هم واجب کړیدے چه (قادریه، سهروردیه، نقشبندیه او چشتیه) دی، او بعض خلق وائی چه دے څلورو کښې به خامخا ورداخلیږے که نهٔ وی نو

گمراه به ئې.

مونږ وایو چه دا خو یو بدعت دے، اتمه صدیٔ کښې پیدا شویدے، بل پدے کښې غلطې عقیدې او غلط اعمال او غلطې طریقې دي لکه دوی کښې بعض وائي: په پوزه به ذکر کوے، سره ددے چه په پوزه ذکر کول نهٔ په سنت کښې شته او نهٔ په کښې څه اجر شته، او رسول الله ﷺ فرمائي: په ژبه ذکر کویٔ. [لَا يَزَالُ لِسَانُكَ رَطْبًا مِنْ ذِكْرِ اللهِ]

[ترمذی ۲٦۸۷، ابن ماجه ۳۷۹۳، وسنده صحیح]

او په پوزه ذکرچرته په دین کښې ندے راغلے. او دیر قسمه ذکرونه دوی نور هم د خانه جوړ کړیدی، ذکر اثبات، او ذکر دو ضربه او سه ضربه. دا په دین کښې نشته، هسے په زوره خلق په عذاب کښې اچول دی. پدے ډلو کښې ورداخلیدل هم بدعت دے او د یو حدیث خلاف هم ده. او نور نقصانات هم پکښې دی. پیری او مریدی د صحابه کرامو په نقشه کښې نهٔ وه، بلکه په طریقه د تعلیم او تعلم او وعظ او نصیحت سره به ئې په دین عمل کولو، نبی ﷺ به په یو مجلس یا منبر بانْدے یوه خبره د دین اُوکړه نو صحابه کرامو به پرے عمل کولو دغه طریقه د مسلمانانو د عمل راروانه ده. څوك چه وائي د پیریٔ سلسله علي ﷺ ته یا خالد بن ولید ﷺ ته رسیدلی ده، دا دروغ وائي، هیڅ حقیقت نهٔ لري.

۲- **دویمه فائده**: یو د الله تعالیٰ کتاب دے، دویم رجال الله دي، انسان پدے دوه شیانو هدایت ته رسیږي، اصل هدایت به د کتاب الله نه اخلے، او رجال الله نه به پکښې فائده اخلے، ځکه چه دا د قرآن نه هدایت اخستل گران دی، بلکه محال دی، ضرور به پدے کښې د علماؤ نه استفاده کوے، چا چه بے استاذه په قرآن کریم کښې خبرے شروع کړیدی، هغه ضرور گمراه کیږي، دا د تجربے نه ثابته ده، اکثر ډاکټران چه مطالعه ئې جاري نهٔ وي، د عربی په اصولو او اسالیبو او گرامر بانْدے خبر نهٔ وي او قرآن کریم مطالعه کوي. یا په خپله طبع او خواهش د اُردو، او پښتو تفاسیر گوري، هغه بیا بے دینه کیږي. پدے کښې د علماؤ نه استفاده پکار ده ځکه د قرآن کریم تفسیر د رسول الله ﷺ نه رانقل دے.

بیا د (اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ) مصداق اول نبي ﷺ او بیا د هغهٔ صحابه کرام او بیا عام علماء کرام (رحمهم الله) دي.

۳- **فائده**: په یو لاره چه څوك روانیږي نو اول گوري چه آیا پدے لاره مخکښې چا تګ کړیدے او که نهٔ؟ نو پدے جمله کښې اهل ددے لارے بیانوي. نو د صراط مستقیم انتخاب

ستا په گمان نۀ کیږی بلکه دا به د الله تعالیٰ د انبیاء کرامو علیهم السلام، د صحابه کرامؓ او نیکانو سلفو په ذریعه معلوموي.

٤- **فائده** : پدې کښې بشارت او تسلی ده مؤمن ته چه ته په دې لاره باندې یواځې نه ئې، ځکه پدې لاره نور خلق هم تلی دی چه رسول الله ﷺ او صحابه کرام (رضی الله عنهم) او تابعین او تبع تابعین، او امامان د دین دی، اهل الحدیث، اهل السنة والجماعة (رحمهم الله) دی.

٥- **فائده** : د هرې لارې علامات وی، د صراطِ مستقیم علامات دغه انبیاء علیهم السلام او صالحین دی.

﴿ **انعمت علیهم** ﴾ لفظ د اَنۡعَمۡتَ د انعام نه ماخوذ دې، انعام د نُعومت نه دې، په لغت کښې خوش عیشیٔ (ښه او نرم ژوند) ته وائی.

اصطلاحاً نعمت دوه قسمه دې : ۱- النعم الدنیویه ۲- او بل النعم الاخرویه . بیا دنیوی نعمتونه په دوه قسمه دی ۱- اول وهبی، ۲- او بل کسبی. وهبی نعمتونه ډیر دی، زمونږ دا ټول اندامونه، زمکه آسمان، اُوبه، هواء دا وهبی نعمتونه دی. کسبی دا دی چه د سړی کسب په هغې کښې واسطه وی یعنی انسان د هغې په کسب باندې مکلف وی، الله تعالیٰ دا نعمتونه بے کسبه هم ورکولے شی خو چه مخلوق ئې پرے مکلف کړیدې نو دے کښې حکمت به مختصراً اُوس بیان کړو تفصیل ئې روستو راځی.

**حکمة** دا دے چه ددے په ذریعه الله تعالیٰ د فساد نه خلق مصروف کړیدی، که چرته خلق ټول وزګار وی نو فتنه او فسادونه به وې :

﴿ وَلَوۡ بَسَطَ اللّٰهُ الرِّزۡقَ لِعِبَادِهٖ لَبَغَوۡا فِي الۡاَرۡضِ ﴾ (شوریٰ :۲۷)

ن (که د ټولو بندګانو دپاره رزق فراخه کړی نو په زمکه کښې به فسادونه اُوکړی).

او دا نعمتونه ټول بیا دوه قسمه دی یو جسمانی دی، بل روحانی دی. جسمانی نه مراد خوړل، څکل، اغوستل وغیره دی او روحانی نعمتونه لکه خوشبویانے او خوشحالیانے وغیره او دا نعمتونه الله تعالیٰ هر چا له ورکوی، کافر، مسلمان، نیک او بد ټولو ته او هغه د نیک بختیٔ او بد بختیٔ علامه نۀ ده، بلکه الله تعالیٰ کله دنیوی نعمتونه خپلو دوستانو ته هم ورکوی کله ئې ترے بیرته اخلی او کله ئې دشمنانو ته ورکوی پدې کښې بیا ډیر حکمتونه دی.

د ډیرو خلقو دا عقیده ده چه یو سړی له الله تعالیٰ مال ورکړو نو دا د الله تعالیٰ دوست دے

او كه نهٔ وي نو نه ؟ دا غلطه عقيده ده۔

نو دلته نعمتونه دينيه يا اخرويه مراد دي۔ دا هم دوه قسمه دي :١- وهبي، لكه بعض سرې كښې د وړوكوالي نه ښه صفات وي نو دا وهبي ديني نعمت دے۔ ٢- بل نِعَمِ اُخْرَوِي كَسْبِي دي لكه تا كښې نشته، ته به ئې حاصلوې، كسب كوې به ئې لكه صبر، خشوع، حق پرستي دا در يكښې نشته، ته ئې حاصل كړې نو موږ پدې مكلف يو چه دا به حاصلوو، دا ديني نعمتونه په ميراث كښې نهٔ پاتې كيږي۔ بلكه ددې د حاصلولو كوشش به كوې۔ دا ټول ديني نعمتونه بيا روحاني دي، او د جسم سره ئې هم تعلق وي خو ضمناً او اصل كښې ديني نعمتونه روحاني دي۔

ديني نعمتونو باندې سړې عظيم ګرځي، عزتمند كيږي، خلق به درسره محبت كوي، د الله تعالىٰ ديدار او جنت ته داخليدل پدې باندې بناء دي نو دلته همدا ديني نعمتونه مراد دي۔

## د اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ مصداق

ددې مصداق څوك دي: ١- يو مصداق ئې انبياء عليهم السلام، الصديقين، والشهداء الصالحين، دا څلور طبقات دي چه په سورة النساء (٦٩) آيت كښې راغلي دي۔ ﴿وَمَنْ يُطِعِ اللهَ وَرَسُوْلَهٗ فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللهُ عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيّٖنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَآءِ وَالصّٰلِحِيْنَ﴾ څوك چه د الله او د رسول اطاعت اُوكړي دا به د انبياء، صديقين، شهداء او صالحينو سره وي او ﴿ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللهُ عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيّٖنَ مِنْ ذُرِّيَّةِ اٰدَمَ﴾ سورة مريم (٥٨) آيت۔

٢- او په حديث كښې (مَا اَنَا عَلَيْهِ وَاَصْحَابِيْ) ته وئيلې شويدې (يعني زهٔ او زما صحابه كرام چه په كوم دين روان دي نو دا نجات والا خلق دي)۔

٣- معالم التنزيل كښې امام بغوىؒ ليكلي دي چه ددې نه مراد هغه څوك دي ؟[اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ بِالْهِدَايَةِ وَالتَّوْفِيْقِ]

يعني (چه تا پرې انعام كړيدې په هدايت او توفيق د هدايت سره)۔

٤- تفسير قرطبىؒ دا تعبير هم كړيدې [اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ بِالْمَحَبَّةِ وَالْاُنْسِ]

(اې الله ! د هغه چا لاره موږ ته راوخايه چه تا ورته خپل محبت او اُنس ورنصيب كړيدې)۔

اُنس يوه خاصه مرتبه ده چه د انسان د الله تعالىٰ سره تعلق وي، په الله تعالىٰ ئې زړه

خوشحاله وي، د هغه خبرے، د هغه سره یو اځے والے ورله خوند ورکوي۔
۵- دارنګه د سهل بن عبد الله (رحمه الله) نه نقل دي چه دلته [اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ بِنِعْمَةِ الْإِسْلَامِ وَالسُّنَّةِ]۔ مراد دي، یعنی چه د اسلام او سنت نعمت پرے شویدے۔ داټول تعبیرونه پدے کښې صحیح دي، حاصل ئے یو دے۔
**الراجح** : پدے کښې غوره دا ده چه په اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ کښې عموم دے پدیکښې د دین هر بنکلے صفت او نعمت داخل دے، لکه ایمان، اعمال، اخلاق حسنه، صفات جمیله شو، یعنی د هر نیك عمل توفیق دے ورکریدے، بعض خلق دے مجاهدین کریدي، څوك الله تعالیٰ ته دعوت والا دي، خشوع والا دي، انابت والا دي، د الله تعالیٰ د محبت والا دي، ایمان والا دي، اے الله دا انعامات زمونږه سره هم اُوکړه۔ لکه پدے باندے دلیل دا دے چه الله تعالیٰ مطلق انعام ذکر کړیدے او مفعول او متعلق ئے ورله نهٔ دے ذکر کړے۔ روستو په لطائفو کښې ددے تفصیل راروان دے۔

## ﴿غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ﴾

ددے جملے په ترکیب کښې دوه احتماله دي : ۱- دا صفت دے د الذین نو معنیٰ دا ده چه لاره د هغه کسانو چه تا پرے انعام کړیدے۔ دا څوك دي؟ هغه کسان دي چه غضب پرے نهٔ دے کړے شوے۔ دا تفسیر ظاهر دے، ابو حیانؒ په بحر المحیط کښې دیته ترجیح ورکړیده۔ او فائده ئے دا ده چه دے خلقو دواړه صفتونه راجمع کړل مطلق نعمت چه ایمان دے او سلامتیا د غضب او ضلال نه هم ورته مِلاؤ شوه۔ ۲- یا دا غیر المغضوب علیهم د صراط د لاندے دے لکه ابن کثیرؒ وائي چه دلته مضاف الیه قائم دے په مقام د مضاف، او مضاف دلته حذف دے، اصل کښې داسے دے (غَيْرِ صِرَاطِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ) ۔نو معنی دا ده : نهٔ لار د هغه کسانو چه غضب کړے شویدے په هغوی۔ دا ترکیب جائز دے لیکن افضل نهٔ دے ځکه تقدیر پکښې دے او په هغه مخکښې ترکیب کښې نحوی لحاظ سره بلاغت ډیر دے۔ په اول ترکیب باندے **اعتراض** دا دے چه غیر خو مبهم دے نو دا څنګه صفت واقع شویدے د الذین دپاره، هغه خو معرفه ده ؟
**جواب** دا دے چه غیر هله نکره او مبهم وي چه مضاف الیه ئے عام وي او دلته ئے مضاف الیه خاص دے چه مغضوب دي لهذا دا مضاف شو خاص ته نو معرفه شوه نو صفت واقع

کیدے شي او پدے کښې هیڅ اشکال نشته دے۔ یا دا سے اُووایه چه کلمه د غیر چه کله د دوه متضاد څیزونو په مینځ کښې واقع شي نو بیا په اضافت سره معرفه کیدے شي۔
اُوس پدے مقام کښې یو څو بحثونه دي وضاحت د لفظ د غضب او اسباب د غضب او بل د مغضوب علیهم مصداق او بل پدے لفظ کښې فوائد بیانیږي ان شاء الله۔

## اول بحث : د لفظ غضب وضاحت :

مغضوب د غضب نه ماخوذ دے، ماده د غضب په قرآن کریم کښې (۲۴) کرته ذکر ده۔ غضب (غصه) د انسان صفت هم دے او د الله تعالیٰ غضب هم شته۔
د بنده د غضب تعریف دا دے [ثَوَرَانُ الدَّمِ عِنْدَ إِرَادَةِ الْإِنْتِقَامِ]
(وینه د سرې جوش اُووهي کله چه د چا نه انتقام اخلي) (راغبؒ)
۲- [تَغَیُّرُ الطَّبْعِ لِمَکْرُوْهٍ]:
(د طبیعت خلاف کار لیدو سره د طبیعت بدلیدو ته غضب وائی)
او کله اعراض ته هم وائی ځکه چه اعراض ثمره د غضب ده۔ (البحر المحیط : ۱/۲۱)
متکلمین وائي چه د غضب خو دغه تعریف دے او دا تعریف په الله تعالیٰ نهٔ صادقیږي لهذا د الله تعالیٰ د غضب نه ئې انکار اُوکړو او وے وئیل چه د الله تعالیٰ دپاره غضب نشته دے او قرآن کریم کښې چه نسبت د غضب ورته کیږي نو مراد ترینه اِیْقَاعُ الْعُقُوْبَةِ (سزا ورکول) وي، د غضب معنیٰ به ئې نهٔ کوے۔ **جواب** دا دے چه غضب د الله تعالیٰ دپاره شته ځکه الله تعالیٰ خپل ځان له او د هغه رسول ﷺ د هغه دپاره ثابت کړیدے، خو د الله تعالیٰ غضب دغسے غضب نهٔ دے څنګه چه د بنده غضب دے، د الله تعالیٰ غضب داسے دے څنګه چه د هغه د شان سره مناسب وي، په قرآن کریم کښې هم د الله تعالیٰ د غضب صفت شته او حدیثو کښې هم شته۔ ﴿وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَیْهِمْ﴾ (الفتح : ٦) او ﴿فَیَحِلَّ عَلَیْکُمْ غَضَبِیْ وَمَنْ یَّحْلِلْ عَلَیْهِ غَضَبِیْ فَقَدْ هَوٰی﴾ (طه : ۸۱)
او حدیث د شفاعت کښې راځي انبیاء علیهم السلام ته به خلق ورشي، د سفارش مطالبه به کوي، هر یو به وائي ﴿إِنَّ رَبِّیْ قَدْ غَضِبَ الْیَوْمَ غَضَبًا لَمْ یَغْضَبْ قَبْلَهٗ مِثْلَهٗ وَلَا یَغْضَبُ بَعْدَهٗ مِثْلَهٗ] [بخاری ومسلم] (یعنی الله تعالیٰ نن ورځ داسے غصه دے چه نهٔ مخکښې داسے غصه شویدے او نهٔ به روستو داسے غصه شي، زه د هغه مخے له نشم ورتلے) نو قیامت کښې هم

دا د الله تعالیٰ صفت دے، او دا د اهل السنة والجماعة په نیز د الله تعالیٰ اختیاری صفت دے. کله چه ئے خوښه وی، غضب کوی او که خوښه ئے شي نو نهٔ ئے کوی. نو غضب د الله تعالیٰ حقیقی صفت دے، او حقیقت ئے الله رب العالمین ته معلوم دے. صرف آثار ئے بندگانو ته ښکاری لکه انزال العذاب (عذاب نازلول) شول، یا د دین نه محروموَل شو یا نور عذابونه شو. د الله تعالیٰ په رحمت او غضب کښې تاویلات کوَل د مبتدعینو طریقه ده، د اهل السنة والجماعة طریقه دا ده چه دا صفات منل او هیڅ قسم تاویل پکښې نهٔ کول. او غټ غټ خلق پدے تاویلاتو کښې اخته دی لکه امام قرطبیؒ وغیره. ځکه د هغوی دے خبرے ته توجه نهٔ وه پیدا شوے چه د دواړو غضبونو ترمینځ فرق دے.

بیا ددے نه مراد تمام هغهٔ خلق دی چه د هغوی نیتونه فاسد شویدی، چه هغوی حق اُوپیژندلو او بیائے ترے اعراض اُوکړو، پداسے خلقو کښې یهودیان همیشه پیش پیش وو. چه هغوی په تورات کښې د موجود دلائلو په رڼرا کښې د رسول الله ﷺ او د اسلام رشتین والے یقینی اُوپیژندلو لیکن په عداوت او دشمنئ او ضد کښې راغلل او اسلام ئے قبول نهٔ کړو او رسول الله ﷺ باندے ئے ایمان رانهٔ وړو.

**فائده** : د غیر المغضوب لفظ ئے روستو د انعمت علیهم نه راوړو دے دپاره چه د نعمت د مدعی او د حقیقی نعمت والا په مابین کښې تمیز او فرق اُوشی. ځکه چه هر مُجرم دعویٰ د هدایت او صراط مستقیم کوی. نو الله تعالیٰ اشاره کوی چه اصل منعم علیهم هغه خلق دی چه د انبیاء او صدیقین په شان عمل اختیاروی او د مغضوب علیهم او ضالین صفات پکښې نهٔ وی.

## د غضب اسباب :

غضب په څه وجه په انسان راځی؟ ددے دپاره اسباب دی، ددے معلوموَل ضروری دی:

۱ - یو خو پدے وجه چه مونږ ترے ځان اُوساتو.

۲ - او دویم دا چه په قرآن کریم کښې مهارت حاصل شی.

۱ - اول سبب : تَبۡدِيۡلُ النِّعۡمَة: (د الله نعمت بدلول) الله درسره احسان کړیدے، دین ئے درکړیدے، نبی ئے رالیږلے دے، قرآن او حدیث ئے درکړیدی او ته دا بدل کړے په نورو لارو پسے روان شے یا سنت پریږدے، بدعاتو پسے روان شے. دا په سورة بقره (۶۱) آیت کښې دی چه یهودیانو اُووئیل :

﴿لَنْ نَّصْبِرَ عَلٰى طَعَامٍ وَّاحِدٍ﴾ نو موسی علیه السلام ورته اُوفرمایل : دا سوالونه مه کوئ د الله نعمت مه بدلوئ نو هلته الله فرمائی : ﴿وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ وَالْمَسْكَنَةُ وَبَاءُوْا بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ﴾ نو د نعمت په بدلولو د الله تعالیٰ په غضب اخته شو۔

۲- اَلْکُفْرُ بَغْیًا : د عناد د وجه نه د حق خبرے نه انکار کول۔ سورة بقره (۹۰) آیت کښې دی : ﴿بِئْسَمَا اشْتَرَوْا بِهٖ أَنْفُسَهُمْ أَنْ يَّكْفُرُوْا بِمَا أَنْزَلَ اللّٰهُ بَغْيًا أَنْ يُّنَزِّلَ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ﴾ نو د عناد کولو د وجه نه د الله تعالیٰ غضب نازلیږی۔

۳- قَتْلُ نَفْسِ الْمُؤْمِنِ عَمْدًا :(د مؤمن قصداً وژل) : د مؤمن وژل لویه گناه ده۔ حدیث کښې راځی چه د مؤمن په دین کښې وخت په وخت ترقی راځی لیکن چه کله قتل اُوکړی نو تنزل پکښې راځی (سنن ابی داود : ۴۲۷۰) دا په سورة النساء (۹۳) آیت کښې راغلی دی۔

﴿وَمَنْ يَّقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهٗ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيْهَا وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِ﴾

۴- اَلنَّفْرَةُ عَنِ الْإِسْلَامِ وَالطَّعْنُ فِيْهِ :(د اسلام نه نفرت او په هغے کښې طعن کول) یعنی د دین په مسئلو کښې طعن کول او د هغے نه خلق منع کول چه دے قرآن له مهٔ ورځئ، د اهل حقو مهٔ ملگری کیږئ، په داسے دعوت سره الله تعالیٰ په بنده غضب کوی لکه سورة مائده (۶۰) آیت کښې دی : ﴿قُلْ أَؤُنَبِّئُكُمْ بِشَرٍّ مِّنْ ذٰلِكَ مَثُوْبَةً عِنْدَ اللّٰهِ مَنْ لَّعَنَهُ اللّٰهُ وَغَضِبَ عَلَيْهِ﴾ هلته غضب پدے وجه شوے وو چه یهود دین پسے توقے کولے او اسلام ته ئے ناکاره دین وئیلو، قرآن او حدیث ته ئے ناکاره لاره وئیله۔

۵- اَلْإِفْتِرَاءُ عَلَى اللّٰهِ تَعَالٰى : (په الله تعالیٰ دروغ وئیل) بنده داسے مسئله بیانوی چه الله تعالیٰ وئیلے نهٔ وی او هغه ته ئے نسبت کوی۔ سورة اعراف (۷۰) آیت کښې دی ﴿قَالَ قَدْ وَقَعَ عَلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ رِجْسٌ وَّغَضَبٌ﴾۔

۶- اَلْمُجَادَلَةُ فِى الْأَسْمَاءِ الشِّرْكِيَّةِ : (اسماء شرکیه ؤ کښې جگړه کول) لکه همدغه آیت د اعراف (۷۰) کښې دی : ﴿أَتُجَادِلُوْنَنِىْ فِىْ أَسْمَآءٍ سَمَّيْتُمُوْهَا﴾ ۔ مطلب دا دے چه سړے د نورو مخلوقاتو عظمتونه بیانوی چه دے ولی دا کار کړیدے او دا ئے کړیدی۔

۷- اَلْاِرْتِدَادُ عَنْ دِيْنِ اللّٰهِ :(د الله تعالیٰ د دین نه اوړیدل او د یهود نصاریٰ، پرویزیان او قادیانیانو ملگرتیا) نو الله تعالیٰ پدے خلقو غضب کوی۔ سورة النحل (۱۰۶) آیت کښې دی : ﴿مَنْ كَفَرَ بِاللّٰهِ مِنْ بَعْدِ إِيْمَانِهٖ ...... وَلٰكِنْ مَّنْ شَرَحَ بِالْكُفْرِ صَدْرًا فَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ﴾۔

(ځوک چه منکر شی، د دین نه مرتد شی نو په ده غضب دے او دا رشتیا مغضوب دے

چه ددې خوږ دین (قرآن او حدیث) نه په بل طرف اوړي.

**۸- د جهاد نه او ږیدل** : چـه د کـفارو سره جنګ وي او انسان لاړ شي او په کور کښې کېني. سورة الانفال (۱۶) آیت کښې دي : ﴿وَمَنْ يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُ ...... فَقَدْ بَاءَ بِغَضَبٍ مِنَ اللهِ﴾ څوك چه میدان د جنګ نه اوتختیدو په ده غضب دې. (ددې مطلب به هلته راشي چه انسان کورته لاړ شي او جهاد پریدي او دا مطلب نهٔ دې چه میدان کښې روسته شي لکه دا د بعض خلقو نظر دې. په میدان کښې تختیدل راتختیدل جائز دي، د جنګي تکتیك او د ځان د حفاظت په خاطر).

**۹- مُخَالَفَةُ وَعْدِ الرَّسُوْلِ** :(نبي ﷺ د امت نه وعده واخلي او امت د هغې خلاف کوي). لکه دا سورة طه (۸۶) آیت کښې دي : ﴿غَضَبٌ مِنْ رَبِّكُمْ فَأَخْلَفْتُمْ مَوْعِدِيْ﴾

(اې بني اسرائیلو تاسو د الله غضب غواړئ چه زما د وعدې مخالفت مو اوکړو).

**۱۰- اَلطُّغْيَانُ فِي الرِّزْقِ** : (الله تعالیٰ انسان له رزق ورکړي او هغه په ناشکرئ شروع اوکړي، د حلال او حرام تمییز نهٔ کوي، زکوٰة، صدقه ترې نهٔ ورکوي، الله تعالیٰ پرې غضب کوي. لکه دا قسم ناشکریانې پدې زمانه کښې ډیرې شویدي، یو سړي ته الله تعالیٰ مال ورکړي هغه هوټل جوړکړي په هغې کښې هر قسم رزقونه هم وي خو د الله تعالیٰ نافرماني هم پکښې ډیره زیاته کیږي) لکه ﴿وَلَا تَطْغَوْا فِيْهِ فَيَحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبِيْ﴾ سورة طه (۸۱) آیت.

**۱۱- اَلْمُحَاجَّةُ فِي اللهِ** : د الله تعالیٰ په باره کښې محاجه او جګړه کول د الله تعالیٰ ذات او صفاتو، نومونو او حقوقو باره کښې جګړې). لکه ﴿وَالَّذِيْنَ يُحَاجُّوْنَ فِي اللهِ مِنْ بَعْدِ مَا اسْتُجِيْبَ لَهٗ حُجَّتُهُمْ دَاحِضَةٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ وَّلَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ﴾ (سورة شوریٰ :۱۶آیت)

(څوك چه د الله تعالیٰ په آیتونو کښې جګړې کوي، دلیل ئې باطل دې په نزد د رب او په هغوي به د الله تعالیٰ غضب کیږي).

**۱۲- مُوَالَاةُ الْكُفَّارِ** : (د کفارو سره دوستانه، مینه محبت او تعلق ساتل، د هغوي په ډله کښې ورداخلیدل) - دا په سورة الممتحنه (۱۲،۱۴) آیت کښې راغلي دي. ﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللهُ عَلَيْهِمْ﴾

## وَلَا الضَّآلِّيْنَ :

ماده د ضلال قرآن کریم کښې (۹۰) کرته راغلې ده په لغت کښې په معنی د ورك کیدو ده لکه عرب وائي : (ضَلَّ الْمَآءُ فِي اللَّبَنِ) - (اوبه په پیوو کښې ورکې شوې). په فارسئ کښې ئې

معنی ده (گمراهي) یعنی بے لارے توب۔ گم ورك کیدو ته او راه لارے ته وائی نو ضلالة دیته وائی چه د دین صحیح لاره د سړی نه ورکه شي۔ امام قرطبیؒ وائی: ضلال: [اَلذَّهَابُ عَنْ سَنَنِ الْقَصْدِ وَطَرِيْقِ الْحَقِّ] ...... (د درمیانه او د حق د لارے نه اوړیدلو ته وائی).

۲- [اَلْعُدُوْلُ عَنِ الطَّرِيْقِ السَّوِيِّ عَمْدًا اَوْخَطَأً] [بیضاوی- البحر المدید]

(د نیغے لارے نه قصداً یا خطأ اړیدو ته وائی).

○ او ددے نه مراد هغه خلق دی چه هغوی د اسلام او د رسول الله ﷺ د صدق علم حاصل نهٔ کړو او په خپله گمراهئ کښې پاتے شو او پداسے خلقو کښې پیش پیش نصاریٰ (عیسائیان) وو۔ او هر هغه څوك چه په حق عمل نهٔ کوی او د حق نه جاهل وی۔ لکه روستو ئے تفصیل راځی۔ نو د ضلالت هم یو څو اسباب دی او بیا د مغضوب علیهم او ضالین مصداقات او ددے اسبابو سره به معنیٰ شرعی د ضلال هم معلومه شی۔

## د ضلالت اسباب

۱- اول سبب : تَبْدِيْلُ الْكُفْرِ بِالْاِيْمَانِ : (د ایمان په بدل کښې کفر اخستل) دا لوئی ضلال دے۔ لکه : ﴿ وَمَنْ يَّتَبَدَّلِ الْكُفْرَ بِالْإِيْمَانِ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيْلِ ﴾ (البقره : ۱۰۸)۔

۲- عَدَمُ الْعَمَلِ بِالْعِلْمِ : (یو سړے یو مسئله زده کړی او بیا په هغے عمل نهٔ کوی) نو دا هم گمراهی ده، خو پدے کښې به بیا مراتب وی، اعلیٰ، ادنیٰ او متوسطه چه عمل د ایمان درجه کښې وی او بنده پرے عمل نهٔ کوی نو دا اعلیٰ گمراه دے، او که د گناه کبیره درجه کښې وی نو دا متوسط گمراه دے او که صغیره گناه کوی، دا ادنیٰ درجه گمراه دے۔ لکه ﴿ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ اُوْتُوْا نَصِيْبًا مِّنَ الْكِتٰبِ يَشْتَرُوْنَ الضَّلٰلَةَ ﴾ (النساء : ٤٤)

دا هغه مُلیان دی چه په خپل علم عمل نهٔ کوی او گمراهی اخلی۔

۳- اَلتَّوَلِّىْ عَنْ اِتِّبَاعِ الرَّسُوْلِ : (د رسول الله ﷺ د تابعدارئ نه اوړیدل) دا په سورة النساء (۱۱۳) آیت کښې ذکر ده چه د رسول الله ﷺ لاره چا پریخوده دا گمراه دے۔

﴿ وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكَ وَرَحْمَتُهٗ لَهَمَّتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْهُمْ اَنْ يُّضِلُّوْكَ، وَمَا يُضِلُّوْنَ اِلَّا اَنْفُسَهُمْ ﴾

٤- اَلصَّدُّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ : (د الله تعالیٰ د لارے نه خلق اړول) لکه ﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ قَدْ ضَلُّوْا ضَلٰلًا بَعِيْدًا ﴾ (النساء : ۱٦۷)

٥- اَلْكُفْرُ : (د الله تعالیٰ د ذات نه انکار کول لویه گمراهی ده۔ کافران گمراهان دی۔ لکه

همدغه سورة النساء (۱٦۷) آیت کښې شو۔

٦- **اَلْغُلُوُّ فِی الدِّیْن** :(په دین کښې غلو کول چه ددې وضاحت به روستو راشي۔ لکه ﴿ قُلْ یَا اَهْلَ الْکِتَابِ لَا تَغْلُوْا فِیْ دِیْنِکُمْ ﴾ (المائده : ۷۷) ۔ غلو فی الدین گمراهي ده۔

۷- **اِتِّبَاعُ الْهَوٰی** : (د خواهش تابعداری) لکه ﴿ لَیُضِلُّوْنَ بِاَهْوَائِهِمْ ﴾ (الانعام : ۵٦) ۔(گمراه کیږي په خپلو خواهشاتو)۔

۸- **اَلْاِعْتِرَاضُ عَلَی الرَّسُوْل** : ( په رسول باندې اعتراض کول) لکه ﴿ فَضَلُّوْا فَلَا یَسْتَطِیْعُوْنَ سَبِیْلًا ﴾ (الاسراء : ٤۸)۔

(اې نبي ! دا خلق په تا اعتراضونه کوي نو دوي گمراه دي)۔

۹- **اَلْاِعْرَاضُ وَالْعِصْیَانُ عَنْ اَمْرِ الرَّسُوْل** : د رسول الله ﷺ د امر نافرماني گمراهي ده کله په درجه د کفر کښې او کله په درجه د گناه کبیره کښې لکه ﴿ وَمَنْ یَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا مُّبِیْنًا ﴾ (الاحزاب : ۳٦) ۔ (څوك چه د الله تعالیٰ او د رسول خلاف کوي دا ښکاره گمراه دې)۔

۱۰ - **اَلْمَوَدَّةُ مَعَ الْکُفَّار**: (د کفارو سره محبت گمراهي ده) لکه ﴿ وَمَنْ یَّفْعَلْهُ مِنْکُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِیْلِ ﴾ (سورة الممتحنة : ۱) ۔(چا چه داکار اُوکړو د نیغې لارې نه گمراه دې)۔

۱۱ - **اِتِّبَاعُ الْاَکْثَرِیَّة** : د اکثریت تابعداری۔ لکه ﴿ وَاِنْ تُطِعْ اَکْثَرَ مَنْ فِی الْاَرْضِ یُضِلُّوْكَ عَنْ سَبِیْلِ اللّٰهِ ﴾ (الانعام : ۱۱٦) (که د اکثریت تابعداری اُوکړې، گمراه به شې) دا مسئله قرآن کریم کښې ډیره ذکر ده۔ او دا سبب دې د ډیرو خلقو د گمراه کیدو۔

۱۲ - **اِسْتِحْبَابُ الدُّنْیَا عَلَی الْاٰخِرَة** : ( دنیا په آخرت غوره کول)۔ لکه ﴿ اَلَّذِیْنَ یَسْتَحِبُّوْنَ الْحَیٰوةَ الدُّنْیَا عَلَی الْاٰخِرَةِ ...... اُولٰٓئِكَ فِیْ ضَلٰلٍ بَعِیْدٍ ﴾ (ابراهیم : ۳)۔

او پدې سبب ډیر خلق بې دینه کیږي۔

۱۳ - **اَلْقُنُوْطُ مِنْ رَّحْمَةِ الله** : (د الله تعالیٰ د رحمت نه نا اُمیده کیدل) لکه : ﴿ وَمَنْ یَّقْنَطُ مِنْ رَّحْمَةِ رَبِّهٖٓ اِلَّا الضَّآلُّوْنَ ﴾ (سورة الحجر: ۵٦) ۔(صرف گمراه خلق د الله تعالیٰ د رحمت نه نا اُمیده کیږي)۔

۱٤ - **قَسْوَةُ الْقَلْب** : (د زړه سختوالې) لکه ﴿ فَوَیْلٌ لِّلْقٰسِیَةِ قُلُوْبُهُمْ مِّنْ ذِکْرِ اللّٰهِ اُولٰٓئِكَ فِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ ﴾ (سورة الزمر: ۲٤) (د چا چه زړه سخت دې دا ښکاره گمراه دې) پدې معنیٰ گمراهي په دنیا کښې ډیره زیاته شویده۔ لږ خپل ځان سره فکر اُوکړه !۔

**۱۵ - اَلْمُمَارَاةُ وَالْمُجَادَلَةُ فِی السَّاعَةِ** - (د قیامت په باره کښې جګړې کول) لکه:
﴿ اَلَا اِنَّ الَّذِیْنَ یُمَارُوْنَ فِی السَّاعَةِ لَفِیْ ضَلٰلٍۢ بَعِیْد ﴾ [الشوریٰ : ۱۸]
(هغه کسان چه د قیامت په باره کښې جګړې کوی دا ډیر لرې ګمراهان دی)
**۱۶ - دُعَاءٌ عَنْ غَیْرِ اللّٰه** : (د غیر الله نه دعاء غوختل) سورة احقاف (۵) آیت کښې راغلی دی
: ﴿ وَمَنْ اَضَلُّ مِمَّنْ یَّدْعُوْ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ﴾ [احقاف : ۵] - (څوك ډیر ګمراه دے د هغه چا نه چه د
الله تعالیٰ نه سویٰ بل چا ته آواز کوی) دارنګه ﴿ ذٰلِكَ هُوَ الضَّلٰلُ الْبَعِیْدُ ﴾ (سورة الحج : ۱۲)
غیر الله ته آواز کول ډیره لرې ګمراهی ده۔

## په قرآن کریم کښې د ضلال معانی :

ضلال چه په قرآن کریم کښې په نورو معانیو استعمال دے، هغه دا دی :
**۱ - اَلضَّلَالُ فِیْ مُقَابَلَةِ الْهُدٰی**: (ضلال مقابل د هدایت راځی) یعنی غلطه لاره۔ لکه
﴿ اُولٰٓئِكَ الَّذِیْنَ اشْتَرَوُا الضَّلٰلَةَ بِالْهُدٰی ﴾ (بقره : ۱۶) (ګمراهی ئې واخسته په هدایت) او دے
آیت کښې هم دا معنیٰ مراد ده۔
**۲ - ضلال بمعنی النّسْیَان** : (ضلال نسیان ته وائی) لکه : ﴿ اَنْ تَضِلَّ اِحْدٰىهُمَا فَتُذَكِّرَ
اِحْدٰىهُمَا الْاُخْرٰی ﴾ (البقره : ۲۸۲) (نو دے کښې ضلال د ذکر مقابل دے یعنی د خبرے هیرول۔
او دا شرعی ګمراهی نهٔ ده)۔
**۳ - عَدَمُ الْعِلْمِ بِمَصَالِحِ الدُّنْیَا** :(سادګی، د دنیا په شیانو نهٔ پوهیدل) لکه ﴿ اِنَّ اَبَانَا لَفِیْ
ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ ﴾ (یوسف : ۸) یعنی پلار مو ساده دے۔
**٤ - ضلال بِمَعْنَی الْمَحَبَّةِ** : (انتهائی محبت) لکه﴿ اِنَّكَ لَفِیْ ضَلٰلِكَ الْقَدِیْمِ ﴾(یوسف : ۹۵)
(نهٔ په پخوانۍ مینه کښې پروت ئې) مجاهدؒ وائی ستا محبت نهٔ زړیږی)۔ او دلته د
ګمراهۍ معنیٰ نهٔ ده۔
**۵ - حَبْطُ الْاَعْمَالِ**:(د عمل بربادولو ته) لکه﴿ اَلَّذِیْنَ ضَلَّ سَعْیُهُمْ ﴾ [کهف : ۱۰٤]۔
(یعنی برباده ده سعی او کوشش د دوی)۔
**٦ - اَلْغَفْلَةُ** : لکه دا د الله په صفاتِ سلبیه ؤ کښې راغلے دے، لکه ﴿ لَا یَضِلُّ رَبِّیْ وَلَا یَنْسٰی ﴾
(طه : ۵۲) - (یَعْنِیْ لَا یَغْفُلُ) - دلته د ګمراهۍ معنی غلطه ده۔ دلته ئې معنی د غفلت ده،
یعنی زما رب نهٔ غافله کیږی۔

۷- **بمعنی الاعراض** : ضل په معنی د الصرف (اړولو) سره راځی لکه : ﴿اِنْ كَادَ لَيُضِلُّنَا عَنْ آلِهَتِنَا﴾ (الفرقان : ٤٢) يعنی لَيَصْرِفُنَا (نزدې ده چه دا محمد رسول الله ﷺ مونږ واړوی د خپلو معبودانو نه).

۸- **عَدَمُ الْعِلْمِ بِعَاقِبَةِ الشَّيْئِ** : ( د یو شی په عاقبة نهٔ پوهیدل). لکه ﴿قَالَ فَعَلْتُهَا إِذًا وَأَنَا مِنَ الضَّالِّينَ﴾ (الشعراء : ۲۰).(زه نهٔ پوهیدم چه دا به په سوك مړ شی).

۹- **بمعنی الغَيْبُوْبَة** : غیبوبة (غائبیدل) دائے لغوی معنیٰ ده. لکه ﴿وَقَالُوْٓا ءَ اِذَا ضَلَلْنَا فِي الْاَرْضِ﴾ [الم السجده : ۱۰] (کله چه مونږه زمکه کښې ورك شو، غائب شو).

۱۰- **بمعنی التَّحَيُّر** : (حیرانتیا)، گمراه انسان هم حیران وی، لکه ﴿وَوَجَدَكَ ضَآلًّا فَهَدٰى﴾ (الضحی : ۷) (په هغے کښې ډیرے معانی دی یوه پکښې دا ده چه ته الله تعالیٰ موندلے وے حیران) چه دا خلق به څنګه سمے لارے ته راشی، الله ورته لاره اُوخودله. دا مختلفې معانی د ضلال دی دلته ضلالة په مقابله د هدایت کښې مراد دے.

## د مغضوب علیهم او ضالین مصداقات

ددے ډیر مصداقات دی : ۱- د عدی بن حاتم ﷛ په یو اُوږد حدیث کښې دی چه په هغے کښې د هغهٔ د اسلام راوړو واقعه بیان شویده چه نبی ﷺ اُوفرمایل : (اَلْمَغْضُوْبُ عَلَيْهِمْ) نه مراد یهود او د (ضالین) نه مراد نصاریٰ دی. دائے صرف یو مصداق دے او د تخصیص په طور نهٔ دے وئیل شوے. په هغه زمانه کښې همدا دواړه ډلے مثال وو. پدے وجه مفسرینو نور مصداقات هم بیان کړیدی.

۲- لکه بعض وائی : مغضوب علیهم نه مراد هر معاند (عنادگر) کافر دے چه د ضد د وجه نه حق نهٔ منی او ضالین جهلاء (جاهلان، ناپوهه) دی. (تفسیر کبیر)

۳- بعض وائی : مغضوب علیهم نه کفار مجاهرون (ښکاره کافر) مراد دی او د الضالین نه منافقان مراد دی چه ظاهری کفار نهٔ دی خکه منافقان گمراه دی لاره ترے خطاء ده.

(تفسیر سراج المنیر)

٤- سهل بن عبد الله وائی : مغضوب علیهم بدعتیان دی چه په دین کښې نوے خبرے پیدا کوی، او ضالین هغهٔ دی چه د سنتو خلاف کوی، بدعت هم نهٔ کوی خو په سنتو هم نهٔ وی روان. (معالم التنزیل) قرطبیؒ وائی : دا غوره قول دے.

۵- مغضوب علیهم فساق (فاسقان) دي او ضالین کفار دي. (تفسیر کبیر للرازی)

۶- لنډه قاعده دا ده چه چا کښې د یهودو صفات پیدا شو، دا مغضوب علیهم کښې داخل دے او چا کښې چه د نصاراؤ صفات وي دا به د ضالینو نه وي، صفاتو له اعتبار دے.

دے وجه نه سفیان بن عُیَیْنَه رحمه الله وئیلي دي: [قَالَ عُلَمَاؤُنَا مَنْ فَسَدَ مِنْ عُلَمَآئِنَا فَفِیْهِ شَبَهٌ مِنَ الْیَهُوْدِ وَمَنْ فَسَدَ مِنْ عُبَّادِنَا فَفِیْهِ شَبَهٌ مِنَ النَّصَارٰی) [مجموع الفتاوی(۱/۱۹۷) وابن کثیر (۴/۱۳۸) سورة التوبة] .(یعنی زمونږ د اُمت علماؤ وئیلي دي چه څوك زمونږ د علماؤ نه فاسد شو نو په هغه کښې به د یهودو مشابهت وي (او دا حقیقت دے چه زمونږ پدے علماؤ کښې څوك خراب شي د یهودو صفات به پکښې وي، د دنیا محبت، تکبر، عناد، د حق نه اړول به پکښې وي) او څوك چه زمونږ د عابدانو نه خراب شي نو د نصاراؤ مشابهت به پکښې وي) (لکه نن صبا پیران او د هغوی مریدان چه د خپلو پیرانو په باره کښې د الُوهیت تصور کوي او هغوی ته سجدے جائز ګڼړي).

○ او شیخ الاسلام فرمائي: د اکثرو سلفو نه نقل دي چه فرمائي: [إِحْذَرُوْا فِتْنَةَ الْعَالِمِ الْفَاجِرِ وَالْعَابِدِ الْجَاهِلِ، فَإِنَّ فِتْنَتَهُمَا فِتْنَةٌ لِكُلِّ مَفْتُوْنٍ، فَمَنْ عَرَفَ الْحَقَّ وَلَمْ يَعْمَلْ بِهِ أَشْبَهَ الْيَهُوْدَ الَّذِيْنَ قَالَ اللّٰهُ فِيْهِمْ ﴿أَتَأْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنْسَوْنَ أَنْفُسَكُمْ﴾ وَمَنْ عَبَدَ اللّٰهَ بِغَيْرِ عِلْمٍ بَلْ بِالْغُلُوِّ وَالشِّرْكِ أَشْبَهَ النَّصَارٰى الَّذِيْنَ قَالَ اللّٰهُ فِيْهِمْ ﴿يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لَا تَغْلُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ﴾ فَالْأَوَّلُ مِنَ الْغَاوِيْنَ وَالثَّانِيْ مِنَ الضَّآلِّيْنَ، فَإِنَّ الْغَيَّ اتِّبَاعُ الْهَوٰى وَالضَّلَالَ عَدَمُ الْهُدٰى وَمَنْ جَمَعَ الضَّلَالَ وَالْغَيَّ فَفِيْهِ شَبَهٌ مِنْ هٰؤُلَاءِ وَهٰؤُلَاءِ] [مجموع الفتاوی (۱/۱۹۷) ودقائق التفسیر (۲/۱۴۵) لابن تیمیة]

(یعنی د بدکاره عالم او جاهل عابد د فتنے نه اُوویریږئ (ځان بیچ کړئ) ځکه د دوی فتنه د هرے فتنے والا دپاره فتنه ده، نو چا چه حق اُوپیژندلو او عمل ئے پرے اُونکړو نو دا د هغه یهودو مشابه شو د کومو په باره کښې چه الله تعالیٰ فرمائیلي دي (آیا تاسو خلقو ته په نیکئ حکم کوئ او هیروئ خپل ځانونه) او چا چه د الله تعالیٰ عبادت اُوکړو په غیر د علم نه بلکه په غلو (زیاتي) او شرك سره نو دا د نصاراؤ مشابه شو د کومو په باره کښې چه الله تعالیٰ فرمائیلي دي: (اے اهل کتابو! زیاتے په خپل دین کښې مهٔ کوئ) نو اول د غاوین (سرکشانو) نه شو او دویم د ضالین (ګمراهانو) نه شو. ځکه چه د خواهشاتو تابعداري سرکشي ده او د هدایت او علم نشتوالے ګمراهي ده. او چا چه ګمراهي او سرکشي دواړه راجمع کړل نو په هغه کښې د دواړو ډلو مشابهت دے. انتهیٰ. (او پدے قول سره د یهود او

نصاراؤ بیل بیل صفت واضح شو)

○ شاه ولی الله الدهلوی رحمه الله په الفوز الكبير كښې ليكلى دى:

[اِنْ شِئْتَ اَنْ تَرَىٰ اُنْمُوْذَجًا مِنَ الْيَهُوْدِ فَانْظُرْ اِلَى عُلَمَآءِ سُوْءٍ زَمَانِكَ وَاِنْ شِئْتَ اَنْ تَرَىٰ اُنْمُوْذَجًا مِنَ النَّصَارٰى فَانْظُرْ اِلَى رُهْبَانِ سُوْءٍ زَمَانِكَ وَاِنْ شِئْتَ اَنْ تَرَىٰ اُنْمُوْذَجًا مِنَ الْمُنَافِقِيْنَ فَانْظُرْ اِلَى حُكَّامِ زَمَانِكَ] (كه ته غواړے چه نمونه د يهوديانو اُووينے نو د خپلے زمانے بد كاره علماؤ ته اُوګوره۔ او كه ته غواړے چه نمونه د نصاراؤ اُووينے، نو د خپلے زمانے ناكاره پيرانو ته اُوګوره۔ او كه غواړے چه د منافقانو نمونه اُووينے نو د خپلے زمانے حاكمانو ته اُوګوره)۔

غرض دا دے چه هر چا كښې چه دا صفات وى نو پدے ډلو كښې به داخل وى۔

○ مفسرين ليكى: چه دلته الله تعالىٰ د دوه جدا جدا پوره فسادګرو خلقو لارے بيان كړے، يو د يهودو لاره او بل د نصاراؤ، دے دپاره چه ايمان والا د دے دواړو لارو نه بچ شى، يهودو د حق پيژندلو نه روستو د هغے اتباع اُونكړه پدے وجه د غضب مستحق شو او نصاراؤ حق اُونۀ پيژندلو نو ځكه ئے د حق لاره اُونۀ موندله نو بس ګمراه شو۔ او حقيقت دا دے چه يهود او نصارىٰ ټول ګمراه او په ټولو باندے د الله تعالىٰ غضب دے، ليكن يهود د الله تعالىٰ په غضب سره او نصارىٰ په ضلالت او ګمراهئ سره مشهور شو۔

(تيسير الرحمن للشيخ لقمان السلفى)

## فوائد الآية:

١- **فائده**: دا درے ډلے ئے ولے خاص كړے په ذكر كولو سره؟ نو حكمت دا دے: ځكه انسان به يا حق پيژنى عمل به پرے كوى او يا به داسے نۀ وى:

[فَالْاَوَّلُ مِنْهُمْ مُنْعَمٌ عَلَيْهِمْ وَالثَّانِىْ لَا يَخْلُوْ اِمَّا لَا يَعْرِفُ الْحَقَّ اَصْلًا فَهُوَ الضَّالُّ وَاِمَّا اِنْ يَعْرِفَ الْحَقَّ وَلٰكِنْ لَّا يَعْمَلُ بِهٖ فَهُوَ الْمَغْضُوْبُ عَلَيْهِ]

(نو اول د دوى نه منعم عليهم دى او دويم به هم خالى نۀ وى يا به حق د سره (بالكل) نۀ پيژنى نو دا (ضالين) ګمراه دى او يا به حق پيژنى ليكن عمل به پرے نۀ كوى نو دا مغضوب عليهم دى۔ نو پدے صفاتو اول ځان تله او بيا نور۔

٢- **فائدة**: د انعمت عليهم نسبت الله تعالىٰ ته اُوشو او مغضوب ئے په صيغه د اسم مفعول سره راوړو، فاعل ئے ذكر نۀ شو دا ولے؟ **جواب**: انعام خو د الله تعالىٰ محض تفضل دے، او صرف د الله تعالىٰ د طرفنه كيږى ﴿وَمَا بِكُمْ مِنْ نِعْمَةٍ فَمِنَ اللهِ﴾ (النحل: ٥٣) په

خلاف د غضب او ضلال نه چه دا د بنده د ورانۍ د وجه نه وی نو مغضوب (چه غضب پرے کرے شویدے)، دا د هغه د عمل د وجه نه دے. الله تعالیٰ پرے څه ظلم نهٔ دے کرے او فاعل ئے ذکر نکړو ځکه چه دوی باندے غضب د الله او د ملائکو او د اولیاء الله چه رسولان دی او د هغوی د اتباعو تولو د طرف نه دے. او چونکه دوی اسباب د گمراهۍ ځانله اختیار کړی وو نو ځکه ئے فاعل د ضلال ذکر کړو. او دا د قرآن نه بل ځائے کښې هم ثابته ده. ﴿مَا اَصَابَكَ مِنْ حَسَنَةٍ فَمِنَ اللهِ وَمَا اَصَابَكَ مِنْ سَيِّئَةٍ فَمِنْ نَّفْسِكَ﴾ (النساء) (تاته چه څه خیر رسیږی دا د الله تعالیٰ فضل دے او چه شر رسیږی نو دا ستا د عمل وجه ده).

(تفسیر القرآن للعثیمین رحمه الله)

۲- دویم حکمة: پدے کښې ادب غرض دے او دا د قرآن کریم طرز او طریقه ده، چه غالباً د شر نسبت الله تعالیٰ ته نهٔ کوی اگرکه خالق ئے دے او د خیر نسبت الله تعالیٰ ته براهِ راست کیږی لکه آیت دے ﴿اَشَرٌّ اُرِيْدَ بِمَنْ فِي الْاَرْضِ اَمْ اَرَادَ بِهِمْ رَبُّهُمْ رَشَدًا﴾ (الجن) اُرِيْدَ مجهوله او (اَرَادَ) ئے معلومه صیغه راوړه پدے کښې ادب دے. حدیث کښې دی: [وَالشَّرُّ لَيْسَ اِلَيْكَ] (اَىْ لَا يُنْسَبُ الشَّرُّ اِلَيْكَ]

۳- **فائده**: یهود او نصاریٰ دواړه گمراه هم دی او مغضوب علیهم هم دی نو بیا دلته تخصیص الغضب بالیهود والضلال بالنصاریٰ ولے اُوشو، دارنگه په حدیث کښې ولے اُوشو او مفسرین ئے ولے کوی؟ جواب دا دے چه دواړه صفات په دواړو کښې شته لیکن [ذَكَرَ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ بِاَشْهَرِ وَصْفَيْهِ] (هر یو ئے په ډیر مشهور صفت سره ذکر کړیدے) (یهودو کښې دواړه صفات شته خو غضب کښې مشهور دی او نصاراؤ کښې دواړه صفات دی لیکن په ضلال کښې مشهور دی).

٤- **فائده**: وجه د تقدیم د مغضوب علیهم څه ده؟ پدے کښې حکمتونه او رازونه دی.

۱- اول [لِتَقَدُّمِهِمْ فِي الزَّمَانِ] یهود په زمانه کښې مخکښې وو.

۲- دویم: یهود مدینه کښې اُوسیدل نبی علیه السلام ته نزدے وو او نصاریٰ لرے وو، نجران او حبشه او یمن کښې وو. ۳- دریمه وجه: د یهودو کفر أغلظ وو نو ځکه ئے مقدم کړو. او دارنگه یهود د حق سخت مخالفت کونکی وو د نصاراؤ په نسبت، ځکه دوی علماء وو او د علم والا حق ته راواپس کول ډیر مشکل وی په خلاف د جاهل نه.

۵- **فائده**: مغضوب ئے صیغه د اسم مفعول ذکر کړه او ضالین اسم فاعل پدے کښې

څه حکمت دے ؟ وجه دا ده چه غضب ورته د الله د طرفه رسيدلے دے د دوی د جرمونو د وجه نه او ضلال دوی پخپله پیدا کریدے۔ نو دوی پخپله فاعل دی د هغے دپاره۔

٦- **فائده**: د انعمت پسے ئے د مغضوب ذکر ددے دپاره اُوکړو چه مدعی د نعمت او حقیقی نعمت والو ترمینځ فرق راشی، مطلب دا شو چه هغه نعمت والا چه غضب پرے ندے شوے او صرف مدعیان نهٔ دی۔

(۲) دویمه فائده: غیر المغضوب ئے ځکه راوړو چه مؤمن ته کله کله بعض غضب او ضلال رسیږی لکه ګنهګار مؤمن شو نو ګویا دلته دعا اُوشوله چه اے الله ! د هغه منعم علیهم لاره راوښایه چه هیڅ قسم غضب او ضلال پرے ندے شوے یعنی د اعلیٰ درجه منعم علیهم لاره راوښایه۔ (۳) مغضوب صیغه د اسم مفعول ده او ضالین صیغه د اسم فاعل ده او دا دواړه د حال او استقبال دپاره استعمالیږی نو دے کښې اشاره ده دے ته چه منعم علیهم حقیقی هغه کسان دی چه غضب او ضلال ورته نهٔ فی الحال رسیدلے دے او نهٔ به په راتلونکی زمانه کښې ورورسیږی بلکه خاتمه ئے ښه کیدو والا ده نو دوی د هغه منعم علیهم لاره اُوغوختله چه استقامت والا دی په ایمان او هدایت ترمرګه پورے۔

٧- **فائده**: څه حکمة دے چه مقبولین ئے یوه ډله اُوګرځوله او مردودین ئے دوه ډلے ؟ نو حکمت دا دے چه په کومو خلقو د الله تعالیٰ نعمت کامل شویدے نو دا هغه خلق دی چه دوی راجمع کړیدے معرفة د حق لذاته او خیر لره د وجه د عمل کولو نه په دے باندے نو دا په (انعمت علیهم) کښې مراد شو۔ نو که د عمل په قید کښې خلل راشی نو دا فاسقان دی او دا په مغضوب علیهم) کښې مراد دی۔ لکه آیت دے ﴿وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا وَغَضِبَ اللهُ عَلَيْهِ﴾ (النساء:٩٣) او که د علم په قید کښې خلل راشی نو دا ضالین او ګمراهان دی، ځکه چه فرمائی :

﴿فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ إِلَّا الضَّلَالُ﴾ (یونس: ٣٢) (اللباب لابن عادل الدمشقی ١/٣٤)

## د آمین متعلق مسائل

په آخر د سورهٔ فاتحه کښې آمین ونیل سنت طریقه ده لیکن مقتدیانو باندے دا واجبه ده او امام دپاره سنت ده ځکه مقتدیانو ته امر راغلے دے (اذا امن الامام فأمنوا) (کله چه امام آمین وائی نو تاسو هم آمین وایئ) نو په امام باندے واجب نهٔ ده ځکه امر ورته نشته،

هغه له سنت دے۔ امام مالك رحمه الله وائی چه د امام دپاره آمین نشته۔ خو هغه ته دا حدیث نهٔ وو رسیدلے، ځکه که دا حدیث ورته رسیدلے وے نو داسے قول ئے نهٔ کولو۔ هغه ته بل حدیث رسیدلے دے چه [اِذَا قَالَ الْاِمَامُ وَلَا الضَّآلِّيْنَ فَقُوْلُوْا آمِيْنَ] ۔ (امام چه ولا الضالین اُووائی نو تاسو آمین وایئ) نو وائی: چه امام به آمین نهٔ وائی، خو دا بل حدیث هغه ته دے رسیدلے او ائمه کرامو سره کله داسے کیږی چه یو حدیث ورته اُونهٔ رسیږی۔ د جمهورو مذهب دا دے چه آمین وئیل د هر چا دپاره سنت دی او واجب نهٔ دی۔

**مسئلة** : **بیا** د آمین وئیل لکه څنګه چه په مانځه کښ سنت دی همدارنګه بهر د مانځه نه هم سنت دی بلکه آمین د متعلقاتو د فاتحے نه دے، هر کله چه فاتحه اُووئیلے شی آمین به ورسره وئیلے شی۔ جبرئیل علیه السلام چه راغے فاتحه ئے رسول الله ﷺ ته اُوخودله نو آمین ئے ورسره اُوخودلو چه دا وایه نو فائده دا ده چه څوك فاتحه وائی نو هغه به آمین وائی که فاتحه دِے مکرره اُووئیله نو آمین به هم مکرر وائی۔ (فتاوی الدین الخالص ٤/، والحق الصریح ٤/٢١٨/٢٥٣)

د آمین معنیٰ ده : [اَللّٰهُمَّ اسْتَجِبْ] (اے الله ! دا دعاء قبوله کړے)۔

## آمین به په جهری مانځه کښ په جهر وائی

وائل بن حجر ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ غیر المغضوب علیهم ولا الضالین اُووئیلو او آواز ئے په آمین وئیلو باندے راخکلو ۔(وسنده صحیح- ترمذی : حدیث نمبر : ٢٤٨)

د ابوداود په روایت کښ دی : رسول الله ﷺ په اُوچت آواز سره آمین اُووئیلو۔

سنن ابی داود : ٩٣٣/٩٣٤، سنن الدارقطنی ١/٣٣٤)

○ د ابو هریره ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : « کله چه امام (آمین) اُووائی نو تاسو هم وایئ ځکه چه د چا آمین د ملائکو د آمین سره یوځائے شی، د هغه تول مخکنی ګناهونه معاف کیږی »۔ (بخاری ومسلم) نور دلائل فتاوی الدین الخالص او الحق الصریح (٤) کښ اُوګوره۔

د آمین لفظ وئیل عبادت دے، دعاء ده نو ددے وجه نه دا به د عبادت په شکل وائی په جهری مونځونو کښ به ئے په زوره (اُوچت آواز) سره وائی لیکن په تضرع او عاجزئ سره به وی۔ کریهه چغه به نهٔ کوی۔

## آمین په مصحف کښې ولې نهٔ دے لیکلے شوے

په مصحف کښې آمین ولې نهٔ دے لیکلے شوے؟ ځکه دا ورسره نازل نهٔ وو، او صحابه کرامو (رضی الله عنهم) به په قرآن کریم کښې دننه هغه څه نهٔ پریخودل چه د قرآن مجید حصه به نهٔ وه، اګرچه ضروری به وو، نو آمین په سنت ثابت دے، وئیل ئے شته او د فاتحے سره نازل نهٔ دے۔ لیکن قرآن کریم کښې دننه نهٔ دے لیکلے شوے۔ دے دپاره چه اشتباه د غیر قرآن د قرآن کریم سره رانشی۔

**فائده** : د فاتحے نه روستو آمین راوړو کښې د مذکوره دعاء تاکید دے چه اے الله ! دا دعا چه مونږ اُوکړه، ضرور قبوله کړه ځکه مهمه ده۔

## لطائف السورة واسرارها وامتیازاتها :

امتیازات دیته وائی چه دا سورة ممتاز وی د نورو سورتونو نه په بعض اسرارو (رازونو) او لطائفو۔ مفسرینو د خپل علم مطابق د هر سورة فائده لیکلے ده، او بعض الله تعالیٰ زمونږ ذهن کښې اچولی دی (ولله الحمد) چه بعضے د هغے نه دا دی (پدے سره به د سورة فاتحے کمالِ عظمت او امتیاز راشی)

## ۱ - اوله فائده - یا - اول حکمة :

په فاتحه کښې د الله تعالیٰ پنځه بنکاره صفتونه دی، او پنځه صفتونه پکښې د بنده دی، د الله تعالیٰ صفتونه دا دی : الله، رب، رحمن، رحیم او مالك۔ د بنده صفتونه دا دی : العبادة (بندګی)، الاستعانة (مدد طلب کول)، طلب الهدایة (اهدنا) کښې، طلب النعمة (په انعمت علیهم کښې)، او پنځم : (پناهی طلب کول د غضب او ضلال نه) او ددے صفاتو د الله تعالیٰ او د بنده د یو بل سره مناسبت دا دے چه دا هر صفت د بنده د صفت د الله تعالیٰ سره تعلق لری عَلٰی تَرْتِیْبِ اللَّفِّ وَالنَّشْرِ الْمُرَتَّب ۔ او هغه دا چه ایاك نعبد کښې عبادت تعلق لری د لفظ د (الله) سره نو د الله تعالیٰ د نوم سره چه ډیرے تعلق ډیر شو او یا عبادت دریکښې بنائسته پیدا شو نو ته به الله تعالیٰ اُوپیژنے او چه تعلق ډیرے د الله د نوم سره وو نو عبادت کښې به ډیرے کمال پیدا کیږی۔ دویم استعانت : ددے تعلق د رب سره دے ځکه استعانت مدد طلب کولو ته وائی او مدد کول د رب کار دے۔ نو د رب په معنیٰ چه پوهه شوے نو د استعانت په حقیقت به هم پوهه شے۔ بل طلب الهدایة ددے تعلق د رحمن سره دے ځکه د هغه بے حده

مهربان نـه هدایت طلب کول پکار دی۔ او (انعمت علیهم) کښې طلب النعمة دے او همیشـه دپاره نـعمتـونـه د الله تـعالیٰ د طرفه کیږی نو ددے تعلق د رحیم سره دے څکه د رحیم معنیٰ ده همیشه مهربان۔ او مغضوب علیهم او ضالین کښې استعاذه وه نو ددے تعلق د مالك سره دے څکه هغه به مونږ ددے شرونو نه ساتی۔

۲- **فائده** : پدے سورت کښې پنځه صفات د الله تعالیٰ ذکر شو او د انسان په بدن کښې پنځه قُوئ (قوتونه) دی: ۱- اَلْقُوَّةُ الْمَلَكِيَّة : (د ملائکو قوت او هغه بل ته فائده ورکول او چا له ضرر نهٔ ورکول دی) ۲- قُوَّةُ النَّفْسِ الْأَمَّارَةِ بِالسُّوْءِ : (هغه نفس چه سړی ته په بدئ امر کوی، امتحاناً الله تعالیٰ مونږ ته داسے نفسونه راکړیدی)۔

۳- اَلْقُوَّةُ السَّبُعِيَّة : (د درنده ګانو صفت قتل وقتال وژل او شوکول دا ورله مزه ورکوی)

٤- اَلْقُوَّةُ الْبَهِيْمِيَّة : (د حیـوانانو صفت او هغه دا دے چه خپله خوړل د بل پرواه نهٔ کول) دا صفت هم انسانانو کښې شته دے۔ ٥- البدن : د سر نه د خپو پوزے۔

نـو اُوس الله تـعالیٰ مونږ په امتحان کښې اچولی یو، ددے صفاتو اصلاح به کوو، نو القوة الملکیة بـه قَوِی کـوو نـو بیا به مونږ د ملائکو نه غوره یو۔ ملائك د بندګانو نه زیات عبادت کـوی خـو د هـغـوی د عبادت پـه نسبت الله تعالیٰ ته د بنده عبادت ډیر خوښ دے، پدے کښې دوه رازونه دی (الله سبحانه وتعالیٰ ښه پو هیږی)۔

یـو راز دا دے چـه د هـغـوی خـواهشـات نشتـه او د انسان خـواهشـات شته نو د بنده په عبادت کـښې د خـواهشـاتـو خـلاف وی نـو څکه الله تعالیٰ ته قیمت لری، دا وجه ده چه هر عمل کښې چه مشقت ډیر وی د هغے قیمت ډیر وی۔

۲- دویـمـه وجـه دا ده چـه الله تـعـالیٰ انسان لره په خپل لاس پیدا کړیدے نو د الله تعالیٰ مـحبت ورسره ډیـر دے۔ نو القوة الملکیه ځان کښې پیدا کول ضروری شو۔ دویم : د نفس اماره بـالسـوء اصلاح کیږی په رب باندے نو د رب په ذکر به ډیے نفس جوړیږی۔ او د قوت سَبُعیه پـه صفت د رحـمـن بـانـدے اصلاح کیږی، ددے سره تعلق ساته او د الرحیم سره د تـعـلق پـه وجه د قوة بهیمیه اصلاح کیږی او د مالك سره د تعلق په وجه به اصلاح د ټول بدن کیږی۔

۳- **فائده** : د عـاقـل دپاره مـنـاسـب دا ده چـه اصلاح ئے اُوشی چه رجوع اُوکړی خپل مـقـصـد تـه۔ چه هغه عبادت او استعانة دے خو د ځان اصلاح مقدمه ده نو دا یو سرّ (راز) او

حکمت دے په دے سورة کښې، اوددے نه روستو هدایت د الله تعالیٰ نه اُوغواړه او صحبة العقلاء (د عاقلانو ملګرتوب) اُوکړه۔ نو حاصل د سورة دا را اُوتو : اَوَّلًا اِصْلَاحُ النَّفْسِ، ثَانِيًا اَلرُّجُوْعُ اِلَى الْمَقْصَدِ. ثَالِثًا: طَلَبُ الْهِدَايَةِ، رَابِعًا: صُحْبَةُ الْعُقَلَاءِ]

نو دے سورت کښې الله تعالیٰ مونږ ته د ژوند تیرولو طریقه راوخودله۔

٤- **فائده** : پدے سورة کښې د سیر الی الله (الله تعالیٰ ته د ورتللو) طریقه خودلے شویده، الله تعالیٰ زمونږ مقصد دے، هغه طرفته به ورځو مزل به کوو، هغه ته به فِرار (تیخته) کوو نو د ورتلودپاره په سفر کښې څو خبرے ضروری وی :

اول : الزاد (توښه) به ځان سره واخلے۔ دویم : ...... دِلِیل (لارخود، رهنما) به درسره وی چه لاره درته اُوخائی۔ دریم : موانع به لرے کوی کله چه دا تول څیزونه درسره نهٔ وی نو نشی رسیدلے۔ نو چه الله تعالیٰ ته روان ئے نو د عبادت توخه درسره واخله۔ بیا سفر لرے دے نو مدد به اُوغواړے د الله تعالیٰ نه او بیا د لارے معلومات اُوکړه د الله تعالیٰ او د هغه د رسول محمد رسول الله ﷺ نه، او د صحیح لارے والو سره ملګرے شه، او موانع او مشکلات د ځان نه لرے کړه په استعاذه بالمولیٰ (د الله تعالیٰ نه په پناهی طلب کولو سره)۔

٥- **فائده** : پدے سورة کښې د الله تعالیٰ تقریباً (۱۲) نومونه ذکر دی خو څه صراحةً او څه ضمناً۔ دا هر یو نوم یو صحیح عقیده ثابتوی، او غلطے عقیدے رد کوی، دا د قرآن کریم ناشنا کمال دے چه د بدعت د پیدا کیدو نه مخکښې په بدعت رد کوی۔ الله تعالیٰ قرآن کریم کښې داسے خبره کړیده چه د مخکښې نه په هغه غلطو عقیدو رد دے، د الله تعالیٰ هغه (۱۲) نومونه دا دی : د الحمد نه محمود معلومیږی، دویم لله، دریم رب، څلورم رحمان، پنځم رحیم، شپږم مالك، اُووم الدین کښې (اَلدَّیَّان) پروت دے یعنی جزاء ورکونکے ذات۔ په ایاك نعبد کښې معبود صفت دے دا اتم او په نستعین کښې مستعان پروت دے او اهدنا کښې هادی دے او انعمت کښې مُنْعِم او مغضوب کښې د الله تعالیٰ د غضب صفت دے او په ضالین کښې د اِضلال (ګمراه کولو) صفت دے لکه (يُضِلُّ مَنْ يَّشَآءُ) نو دیکښې یو د الله تعالیٰ د ډیرو صفتونو ذکر، او بل پکښې د غلطو عقیدو رد دے۔ په الحمد کښې په مشرکانو رد دے چه د بل چا دپاره صفات د کمال وائی، او هغه لائق د ټولو حمدونو منی، نو اُووئیل شو چه صرف الله تعالیٰ معبود دے، نو په لله کښې دا صحیح عقیده ثابته شوه چه بل معبود نشته۔ نو دیکښې هم په شرك فی العبادة رد شو۔

او په رب العالمين کښې په دهريت رددے چه هغوی د عالم دپاره رب نۀ مني۔
په الرحمن الرحيم کښې په جهميه ؤ رد دے چه د الله تعالیٰ د صفاتو نه منکر دی، اشاعره او ماتريديه ؤ باندے هم رد دے۔ چه پدے صفاتو کښې تاويلات کوی۔
په اِيَّاكَ نَعۡبُدُ وَإِيَّاكَ نَسۡتَعِينُ کښې په قدريه او جبريه ؤ رد دے، په مالك يوم الدين کښې په منکرينو د آخرت رد دے په اِهۡدِنَا الصِّرَاطَ الۡمُسۡتَقِيمَ کښې په هغه ډلو رد دے چه هغه وائی چه انسان د خپل هدايت خپله ذمه وار دے۔ اَنۡعَمۡتَ عَلَيۡهِمۡ کښې په شيعه گانو رد دے چه صحابه کرامو ته بد گوری او بعض يهود انبياء عليهم السلام ته بد گوری انبياء عليهم السلام ئے قتل کړی هم دی۔ ورسره په خوارجو هم رد دے چه هغوی سلفو ته کافر وائی۔
او په غير المغضوب عليهم کښې په يهودو رد دے او په الضالين کښې په نصاراؤ رد دے او په دے کښې هم په خوارجو رد دے ځکه چه په هر ضلال سره تول خلق نۀ کافر کيږی، نو په هغوی باندے رد شو نو پدے سورة کښې چه ته سوچ اُوکړے نو دا قسم علوم به درته معلوم شی، او دا د قرآن کريم ناشنا کمال دے۔
٦- **فائده** : بعض مفسرينو ليکلی دی چه دا سورت په څلورو علمونو مشتمل دے۔ اول علم الاصول۔ (د عقائدو علم) ديته اشاره ده په الحمد لله کښې۔ دويم معرفة النبوة دا په (انعمت عليهم) کښې دے ځکه هلته اول انبياء مراد دی او دا په علم اصول کښې داخل دے۔ دريم معرفة المعاد (د آخرت پيژندل) دا هم په علم الاصول کښې داخل دے۔ دا په مالك يوم الدين کښې دے، او د قرآن درے موضوع گانے دی ۔ ۱- د الله پيژندل۔ ۲- د رسول پيژندل۔ ۳- او د قيامت پيژندل۔ دا دريواړه پدے کښې راغلل نو دا يو علم شو۔
۲- دويم : علم الاحکام دے، متأخرين ورته علم الفروع وائی۔ دا په (اياك نعبد واياك نستعين) کښې دے۔ ۳- دريم : علم الاخلاق دے، دا په اياك نستعين کښې دے ځکه چه دا د اخلاقو تقاضا ده چه الله ته به ځان محتاج گڼړے ځکه چه کبر او عجب په سرې کښې بد اخلاق دی۔ ٤- څلورم علم : عِلۡمُ قِصَصِ الۡاَوَّلِيۡنَ (الصُّلَحَاءِ السُّعَدَاءِ وَالۡاَشۡقِيَاءِ) ديته علم التاريخ هم وائی چه په اُمتونو کښې نيکان او بدان دواړه تير شويدی۔ نو دا په انعمت عليهم او غير المغضوب عليهم او الضالين کښې دی نو تول علوم په فاتحه کښې اجمالًا راجمع شو۔
۷- **فائده** : پدے سورة کښې دوه علاجونه دی، يو شفاء الابدان او بل شفاء القلوب۔ د

زړونو شفاء دا ده چه په زړه کښې څومره مرضونه دی، د ټولو دارومدار په دوو خبرو دے :
۱ - یو فساد العلم (چه علم او تصور خراب شی) ۲ - دویم فَسَادُ الْقَصْدِ وَالْاِرَادَة (چه عمل په وړانه اراده کوی) نو په اهدنا الصراط المستقیم کښې اشاره ده چه دا متضمن دے دپاره د شفاء د فساد العلم یعنی اے الله! که زمونږه علم خرابیږی نو ته ئے مهٔ خرابوے، ته مونږ ته هدایت اُوکړه، زمونږ نظریه مهٔ خرابوه ـ فساد العلم ته ضلال هم وائی۔
او په ایاك نعبد وایاك نستعین کښې شفاء ده د مرض د فساد القصد چه اے الله! زمونږ اراده سمه کړے، چه هر عمل ستا دپاره کوو۔ او فساد القصد والو ته مغضوب علیهم وائی۔ نو دوه قسمه شفاء ګانے پکښې موجود دی۔ په غیر المغضوب کښې مرض د فساد القصد پروت دے څکه د یهودو مقصد خراب او فاسد وو۔
⊙ همدارنګه نفس کښې دوه مرضونه نور دی (اَلْکِبْرُ وَالرِّیَاءُ) د هغے علاج هم پکښې دے، تکبر لوئی مرض دے او ددے معنیٰ ده (بَطْرُ الحق وغَمْطُ الناس) (حق لـه دیکه ورکول، نهٔ منل او خلق سپك ګنړل) دویم مرض ریاء ده دا هم غټ مرض دے بل چا ته ځان خودل۔ ددے دواړو دپاره شفاء په یو آیت کښې ده ایاك نعبد پدے کښې ریاء دفع شوه او ایاك نستعین کښې دفع د کبر ده چه مونږ ستا د عبادت صلاحیت نهٔ لرو، تهٔ راته توفیق راکړه۔
۸- **فائده** : اول ددے سورة کښې د الله تعالیٰ حمد دے، او آخر کښې د ایمان نه د مُعرضینو (اعراض کوونکو) ذم دے۔ او دا دلالت کوی پدے چه د ټولو خیرونو مطلع او سر، الله تعالیٰ ته اقبال او متوجه کیدل دی او سر د ټولو آفاتو د الله تعالیٰ نه اعراض کول دی، نو کوم سړے چه الله تعالیٰ ته نزدے شو نو ټول خیرونه ئے د سر نه راونیول او اعراض د الله تعالیٰ نه، بُعد او جدا والے دے د الله تعالیٰ د اطاعت نه، او نتیجه ئے غضب او ضلالة دے۔ او دا د ټولو آفاتو بنیاد دے۔ نو دا سورة مونږ ته دا وائی چه یو سړے غواړی چه نیکبخته شی نو الله تعالیٰ ته دے توجه اُوکړی او که بد بختی غواړی نو د الله تعالیٰ نه دے اعراض اُوکړی۔
۹- **فائده** : پدے سورة کښې د الله تعالیٰ پنځه قسمه معرفتونه دی۔ (۱) مَعْرِفَةُ الذَّاتِ (د الله د ذات پیژندل دا په الحمد لله کښې دی۔ (۲) مَعْرِفَةُ الصِّفَاتِ (دا په رب العالمین الرحمن الرحیم مالك یوم الدین کښې دی) (۳) مَعْرِفَةُ حُقُوْقِ الله (دا په ایاك نعبد کښې ذکر دی)۔
(٤) مَعْرِفَةُ الطَّرِیْقِ الْمُوْصِلِ اِلَی الله (الله تعالیٰ ته د رسیدونکی لارے پیژندل) دا په اهدنا کښې دے۔
(٥) مَعْرِفَةُ اَهْلِ الْمَعْرِفَة (د الله پیژندونکی خلق پیژندل) هغه په انعمت علیهم کښې دے۔

**۱۰ - فائده** : پدے سورة کښې پنځه قسمه توحید ذکر دے (۱) توحید الذات۔
ددے معنیٰ دا ده چه د الله تعالیٰ ذات یو اځے اُوګنړلے شي۔ او په ذات کښې ورسره شریك اُونه ګنړلے شي۔ (۲) تَوْحِیْدُ الرُّبُوْبِیَّةِ (دیته وائی چه دا عقیده اُوساتی چه د کائناتو خالق، مالك، رازق او مدبر صرف الله تعالیٰ دے، دا توحید د ملاحده او زنادقه ؤ نه علاوه ټول خلق منی۔ تردے چه مشرکین هم ددے قائل وو۔ لکه قرآن کریم کښې به ځائے په ځائے راشی چه مشرکانو به خالق او مالك او رازق الله تعالیٰ ګنړلو)۔
(۳) توحید الاسماء والصفات (ددے مطلب دا دے چه د الله تعالیٰ کوم صفات په قرآن او حدیث کښې بیان شویدي، هغه بغیر د تاویل او تحریف نه منل، او هغه صفات په مخلوق کښې د خالق په شان نهٔ منل)۔
(٤) توحید الالوهیة (چه د عبادت د تمام اقسامو مستحق صرف الله تعالیٰ دے، او د قبرپرستیٔ په مرض کښې مبتلا عوام او خواص پدے توحید اُلوهیت کښې شرك کوی، خپل نذر او منختے او طوافونه، خوف او التجاء غیر الله دپاره کوی) دا په (لله) او ایاك نعبد کښې ذکر دی۔
(۵) توحید الحاکمیة والتشریع۔(قانون ساز او شارع صرف او صرف الله تعالیٰ ګنړل او د الله تعالیٰ د قانون سره بل قانون یو شان ګنړل شرك دے) دا په اهدنا او انعمت علیهم کښې راغلی دی نو په سورة فاتحه چه څوك صحیح ځان پو هه کړی نو صحیح موحد به ترے جوړ شي۔
**۱۱ - فائده** : پدے سورة کښې پنځه عبادات ذکر دی صراحةً :
(۱) التسمیه (بسم الله وئیل) هم عبادت دے۔ په ډیرو ځایونو کښې مونږ ته د بسم الله وئیلو امر راغلے دے۔
(۲) التحمید (د الله حمد وئیل دا هم عبادت دے لکه ددے فضائل مخکښې ذکر شو)۔
(۳) العبادة : ایاك نعبد کښې د الله عبادتونه دی۔
(٤) ایاك نستعین کښې استعانة) د الله نه مدد طلب کول۔
(۵) الدعاء : اهدنا کښې ذکر ده۔
**۱۲ - فائده** : پدے سورة کښې نور هم ډیر فوائد دی لکه په فتح البیان کښې صدیق حسن خان صاحب لیکلی دی چه پدے سورة کښې الله تعالیٰ توحید ذکر کړیدے د ډیرشو وجو نه بیائے تفصیل سره ډیرش وجوه ذکر کړیدی۔

۱۳ - **فائده**: پدې سورت کښې د کامل ایمان بیان دے او هغه په څلورو شیانو حاصلیږي (اَلْخَوْف، اَلرَّجَاء، اَلْمَحَبَّة، اَلْوَلَاءُ وَالْبَرَاءُ). نو خوف په مالك يوم الدين او رب العالمين کښې دے. او رجاء په الرحمن الرحيم کښې ده. او محبت په اياك نعبد کښې دے او دوستي او دشمني په انعمت او مغضوب کښې ده. نو اُوګوره دا صفات چه کله چا کښې راشي نو څوموره کامل مؤمن به شي او دے عظیمې فائدې ته دے سورت ښه په وضاحت سره اشاره کړے ده. نو اُوګوره کمال ددے سورت.

۱٤ - **فائده** : دارنګه افضل الاعمال او احسن احوال العبد (د بنده بهترين اعمال او ښائسته حالت) پدے سورت کښې ذکر دي : (۱) اول دا چه بنده شاکر او حامد وي د خپل رب. (۲) دويم چه ذاکر وي او غافل نهٔ وي د خپل رب نه (اياك نعبد کښې) (۳) دريم چه متضرع او فقير وي خپل الله تعالىٰ ته (اياك نستعين) (٤) څلورم دا چه عالم بالحق وي او عامل وي په حق. (اهدنا) (۵) پنځم چه خائف (يريدونکے) وي د زوال د ايمان او د سوءِ الخاتمے نه، متکبر او فخر کونکے نهٔ وي په خپلو اعمالو باندے. غير المغضوب عليهم کښې دے ته اشاره ده. نو اُوګوره کمال د سورت ته چه څوموره بهترين اعمال او احوال د بنده ئې راوړي دي او ترغيب ئې ورکړيدے نو پکار ده چه هر بنده مؤمن همدارنګه جوړ شي.

۱۵ - **فائده** : پدے سورت کښې د الله تعالىٰ اعظم الاسماء دي (۱) لفظ الجلالة (الله).
(۲) دوېم رب العالمين (۳) الرحمن (٤) الرحيم (۵) مالك. او علماؤ دے نو مونو ته اسم اعظم وئيلي دي چه ددے په واسطه دعاګانې ښې قبليږي او الله تعالىٰ ته انسان ډير ورقريب کيږي.

۱٦ - **فائده** : مؤمن کښې اعلىٰ صفت احسان دے. نو دے سورت کښې احسان ته د رسيدلو چل او طريقه خودلے شويده او هغه دا چه (۱) اولاً د رب العالمين په کمال کښې سوچ اُوکړه بيا د هغه په انعاماتو کښې سوچ بيا په تفرد د ملوکيت کښې سوچ. نو ددے نه به يو کيفيت په زړه کښې پيدا شي نو بيا به توجه اُوکړي دے لوئي رب ته په تضرع او خشوع او ذلت او دعاء سره. نو بس ددے نه بعد يقيناً احسان ته رسيدل دي، ته خپله لږ دا کار اختيار کړه چه ته د احسان په خوند پوهه شې. والله المستعان.

۱۷ - **فائده** : سورة ئې په الحمد شروع کړو اشاره ده چه ددے کتاب نازلول يو لوئي نعمت دے چه دغه الله پاك په دے سره مستحق د حمد دے چه اُوکړے شي هغه لره لکه

﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْٓ اَنْزَلَ عَلٰی عَبْدِهِ الْكِتٰبَ﴾ کښې دے ته اشاره ده۔

**۱۸- فائده** : د قرآن کریم موضوع ده معرفة الرب۔ (۲) معرفة الرسالة۔ (۳) اثبات المعاد۔ لکه اصولو کښې مونږ ددے تفصیل مخکښې لیکلے دے، ددے بل نوم توحید، رسالت او معاد دے۔ نو سورت فاتحه کښې دا درے واړه مضامین ښه په بهتر انداز بیان شویدی نو ځکه دا سورت مستحق دے چه ام القرآن ورته اُووئیلے شی۔

**۱۹- فائده** : سورت فاتحه په سعادت او عزت او کمال د بنده مشتمل ده۔ تفصیل دا دے چه انسان کښې دوه قوتونه دی (۱) علمی (۲) دویم عملی۔ دوه سعادتونه هله راځی چه دا دواړه قوتونه د بنده کامل شی، نو قوت علمی بیا کامليږی :

(۱) بِمَعْرِفَةِ فَاطِرِهٖ وَخَالِقِهٖ] (د خپل خالق او د هغه د اسماء او صفاتو په پیژندلو سره)۔

(۲) او هغه لاره پیژندل چه الله تعالیٰ ته رسیدلے ده۔

(۳) – پدے لاره باندے مضبوطیدل او استقامت کول۔ (٤) دارنګه د لارے آفات پیژندل، (۵) دارنګه د خپل نفس عیوب او خپل نفس پیژندل نو دا پنځه معرفتونه قوت علمی کمال ته رسوی۔

۲ – او قوت عملی کمال ته رسیږی (۱)– په معرفت د حقوق الله په بنده باندے۔ (۲) بیا هغه اخلاص او صدق او خیر خواهی سره ادا کول۔ (۳) دارنګه په طریقه د احسان (٤) او متابعة الرسول ﷺ۔ (۵) او د الله تعالیٰ احسان په ځان منل او خپلے کوتاهی ته کتل، د هغے په ادا کولو کښې نو هر وقت دا مؤمن حیاء کوی د خپل رب نه چه زه خو ستا د حق مطابق عبادت نشم کولے۔

دارنګه دا مؤمن وائی چه زما دواړه قوتونه کمال ته نشی رسیدلے چه ترڅو خپل مولا راسره مدد نهٔ وی کړے نو ځکه خپل ځان هر وقت د الله تعالیٰ هدایت ته محتاج ګنړی او خپل ځان محتاج ګنړی چه چرته ددے نیغے لارے نه وانهٔ وړم (بفساد القصد) چه قصد مے خراب نشی۔ او په ضلال کښې واقع نشم په فساد العلم (د علم په خرابیدو) سره۔ نو اُوس اُوګوره د الحمد نه تر مالك پورے معرفة الرب دے او په ایاك نعبد کښې معرفت د لارے دے کومه لاره چه الله تعالیٰ ته رسیدو والا ده۔ او په (اهدنا) کښې استقامت دے په دغه لاره او په (غیر المغضوب او ضالین) کښې د افراط او تفریط نه بچ کیدل دی نو اول د سورت رحمت دے او مینځ ئے هدایت دے او آخر ئے نعمت دے۔ نو انسان ته به دومره نعمت ملاويږی

خو مره چه ورسره هدایت وو (فَحَظُّ الْعَبْدِ مِنَ النِّعْمَةِ عَلٰى قَدْرِ حَظِّهِ مِنَ الْهِدَايَةِ)

بیا هدایت موقوف دے په رحمت او رحمت د لوازماتو د ربوبیت نه دے او ربوبیت نه د الله تعالیٰ اُلوهیت لازمیږی نو الله تعالیٰ اِلٰه حق دے۔ نو اُوګوره سورت فاتحه کښې څو مره عزیز او بارک علم دے۔ پدے فائده ځان پو هه کړه۔ (الفوائد لابن القیمؒ مفصلاً ص (۳۱و۳۲)

**۲۰- فائده** - دے سورت کښې د جذبهٔ شکر تعلیم دے، چه بنده به د شکر جذبه څرنګه زړه کښې پیدا کوی نو د هغے طریقه دا ده چه اولاً د الله تعالیٰ په ربوبیت او تربیت د مخلوقاتو کښې سوچ اُوکړی بیا دے د الله تعالیٰ رحمت پدے مخلوقاتو کښې سوچ اُوکړی بیا دے د الله تعالیٰ د عدل او احسان فیصلہ په ورځ د قیامت کښې سوچ اُوکړی نو ددے جذبه قلبی او سوچ نه به د الله تعالیٰ د عبادت شوق پیدا شی۔ او بیا به دا مؤمن د الله تعالیٰ نه مدد غواړی په کولو د دغه بندګئ کښې او د الله تعالیٰ نه به هدایت غواړی په دغه بندګئ کښې نو د دین بنیاد بندګی ده او د بندګئ بنیاد جذبه د شکر ده۔

بعض خلق صرف (خوف) بنیاد د بندګی جوړه وی لیکن صحیح دا ده چه شکر او خوف دواړه په بندګئ او دینداریٔ باندے باعث دی۔

**۲۱- فائده** : ما یو ځل په سورت فاتحه کښې تدبر کولو نو دا سوچ راغے چه ایمان او صبر او تقویٰ او خشوع او علو الهمة خو قرآن کریم کښې بار بار بیانیږی او دا آساسی اعمال دی، نو ولے سورت فاتحه چه جامع ترین سورت دے، ددے بنیادی اعمالو نه خالی ده۔ نو بیرته الله سبحانه وتعالیٰ په زړه کښې راواچول چه دے سورت کښې درے کلمات استعمال دی (۱) العبادة (۲) الهدایة (۳) انعمت علیهم۔ چه دا مشتمل دی په ټولو ایمانیاتو، اعمال صالحه ؤ او مقامات الاحسان او مقامات العارفین باندے۔ د دین هر ظاهری او باطنی عمل پدے کلماتو کښې داخل دے ۔ (فَمَا اَعْظَمَ هٰذِهِ السُّوْرَةَ ؟)

**۲۲- فائده** : د ټولو انبیاء علیهم السلام او د الله تعالیٰ د ټولو کتابونو دعوت، اصلاح الانسان ته دے، چه د انسان پوره اصلاح اُوشی، بیا د اصلاح بنیاد په یو څو خصلتونو دے چه لس بلکه د هغے نه زیاتیږی او هغه ټول بنائسته خصلتونه په سورت فاتحه کښې په ښکلی انداز راوړل شویدی چه دا کتاب د ډیر حکیم او علیم کتاب دے چه عجائبات ئے نۀ ختمیږی۔

او هغه خصلتونه دا دی (۱) اَلتَّوْحِيْدُ بِجَمِيْعِ اَنْوَاعِهٖ) (د توحید ټول اقسام) (۲) الشکر

والحمد (۳) الايمان واليقين (دا په رب العالمين كښې دے) (٤) اَلرَّحْمَةُ وَالشَّفَقَةُ عَلٰى خَلْقِ اللهِ (د الله تعالىٰ په مخلوق رحمت او شفقت كول) دا په الرحمن الرحيم كښې شته، د (تَخَلَّقُوْا بِاَخْلَاقِ اللهِ) په طريقه استدلال اُوكړه۔ دارنګه په انعمت كښې هم شته (٥) العبادة۔
(٦) اَلْخُشُوْعُ وَالْفَقْرُ اِلَى اللهِ تَعَالىٰ (الله تعالىٰ ته خشوع او فقر كول) (په اياك نستعين كښې)
(٧) اَلْهِدَايَةُ وَمَعْرِفَةُ الْحَقِّ وَالْعَمَلُ بِهٖ)
(هداية او حق پيژندل او په هغے عمل كول) په (اهدنا) كښې۔
(٨) اَلْاِسْتِقَامَةُ عَلَى الْحَقِّ (په حق مضبوطيدل) (٩) اَلْمَحَبَّةُ وَالْاُنْسُ۔ دا په انعمت عليهم كښې شته۔ (١٠) اَلْخَوْفُ عَنْ زَوَالِ الْاِيْمَانِ، اَوِالْحَيْدَةُ عَنِ الْحَقِّ (يعنى د حق نه د اَوړيدلو يا د ايمان زائله كيدو نه يره كول) دا په غير المغضوب عليهم ولا الضالين كښې شته۔ نو ګوره سورت فاتحه د ټولو آسمانى دينونو خلاصه ده۔ نو ځكه ورته د مؤمن په هر وقت كښې ضرورت دے۔

**۲۳- فائده** : سورت فاتحه كښې د ټولو ناكاره خصلتونو علاج او شفاء هم ده كه چا اراده اُوكړه او د خپل رب نه ئے مدد اُوغوختلو۔ په انسان كښې ډير ناكاره خصلتونه او خويونه دا دي :
(۱) ...... ناشكرى ﴿اِنَّ الْاِنْسَانَ لِرَبِّهٖ لَكَنُوْدٌ﴾ (العاديات) ﴿اِنَّ الْاِنْسَانَ لَكَفُوْرٌ مُّبِيْنٌ﴾ (الزخرف)
(۲) ...... اَلشِّرْكُ بِاللهِ عَزَّ وَجَلَّ فِيْ حُقُوْقِهٖ وَعِبَادَاتِهٖ]
(د الله تعالىٰ سره شرك كول د هغه په حقوق او عبادتونو كښې)
(۳) ...... اَلْكِبْرُ وَالْعُلُوُّ (تكبر او ځان لوئى ګڼړل) (٤) اَلْبِدْعَةُ وَمُخَالَفَةُ السُّنَّةِ (اهدنا)
(٥) اَلشُّذُوْذُ وَالتَّفَرُّدُ عَنْ جَمَاعَةِ الْمُسْلِمِيْنَ (د مسلمانانو د جماعت نه جدا كيدل) (انعمت عليهم)
(٦) اَلْكُفْرُ عَمْدًا (قصداً كفر كول) (مغضوب)۔ (٧) الجهل بالحق (د حق نه ناخبرى) (الضالين) (٨) تَقْلِيْدُ الرِّجَالِ وَكَوْنُهٗ اِمَّعَةً (د آراء الرجال پسے تلل بلا تحقيق او بلا دليل)۔ په اهدنا كښې او په انعمت عليهم كښې دے مرض ته اشاره ده۔
ځكه منعم عليهم د حق پيژندونكى او په هغے عمل كونكى وو او تقليد خو جهل ته وائى په اجماع د علماء او عقلاؤ سره لكه روستو به راشى ان شاء الله تعالىٰ۔
نو اُوګوره دے سورت ټول ناكاره مرضونو له معالجه كړے ده۔ وبالله التوفيق۔

**۲٤- فائده** : د قيامت ډير نومونه دي، نو يوم الدين ئے دلته ولے اختيار كړو نو ددے يو

څو فائدے دی: (۱) اوله دا ده چه مخکښې د رب العالمین تذکره اُوشوه، الله تعالیٰ د مخلوقاتو تربیت کونکے دے، رزق ورکوی، ژوند او نعمتونه ورکوی، نو دلته ئے دا جمله ورپسے راوړه چه دا تربیت د یو عظیم مقصد دپاره دے او هغه دا چه انسان به عمل کونکے وي د الله تعالیٰ د رضا، او که نه وی نو بیا به دهٔ ته سزا ملاویږی. نو په دے جمله کښې دده د عملونو سزاء او جزاء ته اشاره ده او اهتمام الشرع باعمال العباد (د شریعت د بندګانو د عملونو اهتمام) ته اشاره ده لکه الله تعالیٰ فرمائی: ﴿وَمَا خَلَقْنَا السَّمَآءَ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا بَاطِلًا ذٰلِكَ ظَنُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنَ النَّارِ أَمْ نَجْعَلُ الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَالْمُفْسِدِيْنَ فِي الْأَرْضِ أَمْ نَجْعَلُ الْمُتَّقِيْنَ كَالْفُجَّارِ﴾ (ص: ۲۷، ۲۸)

نو دا آیتونه دده یوم الدین او رب العالمین تفسیر دے.

(۲) دویمه فائده په دے لفظ کښې دا ده چه د الله تعالیٰ تربیت صرف د دنیا پورے نه دے خاص بلکه د هغه تربیت او فاعلیت به همیشه وی.

(۳) دریمه فائده دا ده چه په دے (یوم الدین جمله) باندے ایاك نعبد مرتب کول مقصود دے، اشاره ده چه څوك د الله تعالیٰ خالص عبادت کوی نو هغه دے د مخکښې نه ایمان اُولری، چه دده بنکلے او مزیداره بدله شته.

انسان ته تنبیه ده چه ستا عبادت ضائع کیږی نه، بلکه الله تعالیٰ به ضرور بدله درکوی.

**۲۵- فائده**: د صراط مستقیم ډیر صفات دی، دلته سورت فاتحه کښې یو راوړل شویدے او هغه دا دے: صراط الذین انعمت علیهم غیر المغضوب علیهم الآیة.

او په دے کښې حکمة دا دے (والله اعلم) چه د الله تعالیٰ رحمت جوش کښې راوستل دی، په دے شان چه اے الله ربه! تا خو نورو خلقو سره احسان کړیدے نو مونږه سره هم اُوکړه!. لکه یو سړے بل سخی سړی ته وائی (أَكْرِمْنِيْ كَمَا أَكْرَمْتَ فُلَانًا) نو په دے سره د هغه جود او سخا جوش کښې راځی.

○ بل حکمة دا دے چه تواضع طرف ته اشاره ده چه اے الله! مونږ د دغه نیکانو خلقو اقتداء کوو او د هغوی د نقش قدم پسے روان یو نو د هغوی په شان انعام مونږ سره اُوکړه.

○ تفسیر التنویر کښې ابن عاشورؒ لیکی: په دے کښې تفاول او تعوذ دواړه شته، فأل نیول دی چه مونږ به هم الله تعالیٰ منعم علیهم وګرزوی او تعوذ دے د حال د مغضوب علیهم نه.

**۲۶- فائده**: په دے سورت کښې د النفس الامارة بالسوء تهذیب دے او دا په دوه څیزونو دے

(۱) بالخوف (د الله نه په يره او دا په مالك يوم الدين، او غير المغضوب عليهم) كښې دے۔
(۲) دويم په عبادت سره دے، ځکه عبادت سره انسان ښائسته کيږي او عبادت د الله تعالیٰ رنګ دے ﴿وَمَنْ اَحْسَنُ مِنَ اللّٰهِ صِبْغَةً وَّنَحْنُ لَهٗ عَابِدُوْنَ﴾۔
**۲۷- فائده** : پدے سورت کښې د بنده کمال بيان شويدے او دا په دوه څيزونو دے (۱) بِالتَّخْلِيَه (۲) وَبِالتَّحْلِيَه۔ تخليه (يعنى د بدو صفاتو او اخلاقو نه صفائى راوستل په غير المغضوب عليهم ولا الضالين كښې دى او تحليه (يعنى ځان ښائسته كول په ښائسته صفاتو او اخلاقو) په اياك نعبد واياك نستعين كښې دى ځکه د عبادت نه ښائسته ګاڼه بله نشته۔
**۲۸- فائده** : پدے سورت كښې د دوه امرينو بيان دے په كوم باندے چه الله تعالیٰ د جنت وعده كړيده۔ (۱) تَرْكُ اِرَادَةِ الْعُلُوِّ (د علو او تكبر اراده نۀ كول) (۲) او تَرْكُ اِرَادَةِ الْفَسَادِ (د فساد اراده نۀ كول) لكه آيت كښې دى : ﴿تِلْكَ الدَّارُ الْاٰخِرَةُ نَجْعَلُهَا لِلَّذِيْنَ لَا يُرِيْدُوْنَ عُلُوًّا فِى الْاَرْضِ وَلَا فَسَادًا﴾ (القصص : ۸۳) او دا دواړه په اياك نعبد او په غير المغضوب عليهم كښې دى ځکه په عبادت سره علو ختميږي او په مغضوب عليهم كښې اهل فساد دى۔
**۲۹- فائده** : پدے سورت كښې دفع د دوه مشهور مرضونو ده (۱) الشبهات (۲) والشهوات۔
اول په اِهْدِنَا او غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ كښې ده او دويم په اياك نعبد كښې ده ځکه عبادات او شهوات دواړه نۀ راجمع كيږي۔
﴿فَخَلَفَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ اَضَاعُوا الصَّلٰوةَ وَاتَّبَعُوا الشَّهَوٰتِ﴾ (مريم :۵۹)
**۳۰- فائده** : د ايمان شعب (۷۷) دى او خصال حميده (ښكلے خصلتونه) (۳۶۰) دى لكه ابن ابى الدنيا په مكارم الاخلاق كښې د ابوبكر صديق نه مرفوعاً نقل كړيدى۔ او د رسول الله ﷺ اخلاق د (۲۰۰) نه زيات دى او د هغه نه منفى شوى اخلاق (۱۹۱) دى كما فى نضرة النعيم۔ او د عبادت او استعانت منازل د (۱۰۰) نه زيات دى كما فى المدارج۔ او دا ټول امور په اياك نعبد او په انعمت عليهم كښې داخل دى۔نو كه يو عالِم د سورت فاتحه مكمل تفسير په يو كال كښې كوى هم پوره به ئے نكړى۔
**۳۱- فائده** : سورة الفاتحه مقدمه د قرآن كريم ده او قاعده په مقدمه كښې دا وى چه (۱) مقدمه مختصره وى، دے دپاره چه سامعين په اُورِد انتظار سترى نۀ شى، او دا خبره په فاتحه كښې ښكاره ده۔ (۲) دويم دا چه په مقدمه كښې اشاره وى غرض او مقصود ته او ديته براعة

الاستهلال هم وائی دے دپاره چه د سامعینو شوق پیدا شی او د هغې زده کولو ته تیار شی۔
(۳) دریم دا چه مقدمه پکار ده چه د جوامع الکلم نه وی لکه دا خبره علماء البیان ذکر کریده کله چه هغوی هغه مواضع ذکر کوی چه په هغې کښې د متکلم دپاره مناسب وی چه عجیب او فصیح کلام راوړی۔
(٤) دارنگه مقدمه کښې افتتاح وی په الحمد لله سره۔ (التنویر ۱/۱۵۰)
۳۲- **فائده**: دے سورت د رب سبحانه وتعالیٰ سره د ادب طریقه خودلے ده او هغه دا چه د حاجت نه مخکښې د الله تعالیٰ حمد اُوویلے شی او د هغه تعظیم اُوکړے شی (ایاك) او هغه ته تذلل او عاجزی اُوکړے شی او بنده د الله تعالیٰ مخے ته خپل نفس جاهل اُوګنړی، چه دهٔ ته هدایت به صرف الله تعالیٰ کوی، او الله تعالیٰ ته به د خیر نسبت کوی په صیغه د معلوم (انعمت علیهم) او د شر نسبت به کوی په صیغه د مجهول (غیر المغضوب) او ادب په شرع او عقل کښې عظیم شے دے۔ پدے سره ډیر څه حاصلیږی۔
۳۳- **فائده**: پدے سورت کښې تشخیص د انسان دے هغه دا چه (۱) ددهٔ مرض او بیماری ئے بیان کړیده (۲) دارنگه سبب د مرض (۳) او علاج د مرض۔ نو بیماری او مرض ئے د الله تعالیٰ نه قصداً اعراض کول دی (المغضوب علیهم) او سبب د مرض ئے د انبیاء علیهم السلام، او د صالحینو اقتداء پریخودل دی۔ (صراط الذین انعمت علیهم) او علاج د مرض دا دے چه الله تعالیٰ ته په عبادت او استعانت او طلب د هدایت سره رجوع اُوکړی۔ څه عجیب ښائسته راز دے!۔
۳٤- **فائده**: درے څیزونه نجات ورکونکی، آسانی راوستونکی دی:
(۱) إعْطَاء ...... (ورکړه) (۲) التقویٰ۔ (۳) د الله تعالیٰ په وعدو باندے تصدیق کول۔ او درے څیزونه هلاکونکی، سختی راوستونکی دی۔ (۱) په ورکړے شوی نعمتونو بخل کول۔ (۲) د الله تعالیٰ عظیم ذات نه استغناء (بے پرواهی) کول۔ (۳) د الله تعالیٰ د وعدو تکذیب کول۔ اول ته اشاره ده په انعمت علیهم کښې څکه چه دا اعمال د صالحینو په هغوی نعمت دے څکه چه دا اعمال باعث دی نورو اعمالو ښه په فراخوالی او آسانتیا سره۔ او دویم ته اشاره ده په غیر المغضوب علیهم ولا الضالین کښې څکه دغه درے څیزونه په انسان باندے د خیر لارے تنګوی او کله چه د خیر لارے په انسان بندے شی نو غضب پرے نازل شی۔

۳۵- **فائده**: انسانان دوه قسمه دی (۱) اَهْلُ التَّزْكِيَة (د نفس پاکونکی) او دا اصحاب الفلاح (کامیاب خلق) دی۔ (۲) او دویم قسم اَهْلُ التَّدْسِيَة (د نفس خرابونکی) دی، او دا د حِرْمَان او خُسران والا دی او دے دواړو ته اشاره ده په (انعمت علیهم او غیر المغضوب علیهم) سره۔

۳۶- **فائده**: د بنده کمال په دوه امرینو کښې دے او د دواړو راجمع کول ضروری دی، لیکن ډیر کم کرت راجمع کیږی۔ (۱) اَلْبَصِيْرَةُ وَمَعْرِفَةُ الْحَقِّ۔ یعنی بصیرت او د حق پیژندل او دیته قوت نظری یا علم نافع یا الایمان الصحیح وئیلے شی یا ددے نه تعبیر کیږی په کیدلو د سړی د اُولِی الْاَبْصَار نه۔ (۲) دویم: الصبر۔ (صبر کول) او دیته قوت عملیه، یا عمل صالح، یا کیدل د سړی د اُولِی الْاَیْدِیْ نه وئیلے شی۔

او دے سورت په دواړو خبرو تیزی ورکړیده، او دا په (اهدنا) او په انعمت علیهم او په الحمد او په مالك یوم الدین کښې ده۔ او دویم په نعبد کښې دے ځکه چه عبادت بغیر د صبر نه ممکن نهٔ دے۔ (وَاصْطَبِرْ لِعِبَادَتِهٖ) او په انعمت علیهم کښې دے۔ او مغضوب علیهم والا خلقو سره نهٔ قوت نظریه شته او نهٔ قوت عملیه۔

۳۷- **فائده**: ما فکر اُوکړو چه د اُور نه نجات په دوه څیزونو ممکن دے (۱) د الله تعالیٰ په کلام اَوریدو سره۔ (۲) او په تعقل یعنی د حق په معرفت او پیژندلو سره۔ او دے دواړو ته اشاره ده په دے قول د الله تعالیٰ کښې ﴿وَقَالُوْا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ اَوْنَعْقِلُ مَا كُنَّا فِیْٓ اَصْحٰبِ السَّعِیْرِ﴾ (سورة الملك)

او دا سورت ددے نه ساکت دے، سره ددے نه چه دا سورت خو ام القرآن دے، نو الله تعالیٰ راته دا الهام اُوکړو چه دا دوه امرین په دے سورت کښې بار بار ذکر دی ځکه چه په اهدنا کښې د الله تعالیٰ د کلام اَوریدل دی، ځکه چه د هدایتِ شرعیه حاصلیدل ممکن نهٔ دی مگر په قرآن کریم باندے، او الصراط المستقیم کښې دے ته ښکاره اشاره ده ځکه چه مونږ د صراط المستقیم تفسیر اُوکړو چه ددے نه مراد کتاب الله دے ﴿وَاَنَّ هٰذَا صِرَاطِیْ مُسْتَقِیْمًا﴾ لکه دا تفسیر ابن عباس رضی الله عنهما کړیدے۔ او دغه شان په انعمت علیهم کښې دے ته اشاره ده ځکه چه د منعم علیهم اَهم عمل د الله تعالیٰ کلام اَوریدل دی۔ او په الضالین کښې هم دے ته اشاره شته ځکه چه دا خلق د قرآن کریم نه گمراه شوی وو (اَوریدلی وو) ﴿فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَایَ فَلَا یَضِلُّ وَلَا یَشْقٰی﴾

هرچه تعقل او معرفة د حق دے نو هغه په هدایة کښې او په انعمت علیهم کښې داخل دے او دا د تدبر کونکی دپاره ښه واضحه خبره ده۔

۳۸- **فائده** : کعب الاحبار رحمه الله - ددے آیت متعلق وائی : ﴿فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ وَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ﴾ چه دے آیت ټول هغه څه راګیر کړیدی کوم چه په تورات، انجیل، زبور او قرآن کریم کښ دی۔ او علماء کرام ددے په باره کښ فرمائی : (دا آیت د خیر او شر دپاره پوره راجمع کونکے دے) او د صحیح بخاری په مرفوع حدیث کښ دیته [الآيَةُ الْجَامِعَةُ الْفَاذَّةُ] وئیلے شویدے۔ او سورت فاتحے په یوه جمله کښ ددغه آیت معنیٰ راګیره کړیده۔ چه هغه (یوم الدین) دے څکه دین، د خیر او د شر په اعمالو باندے حساب او ثواب او عقاب ورکولوته وائی نو څومره عجیب جامع سورت دے؟۔

۳۹- **فائده** : دے سورت کښ (اَلْحَيٰوةُ الطَّيِّبَةُ) (مزیدار ژوند) د هغے اسباب، او د هغے د مصداق بیان دے، څکه سبب د حیوة طیبه دوه څیزونه دی (۱) اَلْإِيْمَانُ الصَّحِيْحُ (۲) اَلْعَمَلُ الصَّالِحُ ۔ او مصداق ئے درے څیزونه دی (۱) د بنده مؤمن د قرآن کریم سره تعلق۔ (۲) په رحمن ذات باندے په ټولو کارونو د دنیا او آخرت کښ توکل کول۔ (۳) او د رحمان ذات سره قلبی تعلق پیدا کول۔ او دا حیوة طیبه لذیذه (خوندور ژوند) دے، چه الله تعالیٰ ئے چا ته نصیب کړی، او الله تعالیٰ دا په دے قول خپل کښ ذکر کړیدے ﴿مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيٰوةً طَيِّبَةً﴾ (النحل)

بیا ئے ددے مصداق ذکر کړیدے پدے قول سره ﴿فَاِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ﴾ او پدے قول سره ﴿اِنَّهُ لَيْسَ لَهُ سُلْطَانٌ عَلَى الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ﴾ ددے سره دوه امرونو نور دی۔

(۱) یو دا چه د شیطان سره به دوستی نهٔ کوی (۲) او د رحمن سره به شرك نهٔ کوی۔ او دا ښه په وضاحت سره په سورة الفاتحه کښ ذکر دی څکه ایمان په رب العالمین کښ او په انعمت علیهم کښ ذکر دے او عمل صالح په نعبد او نستعین کښ دے او قرآن په الصراط المستقیم کښ او توکل او تعلق په انعمت علیهم کښ او د شیطان دوستی او شرك په غیر المغضوب علیهم کښ ذکر دے۔

۴۰- **فائده** : انسانان دوه قسمه دی (۱) اَهْلُ السَّعْيِ السَّيِّءِ وَالْعَمَلِ غَيْرِ الصَّالِحِ (بد کوشش والا او بد عمله) (۲) دویم : نیك سعی او عمل مشکور (قبول شوی عمل) والا۔ اول قسم خلق په سعی سیء کښ د دوه کارونو په وجه واقع شویدی۔ (۱) دوی دا ګمان کړیدے چه د دوی دپاسه څوك نشته چه په دوی قادر شی۔ (۲) دارنګه دوی ګمان کړیدے چه کوم ذات نشته چه دوی له وینی او د دوی سره به په عملونو حساب کوی، نو دوی د رب جلیل د قدرت او د نظر جمیل

خیال اُونکړو۔ نو عملونه ئې برباد کړل او مالونه ئې خراب کړل او د ذی الجلال ذات د رضا په خلاف کښې ئې خرچ کړل۔ او په بندګانو ئې رحمت او شفقت اُونکړو او یتیمانان او مسکینان د شړو او خاورو والو باندې ئې طعامونه اُونهٔ خوړل۔

او سعی صالح (نیك کوشش) والا د رب قدرت ته اُوکتل او د هغه نظر ته ئې خیال اُوکړو نو دوی په افضل اعمالو کښې کوشش اُوکړو۔ ۱ – هغه دا چه مالونه ئې د الله تعالیٰ په رضا کښې خرچ کړل او (۲) دارنګه ایمان ئې حاصل کړو۔ (۳) او صبر (٤) او رحمت په بندګانو، نو دوی ددې په وجه د کمال انتهاء ته اُورسیدل، نو دوی د اهل الیمین نه شو لکه څنګه چه اولنی خلق د اهل الجحیم (جهنم والا) نه شو۔ او دا کارونه په سورة البلد کښې ذکر دی او فاتحې هم دې ته ښائسته اشاره کړیده۔ څکه چه بدې سعی والا په غیر المغضوب علیهم او الضالین کښې داخل دی۔ (۲) او اَهْلُ الْعَمَلِ الصَّالِحِ وَالسَّعْيِ الصَّالِحِ په اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ او په اِهْدِنَا او په اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ کښې داخل دی۔

**٤١ – فائده** : د انسان کمال دا دې چه په خصال حمیده (ښکلی صفاتو) سره متصف شی، ددې نه بغیر کمال ته رسیدل ممکن نهٔ دی۔ او ددې د حاصلولو (۱) یوه طریقه علم شرعی دې (۲) دویم مجاهده د نفس ده۔ (۳) دریم صُحْبَةُ الصالحین (د نیکانو ملګرتیا) یا د هغوی د ذات سره یا د هغوی د سیرت په مطالعه کولو سره۔

(٤) او د اهل الشر والمعاصی (مجرمانو) نه څان ساتل دی۔ او دا طریقه د ټول هغه خلقو ده چه کمال ته رسیدلی دی۔

او دې اصولو ته سورة الفاتحې اشاره کړیده نو ټول خصال حمیده په انعمت علیهم کښې دی او علم شرعی په اهدنا کښې دې او مجاهده په (اهدنا) کښې ده او څکه د هدایت په مراتبو کښې یو هغه هدایت وو چه په مجاهده سره حاصلیدو لکه ﴿وَالَّذِيْنَ جَاهَدُوْا فِيْنَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا﴾

(٤) او صحبة الصالحین په انعمت علیهم کښې دې۔ او (٤) او د اهل الشر والمعاصی نه جدائی په غیر المغضوب علیهم ولا الضالین کښې دې۔

**٤٢ – فائده** : اسباب د علم درې دی (۱) القلب (زړه) (۲) السمع (غوږ) (۳) البصر (سترګې) نو اهل سعادت (نیکبخت) دا د الله تعالیٰ په کائناتو او الهی (قرآنی) آیتونو کښې استعمالوی۔ (۲) او اهل شقاوت (بدبختان) ئې د خپلو شهواتو او د حاجتونو د پوره کولو

دپاره استعمالوی او پدے سره د الله تعالیٰ په آیتونو کښې تدبر نۀ کوی نو ددے وجه نه رب العالمین دوی ته په غضب شو نو ختم او مهرئے پرے اُووهلو۔او اولنی قسم خلقو ته ئے پدے کښې رنړا پیدا کړه۔ نو په نستعین او اهدنا او انعمت علیهم کښې اولنو ته واضح اشارات دی (۲) او په غیر المغضوب علیهم او ولا الضالین کښې په دویم فرق باندے تصریح ده۔

۴۳- **فائده** : د کافرانو بد خصلتو نه زیات دی ښکاره صفات ئے (۱) انکار دے (۲) فساد دے (۳) عدم تعقل (سوچ نۀ کول) دے (٤) او د الله تعالیٰ نه نۀ یریږی۔

او د منافقانو خصلتونه د (۱۵۷) نه زیات دی کما فی الفوائد) ډیر ښکاره پکښې (۱) نسیان ذکر الله (د الله تعالیٰ ذکر هیرول) (۲) د مخلوق جانب لره په خالق باندے ترجیح ورکول۔ او دے تهولو ته اشاره ده په غیر المغضوب علیهم ولا الضالین کښې۔ نو الله تعالیٰ پدے دوه کلمو کښې هغه څه راجمع کړل چه په لس جلدونو کتاب کښې نۀ راجمع کیږی۔ فتدبر۔

٤٤- **فائده** : او په رد د فرقِ ضاله ؤ کښې ښکاره اشاره ده چه سیر الی الله د هغه چا دپاره د سره ممکن نۀ دے چه د هغه بصیرت ړوند شوے وی او نظریه ئے فاسده شوی وی، او دا واقعی او حقیقی خبره ده چه هیڅ خفاء پکښې نشته۔

٤٥- **فائده** : پدے سورت کښې حروف ثاء، جیم، خاء، زاء، شین، ظاء، او فاء نشته ځکه په ثاء کښې اشاره ده ثبور (هلاکت) ته او په جیم کښې جحیم (جهنم) ته او په خاء کښې خزی (شرمندګی) ته او په زاء کښې زفیر (هنرارے) او په شین کښې شهیق (رمباړے) ته او په ظاء کښې لَظیٰ (لمبو) ته او په فاء کښې فِراق د الله تعالیٰ د محبوبانو ته ۔ نو څوك چه ددے سورت په مقتضیٰ عقیده اُوساتی او عمل اُوکړی نو ددے اُووه سزاګانو نه به ئے الله تعالیٰ په خپل رحمت سره بچ اُوساتی۔

٤٦- **فائده** : پدے سورت کښې د بندګانو خپل رب ته په دوه څیزونو کښې احتیاج ذکر دے (۱) دوی مفتقر او محتاج دی هغه ته په دے کښې چه د دوی زړونه د خپل محبت او معرفت نه ډك کړی (۲) او پدے کښې هم محتاج دی چه الله تعالیٰ د دوی د مصالح او منافعو تدبیر اُوکړی او دوی ته توفیق ورکړی چه د هغه په خدمت کښې مصروف شی۔

انظر تیسیر اللطیف المنان فی تفسیر خلاصة آیات الاحکام (۱/۱۷) لعبد الرحمن السعدی)

٤٧- **فائده** : انسان چه د الله تعالیٰ د نظر نه حیاء اُوکړی او د ملائکو د نظره او د زمکے

نه او د خپلو اندامونو نه نو يقيناً به دا مؤمن شي او پاك به شي د ګناهونو نه. دا په ﴿مَا غَرَّكَ بِرَبِّكَ الْكَرِيمِ﴾ ﴿وَإِنَّ عَلَيْكُمْ لَحَافِظِينَ﴾ ﴿يَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ أَخْبَارَهَا﴾ ﴿وَمَا كُنتُمْ تَسْتَتِرُونَ أَن يَشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ﴾ کښې ذکر دي او دا ټولې خبرې په انعمت کښې شته ځکه چه منعم عليهم هغه خلق دي چه اُوچته حياء لري.

٤٨- **فائده** : قرآن کريم کښې د کاميابۍ راز دوه څيزونه ښودلے شويدي ۱- يو اسلام الوجه لله (الله تعالىٰ ته خپل مخ تابع کول) ۲- دويم الاحسان في العمل (په عمل کښې احسان درجه پيدا کول) لکه دا دواړه پدے آيت کښې راغلي دي: ﴿بَلَىٰ مَنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُ لِلَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ﴾ [البقره:۱۱۲]

او دا دواړه خبرے په انعمت عليهم او اهدنا کښې راغلي دي. او احسان په نعبد کښې هم شته.

٤٩- **فائده** : يو انسان تقوىٰ ته هله رسي چه (۱) اعتراف او اقرار د صدق اُوکړي (۲) او بيا پرے پوره تصديق اُوکړينو ددے نه به ضرور (۳) ښه صفات په نفس کښې پيدا کيږي او هر داعي له پکار ده چه (۱) حق بيانول او بيا (۲) په هغے يقين کول (۳) او ځان کښې ښه صفات راوستل اختيار کړي کما في قوله تعالىٰ: ﴿وَالَّذِي جَاءَ بِالصِّدْقِ وَصَدَّقَ بِهِ أُولَٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ﴾ (الزمر:۳۳)

دا درے واړه خبرے په (نعبد) او (اهدنا) او (انعمت) کښې شته. لنډه دا ده چه سورت فاتحه کښې د شل زره فوائدو نه زياتے فائدے دي او که مونږ کوشش اُوکړو باذن الله تعالىٰ نو پنځه جلده کتاب به پرے اُوليکو او دا کمال د قرآن دے زمونږ ندے. والله الموفق.

باقي نورے فائدے چه تقريباً (۱۱۰) لس ته رسيږي، مينځ مينځ کښې بيان شويدي.

ديته اسرار القرآن وائي. او دا د الله تعالىٰ د طرفنه ورکول کيږي او دا په لعلهم يتفكرون کښې داخل دي. د قرآن کريم اسرار نهٔ ختميږي ليکن د هدايت دپاره دغه يو څو حکمتونه او فائدے کافي دي. لمن اراد ان يتذكر او يستقيم. والله اعلم. پدغه مذکوره اسرارو فاتحه د نورو سورتونو نه ممتازه ده. او شايد چه د الفوائد جلد ثالث فوائد به ټول د سورت فاتحے نه ماخوذ وي هغه اُوګوره او بيائے دلته اُولګوه، فترىٰ عجباً.

الحمد لله د سورة الفاتحه تفسير اختتام ته اُورسيدو. والله الموفق.

بسم الله الرحمن الرحیم

# تفسیر سورة البقرة

سورة البقرة کښې یو څو بحثونه ذکر کیږی (۱) ددے سورت فضائل۔ (۲) ددے سورت نومونه۔ (۳) المقدمة: (٤) الامور الاربعة (څلور خبرے) ۱- ربط۔ ۲- مقصد۔ ۳-خلاصه یا حاصل د سورت۔ ٤- امتیازات السورة۔ (٥)- د کلماتو تحقیق او فوائد۔

**د سورة البقره فضائل**: ددے سورة ډیر فضائل راغلی دی۔

۱- ترمذی کښې حدیث دے چه نبی ﷺ په یوه ډله یو کشر سړے امیر کړو، پدے وجه چه هغه ته سورة البقره یاده وه [ فَاذْهَبْ فَأَنْتَ أَمِيرُهُمْ]

(فی اسناده مقال، وحسّنه الترمذی وضعفه الالبانی لاجل ارسال عطاء مولی ابی احمد)

۲- دویم: ابوامامه ؓ وائی چه ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل چه فرمایل ئے: [اِقْرَأُوا الْقُرْآنَ فَإِنَّهُ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ شَفِيعًا لِأَصْحَابِهِ، اِقْرَؤُوا الزَّهْرَاوَيْنِ :الْبَقَرَةَ وَآلَ عِمْرَانَ فَإِنَّهُمَا تَأْتِيَانِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كَأَنَّهُمَا غَمَامَتَانِ أَوْ كَأَنَّهُمَا غَيَايَتَانِ أَوْ كَأَنَّهُمَا فِرْقَانِ مِنْ طَيْرٍ صَوَافَّ، تُحَاجَّانِ عَنْ صَاحِبِهِمَا، اِقْرَأُوا سُورَةَ الْبَقَرَةِ فَإِنَّ أَخْذَهَا بَرَكَةٌ وَتَرْكَهَا حَسْرَةٌ وَلَا يَسْتَطِيعُهَا الْبَطَلَةُ] رواه مسلم فی الصحیح (۱۹۷/۲)

(قرآن اُولولئ: ځکه دا به د قیامت په ورځ خپلو لوستونکو له سفارش کونکے راځی، د رڼرا او چمك والا دوه سورتونه اُولولئ یعنی سورة البقره او آل عمران، ځکه دا دواړه به د قیامت په ورځ داسے راځی لکه دوه وریځے یا د مارغانو ډله، چه صف تړونکی وی، د خپل ویونکی د طرف نه به دفاع کوی، سورة البقره لولئ ځکه ددے حاصلول برکت دے او ددے پریخودل باعث د حسرت (افسوس) دے او جادو گر ددے په لوستونکی اثر نشی کولے۔ (صحیح مسلم)

۳- د ابو هریره ؓ نه مرفوع روایت دے: [لَا تَجْعَلُوا بُيُوتَكُمْ مَقَابِرَ، إِنَّ الشَّيْطَانَ يَنْفِرُ مِنَ الْبَيْتِ الَّذِي تُقْرَأُ فِيهِ سُورَةُ الْبَقَرَةِ. وَفِي رِوَايَةٍ لَا يَدْخُلُهُ الشَّيْطَانُ]

(مسند احمد، صحيح مسلم، ترمذی، نسائی)

(تاسو خپلو کورونو نه مقبرے مهٔ جوړوئ ځکه هغه کور چه سوره بقره پکښې لوستل کیږی هغے نه شیطان تیختـه کوی۔ او په یو روایت کښې دی : هغه کور ته شیطان نهٔ داخلیږی۔ او عبد الله بن مسعود ﷺ نه موقوفاً او مرفوعاً روایت دے : چه شیطان د هغه کور نه تختی چه په هغے کښې سورة البقره لوستلے کیږی۔

(مستدرك حاكم، نسائی فی اليوم والليلة)۔

٤- د ابو هریره ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ فرمائی : [لِكُلِّ شَيْءٍ سَنَامٌ وَسَنَامُ الْقُرْآنِ سُوْرَةُ الْبَقَرَةِ] (د هر شی دپاره قوب (اُوچتوالے) وی د قرآن دپاره قوب (اُوچتوالے) سورة بقره ده۔

(مستدرك الحاكم، والترمذی بسند حسن ووافقه الذهبي وحسنه الالباني لغيره في صحيح الترغيب :١٤٦١ وضعفه في الضعيفة (٢٨٠٣) وروى الدارمي (٣٣٧٧) موقوفاً على ابن مسعود بسند حسن)۔

٥- ابن مسعود ﷺ فرمائی : چاچه دا سورة د شپے اُولوستو درے شپے به د هغهٔ کور ته شیطان نهٔ راځی او چا چه د ورځے اُولوستو نو درے ورځے به شیطان د هغه کور ته نهٔ راځی۔ [صحیح ابن حبان وصحيح الترغيب والترهيب رقم (١٤٦٢) وسنده حسن لغيره]۔

ابن حبانؒ وئیلی دی چه د شیطان نه مراد دلته مَرَدَة الجن (سرکشه شیطانان) دی۔

٧- لبید بن ربیعة ﷺ یو شاعر صحابی دے، په سبعه معلقه کتاب کښې د هغه یوه قصیده هم شته تول عمر ئے (١٥٤) کاله وو، جاهلیت او اسلام دواړه ئے لاندے کړیدی، کله چه مسلمان شو نو اشعار ئے پریخودل او دابه ئے وئیل چه قرآن کریم موجود وی نو شعر ته څه ضرورت دے !، یوه ورځ ترے سیدنا عمر فاروق ﷺ مطالبه اُوکړه چه څه اَشعار اُووایه هغه ورتـه سورة بقره شروع کړه، نو هغه ورته اُووئیل چه زه درنه سورة بقره نه غواړم، اشعار درنه غواړم نو هغه اُووئیل [مَا كُنْتُ لِأَقُوْلَ شِعْرًا بَعْدَ أَنْ عَلَّمَنِيَ اللهُ الْبَقَرَةَ وَآلَ عِمْرَانَ، وَفِيْ رِوَايَةٍ : قَدْ أَبْدَلَنِيَ اللهُ تَعَالٰى بِهِ الْبَقَرَةَ، وَفِيْ رِوَايَةٍ : الْقُرْآنَ] کله نه چه سورة بقره نازله شویده نو زه اشعار نهٔ وایم نو عمر فاروق ﷺ ورته په تنخواه کښې (٥٠٠) روپئ اضافه ورکړے۔ [تهذيب الاسماء ١/٥٩٢) حرف اللام) الاستيعاب في معرفة الاصحاب (١/٤١٤)لابن عبد البر النمرى]۔ صحابه کرامو ته ددے سورت اهمیت او فضیلت معلوم وو۔

٨- ددے سورة د فضائلو نه دا هم ده چه حافظ عماد الدين ابن کثیرؒ لیکلی دی : پدے کښې زر اَوَامِر دی او زر نواهی دی او زر جملے خبرئیے دی۔ او قرطبیؒ ورسره دا ملګری

کړيدی چه پدې کښې زر حُکمونه دی. او ابن کثيرؒ د بعض شمارونکو نه نقل کړيدی چه: پدې کښې (۶۱۲۱) کلمات دی او (۲۵۵۰۰) حروف دی. (ابن کثير ۱/۱۵۵)

۹- شاه عبد العزيز په تفسير فتح العزيز کښې ليکلی دی چه پدې کښې پنځه سوه ښکاره احکام ذکر دی، ددې سورة په يو آية الدين کښې (۲۵) احکام دی، دومره کامل او جامع سورت دے.

۱۰- او حافظ ابن قيمؒ په کتاب الروح کښې ليکلی دی چه ددې سورة کښې (۱۵) مثالونه دی.

۱۱- عبد الله بن عمر رضی الله عنهما ددې په تفسير او تعلم باندې اته کاله تير کړی وو. [الموطأ لمالك: ٤٧٩) والاتقان فی علوم القرآن ٢/٤٢١) النوع الثالث والسبعون)

عمر فاروق ﷺ دا په دولس کاله کښې لوستلے وه. (شعب الايمان- والقرطبی)

۱۲- شقيق بن سلمه رحمه الله فرمائی: عبد الله بن عباس ﷺ سورة البقره لوستله او د هغې عجيبه تفسير او تشريح ئې کوله نو يو سړی اُووئيل: [لَوْ سَمِعَتْ هٰذَا الدَّيْلَمُ، لَاَسْلَمَتْ] (که دا تشريح ديلم والا (کفار) واوری نو اسلام به راوړی) (الطبری: ۱/۸۱)

## ۲- دويم بحث: ددے سورت نومونه

ددې سورت هم ډير نومونه دی. درې په مرفوع احاديثو کښې راغلی دی.

۱- سورة البقره: هغه سورة چه د بقرې واقعه پکښې ذکر ده. جمهور علماء وائی چه دې سورة ته سورة بقره وئيل جائز دی ځکه حديثو کښې نقل دی لکه مخکښې (اقرأوا سورة البقرة) (صحيح مسلم) تير شو.

د بعض سلفو نه دا نقل دی لکه (حجاج بن يوسف) او پدې باره کښې ابن مردويهؒ يو ضعيف حديث هم ذکر کړيدې چه داسې مهٔ وايئ سورة البقرة بلکه داسې وايئ: [اَلسُّوْرَةُ الَّتِيْ تُذْكَرُ فِيْهَا الْبَقَرَةُ] (هغه سورة چه د بقرې تذکره پکښې کيږی). (ابن کثير ۱/۱۵۶)

دا ولې وائی ځکه که سورة بقره اُووائی نو ديکښې بے ادبی ده. ليکن دا قول خطاء دے وجه دا ده چه ادب به مونږ د محمد رسول الله ﷺ نه زده کوو، هغه ورته دا نوم وئيلے دے لهذا پدې کښې هيڅ کراهت نشته.

۲- دويم دا چه د هر سورة چه کوم نوم وی په هغې کښې حکمت وی کله پکښې موضوع د سورة ته اشاره وی او کله پکښې کومه مهمه ناشنا مسئله وی، نو د هغه ناشنا والی د وجه نه ورته نوم ايخودل شوے وی نو سورة البقرې ته بقره ولې وائی ځکه چه پدې کښې د بقرې

واقعه ده، چه بنی اسرائیلو د غوا عبادت کړے وو، الله تعالیٰ ورته امر کړے وو چه ذبح ئے کړئ، هغه ذبح شویده او مړے پړے راژوندے شویدے، پدے واقعه کښې ډیر ناشنا ایمانیات او د توحید او د اثبات د آخرت مسئلے دی او رد د شرك او د یهودو عیب راښکاره کول دی۔

۲- دویم نوم: **سُوْرَةُ فُسْطَاطُ الْقُرْآن** : (د قرآن لویه خیمه) ځکه چه دا سورت هم مشتمل دے په ډیرو لویو مضامینو د قرآن یعنی، عقائد، اعمال، معاملات، احکام، سیاسیات، جهاد، امثال، تاریخ د بنی اسرائیلو او آداب وغیره۔ او دا نوم د خالد بن معدان (تابعی) رحمه الله – نه نقل دے۔

۳- **سُوْرَةُ سَنَامُ الْقُرْآن** : (سنام: قوب، کوهانِ شتر، په اوښ کښې اُو چت ځائے ته وائی) نو دا سورت هم په اعلیٰ مضامینو مشتمل دے۔ لکه مخکښې فضائلو کښې دا نوم ذکر شو۔

٤- **سُوْرَةُ الزَّهْرَاء** : ځکه چه دا سورت او آل عمران دواړه به د قیامت په ورځ چمك او برق کوی لکه مخکښې حدیث ذکر شو [اِقْرَأُوا الزَّهْرَاوَيْنِ]۔

(۵) سورة الم۔ د زمخشری وغیره په نیز۔

## دریم بحث : شان نزول

سورة البقرة مدنی سورة دے نازل شویدے پس د سورة مطففین نه، په مدینه کښې د ټولو رومبنے سورة دے په اعتبار د نزول سره۔ سویٰ ددے آیتونو نه [وَاتَّقُوْا يَوْمًا تُرْجَعُوْنَ فِيْهِ اِلَى اللهِ] ۔(او آیة الربا) نه چه دا د نبی ﷺ د وفات نه (۹) ورځے مخکښې نازل شوی وو۔ نور دا سورة د هجرت نه پس نزدے نازل شویدے، ددے وجه نه د هغه زمانے احوال به پکښې ډیر بیانیږی۔

نبی ﷺ چه مدینے ته هجرت اُوکړو او دار الخلافة جوړه شوه نو درے ډلے په مدینه کښې دننه پیدا شوے، او یوه ډله بهر د مدینے نه، نو څلور ډلے شوے، یوه ډله خالص مؤمنان چه دا د مهاجرین او انصارو ډله وه، دویم جماعت د یهودو وو چه هغوی سره نبی ﷺ وعده کړے وه چه تاسو مونږ ته څه مه وایئ مونږ به تاسو ته څه نهٔ وایو۔ او دا د نبی ﷺ هوښیارتیا وه۔ د یهودو درے غټے ډلے وے: ۱- بنو قینقاع۔ ۲- بنو نضیر۔ ۳- او بنو قریظه۔ په مدینه کښې په ګیر چاپیر علاقو کښې اُوسیدل او دلته د پخوا نه آباد شوی وو نو یهودو به خپل کار کولو، لیکن کله چه اسلام له الله تعالیٰ ترقی ورکوله، نو دوی ورانے

شروع کړو، تهمتونه به ئې وئیل۔ نبی ﷺ او صحابه کرامؓ به صبر کولو، الله تعالیٰ به ځائے په ځائے آیتونه رالیږل چه دوی کښې دا عیب دے، او دا دے، نو د هغوی عیبونه به ښکاره کیدل، نو دے سورة کښې د هغوی په باره کښې ډیر بحث راغلے دے، تقریباً پنځوس عیبونه ئې ذکر دی۔

۳-دریم جماعت د منافقانو پیدا شو۔ منافقان په مکه کښې نهٔ وو ځکه هلته مسلمانان کمزوری وو، او په مدینه کښې هم اوله کښې نهٔ وو، هلته هم اوله کښې کمزوری وه، ځکه منافقان هغه وخت پیدا کیږی چه اسلام زور واخلی۔

نو د منافقانو ضرر هم مسلمانانو ته زیات وو، ځکه چه اختلاف به ئې پیدا کولو، جاسوسی به ئې کوله، صحیح فیصله به اُوشوه، دوی به غلطه بیانوله، نو الله تعالیٰ پدے سورة کښې خصوصاً او په ټول قرآن کریم کښې عموماً په دوی باندے سخته حمله کړیده، او قبائح ئې ورله ذکر کړیدی چه د دوی دا مرضونه ښکاره شی۔نو منافقان په دغه زمانه کښې شروع شو۔

٤- څلورم جماعت مشرکان وو چه ښکاره په ضد ولاړ وو، د مسلمانانو په مقابل کښې توره ئې راخستے وه، دا یو د قریشو مشرکان وو، دویم د غطفان قبیله وه۔ بل د بار عالَم مشرکان وو، نو نبی ﷺ به د خپلو ملګرو اصلاح کوله او د دوی مقابله ئې کوله۔ ددے وجه نه رسول الله ﷺ درویشت کاله ژوند ډیر په پریشانئ تیر کړو او د غتو غتو قوتونو مقابله ئې د الله تعالیٰ په مدد اُوکړه تردے چه الله تعالیٰ غلبه ورکړه۔

نو دا یو اجمالی تاریخ وو او سورة البقره به د دغه نه بحث کوی۔ بیا قرآن کریم به د دغه دَور پورے خاص نهٔ وی بلکه دا به زمونږ دپاره هم قانون وی۔ چه اے خلقو! تاسو کله دین عام کړئ نو څنګه ژوند به تیروئ، نو دا سورة به غالباً د مسلمانانو تربیت او د اسلام د دشمنانو د مقابلے طرز او طریقه ښائی۔ او دا خبره به پکښې ډیره زیاته بیانیږی۔ د کور اصلاح، او د ښار او کلی اصلاح به پکښې ذکر کیږی او د مسلمانانو د جماعت ذکر به پکښې وی او څوک چه دا جماعت ورانول غواړی د هغوی مقابله به پکښې وی، نو سورة بقره په داسے نازک وخت کښې نازله وه۔

## ٤- بحث : مباحث اربعه :

۱- **ربط او مناسبت** : نو ربط او مناسبت د قرآن کریم د علومو نه دی او مقصود پدے سره اظهار حکمة الترتیب دے چه دا ترتیب ولے اختیار کړے شو، ددے حکمت څه دے؟

بیا مناسبت درے قسمه دے (۱) د یو سورت مناسبت د بل سورت سره۔ دا هم مشتمل دے په فوائدو۔ (۲) لیکن ددے نه زیات ضروری هغه مناسبت د آیتونو دے د بعضو د بعضو سره۔ د قرآن کریم په آیتونو کښې ډیر زور مناسبتونه شته، لږ خلق په هغے پوهیږی او په دغه مناسبتونو کښې ډیرے ایمانی او علمی فائدے وی لکه روستو به راځی ان شاء الله تعالیٰ۔ قرآن کریم بے ربط او بے مناسبته کتاب نهٔ دے۔

(۳) دریم (مناسبة الآیات بموضوع السورة) دے چه د آیتونو تعلق د موضوع سره وی، په دے تعلق کښې هم ډیر باریك باریك اسرار وی چه د قرآن کریم طالب العلم ته ډیره فائده ورکوی او دا مناسبتونه ددے تفسیر خصوصیت دے ان شاء الله تعالیٰ۔ او پدے سره به مواقع الآیات هم معلومیږی یعنی دا فلانے آیت پدے سورت کښې ولے ذکر شوے د فلانی حکمة په وجه ذکر شویدے۔

**نکته** : دا مناسبات بیانول څه بدعت نهٔ دے بلکه دا فهم دے [اُوْتِیَهٗ رَجُلٌ فِیْ کِتَابِ اللهِ تَعَالٰی] (چه بنده ته د الله تعالیٰ په کتاب کښې ورکولے شی) بلکه د احادیثِ نبویه نه معلومیږی۔ لکه حدیث کښې دی، نبی ﷺ یوه ورځ اُوفرمایل : [عُدِلَتْ شَهَادَةُ الزُّوْرِ بِالْاِشْرَاكِ بِاللهِ ثُمَّ قَرَأَ فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْاَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوْا قَوْلَ الزُّوْرِ ] [رواه البخاری]

(د دروغو گواهی د شرك سره برابره ده، دلیل ئے پرے دا ورکړو چه قرآن کریم کښې الله تعالیٰ قول الزور د من الاوثان (شرك) سره یوځائے ذکر کړیدے او دے ته استدلال وائی په دلالة الاقتران سره او دا هم مهم شے دے۔ دارنگه بل حدیث دے [نَبْدَأُ بِمَا بَدَأَ اللهُ بِهٖ] (رواه مسلم) صفا غونډئ ته چه راغلو نو وے فرمایل : مونږ به د صفا نه شروع کوو ځکه چه الله تعالیٰ په قرآن کریم کښې صفا د مروه نه مخکښې ذکر کړیده۔ او ددے زیاته تشریح زمونږ اصول القرآن کښې اُوگورئ۔

## د سورت بقرے مناسبتونه د فاتحے سره

نو د سورة بقرے د فاتحے سره **ربط** او تړون څه دے؟ ولے په ترتیب مصحفی کښې د یو بل پسے راوړلے شو؟ ۱- وجه : سورة الفاتحه بمنزلة الاجمال ده او بقره بمنزلة التفصیل ده او

دا د بلاغت قاعده ده چه مخکښې اجمال ذکر شي بيا تشريح او تفصيل نو دا اَوقع في الذهن (ذهن کښې ښهٔ واقع) کيږي۔

۲- دويم هلته د الله تعالىٰ د اُلوهيت تذکره وه نو دلته د هغې تفصيل دے۔

۳- دارنګه هلته لفظ د رب راغې نو دلته د الله تعالىٰ د تربيت بيان دے په (يا ايها الناس اعبدوا) سره، ددے امت۔ او په (يابني اسرائيل) سره د بني اسرائيلو تربيت۔

٤- دارنګه فاتحه کښې رحمن رحيم وو نو دلته دوه قسمه رحمتونه او نعمتونه ذکر کوي [اَلرَّحْمَةُ عَلٰى بَنِىْ اِسْرَائِيْلَ وَالرَّحْمَةُ عَلٰى بَنِىْ اِسْمَاعِيْلَ] ۔ (په بني اسرائيلو څومره نعمتونه شوي وو او په بني اسماعيلو څومره ؟) هغه به اُوشماري۔

۵- دارنګه په فاتحه کښې مالك يوم الدين وو نو بقره کښې د شفاعتونو مسئله بيانوي چه ﴿وَلَا يُقْبَلُ مِنْهَا شَفَاعَةٌ﴾ ﴿مَنْ ذَا الَّذِىْ يَشْفَعُ عِنْدَهٗ اِلَّا بِاِذْنِهٖ﴾ نو دلته همدا وائي چه هرکله الله تعالىٰ مالك دے، نو د قيامت په ورځ بغير د اذن د الله تعالىٰ نه د هيچا شفاعت کار نهٔ ورکوي۔ دارنګه دغه ورځ باندے ايمان ته دعوت دے۔

٦- بيا هلته اياك نعبد ذکر وو نو دلته په ډير تفصيل سره ټول اقسام د عبادت ذکر کوي۔

۷- هلته د هدايت سوال اُوشو نو دلته ئے اِجابت اُوشو، الله تعالىٰ اُوفرمايل : چه دا کتاب هدايت دے۔ ۸- بيا هلته درے ډلے وے، نو دلته د هغه درے ډلو تفصيلي صفات ذکر کوي د اول سر نه متقين منافقين او کفار۔

## ۲- دويمه خبره د سورت مقصد اودعوىٰ

۱- زمونږ مشائخ ددے سورت موضوع څلور خبرے بيانوي : ۱- التوحيد ۲- الرسالة (دا دواړه د عقائدو نه دي) ۳- الجهاد ٤- الانفاق۔ (دا دواړه د اعمالو نه دي) دا څلور دعوے شوے۔ او دا څلور واړه مهمے خبرے دي، او زمونږ مشائخ ئے د دعوي او مقصد په شکل بيانوي، ددے وجه نه هغوی سورة تقسيموي څلورو حصو ته، وائي چه : د (۹۶) آيت (قُلْ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِجِبْرِيْلَ) پورے د توحيد خبره بيانيږي۔ د هغه ځائے نه تر (۱۷۶) (لَيْسَ الْبِرَّ) آيت پورے د رسالت مسئله بيانيږي او د لَيْسَ الْبِرَّ نه تر (۲۵۴) پورے د جهاد او قتال في سبيل الله او د هغه ځائے نه تر آخره پورے انفاق بيانيږي۔ نو ګويا کښې د هرے مسئلے دپاره جدا حصه مقرره ده۔ (ددے بيا دا مقصد نهٔ دے چه بله خبره به پکښې نهٔ وي، نورے هم شته

لیکن دا پکښې ښکاره ده)

**۲- دویم قول** : مقصد ددې سورة دې [عَرْضُ الْإِسْلَامِ بِأَجْمَعِهِ] (ټول اسلام خلقو ته پیش کول) ددې وجه نه د اسلام هره خبره تقریباً دې سورة کښې شته، ځکه اسلام مرکب دې د شپږو خبرو نه : ۱- اول : ایمانیات (عقائد هم ورته وائی).

۲- دویم : عبادات (اعمال هم ورته وائی)

۳- دریم : اخلاق- دې درو خبرو ته انفرادي او شخصي اُمور وائی. ددې نه د هیچا، په هیڅ وخت کښې خلاصې نشته. که د مسلمانانو حکومت وی او که نه.

٤- څلورم معاشرات : (شریك ژوند تیرول).

٥- پنځم : معاملات (د خلقو سره بیع وشراء (اخستل خرڅول) ودونه وغیره).

٦- شپږم : خلافة اونظام : دې درې وارو ته اجتماعي ژوند وائی. کله چه خلافت قائم شی، د الله تعالیٰ حدود به نافذیږی، او په دې احکامو چه څوك عمل کوی، د هغه تائید به کیږی، څوك چه پرې عمل نۀ کوی، هغوی له به سزا ورکولې شی، حکومت فقط چوکۍ یا ځان مرولو ته نۀ وائی، د خلافت معنیٰ ده : د فسادونو ختمول یا کمول او د مصالحو ډیرول او پیدا کول. دا د مسلمانانو د خلافت معنیٰ ده، د خلافت سره اَمن راځی، گناهونه ظاهراً نۀ وی. نو پدې سورة کښې ددې شپږو خبرو تفصیل دې، او دا پوره دین دې نو پدې سورت کښې ټول دین پیش کول دی. نو ځکه ورته فسطاط القرآن هم وائی.

**۳- دریم قول** : ظاهر دا ښکاره کیږی (او دا زمونږ رأیه ده) چه سورة کښې موضوع د ایمان ده. یعنی [اَلْإِيْمَانُ بِاللّٰهِ وَالرَّسُوْلِ وَبِكِتَابِهِ وَالْإِيْمَانُ بِالْيَوْمِ الآخِرِ وَالتَّرْغِيْبُ اِلَيْهِ وَفَوَائِدُ ذٰلِكَ وَنُقْصَانُ تَرْكِ ذٰلِكَ] (الله تعالیٰ او رسول الله ﷺ او کتابونو او آخرت باندې ایمان ته ترغیب دې او ددې فوائد او د عدم ایمان نقصانات) او د ایمان متعلقات بیانوی.

د ایمان د موضوع دپاره قرآن کریم کښې بعض سورتونه خاص کړې شویدی لکه سورة بقره، سورة یونس، سورة الم سجده، سورة الحدید، سورة الجاثیه او سورة الشعراء.

دا وجه ده چه پدې سورتونو کښې د قرآن کریم په باره کښې لفظ د (لَارَيْبَ) راغلې دې، ځکه چه دې کښې موضوع د ایمان ده، نو دیکښې به د ایمان فوائد او د عدم ایمان نقصانات بیانوی. یعنی چه چا ایمان رانۀ وړو، غرق او هلاك دې، یهودی دې، که نصرانی، صابئ دې او که هرڅوك دې، ددې وجه نه په دې سورت کښې لفظ د ایمان د نوی (۹۰) کرتونه

زیات ذکر شوی دی، او کله به د ایمان مرادف لفظ استعمالوی لکه په اوله کښې وائي: (يُؤْمِنُونَ بِالْغَيْبِ)، (وَالَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِمَا اُنْزِلَ اِلَيْكَ) (يُوْقِنُوْنَ) (وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَقُوْلُ آمَنَّا بِاللهِ) (اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ)، (يُخَادِعُوْنَ اللهَ وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا) [وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ آمِنُوْا، كَمَا آمَنَ النَّاسُ قَالُوْا اَنُؤْمِنُ)، (وَاِذَا لَقُوا الَّذِيْنَ آمَنُوْا). (وَبَشِّرِ الَّذِيْنَ آمَنُوْا)، (فَاَمَّا الَّذِيْنَ آمَنُوْا فَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ) او (وَآمِنُوْا بِمَا اَنْزَلْتُ مُصَدِّقًا لِمَا مَعَكُمْ) (اِنَّ الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَالَّذِيْنَ هَادُوْا) (مَنْ آمَنَ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ) (يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا)۔

دی وجه نه د سورت په آخر کښې به تاسو دا تکے گورئ [آمَنَ الرَّسُوْلُ بِمَا اُنْزِلَ اِلَيْهِ مِنْ رَّبِّهٖ وَالْمُؤْمِنُوْنَ] محمد رسول الله ﷺ دا قرآن کریم منی، او دارنگه مؤمنان ئے هم منی)، [كُلٌّ آمَنَ بِاللهِ وَمَلَائِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ] ۔په الله هم ایمان راوړی په ملائکو او کتابونه هم منی او رسولان هم منی او د یهودو په شان نهٔ دی چه بعض پیغمبران منی او بعض نهٔ منی)، دا لفظونه پکښې بار بار ذکر شوی دی۔

دارنگه ددې په مقابله کښې د کفر لفظ یه پکښې ډیر راغی نو پدې سورت کښې به د ایمان او د کفر مقابله وی۔ او څلور ایمانیات به پکښې ذکر کیږی (ایمان بالله والرسول والکتب والیوم الآخر) ۔او دا بحث به د ایمان شرعی په حق کښې وی چه دا متضمن دی توحید لره هسې د خولې ایمان نه بحث نهٔ دې۔ او د متکلمینو د ایمان نه هم بحث نهٔ دې۔

## دریم بحث : حاصل السورة :

نو حاصل د یوې رکوع دا دې : اوله کښې الله تعالیٰ په الم ذلك الكتاب کښې عظمة القرآن بیانوی۔ په ذکر د درې صفاتو : ۱- یو دا کامل کتاب دې۔ ۲- بے شکه کتاب دې۔ ۳- د هدایت نه ډک دې۔ بیا بیان د اهل القرآن۔ چه د قرآن نه فائده اخستونکی څوك دی نو هغه متقین دی، شپږ صفات به ورله بیان کړی۔ ۱- التقویٰ ۲-الایمان بالغیب۔ ۳- اقامة الصلاة ۔ ٤- الانفاق۔ ٥-الایمان بالکتاب والسنة۔ والکتب المنزلة ۔ ٦- الیقین بالآخرة۔ ددې ټولو باعث په آخرت یقین دې۔نو په آخر کښې ئے نتیجه ذکر کړېده په ذکر د فوائدو چه یو ۱- : پدې صفاتو به صحیح هدایت ورته حاصل شي۔ ۲- دویم : همیشه کامیابی به ورته حاصله شي۔ بیا ددې اهل الایمان ضد خلق ورپسې ذکر کوی، او د هغوی درې صفات : ۱- الکفر عناداً (کفر کول، خبره نهٔ منل او قصداً نهٔ منل) ۲- اَلْاِنْذَارُ وَعَدَمُ

اَلْإِنْذَارِ فِيْ حَقِّهِمْ سَوَاءٌ (دعوت فائده نهٔ ورکوی)

۳- لَا يُؤْمِنُوْنَ (د ایمان اِراده هم نهٔ لری) ددے درے صفتونو دوه نتیجے دی: ۱- دنیاوی سزا چه هغه د هدایت نه محرومیدل دی په ختم سره۔ ۲- بله اخروی سزاء ده چه هغهٔ عذاب عظیم دے۔

نو ددے رکوع حاصل دا را اُووتو: ۱- درے صفات د قرآن کریم د عظمت، د اهل قرآن شپږ صفتونه، او دوه نتیجے، هدایت او فلاح، نو دا یولس خبرے شوے۔ او درے د کافرانو صفات او دوه عذابونه نو جمله شپاړس غټے خبرے دی۔

○○○○○○○○

Scanned by CamScanner

| آیاتها : ۲۸٦<br>ورکوعاتها : ٤٠ | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | سُوْرَةُ الْبَقَرَةِ مَدَنِيَّةٌ |
|---|---|---|

الٓمٓ ﴿۱﴾ ذٰلِكَ الْكِتَابُ لَا رَيْبَ فِيْهِ هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿۲﴾

الله تعالیٰ خبردار دے په مراد ددے حروفو، دا کامل کتاب دے، هیڅ شك نشته پدے کښې، لاره ښودونکے دے متقیانو لره.

## توضیح الکلمات والتفسیر

**الم** : دیته حروف مقطعات (هغهٔ حروف چه په تلفظ کښې د یو بل نه جدا جدا لوستلے کیږی) وئیلے شی۔ دیته حروف وائی په اصطلاح د متقدمینو کښې ځکه هغوی د اسم، فعل او حرف فرق نهٔ کوی، تولو ته حروف وائی، ورنه په اصل کښې دا اسماء دی۔ ځکه الف اسم دے د مسمی (ا) او لام اسم دے د (ل) او میم اسم دے د (م) نو بناء پدے دیته اسماءِ مقطعات وئیلے شی۔ دا حروف په ابتداء د (۲۹) سورتونو کښې راغلی دی چه تول (۷۸) حرفه دی او بغیر د تکرار نه تول (۱٤) دی چه مجموعه ئے دا ده :

[طَرَقَ سَمْعَكَ النَّصِيْحَةَ] (خپل غوږ نصیحت ته خکته کړه)

یا [صَحِّحْ طَرِيْقَكَ مَعَ السُّنَّةِ] ۔ (د سنت سره دِے خپله لاره برابره کړه)۔

یا [نَصٌّ حَكِيْمٌ قَاطِعٌ لَهٗ سِرٌّ] .............. (دا د حکیم ذات یقینی الفاظ دی چه راز لری)

شیعه ګان ئے داسے مجموعه جوړوی : [صِرَاطُ عَلِيٍّ حَقٌّ نُمْسِكُهٗ]۔

(د علی لاره حقه ده مونږه ئے رانیسو)

ددے د معنیٰ او مفهوم په باره کښې د مفسرینو اختلاف راروان دے۔

۱ - **اول مشهور** قول دا دے (دا قول د خلفاءِ اربعه او ابن مسعود –رضی الله عنهم– او اکثرو تابعینو رحمهم الله دے) [سِرٌّ، اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِمُرَادِهٖ بِذٰلِكَ]

(چه دا د الله تعالیٰ یو راز دے، چه هغه ددے په معنیٰ او مطلب ښهٔ پوهه دے) ددے معنیٰ هیچا ته نهٔ ده معلومه، پدے وجه دوی ددے تفسیر نهٔ دے بیان کړے۔

د ابوبکر صدیق ﷺ نه نقل دی : [لِكُلِّ كِتَابٍ سِرٌّ وَسِرُّ اللهِ فِي الْقُرْآنِ فَوَاتِحُ السُّوَرِ]

(د هر کتاب یو راز وی او د الله تعالیٰ راز په قرآن کریم کښې ابتدائی حروف د سورتونو دی) (تفسیر الدر المنثور، الطبری، روح المعانی، نظم الدرر للبقاعی)

او دا معنیٰ محققین مفسرینو غوره کړیده. علامه صدیق حسن خان په تفسیر فتح البیان کښې لیکي : چه د صحابه کرامو (ابن عباس، او علي بن ابي طالب رضی الله عنهم) نه چه کوم تفسیر د حروف مقطعاتو نقل دے (۱) نو هغه یا ثابت نهٔ دے.

(۲) او کوم چه صحیح ثابت دي نو هغه محمول دي د هغوی په اجتهاد باندے. او د نبی کریم ﷺ نه په دے باب کښې تفسیر نقل نهٔ دے. مقصد ئے دا دے چه اول قول غوره دے. انتهیٰ. او دغه معانی هم په درجه د ظن او تخمین کښې دي، د دے وجه نه د هغوی اختلاف هم پکښې راغلے دے.

بیا پدے باندے **سوال** دے چه هر کله خلق په دے نهٔ پوهیږی نو بیا د دے د نازلولو فائده څه ده ؟ نو د دے بعض فوائد او حکمتونه دا دي ۱ - [كَبْحُ عِنَانِ الْعَالِمِ عَنِ التَّعَرُّضِ لَهَا] امتحان دے په علماؤ چه دوی هر شے معلوموی، نو ورته وئیلے شی چه تاسو به پدے کښې گوتے نهٔ وهئ. خپل علم پدے کښې نشئ چلولے. لکه په جاهل دا ابتلاء وی چه علم زدهٔ کړه.

۲ - تذکیری فائده ئے دا ده چه قرآن کریم د اول نه په لا علمئ شروع شی یعنی بنده د اول نه اقرار د خپل عجز او ضعف او ناپوهئ اُوکړی چه زهٔ په هیڅ نهٔ پوهیږم مگر ستا په توفیق سره. نو الله تعالیٰ به ورته علم ورکړی، او که انسان دعوه د علم اُوکړی نو الله تعالیٰ به ئے د علم نه محروم کړی.

۳ - **لِتَحَدِّي الْكُفَّارِ وَاِعْجَازِ الْقُرْآنِ)** یعني پدے کښې حکمت تحدی (مقابله) ده د کفارو سره چه قرآن کریم د دے حروفو نه جوړ شویدے او تاسو هم خپل کلام د دے (نهه ویشت) حروفو نه جوړوئ نو څئ د دے مقابله اُوکړئ او بشر خو د دے د مقابلے نه عاجز دي نو معلومه شوه چه دا د الله تعالیٰ حق کلام دے.

٤ - **حکمة** : که د قرآن کریم په معنیٰ پوهیږے نهٔ، هم اجر دے، او که پوهیږے هم اجر دے. حدیث کښې دي : [لَا اَقُوْلُ: آلٓمٓ حَرْفٌ، بَلْ اَلِفٌ حَرْفٌ وَلَامٌ حَرْفٌ وَمِيْمٌ حَرْفٌ] (التاریخ الکبیر للبخاری (۲/۲۱٦) والترمذی (٥/۱۷٥) رقم : (۲۹۱۰) وقال حسن صحیح غریب) وشعب الایمان (۲/۳٤۲) (یعنی الم یو حرف نهٔ دے بلکه درے حروف دي) نو پدے حدیث کښې الم په مثال کښې راوړل د دے نکتے ته اشاره ده.

شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ او حافظ ابن قیمؒ (په قصیده نونیه) کښې دا وئیلی دي چه د دے حروفو ضرور د قرآن کریم سره مناسبت او تعلق شته د دے وجه نه د دے حروفو نه روستو

غالباً تذکره د قرآن کریم او د وحی کیږی۔ لکه تدبر پکښې اُوکړه۔ نو دلته د دلالة الاقتران په بناء باندے د قرآن کریم عظمتِ شان ته په کښې اشاره ضرور ده۔ او دارنګه تحدی پکښې غرض ده۔ او دارنګه د هر سورت په ابتداء کښې چه راغلی دی نو د هغه سورت سره ئې مناسبت دے۔ کما قال السیوطیؒ۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکی : همدا وجه ده چه د کومو سورتونو په ابتداء کښې دا حروف راغلی وی نو په هغے کښې د قرآن کریم عظمت او د هغے په اعجاز باندے زور ورکړے شویدے۔لکه (الٓمٓ ذٰلِكَ الْكِتٰبُ) (الٓمٓصٓ كِتٰبٌ اُنْزِلَ اِلَيْكَ فَلَا يَكُنْ فِيْ صَدْرِكَ) (اعراف) (الٓمٓ تَنْزِيْلُ الْكِتَابِ لَارَيْبَ فِيْهِ مِنْ رَّبِّ الْعَالَمِيْنَ) (الم السجدة) (حٰمٓ تَنْزِيْلٌ مِّنَ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ) (فصلت).

په تفسیر التنویر کښې ابن عاشور رحمه الله (۲۱) اقوال نقل کړیدی او بیا ئې فرمائیلی دی :(خَلُصَ اَنَّ الْاَرْجَحَ مِنْ تِلْكَ الْاَقْوَالِ ثَلٰثَةٌ (۱) وَهِيَ كَوْنُ تِلْكَ الْحُرُوْفِ لِتَبْكِيْتِ الْمُعَانِدِيْنَ وَتَسْجِيْلاً لِعِجْزِهِمْ عَنِ الْمُعَارَضَةِ (۲) اَوْ كَوْنُهَا اَسْمَاءً لِلسُّوَرِ الْوَاقِعَةِ هِيَ فِيْهَا (۳) اَوْ كَوْنُهَا اَقْسَامًا اَقْسَمَ اللّٰهُ بِهَا لِتَشْرِيْفِ قَدْرِ الْكِتَابَةِ وَتَنْبِيْهِ الْعَرَبِ الْاُمِّيِّيْنَ اِلَى فَوَائِدِ الْكِتَابَةِ لِاِخْرَاجِهِمْ مِنْ حَالَةِ الْاُمِّيَّةِ وَالْاَرْجَحُ مِنْ هٰذِهِ الْاَقْوَالِ الثَّلَاثَةِ اَوَّلُهَا) (یعنی خلاصه ددے اقوالو دا ده چه راجح پدے اقوالو کښې درے اقوال دی (۱) یا دا حروف د معاندینو (مشرکانو) د چپ کولو او هغوی د مقابلے نه د عاجز کولو دپاره نازل شویدی۔ (۲) یا دا نومونه دی د هغه سورتونو چه دا پکښې واقع شویدی۔ (۳) یا دا قَسمونه دی چه الله تعالیٰ پرے قسمونه کړیدی، دے دپاره چه د کتابة (لیکلو) شرافت او قدر عربو ته بیان کړی او امیان عربو ته د کتابت په فوائدو باندے تنبیه ورکړی دے دپاره چه د حالت د اُمیة (امی توب) نه ئې رابهر کړی۔ او راجح پدے درے اقوالو کښې اولنے قول دے۔(التحریر والتنویر ۱/ ۱۲۵)

۵- **حکمة** : بعضو وئیلی دی : دا حروف د متوجه کولو د کفارو دپاره وو چه ناشنا کلام واوری چه متوجه شی۔

۶- حکمة : بعض وائی : پدے کښې تعلیم د حروف تهجی دے۔

بیا ددے علماؤ په نیز باندے دا متشابهات دی، معنیٰ مراده ئې نۀ ده معلومه۔ اګرکه حکمتونه او فائدے ئې شته۔ او ددے او د صفات الٰهیه ؤ په مینځ کښې فرق دا دے چه د الله تعالیٰ صفات متشابه دی په اعتبار د کیفیت سره اګرکه معنیٰ لغوی به ئې کولے شی۔او دا متشابه دی په اعتبار د معنیٰ سره، معنیٰ لغوی او معنیٰ مراده ئې مخلوق ته یقینی نۀ ده معلومه.

**۲- دویم قول** : دا کتاب په عربي مبین ژبه کښې دے، نو که پدے کښې داسے الفاظ راشي چه د هغے په معنیٰ انسانان پو هه نشي نو بیا به لازم شي خطاب بما لا یفهم) (خبرے په هغه څه سره چه مخاطب پرے نهٔ پو هیږي) او دا خو ضائع وي. نو ددے ضرور معانی شته. نو بیا دے علماؤ ددے د تفسیر بیانولو کوشش کړیدے،

۱- په دوی کښې د اکثرو رایه دا ده چه دا (حروف) د سورتونو نومونه دي. (خلیل رحمه الله). دا قول دومره قوي نهٔ دے ځکه چه اسم کیخودل روستو د تمامیت د شي نه وي. او دلیل پرے هم نهٔ شته.

۲- بعض وائي : دا د قرآن کریم نومونه دي. (سعید بن جبیرؒ او مجاهدؒ).

۳- بعض وائي : دا نومونه د الله تعالیٰ دي. (علي بن ابي طالب ﷺ وسالمؒ بن عبد الله).

ابن ابي حاتمؒ وئیلي دي چه ممکن ده چه دا ټولے معاني په یوځل مراد وي ځکه پدے کښې څه منافات او تناقض نشته. ځکه کله چه ډیرے معاني راشي او تضاد پکښې نهٔ وي او احتمال وي نو ټولے معاني مراد اخستل کیږي لِعُمُوْمِ عِلْمِ اللّٰهِ تَعَالیٰ بِهَا ـ (د الله تعالیٰ علم فراخه دے).

**بیا** بعض علماؤ پدے کښې د بیل بیل حرف معنیٰ کړیده اګرکه دا یقیني معنیٰ نهٔ ده بلکه د احتمال او تخمین په درجه کښې ده : ۱- بعض وائي : الف اشاره ده الله ته او لام اشاره ده جبرئیل ته او میم اشاره ده محمد (ﷺ) ته یعني دا کتاب الله تعالیٰ، په محمد ﷺ باندے د جبرئیل په واسطه نازل کړیدے. دا قول ابن عباسؓ ته منسوب دے. لکه په اشعارو کښې ددے مثال داسے دے (فَقُلْتُ لَهَا قِفِيْ فَقَالَتْ قْ.(یعني وَقَفْتُ) (ما ورته اُووئیل : اُودریږه نو هغے اُووئیل: زهٔ ولاړه یم) نو یو (ق) قائم دے په مقام د وَقَفْتُ باندے.

۲- بعض وائي : د الله تعالیٰ نومونو ته اشاره ده، الف اشاره ده الله ته، او لام اشاره ده (لَطِیْفٌ بِعِبَادِهٖ) ته او میم اشاره ده مجید یا مالك ته. او پدے کښې تنبیه ده چه ددے سورت مضامین ددے صفاتو نه راوتي دي. (تفسیر احسن الکلام).

۳- بعض وائي : الف (اصل) ته او لام (لازم) ته او میم (محکم) ته اشاره ده یعني دا کتاب اصل او لازم الاتباع او محکم کتاب دے. (تبصیر الرحمن للمهائمی).

٤- د عبد الله بن عباس ﷺ نه دا هم نقل دي : الف کښې (اَنَا) او لام کښې (اللّٰه) او میم کښې (اَعْلَمُ) ته اشاره ده یعني (اَنَا اللّٰهُ اَعْلَمُ) (یعني زهٔ الله ښهٔ پو هه یم) (ابن کثیرؒ)

٥- يا پدے کښې درے قسمه مخارج د حروفو ته اشاره ده، الف متحرك اصل کښې همزه دے او دا د ابتداء د مخارجو نه دے چه حلق دے او لام د مينځ نه او ميم د آخر د مخارجو نه دے (چه شونډے دی) نو پدے کښې هم د انسان درے واړه قسمه حالات موجود دی، ابتداء او وسط او انتهاء۔ حافظ ابن قيّم فرمائي : پدے کښې اشاره ده چه دا سورت مشتمل دے په ابتداء د خلق او په مينځ چه هغۀ دنياوی احکام شرعيه دی او په آخر د خلق چه آخرت او قيامت دے۔ ليکن دا وجه هم بعيده ښکاره کيږی۔

٦- بعض وائي : د حروف ابجد په حساب سره پدے کښې د دين تکميل ته اشاره ده چه دا دين اسلام به په يو اويا (۷۱) کالو کښې مکمل کيږی۔ او کوډ کوډ ته به رسيږی۔ ځکه الف يو کال ته اشاره ده او لام ديرش دی او ميم څلويښت دی۔

(ابن کثير ۱/۱۵۸) والنکت والعيون للماوردی (۱/۸)

**ليکن** ظاهر او راجح اول قول دے چه پدے باندے الله تعالیٰ پو هيږی ليکن د کفارو تذليل او عجز په کښې مقصود دے او د قرآن کريم عظمتِ شان په کښې مقصود دے۔

زما تجربه دا ده چه کوم سورت کښې دا حروف راغلی وی، نو په هغه سورت کښې اسرار او باريکات ډير وی، ناشنا اشارات وی، عجيب حکمتونو ته اشارات وی، ګويا کښې د اول نه براعة الاستهلال وی چه دا حروف عجيب نو باقی سورت کښې هم عجائبات شته۔ والله اعلم۔

**سوال** : هر کله چه دا راجح شوه چه ددے حروفو په معنیٰ الله تعالیٰ پو هيږی نو دا خو خطاب شو په هغه خبرو چه بنده پرے نۀ پو هيږی او دا خو تيك نۀ وی، نو دلته ولے شويدے۔؟ **الجواب** : عام قرآن معلوم المعنیٰ دے، که يو څو حروف پکښې مجهول المعنیٰ راشی، هيڅ ضرر نشته، يا که دا حروف معلوم المعنیٰ نۀ دی خو معلوم الحکمة خو ضرور دی او دا د خطاب دپاره کافی ده۔

**ترکيب** : بيا دلته دوه ترکيبونه جوړيږی (۱) کله چه دا حروف مقطعات د الله تعالیٰ راز شی نو بيا لا محل لها من الاعراب دی۔ (۲) او که نوم د قرآن يا د سورت شی لکه دا صاحب الکشاف او سيبويه په (الکتاب) کښې غوره کړيدے۔ نو بيا (الم) کلمه خبر دے او (هذه) مبتداء پټه ده۔ او ذلك الم ته اشاره ده۔ او عرب کله بلا مناسبته هم د يو شی نوم اږدی۔ (کما فی تدبر القرآن)

(ذلك) : ذلك اشاره ده (مَا نَزَلَ او مَا سَيُنَزَّلُ) ته يعنی هغه آيتونو او سورتونو ته چه

مخکښ نازل شوی وو او دارنګه هغه چه روستو نازليدونکی دی۔

او لفظ د ذلك اشاره بعيد (وړاندې) ته ده۔ او دلته خو دا کتاب نزدې دې، ليکن بعيد دوه قسمه دې يو هغهٔ چه مکان يا زمانه ئې لرې وی، دويم هغه چه مرتبه ئې داسې لويه وی چه د انسانانو د مقابلې نه لرې وی، ديته بُعْدِ رتبی وائی، او دلته دا قسم مراد دې يعنی دا لوئی مرتبې والا کتاب دې۔ ۲- کلمهٔ ذلك په معنیٰ د هذا هم رازی، د اسماء اشاراتو د يو بل په معنیٰ استعماليدل کثير دی۔

۳- بعض وائی : اشاره ده تورات او انجيل ته چه په هغې کښې ددې کتاب الله تذکره وه۔ يعنی دغه کتاب چه په پخوانو کتابونو کښې ئې تذکره شويده، کامل کتاب دې۔

٤- يا اشاره ده هغه څه ته چه الله تعالیٰ د هغې وعده کړيده پدې قول سره (إِنَّا سَنُلْقِي عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيلًا) (المزمل) (يعنی دغه قول ثقيل دا کتاب دې) (زاد المسير)۔

ليکن دا اقوال بعيد دی۔

ظاهر دا ده چه دا اشاره ده (مَا نَزَلَ او مَا سَيَنْزِلُ) ته يعنی نازل شوی او نازليدونکی سورتونو) ته او مقصود پکښې بُعْد رتبی دې۔

(الکتاب) : ددې نه مراد قرآن کريم دې الف لام پکښې د کمال دپاره دی يعنی هغه عظيم او کامل کتاب چه په حقيقی معنو کښې کتاب دې څکه په دې کښې د علم او حکمت داسې خزانې او واضحه حق بيان شوې دې چه په مخکنو کتابونو کښې نهٔ وو موجود۔ نو څکه دا کامل کتاب دې۔ او د دين په ټولو مهماتو مشتمل دې۔

## د کتاب لفظ معانی

لفظ د کتاب په قرآن کريم کښې (۳۱۹) او ماده ئې (۲۱۹) کرته راغلې ده۔ په ډيرو معانيو مستعمل دې لکه :

۱- کتاب په معنی د فرض لکه (إِنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَوْقُوتًا) (النساء: ۱۰۳) (كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ) (البقرة: ۱۸۰)

۲- بمعنی الحجة (دليل) (فَأْتُوا بِكِتَابِكُمْ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ) (الصافات : ۱۵۷)

۳- بمعنیٰ الاجل (مقرره نيټه) لکه (كِتَابًا مُؤَجَّلًا) (آل عمران : ۱٤٥) (لِكُلِّ أَجَلٍ كِتَابٌ) (حجر: ٤)

٤- المکاتبة مع العبد ( د غلامانو سره ليکل کول چه دومره مال راوړهٔ تهٔ آزاد ئې)

(وَالَّذِيْنَ يَبْتَغُوْنَ الْكِتٰبَ مِمَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ فَكَاتِبُوْهُمْ) (النور : ۳۲)
۵- المجموع (راجمع شوي كتاب) لكه (كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ اِلَيْكَ مُبٰرَكٌ لِّيَدَّبَّرُوْا اٰيٰتِهٖ) (ص : ۲۹)
۶- په معنیٰ د کتابت (لیکلو) سره. لکه سورة نبأ (۲۹) (وَكُلَّ شَيْءٍ اَحْصَيْنٰهُ كِتٰبًا)
۷- كتاب الاعمال (علمنامه) لکه سورة الاسراء (۱۳) (وَنُخْرِجُ لَهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ كِتٰبًا يَّلْقٰهُ مَنْشُوْرًا)
۸- کتاب په معنیٰ د لوح محفوظ سره لکه سورة الواقعة (۷۸) (فِيْ كِتٰبٍ مَّكْنُوْنٍ)
۹- الحکمی الشرعی. (وَاُولُوا الْاَرْحَامِ بَعْضُهُمْ اَوْلٰى بِبَعْضٍ فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ) (الاحزاب: ۶)
۱۰- بمعنی الرسالة (لیږلې شوي خط) (اِنِّيْ اُلْقِيَ اِلَيَّ كِتٰبٌ كَرِيْمٌ) (النمل : ۲۹)
۱۱- په معنیٰ د مقرر رزق او عمر لکه (اُولٰٓئِكَ يَنَالُهُمْ نَصِيْبُهُمْ مِّنَ الْكِتٰبِ) (اعراف : ۳۷)
۱۲- بمعنی العدة (د زنانه عدت) لکه (حَتّٰى يَبْلُغَ الْكِتٰبُ اَجَلَهٗ) (البقرة : ۲۳۵)

**فائده** : د قرآن مجید څه دپاسه شپیته نومونه دي، دلالت کوي په عظمت او کمال د قرآن کریم باندې. دلته ئې لفظ د (الکتاب) اختیار کړو او نور نومونه ئې رانهٔ وړل پدې کښې حکمتونه ډیر دي، بعض دا دي : (۱) د قرآن کریم اصلي نوم (الکتاب) دې، نور ئې صفات دي، نو په ابتداء د قرآن کښې اصلي نوم واخستل شو نو باقي صفات به ورسره ذکر کولې شي.
(۲) اشاره ده چه دا کتاب لیکل شوې دې، د مخکښې نه په لوح محفوظ کښې او بیت العزة کښې، او لیکل ئې پکار دي په مصاحفو کښې نو عزت د قرآن کریم ته اشاره شوه. (۳) دریم حکمت دا دې چه الکتاب کښې اشاره ده چه دا کتاب کمال والا دې نور کتابونه دده په نسبت سره کالعدم دي نو څکه ئې جنس راوړو چه الکتاب دې، که بل نوم ئې راوړې وې نو بیا به دا فائده نهٔ حاصلیدلې. (منه)

(**لَا رَيْبَ فِيْهِ**) : (ریب) لفظ په قرآن کریم کښې (۳۵) کرته او ماده ئې (۳۸) کرته راغلې ده ریب په لغت کښې (اَلْمُبَالَغَةُ فِي الشَّكِّ) (په شك کښې مبالغې او زیاتوالی) ته وائي.
۲- اَلشَّكُّ مَعَ التُّهْمَةِ (روح المعاني واللباب ۱/۵۱) (یعنی داسې شك چه تهمت هم ورسره وي).
۳- اَلشَّكُّ مَعَ اضْطِرَابِ النَّفْسِ وَقَلَقِهَا) (ایسر التفاسیر ۱/۱۵)
(شك سره د نفس د پریشانتیا او حیرانتیا نه) دا وجه ده د ریب لفظ اکثر د تحدي او مقابلې په مقام کښې استعمالیږي څکه د منکرینو شك وي سره د تهمت نه په رسول الله ﷺ باندې او پریشانه او حیران وو لکه دې سورة (۲۳) آیت کښې دي : (وَاِنْ كُنْتُمْ فِيْ رَيْبٍ). دارنګه هود (۱۳) او یونس (۳۸) کښې هم دي.

**فائده** : لَارَيْبَ فِيهِ لفظ په دے سورت او يونس (۳۸) او الم السجده (۲) کښې راغلے دے او دے درے واړو سورتونو کښې موضوع او بحث د ايمان دے۔ اشاره ده چه د الله تعالىٰ په کتاب باندے صحيح ايمان راوړل پکار دی او شکونه ندی پکار۔

**اشکال** : بيا دلته الله تعالىٰ د قرآن کريم په مدح او صفت کښې فرمائيلی دی چه هيڅ قسم شك پکښې نشته او حال دا دے چه اکثر انسانان خو پکښې شك کوی او ډيرو نهٔ دے منلے (وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَايُؤْمِنُوْنَ) (الرعد : ۲) نو دلته مفسرينو ددے اشکال په جواب کښې داسے وئيلی دی :

اول جواب : **الجواب** : ۱-دے کښې امام رازیؒ داسے معنیٰ کوی چه دلته نفی په معنیٰ د نهی ده يعنی خبر بمعنی الانشاء دے يعنی (لَاتَرْتَابُوْا فِيهِ) (مسائل الرازی) وتفسير الرازی (۱۸۳/۳) البقرة :۱۹۷ آية ) (شك پکښې مهٔ کوئ) ليکن دے تاويل ته ضرورت نشته، او د ظاهر د قرآن نه بعيد دے۔ او اصول دا دی چه د ظاهر خلاف تفسير کول بلا ضرورته د قرآن کريم د بلاغت خلاف دي۔ او په دے نفی کښې کمال دے۔

۲- لاريب کښې معنیٰ ادعائی ده، يعنی (لَيْسَ رَيْبُهُمْ بِرَيْبٍ) (تلخيص المفتاح) (يعنی خلق به شك کوی ليکن د هغوی شك داسے دے لکه لاشك، ځکه د قرآن په صدق او حقانيت داسے دلائل موجود دی که انسان په هغے کښې سوچ اُوکړی نو شك ئے زائله کيږی، او شك په هغه شی کښې وی چه هغه د خپل ځان دفاع نشی کولے او شبهات وارده نشی زائله کولے۔ او قرآن کريم خو د خلقو شبهات زائله کړيدی۔ ۳- تفسير : زاد المسير داسے معنیٰ کوی : (لَارَيْبَ فِيهِ بِأَنَّهُ هُدًى) (يعنی ددے په هدايت کيدو کښې هيڅ شك نشته)

٤- راجح تفسير دا دے چه معنیٰ داسے ده (لَارَيْبَ فِيهِ (مِنْ رَّبِّ الْعَالَمِيْنَ) اَیْ فِیْ كَوْنِهٖ مُنَزَّلاً مِنَ اللّٰهِ تَعَالٰى (يعنی شك نشته پدے کتاب کښې چه د الله تعالىٰ د طرفه راغلے دے، (يعنی د الله تعالىٰ د طرفه په راتلو کښې ئے شك نشته)۔ اگرکه خلق به شك کوی، دا د هغوی کمعقلی او تقصير دے۔

او ددے تفسير د غوره والی يو څو وجوهات دی او يو مثال دے۔

۱- اوله وجه دا ده چه بل آيت کښې راغلی دی (وَاِنْ كُنْتُمْ فِیْ رَيْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلٰى عَبْدِنَا) البقرة : ۲۲ ) دارنگه الم السجده کښې دی (۱) (الٓمّٓ تَنْزِيْلُ الْكِتَابِ لَا رَيْبَ فِيهِ مِنْ رَّبِّ الْعَالَمِيْنَ اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرَاهُ بَلْ هُوَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ) الآية ۔

○ دارنگه سورة يونس (۳۷) کښې دی : (وَتَفْصِيْلَ الْكِتَابِ لَارَيْبَ فِيهِ مِنْ رَّبِّ الْعَالَمِيْنَ)

نو دا آیتونه دلالت کوی چه دلته هم دا معنیٰ ده چه شك په کښې د جانب د الله تعالیٰ نه نشته. ۲- دریمه وجه دا ده چه شك او ریب د صفاتو د کتاب نه نهٔ دی بلکه دا د صفاتو د اذهانو او زړونو نه دے. شك د قرآن صفت نهٔ دے بلکه د کفارو د زړه صفت دے او هغوی د قرآن په نزول کښې شك کولو. خو ددے په کمال او بلاغة کښې ئے شك نهٔ وو.

۳- دریمه وجه دا ده چه نفی د شك خو د دعویٰ نه کیږی او دلته دعویٰ دا ده چه (کَوْنُ هٰذَا الْكِتَابِ مِنَ اللّٰهِ تَعَالیٰ) (کیدل ددے کتاب د الله تعالیٰ د طرف نه)

۴- څلورمه وجه دا ده چه په نفی د شك کښې د کتاب نه ډیره فائده نشته ځکه دا دعویٰ خو سړے په بل کتاب کښې هم کولے شی، زیاته فائده دے کښې ده چه شك د نزول د قرآن کریم په باره کښې رد کړے شی. ۵- پنځمه وجه دا ده چه منکرین خو د قرآن کریم په باره کښې شکیان نهٔ وو چه دا غوره کتاب نهٔ دے، هغوی خو اقرار کولو چه دے کښې ډیرے ښے ښے خبرے دی (اِنَّ مُحَمَّدًا یَأْمُرُ بِمَکَارِمِ الْاَخْلَاقِ) (سیرة ابن کثیر، ونور الیقین)

(محمد ﷺ خو په ښائسته اخلاقو حکم کوی) ابوجهل او د ابوذر ورور وئیلی وو)

لیکن د هغوی شك په دے کښې وو چه آیا الله تعالیٰ به دا قرآن رالیږلے وی او که نهٔ؟.

نو دا روستنے تفسیر راجح او صحیح شو.

بیا ددے د پو هے دپاره **مثال** دا دے: یو بادشاه یوه بله علاقه کښې یو سړی ته خپل خط ورأولیږی چه دلته عوام الناس ته داسے حکم أوکړه د بادشاه د طرفه، نو کله چه هغه أووائی بادشاه ما ته داسے حکم رالیږلے دے او تاسو ته ئے بیانوم نو د خلقو شك پیدا شی چه تا ته گوره او بادشاه ته گوره، دا نشی کیدے چه بادشاه دے تا ته خط راولیږی، او ددے کلی او علاقے مشرانو ته دے نهٔ رالیږی، ستا خبره مونږ نهٔ منو. په دے کښې بادشاه خبر شی او د دغه سړی د تصدیق دپاره بیا خط راولیږی چه دا زما د طرفه یقینی خط دے، نښه ئے دا ده چه زما مهر پرے لگیدلے دے او ددے خط په شان څوك لیکل نشی کولے (وَاِنْ کُنْتُمْ فِیْ رَیْبٍ) دا خط د بادشاه د نورو خطونو په شان دے (وَآمِنُوْا بِمَا اَنْزَلْتُ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَکُمْ) تاسو خو أوسه پورے زما د خط په انتظار وئ نو چه درغے نو ولے انکار کوئ؟ (وَلَمَّا جَاءَهُمْ کِتَابٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ وَکَانُوْا مِنْ قَبْلُ یَسْتَفْتِحُوْنَ عَلَی الَّذِیْنَ کَفَرُوْا) او په دغه خط باندے چه څوك څه اعتراض لری نو دغه بادشاه ئے جواب کوی (اِنَّ اللّٰهَ لَا یَسْتَحْیٖٓ اَنْ یَّضْرِبَ مَثَلًا) (قُلْ مَنْ کَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِیْلَ) (مَا نَنْسَخْ مِنْ آیَةٍ) نو دا بادشاه وائی: خط کښې

هیڅ شك نشته زما د طرفه دے، هسے بهانے مهٔ لټوئ په انکار کښ، زهٔ به سزا درکړم، لږه زمانه بعد (سَنَفْرُغُ لَكُمْ اَيُّهَا الثَّقَلَانِ) او دغه بادشاه بار بار د دغه سړی د تائید دپاره فوج رالیږی، قوة ورلره ورکوی او جانب مقابل ورلره کمزورے کوی نو بس شکونه ختم شو او که بیا هم څوك شك کوی نو په (۲۳) آیت کښ ورته چیلنج ورکوی چه ددے کتاب مقابله اُوکړئ. نشئ کولے نو بیا راشئ پدے کتاب او پدے نبی ایمان راوړئ. او دے ته تسلیم شئ. او که بیا هم شك کوی نو بے عقله دی، بے سوچه دی، د ځان دشمنان دی، د بادشاه نه نهٔ یریږی. (تَذْكِرَةً لِمَنْ يَخْشٰى) (طه : ۲) (فَذَكِّرْ بِالْقُرْآنِ مَنْ يَخَافُ وَعِيْدِ) (سورة ق) دا مثال یاد کړه نو دا آیت به دریاندے راکولاؤ شی ان شاء الله تعالیٰ.

**فائده** : (لَا رَيْبَ فِيْهِ) ئے ولے اُونه وئیلو ؟ ځکه چه احتراز د نورو کتابونو د الله تعالیٰ نه رانشی لکه تورات، انجیل وغیره شو ځکه هغه هم بے شکه د الله تعالیٰ کتابونه وو. ځکه معنیٰ د تخصیص به وے. چه صرف دے کتاب کښ شك نشته نو بیا گمان پیدا کیدو چه نور کتابونه د الله تعالیٰ مشکوك وی څهٔ ؟.

**فائده** : لَا شَكَّ فِيْهِ ئے اُونهٔ وئیلو ؟ (۱) حکمة دا دے چه په نفی د ریب کښ کمال زیات دے د نفی د شك نه ځکه چه ریب متضمن دے ډیرو اشیاؤ لره لکه (۱) شك، (۲) شبهه (۳) اختلاف (٤) تناقض (٥) اعوجاج، دا څیزونه د لوازماتو د ریب نه دی نو ځکه بعض مفسرین تفسیر باللازم کوی (لَا رَيْبَ فِيْهِ، لَا شَكَّ، وَلَا شُبْهَةَ وَلَا اِخْتِلَافَ وَلَا تَنَاقُضَ وَلَا اِعْوِجَاجَ فِيْهِ) (شك، شبهه او اختلافات او تناقض یو بل سره پکښ نشته، چه یو ځائے کښ یوه خبره او بل ځائے کښ د هغے مخالفه خبره وی او کوږوالے پکښ نشته چه د حق نه آوړیدلے خبره وی) نو پدے کلمه کښ ډیر کمال دے. نو ددے په نفی سره نفی د ډیرو څیزونو راځی. په خلاف د شك نه.

○ په بل تعبیر سره داسے هم وئیلے شی چه دلته ئے ریب نفی کړو پدے کښ تنبیه ده د اعلیٰ نه په ادنیٰ باندے ځکه ریب سخت دے د شك نه نو مطلب دا شو چه ریب پکښ نشته نو شك خو به په طریق اولیٰ پکښ نهٔ وی. په نفی د اشد سره نفی د اخف رازی فتفکر.

(۲) دویم حکمة دا دے چه دلته نفی د ریب د مخاطبینو د عقیدے او حال مطابق شوے دے ځکه چه مخاطبینو ریب (یعنی مضبوط شك) لرلو او نفس شك ئے نهٔ کولو. نو د هغوی د عقیدے مطابق ریب نفی شو، نو ددے نه دا نهٔ لازمیږی چه ریب نفی شو نو شك به نهٔ وی نفی.

**فائده** : د لاریب په ځائے ئے داسے اُونهٔ وئیل چه (ذٰلِكَ الْكِتَابُ حَقٌّ وَهُدًى لِلْمُتَّقِينَ) (۱) یا خو تفنن مطلوب دے (۲) یا په نفی کولو د ریب کښ ډیره مبالغه ده یعنی حق خو دے، ورسره شك هم پکښ نشته، او که صرف لفظ د حق وئیلی وے نو دا نهٔ معلومیده چه شکونه به دے کتاب زائله کړی وی او که نهٔ ؟۔

**فائده** : دلته ذلك الکتاب جدا جمله ده او لاریب فیه جدا جمله ده نو معنیٰ دا شوه : دا کتاب کامل دے او شك پکښ نشته۔ اکثر خلق داسے معنیٰ کوی، دے کتاب کښ شك نشته نو دوه جملو نه یوه جمله جوړه وی اګرکه هغه ترکیب هم جائز دے لیکن غوره ندے ځکه دوو جملو کښ ډیر کمال وی۔ او هغه دویم ترکیب داسے دے : ذلك اسم اشاره او کتاب مشار الیه مبتدا شوه او لاریب فیه جمله خبر شو۔ فتفکر۔

(**هُدًى لِلْمُتَّقِينَ**) هدی : ددے حمل په الکتاب باندے په طریقه د مبالغے دے۔ لکه د "زَيْدٌ عَدْلٌ" په شان۔ اشاره ده چه دا کتاب سراسر هدایت دے۔ او (هدی) ئے نکره راوړه ځکه تنوین تنکیر دپاره د تعظیم دے لکه (لَهُ حَاجِبٌ عَنْ كُلِّ اَمْرٍ يَشِينُهُ) (تلخیص) کښ راغلے دے۔ یا حدیث کښ دی : (مَنْ نَفَّسَ عَنْ مُؤْمِنٍ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ الدُّنْيَا نَفَّسَ اللّٰهُ عَنْهُ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ) نو په دویم کربة کښ تنوین د تعظیم دپاره دے۔ یعنی دا کتاب عظیم هدایت دے، هره مسئله او هره قصه او واقعه ئے هدایت دے، د هدایت هیڅ کمے پکښ نشته۔ ۲- بعض علماؤ پدے کښ لازمی معانی د هدی کړیدی چه دا په معنیٰ د نور (رنړا) سره دے۔ (۳) چه اسم فاعل ته ئے بوتلے دے یعنی مصدر په معنیٰ د اسم فاعل سره دے یعنی هَادٍ (هدایت کونکے دے)۔ اول ترکیب د وجه د ظاهر د قرآن نه راجح دے۔

(**لِلْمُتَّقِينَ**) دلته یو څو بحثونه دی اول :

**حکمة** : تخصیص ئے د متقینو ولے اُوکړو ؟ وجه دا ده چه قرآن کریم هر څوك لولی تردے چه کفار هم پکښ (پی، ایچ، ډی) کوی لیکن هغوی ترے د هدایت فائده وانخسته ځکه چه تقویٰ (د الله یره) پکښ نشته۔ نو د اول نه اشاره شوه چه تقویٰ ځان کښ پیدا کړه چه دا کتاب درله فائده درکړی، لکه بعض خلقو له ښه شے هم بدیږی ځکه چه د هغه په بدن کښ اهلیت نهٔ وی، نو دغه شان قرآن کریم بهترین کتاب دے لیکن د ظالمانو خسران پرے زیاتیږی (وَلَا يَزِيدُ الظَّالِمِينَ اِلَّا خَسَارًا)۔ نو مراد د متقینو نه دلته هغه څوك دی چه د الله تعالیٰ یره ئے په زړه کښ شته د مخکښ نه لکه لاتدینی آیتونه پرے دلیل دے۔

**سوال** : متقینو ته خو هدایت شوید ے نو بیا هدایت کول تحصیل د حاصل دے؟ نو مفسرینو ددے نه مختلف جوابونه ورکړیدی۔ اول **جواب** :۱- لِاخْتِصَاصِ النَّفْعِ بِهِمْ : یعنی تخصیص ئے د متقینو پدے وجه اُوکړو چه فائده ترے متقین اخلی اګرکه دا کتاب هدایت د ټول عالَم دپاره دے۔ لکه فرمائی : (هُدًى لِّلنَّاسِ) (بقره :۱۸۵)۔ (ټولو خلقو دپاره هدایت دے)۔ مثال داسے دے لکه یو انسان دوه کسانو ته یوه لاره اُوښائی خو یو پرے روان شی او بل پرے روان نشی نو روانیدونکی فائده واخسته، مقصد ته اُورسیدو او بل ته هم خودنه اُوشوه لیکن فائده ئے ترے وانخسته۔ او پدے کښې اشاره ده چه د قرآن کریم نه فائدے اخستو دپاره تقویٰ، خشیت او انابت الی الله پیدا کول ضروری دی۔ او دارنګه چا کښې چه اجمالی توحید او هدایت راغلے وی نو قرآن کریم هغهٔ ته تفصیلی ایمان او یقین ورکوی۔ او هغهٔ په خپل یقین او توحید او هدایت کښې مضبوطوی۔

**۲- دویم جواب** : دلته دویم جانب پټ مراد دے یعنی (هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ وَغَيْرِ الْمُتَّقِيْنَ) لکه سَرَابِيْلَ تَقِيْكُمُ الْحَرَّ کښې بل جانب (وَالْقَرَّ) پټ دے۔ دا جواب ضعیف دے۔

**۳- جواب** : فی الحال متقین نهٔ دی مراد بلکه (اَلرَّاجِعِيْنَ اِلَى التَّقْوٰى) مراد دی یعنی هغه خلقو ته هدایت کوی چه اراده د تقویٰ لری، او تقویٰ ته رجوع کوی۔

۴- متقین نه مراد منیبین دی، یعنی انابت والو دپاره هدایت دے او ضدیانو دپاره وبال دے۔ (وَيَهْدِيْ اِلَيْهِ مَنْ يُّنِيْبُ) (الشوریٰ:۱۳)

**۵- جواب** : تقویٰ کښې مراتب دی نو ادنیٰ مرتبو والا بره مرتبو ته خیژوی۔ لکه هغه مراتب روستو راروان دی۔

۶- قاسمیؒ وئیلی دی چه دلته عموم مشترك دے (یعنی دوه شیان وی د یو شی دپاره یو شان حکم اُوشی او بل دپاره بل شان) معنیٰ دا ده (اِنَّهٗ يَهْدِيْ لِعَامَّةِ النَّاسِ وَيُوْصِلُ الْاَبْرَارَ اِلَى الْاِهْتِدَاءِ) (یعنی عامو خلقو ته هدایت کوی او کامل کسان کامل هدایت ته رسوی)۔

**۷- راجح** : دے کښې صحیح او راجح دا ده چه دلته د متقین نه مراد د الله تعالیٰ نه خشیت والا دی، چا کښې چه خشیت وی، فطرةً او عقلاً او دارنګه د کائناتو په لیدو سره، نو هغه د قرآن کریم نه فائده اخلی، لکه الله تعالیٰ فرمائی : (اِلَّا تَذْكِرَةً لِّمَنْ يَّخْشٰى) (طه :۲) (فَذَكِّرْ اِنْ نَّفَعَتِ الذِّكْرٰى، سَيَذَّكَّرُ مَنْ يَّخْشٰى) (الاعلی : ۹)۔

دارنګه فرمائی : (فَذَكِّرْ بِالْقُرْاٰنِ مَنْ يَّخَافُ وَعِيْدِ) (ق: ۴۵) دارنګه فرمائی : (وَذِكْرًا

لِلْمُتَّقِيْنَ الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ وَهُمْ مِنَ السَّاعَةِ مُشْفِقُوْنَ) (الانبياء :۴۹)
نو هيڅ اشکال نۀ پيدا کيږي۔

## د تقویٰ معنیٰ او تعریفات

(متقين) جمع د متقی ده او متقی د تقویٰ نه دے او تقویٰ د وقاية نه دے په معنیٰ د حفاظت او بـچ ساتلو سره۔ امام قرطبیؒ د ابن فارسؒ نه نقل کړيدی چه د تقویٰ اصل معنیٰ ده (قلة الكلام) (خبرے کمے کول) نو لغوی معنیٰ په شرعی معنیٰ کښں مراده وی، لهذا متقی به ديته وائی چه د هغه خبرے کمے وی۔ او فضول کلام نه ځان ساتی۔ (قرطبی ۱۶۱/۱)

۱- ابن عباسؓ نه نقل دی : (اَلَّذِیْ يَتَّقِی الشِّرْكَ وَالْكَبَائِرَ وَالْفَوَاحِشَ) (البغوی)
(چه د شرك او کبيره ګناهونو او بے حيائيانو نه ځان ساتی) دا تعريف ناقص دے ځکه د عمل کولو جانب پکښں نۀ دے ذکر۔

۲- بعض وائی : (اَنْ لَّا يَرَاكَ مَوْلَاكَ حَيْثُ نَهَاكَ) (الخازن) (يعنی چه تا خپل مولا په هغه ځائے کښں اُونۀ وينی کوم ځائے کښں ئے چه ته منع کړے ئے)۔ دے سره روح المعانی داسے الفاظ زيات نقل کړيدی : (ولا يَفْقِدَكَ حَيْثُ اَمَرَكَ) (په هغه ځائے کښں دے ورك نۀ ېـ ـوم ځائے کښں ئے چه تا ته د حاضريدو امر کړيدے)

۳- علی رضی الله عنه فرمائی : (اَلتَّقْوىٰ : تَرْكُ الْإِصْرَارِ عَلَى الْمَعْصِيَةِ وَتَرْكُ الْإِغْتِرَارِ بِالطَّاعَةِ) (خازن، تفسير النيسابوری) (په ګناه باندے هميشوالے نۀ کول او په طاعت باندے غرور نۀ کول)۔

۴- عبد الله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی : تقویٰ دا ده : (اَنْ لَّا تَرٰی نَفْسَكَ خَيْرًا مِنْ اَحَدٍ) (السراج المنير ۳۳/۱ واللباب لابن عادل ۱/ ۵۷) ومعالم التنزيل للبغوی (۶۰/۱) والخازن والكشف والبيان للثعلبی ۶۵/۱)
(چه ته خپل ځان د هيچا نه غوره اُونۀ ګنړے)

۵- د ابن عباس رضی الله عنهما نه دا هم نقل دی : متقی هغۀ چا ته وائی چه د هدايت په لاره باندے د تللو په صورت کښں د الله تعالیٰ د عقاب نه ويريږی او د دين اسلام د تصديق او په هغے باندے د تللو په صورت کښں د الله تعالیٰ د رحمت اميد لری۔ (تفسير الرازی)۔

۶- حافظ ابن قيمؒ د طلق بن حبيب رحمه الله نه نقل کوی فرمائی : کامل تعريف ئے دا دے : (اَلتَّقْوىٰ : اَنْ تَعْمَلَ بِطَاعَةِ اللّٰهِ عَلٰی نُوْرٍ مِنَ اللّٰهِ، تَرْجُوْ ثَوَابَ اللّٰهِ، (چه ته د الله تعالیٰ په طاعت (عبادت) عمل اُوکړے، په رنړا د الله تعالیٰ (يعنی چه تاسره پرے دليل وی چه دا د الله

تعالیٰ عبادت او حکم دے) (وَاَنْ تَتْرُكَ مَعْصِيَةَ اللّٰهِ عَلٰى نُوْرٍ مِّنَ اللّٰهِ، تَخَافُ عِقَابَ اللّٰهِ)

(مدارج السالکین وانظر جامع العلوم والحکم ۱/۱۰۹) والکشف والبیان للثعلبی)

(ته گناه پریدے په رنړا (دلیل) د الله تعالیٰ سره (نه په طریقه د عادت سره) او ته د الله عذاب نه یریږې)۔

۷- او قتادهؒ نه نقل دی چه د متقین تعریف دا روستو راروان دے (اَلَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ وَيُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ الی آخرها) یعنی چه دا مذکوره اعمال پکښې وی نو بس دا متقی دے۔ او دغه خبره علامه قاسمیؒ هم کړیده۔

۸- اِمْتِثَالُ الْاَوَامِرِ وَاجْتِنَابُ النَّوَاهِيْ مَعَ الْخَوْفِ) (یعنی د الله تعالیٰ په اوامرو عمل کول او د هغه د منهیاتو (حرام کړده) کارونو نه ځان ساتل، سره د خوف او یرے د الله تعالیٰ نه) ددے وجه نه په تقویٰ کښې د طاعت کولو او گناه نه ځان ساتلو او یره کولو معنیٰ پرته ده۔ که گناه ترے اُوشی نو زر به توبه اُوباسی۔ نو په تقویٰ کښې دا درے مادے دی۔

۹- یو بل تعریف ئے حدیث د ترمذی کښې راغلے دے۔ (لَا يَبْلُغُ الْعَبْدُ اَنْ يَّكُوْنَ مِنَ الْمُتَّقِيْنَ حَتّٰى يَدَعَ مَا لَا بَأْسَ بِهٖ حَذَرًا لِمَا بِهٖ بَأْسٌ) (ترمذی بِسَنَدٍ حَسَنٍ وَصَحَّحَهُ الْحَاكِمُ) وَلَهٗ شَاهِدٌ فِيْ جَامِعِ الْعُلُوْمِ وَالْحِكَمِ مِنْ قَوْلِ اَبِي الدَّرْدَاءِ) (یعنی بنده د متقیانو نه نشی کیدے ترڅو پورے چه مباح کارونه پدے یره پریدی چه هسے نه په حرامو کښې واقع نهٔ شم) یعنی د صغیره گناهونو نه هم ځان ساتی۔ او دغه شان خبره د ابو الدرداءؓ نه هم نقل ده)

علامه صدیق حسن خانؒ په فتح البیان (۱/۷۵) کښې وائی : (فَالْمَصِيْرُ اِلٰى مَا اَفَادَهٗ هٰذَا الْحَدِيْثُ وَاجِبٌ) ۔(دے حدیث کښې چه کومه معنیٰ د تقویٰ ده نو دے ته رجوع کول واجب دی او دا معنیٰ شرعی د تقویٰ ده) انتهیٰ۔

۱۰- عیسیٰ علیه الصلاة والسلام فرمائی : (تُحِبُّ اللّٰهَ حُبًّا صَادِقًا مِّنْ قَلْبِكَ وَتُعْمِلُ جَسَدَكَ مَا اسْتَطَعْتَ فِيْ طَاعَةِ اللّٰهِ وَتَرْحَمُ بَنِيْ جِنْسِكَ وَمَا لَا تُحِبُّ اَنْ يُّؤْتٰى اِلَيْكَ فَلَا تَأْتِهٖ اِلَيْهِمْ فَاِذًا اَنْتَ تَقِيُّ اللّٰهِ تَعَالٰى حَقًّا) (رواه احمد فی الزهد) (یعنی کله چه ته د الله تعالیٰ سره رشتینی محبت په زړه سره اُوکړے او خپل بدن څومره چه وسع وی د الله په طاعت کښې استعمال کړے او په خپل همجنس بندگانو رحم اُوکړے او په کوم کار چه تا ته راتک نهٔ وی خوښ نو ته خلقو ته هم په هغے مه راځه نو پدے وخت کښې به ته د الله تعالیٰ حق او رشتینے متقی بنده جوړ شے)۔

۱۱- عمر بن عبد العزیز رحمه الله فرمائی : (لَيْسَ تَقْوَى اللّٰهِ بِصِيَامِ النَّهَارِ وَلَا بِقِيَامِ اللَّيْلِ

وَالتَّخلِيطِ فِيمَا بَيْنَ ذٰلِكَ وَلٰكِنَّ تَقْوَى اللّٰهِ تَرْكُ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ وَأَدَاءُ مَا افْتَرَضَ اللّٰهُ فَمَنْ رُزِقَ بَعْدَ ذٰلِكَ خَيْرًا فَهُوَ خَيْرٌ إِلٰى خَيْرٍ) جامع العلوم والحكم (۱/۱٥۹)الكشف والبيان۱/٦٥)

(يعنى تقوىٰ صرف په روژو نيولو او په تهجدو كولو نهٔ ده بلكه تقوىٰ د الله تعالىٰ محارم پريخودل او فرائض اداكولو ته وائى او كه ددے نه بعد څوك د خير عمل كوى نو هغه زياتى فائده ده) او دا تعريف د حسن بصرىؒ نه هم نقل دے۔

۱۲- معاذ بن جبل ﷺ ته اُووئيل شو (مَنِ الْمُتَّقُوْنَ ؟) (متقيان چا ته وائى؟) هغه اُوفرمايل : (قَوْمٌ اِتَّقَوُا الشِّرْكَ وَعِبَادَةَ الْأَوْثَانِ وَأَخْلَصُوا لِلّٰهِ الْعِبَادَةَ) (فتح البيان ۱/۷٥) ۔

(دا هغه خلق دى چه شرك او عبادت د بتانو ئے پريخے وى او صرف الله تعالىٰ دپاره ئے عبادت خالص كړے وى)۔

۱۳- حديث د ابن حبان كښ دى : موسى ؑ اُوفرمايل : (رَبِّ ! اَىُّ عِبَادِكَ أَتْقٰى قَالَ الَّذِىْ يَذْكُرُنِىْ وَلَا يَنْسَانِىْ) ابن حبان : ٦۲۱۷) الصحيحة : ۳۳٥۰) (كوم بنده ستا ډير متقى دے؟ الله تعالىٰ اُوفرمايل : هغه څوك چه ما هميشه يادوى او ما نهٔ هيروى)

۱٤- جُمَّاعُ التَّقْوىٰ فِىْ قَوْلِهٖ تَعَالىٰ : اِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ الخ) (كامله تقوىٰ د سورة النحل پدے آيت (۹۰) اِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ) كښ ذكر ده چه پدے كښ درے اوامر او درے منهيات ذكر دى)۔

۱٥- علماء فرمائى: (اَلْمُتَّقِىْ : مَنْ سَلَكَ سَبِيْلَ الْمُصْطَفٰى وَنَبَذَ الدُّنْيَا وَرَاءَ الْقَفَا وَكَلَّفَ نَفْسَهُ الْإِخْلَاصَ وَالْوَفَا وَاجْتَنَبَ الْحَرَامَ وَالْجَفَا) تفسير الرازى (۱/۲۸۷) (متقى هغه څوك دے چه په لاره د رسول الله ﷺ روان شى او دنيا د خپل څټ نه شاته گوزار كړى او خپل نفس بانديے د اخلاص او د وفادارئ زور واچوى او د حرامو او بے وفائى نه ځان جدا كړى)

## د تقوىٰ مثال :

۱- سيدنا عمر الفاروق ﷺ د كعب الاحبار رحمه الله نه تپوس اُوكړو (دارنگه د سيدنا ابو هريره ﷺ نه هم چا ته تپوس اُوكړو) چه متقى چا ته وائى؟ هغه ورته جواب وركړو : (هَلْ اَخَذْتَ طَرِيْقًا ذَاتَ شَوْكٍ ؟) آيا ته په ازغى داره زمكه تير شوے ئے ؟ هغهٔ اُووئيل : آو۔ دهٔ ورته اُوفرمايل : (فَمَا عَمِلْتَ فِيْهِ ؟) څه دے كړى دى ؟ هغه اُووئيل : (حَذِرْتُ وَشَمَّرْتُ) (احتياط مے كړيدے او پينڅے مے بڼے كړيدى) چه ازغى راپورے ونهٔ انخلى۔ كعبؓ اُوفرمايل

: همدغه تقویٰ ده۔ انتهیٰ۔ (معالم التنزیل، وابن کثیر والکشف والبیان ۱/۶۵ واللباب ۱/۵۷) دغه د تقویٰ تعریف دے، چه په دنیا کښې دغه شان پرهیز سره ژوند تیر کړے۔ دا سوچ کوے چه دا شے چرته حرام نه وی؟ دلته ګرځیدل ګناه نهٔ وی؟ دے خبره کښې ګناه نهٔ وی؟ دا شے زه کومه دے کښې به نقصان چرته نه وی؟ نو دے ته تقویٰ وائی۔

۲- دویم مثال : کَالطَّائِرِ الْحَذِرِ (متقی به داسے ژوند تیروی لکه هغه مارغه چه هغه ویریږی) احتیاط کوی چه څوك مے ښکار نکړی۔ او حدیث کښې هم راغلی چه (يَدْخُلُ الْجَنَّةَ أَقْوَامٌ أَفْئِدَتُهُمْ مِثْلَ أَفْئِدَةِ الطَّيْرِ) (مسند احمد ومسلم) جنت ته به هغه خلك ځی چه زړونه ئے داسے وی لکه د مارغانو۔ د مارغه طریقه دا ده چه چرته بهر لاړ شی، شرځنګل وی چه اُوبه څکی نو اخوا هم ګوری دیخوا هم ګوری چه څوك خو نشته بیا سرښکته کړی، اُوبه وڅکی نو بیا سر اُوچت کړی۔ خوراك او څښاك ئے ټول په ویره باندے وی، که په ونه کښې ناست وی هم ویریږی په زړه کښې ئے خوف پروت وی نو دا د متقینو طریقه ده چه متقی یو بے پرواه انسان ته نهٔ وائی چه د خولی نه ئے څه راوختل او کوم ځائے ته چه ئے وکتل او څه ئے چه وخوړل، نهٔ! بلکه خوراك کښې د هغه احتیاط وی چه دا څه شے زه خورم؟ حلال دے که حرام؟ دا د کوم ځائے نه دی، جامے چه اغوندی په احتیاط، کار کسب چه شروع کوی په احتیاط، چا سره چه ملاویږی په احتیاط، په لاره ځی نو په احتیاط، او دارنګه که یو نیك عمل شروع کوی نو په هغے کښې احتیاط کوی چه نیت مے خراب نهٔ وی، دے ټولو خبرو کښې احتیاط کول دیته تقویٰ وائی۔

پدے مقام کښې تفسیر ابن کثیر او روح المعانی او ثعلبیؒ او عام مفسرینو د ابن المعتز اشعار نقل کړیدی : چه تقویٰ د ګناهونو پریښودلو ته وائی۔

خَلِّ الذُّنُوبَ صَغِيرَهَا وَكَبِيرَهَا ذَاكَ التُّقَىٰ
وَاصْنَعْ كَمَاشٍ فَوْقَ أَرْ ضِ الشَّوْكِ يَحْذَرُ مَا يَرَىٰ
لَا تَحْقِرَنَّ صَغِيرَةً، إِنَّ الْجِبَالَ مِنَ الْحَصَىٰ

۱- یعنی ګناهونه پریږده واړه او غټ، دغے ته تقویٰ وئیلے کیږی۔
۲- او داسے کار اُوکړه لکه سړے په اَزغی داره زمکه ځی او ویریږی د هغه څه نه چه دا ئے وینی۔
۳- ګناه وړه مهٔ ګڼړه، یقیناً غرونه د وړو کاڼړو نه جوړ شویدی)۔

داسے معنیٰ یو حدیث کښې هم راغلے ده۔ نبی ﷺ فرمائی : (إِيَّاكُمْ وَمُحَقَّرَاتِ الذُّنُوبِ

...... وَفِيهِ - وَإِنَّ مُحَقِّرَاتِ الذُّنُوبِ مَتَى يُؤْخَذْ بِهَا صَاحِبُهَا تُهْلِكْهُ) (مسند احمد والصحیحة ۳۱۰۲) باسناد صحیح) (د واړه ګنړلے شوی ګناهونو نه ځان اُوساتئ، ددے مثال د یو قوم دے چه یو کنده کښې ئے پړاؤ اچولے وی نو د دوډئ پخولو دپاره یو تن یو ډکے راوړی او بل تن بل ډکے راوړی، تردے چه ډوډئ پرے پخه کړی۔ او یقیناً واړه ګنړلے شوی ګناهونو باندے چه کله مجرم اُونیولے شی نو هلاك به ئے کړی) انتهیٰ۔

نو دغه شان که یو ځائے کښې یوه ګناه، بل ځائے کښې بله ګناه راجمع شی نو سړے اُورته رسوی۔ نو ګناهونه واړه مهٔ ګنړئ لکه دے زمانه کښې دا مرض ډیر دے، دصغائر او کبایرو فرق نه کول، او دا عقیده لرل چه مونږ موحدین یو، او توحید چه چا کښې وی، هسے هم جنت ته ځی، نو دا د مرجئه و مذهب دے چه خلکو کښې په غیر شعوری طریقے سره راغلے دے، نو د تهولو ګناهونو نه الله تعالیٰ توبه ویستل پکار دی، ځکه د ګناهونو ډیر بد آثار او ډیر بد نحوستونه او سپیرهٔ والے دے۔

**فائده** : د تقویٰ ماده په قرآن کریم کښې (۲۳۷) کرته ذکر ده او امر په تقویٰ سره (۷۸) کرته راغلے دے۔ او پدے سورت کښې تقویٰ (۳۵) کرت ذکر ده۔ ددے نه اهمیت د تقویٰ معلومیږی۔

## په قرآن کریم کښې د تقویٰ معانی

۱- په معنیٰ د توحید یعنی کلمه د لا اله الا الله سره لکه (وَأَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوَىٰ) (سورة الفتح : ۲۶)

۲- التوبة۔ (وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ الْقُرَىٰ آمَنُوا وَاتَّقَوْا) (أَیْ تَابُوا) (اعراف :۹۶) بناء په یو تفسیر)

۳- په معنیٰ د طاعت د احکامو سره لکه (وَاتَّقُونِ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ) البقرة (۱۹۷) (أَنْ أَنذِرُوا أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا أَنَا فَاتَّقُونِ) (النحل : ۲)

٤- تَرْكُ الْمَنْهِيَّاتِ ۔ (ګناهونه پریخودل) لکه (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَابْتَغُوا إِلَيْهِ الْوَسِيلَةَ) (المائدة : ۳۵)

۵- په معنیٰ د اخلاص سره لکه (وَلَٰكِن يَنَالُهُ التَّقْوَىٰ مِنكُمْ) (الحج : ۳۲)

٦- په معنیٰ د خوف او خشیت سره لکه (وَاتَّقُوا يَوْمًا لَّا تَجْزِي) (بقره : ٤٨)۔

۷- معنیٰ : په اوامرو عمل کول او د منهیاتو نه ځان ساتل او دلته همدا معنیٰ مراد ده۔

## (مراتب التقویٰ)

تقویٰ کښې ډیرے مرتبے دی، انسان به د اعلیٰ مرتبے کوشش کوی. که بره ته ونه رسیدو، نو دویمه کښې خو به پاتې شي اوکه د ادنیٰ اراده ئے اُوکړه کیدے شي ښکته راپریوزی.

**۱- اوله درجه:** (اَنْ یَّتَّقِیَ الْکُفْرَ وَالشِّرْكَ) (د کفر او شرك نه بچ کیدل). دیته مقام د اسلام وائی هر مسلمان متقی دے پدے معنیٰ خو دا ادنیٰ درجه ده. او ددے نه خلاصے نشته. که انسان هر څومره بزرگی او نوافل کوی، زر تسبیح ورسره وی لیکن که عقیده ئے د شرك وی نو هغه متقي نشي کیدے.

**۲- دویمه درجه:** (اَنْ یَّتَّقِیَ الْمَعَاصِیَ وَالْمُحَرَّمَاتِ) د حرامونه ځان بچ کړی. دیته مقام التوبه وئیلے کیږی. یعنیٰ الله تعالیٰ ته د ټولو ګناهونو نه توبه ویستل. دا دویمه درجه تقویٰ هم لازمی او فرض ده، الله تعالی فرمائی: ﴿وَتُوْبُوْا اِلَی اللّٰهِ جَمِیْعًا اَیُّهَا الْمُؤْمِنُوْنَ﴾ (النور:۳۱) ﴿یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ آمَنُوْا تُوْبُوْا اِلَی اللّٰهِ تَوْبَةً نَّصُوْحًا﴾ (التحریم:۸) الآیة.

**۳- دریمه مرتبه:** (اَنْ یَّتَّقِیَ الشُّبُهَاتِ) (د مشتبه شیانو نه ځان بچ کول)، شبهات او مشتبهات هغے ته وائی چه د هغے پته نهٔ لګی چه هغه حرام دی او که حلال، شك پکښې وی، یا د مختلف دلائلو، یا د وجود او عدم وجود د دلیل د وجه نه. دیته مقام الورع وائی.

مشتبه شیان پدے زمانه کښې ډیر دی هغه شیان مه استعمالوه، بعض حیوانات دی، چرګان دی، بعض مشروبات (بوتلے) دی پدے کښې اشتباهات دی او بعض نور خوراکونه دی، بعضے کپړے دی چه په هغے کښې د وریښمو ډیر استعمال شوے وی.

زمونږ ډیر مسلمانان ددے خبرې پرواه نهٔ لری، خو بس په سر باندے شے راروی چه وئے خوری او استعمال ئے کړی، دارنګه ډیر خیراتونه داسے دی چه هغه د شبهے نه ډك دی، په غلط نیتونو شوی وی، د هغے نه به ځان ساتی، دا ستا مقام دے اګرچه ظاهره کښې به هغه حرام نهٔ وی. سیدنا عمر او سیدنا عثمان رضی الله عنهما دواړه یو دعوت ته لاړل. واپس چه راغلل عمرؓ وویل ارمان چه نهٔ وے تلی نو ښه به وو ځکه چه ما ته زړه کښې الهام اُوشو چه دا طعام دے سړی د فخر دپاره تیار کړے دے.

**۴- څلورمه درجه:** (اَنْ یَّتَّقِیَ الْاِنْسَانُ الْمُبَاحَاتِ) (د ډیرو مباحاتو نه ځان ساتل): مباحات استعمالول جائز دی لیکن سړے د ډیر کار نه وباسی، ډیرو پخلو او خوراکونو زنانه او سړی د عبادت او د الله تعالیٰ د اطاعت نه ویستلی وی. او دیته مقام الزهد وائی.

**۵- پنځمه درجه:** (اَنْ یَّتَّقِیَ حُضُوْرَ غَیْرِ اللّٰهِ عَلٰی قَلْبِهٖ) (په خپل زړه کښې د غیر الله د

عظمت نه ځان ساتل) : د الله تعالیٰ نه سوئ بل چا ته توجه، د ښځې محبت، د مال محبت دده په زړه کښې پروت وی چه په هغې سره د الله تعالیٰ نه مشغول نشی.دیته مقام المشاهده او مقام الاحسان وائی.(ذکره فی التسهیل)

## د تقویٰ فوائد

د قرآن کریم په ظاهری الفاظو کښې تقریباً (۵۰) فائدے مونږ پیدا کړیدی چه په «الفوائد فی تزکیة النفوس» کتاب کښې ئے تفصیل اُوګوره) چه د هغې نه بعض دا دی :

(۱) اَلْهِدَایَةُ : الله تعالیٰ د تقویٰ په وجه بنده ته هدایت کوی. ﴿هُدًى لِلْمُتَّقِينَ﴾ قرآن کریم هدایت دے متقینو ته چا کښې چه تقویٰ وی الله ورته لاره ښائی.

۲-اَلْمَحَبَّةُ:(الله د متقیانو سره مینه کوی) لکه ﴿إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ﴾ سوره آل عمران (۷٦) د سوره توبه په آخره کښې هم راغلی.

۳- اَلنُّصْرَةُ : په تقویٰ سره د الله تعالیٰ مدد حاصلیږی) لکه ﴿إِنَّ اللَّهَ مَعَ الَّذِينَ اتَّقَوْا﴾ (النحل: ۱۲۸)

٤-حُصُوْلُ الْوِلَایَة :(د تقویٰ په وجه ولایت حاصلیږی) لکه ﴿إِنْ أَوْلِيَاؤُهُ إِلَّا الْمُتَّقُونَ﴾ (انفال: ۴۳) ﴿وَاللَّهُ وَلِيُّ الْمُتَّقِينَ﴾ (الجاثیة: ۱۹)

۵- اَلْمَغْفِرَةُ : (تقویٰ سره ګناهونه معاف کیږی) لکه ﴿إِنْ تَتَّقُوا اللَّهَ يَجْعَلْ لَكُمْ فُرْقَانًا وَيُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ﴾ (انفال : ۲۹) الله پدے وجه ګناهونه رژوی.

٦- اَلْمَخْرَجُ مِنَ الْغَمِّ وَسَعَةُ الرِّزْقِ : (الله تعالی به دِے دغمونو نه خلاص کړی او رزق به درله پراخه کړی که دینی غمونه وی او که دنیوی، الله تعالیٰ بنده د هغې نه خلاصوی چه کله پکښې تقویٰ راشی سوره طلاق کښې دا ماده ډیره راغلے ده . ﴿وَمَنْ يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَلْ لَهُ مَخْرَجًا وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ﴾ سوره طلاق (۲) آیت.

۷- تَیْسِیْرُ الْاُمُوْر : (کارونه انسان ته آسانیږی) علم ورته آسانیږی یو کار پسے روان شولے او تقویٰ دریکښې وه هغه درته الله تعالیٰ آسانوی، حج ته روان شوے الله تعالیٰ درسره مدد کوی دا هم سوره طلاق (٤) آیت کښې ذکر دی : ﴿وَمَنْ يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَلْ لَهُ مِنْ أَمْرِهِ يُسْرًا﴾

۸- غُفْرَانُ الذُّنُوْبِ وَاِعْظَامُ الْاُجُوْر : (ګناهونه معاف کیږی او اجرونه ډیریږی) لکه ﴿وَمَنْ يَتَّقِ اللَّهَ يُكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّئَاتِهِ وَيُعْظِمْ لَهُ أَجْرًا﴾ (الطلاق:۵).

۹- قَبُوْلُ الْاَعْمَال : (د تقویٰ په وجه الله عمل قبلوی) دا ډیره غټه فائده ده چه د تقویٰ نه

بغیر عمل نهٔ قبلیږي، کوشش او محنت به هم وکړي او عمل به ورله الله تعالیٰ نهٔ قبلوی۔ لکه ﴿ إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللَّهُ مِنَ الْمُتَّقِينَ ﴾ سورة المائده (۲۷) آیت

۱۰-: اَلْفَلَاحُ : (دانجام په لحاظ کامیابی) لکه ﴿ أُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴾ او ﴿ وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴾ سورة البقره (۱۸۹) آیت

۱۱ - اَلْبُشْرٰی : (زیری په دنیا او آخرت کښې متقیانو ته ملاویږی) لکه ﴿ أَلَا إِنَّ أَوْلِيَاءَ اللَّهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ، الَّذِينَ آمَنُوا وَكَانُوا يَتَّقُونَ لَهُمُ الْبُشْرَىٰ ﴾ (یونس: ۶۳)

۱۲ - دُخُوْلُ الْجَنَّةِ : غټه فائده دا ده چه الله تعالیٰ متقیان خلق جنت ته داخلوی۔ لکه :﴿ تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي نُورِثُ مِنْ عِبَادِنَا مَنْ كَانَ تَقِيًّا ﴾ (مریم :۶۱) او سورة قمر او سورة نبأ (۳۰) او دا قسم آیتونه قرآن کریم کښې زیات دی۔

۱۳ - اَلنَّجَاةُ مِنَ النَّارِ : (د اُور د جهنم نه بچ کیدل صرف په تقویٰ دی)۔ لکه :﴿ ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِينَ اتَّقَوا وَنَذَرُ الظَّالِمِينَ فِيهَا جِثِيًّا ﴾ سوره مریم (۸۲) آیت

نورے هم بے شماره فائدی دی، خو لنډه دا ده چه د دنیا او دآخرت چه څومره فائدی دی، دا ټولی تقویٰ پورے تړلی دی، د دنیا او آخرت هره فائده او هر عزت، شرافت، هر کمال پدے تقویٰ پورے تړلی شوی دی، هغه څوك چه کمزوری نسب والا وی، هغه څوك چه بے ماله وی، هغه څوك چه گمنامے وی، تقویٰ د اختیار کړي، الله تعالیٰ به ورله د نسب نه زیات عزت ورکړي، د مال نه به زیات طاقت ورکړي، د باچاهي نه به ډیر طاقت ورکړي، د متقیانو سره چه د تقویٰ کوم طاقت دے دا د هیچا سره نشته دے۔

علی رضی الله عنه دا فرمائیلی دی : (مَنْ أَحَبَّ عِزًّا بِلَا مَالٍ وَمَهَابَةً بِغَيْرِ سُلْطَانٍ وَقُوَّةً بِلَا عَشِيرَةٍ فَلْيَعْمَلْ بِطَاعَةِ اللَّهِ تَعَالَى ـ (ذکره ابن مفلح فی الآداب الشرعیة (۱/۱۵۳) ونضرة النعیم)

څوك چه پدے خبره خوشحالیږی چه عزت حاصل کړي بغیر د مال نه او هیبت بغیر د سلطان نه او قوت بغیر د خپلوانو نه نو تقویٰ دے اختیار کړي، د الله په طاعت دے عمل اُوکړي دا ټول څیزونه ده ته ملاویږی سلطان هیبت، عزت، قوت۔ جعفر بن محمد ورسره دا زیاتی کړیدی۔ (وَآنَسَةً بِلَا أُنْسٍ) (چه بغیر د ملګری نه ئے وحشت ختم کړي او یو محبت ورته ورکړي۔ محمود الوراق رحمه الله فرمائی : (مَنْ أَرَادَ غِنًى يَدُومُ بِغَيْرِ مَالٍ وَأَرَادَ عِزًّا لَمْ تُوَطِّدْهُ الْعَشَائِرُ بِالْقِتَالِ وَمَهَابَةً مِنْ غَيْرِ سُلْطَانٍ وَجَاهًا فِي الرِّجَالِ فَلْيَعْتَصِمْ بِدُخُولِهِ فِي طَاعَةِ ذِي الْجَلَالِ وَخُرُوجِهِ مِنْ ذِلَّةِ الْمَعَاصِي لَهُ فِي كُلِّ حَالٍ) (الآداب الشرعیة)

(څوك چه بغير د مال نه هميشه مالداري غواړي او بغير د قتال او جنګونو نه عزت غواړي او بغير د طاقت نه رعب او هيبت غواړي او په خلقو كښې مرتبه او مخوريزي غواړي نو هغه دې د ذي الجلال په طاعت كښې داخل شي او په هر حال كښې دې د ګناهونو د ذلت نه اُوځي).

د دنيا او آخرت ټولې فائدې په تقوىٰ پورې تړلې دي ددې وجې نه قرآن كريم كښې دا لفظ ډير مستعمل دې.

## بواعث على التقوىٰ ...... (تقوى پيدا كونكي اسباب)

يعني هغه اسباب چه په هغې سره په بنده كښې تقوىٰ پيدا كيږي، تقوىٰ ګران كار دې، ددې د حصول دپاره بعض اسباب دي:

۱ - سبب: خَوْفُ الْعِقَابِ الْأُخْرَوِيِّ : (د آخرت د عذاب نه يره كول) د آخرت د عذابونو نه ويره چه زړه كښې پيدا شوه دا د تقوىٰ يو ښه سبب دې.

۲ - خَوْفُ الْعَذَابِ الدُّنْيَوِيِّ : (د دنيا د عذاب نه يَره كول) څكه چه كله سړې ګناهونه كوي، دنيا كښې هم الله تعالىٰ عذابونه وركوي، كله ئې صحت خراب شي، كله وشرميږي، كله ئې مال كښې نقصان پيدا شي، كله نور نور تكاليف ورته رسيږي څكه چه د ګناهونو سره الله تعالىٰ تكليفونه ليكلي دي. غلا دې اُوكړه كله به درنه لاس پريكړې شي، زنا دې اُوكړه درې به درباندې واچولې شي، ددې دنياوي عذابونو نه هم ويره شته نو دا ويره هم سبب د تقوىٰ دې.

۳ - رَجَاءُ الثَّوَابِ الْأُخْرَوِي : (د آخرت د ثواب اميد ساتل) چه جنت دې، نعمتونه دي، او هميشه ژوند دې، هلته به زمونږ خواهشات الله تعالىٰ پوره كوي.

٤ - رَجَاءُ الثَّوَابِ الدُّنْيَوِيِّ: (د دنيا د ثواب اميد ساتل) په تقوىٰ كښې د دنيا بدلې هم شته، خاله آخرت كښې فائدې نهٔ دي، لكه ﴿ وَمَنْ يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَلْ لَّهُ مَخْرَجًا وَّيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ ﴾ (طلاق : ٥)

٥ - خَوْفُ الْحِسَابِ : (د الله تعالىٰ د حساب نه يَره كول) چه ما سره به حساب كيږي په خبرو اترو، كيناستلو، پاڅيدلو، خوراك او څكاك. لكه ﴿ وَيَخَافُونَ سُوءَ الْحِسَابِ ﴾ (رعد : ۲۱) ﴿ إِنِّي ظَنَنْتُ أَنِّي مُلَاقٍ حِسَابِيَهْ ﴾ (الحاقة : ۲۰) ﴿ إِنَّهُمْ كَانُوا لَا يَرْجُونَ حِسَابًا ﴾ (النبأ: ۲۷) ﴿ بِمَا نَسُوا يَوْمَ الْحِسَابِ ﴾ (ص: ۲٦) دا د مؤمنانو صفت دې چه د حساب ورځ رايادوي او نهٔ ئې

هیروی۔ ﴿ هٰذَا مَا تُوعَدُونَ لِيَوْمِ الْحِسَابِ ﴾ (ص:۵۳) نـو د الله تـعـالیٰ د حساب نه یَرے سره تقویٰ پیدا کیږی، ته به دا فکر کوے چه زه یو بنده یم، ما سره به حساب کتاب کیږی۔

٦- اَلْحَيَاءُ مِنْ نَظَرِ اللّٰهِ) د الله د تـعـالی د نظر نه حیاء کول) چه الله تعالیٰ ما ته گوری، زه د هغـه د نظر نه غائب نهٔ یم، کله چه یو ماشوم تا تـه گوری نو تـه د گناه معمولی عمل هم نهٔ شے کـولے، کـلـه چـه ستـا پـه هـغـه یقین وی چه هغه ماته گوری نو نافرمانی به ئے څنگه اُوکړے ؟۔ دا ډیر اُوچت ایمان دے (مرتبه د احسان او مراقبے ده) دے مرتبے ته سړے زر نشی رسیدلے، په آرام به رسیږی۔ حدیث کښ هم راځی : (أَفْضَلُ الْإِيْمَانِ: أَنْ تَعْلَمَ أَنَّ اللّٰهَ مَعَكَ حَيْثُمَا كُنْتَ) (الطبرانی و مجمع الزوائد (حدیث حسن) (بهتـرین ایمان دا دے چه ته یقین اُوکړے چه ته چرته ئے الله تعالیٰ تا سره دے) تاته گوری او په تا پو هه دے۔

۷- (اَلشُّكْرُ عَلٰى نِعَمِهٖ بِطَاعَتِهٖ) (د الله تعالیٰ د نعمتونو شکر د الله په اطاعت سره کول) چه الله تـعـالیٰ په ما ډیر نعمتونه کړیدی، دین ئے راکړے دے، قرآن دے، ښځه ده، بچی دی، مور پـلار دی او داسے نـور نـور۔ د الله تعالیٰ نعمتونه چه انسان په ځان رایادوی نو بیا ئے طاعت کوی او همدغے ته تقویٰ وائی او پدے تقویٰ هم پدے کیږی۔

۸- اَلْعِلْمُ : (د علم په وجه تقویٰ پیدا کیږی) وجه دا ده چه په یو شی باندے بنده پو هه شی او د هغے حقیقت اُوپیژنی نو د هغے طلب پکښ پیدا شی نو په بے علمیٔ سره پوره تقویٰ نهٔ راځی، احـکـام، ایـمـانیات، قرآن او حدیث او د الله تعالیٰ د صفاتونه چه بنده خبر شی نو تقویٰ به پدے سره حاصله کړی، علم بنده تقویٰ ته راکاږی۔ ﴿ إِنَّمَا يَخْشَى اللّٰهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ ﴾ (فاطر: ۲۸) څومره چه علم کښ اضافه کیږی هغومره د انسان په تقویٰ کښ زیادت کیږی۔

۹- (تَعْظِيْمُ جَلَالِ اللّٰهِ تَعَالٰى) د الله تعالی د جلال تعظیم او د هغه د ذات تعظیم کول) چه الله خـو ډیر لوئی دے، د هغه نافرمانی زه ولے اُوکړم، د بعضے سلفو (بشر رحمه الله) نه نقل دی : (لَوْ فَكَّرَ النَّاسُ فِيْ عَظَمَةِ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ مَا عَصَوْهُ)

(لطائف المعارف) مفتاح دار السعادة (۱/۱۸۰) و موسوعة البحوث و المقالات)

(کـه انسـانان د الله تعالیٰ په عظمت کښ فکر اُوکړی نو نافرمانی به ئے اُونکړی)، خو د الله تعالیٰ لوئی والے د سړی د ذهن نه واوړی، د زړهٔ نه اُوځی نو سړے غافله شی څکه گناه کښ اختـه شـی کـه د هغه هیبت او جلال ستا په زړه کښ وی نو گناه به ستا نه ضرور نهٔ کیږی که ته ئے کوے هم نهٔ به کیږی۔

۱۰ - (صِدُقُ الْمَحَبَّةِ) (د الله تعالى سره رشتینی محبت)، رشتینی محبت چه کله پیدا شی نو بیا گناهونه نهٔ کیږی او که اُوشی نو بنده زر توبه اُوباسی ځکه قانون دا دے چه سړے د چا سره مینه لری نو د هغه په طاعت او خبره منلو کښ منډه وهی، او د هغه د نافرمانئ نه ځان ساتی۔

۱۱ - (اَلْعِلْمُ بِفَوَائِدِ التَّقُوىٰ) (د تقوىٰ د فائدونه چه خبر شی نو شوق به ډیر پیدا شی نو تقوىٰ به حاصله کړی)۔

**لِلْمُتَّقِيْنَ** : (لام) پدے مقام کښ د انتفاع دپاره دے یعنی ددے کتاب نه فائده اخلی هغه خوك چه چا کښ تقوىٰ وی، فائده ئے دا ده چه دا کتاب ورته لاره وربنائی چه هغه فلانے مقصودی شے دے، هغه ځائے کښ فائده مند شے دے، پسے ورشه نو متقیان روان شی هغه شے حاصل کړی او هغه لاره ویېژنی، نو مقصود ته ورسیږی، هغه لاره ښودونکے هم ترے رضا شی چه زما خبره ئے اُومنله او دے هم هغه لذت او خوشحالئ ته اُورسیږی۔ خو لړه غونډے سخته مشقت به برداشت کوی نو ددے وجے نه ددے د اسبابو اختیارول پکار دی کوم چه مخکښ تیر شو۔

اُوس ددے ځائے نه روسته الله تعالیٰ ددے متقیانو نور صفات راوړی :

| |
|---|
| اَلَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ وَيُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴿۳﴾ |
| هغه کسان دی چه ایمان لری په پټو څیزونو او پابندی د مانځه کوی او د هغه څه نه چه مونږ دوی ته ورکړیدی خرچ کوی۔ |

**تفسير :**

﴿ اَلَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ ﴾ پدے کښ دوه ترکیبه دی : (۱) الذین بدل دے د متقین نه نو بناء په دے دا مجرور دے، (یعنی متقیان هغه کسان دی الخ) لکه دا د تقوىٰ تعریف هم دے چه چا کښ دا راتلونکی وغیره صفات موجود وی بس دغه متقی دے۔ نو بیا (اولئك) مستقله جمله ده، اولئك مبتداء ده او علی هدی من ربهم ورله خبر دے۔

(۲) دویم ترکیب : دے کښ دا هم جائز دی چه مخکښی ته به ئے حاصل راوځی : چه الذین یؤمنون تر اوله مستقله جمله ده او (اولئك علی هدی) ئے خبر دے۔ معنی ئے دا شوه (هغه کسان چه ایمان په غیبو لری الی آخره نو اولئك علی هدی دا کسان په هدایت دی) اول

تركيب مشهور دے۔ چه دا تشريح او وضاحت د متقين دے۔
او ددے هدى للمتقين نه روستو د اهل القرآن شپږ صفات بيانوى، او دلته الله تعالىٰ د متقينو درے قسمه صفات بيانوى : (۱) العقائد (۲) والاعمال (۳) الاخلاق ۔ چه ددے خلكو عقيده هم جوړه ده او اعمال ئے هم برابر دى او اخلاق ئے هم درست دى۔ يا اول صفت د عقيدے۔ دويم د عمل بدنى او دريم عمل مالى۔
مگر پدے تولو كښې اول او آهم شے ايمان دے۔ چه يو سړى كښې عمل او اخلاق موجود وى، او ايمان په كښې نۀ وى، نو دا عمل او اخلاق ترے قبول ندى، او په يو سړى كښې تصديق شته، مگر عمل پكښې نشته نو دا هسے ونه ده، بغير د څانگو، بغير د ميوے، بغير د پاڼړو نه هسے تنه ده نو دا هم دومره فائده منده نه ده۔نو څكه ئے ايمان مخكښې بيان كړو۔
عقيده ئے دا ده چه (يُؤْمِنُوْنَ او يُوْقِنُوْنَ)۔ او عمل ئے دا دے : (يُقِيْمُوْنَ الصَّلَاةَ) مونځ په اعمالو كښې يو غټ عمل دے۔ او اخلاق ئے دا دى : (وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنْفِقُوْنَ) انفاق د اخلاقو د باب نه دى لكه دا خبره به روسته راشى چه د مونځ سره انفاق ولے جمع كوى څكه په انفاق كښې د مخلوق سره احسان دے او په مانځه كښې د الله تعالى سره احسان دے، نو انفاق د خلقو سره اخلاق، احسان او نيكى ده، په خلكو شفقت دے۔
(**يؤمنون**) ماخوذ دے د ايمان نه۔ نو دلته د ايمان لغوى او اصطلاحى معنى او دارنگه فوائد د ايمان ذكر كيږى۔ ايمان په قرآن كريم كښې (۸۷۸) كرته ذكر شويدے۔

## د ايمان معنىٰ لغوى

۱-معنى : التصديق : لكه (وَمَا أَنْتَ بِمُؤْمِنٍ لَّنَا) (يوسف :۹)
۲-معنى : الوثوق : اعتماد كول (وَيُؤْمِنُ لِلْمُؤْمِنِيْنَ) (التوبة : ٦١) يعنى اعتماد كوى په قول د مومنانو)۔ ۳- او كله په معنىٰ د امن هم راځى : لكه (اَلْمُؤْمِنُ) د الله په صفاتو كښې راځى : يعنى امن وركونكے) نو ايمان ته هم ايمان څكه وائى چه مومن سړى امن وركړيدے مؤمن به ته - چه الله تعالىٰ او د هغه رسول دى- چه زه ستا تكذيب نكوم زه ستا خبره منم۔

## د ايمان اصطلاحى تعريفات

په اصطلاح د مسلمانانو كښې ددے يو څو تعريفونه دى : (۱) متكلمين ئے داسے تعريف

کوی چه دا ناقص تعریف دے او د عقائدو کتابونو کښې هغه ذکر کیږی : اَلتَّصْدِيْقُ بِمَا جَاءَ بِهِ النَّبِيُّ ﷺ وَعُلِمَ بِالضَّرُوْرَةِ ۔ (تصدیق کول دی په ټولو هغه خبرو چه نبی ﷺ راوړی دی او هغه ثابت شوی دی په بداهت سره) ۔د عُلِمَ بالضرورة معنیٰ دا ده چه په دین کښې یقینی ثابت وی، شکی خبری نهٔ وی، موضوعی یا ضعیف حدیثونه نهٔ وی۔نو په هغے به تصدیق کوی لکه الله او رسول، قیامت، ملائك دا په دین کښې معلومے مسئلے دی پدے به تصدیق کوی، دا تعریف د متکلمینو دے دا د احنافو علماؤ تعریف هم دے۔

دا تعریف ناقص دے وجه دا ده چه دلته ایمان صرف تصدیق ته وئیلے شویدے او حال دا چه د قرآن او د حدیث په اصطلاح کښې ایمان صرف تصدیق ته نهٔ وائی اگرچه کله نا کله په تصدیق ئے هم اطلاق کیږی۔

**۲- دویم تعریف** : هُوَ التَّصْدِيْقُ بِالْجَنَانِ وَالْاِقْرَارُ بِاللِّسَانِ وَالْعَمَلُ بِالْاَرْكَانِ۔

(په زړهٔ باندے تصدیق (یقین) کول او په بدن باندے اعمال کول او په خوله باندے اقرار کولو ته ایمان وائی)۔ تصدیق پکښې اَهم جزء دے، که دا نهٔ وی، نو انسان مؤمن نهٔ دے او که ټول اعمال نهٔ وی نو په نزد د محققین اهل سنتو هم مؤمن نهٔ دے، لکه ددے تفصیل به په سورة الانعام (۱۵۸) آیت کښې راشی۔ البته که بعض اعمال نهٔ وی، نو بیا ناقص ایمان والا دے۔ او که سره د اختیار نه او په وخت د طلب د اقرار کښې کلمه یو سړے نهٔ وائی نو بیا هم مسلمان ندے، کلمه به خامخا وائی، ددے وئیل لازم دی۔

نو د اعمالو په نقصان سره په ایمان کښې نقصان راځی او د ټولو اعمالو په ختمیدو سره ایمان ختمیږی، او دا هغه خبره وه چه د خوارجو ذهن پرے نهٔ کولاویدو، هغوی به وئیل چه چا کبیره گناه اُوکړه نو بس کافر دے او معتزله ؤ به وئیل نهٔ کافر دے او نهٔ مؤمن دے لیکن د دواړو عقیده دا وه چه همیشه جهنمي دے۔ (لکه ددے تفصیل په الحق الصریح شرح مشکاة المصابیح (۷۹/۱)کتاب الایمان کښې اُوگوره)۔

**۳- دریم تعریف**: (دا تعریف مخکښې ته نزدے دے صرف د تعبیر فرق دے)

(اَلتَّصْدِيْقُ التَّامُّ الْمُتَضَمِّنُ لِانْقِيَادِ الْجَوَارِحِ) (تیسیر الکریم الرحمن د عبد الرحمن ناصر السعدی)

(ایمان هغه پوره تصدیق ته وائی چه متضمن وی انقیاد او تابعداری د جوارحو لره) یعنی د زړه د تصدیق سره به اندامونه هم د الله تعالیٰ تابعدار وی، که یو سړے وائی چه زما ایمان په الله تعالیٰ شته، خو مونځ ورله نکوم، روژه نهٔ نیسم، نو دا سړے مسلمان نهٔ شی

جوړیدے، دا هسے د خولې دعوىٰ ده، وَهَم دے، ایمان چه بنده کښې راشي نو ضرور به ئے نیکۍ ته راکاږي، ځکه ایمان یو مغناطیس دے چه بنده نیکو ته راکاږي، څومره چه ایمان دننه قوي کیږي، هغومره اعمال ښائسته کیږي څومره چه ایمان کمزورے کیږي، هغومره به اعمال کمزوري کیږي، دا ظاهري اعمال او دننه ایمان د یو بل سره کنکشن او تعلق لري، څومره چه تصدیق مضبوطیږي نو عملونه به ښائسته کیږي او زیاتیږي۔ لکه روستو به راشي (تارك الصلاة) (څوك چه همیشه مونځ نهٔ کوي) هغه کافر دے، ځکه ددهٔ زړه کښې تصدیق نشته، که تصدیق وے، دهٔ به مونځ نهٔ پریښودلے۔

٤- **تعریف** : او د ایمان ښه تعریف هغه دے چه قرآن ذکر کړیدے چه ایمان دیته وائي چه تا کښې ښائسته صفات پیدا شي پس د تصدیق نه لکه سوره الم سجده (١٥) کښې الله تعالىٰ داسے فرمائي : ﴿ اِنَّمَا يُؤْمِنُ بِآيٰتِنَا الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِّرُوْا بِهَا خَرُّوْا سُجَّدًا ...... ﴾

(زما په آیتونو مؤمن دا دے، چه کله ورته بیان شي نو سجدے لګوي او د الله تعالىٰ ذکر کوي او تکبر نهٔ کوي، د بسترو نه پاځیږي، (مونځونه کوي) دعاګانے غواړي په ویره او په طمع، او مالونه لګوي د الله تعالىٰ په لاره کښې) دا مؤمن دے۔

○ د سورة الحجرات (١٤) آخرنۍ رکوع کښې دي : ﴿ قَالَتِ الْاَعْرَابُ ﴾ اعراب وائي : مونږ مؤمنان یو، ته ورته اُووایه چه تاسو ایمان نه لرئ، تاسو ځان ته مؤمنان وایئ او حال دا چه ایمان لا ستاسو زړه کښې ندے راغلے)۔ ایمان دیته وائي چه بنده د الله او د رسول متابعت اُوکړي، دا د آیت حاصل دے، بیا روسته فرمائي :

﴿ اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِيْنَ آمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوْا وَجَاهَدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ﴾ چه الله او رسول باندے ئے تصدیق کړے وي، چه الله تعالىٰ حق دے او د هغه رسول، او بیا ئے شك نهٔ وي کړے او ځان او مال ئے د الله تعالىٰ د دین دپاره لګولي وي، نو دا رشتیني مؤمن دے)۔ که د الله تعالىٰ په دین باندے د یو سړي مال نهٔ لګیږي، بدن نهٔ لګوي، نو دا مؤمن نهٔ دے، تصدیق ئے نشته او یا شك ئے په زړه کښې دے۔

○ د سوره انفال په (٢،٣) آیت کښې راځي : (اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَجِلَتْ قُلُوْبُهُمْ الخ) (مؤمنان هغه کسان دي چه کله ورته الله رایاد شي د هغوي زړونه ویریږي، دا اُوچت مؤمنان دي او د قرآن په وجه ئے ایمان ډیریږي، او توکل پکښې دے، د مانځه پابندي کوي او مالونه لګوي) نو دا قرآني تعریف دے۔ ددے حاصل دا راوځي : چه ایمان دیته

وائي : (يَعْنِى التَّصْدِيْقَ بِلَا اِرْتِيَابٍ) مَعَ مُجَاهَدَةٍ بِالنَّفْسِ وَالْمَالِ (په الله تعالىٰ تصديق بلا شكه به كوي او ورسره به د نفس او د مال مجاهده كوي) نو قرآن ته چه گورے هم ايمان د درے شيانو نه مركب شويدے : (۱) تصديق (۲) اقرار (۳) عمل۔

هغه ايمان چه عملونه ورسره ملگرى نۀ وى نو دا څه ايمان نۀ دے ۔

**بيا** پدے هر يو كښ زيادت هم راځي، نقصان هم راځي، ايمان د يو كيفيت نوم دے چه په زړه كښ دننه وى، او هغه كيفيت كله ښكته كيږى، كله اُوچتيږى، زيادت كموالے په كښ راځي۔ ډير نصوص قرآني او حديثي پدے گواه دى۔

د ايمان نور مهم تعريفونه دا دى :

۵- حسن بصرى رحمه الله فرمائي :

(لَيْسَ الْإِيْمَانُ بِالتَّحَلِّيْ وَلَا بِالتَّمَنِّيْ وَلٰكِنْ مَا وَقَرَ فِى الْقَلْبِ وَصَدَّقَهُ الْعَمَلُ)

(ابن ابى شيبة) (فى ظلال القرآن ۱/۳۲۵) (تفسير ابى السعود، والدر المنثور (۲/٦۹۵)

(يعني ايمان په ځان ښائسته كولو او تمنى كولو سره نۀ حاصليږى بلكه ايمان هغه څيز ته وائي چه په زړه كښ ځائے اُونيسى او عمل د هغے تصديق اُوكړى)۔

٦- **تعريف** : دارنگه حافظ ابن قيم په الفوائد ص (۱۸۳) كښ او دارنگه زمونږ الفوائد فى تزكية النفوس (۱/ ٤۸) كښ دى : (وَهُوَ حَقِيْقَةٌ مُرَكَّبَةٌ مِنْ مَعْرِفَةِ مَا جَاءَ بِهِ الرَّسُوْلُ ﷺ عِلْمًا وَالتَّصْدِيْقُ بِهِ عَقْدًا وَالْاِقْرَارُ بِهِ نُطْقًا وَالْاِنْقِيَادُ لَهُ مَحَبَّةً وَخُضُوْعًا وَالْعَمَلُ بِهِ بَاطِنًا وَظَاهِرًا وَتَنْفِيْذُهُ وَالدَّعْوَةُ اِلَيْهِ بِحَسَبِ الْاِمْكَانِ وَكَمَالُهُ فِى الْحُبِّ فِى اللّٰهِ وَالْبُغْضِ فِى اللّٰهِ وَالْعَطَاءُ لِلّٰهِ وَالْمَنْعُ لِلّٰهِ وَاَنْ يَّكُوْنَ اللّٰهُ وَحْدَهُ اِلٰهَهُ وَمَعْبُوْدَهُ وَالطَّرِيْقُ اِلَيْهِ تَجْرِيْدُ مُتَابَعَةِ الرَّسُوْلِ ﷺ ظَاهِرًا وَبَاطِنًا وَتَغْمِيْضُ عَيْنِ الْقَلْبِ عَنِ الْاِلْتِفَاتِ عَمَّا سِوَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ) ۔

(ايمان يو حقيقت دے چه مركب دے د معرفت د هغه څه نه چه رسول الله ﷺ راوړے وى په علم سره او تصديق كول په هغے په عقيده (زړۀ) سره، او اقرار كول په هغے په ژبه سره، اودے ته غاړه ايخودل په محبت او عاجزئ سره او پدے باندے عمل كول په ظاهر او باطن سره او ددے نافذ كول او دے ته دعوت وركول څومره چه ممكن وى او ددے كمال دا دے چه د الله تعالىٰ دپاره محبت او بغض او وركړه او منع اُوكړے شى او چه صرف يواځے الله تعالىٰ دده معبود شى۔ او ددے طريقه دا ده چه ظاهراً او باطناً خالص تابعدارى د رسول الله ﷺ شروع كړى او د الله او د رسول ﷺ نه علاوه څيزونو ته د كتلو نه د زړه سترگے پټے كړے)۔

۷- **تعریف** : مونږ داسے تعریف لیکلے دے (۴۶/۱) (عِبَارَةٌ عَنْ كَيْفِيَّةٍ قَلْبِيَّةٍ مِنَ التَّصْدِيْقِ بِاللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ وَالتَّسْلِيْمِ لَهٗ وَالرِّضَا عَنْهُ وَالتَّوَكُّلُ عَلَيْهِ وَالْإِنَابَةُ إِلَيْهِ وَالْخُشُوْعُ لَهٗ وَالْخَشْيَةُ مِنْهُ وَالْإِخْبَاتُ إِلَيْهِ وَعُكُوْفُ الْقَلْبِ عَلٰى عَتَبَةِ بَابِهٖ وَالسُّرُوْرُ بِهٖ وَالْفَرَحُ بِهٖ تَعَالٰى وَالْإِبْتِهَاجُ بِهٖ وَالْفِرَارُ إِلَيْهِ وَالصَّبْرُ لَهٗ وَمَحَبَّتُهٗ حُبًّا شَدِيْدًا وَالْمَحَبَّةُ لَهٗ وَفِيْهِ وَالْمُعَادَاةُ فِيْهِ وَذِكْرُهٗ وَتَسْبِيْحُهٗ، وَتَكُوْنُ هٰذِهِ الْكَيْفِيَّةُ مُثْمِرَةً لِأَعْمَالِ الْجَوَارِحِ وَاللِّسَانِ وَالْأَخْلَاقِ الْفَاضِلَةِ وَهٰذِهِ الْكَيْفِيَّةُ تَزِيْدُ وَتَنْقُصُ دَائِمًا)

(ایمان عبارت دے د هغه قلبی کیفیت نه چه هغه په الله تعالیٰ باندے تصدیق کول دی او هغه ته تسلیمیدل دی او د هغه نه همیشه رضا کیدل او په هغه باندے توکل او هغه ته انابت کول او هغه ته خشوع او عاجزی کول او د هغه نه یریدل او هغه ته پوره محتاجی ظاهرول او د هغه په درشل باندے زړهٔ رابندول او په هغه باندے سرور او خوشحالی کول او په هغه باندے تازګی ښکاره کول او هغه طرف تیختنه کول او د هغه دپاره هر قسم صبر کول او هغه سره بے حده مینه او محبت کول او د هغه دپاره د مخلوق سره دوستی او دشمنی کول او د هغه په ذکر او تسبیحاتو کښې مشغوله کیدلو ته ایمان وائی او دا کیفیت د اندامونو او دژبے د اعمالو او د بهترین اخلاقو د پیدا کولو سبب دے. او دے کیفیت کښې همیشه دپاره زیادت او نقصان راځی). نو انسان به د زیادت کوشش کوی او د نقصان نه به ئے محفوظ ساتی.

## د ایمان نور اطلاقات :

ایمان کله کله د موقع او د محل د وجه نه په نورو معانیو هم اطلاق کیدے شی ۱- لکه ایمان کله صرف تصدیق ته (چه عمل ورسره نهٔ وی) هم وئیلے شویدے، ذکر د کل وی مراد ترینه جزء وی لکه ابراهیم علیه السلام فرمایلی وو : اے الله ! ته مړی څنګه راژوندی کوے ؟ (قَالَ أَوَلَمْ تُؤْمِنْ ا) الله اُوفرمائیل : آیا ستا تصدیق نشته ؟ د ایمان نه مراد دلته صرف تصدیق دے. (قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا قُلْ لَّمْ تُؤْمِنُوْا) سوره حجرات) (یعنی ستاسو پوره تصدیق نشته صرف ظاهری انقیاد مو کړیدے)

۲- کله ایمان صرف عمل ته هم وئیلے شی ﴿وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ إِيْمَانَكُمْ﴾ (البقرة ۱۴۳:) يَعْنِيْ صَلَاتَكُمْ. په مانځه باندے د ایمان اطلاق شویدے. او تصدیق او عمل ئے مهم اجزاء دی څکه پرے د ایمان اطلاق کیږی.

۳- کله صرف اقرار د ژبے ته وائی لکه : (ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ آمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا) (المنافقون) (اَیْ اَقَرُّوْا

بِاللِّسَانِ وَكَفَرُوْا بِالْجَنَانِ) (بصائر ذوى التمييز (۲/۱۰۵)

۳- فيروز آبادیؒ ليكي : (يُسْتَعْمَلُ تَارَةً اِسْمًا لِلشَّرِيْعَةِ الَّتِيْ جَاءَ بِهَا مُحَمَّدٌ ﷺ (اِنَّ الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَالَّذِيْنَ هَادُوْا) (يعنى ايمان كله هغه شريعت ته وائى چه محمد ﷺ راوړيدے لکه آيت کښې دى (هغه کسان چه د محمد رسول الله ﷺ دا شريعت ئے منلے دے)

٤- (وَتَارَةً يُسْتَعْمَلُ عَلٰى سَبِيْلِ الْمَدْحِ وَيُرَادُ بِهٖ اِذْعَانُ النَّفْسِ لِلْحَقِّ عَلٰى سَبِيْلِ التَّصْدِيْقِ وَذٰلِكَ بِاجْتِمَاعِ ثَلَاثَةِ اَشْيَاءَ (۱) تَحْقِيْقٍ بِالْقَلْبِ (۲) وَاِقْرَارٍ بِاللِّسَانِ(۳) وَعَمَلٍ بِالْجَوَارِحِ وَيُطْلَقُ عَلٰى كُلِّ وَاحِدِ الْاِيْمَانُ، اِلَّا اَنَّ الْاِيْمَانَ هُوَ التَّصْدِيْقُ الَّذِىْ مَعَهُ الْاَمْنُ) ـ

(اوکله کله د مدح په طريقه ذکر کيږى اومراد ترينه دا وى چه خپل نفس د حق تابع کړى سره د تصديق نه او دا په درے خيزونو راجمع کيدو سره کيږى (۱) د زړه په تحقيق او تصديق سره (۲) او د ژبے په اقرار سره (۳) او د اندامونو په عمل سره او هر يو ته ايمان وائى، مګر ايمان هغه تصديق دے چه د هغے سره امن وى) بصائر ذوى التمييز (۲/۱۵۱)

## فوائد الايمان :

د ايمان بے شماره فائدے دى بعضے د هغينه دا دى :

۱- اَلْهِدَايَةُ : هدايت دے لکه (هدى للمتقين) ـ

۲- (اَلْاَمْنُ مِنْ عَذَابِ اللّٰهِ) (د الله سبحانه وتعالىٰ د عذابونو نه امن ملاويږى) لکه ﴿ اَلَّذِيْنَ آمَنُوْا وَلَمْ يَلْبِسُوْا اِيْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ اُولٰٓئِكَ لَهُمُ الْاَمْنُ ﴾ (الانعام:۸۲)

۳- اَلثَّبْتُ : (مضبوطوالے په دنيا او آخرت کښې) لکه : ﴿ يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ آمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِى الْاٰخِرَةِ ﴾ سوره ابراهيم آيت (۲۷) ـ

٤- : (اَلدِّفَاعُ) (الله تعالىٰ د مؤمنانو دفاع او مدافعت کوى) د د شمنانو د مکرونو نه ئے حفاظت کوى لکه : ﴿ اِنَّ اللّٰهَ يُدَافِعُ عَنِ الَّذِيْنَ آمَنُوْا ﴾ الحج (۳۹)ـ

۵- اَلْفَلَاحُ : (هميشه کاميابى) : ﴿ قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴾ (۱) آية ،

٦- ( اَلْوُدُّ) ( مؤمن سره به د الله تعالىٰ، د رسول الله ﷺ، او د ټولو مؤمنانو زړه کښې مينه اچولے کيږى) : ﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمٰنُ وُدًّا ﴾ (سورة مريم آيت (۸۷) (الله به ورسره مينه وکړى) ـ

۷- (اَلنُّصْرَةُ ) (مدد د الله تعالىٰ صرف د مؤمنانو سره کيږى) لکه: ﴿ اِنَّا لَنَنْصُرُ رُسُلَنَا

وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ يَقُوْمُ الْاَشْهَادُ﴾ سوره مومن (۵۰)

۸- (اَلْخِلَافَةُ) (الله تعالیٰ صحیح ایمان او عمل صالح والو ته خلافت نصیب کوی) او د دین کار ترې اخلی- ﴿وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ آمَنُوْا مِنْكُمْ وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْاَرْضِ﴾ (النور: ۵۵)

۹- (خَيْرُ الْبَرِيَّةِ) (انسان په مخلوقاتو کښې غوره مخلوق گرځي)- ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ اُولٰٓئِكَ هُمْ خَيْرُ الْبَرِيَّةِ﴾ سوره البينة:۷)-

۱۰- (اَلنَّجَاةُ مِنَ الْخُسْرَانِ) (د تاوان نه هیڅوك بچ نهٔ دي بغیر د مؤمنانو نه) لکه: ﴿وَالْعَصْرِ اِنَّ الْاِنْسَانَ لَفِيْ خُسْرٍ اِلَّا الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾ (سورة العصر)

۱۱- لَاسُلْطَانَ لِلشَّيْطَانِ عَلَيْهِمْ- (د شیطان زور په ایمان والو نشته) (اِنَّهٗ لَيْسَ لَهٗ سُلْطَانٌ عَلَى الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ) (النحل: ۱۰۰)

۱۲- (اِصْلَاحُ الْبَالِ) (د ایمان والو زړهٔ الله تعالیٰ برابروی) (وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَآمَنُوْا بِمَا نُزِّلَ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَهُوَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ كَفَّرَ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ وَاَصْلَحَ بَالَهُمْ) (محمد: ۲)

۱۳- (اَلتَّاْيِيْدُ مِنَ اللّٰهِ) (د الله تعالیٰ د طرفه تائید او مضبوطوالے صرف ایمان والو دپاره دے) (فَاَيَّدْنَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا عَلٰى عَدُوِّهِمْ) (الصف: ۱۴)

۱۵- (اَلْحَيٰوةُ الطَّيِّبَةُ) دایمان په وجه مزیدار ژوند حاصلیږی) (مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهٗ حَيٰوةً طَيِّبَةً) (النحل: ۹۷)

داسے نورے فائدے هم قرآن کریم کښې ځائے په ځائے راځي، لنډه دا چه د دنیا او آخرت ټولے فائدے ایمان سره تړلی دی. او د ایمان پوره سل فوائد مونږ په رساله (الفوائد ۱/۱۷۹-۱۸۷) کښې راجمع کړیدی، مهم بحث دے مطالعه ئے کړه نفع پکښې ډیره ده.

(بالغيب)

## د غیب لفظ وضاحت

۱- د غیب نه هره هغهٔ خبره مراد ده چه د هغے ادراك د انسان په حواسِ خمسه ؤ سره نهٔ کیږی، بلکه د هغے علم د وحی او د انبیاء علیهم السلام د تعلیماتو په ذریعه کیږی، قرآن کریم کښې د غیب نه مراد هره هغهٔ خبره ده چه هغے ته پواځې د عقل رسیدل نشی کیدے ترڅو چه ورسره د رسول الله ﷺ خبر ملګرے شوے نهٔ وی او چه د هغے خبر رسول الله ﷺ ورکړیدے لکه ذات او صفات د باری تعالیٰ، د فرشتو وجود، د عرش او کرسی، لوح او قلم،

علامات د قیامت، عذاب قبر، نشر وحشر، پُلِ صراط، میزان، جنت او جهنم او دغه شان تمام غیبي اُمور۔ مؤمن په هره هغهٔ خبره ایمان راوړي چه د هغې خبر الله تعالیٰ یا د هغهٔ رسول ﷺ ورکړے وي، برابره ده چه انسان د هغې مشاهده کړې وي او که نهٔ، یا هغهٔ پیژندلې وي او که نهٔ، لیکن مُلحدین او د غیبي اُمورو تکذیب کونکي ددے نعمت (ایمان او تصدیق) نه محروم کیږي۔ (تیسیر الرحمن للشیخ لقمان السلفي)۔

۲- عامو مفسرینو لیکلي دي لکه ابن کثیر، قرطبیؒ وغیره چه د غیب نه مراد دلته هغه څه دي چه د جبریل په حدیث کښې راغلي دي۔ جبریل علیه السلام راغے تپوس ئے اُوکړو د ایمان او د اسلام او د احسان، نبي علیه السلام د ټولو جواب ورکړو، وے وئیل : چه ایمان دیته وائي : (أَنْ تُؤْمِنَ بِاللهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَأَنْ تُؤْمِنَ بِالْقَدَرِ خَيْرِهِ وَشَرِّهِ) دیته غیب وائي : الله تعالیٰ، رسولان، کتابونه، ملائك، او د آخرت ورځ او د الله تعالیٰ تقدیر منل) او په قیامت کښې بیا صراط او میزان منل چه صراط حق دے، میزان حق دے، حساب حق دے، حوض کوثر حق دے، دا یو شے هم مونږ ندے لیدلے، او نهٔ عامو انسانانو لیدلې دي، خو دا به مني، دا زمونږ د سترګو نه غائب دي خو الله تعالیٰ او د هغه رسول (ﷺ) ئے وعده کړے ده او د هغوی په وعده باندے تصدیق دے، نو دا به مني۔

بالغیب هغه شیان چه ستا د سترګو نه غائب دي او مني ئے۔ او د وحي په ذریعه معلوم شویدي، او ورسره بیا پرے دلائل عقلیه هم شته۔

۳- زر بن حبیش (رحمه الله) فرمائي : (يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ أَيْ بِالْقَلْبِ) د غیب نه مراد زړهٔ دے یعنې ایمان لري په زړهٔ سره، صرف د خُلې ایمان ئے نهٔ وي لکه د منافقانو په شان۔ یا دا چه په زړهٔ سره ایمان لري اګر که څه ئے په سترګو لیدلي نهٔ وي۔

٤- څلورم تفسیر د ابو مسلم اصفهاني نه نقل دي هغه وائي : (بِالْغَيْبِ يَعْنِيْ حَالَ كَوْنِهِمْ غَائِبِيْنَ عَنِ النَّاسِ) ۔ (ایمان لري په حالت د غائبوالي کښې د خلکو نه) یعنې په ځانله ځائے کښې ایمان لري، دیکښې هم رَدّ دے په منافقانو باندے۔ دے کښې د ټولو نه اوله معنیٰ غوره او ظاهر او راجحه ده۔ او په اَلَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ (انبیاء : ۲٦) کښې دا څلورمه معنیٰ غوره ده ځکه د ایمان بالغیب او خشیت فرق دے چا چه یو شان کړیدی لکه صاحب د تدبر القرآن نو هغه حق ته نهٔ دے رسیدلے ځکه د ایمان تعلق د زړه سره دے او د خشیت تعلق د ظاهر سره ډیر دے۔ فتدبر۔

## فائده - په قرآن کریم کښې د غیب معانی :

د غیب لفظ نورے معانی قرآن کریم کښې شته چه هغه ددے آیت سره تعلق نۀ لری۔
(۱) لکه اَلْاَشْیَاءُ الْغَائِبَةُ الْمَعْلُوْمَةِ بِالْوَحْيِ ۔ (هغه څیزونه چه غائب وی او په وحی سره معلومیږی) لکه (ذلك من انباء الغیب) (آلعمران : ۴۳)
(۲) (اَلْاَشْیَاءُ الْغَائِبَةُ الَّتِیْ لَا یَعْلَمُهَا اَحَدٌ غَیْرَ اللّٰهِ) لکه (قُلْ لَا یَعْلَمُ مَنْ فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الْغَیْبَ اِلَّا اللّٰهُ) (النمل:۶۵)۔
(۳) الغیب : بے دلیله او په توك سره خبره کول۔ لکه (رَجْمًا بِالْغَیْبِ) (الکهف :۲۲)۔ یا (وَیَقْذِفُوْنَ بِالْغَیْبِ مِنْ مَکَانٍ بَعِیْدٍ) (سبا :۵۳)۔

## د ایمان بالغیب فضیلت :

ایمان بالغیب ډیر قیمتی شے دے۔ عبد الله بن مسعود ﷛ فرمائی : د الله تعالیٰ په دربار کښې غوره عمل ایمان بالغیب دے (مَا آمَنَ مُؤْمِنٌ اَفْضَلَ مِنْ اِیْمَانٍ بِغَیْبٍ) (مستدرك الحاکم (۲/۲۸۵) صحیح علی شرط الشیخین) والقرطبی) (یعنی د ایمان بالغیب نه افضل ایمان نشته)۔
نو دا د الله تعالیٰ ډیر خوښ دے، ددے وجے نه د مرگ په وخت کښې هر سړے مؤمن دے، لیکن دغه ایمان له اعتبار نشته، د قیامت په ورځ به ټول مخلوق یقین والا وی، هلته به په الله تعالیٰ باندے ایمان هم راوړی، د الله تعالیٰ حکم به هم منی، الله تعالیٰ ته به ذلیله هم وی خو الله تعالیٰ دا یو هم نۀ قبلوی۔ د الله تعالیٰ طریقه دا ده چه په غیبو به د هغه خبره منی۔ دا د ایمان بالغیب حاصل دے۔
ایمان بالغیب دیته وائی چه یو شے به تا لیدلے نۀ وی، خو الله سبحانه وتعالیٰ او د هغه رسول ﷺ به خبر درکړے وی، نو ته به ئے منے، مثلاً یوه خبره ده چه هغے ته به ستا ذهن نه وررسیږی، عقل او دماغ به دے پرے کار نۀ کوی او الله تعالیٰ او د هغه رسول ﷺ به وئیلی وی نو داسے به نۀ وائے، چه زه پدے نۀ پوهیږم نو دا زه نشم منلے، او دا څوك منی !، نۀ ! خپل عقل او علم به کم گنړے، دا به وائے چه رسول الله ﷺ ما نه ښه پوهیږی او د رسول الله ﷺ نه الله تعالیٰ ښه پوهیږی چه هغوی وئیلی دی، نو همداسے به وی۔ لکه انسان چه ډاکټر ته تسلیمیږی، مثلاً ډاکټر له چه ته لاړ شے، تا ته اُووائی چه ستا په گُلمو کښې زیړے دے، ته به دا رشتینے گنړے او دا به وائے چه ډاکټر راته وئیلی دی۔ ظاهره کښې تا

تـه بـه هیـڅ اسباب نۀ ښکاره کیږي، خو د هغه خبره مني، تسلیم ئې، دډاکټر خبره دروغ هم کیـدې شي، خـطاء هـم کیـدې شي، سره د هغې نه ډاکټر وائي تا ته دا فلانے مرض لګیدلے دے، مثانه، یا ګرده کښې ډیے بیماری ده، هغه تۀ مني ځکه چه د هغه علم ته تۀ تسلیم ئې، نو د الله تـعالیٰ اود هغه د رسول ﷺ علم ته به هم تسلیمیږې، ډیرے خبری داسے دي چه هغې تـه بـه زمـونږ عـلـم نۀ رسیږي او هغه ډیرے ژورے خبري وي، او خلك اکثر د هغې نه انکار کـوي ـ نۀ ئې مني، ځکه عقل پرست دي، عقل ئې مقدم کړے دے لکه مثلاً وائي : قبر کښې عذاب ځنګه کیدے شي؟ دا خو تنګ ځائے دے، ملائك به ځنګه ورننوزي، ګورز به ځنګه راخـطا کـوي او دے کـښې کـرکـۍ کـلاوېږي، دا کرکۍ خو مونږه اُونـۀ لیدلے، ځنګـه بـه کـولاوېږي، او پـدے کښې ماران لړمانان دي، چرته خو ښکاره نشو؟ـ حدیث کښې راغـي چه پدے قبر کښې جنت جهنم راښکاره کیږي، دا خو مونږ کله اُونۀ لیدل، نو بعض خلك انکار شروع کړي چه قبر کښې عذابونه نشته دے، نۀ! بلکه الله تعالیٰ او د هغه رسول ﷺ ددے خبر ورکړے دے، هغوی وائي چه پدے کښې کرکۍ هم شته، او اُور هم شته، پدے کښې مار لړم هم شته، پدے کښې تِیَرۀ اورڼا هم شته، پدے ټولو باندے مونږ تصدیق کوو، ځکه چه د هـغـه رسـول ﷺ ښـه پـوهیږي او الله تعالیٰ د هغه نه ښه پوهیږي۔ دارنګه قیامت باره کـښې مـونږ تـه وئیلے شویدي چه د قیامت په ورځ به پُل صراط وهل کیږي، او دا به داسے نرے وي (كَحَدِّ مُوْسٰى) لـکه د تیره والي د چړے او بل روایت کښې دي : ( کالشعرة) د ویښته پشـان بـه نـرے وي) او دا انسـانـان بـه پـه هغې ورتیریږي، نو دا خبره اُوس د عقل خلاف مـعلومیږي چه په دومره نری شي به بنده څنګه تیر شي؟ کوم شخص دے چه پدے به تیر شي؟ لیـکـن د الله تـعـالـیٰ نبـي جناب محمد رسول الله ﷺ فرمائي چه پدے به مؤمنان ورتیریږي او بیا ئې دا فرمائیلي دي چه دا ځمکه کله الله تعالی بدلوي (یوم تبدل الارض غیر الارض) او دا ټول انسانان به د پُل صراط په سر باندے سواره وي، ټول عالَم به په پل صراط روان وي، نـو دومـره نـرے دے، او حـال دا چـه ټـول انسانان پرے ځائیږي، پدے دواړو خبرو الله تـعالیٰ قادر دے، دا د ایمان بالغیب سره تعلق لري، دا به مني، دا عملونه چه مونږ کوو، دا به قیـامـت کـښې راوړل کیـدے شي، او په میزان کښې به اچولے کیږي، او تللے کیږي به، په دے زمـانـه کـښې د سائـنسي تجرباتو په ذریعه داسے خبرے ډیر په آسانۍ سره منلے شي، خلك ګـرمـي او یخني تلي، هواګانے تلي، نو دا اعمال الله تعالیٰ تللے شي، پدے قادر دے، انسانانو

داسے خیزونه ایجاد کړېدی چه په هغے کښې ډېر ناشنا کارنامے وی لکه د کمپوټر دنیا شوه۔ لهذا دا خبره یعنی ایمان بالغیب اُوس دے زمانه کښې دومره مشکله نهٔ ده۔
دارنګه اُور کښې سړے مری، پنځه منټه هم ژوندے نشی پاتی کیدے، ضرور به مری، لیکن جهنم کښې به سړے نهٔ مری، خبرے اترے به هم کوی، ګرځی راګرځی به هم، ملاقاتونه به هم پکښې کیږی، او سزاء به هم ملاویږی، نو دا اُوس د عقل نه خلاف خبری دی، زمونږ عقل ورته نهٔ رسیږی، ځکه کمزوری دی، لیکن شارع وئیلی دی چه دا شته، نو مونږ وایو، شته، که ته وائے چه دے خبرے ته زما ذهن نهٔ رسیږی، دا به نشی کیدے نو دا ایمان بالغیب ندے، بلکه دا کفر دے۔
الله تعالیٰ او د هغه رسول ﷺ یوه خبره اُوکړه او د ډاکټر د مزاج خلاف وه، د ډاکټر خبره به پریږدے، مثلًا د الله رسول ﷺ فرمائی : (لَاعَدْویٰ) (د چا بیماری بل ته نهٔ نقل کیږی) ډاکټران وائی اُووه مرضونه داسے دی چه نقل کیږی، نو مونږ وایو : د ډاکټرانو خبره دروغ ده، او د الله تعالیٰ او د رسول الله ﷺ خبره رشتیا ده، دیته وائی ایمان، او که تا په هغے تصدیق اُوکړو او د الله تعالیٰ او د رسول الله ﷺ په خبره دے شك اُوکړو نو دا ایمان نهٔ دے، داسے نور مثالونه واخله، چه روستو به ځائے په ځائے راځی۔ ان شاء الله تعالیٰ۔ نبی علیه السلام فرمائی : عیسیٰ علیه السلام بره ختلے دے، دجال به راځی، دیکښې څه فائدے دی؟ که پدے فائدو باندے مونږ نهٔ پوهیږو، او په بعضو پوهیږو، بیا به هم ورته تسلیمیږو ځکه الله تعالیٰ او د هغه رسول ﷺ وئیلی دی، نو بس صحیح ده، دیکښې به ډیر حکمتونه وی، مونږ به پرے نهٔ پوهیږو، نو د الله او د رسول ﷺ علم مخے ته به خپل علم نهٔ مخکښې کوے۔ نو معتبر ایمان هغه دے چه په غیب سره وی، ایمان بالشهاده څه ایمان نهٔ دے، چه ته د یوے خبرے په فلسفه او حقیقت باندے پوهه شے او بیائے منے، د حکمت د وجے نه یا په سترګو دے یو شے ولیده او بیائے منے، دا خو څه ایمان نهٔ دے۔
یو روایت کښې راغلی دی : نبی علیه السلام ملګرو ته اُوفرمایل چه د چا ایمان تاسو ته ډیر تعجبی ښکاری؟ نو بعضو اُووئیل ؟ د ملائکو، وے فرمایل : ملائك به څنګه ایمان نهٔ راوړی، ملائك خو بره آسمانونو کښې د الله تعالیٰ سره دی (ضرور به ایمان راوړی) د هغوی څه عذر دے چه ایمان به نهٔ راوړی۔ بعضو اُووئیل : د انبیاؤ ایمان ډیر غوره دے، وے فرمایل : انبیاء (علیهم السلام) به ولے ایمان نهٔ راوړی، هغوی باندے خو وحی نازلیږی د بره نه، نو بیا

صحابه کرامو اُوئیل چه زمونږه ایمان اعجب (غوره) دے۔ نبی ﷺ اُوفرمایل : تاسو به څنګه ایمان نۀ راوړئ تاسو خو زه لیدلی یم، معجزے ما نه ګورئ، ستاسو خو ایمان بالغیب دومره پوره نۀ دے تاسو خو ما وینئ زه خو غټه معجزه یم) ۔

بیا نبی ﷺ اُوفرمایل) : ما ته ډیر خوښ ایمان والا هغه خلك ښکاره کیږی چه ستاسو نه روستو زمانه کښې به راځی (يَجِدُونَ صُحُفًا يُؤْمِنُونَ بِمَا فِيهَا) (په کتابونو به ایمان لری یعنی پاڼړے به وی په هغه پاڼړو کښې به د دین خبرے لیکلی وی هغه به منی)، (نه به ئے الله تعالیٰ لیدلے وی، نۀ به ئے رسول لیدلے وی، او نۀ به ئے کومه معجزه لیدلی وی، او صرف کاغذ به منی ۔ ددے خلکو ایمان ډیر ناشنا دے) ۔

(رواه البزار وابويعلى والحاكم بسند حسن لغيره وبمعناه روى احمد والدارمى من حديث ابى جمعة، وحسنه الحافظ) (تخريج احاديث وآثار كتاب فى ظلال القرآن) وقال فى مجمع الزوائد ۱۰/۱۰ ٥: واحد اسنادى البزار المرفوع حسن) وصححه الالبانى فى الصحيحة (۳۲۱٥)

بل حدیث کښې داسے دی : (طُوبَىٰ لِمَنْ رَآنِي وَآمَنَ بِي وَطُوبَىٰ سَبْعَ مَرَّاتٍ لِمَنْ لَمْ يَرَنِي وَآمَنَ بِي) (احمد، طبرانى، الطيالسى، عبد بن حميد) الصحيحة ۳/۲٤٤) رقم (۱۲٤۱)

(هغه چا دپاره خوشحالی ده چه زه ئے لیدلے یم او په ما ئے ایمان راوړیدے او اُوه ځله خوشحالی دے وی هغه چا دپاره چه زه ئے نۀ یم لیدلے او په ما ئے ایمان راوړیدے) یعنی اُوه ځله اجر به د روستو امت زیات وی د صحابه کرامو نه او دا فضیلت دوی ته د ایمان بالغیب د وجه نه دے، ورنه د صحابه کرام (رضوان الله علیهم اجمعین) ایمان ته څوك چرته رسیدلے شی ؟! صحابه کرام رضی الله عنهم خو ډیر اُوچت ایمان لری، خو ایمان بالغیب زمونږ ډیر دے د صحابه کرامو په نسبت څکه هغوی نبی ﷺ لیدلے دے، په خپلو سترګو به ئے د هغه معجزات لیدل، قرآن به نازلیدو، ناشنا ناشنا احوال به ئے لیدل، بنی اسرائیلو به لیدل او مونږ هیڅ هم نۀ دی لیدلی، ډیر شاذ او نادر شانته خبری چرته اُووینو نو ایمان بالغیب د الله تعالیٰ په نزد باندے ډیر قیمتی دے۔

**فائده** : یو علم الغیب دے او بل علم بالغیب دے، علم الغیب خاص صفت د الله تعالیٰ دے او دا دیته وائی چه ټول غائب څیزونه ورته داسے ښکاریږی لکه چه حاضر وی او د هغه د سترګو نه هیڅ څیز پټ نۀ وی۔ لکه د الله تعالیٰ په صفت کښې دی ﴿وَمَا يَعْزُبُ عَن رَّبِّكَ مِن مِّثْقَالِ ذَرَّةٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ﴾ (یونس: ٦۱) او (قُل لَّا يَعْلَمُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ

وَالْاَرْضِ الْغَيْبَ اِلَّا اللّٰهُ) (النمل : ٦٥) او (عَالِمُ الْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلٰى غَيْبِهٖ اَحَدًا) (الجن: ٢٦)
او ددے نفی د رسول الله ﷺ نه صراحةً راغلې ده (وَلَا اَعْلَمُ الْغَيْبَ) (الانعام : ٥٠)
او بل علم بالغيب دے، او دا ديته وائي چه په غائب څيزونو (لکه الله تعالىٰ، ملائك، قيامت وغيره) څيزونو باندے عالِم شي، د هغې حکم او صفات ورته د قرآن او حديث په ذريعه معلوم شي، او پدے آيت کښې همدا ذکر دے او دا مستلزم دے لره نهٔ دے چه بعض بندګان به په ټولو غيب څيزونو پوهيږي او هغه به ورته داسے ښکاري لکه په سترګو ئے چه وينی ځکه زمونږ علم د الله تعالىٰ په وجود او د قيامت او ملائکو په ثبوت شته ليکن هغه خو مونږ ته په سترګو نهٔ ښکاري۔ نو د ګمراهانو دليل نيول ددے آيت نه په اثبات د علم الغيب د غير الله دپاره يا د رسول الله ﷺ او اولياء کرامو دپاره، دا سو چه ګمراهي او بربادي ده۔ اَعَاذَنَا اللّٰهُ مِنْ ذٰلِكَ) وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ۔ (انظر احسن الكلام)

**فائده** : تقوىٰ او ايمان ئے دواړه دلته جمع کړل وجه دا ده (لِتَلَازُمِهِمَا) دواړه د يو بل سره لازم ملزوم دی، ايمان د زړه صفائي او تقوىٰ د ظاهر سمول دی او پدے سره د انسان کمال حاصليږي او دا دواړه به قرآن کريم کښې ډير جمع کيږي۔

﴿ وَيُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ ﴾ : الله سبحانه وتعالىٰ په ايمان پسے روستو مونځ او زکوٰة ذکر کړو، دا ولے؟ ځکه دا نښه د ايمان ده، يو سړے د ايمان بالغيب دعوىٰ کوي نو ايمان خو اکثر د زړه سره تعلق لري، نو الله ئے نښه بيانوي چه مونځ به کوي او مال به لګوي، که د مانځه پابندي پکښې نهٔ وه، نو پوهه شه چه دا يا منافق دے يا کافر دے او يا ايمان ئے ډير کمزورے دے۔

**فائده** : بيا دوه څيزونه ئے جمع کړي دی (١) اقامة الصلاة (٢) انفاق في سبيل الله۔ او د قرآن په ډيرو آيتونو کښې صلاة او زکوٰة يو ځائے ذکر کيږي، وجه دا ده چه د مانځه په ذريعه د الله تعالىٰ دپاره د اخلاص اظهار کيږي او د زکوٰة او انفاق په ذريعه د بندګانو سره د احسان او د نيکئ د جذبے اظهار کيږي، او د انسان نيکبختي او سعادت په دے کښې دے چه د خپل معبود حقيقي دپاره مُخلص وي او ترڅو چه ژوندے وي نو د الله تعالىٰ مخلوق ته د نفع ورکولو کوشش کوي۔

٢- دويم دا چه اقامة الصلاة اعمال دی او انفاق اخلاق دی او د ايمان د متعلقانو نه دا دواړه خبرے دی چه اعمال به هم جوړوي، او اخلاق به هم جوړوي، ايمان تصديق شو، او صلاة اعمال شو، او انفاق اخلاق شو، مثال ئے ونه ده، د ونې يوه جرړه ده، يو د هغې ځانګے دی، او

یو د هغې میوه ده، ایمان ئې جرړه ده، او اعمال ئې څانګې دی، او اخلاق ئې میوې دی، میوه داره ونه دغه ده چه بنده کښ د اخلاقو ماده موجوده وی. ﴿ أَلَمْ تَرَ كَيْفَ ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا كَلِمَةً طَيِّبَةً كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ ﴾ (ابراهیم: ۲٤) ددۀ نه شجره طیبه جوړیږی.

۳- **وجه**: عبادتونه دوه قسمه دی یو مَا يَتَعَلَّقُ بِالْبَدَنِ دی او یو مَا يَتَعَلَّقُ بِالْمَالِ دی (الصلاة) کښ عبادات بدنیه ته اشاره ده، او په انفاق کښ عبادت مالی دے، زکوٰة، صدقه عشر، انفاق په خپل اهل باندے دا ټول پکښ داخل دی. نو د مؤمن صفت به دا وی چه دواړو کښ به کوشش کوی. او دا دواړه لوئی اعمال دی.

(**الصلوة**):

## د صلوٰة لفظ وضاحت

لفظ د صلاة قرآن کریم کښ (۸۹) کرته راغلے دے، ماده ئې (۹۵) کرته راغلے ده، صلاة په لغت کښ ډیرو معنو باندے استعمال دے. لکه ۱- دعاء ته وائی. لکه ﴿ وَصَلِّ عَلَيْهِمْ ﴾ (التوبة) ۲- مغفرت ته هم وائی. ۳- اَلدُّعَاءُ لِلنَّبِيِّ (ﷺ) (خاص نبی ﷺ دپاره دعاء ته هم وائی لکه ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ﴾ (سوره احزاب (٥٦) (صَلُّوا معنی دعا ورله اُوکړئ) درود ورته په فارسئ کښ وائی. ٤- جنازے ته هم صلاة وئیلے شی لکه ﴿ وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰ أَحَدٍ مِنْهُمْ مَاتَ أَبَدًا ﴾ التوبة (۸٤)

٥- صلاة په معنیٰ د تسبیح هم راځی یعنی ذکر اذکار) لکه: ﴿ كُلٌّ قَدْ عَلِمَ صَلَاتَهُ وَتَسْبِيحَهُ ﴾ سورة النور (٤١) آية.

٦- صلاة په معنی د ارکان مخصوصه ؤ سره چه مونځ دے. او دلته همدا معنیٰ مراد ده.

## د اقامة الصلاة معنیٰ

**بیا** اقامت څه ته وائی؟: نو د اقامت معنیٰ ده اُودرول، دا مونځ خو جسم نۀ لری نو څنګه اُودریږی؟ نو بیضاویؒ معنیٰ کوی: (يُرَوِّجُوْنَ الصَّلَاةَ) مونځ رائج کوی لکه قَامَتِ السُّوْقُ. عرب وائی: بازار اُودریدو یعنی رائج شو، یعنی څیزونه پکښ مشهور شو او خرڅیږی لګیا دے، او كَسَدَتِ السُّوْقُ. بازار کوته شو. نو معنی دا ده چه دوی په خپل ملك کښ مونځ رائج کوی یعنی په ملك کښ به دا قانون اړدی چه که د مانځه پابندی چا نۀ کوله، دکان او کور کښ ناست وو، نو سزا به ورکولے شی. دلته دا معنیٰ هم صحیح ده او

مونځ د هر مؤمن شخصي عبادت هم دے۔ ۲- دویم د اقامت معنیٰ دہ اُودرول، مراد ترینه مداومت دے، یعنی همیشه دپاره ئے کوی۔ ۳- بنه معنیٰ ئے دا ده (يُدِيْمُوْنَهَا وَيُؤَدُّوْنَهَا بِحُقُوْقِهَا وَيَحْفَظُوْنَهَا عَنِ الْمُفْسِدَاتِ وَالْمَكْرُوْهَاتِ وَأَدَائُهَا مَعَ الْفَرَائِضِ وَالسُّنَنِ وَالْمَنْدُوْبَاتِ مَعَ الْخُشُوْعِ وَالْخُضُوْعِ) (چه دوی همیشه مونځ کوی، د تمام ارکان، واجبات او فرائضو او شروطو پوره پوره خیال ساتی، د مفسداتو او مکروهاتو نه ئے ساتی، او په مکمل خشوع او خضوع او حضور قلبی سره ئے اداء کوی، او هغهٔ سنتونه هم اداء کوی چه د فرض مونځونو نه مخکښ او روستو د نبی ﷺ نه ثابت دی۔ او ورسره د صف اهتمام هم کوی ځکه د صف برابرول د مانځه برابرول دی۔ لکه چه نبی ﷺ فرمایلی دی۔ دا هغه مونځ دے چه الله تعالیٰ ددے د پابندی کونکو مدح او صفت کړیدے : (وَالْمُقِيْمِيْنَ الصَّلَاةَ) (النساء ۱٦٢:) (اَلَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلَاةَ) (المائدة : ۵۵) او د منافقانو په باره کښ ئے فرمایلی دی (فَوَيْلٌ لِلْمُصَلِّيْنَ) (الماعون) نو ددے نه معلومیږی چه مونځ کونکی خو ډیر دی، لیکن د اقامتِ صلاة صفت والا ډیر کم دی۔ (تیسیر) لیکن افسوس چه اُوس نفس مونځ کونکی هم خال خال په نظر راځی۔ مساجد خالی شویدی۔ فتدبر۔ والله المستعان۔

لنډه دا چه د سنت نبوی مطابق مونځ کولو ته اقامت صلاة وائی چه رکوع او سجده پکښ په آرام او اعتدال سره وی او اذکار پکښ پوره وئیلے شی یعنی الله تعالیٰ چه کوم مونځ فرض کړیدے او کوم ئے چه نبی ﷺ ته خودلے دے او بیا نبی ﷺ خپل امت ته خودلے دے (صَلُّوْا كَمَا رَأَيْتُمُوْنِيْ أُصَلِّيْ) (بخاری) (زما په شان مونځ کوئ) او د نبی ﷺ په مانځه کښ تولے سنت طریقے موجودے وے، په هغے کښ رفع الیدین هم وو۔ ځکه الف لام په الصلاة کښ عهدی دی مراد ترینه پیغمبری مونځ دے او د پیغمبر په مانځه کښ خو رفع الیدین هم وو لهذا د قرآن نه رفع الیدین وغیره هم ثابت شو۔

## د اقامة الصلاة شرائط

بیا اقامت د مانځه په یو څو شرطونو سره حاصلیږی یو وقت پیژندل۔

۱- مَعْرِفَةُ الْوَقْتِ : وخت به پیژنی، د منافقانو په شان به نهٔ وی چه ناوخته مونځونه کوی خاصکر د ماز یګر مونځ۔ (تِلْكَ صَلَاةُ الْمُنَافِقِ) ډیر خلق د سهار مونځ نمر ختاته وخت کوی، ډیر خوانان او سړی او زنانه اُګوره چه ناوخته اُوده کیږی نو سهر جمعه ترے قضاء وی او نمر

خاته مونځونه کوي۔ زنانه په جامو وينځلو او پخلو او د بچو په وجه يا د ګهوبے سکلو په وجه مونځونه د خپل وخت نه اُوباسي۔ دا ظلم دے۔ احاديثو کښې د وخت ډير سخت اهميت راغلے دے تردے چه که يو امام ناوخته مونځ کوي نو بنده له پکار دي چه خپل وخت کښې ځانله مونځ اُوکړي او که بيا ورته موقعه ملاؤ شي نو د امام سره دِے هم شريك شي۔

۲- دويم : مَعْرِفَةُ الْمَكَانِ : (ځائے پيژندل) په داسے ځائے کښې به مونځ نۀ کوي چه شريعت هغه ځائے کښې د مانځه نه منع کړې وي لکه د غصب په زمکه کښې وي، په هغه درځ به نۀ اُودريږي چه حرامه وي، سود خور سړي جماعت ته راوړې وي، يا پرے د صليب نخے وي، هغه جماعت کښې به مونځ نۀ کوي چه په حرامو پيسو جوړ شوے وي، چه ښکاره حرام وي۔

## د قبر په خوا کښې مساجدو کښې مونځونه حرام دي

دارنګه هغه مساجد چه په قبرونو او د قبرونو په خوا کښې جوړ شوي وي، چار ديوالئ کښې دننه قبر وي او مسجد هم وي۔ نبي ﷺ د دينه منع کړيده۔ او فرمائيلي ئے دي : (لَعَنَ اللّٰهُ الْيَهُوْدَ وَالنَّصَارىٰ اِتَّخَذُوْا قُبُوْرَ أَنْبِيَائِهِمْ مَسَاجِدَ) (صحيح بخاري باب مرض النبي ﷺ ۱۳۲٤) والترمذي والنسائي) (الله تعالىٰ لعنت کړيدے په يهود او نصاراؤ چه د خپلو انبياء د قبرونو نه ئے مساجد جوړ کړيدي) او په يو روايت کښې دي : (لَعَنَ اللّٰهُ زَائِرَاتِ الْقُبُوْرِ وَالْمُتَّخِذِيْنَ عَلَيْهَا الْمَسَاجِدَ والسُّرُجَ) (ابوداود، ترمذي، نسائي والحاکم) واسناده حسن) الله تعالىٰ لعنت کړيدے په هغه زنانو چه د قبرونو ملاقات ته (ډيرے) ځي۔ او په هغه خلقو چه په قبرونو باندے مساجد جوړوي او ډيوے (شمعے) پرے لګوي)۔

کوم جمات چه په قبر دپاسه جوړ شي هغے کښې مونځ نۀ کيږي دا د ائمه اربعه ؒ مذهب دے او پدے مونږ يوه اُوږده فتوىٰ ليکلے ده، شيخ الباني ؒ پدے رساله ليکلے ده (تَحْذِيْرُ السَّاجِدِ عَنِ اِتِّخَاذِ الْقُبُوْرِ مَسَاجِد) احنافو ورته مکروه تحريمي وئيلي دي۔

مالکيانو ديته حرام وئيلي دي لکه تفسير قرطبي سوره کهف کښې ليکلي دي او شوافعو ديته ګناه کبيره وئيلے ده، په الزواجر کښې ئے ليکلي دي، حنابله وائي پداسے مسجد کښې مونځ کول فاسد او باطل دي۔

حافظ ابن قيمؒ په زاد المعاد (۲۱/۲) کښې ليکي : (فَلَا يَجْتَمِعُ مَسْجِدٌ وَقَبْرٌ فِيْ دِيْنِ الْاِسْلَامِ بَلْ

اَيُّهُمَا طَرَأَ عَلَى الآخَرِ مُنِعَ مِنْهُ ...... فَيُهْدَمُ الْمَسْجِدُ إِذَا بُنِيَ عَلَى قَبْرٍ كَمَا يُنْبَشُ الْمَيِّتُ إِذَا دُفِنَ فِي الْمَسْجِدِ نَصَّ عَلَى ذٰلِكَ الْإِمَامُ أَحْمَدُ وَغَيْرُهُ) (یعنی په دین اسلام کښې د مسجد او قبر جمع کیدل ندی جائز بلکه هر یو چه په بل باندې راځي نو د هغې نه به منع کولې شي، نو مسجد به ورانولې شي کله چه په قبر باندې جوړ وی لکه څنګه چه مړې به ویستلې شي کله چه په مسجد کښې خخ کړې شوې وی، لکه دا خبره امام احمد وغیره علماؤ کړېده) انتهیٰ۔

ددې نه شرك پیدا کیږی او نقصانونه پکښې زیات دی، خلق په دغه مسجد کښې د بابا او د ولی د خاطره مونځ کوی چه هغه ددۀ په مال او جان او اولادوکښې برکت اچوی، خصوصاً سهر مونځ هلته ضرور کوی دې دپاره چه ټوله ورځ ئې برکتی وی۔

افسوس چه ددې سره بعض مُلیانو لیکلی دی چه د قبر په خوا کښې مونځ افضل دې د مشکوة المصابیح په حاشیه باندې ئې لیکلی دی : (لِحُصُوْلِ مَدَدٍ مِنْهُ) (که د ولی د روح نه د مدد غوښتلو دپاره ئې کوی نو خیر دې) دې ظلم ته فکر اُوکړه ! دا خیر تاسو د کوم ځائې نه راویستو، دا په کوم آیت او حدیث کښې راغلی دی، شرك چه پیدا کیږی، د همدې خیر خیر وئیلو نه پیدا کیږی۔ شریعت د نمر ختنه او نمر پریوتو په وخت کښې د نفل مانځه نه منع ولې کړېده ؟ ددې حکمت دا دې چه دیکښې تشبیه ده د عابدانو د نمر سره اګرکه د عبادت کونکی مخ قبلې ته وی او نمر ئې شاته وی لیکن بیا هم شریعت منع کړیده۔ نو انسان اګرکه د الله عبادت کوی خو دې کښې مشابهت دې د مشرکانو سره۔ دې کښې فکر اُوکړه، اشکالات به دِې ختم شی۔ والله اعلم۔

۳- **شرط اِتِّبَاعُ السُّنَّة** : (د نبی ﷺ د طریقې تابعداری) که څوك په ډیره خشوع او عاجزیٔ سره مونځ کوی لیکن د نبی ﷺ د طریقې تابعداری پکښې نۀ وی نو دا الله تعالیٰ قبول نۀ دې لهذا معلومه شوه چه څوك بِدَعِی مونځونه کوی لکه بعض بدعتیانو به صلاة رَجَبِیه (د رجب په میاشت کښې سل رکعاته مونځ کولو) اُوس هم د پنجاب په بعض علاقو کښې کیږی د هر لس رکعاتو نه پس دمه کوی او په هغې کښې تقریرونه کوی۔

۲- دارنګه پخوا به بعض خلقو صَلَاةُ الْأَلْفِيَّة کولو (زر رکعاته مونځ وو) اُوس دا بدعت ورك شویدې۔ ۳- دارنګه بعض خلقو به صلاة الرغائب کولو۔ ٤- بعض صلاة احتیاطی کوی لکه احسن الفتاوی کښې مفتی رشید احمد صاحبؒ وئیلی دی چه تۀ د جمعې د مانځه نه روستو د ماسپښین مونځ کوه، کیدې شی د جُمعې مونځ نۀ وی قبول شوې نو د ماسپښین

مونځ به قبول شي. وجه ئې دا بیان کړیده چه د جُمعې مونځ ډیر شرائط لري نو کیدې شي چه په دغه علاقه کښې به د جُمعې مونځ نۀ کیږي او تا به کړې وي نو احتیاطاً څلور رکعته وروستو کوه الخ. دا هسې ګپ شپ دې. د جُمعې مونځ هر ځائے کښې کیږي لکه چه د احادیثو نه واضحه ده. ٤- بعض مبتدعین د رمضان په آخري عشره کښې په ماسپښین کښې پنځه مونځونه په یو ځائے اُوکړي او دا وائي چه په ټول عمر کښې تا نه کوم مونځونه قضاء شوي وي نو پدې سره مجرئ کیږي. دیته قضاءِ عمري مونځ وائي. دا هم بې دیني ده او خلقو ته دا خودل دي چه خیر دې مونځونه قضاء کوئ او په روژه کښې به د هغې بدله خلاصه شي. اُوګوره موضوعات کبیر (مَنْ صَلَّى فِيْ آخِرِ رَمَضَانَ) الخ او په قضاءِ عمري باندې ئې رد کړیدې. ٥- بعض خلقو نور مونځونه ایجاد کړیدي او دا وائي چه دومره رکعاته اُوکړه، هر رکعت کښې سورة التغابن یا آیة الکرسي یا تبارك الذي وغیره وائي. او دغه شان نور مونځونه واخله نو دا ټول بدعات دي او په دین کښې هیڅ ثبوت نۀ لري.

**قاعده** : ددې عامو مونځونه چه هر مونځ خلاف وي هغه به صحیح نۀ وي، سوئ د دوه مونځونو نه چه شکل ئې بدل دې او شریعت کښې راغلي دي، یو صلاة الکسوف دې دیکښې دوه رکوع او درې او څلور هم راغلي دي، او دویم صلاة التسبیح دې دا هم صحیح حدیث کښې شته اګرچه د علماؤ اختلاف پکښې شته خو راجحه دا ده چه ددې په باره کښې حدیث صحیح ثابت دې.

## ٤- شرط : اَلْخُشُوْعُ :

خشوع به په مانځه کښې پیدا کوې، ځکه خشوع د مانځه روح دې دا نورې خبرې چه مونږ ذکر کړې دا ئې جسم دې، که یو سړې په صحیح ټائم کښې په پاك مکان کښې، بنه د سنت مطابق اُودریدو لیکن فکر ئې په دکان کښې دې او په پوزه، په سر کښې، په ګیره کښې ګوتې وهي خشوع ئې نۀ وي، بل ځائے ته ئې فکر وي نو دا مونځ د الله تعالیٰ دربار کښې نۀ قبلیږي. ابن عباس ﷺ فرمائي : (لَيْسَ لَكَ مِنْ صَلَاتِكَ إِلَّا مَا عَقَلْتَ مِنْهَا) (مجموع الفتاوی ۷/۳۱) و(۲۲/٦) و(۱۵/۲۳٦) ومنهاج السنة النبوية (۵/۱۳۲) ارشاد اولي البصائر (۱/۳۸)

(ستا صرف هغه مونځ قبلیږي کوم کښې چه ستا فکر برابر وي). او د مانځه په بعض حصه کښې به ضرور خشوع وي، ورنه بیا به مونځ قبول نۀ وي. اګرکه ظاهري ذمه به فارغه وي. مګر اجر به نۀ ملاویږي. او داسې انسان ته اګرکه د دوباره اعادې کولو حکم به

نهٔ وی لیکن هغه ته ضرور دا حکم شته چه نوافل او مستحبات زیات اُوکړی، دے دپاره چه ددے نقصان جبیره ئے اُوشی۔ او دا د جمهورو علماؤ رایه ده۔

(۲) او بعض علماء لکه امام غزالی وغیره ؤ وئیلی دی چه د اول نه تر آخره پورے په مانځه کښ خشوع فرض ده۔ که خشوع پکښ نهٔ وی، دا مونځ فاسد دے او دوباره به ئے کوی۔ پدے معنیٰ به د ډیرو انسانانو مونځ فاسد وی، ځان ته هم فکر اُوکړه۔ ددے نه معلومیږی چه په مانځه باندے ډیره خواری پکار ده ځکه که په فرض مونځ کښ خشوع نهٔ وه نو بیا به په نوافلو باندے پوره کولے شی او که ټول مونځونه خراب وو نو ټول عملونه به خراب وی۔ ددے وجه نه د مانځه ظاهری احکام زده کول بیا د خشوع پیدا کولو کوشش کول، د هغے اسباب اختیارول، د خشوع د پیدا کیدو (۱۳) اسباب دی (الحق الصریح شرح مشکاة المصابیح او الفوائد فی تزکیة النفوس ته رجوع اُوکړه)

﴿ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴾

انفاق د نَفِقَ نه ماخوذ دے وتلو ته وائی، انفاق ته انفاق ځکه وائی چه دیکښ هم ستا د لاس نه مال وځی۔ او په عرف کښ د خپل لاس نه د مال ویستل دی که په خیر کښ وی او که په شر کښ۔ او په اصطلاح د شریعت کښ د الله د تعالیٰ د رضا او د رسول الله ﷺ د حکم مطابق په شرعی مصارفو کښ مال خرچ کولو ته وائی برابره ده که فرض او واجب وی او که مستحب وی او دلته همدا شرعی معنیٰ مراد ده، او دا د زکوٰة پورے خاص نهٔ دے، اګرکه زکوٰة هم پکښ داخل دے۔

## په (وممارزقناهم) جمله کښ فوائد :

## د اسراف او انفاق فرق

۱ – کوم مال چه د بنده د لاس نه اُوځی که په خیر کښ استعمال شی دیته انفاق وائی او که په شر کښ استعمال شی دیته اسراف وائی او کله په شر کښ استعمال شده مال ته هم انفاق وائی لکه سورة الانفال (۳٦) کښ اُوګوره۔ ۲ – انفاق دیته وائی (ما کان لله) چه د الله تعالیٰ دپاره وی او دین دپاره استعمال شی او اسراف دیته وائی (مَا کَانَ لِغَيْرِ اللّٰهِ – یَا مَا کَانَ عَلٰی خِلَافِ دِيْنِ اللّٰهِ) (چه د غیر الله دپاره اُولګیږی یا د الله تعالی د دین په خلاف اُولګیږی)

اګر که لږې پیسې وي، لکه سګرټ، نسوار واخلي، د ګیرې په خرڅیلو پیسې ورکړي، ټي وي، وي سي آر، کیبل باندې پیسې ورکړي.

## د انفاق شکلونه او صورتونه

دلته د مال خرچ کولو چه څومره واجب او مستحب صورتونه کیدې شي ټول مراد دي. او دا ټول انفاق دې. چه هغه شپږ صورتونه دي: ۱- زکوٰة. ۲- عشر. ۳- په خپل اهل وعیال او کور والو خرچ کول، نبي ﷺ فرمائي: (أَفْضَلُ الصَّدَقَةِ مَا تَرَكَ غِنًى وَالْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِنَ الْيَدِ السُّفْلَى وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُولُ) (بخاری و مسلم) بهترین انفاق دغه دې چه په ښځه او بچو ئې اُوکړي چه کله هغه وږي وي، ددې دا مطلب نهٔ دې چه څومره مال راوړې نو فقط هغوي له به ئې ورکوې. مطلب ئې دا دې چه اول د هغوي حق دې په کور والو باندې په نفقه کښې بخل نهٔ وي پکار، څیني خلق په کور کښې پیسې ورکوي بیا په هغې خفه وي او دې ته تاوان وائي. نهٔ! دې کښې هم اجر دې، نبي ﷺ فرمائي:

(حَتَّى مَا تَجْعَلُ فِيْ فِي امْرَأَتِكَ) (بخاری و مسلم) (کوم رزق چه ته د ښځې په خوله کښې اچوې هغه هم ستا دپاره صدقه ده او ستا دپاره پرې اجر لیکلے شي).

۴- څلورم مصداق: میلمه له میلمستوب ورکول دي، د هغه د اکرام دپاره څه شے ذبح کړې او یا ښه ترکاري پخه کړې، نو دا ستا انفاق شو. ۵- پنځم: سائل ته ورکول.

۶- دا هم دې چه یو سړې سوال نهٔ کوي خو تا ته د هغه احتیاج معلوم دې او ستا په ګاونډ کښې یا خپلوانو او نژدې خلکو کښې دې او تا سره مال شته نو هغوي له به ئې ورکوې لکه رسول الله ﷺ فرمائي: (لَيْسَ الْمُؤْمِنُ الَّذِيْ يَشْبَعُ وَجَارُهُ جَائِعٌ إِلَى جَنْبِهِ)

(شعب الایمان، وابو یعلی بسند حسن- الصحیحة : ۱۹۹٤)

(هغه سړې مؤمن نهٔ دې چه ځان مړوي او ګاونډې ئې خوا کښې وږې دې).

دا غوره انفاقونه دي، روستو سوره آل عمران (۱۸۰) آیت کښې به راشي چه دا شپږ انفاقونه لازم انفاقونه دي که څوك دا نهٔ کوي نو بخیلانو کښې به حسابیږي. او ددې نه ماسوئ نور انفاقونه استحباب درجه کښې دي لکه مال مصرفول په دوستانو، مسکینانو او یتیمانو باندې، او په هر طاعت کښې لګول. دا بیا نفلي انفاقونه دي چه په هغې کښې ډیر زیات اجر او ثواب دې.

○ - د بنده نه به الله تعالیٰ د مال په باره کښې تپوس اُوکړی : (اَرِنِیْ مَا قَدَّمْتَ) (ترمذی) راوښایه چه تا مخکښې څه لیږلی دی ؟ ددے وجے نه اصحاب الاموال نه به الله تعالیٰ د قیامت په ورځ تپوس کوی او دوی سره به پدے مالونو حساب کوی چه کوم ځائے نه ډیے گټلی وو او کوم ځائے کښې ډیے لگولی وو، دا خو څه تهوقے نهٔ دی. بیا انفاق یواځے د مالدارو صفت نهٔ دیے بلکه هر مؤمن به انفاق کوی ځکه دا یوه شعبه ده د شعب الایمان نه.

او زکاتونه الله تعالیٰ په بخیلانو فرض کړیدی، هغه معمولی شے دے، اصل کښې د مؤمن صفت انفاق او مال لگول دی. رسول الله ﷺ به دومره انفاق کولو چه عربو به داسے انفاق لیدلے نهٔ وو، یو اعرابی راغے نبی ﷺ نه ئے څه شے اُوغوښتو، رسول الله ﷺ ورته اُووئیل : ددے دوه غرونو په مابین کښې چه څومره گډے دی، دا ټولے ستا شوے، هغه تعجب اُوکړو، او گډے ئے واخستے او خپل قوم ته ئے دعوت ورکړو : (یَا قَوْمِ اَسْلِمُوْا ! فَاِنَّ مُحَمَّدًا یُعْطِیْ عَطَاءً مَا یَخَافُ الْفَقْرَ) (مسلم) (الجمع بین الصحیحین) اے قومه ! ایمان راوړئ ځکه محمد (ﷺ) دومره مالونه ورکوی چه د فقر نه نهٔ ویریږی.

○ - بلال ته ئے فرمایلی وو : (اَنْفِقْ بِلَالُ ! وَلَا تَخْشَ مِنْ ذِی الْعَرْشِ اِقْلَالًا)

(مسند ابی یعلی وشعب الایمان باسناد جید. الصحیحة : ۲۶۶۱)

ای بلاله ! مال لگوه او د هغه الله نه چه مالك د عرش دے د کموالی نه مه ویریږه).

او انفاق د خلکو سره احسان دے، دا دلیل دے د انسان د زړه د نرمئ او د شفقت. نو په آیت کښې اشاره ده چه دا مال د الله تعالیٰ یو انعام دے، څوك ډیے دا گمان اُونکړی چه دا ما په خپل مټ سره حاصل کړیدے، ځکه د انعام تقاضا دا ده چه خپل رشته دار او ورونه به نهٔ هیروی کوم چه الله تعالیٰ ددے مال نه محروم کړیدی. (تیسیر)

## الفوائد :

پدے آیت کښې فوائد : ۱ - کلمه د (من) تبعیضیه کښې اشاره ده چه ټول مال به نهٔ ورکوی چه بیا پخپله سوال ته کینی، ابولبابه بن المنذر ﷺ او کعب بن مالك ﷺ ټول مال ورکاوه نبی ﷺ منع کړل چه ټول مال مهٔ خرچ کوئ صرف د سیدنا ابوبکر صدیق ﷺ په شان انسان ټول مال لگولے شی لکه چه امام بخاریؒ په خپل صحیح کښې وئیلی دی.

دارنگه الله تعالیٰ فرمائی : (لَعَلَّکُمْ تَتَفَکَّرُوْنَ فِی الدُّنْیَا وَالْآخِرَةِ) (البقرة : ۲۱۹)

د دنیا او آخرت دواړو فکر به کوي.

۲- **فائده** : کلمه د (ما) عامه ده، شامله ده مال، قوت بدني، علم، غلامان اولاد، دا ټول به په دین باندې خرچ کوي. (معالم التنزیل)

۳- (رزقنا) کښې الله تعالیٰ خپل ځان ته نسبت کولو نه معلومه شوه چه اې بنده ! دا مال اصل کښې د الله تعالیٰ دې، تاله ئې درکړې دې د امتحان دپاره او بیا بیرته ئې درنه غواړي او د هغې په مقابله کښې درله اجر درکوي لکه یو پلار چه خپل بچي له مالته یا کیله ورکړي او بیرته ورته وائي بچیه ! بیرته ئې ماله راکړه نو که بچې هوښیار وي، محبت والا وي، نو بیرته ئې پلار له ورکړي مګر پلار ئې بیرته ورکړي مقصد ئې صرف محبت د هغه ځان له راطلب کول وي، بیا پرې دپاسه انعام هم ورکړي. او کله چه هغه نا اهله او حرصناك وي، د پلار نه ئې منع کړي نو د پلار د نظر نه پریوځي چه دا خو ظاهر بین دې.

نو الله سبحانه وتعالیٰ مونږ له مال راکړیدې، بدن او علم ئې راکړې دې، دا په اصل کښې د الله تعالیٰ د طرف نه بنده ته ورکړې شویدې د امتحان دپاره، الله تعالیٰ ستا محبت ګوري چه ته د الله تعالیٰ د حکم څومره تابعدار ئې، د الله تعالیٰ دپاره د څومره لګولو والا ئې، که نهٔ وي نو الله تعالیٰ ستا دې مال ته هیڅ حاجت نهٔ لري، الله تعالیٰ ئې هغه فقیر له خپله ورکولې شي ستا نه ورله ډیره ورکولې شي، لیکن الله تعالیٰ ستا سره د احسان اراده ده اې بنده ! چه دا کار اُوکړه نو الله تعالیٰ به تا له ددې نه غټ او بهترین عوض درله درکړي.

قتاده رحمه الله فرمائي : (فَأَنْفِقُوْا مِمَّا أَعْطَاكُمُ اللّٰهُ، هٰذِهِ الْأَمْوَالُ عَوَارِي وَوَدَائِعُ عِنْدَكَ، يَا ابْنَ آدَمَ، يُوْشِكُ أَنْ تُفَارِقَهَا) (ابن کثیر، النکت والعیون) (نو بس خرچ کړئ د هغه مالونو نه چا تاسو له الله تعالیٰ درکړیدي، اې د آدم ځویه ! دا مالونهٔ ستا سره سوالي شې او امانتونه دي، نزدې ده چه ته به ترې جدا شې) او بیا به فائده نشي درکولې نو په ژوند کښې ترې فائده واخله او په طاعت کښې ئې اُولګوه.

٤- يُنْفِقُوْنَ نه معلومه شوه چه انفاق د ایمان شعبه (څانګه) ده، دا د هرچا دپاره ضروري دې، د ډیرو خلقو ذهن داسې دې چه دا انفاق صرف د مالدارو او کروړ پتیانو کار دې، یا چا له چه الله تعالیٰ ډیرې پیسې، مال دولت ورکړې وي، یا د امیانو کار دې، یا د دوکاندارانو کار دې، او د ملایانو کار نهٔ دې، یا دا د سړي کار دې او د زنانه او طالبانو کار نهٔ دې. نهٔ ! بلکه دا د هر مؤمن صفت دې. چه د خپل وسع مطابق انفاق به کوي.

نبی ﷺ نه تپوس اُوشو کومه صدقه افضله ده ؟ هغه اُوفرمایل : (قَالَ :جُهْدُ الْمُقِلِّ) (ابوداود۲/ ۱۲۹) وابن حبان والحاکم) «بهترینه صدقه د غریب سړی د کوشش مطابق صدقه ده» یوه روپۍ د غریب د سلو روپو د مالدار نه مخکښې ده۔

○ اسماء بنت ابی بکر او عائشے صدیقے (رضی الله عنهما) ته نبی ﷺ فرمایلی وو چه (اِرْضِخِيْ مَا اسْتَطَعْتِ وَلَا تُوْعِيْ فَيُوْعِيَ اللّٰهُ عَلَيْكِ) (لږ لږ ورکوه څومره چه دِیے وسع کیږی، په لوښی کښې ئے مهٔ جمع کوه نو الله تعالیٰ به درله لږ لږ درکوی) ۔(بخاری ومسلم)

○ صحابه کرامو ته به چه د انفاق امر اُوشو نو هغوی به په قرآن عمل کولو، یوه روپۍ به ورسره نهٔ وه، اصحاب الصفه ؤ سره یوه روپۍ هم نهٔ وه، نو هغوی به د وږځے د غرهٔ نه لرګی راوړل، او په بازار کښې به ئے خرڅ کړل نو لږه خرچه به ئے په ځان اُوکړه او څه به ئے صدقه کړه، دیے دپاره چه په قرآن کریم عمل راشی۔

○ کله کله مزدوری، تجارت په دیے نیت کول پکار دی چه زه مال د الله تعالیٰ په لار کښې اُولګوم، ایمان مے جوړ شی، څومره چه سړیے انفاق کوی دومره به ئے ایمان کښې کمال راځی۔ او مؤمن سړیے چه هرڅه د لاس نه اُوباسی نو دهٔ ته په کښې اجر ملاویږی مګر صرف هغهٔ مال چه په خټه او آبادو کښې ئے (بے ضرورته) اُولګوی۔

او د انفاق ډیریے فائدیے دی خپل ځائے کښې به راشی، ان شاء الله تعالیٰ۔

## د رزق معنے

رزق لفظ قرآن کریم کښې دوه دریے معانو باندیے استعمال شویے دیے (۱) اول خوراک ته وائی لکه ﴿ فَأَخْرَجَ بِهٖ مِنَ الثَّمَرَاتِ رِزْقًا لَّكُمْ ﴾ (البقرة : ۲۳) رزق دلته په معنیٰ د مرزوق دیے یعنی خوړلے شویے طعام۔ ۲- دویم : رزق برخے ته وائی۔لکه ﴿ وَتَجْعَلُوْنَ رِزْقَكُمْ اَنَّكُمْ تُكَذِّبُوْنَ ﴾ سورة الواقعة (۸۲) رِزْقَكُمْ اَیْ نَصِيْبَكُمْ (حصه او برخه) ۔

۳- رزق باران ته هم وئیلے شویدیے۔ لکه﴿ وَمَا اَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ رِّزْقٍ﴾ سورة الجاثية (۳،٤) او ﴿ وَفِی السَّمَآءِ رِزْقُكُمْ﴾ سورة الذاريات:۲۲)

٤- څلورمه معنیٰ ئے ده : اعطاء (ورکول) لکه دلته ئے دا معنیٰ ده : رُزِقْنَا بمعنی اُعْطِیْنَا ۔ د خوراک معنیٰ ئے نهٔ ده ځکه چه یو شے تا لره درکړے شو او تا اُوخوړلو نو چا له به څه ورکړے ؟۔

**فائده:** مما رزقنا هم ئے په ینفقون باندیے مقدم کړو د وجه د اهتمام ددیے نه چه دا رزق د

الله تعالیٰ د طرف نه دے۔ (۲) دویم پدے وجه چه د آیت فاصله برابره شی۔
(۲) بیا رزقنا کښې حلال مال ته اشاره ده۔
(۳) د رزق اطلاق په علم هم کیږی۔ لکه حدیث کښې دی: (مَثَلُ الَّذِیْ یَتَعَلَّمُ الْعِلْمَ ثُمَّ لَا یُحَدِّثُ بِهٖ کَمَثَلِ کَنْزٍ لَا یُنْفَقُ مِنْهُ) رواه الطبرانی فی الاوسط (۱/۲۱۲)۔
نور صفتونه الله تعالیٰ ددے مومنانو راوړی:

وَالَّذِیْنَ یُؤْمِنُوْنَ بِمَا اُنْزِلَ اِلَیْكَ وَمَا اُنْزِلَ

(دا متقیان) هغه خلك دی چه ایمان لری په هغه څه چه نازل کړے شویدی تا ته او په هغه څه چه نازل کړے شویدی

مِنْ قَبْلِكَ وَبِالْاٰخِرَةِ هُمْ یُوْقِنُوْنَ ﴿۴﴾

مخکښې ستا نه او په آخرت باندے دوی یقین کوی۔

**تفسیر:**

(وَالَّذِیْنَ یُؤْمِنُوْنَ) دیکښې د مفسرینو دوه ترکیبه دی: (۱) والذین بدل دے د مخکنی والذین نه او دا عطف الصفة علی الصفة هم دے او واو د جمع دپاره دے یعنی (یَجْمَعُوْنَ الْاِیْمَانَ بِالْکُتُبِ مَعَ الْاِیْمَانِ بِالْغَیْبِ) (یعنی دا متقیان هغه کسان دی چه ایمان په کتب منزله ؤ راوړی سره د ایمان بالغیب نه) او دا ظاهر تفسیر دے چه دا ټول صفات د متقیانو دی۔ ځکه دا د سیاق تقاضا ده او بل دا چه د ایمانیات جمع کول شرعاً لازم دی۔
(۲) قول: دا دے چه تردے ځائے پورے ددے اُمت د مؤمنانو صفات وو، او وَالَّذِیْنَ یُؤْمِنُوْنَ بِمَا اُنْزِلَ اِلَیْكَ) نه مراد یهود دی، یعنی یهودیانو کښې چه کوم مؤمنان دی هغه مراد دی او هغه بیا پدے امت کښې روسته داخل شوی دی۔
نو والذین دا جدا مبتدا ده، دهغوی کار دا دے چه دا قرآن کریم به منی او پخوانی کتابونه به منی، ځکه دغه یهودیانو مخکښې دا قرآن کریم نهٔ منلو، خو ظاهر دا ده چه مخکنی معنی واضحه ده او دا صورت په هغے کښې ورداخلیږی چه د اهل کتابونه یو کس ایمان راوړو نو هغه به هم تقویٰ اختیاروی، ایمان بالغیب به اختیاروی، مونځ به کوی انفاق به کوی قرآن او حدیث به منی پخوانی کتابونه به منی، هله به مؤمن کیږی، او زمونږ ددے اُمت نه که یو

سړے مؤمن کیږی، هم دا کارونه به کوی نو ددے جدا کولو ته حاجت نشته۔
**يُؤْمِنُوْنَ** : ایمان ئے دوباره ذکر کړو او داسے ئے اُونه وئیل (وَبِمَا اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ) یعنی عطف ئے نهٔ کړو او د مخکنی یؤمنون لاندے ئے داخل نکړو، دا ئے تاکیداً راوړو، او اشاره ده چه ایمان بالقرآن دا مستقل ضروری شے دے لکه په الله تعالیٰ باندے ایمان راوړل ځانله ضروری دی نو د الله تعالیٰ کتاب (قرآن کریم) منل ځانله ضروری دی ځکه اهل کتابو الله تعالیٰ، قیامت او بعض انبیاء علیهم السلام منل، خو قرآن حکیم ئے نهٔ منو نو الله تعالیٰ فرمائی چه په قرآن حکیم به خصوصاً ایمان راوړی۔ بله وجه دا ده چه ددے سورت کښ موضوع د ایمان بالقرآن ده نو ځکه د موضوع موافق الفاظ استعمالیږی۔
**شان نزول** : او قرطبیؒ وغیره ذکر کړیدی چه کله دا مخکښ آیت نازل شو نو یهود او نصاراؤ اُووئیل چه مونږ هم غیب منو او د مونځ پابندی کوو او انفاق کوو نو ددے صفتونو کښ مونږ داخل یو نو دا آیت وروسے نازل شو د هغوی د رد کولو دپاره ځکه چه هغوی ټول نازل شوی کتابونه او ټولو انبیاء علیهم السلام باندے ایمان نهٔ لری لکه په ددے سورت (۹۱) آیت کښ دی۔ او د آخرت په باره کښ د هغوی شرعی ایمان نشته لکه په ددے سورت (۸۰) او (۱۱۱) کښ دی او ددے وجه نه ئے دا آیت مستقل ذکر کړو۔نو پدے کښ تعریض اُوشو په یهودیانو چه آخری نبی ﷺ به خصوصی منئ نو هله به ایمان کښ داخلیږئ ځکه چه دا اولنے سورت دے چه په مدینه کښ نازل شویدے، نو د یهودیانو د اصلاح دپاره ئے په آخری نبی باندے ایمان خصوصی ذکر کړو۔

## والذین یؤمنون بما انزل الیك کی فوائد :

۱- په ما انزل کښ عموم دے، قرآن او سنت دواړو ته اشاره ده، لکه آیت دے (وَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ) (النساء : ۱۱۳) (یعنی الله تعالیٰ په تا قرآن او سنت نازل کړیدی)۔
دواړه نازل شده وحی ده ـ او کوم احادیث چه نبی ﷺ پخپله وئیلی دی نو هغه هم داسے دی لکه د الله تعالیٰ د طرفه چه راغلی وی ځکه د الله تعالیٰ د حکم مطابق دی۔
او د عامو مسلمانانو دا عقیده ده چه څوك قرآن او حدیث نهٔ منی هغهٔ کافر دے، منکرین حدیث اولنئ پوړئ د دهریت او کمیونستئ ده، کله به یو حدیث نهٔ منی او کله بل، اول ټولو حدیثونو کښ شك پیدا کړی او انکار ترے اُوکړی نو بیا قرآن کښ دځان نه تفسیرونه

کوی، د ټول اُمت خلاف کوی۔ مونږ وایو چه څوك حدیث نهٔ منی او په هغے کښې شکونه کوی نو مونځ به په کومه طریقه کوی، د رکعاتو تعداد او د اَوقاتو تفصیلی بیان به د کوم ځائے نه راوړی خپله طبع به استعمالوی، لکه ددے خلقو همدا طریقه ده۔ او ددے نه روستو بیا د قرآن نه هم منکر شی۔

۲- د (انزل) نه معلومه شوه چه قرآن کریم مُنزل دے د بره نه، نو دا دلیل شو د الله تعالیٰ په فوقیت باندے چه الله سبحانه وتعالیٰ په اعتبار د ذات سره د ټولو کائناتو نه بَره دے۔

او حافظ ابن قیمؒ په (قصیده نونیه) کښې فرمائی: دا دلیل دے چه دا قرآن د الله تعالیٰ کلام دے۔ او پدے باندے الله تعالیٰ تلفظ کړیدے، باطل پرست خلق وائی : قرآن کریم الله تعالیٰ پیدا کړیدے (مخلوق دے) لکه چه معتزله وائی۔ او بعض وائی : الله تعالیٰ پرے تلفظ نهٔ دے کړے، لکه چه ماتریدیه او اشاعره وائی۔ دا ټولے غلطے عقیدی دی۔ د دیوبندی او حنفی د عقائدو په کتابونو کښې دی، چه قرآن کریم جبریل جوړ کړیدے یا نبی ﷺ جوړ کړیدے یا په لوح محفوظ کښې الله تعالیٰ پیدا کړیدے، یا په یو کاڼړی کښې الله تعالیٰ پیدا کړیدے، او بیا جبرئیل علیه السلام له الله تعالیٰ طاقت ورکړو نو هغه د کاڼړی نه رااُویستو او نبی ﷺ ته ئے راوړو۔ دا ټول وهمیات او خیالات دی۔ (إِنْ يَتَّبِعُوْنَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُوْنَ) اُوګوره حاشیه د اصول الشاشی دارنګه شرح العقائد او شرح المواقف۔

## د وحدة الوجود د عقیدے متعلق

۳- دارنګه پدے کښې رد دے په وحدة الوجود والو باندے۔ وحدة الوجود د صوفیانو یوه عقیده ده چه دا په اصل کښې اول ابن عربی صوفی جوړه کړے وه۔ وحدة الوجود معنیٰ دا چه الله تعالیٰ او مخلوق یو شے دے (والعیاذ بالله)

او دا د رب العالمین ډیره سخته بی ادبی ده، دا غر او آسمان، زمکه، انسان دا ټول الله تعالیٰ دی، دا د الله حصه او اجزاء دی۔ (عیاذاً بالله)

امداد الله مکی صاحب په (کلیات امدادیه) کښې لیکلی دی چه دا وحدت الوجود زما عقیده ده او شیخ ابن عربی اول پدے کلام کړیدے او دا صحیح عقیده ده۔

قارئین کرام ! هغه کتاب تاسو پخپله کتلے شئ، بازار کښې خرڅیږی او په هغے کښې ئے دا لیکلی دی چه د الله تعالیٰ داسے مثال دے لکه د دریاب او مونږه د هغے څاڅکی یو لکه د

دریاب نـه څاڅکی راواخله نو ته یو څاڅکے ئے او باقی دریاب الله تعالیٰ دے (عیاذاً بالله)۔ او دا عـقـیـده د بـلـے غـلـطے عـقـیـدے نـه پـیـدا شویده چه دے خلقو الله تعالیٰ په هر ځائے کښې ګنړلو۔ خـو ددے اصلـی وجه ما ته دا ښکاره کیږی چه ددے خلکو کتاب او سنت طرفته رجـوع نـهٔ وه، د ابـن عـربـی نـه متـأثره وو، د تصوف د کتابونو (فتوحات مکیه، فصوص الـحـکـم) نـه متاثره وو، او قرآن او سنت ته ئے نهٔ کتل، او قرآن او سنت نه چه څوك اعراض اُوکړی او د قـرآن او حدِیث نـه غیر په بل ځائے کښې هدایت ګوری، نو ضرور ګمراه کیږی، هغوی په فصوص الحکم او فتوحات مکیه کښې هدایت کتلو پدے وجه ګمراه شو۔

د (اُنـزِل) نه په وحدة الـوجـود رد پـدے طریقه دے چه یو مُنَزِّل دے یو مُنَزَّل دے او یو مُنزَل الیـه دے، مُنزِل، الله تعالیٰ دے، مُنزَّل قـرآن دے، او منزل الیه نبی ﷺ دے، دا هـر یو به جدا جدا ګنړے، یو شے به ئے نهٔ ګنړے۔

(الیک) : دا دلیـل دے پـه ختـم النبوـة، ځکه هغه څه به منے چه رسول الله ﷺ ته نازل شوی دی، د هـغـه نـه روستو بل نبی هم نشته، بل آسمانی کتاب هم نشته، که د هغه نه روستـه بـل نبی (د نبوت په صفت) راتلے الله تعالیٰ به داسے هم وئیلی وے چه (وَمَا اُنْزِلَ مِنۢ بَعْدِكَ) ۔نو دا دلیل دے په ختم نبوت۔ او هرچه د عیسیٰ ﷺ راتلل دی نو هغه د نبوت په صفت نهٔ راځی بلکه د دین محمدی د مُبلِغ په صفت به راځی۔

(مِنۢ قَبْلِكَ) : په مخکنو کتابونو باندے د ایمان مطلب دا دے چه اجمالاً ایمان به راوړی او داسے بـه وائے چه دا کتابونه د الله تعالیٰ د طرف نه نازل شوی وو، او که چا پرے خپل وخت کښې ایـمـان راوړے وو، او عـمـل ئے پرے کړے وو نو هغهٔ کامیاب دی۔ ۲ – یا ایمان نه مراد په هغه حکمونو ایمان راوړل دی چه هغه په قرآن کریم یا احادیثو سره نهٔ دی منسوخ شوی۔ لیکن کوم چه منسوخ دی نو په هغے اجمالی ایمان دے او پدے عملی ایمان دے۔

او ددے نه معلومه شوه چه د اهل السنة والجماعة (مسلمانانو) عدل او انصاف دا دے چه د هرے ډلے سره چه حق وی، هغه منی او باطل ئے نهٔ منی، د باطل پرستو طریقه دا ده چه دومره ضدیان وی چه د حق پرستو د حق نه هم انکار شروع کړی۔

**فائده** : مـنـزل کتابونه یو سل څلور (۱۰٤) دی په شیث ﷺ باندے شپیته صحیفے نازل شویدی، او په ابراهیم ﷺ دیرش او په موسیٰ ﷺ د تورات نه مخکښې لس صحیفے نـازل شـویدی نو دا ټول سل شوے او تورات، انجیل، زبور او قرآن څلور ورسره جمع کړه۔

(السراج المنیر، وشعب الایمان)

﴿ وَبِالآخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ ﴾ ددے ځائے نه د مؤمنانو بل صفت بیانوی چه دوی په آخرت باندے یقین لری او دا صفت ئے روستو ذکر کړو ځکه چه دا عقیده باعث ده پدے اعمالو. یعنی دوی په آخرت باندے یقین لری، د آخرت د عذابونو نه ویریږی ځکه په ځان کښ تقویٰ پیدا کوی، د ایمان کوشش کوی، د مانځه او انفاق او د خپلے نظریئے اوعقیدے اصلاح کوی، نو دا هغه خلك دی چه ددوی تصور هم برابر دے او عمل ئے هم برابر دے، تصور ئے جوړ دے (یؤمنون بالغیب) او عمل ئے هم تیك دے چه دغه عملونه کوی، او قرآن کریم هم پدے دوه خبرو ډیر زور ورکوی چه د مؤمن بنده علم، تصور، عقیده او نظریه برابره شي او عقیده او نظریه ئے غلطه جوړه نهٔ شي او ذهن ئے غلط جوړ نهٔ شي لکه د بعضے خلکو غلط ذهنونه جوړ شوی وی.

او د تصحیح الاعمال (د عملونو د جوړوالی) کوشش هم کوی نو همداسے کسان د قرآن اهل دی، چه د الله تعالیٰ او د هغه د رسول په باره کښ ئے عقیده هم سَمه وی او د هغوی د بدن نه بنانسته عملونه راوځی. بس دا کامیاب خلك دی نو ددے شپږو صفتونو نتیجه الله بیانوی اولئك علی هدی.

## توضیح الکلمات وفوائدها :

الآخرة : دا د قیامت د نومونو نه یو نوم دے، قرآن کښ د قیامت (۳۲) نومونه دی، یو پکښ دا نوم دے (الآخرة او الآخر) . دا صفت د ورځے دے نو اصل کښ (وبالیوم الآخرة) دے، پدے کښ تاء د تانیث دپاره نهٔ ده نو ځکه صفت د یوم هم جوړیدے شي. دارنګه صفت د (الدار الآخرة) هم کیدلے شي.

## په آخرت باندے مونږ ولے یقین لرو؟

دوه قسمه دلائل دی یو دلائل سمعیه (چه الله وئیلی دی، دارنګه انبیاء علیهم السلام او پخوانو عقلاؤ، صالحینو خلکو دا وئیلی دی چه آخرت به راځی نو مونږ ئے منو).

د ډیرو خلکو عقیده دا ده چه ورځ د قیامت صرف په نقلی دلیلونو ثابته ده چه قرآن کریم وئیلی دی، انبیاء علیهم السلام وئیلی دی نو ځکه ئے مونږ منو او د انبیاء علیهم السلام او الله تعالیٰ صدق مونږ ته په دلائلو معلوم دے. او عقلاً څه دلیل نشته د قیامت په راتلو.

لیکن د آخرت د ثبوت دپاره دلائل عقلیه هم شته دی، د عقل تقاضا هم دا ده چه قیامت به راځی لکه قرآن کریم کښې به الله تعالیٰ د اثبات د آخرت دپاره ډیر دلائل عقلیه پیش کوی، لکه بعضې د هغې نه به سوره ق کښې راشي چه اثبات د آخرت په عقلي امورو سره هم کیږی، د عقل تقاضا هم دا ده چه ورځ د آخرت ډې راشي، د فطرت تقاضا هم دا ده چه دنیا کښې نیکان بندګان او بدان دواړه لګیا دی، کار کوی، ددې دواړو دپاره یوه ورځ پکار ده، چه په هغې کښې د دوی فرق او تفرقه اُوشي. ﴿اَمۡ نَجۡعَلُ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ كَالۡمُفۡسِدِيۡنَ فِى الۡاَرۡضِ﴾ (ص: ۲۸) ﴿اَمۡ حَسِبَ الَّذِيۡنَ اجۡتَرَحُوا السَّيِّاٰتِ اَنۡ نَّجۡعَلَهُمۡ كَالَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَوَآءً مَّحۡيَاهُمۡ وَمَمَاتُهُمۡ سَآءَ مَا يَحۡكُمُوۡنَ﴾ (الجاثية: ۲۱)
﴿اَفَنَجۡعَلُ الۡمُسۡلِمِيۡنَ كَالۡمُجۡرِمِيۡنَ مَا لَكُمۡ كَيۡفَ تَحۡكُمُوۡنَ﴾ (القلم: ۳۵)

او د الله تعالیٰ د قانون تقاضا هم دا ده چه الله تعالیٰ به ضرور فرق کوی په مابین د متناقضینو کښې لکه څرنګه چه الله تعالیٰ فرق نهٔ کوی په مابین د متماثلینو کښې.

## د قیامت په ثبوت قرآنی عقلی دلائل

دارنګه د اثبات د آخرت دپاره به پدې سورت کښې نور ډیر دلائل ذکر کیږی (۱) لکه د مړو په راژوندی کولو باندې قیاس کول، (۲) د رَحِمْ نه راوتل، (۳) او د بوټو په زمکه کښې راز غونیدل. (٤) او آسمانونه او زمکې پیدا کول. (۵) د شنې ونې نه اُور راویستل.

(۵) د الله تعالیٰ قدرت کامله او علم تام هم دلیل دې.

(٦) دارنګه د هر شي جوړه شته (وَمِنۡ كُلِّ شَيۡءٍ خَلَقۡنَا زَوۡجَيۡنِ لَعَلَّكُمۡ تَذَكَّرُوۡنَ) (الذاريات: ٤٩). نو د دنیا جوړه هم پکار ده چه هغه آخرت دې. (۷) دارنګه که آخرت څوك نهٔ منی نو بیا فرق نهٔ رازی د ایمان او د کفر، نیکی بدی، زنا نکاح، او ښه اخلاق او بد اخلاقو ترمینځ.

(۸) دارنګه د قیامت راتګ د الله تعالیٰ د اسماءِ حسنی تقاضا ده (وَهُوَ اَحۡكَمُ الۡحٰكِمِيۡنَ) وَهُوَ الۡمُعۡطِيُ وَالشَّكُوۡرُ وَذُو انۡتِقَامٍ دې.

(۹) دارنګه قیامت چه څوك نهٔ منی نو بیا الله تعالیٰ ته نسبت د عبث رازی. (وَمَا خَلَقۡنَا السَّمَآءَ وَالۡاَرۡضَ وَمَا بَيۡنَهُمَا لٰعِبِيۡنَ) (الانبياء: ١٦).

(۱۰) دارنګه د الله تعالیٰ رحمت ډیر فراخه دې او دنیا وړه ده نو آخرت به ضرور رازی دې

دپاره چه د الله تعالیٰ د فراخه رحمت نه بندګان پوره فائده واخلی لکه پدے آیت کښې راغلی دی۔ (وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَلِقَائِهٖ اُولٰٓئِكَ يَئِسُوْا مِنْ رَّحْمَتِيْ) (العنكبوت :۲۳)۔

(۱۱) دارنګه الله تعالیٰ د ډیر حمد او ابدی حمد مستحق دے او دا په دنیا کښې ممکن نهٔ دے۔ نو ضرور به آخرت راولی چه د الله تعالیٰ پوره حمدونه اُووئیلے شی۔

(۱۲) دارنګه ابتداء د پیدائش د قیامت نښه ده۔ (وَهُوَ الَّذِيْ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ وَهُوَ اَهْوَنُ عَلَيْهِ) (الروم :۲۷) (اَللّٰهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ) (الروم : ۱۱) ۔

(۱۳) دارنګه دِ اقوام مکذبو هلاکت دلیل د حقانیت د قیامت دے۔ (اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّمَنْ خَافَ عَذَابَ الْاٰخِرَةِ) (هود :۱۰۳) (اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَذِكْرٰى لِمَنْ كَانَ لَهٗ قَلْبٌ) (ق :۳۷) او د سورة الحاقه په ابتداء کښې دغه خبره شته۔ نور دلائل هم شته۔

## د قرامطو مذهب :

د بعضِ قرامطهٔ، باطنیهٔ مذهب دا دے چه د دنیا خوشحالیٔ او خفګان ته جنت جهنم وائی او یا د فلاسفهٔ او علم هیئت والو مذهب دا دے چه په آسمان کښې تغیر نهٔ پیدا کیږی (لَا يَقْبَلُ الْخَرْقَ وَالْاِلْتِئَامَ) (هداية الحكمة) (آسمان خرق او التئام (ماتیدل او جوړیدل) نهٔ قبلوی) ځکه چه دا حرکت مستقیم نهٔ قبلوی بلکه دا حرکت مستدیر کوی (ګرد تاویږی) لکه د ژرندے په شان نو داسو چه دروغ دی، خالق وائی زه به ئے ماتوم ﴿اِذَا السَّمَآءُ انْفَطَرَتْ﴾ (انفطار) (اِذَا السَّمَآءُ انْشَقَّتْ) (انشقاق) (يَوْمَ تَمُوْرُ السَّمَآءُ مَوْرًا) (الطور) (يَوْمَ تَكُوْنُ السَّمَآءُ كَالْمُهْلِ﴾ (معارج) (فَاِذَا انْشَقَّتِ السَّمَآءُ فَكَانَتْ وَرْدَةً كَالدِّهَانِ) (الرحمن) الله تعالیٰ فرمائی : چه هر قسم حرکت به ورله ورکړم او دوی وائی چه نهٔ ئے قبلوی، (کوم الله تعالیٰ چه ورله حرکت مستدیر ورکړیدے نو هغه ذات به ورله حرکت مستقیم ورکړی نو قیامت به راشی، خو دوی د الله تعالیٰ قدرت نهٔ منی)۔

نو دا عقیده باطله ده او زمونږ د دیوبندی او حنفی او بریلوی ډلو په مدارسو کښې دا عقیدے وئیلے کیږی، استاذ دا کتاب وائی او رد هم پرے نهٔ کوی، بلکه تائید ئے کوی، که پدے متن اعتراض اوشی نو میبذی والا ترے جوابونه شروع کړی چه دا متن صحیح دے او اعتراض د معترض غلط دے، نو ځان پدے خبره کافر کړی او په ځان نهٔ پو هیږی، هدایت الحکمت د میبذی متن کښې (۱۸) عقیدے د کفر دی او استاذان ئے وائی او رد پرے

نهٔ کوی، په غیر شعوری طور سره ځان کندې ته گوزار کړی۔
الآخره : د اهل الزیغ طریقه دا ده چه یوه غلطه عقیده جوړه کړی او بیا د قرآن کریم نه د هغې دپاره دلیل نیسی او غلط تحریف کوی، لکه قادیانیان وائی، (الآخرة) صفت د نبوت او رسالت دې، یعنی په آخری نبوت به یقین لری چه هغه میرزا غلام احمد قادیانی دې چه د انګریزانو پیغمبر وو، هغوی رالیږلے وو، نو داسې قسمه تفسیرونه کول بدعت دې، هیڅ عالم په اُمت کښې ندې کړې، او بله دا چه دا د نورو آیتونو او احادیثو سره ټکراؤ شو۔ او داسې تفسیر کول چه د آیت او حدیث سره ئې ټکراؤ پیدا شی، جائز نهٔ دې۔ الله تعالیٰ فرمائی : (وَخَاتَمَ النَّبِيِّينَ) (الاحزاب : ۳۹) رسول ﷺ فرمائی :
(وَأَنَا خَاتَمُ النَّبِيِّينَ لَا نَبِيَّ بَعْدِيُ) (ابوداود المشکاة کتاب الفتن بسند صحیح)
(زهٔ آخری نبی یم، ما نه روستو هیڅ نبی نشته) او دا د ټولو مسلمانانو عقیده ده۔
**فائده** : یقین ډیره قوی مرتبه ده، پدې وجه ئې دا د آخرت دپاره بیان کړه، د ډیر تاکید د وجه نه ځکه څو مره چه د آخرت استحضار او ویره وی نو دومره به د بنده د عقیدې او د عمل اصلاح کیږی او څو مره چه په آخرت باندې ایمان او یقین کمزورې وی او د هغې استحضار کمزورې وی هغو مره به عمل کمزورې کیږی۔
لکه دا خبره د لقمان حکیمؒ نه نقل ده۔ فرمائی : اَلْعَمَلُ لَا يُسْتَطَاعُ اِلَّا بِالْيَقِيْنِ وَمَنْ يُّضْعُفُ يَقِيْنُهٗ يَضْعُفُ عَمَلُهٗ) فتح الباری لابن رجب (۱/۶)
(د عمل طاقت په یقین بناء دې د چا چه یقین ضعیف وی نو عمل ئې هم ضعیف وی)
ددې وجه نه د قرآن کریم د اصلاح طریقه دا ده چه هغه یوه مسئله بیانوی نو اول د آخرت نه بنده اُویروی چه داسې ورځ درباندې راځی چه اے بندګانو تاسو به په هغې کښې الله تعالیٰ ته پیش کیږئ ﴿ وَاتَّقُوْا يَوْمًا تُرْجَعُوْنَ فِيْهِ اِلَى اللّٰهِ ﴾ (البقره : ۲۸۱) نو کله چه د آخرت د ورځې نه خلق اُوویره وی نو بیا مسئله بیان کړی نو په بندګانو باندې اثر کیږی او دغه بیان ضائع نهٔ ځی۔ او څوك چه د آخرت د عذاب نه اُویریدو نو که هر ځائے کښې وی د هغه به اصلاح شوی وی۔ د یقین په وجه انسان ته عملونه آسانیږی۔
د عامو انسانانو اصلاح چه کیږی دا په ویره د آخرت باندې کیږی که یوه علاقه او ملك کښې ایمان بالآخرت نهٔ وی او خلك کوشش کوی چه ددې انسانانو اصلاح ډې اُوشی نو بالکل ممکن نهٔ ده، هسې هر څو مره چه قانون مضبوط مقرر کړے شی او توره هر چا له

لاس کښې ورکړے شی نو بیا هم پوره اصلاح نهٔ کیږی او کله چه په یو ملك کښې د آخرت ویره پیدا شی نو په کور کښې به بنده ناست وی او اصلاح به ئے شوی وی، شر به نهٔ کوی، د ګناه نه به ځان ساتی، نو الله رب العالمین چه دے عالَم له دا ترتیب ورکړیدے، دا بالکل د حکمت مطابق دے، که نهٔ وی، الله تعالیٰ داسے هم کولے شو چه سړی ګناه کولے، او دنیا کښې ئے ورله عذاب ورکولے، دنیا کښې ئے ورسره حساب کولے، خو کمال پدے ترتیب کښې دے نو یقین ډیره اُوچته درجه ده پدے وجه ئے د آخرت سره دا ذکر کړو۔

دا وجه ده عبد الله بن مسعود رضی الله عنه به فرمایل : (اَلصَّبْرُ نِصْفُ الْاِيْمَانِ وَالْيَقِيْنُ اَلْاِيْمَانُ كُلُّهٗ) (بخاری : ۱/۵) فتح الباری) (صبر نیمائی ایمان دے او یقین ټول ایمان دے)

## وضاحت د لفظ یقین :

یقین په لغت کښې سکون ته وئیلے شی۔ عرب وائی : (يَقَنَ الْمَآءُ) اَیْ اِذَا سَكَنَ (یعنی اُوبه په آرام اُودریدلے) نو یقین ته هم یقین ځکه وائی چه په ځائے ولاړ وی۔ تذبذب پکښې نهٔ وی۔ ۲- سید سندؒ وائی : اَلْعِلْمُ الَّذِیْ لَاشَكَّ فِيْهِ) (هغه علم ته وائی چه هیڅ شك پکښې نهٔ وی)۔ (روح المعانی)

او په اصطلاح کښې : (سُكُوْنُ الْفَهْمِ مَعَ ثَبَاتِ الْحُكْمِ وَزَوَالِ الشَّكِّ) (دا هغه علم ته وائی چه پوهه په هغے کښې په آرام وی او ورسره حکم او عقیده مضبوطه وی او شك پکښې نهٔ وی (حاصل معنیٰ د یقین دا ده چه د یو سړی په یو شی باندے علم راشی او بیا دا علم ئے په ځائے اُودریږی، شك پکښې نهٔ وی، متذبذب نهٔ وی چه دا خبره به داسے وی او که نهٔ ؟ بلکه عقیده ئے په ځائے ولاړه وی)۔ او یقین صفت د علم دے، د معرفة او درایة نه بره دے، او یقین د شك نه روستو حاصلیږی په دلائلو سره، ددے وجه نه دا د الله تعالیٰ دپاره نهٔ استعمالیږی او نهٔ په هغه علومو کښې استعمالیږی چه د هغے معلومیدل بدیهی او ضروری وی۔ او د اول نه پکښې شك نهٔ وی۔ (الخازن، السراج المنیر، مفردات القرآن للراغب)

۲- اَلْيَقِيْنُ مَا حَصَلَتْ بِهِ الثِّقَةُ وَثَلَجَ بِهِ الصَّدْرُ) (زاد المسیر ۱/۲۷)

(یقین هغه علم ته وائی چه په هغے سره اعتماد حاصل شی او سینه پرے یخه شی)

۳- منطقیانو ئے داسے تعریف کوی : (اِعْتِقَادٌ جَازِمٌ مُطَابِقٌ لِلْوَاقِعِ بِحَيْثُ لَايَزُوْلُ بِتَشْكِيْكِ الْمُشَكِّكِ) (اعتقاد جازم (پوخ) مطابق د واقع سره (یعنی په حق او په رشتیا سره) چه نهٔ

زائل کیږی په شك اچولو د شك اچونکو سره)۔

## د یقین درجات :

۱ – **عِلْمُ الْيَقِيْن** : چه په یو شی باندے یقین راشی په واسطه د علم سره۔ الله فرمائی : ﴿ كَلَّا لَوْ تَعْلَمُوْنَ عِلْمَ الْيَقِيْنِ﴾ ۔ ۲- **عَيْنُ الْيَقِيْن** : عین الیقین دیته وائی چه په سترگو ئے اُووینی۔ (دے ته یقینِ عَیَان هم وائی)۔ ۳- **درجه** : او حق الیقین دیته وائی چه دواړه راجمع شی لکه اول ډے په کعبه علم راغے بیا ډے اُولیده بیا نزدے ورغلے نو اول علم الیقین دے دویم عین الیقین دے او دریم حق الیقین دے۔ او دا درے واړه قرآن کریم کښ ذکر دی، د چا یقین په یوه درجه کښ وی د چا په بله درجه کښ وی، د بره درجے کوشش پکار دے۔

ددے وجه نه د انبیاء علیهم السلام طریقه دا ده چه د خپل یقین د زیاتوالی کوشش کوی لکه ابراهیم ﷺ او عزیر ﷺ د الله تعالیٰ نه طلب کریدے۔ لکه دے سورت کښ به روستو راشی (وَلٰكِنْ لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِىْ) (۲٦۰) (اَوْ كَالَّذِىْ مَرَّ عَلٰى قَرْيَةٍ) (۲۵۹)

عبد الله بن مسعود ﷺ به داسے وئیل : (اَللّٰهُمَّ زِدْنَا اِيْمَانًا وَيَقِيْنًا وَفِقْهًا) وَفِىْ رِوَايَةٍ (وَفَهْمًا) فتح الباری لابن حجر (۱/۴۸) وعمدة القاری ۱/۸۰۳ وسنده صحیح)

(اے الله ! زما ایمان او یقین او فهم او فقاهت په دین باندے زیات کړه)۔

## د یقین زده کولو طریقے

بیا انسان چه یقین زده کوی نو ددے ډیرے طریقے دی ۱ – (اَلتَّفَكُّرُ فِى الْكَائِنَاتِ) یو دا چه بنده دلائل عقلیه او د الله تعالیٰ په هر شی کښ حکمتونو ته سوچ اُوکړی۔

۲- بِمُجَالَسَةِ اَهْلِ الْيَقِيْنِ : خالد بن معدان-رحمه الله- نه نقل دی او دا په یو مرفوع حدیث کښ هم راغلی دی لیکن باسناد معضل۔ (تَعَلَّمُوا الْيَقِيْنَ بِمُجَالَسَةِ اَهْلِ الْيَقِيْنِ)

(تاسو یقین زده کړئ د یقین والو سره په کیناستو سره) ۔

(البحر المدید فی تفسیر القرآن المجید لاحمد بن محمد بن عجیبة الحسنی)

۳- بِمُوَاظَبَةِ الْعَمَلِ وَالْمُجَاهَدَةِ : (یقین په عملونو باندے همیش والے کول او په هغے کښ مجاهده کولو سره حاصلیږی)

او مرفوع حدیث کښ راغلی دی : (اَخْوَفُ مَا اَخَافُ عَلٰى اُمَّتِىْ ضُعْفُ الْيَقِيْنِ) (زۀ په امت

باندے د یقین د کمزورتیا نه ډیر ویریږم)

یو حدیث کښې راغلی دی : اګرچه سنداً ضعیف دے لیکن معنیٰ ئے د نورو روایاتو نه صحیح ثابته ده (تَعَلَّمُوا الْيَقِينَ فَإِنِّي لَا أَزَالُ أَتَعَلَّمُهُ) (ابو نعیم فی الحلیة ۹۵/٦) بسند منکر) یقین تاسو زده کړئ ځکه زه همیشه د یقین په زده کولو کښې لګیا یم) . او حدیث کښې دی : ابوبکر صدیق ﷺ د نبی ﷺ نه نقل کوی : (وَسَلُوا اللّٰهَ الْيَقِينَ وَالْمُعَافَاةَ فَإِنَّهُ لَمْ يُؤْتَ أَحَدٌ بَعْدَ الْيَقِينِ خَيْرًا مِنَ الْمُعَافَاةِ) (صحیح الجامع : ٤٠٧٢) مجموع الفتاوی (۳/۳۰۳)

(اے خلقو ! د الله تعالیٰ نه یقین او عافیت اوغواړئ ځکه چه د یقین نه روستو غوره شے د عافیت نه بل نشته)

او دے یقین ته چه بنده اورسیږی نو بیا د یقین سره لګ عمل کول ډیره فائده ورکوی. او د ایمان د کمزورئ یا د بے یقینئ او د شك سره که ډیر عمل اوکړی نو فائده نهٔ ورکوی، د انسانانو په مراتبو کښې فرق راوستونکے شے یقین دے، یو عمل به ډیر قسم خلق کوی لیکن د بعضو به پرے مرتبه اوچتیږی او د بعضو دپاره به هیڅ اثر نهٔ محسوس کیږی، ددے وجه د یقین ضعف او قوت دے. دابة الارض چه راشی نو هغه به هم دا خبره کوی چه انسانان د الله تعالیٰ په آیتونو یقین نهٔ کوی، او قرآن او حدیث هم په یقین پیدا کولو باندے ډیر زور ورکوی. نو د الله تعالیٰ په ذات او د هغه په دوه قسمه ملاقاتونو چه مرګ دے او بل قیامت کښې (العرض الاکبر) الله تعالیٰ ته پیشی ده، پدے باندے یقین کول فرض دی. نو ځکه ئے دلته ذکر کړو. مرګ خو ډیر نزدے راځی او العرض الاکبر هم نزدے دے خو دا خبره د سړی د ذهن نه زر زر اوځی نو بنده له پکار دی چه دا بار بار رایادوی.

○ یو مصیبت داسے وی چه سړے ترے په انکار خلاصیږی، بعض مصیبتونو نه انسان په تیښته خلاصیږی نو په انکار یا په تیښته یا په سستوالی سره د الله تعالیٰ د ملاقات نه یا د آخرت نه نشی خلاصیدے، نو هوښیارتیا دا وی چه داسے یو مصیبت راځی او یقیناً راځی نو د هغه دپاره تیارے اوکړے شی او ددے دپاره فکر کول د عقلاؤ طریقه ده.

**فائده** : د قرآن کریم طریقه ده چه ډیرو مقاماتو کښې د قرآن او د آخرت جمع کوی لکه (وَالَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ يُؤْمِنُونَ بِهِ) (انعام : ۹۲) دارنګه (وَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ جَعَلْنَا بَيْنَكَ وَبَيْنَ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ حِجَابًا مَسْتُورًا) (الاسراء : ٤٥) . سورة الواقعه، الحاقه، التکویر، القیامة کښې هم جمع بین القیامة والقرآن شویده پدے کښې حکمة دا دے چه دا دواړه

مُتَلَازِمَان (د یو بل سره لازم ملزوم) دی او هر یو بل ته فائده ورکوی۔ فتدبر۔ او دا نادره فائده ده رب تعالیٰ په خپل کتاب کښې پدے سره بار بار استدلال کوی لکه چه روستو راځی۔ **فائده** : پدے آیت کښې تعریض دے چه د دوی ایمان بالآخرة غلط دے۔

> أُولَٰئِكَ عَلَىٰ هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿٥﴾
>
> دغه کسان په هدایت دی د طرفه د رب د دوی نه او همدغه کسان هم دوی کامیاب دی۔

**تفسیر** : دا اُوس نتیجه ده د مخکنو صفاتو۔

(اولئك) دا جمله مستأنفه ده او جواب د سوال دے ګویا کښې اُووئیلے شو : (مَاذَا يَحْصُلُ لَهُمْ) (دوی ته به څه حاصلیږی ؟) (بدائع التفسیر) یعنی دا صفتونه چه چا کښې راغلل نو څه فائده به ورکړی ؟ نو الله تعالیٰ جواب کوی چه دلته دوه فائدے به اُوکړی : ۱- یو به هغه ته هدایت حاصل شی او دویم فلاح او کامیابی ده ۔ دا یو یو نعمت د دنیا او مافیها نه غوره دے، چه یو هدایت او بل فلاح او کامیابی درله الله درکړی، انجام او عاقبت درله ښه کړی نو ته به د الله تعالیٰ په مخلوقاتو کښې غوره مخلوق شے او د دنیا او آخرت فائدے دِے اُوګټلے او دا حاصلیږی په دغه مذکوره صفاتو باندے دا وو حاصل ددے آیتونو۔

(اُولئك) دا اشاره ده (اَلْمَوْصُوْفِيْنَ بِتِلْكَ الصِّفَاتِ السِّتِّ) ته (یعنی دغه شپږو صفاتو والا خلق)

(علیٰ) کلمه د علیٰ په عربی ژبه کښې د علو (اُوچت والی) دپاره استعمالیږی، که معنوی وی او که ظاهری۔ او علیٰ لفظ ئے راوړو اشاره ده چه دوی د هدایت دپاسه روان دی، ښکاره په هدایت دی، او دا اُوچته درجه ده، دا وجه ده چه (فی هدی) (په هدایت کښې دننه دی) ئے اُونهٔ وئیل۔ څکه د (فی) په معنیٰ کښې انغماس (ننوتل) وی نو دا وهم کیدو چه کیدے شی چه دوی نه به په طرفونو کښې هدایت پاتے وی، او دوی به په یوه حصه د هدایت کښې وی۔ فتدبر !۔

(هُدًی) : دا لفظ ئے دوباره راوړو حال دا چه په هُدًی لِلْمُتَّقِيْنَ کښې مذکور وو۔ ۱- دپاره د اهتمام د شان د هدایة۔ ۲- یا پدے سره رد دے په مدعی د هدایت باندے چه دغه کسان حقیقی هدایت والا دی او هسے مدعیان نهٔ دی۔ نو صاحب د تدبرِ قرآن چه دا وئیلی دی چه دلته د هدی نه مراد (نورِ بصیرت او صراط مستقیم دے، نو دا بعید شو۔

﴿مِنْ رَّبِّهِمْ﴾ پدے کلمه کښې فائده دا ده چه یو دعویٰ د هدایت ده او یو حقیقی هدایت دے،

هر څوك د هدايت دعوىٰ كوي، يهود او نصارىٰ وائي مونږ په هدايت يو. (كُونُوا هُودًا اَوْ نَصَارىٰ تَهْتَدُوا) ددے اُمت اهل البدع وائي : مونږ په هدايت يو، نو د من ربهم فائده دا ده چه دا په حقيقي هدايت باندے روان دي هسے دعوىٰ ئے نۀ ده كړے بلكه د الله تعالىٰ د طرفه چه كوم هدايت راغلے دے او هغه په كوم هدايت راضي دے، دوي په هغه هدايت روان دي.

او پدے مخكنو صفاتو كښ د چا په يو كښ نقصان دے او د چا په بل كښ نقصان دے، نو دا پوره هدايت والا نۀ دي، څوك ايمان بالغيب نۀ لري، چا كښ تقوىٰ نشته، څوك د مانځه پابند نۀ دي، څوك مال لګولو والا نۀ دي، زكوٰة نۀ وركوي، د چا په قرآن باندے سم ايمان نشته، د چا په احاديثو ايمان نشته، د چا په آخرت يقين نشته، پدے يو يو څيز كښ ئے نقصان دے لكه د مشركانو په ايمان كښ نقصان دے، د فاسقانو په تقوىٰ كښ نقصان دے، په مانځه كښ ئے نقصان دے، څوك زكوٰة نۀ وركوي او د چا د قرآن كريم په باره كښ غلطي عقيدي دي، ډيرے غلطي نظريے د قرآن په باره كښ شته چه څه ناڅه به وروسته بيانيږي. د نبي ﷺ په باره كښ غلطي نظريئے او عقيدي شته، نو دارنګه د يهودو او نصاراؤ د آخرت په باره كښ هم عقيده غلطه ده، د ډيرو يهودو د آخرت په باره كښ عقيده دا ده چه آخرت به راځي خو ارواح به راپورته كيږي بدن به نۀ راپورته كيږي. او د چا دا عقيده وه چه روح او جسد به دواړه راپاځي خو صرف جنت زمونږ ه دے او دا مونږ ته الله تعالىٰ وقف كړيدے، بل چا له ئے نۀ وركوي، جنت صرف او صرف زمونږ ځائے دے. دا ټولے عقيدے غلطي دي. او صرف دلته مذكور ايمان والا د الله تعالىٰ په نيز صحيح هدايت والا دي. كما في تفسير القاسميؒ.

**فائده : تخصيص د لفظ رب:** داسے ئے ونه وئيل چه علي هدي من الله ځكه رب كښ معنىٰ د تربيت پرته ده نو دا هغه خلك دي چه الله تعالىٰ د دوي تربيت كړيدے پدے صفاتو. نو دلته د رب لفظ مناسب دے ځكه چه دا تقوىٰ ايمان بالغيب وغيره د تربيت صفات دي، پدے سره د بنده تربيت كيږي نو ځكه الله تعالىٰ د خپل نومونو نه د رب لفظ راوړو.

﴿ وَاُولٰٓئِكَ ﴾ **فائده :** لفظ د اولئك ئے دوباره راوړو وضع د اسم ظاهر ئے اُوكړه په ځائے د ضمير، دپاره د تاكيد او اهتمام د شان ددے ايمان والو. (۲) دارنګه اسم اشاره ئے مكرر كړه پدے كښ اشاره ده چه ددے خلقو اتصاف پدے صفاتو سره هر يو ددے دواړو خصوصيتونو تقاضا كوي او هر يو كافي دي په تميز راوستو كښ د غير نه او پدے تميز راوستو كښ

مجموعه د دواړو ذکر کولو ته محتاج نهٔ دی۔ (السراج)

(هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ) کښې دوه ترکیبه دی : ۱ – یو دا چه اولئك مبتدا ده او (هم) ضمیر دویمه مبتدا ده، او المفلحون ئے خبر دے، مبتدا سره د خبر نه خبر واقع شویدے د اولے مبتداء (اولئك) دپاره۔

۲ – دویم ترکیب : (هم) ضمیر فصل دے او کوفین دے ضمیر ته عماد (تکیه) وائی۔ د بصرینو په اصطلاح کښې ورته ضمیر فصل وائی دا د مبتدا او خبر په مینځ کښې راځی د تخصیص دپاره (لکه تلخیص المفتاح ص (۱۳) کښې دی (وَاَمَّا فَصْلُهٗ فَلِتَخْصِیْصِهٖ بِالْمُسْنَدِ) یعنی مسند او خبر خاص کول د مبتدا پورے۔او محل د اعراب نهٔ لری۔ لکه ابن حاجبؒ په کافیه کښې وائی : (وَلَا مَوْضِعَ لَهٗ (اَیْ مِنَ الْاِعْرَابِ) عِنْدَ الْخَلِیْلِ) نو دلته معنیٰ دا ده چه همدغه کسان همدوی کامیاب دی۔ (یَعْنِیْ لَامُفْلِحِیْنَ سِوَاهُمْ) (دارنګه دلته مبتدا او خبر دواړه معرفے دی ددے نه هم حصر معلومیږی) (یعنی دا کامیابی ګویا کښې همدوی پورے خاص ده، نهٔ بل چا پورے)۔ که یو بادشاه، یا یو مالدار د کامیابئ دعویٰ کوی، نو دا دعویٰ به ئے غلطه وی بلکه کامیاب صرف او صرف د همدے صفاتو والا دی، که عرب دی، که عجم، که په یهودو او نصاراؤ کښې دی او که په مسلمانانو کښې۔

او دا صفات چه چا کښې نهٔ وی که هغه هره یوه ډله ده، دا ناکام دی، ځکه د الله تعالیٰ کار همیشه د صفاتو سره دے، که صفات درپکښې وو نو ته مؤمن هم ئے مسلمان هم ئے او اهل السنة والجماعة هم ئے او اهل حدیث هم ئے او دا ټول نومونه ستا دی۔ او که صفات درپکښې نهٔ وی، که ته شپاړس کرتے ځانته مؤمن مسلمان اهل السنة والجماعة، اهل الحدیث او اهل الحق نومونه کیږدے نو یوائے دے نوم له اعتبار نشته دے۔

**فائده** : پدے کښې تعریض دے په یهودو چه هغوی کامیابی ځان پورے خاص کوله نو الله تعالیٰ اُوفرمایل : چه صفاتو له اعتبار دے، دعویٰ له اعتبار نشته۔

## د اَلْمُفْلِحُوْنَ لفظ وضاحت

المفلحون صیغه د اسم فاعل ده او ماخوذ دے د فلاح نه او فلاح په لغت کښې :

۱ – البقاء) ته وئیلے شی یعنی باقی پاتے کیدل۔ (قرطبیؒ)

۲ – فلح کلمه په معنیٰ د چاودلو راځی یعنی چه د انسان نه مصیبتونه وچوی او لری

شي نو ديته فلاح وائي۔ او فلاح په عرف کښې مقصد حاصلول او د مصيبت نه بچ کيدلو ته وئيلې شي، او په اصطلاح د قرآن کريم کښې فلاح جنت ته د ابتداء نه داخليدل او د اُور نه بالکل بچ کيدلو ته وئيلې شي۔ او د فلاح اطلاق په دنيوی نعمتونو باندې صرف دنيا پرست خلق کوی لکه فرعونيانو وئيلی وو۔ (وَقَدْ اَفْلَحَ الْيَوْمَ مَنِ اسْتَعْلٰى) (سورة طه: ٦٤) (احسن الکلام)۔

(فلاح) ابن قتيبه رحمه الله پدې مقام کښې ليکی: (اَلْفَلَاحُ : اَلْفَوْزُ بِبَقَاءِ الْاَبَدِ) (فلاح هغه کاميابی ده چه سړې هميشه دپاره کامياب شي۔ انجام د سړی ښهٔ شي۔

۲- دويم ابن ابی اسحاق رحمه الله فرمائي: (اَلْمُفْلِحُوْنَ هُمُ الَّذِيْنَ اَدْرَكُوْا مَا طَلَبُوْا وَنَجَوْا مِنْ شَرِّ مَا مِنْهُ هَرَبُوْا) (قرطبی، ابن کثير، وَقَالَ فِي النکت والعيون وتفسير ابن ابی حاتم اِنَّهٗ قَوْلُ ابْنِ عَبَّاسٍ) (هغه کسان دی چه مقصد ته اُورسيدل او د کوم شي د شر نه چه تښتيدل د هغې نه ئې نجات حاصل کړو)۔

يعنی فلاح کښې دا دواړه خبرې پرتې دی: د مصيبت نه بچ کيدل او مقصد ته رسيدل نو مفلح هغه بنده ته وائي چه د مصيبت نه بچ شي او د انجام په لحاظ سره کامياب شي، نو مفلحون دلته هغه کسان دی چه د جهنم نه بچ شول او جنت ته لاړل۔ ﴿فَمَنْ زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَاُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ﴾ (آلعمران: ۱۸۵) نو دې صفاتو والا به الله تعالىٰ د اُور او د آخرت د عذابونو نه خلاصوی او جنت ته به ئې رسوی او دنيا کښې به هم ورته د انجام په لحاظ سره خوشحالياني ملاويږی، او فلاح نه ظاهری کاميابی نهٔ ده مراد يعنی د دنيا کاميابئ ته يواځې نهٔ وائي ځکه قرآن کريم کښې الله تعالىٰ د مجرمانو نه د فلاح نفی کړيده (اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الْكَافِرُوْنَ) (المؤمنون: ۱۱۷) (اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ) (يوسف: ۲۳) القصص: ۳۷) (وَلَا يُفْلِحُ السَّاحِرُ حَيْثُ اَتٰى) (طه: ٦٩)

او حال دا چه ډيره دنيا دوی ته ورکړې شويده۔ نو معنىٰ دا ده چه دوی ناکام دی په انجام کښې۔ آخرت ئې تباه دې۔ د فلاح ظاهری معنىٰ نهٔ ده مراد چه نفس کاميابی، چه مثلًا انسان پيسې اُوګټي يا په چا باندې په يو بحث کښې غالبه شي يا په يو ځائے کښې ځوك دوکه کړی دا هسې غلطه معنىٰ ده۔ (لَنْ يُّفْلِحَ قَوْمٌ وَلَّوْا اَمْرَهُمْ امْرَاَةً) کښې هم دغه معنىٰ پرته ده۔

قرآن کښې د فلاح لفظ (٤٠) کرته ذکر شويدې۔

## د فلاح اسباب

فلاح او کامیابئ ته د رسیدو دپاره الله تعالیٰ ډیر اسباب ذکر کړیدی چه بعض دا دی :

۱- اول سبب : اَلتَّوْبَه : لکه ﴿ وَتُوْبُوْا اِلَى اللّٰهِ جَمِيْعًا اَيُّهَا الْمُؤْمِنُوْنَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴾ (النور:۳۱)

۲- اَلتَّقْوٰى : لکه﴿ وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ﴾ (البقرة :۱۸۹ )۔

۳- اَلتَّزْكِيَة : (د هر قسم ګناهونو نه ځان پاکول)لکه ﴿ قَدْ اَفْلَحَ مَنْ زَكّٰهَا ﴾ (الشمس) او ﴿ قَدْ اَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى﴾ (اعلیٰ )

٤- اَلْاِيْمَانُ الصَّحِيْحُ : دے آیت نه هم معلومیږی او سورة المومنون (۱) کښې هم راځی ﴿ قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴾

۵- اِتِّبَاعُ الرَّسُوْلِ ﷺ : (د محمد رسول الله ﷺ تابعداری کول) لکه ﴿ فَالَّذِيْنَ آمَنُوْا بِهٖ وَعَزَّرُوْهُ وَنَصَرُوْهُ وَاتَّبَعُوا النُّوْرَ الَّذِيْ اُنْزِلَ مَعَهٗ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ﴾ (الاعراف :۱۵۷ )

## د فلاح نه د محرومیدو اسباب :

اسباب د نفی د فلاح هم شته یعنی هغه اسباب چه الله تعالیٰ په هغے باندے د فلاح نفی کړیده، شپږ اسباب دی په یو لس ځایونو کښې :

۱- اول سبب : ظلم : (ظلم چه چا کښې راشی هغه انسان ناکام شو، اګرکه ډیر مال جائیداد ورسره وی) لکه ﴿ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ﴾ (الانعام : ۲۱ )

۲- جرم : یعنی نافرمانی، او مجرم کیدل لکه ﴿ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الْمُجْرِمُوْنَ﴾ (یونس : ۱۷ )

۳- السحر :(جادو ګر خلك ناکام دی) لکه ﴿ وَلَا يُفْلِحُ السّٰحِرُوْنَ﴾ (یونس : ۷۷)

٤- سبب : اَلْاِفْتِرَاءُ عَلَى اللّٰهِ : (په الله تعالیٰ باندے چه څوك دروغ جوړوی هغه ناکام دی) لکه ﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُوْنَ﴾ (یونس :۶۹)

۵- پنځم : اَلْاِرْتِدَادُ : (کله چه سړے مرتد شی، د الله تعالیٰ د دین نه واوړی) اوکوم حق ئے چه زده کړے وی او بیا ئے د مصیبت د وجه نه پریږدی۔ لکه اصحاب الکهف خپل مابین کښې یو بل ته وائی ﴿ وَلَا يُشْعِرَنَّ بِكُمْ اَحَدًا اِنَّهُمْ اِنْ يَّظْهَرُوْا عَلَيْكُمْ يَرْجُمُوْكُمْ اَوْ يُعِيْدُوْكُمْ فِيْ مِلَّتِهِمْ وَلَنْ تُفْلِحُوْٓا اِذًا اَبَدًا ﴾ (کهف : ۲۰ )

٦- الکفر :(کافر انسان ناکام دے)۔لکه ﴿ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الْكٰفِرُوْنَ﴾ (المؤمنون : ۱۱۷ )

# د مؤمنانو صفات

د مؤمنانو تردے ځائے پورے دا صفات بیان شو او قرآن کریم کښې نور صفات هم ذکر دی چه هغه ټول راجمع کړی او احادیث هم ورسره ملګری کړی نو دا (۷۷) اُوه اویا صفات جوړیږی. چه دیته شعب الایمان وائی. او په قرآن کریم کښې اُوګوره سورة البقره آیت (۱۷۶) ﴿لَيْسَ الْبِرَّ﴾ کښې ئے لس صفات راوړی دی، پنځه د عقیدے او پنځه د اعمالو.

سوره آل عمران (۱۷) آیت کښې د مؤمنانو نور صفات ذکر دی.

او په آخری رکوع کښې دی :﴿إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ – الآية﴾

او سوره انفال (۳۰۲) آیت کښې او په آخره کښې بیا راوړی ﴿إِنَّ الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا وَجَاهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَالَّذِيْنَ آوَوْا وَّنَصَرُوْا﴾ او سورة توبه آیت (۱۱۱) کښې ئے لس صفات راوړی دی. دارنګه سوره یونس (۶۲) آیت. او سوره رعد (۱۹) کښې او سوره حج (۳۴) او د سورة المؤمنون په اول کښې (۱۴) صفتونه دی، اُوه صفتونه اول کښې دی او (۷) اُوه په مینځ (آیت ۵۷) کښې راوړی دی.

او د سورة الفرقان آخرنۍ رکوع کښې بیا (۱۴) صفات ذکر کړی دی. سورة الذاریات (۱۵) او سورة الطور(۳۵) کښې دریے صفات دی. سورة المعارج آیت (۳۲) کښې.

بعض مفسرینو دا دعوی کړیده چه قرآن کریم کښې چه څومره صفتونه ذکر دی، ته کولے شی چه پدے (۶) شپږو صفاتو کښې ئے راګیر کړے ځکه سورة البقره فُسْطَاطُ الْقُرْآن) (د قرآن خیمه) ده. یعنی دا شپږ صفات اصولی دی.

**فائده** : دلته شپږ صفات ولے خاص کړے شو؟ (۱) پدے کښې یو تعریض دے په یهودو باندے چه هغوی کښې دا صفات نهٔ وو او دعوی ئے کوله.

(۲) د اهتمام د وجه نه ځکه چه دا صفات کمال ته لری، ځکه تقوی ملاك الحسنات ده او ایمان اساس (بنیاد) د اعمالو دے او مونځ تنهی عن الفحشاء والمنکر دے (یعنی خلق د بے حیائی او بدو نه منع کول کوی) او انفاق د دنیا محبت زائل کوی کوم چه سر د هرے ګناه ده. او ایمان په ټولو کتابونو تعصب او حسد زائله کوی کوم چه د هرے بیمارۍ جرړه ده او یقین په آخرت باندے باعث دے په هر خیر او منع کونکے دے د هر شر نه. (ابومحمد)

**فائده** : عظمة القرآن بیان شو دپاره د تشویق (خلقو ته شوق ورکولو) او صفات د اهل

قرآن بیان شو دپاره د براعة الاستهلال۔

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ ءَاَنْذَرْتَهُمْ

یقیناً هغه کسان چه کفرئے کریدے (په ضد او عناد سره) برابره ده په دوی باندے که یره ورکوے دوی لره

اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۶﴾

که یره نۀ ورکوے دوی لره، ایمان نۀ راوړی۔

**تفسير** : دلته اوس هغه دویم فریق بیانوی، کوم چه مغضوب علیهم دی۔

دلته څو خبری بیانیږی (۱) مناسبت ددے آیت د مخکښ سره (۲) بحث : ددے آیت کریمه عنوان او حاصل چه څه خبره پکښ ذکر ده۔ (۳) دریم وضاحت د الفاظو د آیت۔

**البحث الاول** : مناسبت : ۱-مخکښ د مؤمن حال بیان شو نو دلته د کافر حال بیانوی او دیته مناسبت بالتضاد وائی۔ مخکښ د قرآن نه فائده اخستونکی ذکر شو، اُوس نه اخستونکی ذکر کیږی د عناد او ضد او بد بختئ د وجه نه۔ ۲-دارنګه سورت کښ موضوع د ایمان بیانیدله نو اُوس د ایمان مقابل شے ذکر کوی چه کفر دے یعنی مخکښ د ایمان فائده بیان شوه اُوس د ترك ایمان نقصان بیانیږی چه دنیا او آخرت ئے بربادیږی۔ څکه قرآن پوره علاج کوی انسان ته تخلیه او تحلیه دواړه وربنائی چه ایمان باندے څان بنائسته کړه او د کفر نه څان خالی کړه نو مخکښ تحلیه وه دلته تخلیه ده، د ګندونه څان نه صفا کول۔ او د قرآن کریم طریقه دا ده چه د مؤمن حال سره د کافر حال، د قیامت سره د دنیا حالت او د خالق سره د مخلوق او د جنت سره د جهنم حالت بیانوی څکه چه قرآن کریم مثانی کتاب دے چه اضداد بیانوی او دا قانون هم دے چه (اَلْاَشْيَاءُ تَتَبَيَّنُ بِاَضْدَادِهَا) یو شے د ضد په وجه بنه واضحه کیږی)۔ ددے وجه نه عمر فاروق ﷺ به فرمائیل :( اِنَّمَا يَنْقُضُ الْاِسْلَامَ عُرْوَةً عُرْوَةً مَنْ لَّمْ يَذُقْ مَرَارَةَ الْجَاهِلِيَّةِ)

(مجموع الفتاوی (۳/۲۶۳) (التفسير والمفسرون، منهاج التأسيس والتقديس، مختصر منهاج السنة (۱/۲۷۱)

(چا چه د جاهلیت تریخوالے ندے څکلے نو د هغه نه به د اسلام یو یو حکم ماتیږی) څکه چه دے د اسلام په خوند نۀ دے پوهه شوے او د اسلام په خوند هغه څوك پوهیږی چه د

شرك او كفر تريخوالے او نحوست ئے معلوم كړے وي.

۳- دارنګه د الله تعالیٰ دوه قسمه صفات دي، د رحم او د غضب نو مخکښې د رحم صفت مَظْهَر بیان شو چه ایمان والا دي او دلته د غضب د صفت مظهر بیانوي چه کفار دي. نو د الله تعالیٰ دواړه صفتونه دلته جمع شو.

یا داسے تعبیر اُوکړه : د الله تعالیٰ دوه قسمه صفات دي (۱) انعام (۲) او انتقام. نو پدے آیتونو کښې ئے د هر یو دپاره مظهر ذکر کړو.

٤- د قرآن کریم اسلوب دا دے چه ترغیب او ترهیب جمع کوي نو مخکښې ترغیب وو، اُوس ترهیب بیانوي. ٥- مخکښې رجاء اُوس خوف دے، نو پدے دواړو کښې خوف او رجاء پیدا کول مقصود دے. ٦- یا مخکښې د ایمان والو حال بیان شو نو سوال پیدا شو چه ددے نورو خلقو حال به څه وي؟ نو جواب اُوشو چه ان الذین کفروا الخ.

**دویم بحث** : عنوان او حاصل د آیت: پدے آیت کریمه کښې الله رب العزت د دویمے ډلے مغضوب علیهم (کافرانو) درے قبیح (بد) صفتونه راوړي، سره د توبیخ (رټنے) او عیب ورکولو نه. ۱- اول قبیح صفت: کفر کول. ۲- دویم: عدم تأثیر الدعوة (په دوی دعوت تاثیر نهٔ کوي) خپله هم نهٔ پوهیږي او د بل هم نهٔ آوري. ۳-دریم: (لا یؤمنون) د ایمان اراده ئے هم نشته دے. په راتلونکي زمانه کښې هم دا اراده نهٔ لري چه روسته به ځان جوړ کړو. بیا په روستو آیت کښې د هغوی دوه عذابونه بیانوي، یو دیني دنیاوي عذاب چه هغه اصل کښې په دنیا کښې د دین عذاب دے چه هغه د دوي په اسبابو د هدایت باندے ختم او مهر وهل دي. او دویم اُخروي عذاب دے چه هغه عذاب عظیم دے.

## دریم بحث : توضیح الکلمات والفوائد:

(ان الذین) : کلمه د ان د تحقیق او تاکید دپاره راځي. (د تحقیق معنی دا ده چه دا خبره ثابته او یقیني ده) نو ددے لفظي معنی داسے کیږي: په تحقیق سره او حاصل معنیٰ ئے یقیناً سره کیږي.

بیا دلته مشهور **سوال** دے. چه دلته وائي: کافران ایمان نهٔ راوړي، او حال دا چه ډیرو کافرانو ایمان راوړے دے؟. ۱-**جواب**: دا دے چه (هٰذَا فِیْ قَوْمٍ مَخْصُوْصِیْنَ، عَلِمَ اللّٰهُ کُفْرَهُمْ) (بدائع التفسیر) (ددے آیت الفاظ عام دي مګر مصداق ئے خاص کفار دي چه هغه

الله تعالیٰ ته معلوم وو، چه دوی به په کفر مری) لکه ابوجهل، ابولهب، عتبه، شیبه، ولید، کعب بن الاشرف او ابن ابی الحقیق او حیی بن اخطب وغیره۔ چه دوی ازلی بدبخته دی، دا تفسیر دومره تشفی نهٔ کوی، ځکه فائده ئې ډیره نهٔ ښکاره کیږی۔

۲- ښه جواب دا دے چه ابن جریرؒ او ابن کثیرؒ وغیره مفسرینو وئیلی دی چه دلته هغهٔ خلق مراد دی (أَنكَرُوا الْحَقَّ عِنَادًا) یعنی چه د ضد او عناد په وجه کفر کوی او قرینه پرمے روستو سواء لفظ دے چه دوی بانده بیان تاثیر نهٔ کوی ځکه ضد کښې راغلی دی۔

۲- دویمه قرینه د سورة لقمان (٦) آیت دے (وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِ آيَاتُنَا وَلَّىٰ مُسْتَكْبِرًا) (کله چه پرمے آیتونه لوستلے شی نو د تکبر د وجه نه اوړی) ۳- دارنګه (إِنَّ الَّذِينَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَتُ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ وَلَوْ جَاءَتْهُمْ كُلُّ آيَةٍ حَتَّىٰ يَرَوُا الْعَذَابَ الْأَلِيمَ) (یونس : ٩٧،٩٦)

٤- د عنادګر اهل کتابو په باره کښې فرمائی : (وَلَئِنْ أَتَيْتَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ بِكُلِّ آيَةٍ مَا تَبِعُوا قِبْلَتَكَ) (البقرة: ١٤٥) نو ګویا کښې کافر دوه قسمه شو یو عنادی کافر او بل جهلی کافر، عنادی کافر که په حق ښه پوهه هم شی نو ایمان نهٔ راوړی او جاهل کافر ته چه کله صحیح دعوت اُوشی او په هغه کښې انابت وی نو هغه ته الله تعالیٰ هدایت کوی۔ او ضدیان همغه شان په کفر بانده مړهٔ کیږی۔ ځکه انابت والو ته الله تعالیٰ هدایت کوی، نهٔ متعصبینو ته۔ نو کوم صحابه کرامو چه ایمان راوړو نو دوی کښې انابت وو، او عناد نهٔ وو۔

عبد الله بن عباس رضی الله عنهما فرمائی : رسول الله ﷺ به غوښتل چه ټول خلق په اسلام کښې داخل شی نو الله تعالیٰ هغه ته خبر ورکړو چه ایمان به هغه خلق راوړی چه د چا دپاره نیک بختی لیکلے شویده او د چا دپاره چه بد بختی لیکلے شویده، هغوی به همدغه شان ګمراهان وی۔ (ضد به کوی) (ابن کثیر ۱/۱۷۲) و (تیسیر الرحمن)

## د کفر لفظ وضاحت :

د کفر ماده قرآن کریم کښې (٥٢٥) کرته راغلے ده۔ د ایمان په مقابله کښې راځی۔

**د کفر لغوی معنی** : کفر په لغت کښې ستر (پټوالی) ته وائی لکه کفار کله زمیندار ته هم وائی، پدمے وجه چه هغه تخمونه په زمکه کښې پټوی (أَعْجَبَ الْكُفَّارَ نَبَاتُهُ) (الحدید: ٢١) (بناء په یو تفسیر) او کافر ته هم کافر ځکه وائی چه دهٔ د خپل معبود حقیقت پټ کړے دے۔

د کفر اصطلاحي معنیٰ : **تعریف الکفر :**

۱- بعض متکلمین ئے داسے تعریف کوی : (هُوَ الْاِنْكَارُ عَمَّا جَاءَ بِهِ النَّبِيُّ ﷺ وَعُلِمَ بِالضُّرُوْرَةِ) (انکار کول دی د هغه خبرے نه چه رسول الله ﷺ راوړے ده، او هغه خبره بالبداهت معلومه وی). ددے نه دا معلومه شوه چه صرف انکار کفر دے، په نورڅه سره کفر نه راځی. او حال دا چه دا اقسامو د کفر نه معلومیږی چه دا تعریف د یو قسم کفر دے. کفرونه ډیر قسمه دی، بعضو کښ بغیر د انکار نه بنده کافر وی.

۲- راجح دا ده : (اِنَّ الْكُفْرَ يَقَعُ بِثَلَاثَةِ اُمُوْرٍ بِالْاِنْكَارِ بِاللِّسَانِ وَبِالْعَمَلِ اَحْيَانًا كَالسُّجُوْدِ لِغَيْرِ اللّٰهِ وَاِلْقَاءِ الشَّرِيْعَةِ وَاِنْزَالِ الْقَانُوْنِ الْبَشَرِيِّ مَوْضِعَهُ وَبِالْقَلْبِ جُحُوْدًا وَعِنَادًا وَنِفَاقًا)

(کفر په دریے څیزونو سره واقع کیږی، (۱) انکار په ژبه سره (۲) او کله په عمل کولو سره لکه غیر الله ته سجده کول، او شریعت غورځول او د هغے په ځائے بشری قانون کیخودل، دا هم کفر دے د ډیرو وجوهو نه چه روستو سورة المائده کښ به راشی) ان شاء الله تعالیٰ.

(۳) او کله کفر په زړهٔ سره وی.

## اقسام الکفر :

بیا کفر په دوه قسمه دے (۱) کفر اصغر (وړوکے کفر) دا مخرج عن الملة نهٔ دے، انسان پرے د اسلام نه بالکلیه نهٔ وځی. لکه حدیث کښ دی : (وَقِتَالُهٗ كُفْرٌ) (د مسلمان سره جنګ کولو ته ئے کفر وئیلے دے) دارنګه (مَنْ قَالَ لِاَخِيْهِ يَا كَافِرُ فَقَدْ بَاءَ بِهَا اَحَدُهُمَا) (ترمذی، ابن حبان) (چا چه خپل رور مسلمان ته اُووئیل: اے کافره! نو پدے به یو ددے دواړو اخته کیږی) دارنګه حدیث دے (وَمَنْ اَتٰى امْرَاَةً فِيْ دُبُرِهَا فَقَدْ كَفَرَ بِمَا اُنْزِلَ عَلٰى مُحَمَّدٍ ﷺ) (ترمذی)

او دا کله د احسان ناشکرئ دپاره هم استعمال شویدے لکه حدیث دے (وَتَكْفُرْنَ الْعَشِيْرَ) (بخاری) (زنانه د خاوند د نعمتونو کفر یعنی ناشکری کوی او احسان فراموش کوی) او دیته کفر حکمی او کفر دون کفر وائی.

۲- دویم کفر اکبر دے او دا مُخْرِجٌ عَنِ الْمِلَّة دے، د انسان ذبیحه ناجائز کوی، او ددهٔ پسے مونځ کول ناجائز دی. او ددے بیا ډیر انواع دی.

## اقسام الکفر الاکبر

(۱) اول کفر : كُفْرُ الْاِنْكَار دے لکه د دهریه ؤ کفر دے چه د الله تعالیٰ او د آخرت هرڅه نه منکر

دی. ۲- دویم قسم : کُفرِ جُحُود دے چه یو سړے یو شے ښه پیژنی، په خبره ښه پو هیږی خو منلو ته ئے تیار نهٔ دے لکه کفر د ابلیس او ابو طالب اوفرعون او د یهودیانو. ابو طالب به وئیل :

| | |
|---|---|
| وَلَقَدْ عَلِمْتُ بِأَنَّ دِيْنَ مُحَمَّدٍ | مِنْ خَيْرِ أَدْيَانِ الْبَرِيَّةِ دِيْنَا |
| لَوْلَا الْمَلَامَةُ أَوْ حَذَارِيْ سُبَّةً | لَوَجَدْتَنِيْ سَمْحًا بِذَاكَ مُبِيْنَا |

(۱- یقیناً ماته ښه پته ده چه د محمد (ﷺ) دین حق او غوره دین دے. ۲- کهچرته د ملامتیا نه نه ویریدے یا د کنځلو ویره نه وے خلك به راپسے خبرے کوی نو ما به ددے دین ښکاره تابعداری کړے وے). اکثر خلك د لومة لائم نه ویریږی چه خلك به راته وهابی او غیر مقلد اوبے دینه وائی ځکه حق منلو ته تیار نهٔ وی. والله المستعان.

فرعون باره کښ راځی : ﴿وَجَحَدُوا بِهَا وَاسْتَيْقَنَتْهَا أَنْفُسُهُمْ ظُلْمًا وَعُلُوًّا﴾ (النمل : ۱٤)

۳- کُفرُ النِّفَاق : چه په ژبه اقرار کوی خو زړه کښ منکر وی. یقین ئے نهٔ وی.

٤- کُفرُ الشِّرك : چه الله او رسول اوټول ایمانیات منی لیکن د الله تعالیٰ سره شرك کوی، برخه داران ورسره جوړوی. لهذا هر مشرك کافر دے او هر کافر مشرك نهٔ دے. او دا په سورة آلعمران آیت (۸۰) کښ استعمال دے (أَيَأْمُرُكُمْ بِالْكُفْرِ بَعْدَ إِذْ أَنْتُمْ مُسْلِمُوْنَ)

۵- پنځم : کُفرُ الإِنكَار مِنْ آيَاتِ اللّٰهِ تَعَالىٰ : د الله تعالی د آیاتونو نه انکار کول لکه الله تعالیٰ، بعض ملائك او بعض رسولان خو منی لیکن د الله تعالیٰ بعضے نبیے نهٔ منی. لکه د نن زمانے یهود او نصاریٰ چه د قرآن او د محمد رسول الله ﷺ د نبوت نه منکر دی.

بیا کفر په دوه قسمه دے (۱) کفر جهالة. ددے حکم دا دے چه په آخرت کښ به ورله عذاب نهٔ وی مگر هله چه حجت پرے قائم کړی. (۲) دویم کفر عنادی او کفر عن علم. (یعنی په ضد او ښه په پو هه سره کفر کول) او ددے حکم دا دے چه په دے سره به د دنیا او د آخرت عذاب وی.

## په قرآن کریم کښ د کفر معانی :

قرآن کریم کښ کفر په مختلفو معنو سره استعمال دے :

۱- اوله معنی : اَلْجُحُوْدُ (اَلْإِنْكَارُ) جَهْلًا : (انکار کول د جهالت د وجه نه) لکه ﴿وَكَانُوْا يَسْتَفْتِحُوْنَ عَلَى الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ (البقرة : ۸۹)

۲- الشرك. لکه ﴿ كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَكُنْتُمْ أَمْوَاتًا ﴾ (البقرة : ۲۸)

۳- کتمان الحق، (حق پټول) لکه ﴿ إِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَمَاتُوْا وَهُمْ كُفَّارٌ ﴾(البقرة : ۱۶۱)

٤- کفر په معنی د ناشکری سره لکه ﴿ وَاشْكُرُوْا لِيْ وَلَا تَكْفُرُوْنِ ﴾ البقرة: ۱۵۲)

او سوره ابراهیم (۷) آیت ﴿ وَلَئِنْ شَكَرْتُمْ لَأَزِيْدَنَّكُمْ وَلَئِنْ كَفَرْتُمْ إِنَّ عَذَابِيْ لَشَدِيْدٌ ﴾

۵- اَلنِّفَاق : لکه ﴿ إِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ﴾ (آلعمران : ۱۵۶)

۶- تَرْكُ الْعَمَلِ بِالدِّيْنِ : (په دین باندې عمل نه کول) دا هم یو نوع کفر دې بلکه د کفر یو خصوصي جزء دې. لکه : ﴿ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لِمَ تَكْفُرُوْنَ بِآيَاتِ اللّٰهِ ﴾(آلعمران : ۷۰) ددې معنی ده لِمَ تَتْرُكُوْنَ الْعَمَلَ بِآيَاتِ اللّٰهِ.

۷- اَلْاِرْتِدَادُ : (د دین نه اوړیدل) لکه: ﴿ كَيْفَ يَهْدِي اللّٰهُ قَوْمًا كَفَرُوْا بَعْدَ إِيْمَانِهِمْ ﴾ (آلعمران : ۸۶) اَیْ اِرْتَدُّوْا.

۸- اَلتَّوَلِّيْ عَنِ اتِّبَاعِ الرَّسُوْلِ : د رسول الله ﷺ د تابعداریٔ نه آوړیدل) او دا آوړیدل دوه قسمه دی، یو دا چه منی ئې لیکن عمل پرې نهٔ کوی، دا صرف ګناهګار دې، یو د هغې نه انکار، نفرت او خوند نهٔ ورکول او د هغې پورې توقې کول دی. دا کفر دې.

لکه ﴿ قُلْ أَطِيْعُوا اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْكَافِرِيْنَ ﴾ (آلعمران : ۳۱).

۹- سحر : لکه ﴿ وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَانُ ﴾ (البقرة : ۱۰۲، ۱۰۳)

۱۰- نفس انکار د حق نه لکه دے آیت کښې شو ﴿ إِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَوَاءٌ ﴾

۱۱- اَلسَّتْرُ : (پټول) لکه (أَعْجَبَ الْكُفَّارَ نَبَاتُهُ) (الحدید : ۲۱).

**فائده** :کفر چه چا د انکار پورې خاص کړیدې نو صحیح خبره ئې نهٔ ده کړې بلکه کفر بِاللِّسَانِ وَالْعَمَلِ وَالْقَلْبِ درې واړو باندې راتللې شی (والعیاذ بالله).

## د سواء لفظ وضاحت :

لفظ د سواء قرآن کریم کښې (۲۷) کرته راغلې دې او په دوه معنو استعمال دې.

۱- اکثر ځایونو کښې په معنیٰ د برابر والی دې. نو د سواء معنیٰ ده (اِسْتَوَتْ حَالُهُمْ) (د دوی حال برابر دې که دعوت ورته اُوشی او که اُونهٔ شی په هم دغه یو حال وی) او دا د کافرو صفت دې چه د بیان نه مخکښې او روستو یو شان وی، هیڅ اثر پرې نهٔ کوی بلکه لا ضد او فساد او ورانے ئې زیاتیږی. او هر چه مؤمن دې نو هغه ته وعظ او نصیحت ضرور

فائده رسوی۔ (وَذَكِّرْ فَاِنَّ الذِّكْرٰى تَنْفَعُ الْمُؤْمِنِيْنَ) (الذاريات : ۵۵)
مؤمن کله غافل وی نو په بیان سره متوجه شي او سمدست عمل شروع کړي او که فکر ئې وی نو اراده ئې مضبوطه شي۔
۲– سواء په معنیٰ د وسط (مینځ) سره لکه ﴿ فَاطَّلَعَ فَرَآهُ فِيْ سَوَاءِ الْجَحِيْمِ ﴾ (الصفت : ۵۵) اَیْ وَسَطَ الْجَحِيْمِ۔ او ﴿ فَاعْتِلُوْهُ اِلٰى سَوَاءِ الْجَحِيْمِ ﴾ (الدخان : ۴۷)
**فائده** : سواء علیك نې اُونۀ وئیل شکه چه رسول الله ﷺ به ضرور دعوت کوی، په هغۀ باندې دعوت فرض دې، برابره ده، خلق ایمان راوړی او که نۀ، او هغۀ ته الله تعالیٰ په دعوت باندې اجر ورکوی، اگرکه څوك ایمان رانۀ وړی۔ یعنی مؤمن به هر قسم کفارو ته دعوت جاری ساتی اگرکه عنادی وی۔ شکه دعوة خو د اقامة الحجة دپاره کیږی۔ او د بنده ذمه واری سر ته رسیږی۔

## د انذار لفظ وضاحت :

لفظ د انذار قرآن کریم کښې (۱۲۶) کرته راغلے دے۔ انذار وئیلے کیږی (اَلْاِعْلَامُ مَعَ التَّخْوِيْفِ عَلٰى مَهَلٍ) ته یعنی خبر ورکول سره د یرې نه خو مهلت به پکښې وی، یعنی داسے به وئیلے شی چه چا توحید اُونۀ منلو نو اُور ته به ځی خو سمدست نه بلکه لږ وخت پکښې وی، یعنی پس د مرگ نه۔
او که اعلام ورسره نۀ وی نو هغه صِرف تخویف دے۔
**حکمة** : انذار ئې راوړو او بشارت ئې رانۀ وړو، داسے ئې اُونۀ وئیل : (أَبَشَّرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُبَشِّرْهُمْ) (یعنی که زیرے ورکړے او که ورئې نکړے)۔ ددے ډیرے فائدې دی : ۱– یوه فائده دا ده چه دلته بحث د کافرو شروع دے، او د هغوی د حال سره بشارت مناسب نۀ دے۔ شکه د نافرمانو ته څوك زیری نۀ ورکوی۔ بلکه یره ورکول پکار دی چه منع شی۔
۲– فائده : (اَلْاِنْذَارُ اَشَدُّ تَاْثِيْرًا فِي الدَّعْوَةِ مِنَ الْبِشَارَةِ) (په دعوت کښې د انذار تاثیر ډیر وی)
﴿ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴾ د مضارع صیغه ئې راوړه، پدے کښې اشاره ده چه فی الحال هم ایمان ته تیار نۀ دی او آینده کښې ئې اراده هم نشته۔ نو شکه دا بیل صفت دے، او کفر ئې بیل صفت دے، کفر پکښې فی الحال پروت دے او لا یؤمنون د ایمان اراده ئې
هم نشته، نو دا ډیر ناکاره دی، یو انسان فی الحال کافر دے، خو داسے وائی چه که ما ته ددے دین حقانیت معلوم شو نو زۀ ئې منم نو دا نسبةً د الله تعالیٰ خوښ وی او دۀ ته غالباً هدایت

هم کیږي.

دا رنګه کله مخکښې یو انسان شکي وي روستو بیا فکر اُوکړي نو جوړ شي او دوی په یو ضد ولاړ دي. ۲- او په لایؤمنون کښې د دوی عقوبت او سزا ته هم اشاره ده چه هر کله دوی د حق نه انکار اُوکړو نو الله تعالیٰ ورله د ایمان توفیق ورنکړو. نو په آیت کښې بندګانو ته یره پرته ده چه د حق د خلاف او د عناد او انکار په وجه چرته د ایمان نه محروم نۀ شي.

| |
|---|
| خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَعَلٰى سَمْعِهِمْ وَعَلٰى اَبْصَارِهِمْ |
| مهر وهلے دے الله تعالیٰ په زړونو د دوی او په غوږونو د دوی. او په سترګو د دوی باندے |
| غِشَاوَةٌ وَّلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿۷﴾ |
| ناشنا پردے دي، او دوی دپاره عذاب لوی دے. |

**تفسیر** : په مخکښې آیت کښې د کافرو باره کښې چه کوم حکم بیان شو چه دوی ایمان نۀ راوړي نو پدے آیت کریمه کښې د هغے علت بیانوي او هغۀ امور ذکر کوي چه د هغوی دپاره د ایمان نه مانع وو. نو معنیٰ دا ده : (اِذْ خَتَمَ اللّٰهُ) ایمان ځکه نۀ روارړي چه الله تعالیٰ پرے مهر وهلے دے. دا توجیه د بعض علماؤ ده لیکن دا صحیح نده ځکه د ختم علت کفر عناداً کول دي او ختم خو سزاد کفر ده، علت د کفر ندے بیا خو اعتراض رازي چه الله تعالیٰ اولاً مهر وهلے دے بیا خلقو کفر کړیدے او حال دا چه خلق اولاً کفر کوي بیا عقوبةً ختم او مهر پرے الله تعالیٰ لګوي فتدبر. (۲) دویم وجه (اذ) لفظ راوستل خلاف الظاهر دي نو صحیح دا ده چه دلته اُوس سزا بیانوي د کفر عنادي ځکه الله تعالیٰ په ګناهونو عقوبات مقرر کړیدي، کله مالي، کله بدني کله بچو وغیره کښې نو کله دیني عقوبات وي نو د دین او هدایت اسباب د انسان نه اخستل ډیر سخت عقوبت او سزا ده. والعیاذ بالله. یو شاعر ابو الفتح البستي المتوفیٰ (۴۰۰ هـ) وائي :

| | |
|---|---|
| وَكُلُّ كَسْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ يَجْبُرُهٗ | وَمَا لِكَسْرِ قَنَاةِ الدِّيْنِ جُبْرَانٗ |

د هر ماتیدلو جبیره شته او د دین د ماتیدلو جبیره نشته.

نو پدے آیت کښې الله تعالیٰ دوه قسمه سزاګانے د دوی ذکر کوی یو د دوی په زړونو مهر وهل او بل عذاب عظیم ورکول۔ یوشی باندے چه مهر اُولګی نو ددے مطلب دا وی چه دے نه به نۀ څه اُوځی او نۀ به د بهر نه څه ورداخلیږی نو د کافرانو همدغه حال دے چه په کفر او ضلالت او ګناهونو باندے د اصرار او د پلار نیکه په تقلید باندے د انهماك او د غور او فکر د صحیح لارو نه د اعراض په وجه الله تعالیٰ د هغوی د زړونو داسے حالت جوړ کړو چه اُوس وعظ او نصیحت په دوی باندے هیڅ اثر نۀ کوی او حقه خبره د هغوی په زړونو کښې نۀ داخلیږی او کفر د هغوی د زړونو نه نۀ اُوځی۔ د هغوی د زړونو نه د حق د قبلولو استعداد ختم شو۔ په سترګو باندے ئے پردے راغلے چه د هر فائده مند شی د لیدلو نه مانع دی، کائناتو کښې د الله تعالیٰ د ربوبیت نښے نښانو لیدلو نه محروم شو، د هغوی غوږونه د حق خبرے اوریدلو ته تیار نۀ دی۔

**سوال** : هر کله چه الله تعالیٰ په دوی باندے مهر اُووهلو نو بیا سزا ولے ورکوی؟ لکه ډیر دهریه او منکرین تقدیر، د الله تعالیٰ په تقدیر داسے سوال کوی چه دا خو ظلم دے۔؟۔

**الجواب** : ۱ــ جَزَاءً لِكُفْرِهِمُ السَّابِقِ : یعنی دا ختم د هغوی د مخکنی کفر سزا ده) بنده له الله تعالیٰ د ګناه نه مخکښې سزا نۀ ورکوی بلکه د ګناه په وجه سزا ورکوی، دوی کښې دا بد عملیانے او ضدونه پیدا شو، کفر ئے اختیار کړو نو الله تعالیٰ پرے فیصله اُوکړه چه څه! ته د هدایت نه محرومه شوے، خان دِے پخپله کندے ته ګوزار کړو، نو پدے کښې هیڅ قسم ظلم نشته۔ لکه بل آیت کښې دی : (بَلْ طَبَعَ اللّٰهُ عَلَيْهَا بِكُفْرِهِمْ) (النساء:۱۵۵)

(الله تعالیٰ د دوی د کفر په وجه په دوی باندے مهر اُووهلو)۔

دوی ته چه کوم صلاحیتونه ورکړے شوی وو نو هغه ئے په صحیح ځائے استعمال نکړل او د خپل رب معرفت ئے حاصل نکړو بلکه د خواهشاتو دپاره ئے استعمال کړل نو الله تعالیٰ ورله سزا ورکړه او د هدایت نه ئے همیشه دپاره محرومه کړل۔ حدیث کښې راځی : کله چه مؤمن ګناه اُوکړی نو د هغۀ په زړه باندے تور داغ راشی، که هغۀ توبه اُویاسی نو د هغۀ زړه د مخکښې په شان صفا شی او که د توبے په ځائے په ګناهونو کښې اخته شی نو هغۀ داغ خورشی تردے چه د هغۀ ټول زړه راګیر کړی نبی علیه السلام فرمائی : دا هغه زنګ دے چه الله تعالیٰ بیان کړیدے (كَلَّا بَلْ رَانَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ مَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ) (المطففین /۱٤) یعنی د دوی د اعمالو په وجه د دوی په زړونو زنګ راغلو۔ (ترمذی بسند صحیح) (احسن البیان وتیسیر الرحمن)

او الله تعالیٰ د هرے ورانئ سره سزا ایکلے ده، هر څوك چه دغه ورانے اُوکړی نو الله تعالیٰ سزا ورکوی خو اولا مهلت ورکوی او الله تعالیٰ ورته صبر کوی، لکه الله تعالیٰ فرمائی :
(مَنْ يَّعْمَلْ سُوْءً يُّجْزَ بِهٖ) (النساء : ۱۲۳)

او د الله تعالیٰ سزا ګانے په مختلفو طريقو دی ۱ - کله دنیاوی وی. دا کله مالی وی او کله بدنی وی، مال کښ بے برکتی پیدا کړی، قرضدار شی، مال ئے هلاك شی، بدن او صحت د ګناهونو په وجه خراب شی، او کله ئے اولاد مریضان شی.

۲ - او کله دینی سزاوی چه مثلاً د خیر کار نه ئے محروم کړی، د تهجدو توفیق نهٔ ورکوی، کله ترے مونځ قضاء شی، د دینی ماحول نه ئے دنیوی ماحول ته نقل کړی، کله چه بیا هم بنده د ګناهونو نه منع نهٔ شی نو آخر کښ ترے الله تعالیٰ هدایت هم واخلی او مهر پرے اُووهی. نو لکه څنګه چه الله تعالیٰ په کفر باندے د جهنم سزا ورکوی نو کله نا کله په دنیا کښ دا سزا ورکوی چه د هدایت نه ئے محروم کړی او دا ظلم نهٔ دے. بلکه د کفر بدله ده. أَعَاذَنَا اللّٰهُ مِنْ هٰذِهِ الْحَالَةِ. او دا کمال او عدل د رب العالمین دے.

شیخ الاسلام ابن قیمؒ فرمائی : (فَعَلَ ذٰلِكَ عُقُوْبَةً لَهُمْ، كَمَا عَاقَبَ بَعْضَهُمْ بِالْمَسْخِ وَبِالطَّمْسِ فَهُوَ سُبْحَانَهٗ يُعَاقِبُ بِالطَّمْسِ عَلَى الْعُيُوْنِ وَالطَّمْسِ عَلَى الْقُلُوْبِ) (دا کار الله تعالیٰ څکه اُوکړو چه دوی له ئے سزا ورکوله لکه بعضو له الله تعالیٰ سزا ورکړے ده په مسخ سره، ( شکل ئے ورله بدل کړیدے ) او د بعضو سترګے ئے خرابی کړی دی، کله د سری زړه خرابوی او کله ئے سترګے خرابوی)، لکه د قوم لوط سترګے ئے ړندے کړی، د بعض بنی اسرائیلو شکلونه ئے بدل کړی وو او خنزیران او شادوګان ئے ترے جوړ کړی وو. (و انظر شفاء العلیل ص (۸٦)

او دا معنیٰ به د سورة الانعام آیت (۱۱۰) کښ هم راشی.
(وَنُقَلِّبُ أَفْئِدَتَهُمْ وَأَبْصَارَهُمْ كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوا بِهٖ أَوَّلَ مَرَّةٍ)

۲ - **علمی جواب** دا دے چه د الله تعالیٰ درے قسمه صفات دی، ۱ - عدم ظلم، ۲ - احسان. ۳ - او عدل. عدم ظلم معنیٰ دا چه الله تعالیٰ هیڅ قسم ظلم نهٔ کوی او نهٔ ئے اراده لری اګر که قادر پرے دے لیکن هغه وئیلی دی چه زه د ظلم هیڅ قسم اراده نهٔ کوم نو د الله تعالیٰ د ظلم کولو نه خو بنده له بالکل خاطر جمعی پکار ده څکه الله تعالیٰ د خپلے وعدے نه خلاف نهٔ کوی. او احسان ئے دا دے چه الله تعالیٰ یو نعمت پیدا کړی، بنده د هغے مستحق کړی او د هغے صفات او استعداد هم پکښ پیدا کړی او طریقه هم ورته اُوښائی

او توفيق هم ورکړی. نو دا د هغه اختيار دے چه چا له ئے ورکوی او چا له نۀ.

او عدل ئے دا دے چه الله تعالیٰ يو شے بنده ته اُوښائي ليکن هغه ورته آسان نۀ کړی، مدد ورسره اُونۀ کړی بلکه خان ته ئے اُوسپاری لکه کافر ته ايمان او اسلام اُوښائي چه په دے لاره روان شه ! ليکن توفيق ورنکړی نو دا ئے عدل دے، نو پدے کښې په الله تعالیٰ هيڅ قسم اعتراض نشته. خکه که احسان درسره نکوی نو په الله تعالیٰ څه زور نشته او دا ئے عدل دے او که احسان ئے درسره اُوکړو نو دا ئے مهرباني ده.

مثال ئے داسے دے لکه دوه کسان ستا نه د لارے تپوس اُوکړی، ته دواړو ته لاره اُوښائے چه دا لاره ده خو د يو سره احسان اُوکړے د لاس نه ئے اُونيسے، او ځائے ته ئے اُورسوے. نو دا تا ظلم د يو سره هم اُونکړو، عدل دے اُوکړو خو ددے يو سره دے احسان هم اُوکړو.

نو دغه شان الله تعالیٰ لاره ټولو انسانانو ته خودلے ده خو احسان د توفيق چا له ورکوی او چا له ئے نۀ ورکوی. الله حکيم او عليم دے. نو دے کافرانو سره الله پاك عدل کړے دے، احسان ئے ورسره ندے کړے او مؤمنانو سره ئے احسان اُوکړو نو په الله تعالیٰ باندے هيڅ اعتراض نۀ واردیږی، او په چا ئے دا ظلم ندے کړے چه زړه، سترګے او غوږونه ئے نۀ وی ورکړی او بيا ورته وائی چه ايمان راوړه او د ليدلو امر ورته کوی يا ئے قرآن ورته نۀ وی راليږلے او د عبادت امر ورته کوی يا پيغمبر ئے ندے راليږلے. الله تعالیٰ فرمائی : (وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِيْنَ حَتّٰى نَبْعَثَ رَسُوْلًا) (اسراء :۱۵) (وَمَا كَانَ رَبُّكَ لِيُهْلِكَ الْقُرٰى بِظُلْمٍ وَّاَهْلُهَا مُصْلِحُوْنَ) (هود:۱۱۷) (وَمَا كُنَّا مُهْلِكِى الْقُرٰى اِلَّا وَاَهْلُهَا ظٰلِمُوْنَ) (القصص:۵۹) دا آيتونه پرے واضح دليل دے. بلکه الله تعالیٰ خپل بندګان بنه پوهه کړی دی عقل او دماغ، سترګے او غوږونه او زړه ئے ورکړيدے او بيا ئے قرآن کريم هم راليږلے دے او د دلائلو نه خبر شوی دی، خو الله تعالیٰ ورله توفيق ندے ورکړے او پدے کښې د الله تعالیٰ اختيار دے. او آيت کښې ډيره يره پرته ده چه ګناهونو سره په انسان باندے ډيرے عجيبه او لوئي فيصلے کيږی.

## فائده : اسباب الهداية:

دلته ئے دا درے خيزونه ولے ذکر کړل ؟ نو وجه دا ده چه دا درے واړه اسباب د علم او د هدايت دی. انسان چه هدايت او علم ته رسيږی نو د هغے درے اسباب دی :

۱ - اول اَلْفِكْرُ بِالْقَلْبِ : په زړه باندے فکر کولو سره).

۲- بِالسَّمْعِ وَالْاِسْتِمَاعِ : (بل نه آوریدل او بل ته غوږ ایخودل).
۳- هِدَايَةٌ بِالْبَصَرِ : (په سترګو یو شے مطالعه کول)

نو الله تعالیٰ فرمائی : چه ددے کافرانو درے واړه اسباب ما بند کړی دی، عقل ئے هم د حق نه بند دے اګرکه په دنیاوی کارونو کښ ښه ماهر دے او غوږونه ئے د حق د خبرو آوریدو نه بند، حق پکښ نهٔ کینی اګرکه ظاهره کښ د شیطانئ خبرے ښے آوری او په سترګو ئے ناشنا قسم پردے دی چه هغه د الله تعالیٰ د آیتونو نه ړوند والے دے.

## د آیت د الفاظو وضاحت :

ختم : ختم لفظ قرآن کښ (۳) درے ځله راغلے دے، ماده د ختم (۸) اته کرته راغلے ده.

**د ختم تعریف** : ختم په لغت کښ مهر (ټاپے) ته وئیلے شی، مهر د فارسی او اردو لفظ دے، عربی کښ ئے داسے معنیٰ ده : (بُلُوْغُ الشَّيْءِ اِلَى الآخِرِ) (یو شے آخر ته رسیدل) او ختم القرآن ته هم ځکه ختم وائی چه آخر ته اُورسیږی. او مهر هم خلق د خط په آخر کښ وهی.

**اصطلاحاً** : ختم (اِنْسِدَادُ الشَّيْئِ مِنْ جَمِيْعِ جَوَانِبِهٖ بِحَيْثُ لَايَدْخُلُهٗ شَيْئٌ وَلَا يَخْرُجُ عَنْهُ شَيْئٌ) (یو شے بندول د ټولو طرفونو نه، چه څه شے پکښ داخلیږی نه او څه شے ترے وځی نه) لکه مثلاً خط په لفافه کښ اچولو او مهر وهلو نه پس نور لیکل بند شی. نو دلته هم د کفارو په زړهٔ کښ حق نهٔ داخلیږی او باطل ترے نهٔ بهر کیږی. ﴿اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَمْ يُرِدِ اللّٰهُ اَنْ يُّطَهِّرَ قُلُوْبَهُمْ﴾ (المائده : ٤١) زړونه ورله الله تعالیٰ نهٔ پاکوی) او دلته د ختم همدا معنیٰ ده.

## عنوانات الختم :

د ختم یو څو مرادف الفاظ دی چه هغه هم د ختم معنیٰ ورکوی، هغے ته عنوانات الختم وائی. ۱- عَدَمُ الْفِقْهِ قَصْدًا. (قصداً ځان نهٔ پوهه کول)
لکه ﴿لَهُمْ قُلُوْبٌ لَّايَفْقَهُوْنَ بِهَا﴾ (الاعراف : ۱۷۹)
۲- اَلْاَكِنَّة : (پردے راوستل) لکه ﴿وَقَالُوْا قُلُوْبُنَا فِيْٓ اَكِنَّةٍ﴾ (حم السجدة : ٥)
۳- رین او ران : (د اعمال خبیثه ؤ زنګ) لکه : ﴿كَلَّا بَلْ رَانَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ مَّا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ﴾ (التطفيف : ١٤) حدیث کښ دی : (اِنَّ الْمُؤْمِنَ اِذَا اَذْنَبَ ذَنْبًا كَانَتْ نُكْتَةٌ سَوْدَاءُ فِيْ قَلْبِهٖ) (ترمذی سورة المطففين) والبیهقی) (د ګناه په وجه چه کوم زنګ او خیرے او داغ

په زړه راشي دغې ته رين وائي)

او ددې نسبت کله الله تعالیٰ ته کيږي لکه دلته ختم الله علی قلوبهم۔ الله تعالیٰ مهر وهي، او په مهر وهلوسره سزا د گناهونو ورکوي۔

اوس دلته د ختم (مهر) نه مخکښې يو څو اسباب او مرتبې دي، د هغې پيژندل ضروري دي چه د هغې په وجه په انسان باندې مهر وهلې کيږي۔

## د ختم مراتب او اسباب

۱ - اَلرَّيْنُ : (د گناه په وجه په زړه باندې داغ راتلل او توريدل) (التطفيف : ۱۴)

۲ - اَلْغَفْلَةُ : (انسان د الله تعالیٰ نه او د خپلې کاميابئ نه غافله کيدل) لکه ﴿ أُولَئِكَ هُمُ الْغَافِلُوْنَ ﴾ (الاعراف : ۱۷۹)

۳ - : اِتِّبَاعُ الْهَوىٰ: (د خواهشاتو پسې روانيدل) لکه ﴿ أَفَرَأَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ إِلٰهَهُ هَوَاهُ وَأَضَلَّهُ اللّٰهُ عَلىٰ عِلْمٍ وَخَتَمَ عَلىٰ سَمْعِهِ وَقَلْبِهِ وَجَعَلَ عَلىٰ بَصَرِهِ غِشَاوَةً ﴾ (الجاثية : ۱۰/۱۱)

٤ - الجدال : (د اهل حقو سره په حق کښې جگړه کول سبب د مهر دې۔ لکه : ﴿ اَلَّذِيْنَ يُجَادِلُوْنَ فِيْ آيَاتِ اللّٰهِ ﴾ (المؤمن : ٤) روستو وائي : ﴿ كَذٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ ﴾ (الله تعالیٰ په داسې خلکو باندې ټاپه لگوي)

۵ - پنځمه مرتبه يا سبب : طبع ده، (ددې گناهونو نه بعد طبع راځي) لکه ﴿ بَلْ طَبَعَ اللّٰهُ عَلَيْهَا بِكُفْرِهِمْ ﴾ (النساء : ۱۵۵) د طبع نه روستو ختم دې۔

٦ - ختم : لکه دې آيت کښې ذکر دې او د ختم نه روسته بيا :

۷ - قُفْل (جرنده او تاله وراچول)، او دا قفل د اسباب النفاق په وجه لگيږي لکه ﴿ أَمْ عَلىٰ قُلُوْبٍ أَقْفَالُهَا ﴾ (محمد : ۲٤) او سورة النساء نه معلوميږي۔

نو اول د گناه په وجه رين راشي بيا په زړه کښې غفلت پيدا شي، بيا د خواهشاتو تابعداري شروع شي بيا د اهل حقو سره په حق کښې جگړې شروع کړي بيا پرې طبع راشي بيا پرې ختم او بيا پرې قفل راشي چه د ايمان راوړو هيڅ امکان ئې پاتې نهٔ شي۔ ليکن دا ترتيب لازم نهٔ دې کله يو مخکښې شي کله بل۔

دا مرضونه چه چا کښې راغلل نو هغه د ايمان د خوند نه نهٔ خبريږي۔

## د قلب لفظ وضاحت :

قلوب جمع د قلب دہ، قلب زړه ته وئیلے شی او زړه ته قلب پدے وجه وائی: (لتقلبه) : (ځکه اوړی راوړی)، شاعر وائی :

وَمَا سُمِّيَ الْإِنْسَانُ إِلَّا لِأُنْسِهِ وَمَا الْقَلْبُ إِلَّا أَنَّهُ يَتَقَلَّبُ

(انسان ته انسان د اُنس او محبت د وجه نه وئیلے شی او زړه ته قلب پدے وجه وئیلے شی چه دا اوړی راوړی)

مَا سُمِّيَ الْقَلْبُ إِلَّا مِنْ تَقَلُّبِهِ فَاحْذَرْ عَلَى الْقَلْبِ مِنْ قَلْبٍ وَمِنْ تَحْوِيلِ

(القرطبی ۱/۱۸۷)

(زړهٔ ته د اوړیدو د وجه نه قلب وائی نو زړهٔ باندے د اوړیدو او بدلیدو نه اُویریږه)

## د زړونو د بدلیدو حکمة

• د زړونو په اوړیدو راوړیدو کښې ډیر حکمتونه دی (۱) حکمة: (لِيَدُوْمَ تَضَرُّعُ الْعَبْدِ إِلَيْهِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالٰى) چه بنده په هر وخت کښې الله تعالیٰ ته محتاج وی، ځکه که زړه په یو ځائے ولاړ وے نو بس یو ځل چه ورته هدایت شوے وے نو بیا به هیڅ کله نهٔ خرابیدلے۔ نو بیا به بنده د الله تعالیٰ نه د هدایت دومره سوال نهٔ کولے، او احتیاج به ئے نهٔ محسوس کولے۔ او اُوس بنده همیشه الله تعالیٰ ته زاری کوی چه زمونږ د زړه حفاظت اُوکړه لکه نبی ﷺ به داسے فرمایل : (يَا مُقَلِّبَ الْقُلُوْبِ ثَبِّتْ قَلْبِيْ عَلٰى دِيْنِكَ، يَا مُصَرِّفَ الْقُلُوْبِ صَرِّفْ قُلُوْبَنَا عَلٰى طَاعَتِكَ) او دا آوازونه د الله تعالیٰ خوښ دی، ځکه دا زړونه الله خپلو ګوتو کښې ایښی دی، د الله تعالیٰ نبی به دا دعا کوله نو صحابه ؓ تپوس اُوکړو یا رسول الله ته په مونږه ویریږے هغه اُوفرمایل :(إِنَّ قُلُوْبَ بَنِيْ آدَمَ بَيْنَ إِصْبَعَيْنِ مِنْ أَصَابِعِ الرَّحْمٰنِ يُقَلِّبُهَا كَيْفَ يَشَآءُ) (ابن ماجه وابن حبان والنسائی)

(د بندګانو زړونه الله تعالیٰ د دوه ګوتو په مینځ کښې نیولی دی، اړوی راوړی ئے)۔ چا سره چه د خپل زړه د جوړوالی غم وی، د الله تعالیٰ نه به هر وخت کښې دعا غواړی او چا سره چه دا غم نهٔ وی هغه خاسر او تاوانی انسان دے، د مؤمنانو زړه کښې چه لږ غوندے تبدیل او خروالے او بی، نوری پیدا شی، نو ځان ورته منافق ښکاری، زر زر د زړه د اصلاح کوشش

کوی. لکه روسته آیتونو کښې به راشي مؤمنان به د دينه پره کوي چه منافقت کښې واقع نه شي.
د ابو الدرداء ﷺ نه نقل دی : (إِنَّ الْقَلْبَ أَشَدُّ تَقَلُّبًا يا : أَسْرَعُ تَقَلُّبًا مِنَ الْقِدْرِ إِذَا اشْتَدَّ غَلْيَانًا) (ابن عساکر) (والطبرانی فی الکبیر ٢٠/٩٩ مرفوعاً)
(زړه د هغه کټوئ نه هم زر زر اوړی چه هغه خوټ کيږی).
او د عبد الله بن رواحه ﷺ نه هم داسې نقل دی. او حدیث د احمد کښې دی : (مَثَلُ الْقَلْبِ كَرِيشَةٍ بِأَرْضٍ فَلَاةٍ يُقَلِّبُهَا الرِّيَاحُ ظَهْرًا لِبَطْنٍ) (شعب الايمان وابن ماجه -مشكوٰة)
(مثال د زړه پشان د يوې بڼرکې دې چه په دشته کښې وی هواګانې ئې مخ او شا اړوی)
* د زړه مثال داسې دې لکه سپوږمۍ رڼرا وی چه وريځ ورله راشي تياره شي، چه بيرته ترې لرې شي نو رڼرا شي. كما في الصحيحة رقم: ٢٢٦٨ - بسند حسن).
٢- (اَلتَّرَقِّي فِي الْإِيمَانِ) زړه ځکه بدليږی چه بنده په ايمان کښې وخت په وخت ترقی پيدا کړی، که زړه په يو حالت وې، نو ټول بندګان به په ايمان کښې يو شان وې. نو د مراتبو تفاوت به نهٔ راتلې.
٣- **تعريف للقلب** : اَلْقَلْبُ فِي اللُّغَةِ : لَحْمٌ صُنُوبَرِيٌّ مَرْكُوزٌ فِي الْجَانِبِ الْأَيْسَرِ مِنَ الْحَيَوَانِ : (يوه غوښه ده د صنوبر (صبرې) ونې پشان ده، يعني تيره غونډې ده او زوړنده ده په چپ طرف د حيوان کښې) . دا خوئې خپله لفظی معنیٰ ده.

## اصطلاح د قرآن

د قرآن په اصطلاح کښې د قلب اطلاق په زړه باندې هم کيږی.
(٢) - او په عقل باندې هم کيږی لکه سورة ق (٣٧) (لِمَنْ كَانَ لَهُ قَلْبٌ).
(٣) (اَلْقُوَّةُ الْوَاعِيَةُ فِي ذَلِكَ الْعُضْوِ) . (په دغه اندام کښې چه کوم د يادولو قوت دې هغې ته هم قلب وئيلې شي). (التبيان لابن القيم).
(٤) - او د قلب دپاره لفظ د صدر هم استعماليږی
(٥) - او لفظ د فُؤَاد هم استعماليږی، لکه (مَا نُثَبِّتُ بِهِ فُؤَادَكَ) (هود : ١٢٠)
(٦) - او د صدور لفظ هم استعماليږی.
صدر اصل کښې محل د فؤاد دې او فؤاد محل د قلب دې او قلب محل د عقل دې

(قرطبی) ځکه فؤاد پرده د زړه ده او قلب محل د عقل دے۔

## فائده : عقل کوم ځائے وی ؟

عقل په زړه کښې دے او بیا تعلق او کنکشن ئے د دماغو سره ذّیے، د دے وجے نه د بعض خلقو دا خبره چه دا ټول څیزونه په دماغو کښې وی، مناسب نهٔ ده، بلکه صحیح خبره دا ده چه دماغ په اصل کښې بدن له حرکت ورکوی، نو دا مُحرك دے او زړه اصل کښې رئیس دے، پمپ دے، وینه پاس کوی، او پدے باندے قرآن او سنت گواه دی او دارنگه مشاهده هم ده ځکه کله چه یره راشی یا انسان د خوشحالئ یو خبر واوری یا هیبتناك شے اُووینی نو سمدست زړه حرکت کښې راشی هان د عقل تعلق د ماغو سره هم وی مثال ئے د بټن او بلب دے۔ او د زړه او د دماغو د ټول بدن سره تعلق دے، نو دا عقل په دے زړه کښې پروت دے، خو دماغ ئے چلوی راچلوی، ددے وجے نه زړه او دماغ اعضاء رئیسه دی، نو قرآن کریم کښې د عقل نسبت زړه ته کیږی او قلب ته عرش الله الادنیٰ وائی۔ د الله دوه عرشه دی یو بره او یو وړوکے عرش چه هغه دا زړه دے چه عظمت د الله تعالیٰ پکښې راځی۔

دا وجه ده اهل علم فرمائی : یو بنده چه یو ځائے کښې استواء کوی نو هغه مخکښې صفا کری نو د الله سبحانه وتعالیٰ عظمت هم په هغه زړه کښې نهٔ راځی چه گنده وی او شرك، نفاق او حسد پکښې وی، او د دنیا په څیزونو گنده شوے وی، بلکه دا به اول په توبه سره صفا کړے بیا به د الله تعالیٰ په عظمت سره آباد شی او جمال او جلال به پکښې راشی۔

**فائده** : د ختم او طبع ترمینځ فرق دا دے چه ختم خاص دے او طبع عامه ده کما فی المفردات للراغب۔ (وَقَالَ : وَفِیْ قَوْلِهٖ : خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰی قُلُوْبِهِمْ، اِشَارَةٌ اِلٰی مَا اَجْرَی اللّٰهُ بِهِ الْعَادَةَ اَنَّ الْاِنْسَانَ اِذَا تَنَاهٰی فِیْ اعْتِقَادِ بَاطِلٍ اَوِ ارْتِكَابِ مَحْظُوْرٍ وَلَا یَكُوْنُ مِنْهُ تَلَفُّتٌ بِوَجْهٍ اِلَی الْحَقِّ یُوْرِثُهٗ ذٰلِكَ هَیْئَةً تُمَرِّنُهٗ عَلَی اسْتِحْسَانِ الْمَعَاصِیْ وَكَاَنَّهٗ یَخْتِمُ بِذٰلِكَ عَلٰی قَلْبِهٖ، وَعَلٰی ذٰلِكَ قَوْلُهٗ : اُولٰٓئِكَ الَّذِیْنَ طَبَعَ اللّٰهُ عَلٰی قُلُوْبِهِمْ وَسَمْعِهِمْ وَاَبْصَارِهِمْ وَعَلٰی هٰذَا النَّحْوِ اِسْتِعَارَةُ الْاَغْفَالِ فِیْ قَوْلِهٖ وَلَا تُطِعْ مَنْ اَغْفَلْنَا قَلْبَهٗ عَنْ ذِكْرِنَا وَاِسْتِعَارَةُ الْكِنِّ فِیْ قَوْلِهٖ وَجَعَلْنَا عَلٰی قُلُوْبِهِمْ اَكِنَّةً اَنْ یَّفْقَهُوْهُ وَاِسْتِعَارَةُ الْقَسَاوَةِ فِیْ قَوْلِهٖ وَجَعَلْنَا قُلُوْبَهُمْ قَاسِیَةً الخ)

پدے قول د الله تعالیٰ (ختم الله علی قلوبهم) کښې اشاره ده د الله تعالیٰ جاری عادت ته هغه دا چه انسان کله په باطل اعتقاد او د حرام په ارتکاب کښې انتهاء ته اُورسیږی او هیڅ

طریقے سره حق طرف ته نه متوجه کیږی نو پدے سره ددۀ داسے حالت جوړ شی چه بیا دۀ ته گناه هو نه پیژندلے شی او دا پیژندنه بیکاره کیږی او پدے طریقه سره الله تعالیٰ ددۀ په زړه باندے مهر اُووهی او په همدے طریقه دا آیت هم دے (اُولٰٓئِكَ الَّذِیْنَ طَبَعَ اللهُ عَلٰی قُلُوْبِهِمْ) یعنی طبع پرے اُووهی او په همدے طریقه دے (وَلَا تُطِعْ مَنْ اَغْفَلْنَا قَلْبَه) یعنی زړه ئے الله تعالیٰ د خپل ذکر نه غافل کړی. او دغه شان په زړونو باندے د قرآن کریم او د حق د پوهے نه پردے راولی او زړه کښې ورله قسوت پیدا کړی. لکه په دغه آیتونو کښې راغلی دی.

## د زړونو اقسام :

زړونه درے قسمه دی. ۱- قلب سلیم (روغ زړه) : دا انبیاء علیهم السلام او صحابه کرامو او مؤمنانو زړه وی. ۲- قلب میت : (مړ زړهٔ) دا د کافر زړه دے. (فَاِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰی) (الروم : ۵۲) (اَیْ مَوْتَی الْقُلُوْبِ).

۳- قلب مریض : (دا د منافقانو او ضعیف ایمان والو زړونه دی، اګرکه د دواړو په مرض کښې فرق شته، خکه د منافق مرض ډیر سخت دے.

## نور اقسام :

زړونه دوه قسمه دی : (۱) قلوب الکفار (۲) قلوب المؤمنین.

د دواړو زړونو ترمینځ دومره فرق او تفاوت دے لکه د آسمان او د زمکے، انسانان خو یو شان دی لیکن د زړونو د صفاتو په لحاظ سره پکښې فرق دے، دا وجه ده الله تعالیٰ ایمان والا جنت ته بوزی خکه چه د زړه کیفیت ئے برابر دے او کافر جهنم ته بوځی خکه د زړه کیفیت ئے خراب دے. کله چه د انسان تصور، عقیده صحیح شی او د الله تعالیٰ د محبت نه ډك شی نو دا کامیاب زړه دے او د زړونو صفات زده کول او آوریدل پکار دی دے دپاره چه د قرآن کریم فهم او پوهه حاصله شی. او تفاوت د قلوب المؤمنین والکافرین هم معلوم شی.

## د کافرانو د زړونو صفات:

د کافرانو د زړونو ډیر صفات دی چه الله تعالیٰ بیان کړی دی :

۱- اول صفت : الانکار : د هغوی په زړونو کښې انکار پروت دے) لکه ﴿فَالَّذِیْنَ لَا یُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ قُلُوْبُهُمْ مُّنْكِرَةٌ﴾ (النحل : ۲۲)

۲- **الحمیة** : (د جاهلیت غیرت)، غیرت کښې راشي چه مونږه خنکه خپله لاره پریږدو، ولې مونږه څه نه پو هیږو) لکه : ﴿ إِذْ جَعَلَ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي قُلُوبِهِمُ الْحَمِيَّةَ حَمِيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ ﴾ (الفتح : ۲٦)

۳- **الانصراف** :(د حق نه اوړیدل) لکه : ﴿ ثُمَّ انْصَرَفُوا صَرَفَ اللَّهُ قُلُوبَهُمْ ﴾ (التوبة : ۱۲۷)

٤- **القسوة** : (زړه کښې سختوالے) (که ستا زړه کښې دا صفت راشي نو د کافرانو يو صفت تا کښې راغلے دے) لکه : ﴿ ثُمَّ قَسَتْ قُلُوبُكُمْ مِنْ بَعْدِ ذَلِكَ ﴾ (البقرة : ۷٤)

او ﴿ فَوَيْلٌ لِلْقَاسِيَةِ قُلُوبُهُمْ مِنْ ذِكْرِ اللَّهِ ﴾ (سورة الزمر : ۲۲)۔

٥- **المرض** : ﴿ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ ﴾ (البقرة : ۱۰)۔

٦- **الضيق** : (تنګوالے) خوك چه ضدي شي نو د هغه زړه به تنګ وی) لکه ﴿ يَجْعَلْ صَدْرَهُ ضَيِّقًا حَرَجًا ﴾ (الانعام : ۱۲٥)

۷- **الطبع** : مهر وهل) لکه ﴿ فَطُبِعَ عَلَى قُلُوبِهِمْ ﴾ (المنافقون : ۳)۔

۸- **الختم** :لکه دے آیت کښې دی۔

۹- **الزیغ** :(کوږوالے) لکه ﴿ فَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ زَيْغٌ ﴾ (آلعمران : ۷)

۱۰- **الارتیاب** : (شك) لکه ﴿ وَارْتَابَتْ قُلُوبُهُمْ فَهُمْ فِي رَيْبِهِمْ يَتَرَدَّدُونَ ﴾ (توبة : ٤٥)

۱۱- **الاباء** : (انکار کول د حق نه) لکه ﴿ وَتَأْبَى قُلُوبُهُمْ ﴾ (التوبة : ۸)

۱۲- **الاکنة** : (په زړونو پردے راتلل) لکه : ﴿ إِنَّا جَعَلْنَا عَلَى قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَنْ يَفْقَهُوهُ ﴾ (كهف : ٥٧)

۱۳- **الشدة** : (سختوالے) لکه : ﴿ وَاشْدُدْ عَلَى قُلُوبِهِمْ ﴾ (يونس : ۸۸)

۱٤- **الاشمئزاز** : (نفرت کول د توحید او د الله تعالیٰ د يو والی نه) لکه ﴿ وَإِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَحْدَهُ اشْمَأَزَّتْ قُلُوبُ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ ﴾ (الزمر : ٤٥)

۱٥- **عدم فقه القلب** : (په زړه کښې نے پو هه نشته) لکه ﴿ لَهُمْ قُلُوبٌ لَا يَفْقَهُونَ بِهَا ﴾ (الاعراف : ۱۷۹)

۱٦- **الاغفال یا الغفلة** : (په زړه باندے غفلت راوستل) لکه ﴿ وَلَا تُطِعْ مَنْ أَغْفَلْنَا قَلْبَهُ عَنْ ذِكْرِنَا ﴾ (كهف : ۲۸)

۱۷- **القفل** : (ژرنده) قلف لکه ﴿ أَمْ عَلَى قُلُوبٍ أَقْفَالُهَا ﴾ (محمد : ۲٤)۔

۱۸- **العمیٰ** : (د کافرانو زړونه ړانده وی) لکه : ﴿ فَإِنَّهَا لَا تَعْمَى الْأَبْصَارُ وَلَكِنْ تَعْمَى الْقُلُوبُ الَّتِي فِي الصُّدُورِ ﴾ (الحج : ٤٦)

۱۹- **الغلاف** : (پرده کښې ننوتل) لکه (وَقَالُوا قُلُوبُنَا غُلْفٌ) (البقره : ۸۸)

۲۰- **الهوی** (د خواهش تابعداری)

۲۱- **الموت** : (مړ زړه والا) لکه (اَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَاهُ) (الانعام : ۱۲۲)

دارنګه نور صفتونه ئے هم شته چه قرآن او حدیث کښې ذکر دی۔ انظر تفسیر القرطبی ۱/۱۸۵)

## د مؤمنانو د زړونو صفات :

د مؤمنانو د زړونو هم ډیر صفات قرآن او سنت بیان کړیدی :

۱- **التقوی** : لکه ﴿ ذٰلِكَ وَمَنْ يُعَظِّمْ شَعَائِرَ اللّٰهِ فَإِنَّهَا مِنْ تَقْوَى الْقُلُوبِ ﴾ (الحج :۳۲)

۲- **السکینة** : (د زړه آرام او اطمینان) لکه ﴿ هُوَ الَّذِي أَنْزَلَ السَّكِينَةَ فِي قُلُوبِ الْمُؤْمِنِينَ ﴾ (الفتح : ٤)

۳- **الرأفة** : (په مخلوقاتو شفقت) لکه ﴿ وَجَعَلْنَا فِي قُلُوبِ الَّذِينَ اتَّبَعُوهُ رَأْفَةً وَرَحْمَةً وَرَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوهَا ﴾ الحدید : ۲۷)

٤- **التمحیص** : (په مصیبتونو او غمونو سره زړه صفا کول) لکه : ﴿ وَلِيُمَحِّصَ مَا فِي قُلُوبِكُمْ ﴾ (آل عمران : ۱۵٤)

۵- **الربط** : (په حق باندے کلك والے چه د مصیبت د وجه نه اخوا دیخوا نهٔ اوړی) لکه ﴿ وَلِيَرْبِطَ عَلَى قُلُوبِكُمْ ﴾ (الانفال : ۱۱) او ﴿ لَوْلَا أَنْ رَبَطْنَا عَلَى قَلْبِهَا ﴾ (القصص :٤) او لکه ﴿ وَرَبَطْنَا عَلَى قُلُوبِهِمْ ﴾ (کهف : ۱٤)

٦- **زینة الایمان فی القلب** : (مؤمن بنده ته په زړه کښې ایمان ډیر خوږ او ښائسته ښکاره کیږی) لکه ﴿ حَبَّبَ إِلَيْكُمُ الْإِيمَانَ وَزَيَّنَهُ فِي قُلُوبِكُمْ ﴾ (الحجرات : ۷)

۷- **الاطمینان**: (د الله تعالیٰ د ذکر او عبادت په وجه د مؤمن په زړه کښې اطمینان راځی) لکه ﴿ وَتَطْمَئِنُّ قُلُوبُهُمْ بِذِكْرِ اللّٰهِ أَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوبُ ﴾ (الرعد : ۲۸)

۸- **الخبت والاخبات** : (د مؤمن په زړه کښې ډیر میلان او ډیره خشوع او عاجزی الله تعالیٰ ته پیدا شی) لکه : ﴿ فَتُخْبِتَ لَهُ قُلُوبُهُمْ ﴾ (الحج : ۵٤)

۹- **الوجل** : (د الله تعالیٰ د هیبت او تعظیم نه د زړه ویریدل) لکه ﴿ وَالَّذِينَ يُؤْتُونَ مَا آتَوْا وَقُلُوبُهُمْ وَجِلَةٌ أَنَّهُمْ إِلَى رَبِّهِمْ رَاجِعُونَ ﴾ (المؤمنون : ٦۰)

۱۰- **اللین** : (نرموالے) ﴿ ثُمَّ تَلِينُ جُلُودُهُمْ وَقُلُوبُهُمْ إِلَى ذِكْرِ اللّٰهِ ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ ﴾ (الزمر : ۲۳)

۱۱- **الامتحان** : (د مؤمن په زړه امتحان راځی او زړه ورله صفا کوی) لکه ﴿ أُولٰئِكَ

﴿الَّذِيْنَ امْتَحَنَ اللّٰهُ قُلُوْبَهُمْ لِلتَّقْوٰى﴾ (الحجرات : ۳)

۱۲- **كتابة الايمان فى القلب** : (د مؤمن په زړه کښې الله تعالیٰ ایمان لیکی، کلک ئے پکښې راجمع کوی). لکه ﴿اُولٰٓئِكَ كَتَبَ فِىْ قُلُوْبِهِمُ الْاِيْمَانَ﴾ (المجادلة : ۲۲).

۱۳- **السَّلامَة** : (د مؤمن سړی په زړه کښې به سلامتیا وی) لکه ﴿اِلَّا مَنْ اَتَى اللّٰهَ بِقَلْبٍ سَلِيْمٍ﴾ (الشعراء : ۸۹)

۱٤- **الانابة** : (په زړه کښې به ئے الله تعالیٰ ته رجوع وی) لکه : ﴿وَجَآءَ بِقَلْبٍ مُّنِيْبٍ﴾ (سورة ق : ۳۳)

## د لفظ سمع وضاحت :

لفظ د سمع قرآن کریم کښې (۳۲) کرته ذکر شویدے، ماده ئے (۱۸۳) کرته ذکر شویده او په قرآن کریم کښې په څلورو معنو استعمال دے.

۱- اَلْقُوَّةُ السَّامِعَةُ : (د اوریدلو قوت په غوږ کښې دننه اچولے دے) لکه دا په دے آیت کښې مراد دے. یعنی الله تعالیٰ د دوی د اوریدو په قوت باندے مهر وهلے دے.

۲- اَلْاُذُنُ (غوږ ته هم وائی) لکه ﴿وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ﴾ (النحل : ٤۸)

۳- سمع په معنیٰ د مَسْمُوْع (اَوریدلے شوے خبرے) سره یعنی مصدر مبنی للمفعول دے لکه ﴿اِنَّهُمْ عَنِ السَّمْعِ لَمَعْزُوْلُوْنَ﴾ (الشعراء : ۲۱۲) او ﴿يُلْقُوْنَ السَّمْعَ﴾ (الشعراء:۲۲۳)

٤- په معنیٰ مصدری سره، یعنی اَوریدل) لکه ﴿مَا كَانُوْا يَسْتَطِيْعُوْنَ السَّمْعَ وَمَا كَانُوْا يُبْصِرُوْنَ﴾ (هود : ۲۰) او ﴿وَكَانُوْا لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ سَمْعًا﴾ (کهف :۱۰۱)

## د ابصار لفظ وضاحت :

ماده د لفظ د ابصار قرآن کریم کښې (۱٤۸) کرته راغلے ده.

## د بصر معانی :

۱- اَلْقُوَّةُ النَّاصِرَةُ : (هغه قوت چه لیدل پرے کیږی). لکه ﴿لَا تُدْرِكُهُ الْاَبْصَارُ وَهُوَ يُدْرِكُ الْاَبْصَارَ وَهُوَ اللَّطِيْفُ الْخَبِيْرُ﴾ (الانعام : ۱۰۳)

۲- اَلْبَصِيْرَةُ الْقَلْبِيَّةُ .(د زړه بصیرت) لکه ﴿اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّاُولِى الْاَبْصَارِ﴾ (آل عمران :۱۳) او ﴿فَاِنَّهَا لَا تَعْمَى الْاَبْصَارُ وَلٰكِنْ تَعْمَى الْقُلُوْبُ الَّتِىْ فِى الصُّدُوْرِ﴾ (الحج :٤٦).

چه الابصار په معنیٰ د بصائر سره واخلے نو بیا جمع د بصیرة ده او که ابصار په معنیٰ د سترګو شي نو بیا جمع د بصر ده. او ﴿أُولِي الْأَيْدِي وَالْأَبْصَارِ﴾ (ص :٤٥)

۳- ظاهري سترګے لکه :﴿قُلْ مَنْ يَرْزُقُكُمْ مِنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ أَمَّنْ يَمْلِكُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ﴾ (یونس :۳۰) (وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ) (الملك : ۲۳) والم السجدة (۹) (وَهُوَ الَّذِي أَنْشَأَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ) (المؤمنون : ۷۸) او ددے په باره کښې به په قیامت کښې تپوس هم کیږي لکه (إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ أُولَٰئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْئُولًا) (بنی اسرائیل :۳٦)

دلته د ابصار نه قوت باصره مراد ده چه قوت بصري ترے الله تعالیٰ اخستے دے، ظاهري خیزونو ته خو ګوري، لیکن حق ترے نۀ معلوموي، مُسَبِّب الاسباب ته نۀ ګوري او اسبابو ته ګوري.

## فوائد الآية :

په زړونو باندے د ختم وهلو معنیٰ :

په زړونو باندے دختم معنیٰ دا ده : (عَدَمُ الْوَعْيِ عَنِ اللّٰهِ سُبْحَانَهُ مَفْهُومَ مُخَاطَبَاتِهِ وَالْفِكْرِ فِيْ آيَاتِهِ) (القرطبي) یعنی د الله تعالیٰ په خطاباتو باندے خان نۀ پوهه کول او دهغه په آیتونو کښې فکر نۀ کول) دیته ختم وائي.

## په غوږ باندے د مهر وهلو څه معنیٰ ده ؟

ددے معنیٰ دا ده چه عَدَمُ الْاِسْتِمَاعِ اِلٰى كِتَابِ اللّٰهِ. (د الله تعالیٰ کتاب ته غوږ نه کیخودل او که وائے ورې نو زړه ته نۀ کوزول) دارنګه امام قرطبيؒ داسے تعبیر کړیدے : (عَدَمُ فَهْمِهِمُ الْقُرْآنَ إِذَا تُلِيَ عَلَيْهِمْ أَوْ دُعُوا إِلٰى وَحْدَانِيَّتِهِ) (القرطبي : ۱/۱۸٦) (یعنی په قرآن کریم باندے نۀ پوهیدل کله چه په هغوی باندے لوستلے شي یا د الله تعالیٰ وحدانیت ته را دعوت کړے شي)

## په سترګو باندے د مهر وهلو معنیٰ :

او په سترګو باندے د پردے راتلو مطلب دا دے :عَدَمُ النَّظَرِ فِيْ عَجَائِبِ خَلْقِ اللّٰهِ تَعَالٰى. (د الله تعالیٰ په ناشنا مخلوقاتو کښې نۀ کتل فقط خپلو خواهشاتو کښې فکر کول) امام قرطبيؒ داسے تعبیر کوي : (عَدَمُ هِدَايَتِهَا لِلنَّظَرِ فِيْ مَخْلُوْقَاتِهِ وَعَجَائِبِ مَصْنُوْعَاتِهِ)

(یعنی مخلوقات او عجیبه مصنوعاتو د الله تعالیٰ ته د نظر کولو هدایت ورته نۀ کیږي)

امام رازيؒ په تفسیر الرازي (تفسیر کبیر) کښې لیکي : د کافرانو په زړونو باندے د ختم

وهلو معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ گواهی ورکوی چه دوی ایمان نهٔ راوړی، او زړونه ئے ذکر او نصیحت نهٔ یادوی او حق نهٔ قبلوی، او په غوږونو باندے د ختم معنیٰ دا چه حق ته غوږ نهٔ ایږدی. لیکن دا معنیٰ د رازی صاحبٌ ناقصه ده ځکه صرف گواهی دلته نهٔ ده مراد بلکه گواهی قولی شته او ختم عملی شته.

**فائده** : ختم د قلوب ئے مقدم کړو په سمع او بصر باندے، وجه دا ده چه آیت کښې بیان د عدم ایمان د کفارو دے نو مناسب ده چه زړه مخکښې شی ځکه زړه محل د ایمان دے او سمع او بصر ئے آلات او طرق دی.

**فائده** : په سورة الجاثیة (وَخَتَمَ عَلٰی سَمۡعِهٖ وَقَلۡبِهٖ) کښې ئے خو سمع مقدم کړیدے په قلب باندے. ددے حکمة دا دے چه هلته بیان ددے خبرے دے چه دوی په مواعظو او نصیحتونو هیڅ باك نهٔ کوی ځکه ئے په آخر د آیت کښې (اَفَلَا تَذَكَّرُوۡنَ) راوړیدے او مواعظ اَوریدل اول تعلق لری د سمع سره. نو هلته مناسب وو چه سمع مقدم کړی په قلب باندے. (تفسیر الآلوسی ۱/۱۳۳) (۲) بله وجه دا ده چه هلته رد په هغه کفارو دے چه قرآن ئے نهٔ اَوریدلو او دلته په هغه کافرانو رد دے چه ایمان نهٔ راوړی. فتدبر.

**فائده** : دا ترتیب ولے اختیار کړے شو؟ نو ددے یو څو حکمتونه دی (۱) په ختم علی القلوب کښې اشاره ده چه دوی استدلال د حق د آیتونو نه پخپله نشی کولے او فکر هم نهٔ کوی او ختم علی السمع دا دے چه څوك ورته استدلال پیش کوی نو دوی ورته غوږ نهٔ ږدی، او غشاوة د سترگو دا ده چه څوك ورته حق بیانوی نو د هغه شکل ته هم نهٔ گوری نو په څه به هدایت ته اُورسی؟. (۲) دا رنگه اول د عنادی انسان په زړه کښې د حق منلو نه نفرت پیدا شی، نو بیا د هغے اَوریدل هم نشی برداشت کولے، نو بیا د هغے د لیدلو نه هم خان بچ ساتی. (۳) دا رنگه اول انسان پخپله فکر او سوچ کولو سره حق ته اُورسی، خو چه پو هه نشی نو بیا د بل چا نه ئے واوری، هغه ئے متوجه کړی، او کله د بل په خبره هم پوره پو هه نشی نو بیا دلیلونو او کائناتو او نخو نخانو ته نظر اُوکړی او کله چه عناد گر انسان دا درے واړه حالات اختیار نکړی نو د حق نه به همیشه دپاره محروم وی.

**فائده** : علی لفظ ئے د سَمۡعِهِمۡ او اَبۡصَارِهِمۡ سره دوباره راوړو. حکمة دا دے چه پدے کښې اشاره ده چه په دواړو ځایونو کښې ختم ډیر سخت دے. او هر یو ختم جدا جدا دے (تفسیر کبیر ۱/۳۲۳) (واللباب لابن عادل ۱/۸۳)

**فائده** : د سمع لفظ ئې مفرد وئیلے دے او قلوب او ابصار ئې جمع راوړے ده۔ (۱) اوله وجه دا ده چه غوږ هر طرفته اوریدل کوی، که مخامخ وی، او که شاته وی، یعنی مدرکات د غوږ صرف آوازونه دی، یو شے دے۔ او سترګے یو طرف نه لیدل کوی هر طرف ته په جدا جدا کتل کوی، دارنګه مبصرات د سترګو ډیر قسمونه دی، او د زړه مدرکات (معلومات) هم ډیر قسمونه دی، نو ځکه ئې د سمع لفظ مفرد راوړے دے او د ابصار او قلوب لفظ ئې جمع راوړے ده۔

۲- دویمه وجه دا ده چه دا د لغت عربی بلاغة دے او قرآن کریم کښې دا بلاغة ډیر بیانیږی چه په یو ځائے باندے درے جمع نهٔ ذکر کوی چه علیٰ قُلُوْبِهِمْ وَاَسْمَاعِهِمْ وَاَبْصَارِهِمْ، یو لفظ پکښې کله مفرد ذکر کوی، دیکښې بلاغة زیات وی. لکه ﴿ اِنْ تَتُوْبَا اِلَی اللّٰهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوْبُکُمَا ﴾ دلته د قَلْبَاکُمَا (تثنیه) په ځائے قلوب جمع راوړه ځکه بلاغة پدے کښې دے۔

**فائده** : ظاهر دا ده چه دلته علیٰ سمعهم باندے وقف دے نو سمع او قلب ئې شریک کړو په ختم کښې حکمة دا دے چه یو تن هغه خبره اوری چه په کوم باندے پوهه شی۔ نو د دواړو د یو بل سره تعلق دے۔ دارنګه قلب او سمع دواړه د هر جانب نه معلومات کوی۔

(نظم الدرر للبقاعی ۱/۱۳) (التفسیر الحقی ۱/۵۱)

**فائده** : سمع ئې مقدم کړه په بصر باندے، حکمة دا دے چه غوږ اشرف دے په نسبت د بصر ځکه چه په غوږ سره د هر طرف نه خبرے اوریدل کیدے شی او هغه بیا زړه ته کوزیږی، او زړه پرے فکر کوی نو مناسب ده چه دا د زړه سره نزدے ذکر کړے شی۔

## فائده : کوم یو غوره دے؟ سمع که بصر؟

دیکښې د متکلمینو اختلاف دے چه غوږونه غوره دی که سترګے؟ (۱) نو بعض وائی غوږونه غوره دی، ځکه ئې مخکښې کړی هم دی چه غوږونه نهٔ وو نو یوه ژبه به هم درته یاده نهٔ وی، د الله نوم به هم درته یاد نهٔ وی، کلمه به نشے وئیلے، هیڅ نه به خبر نه ئې او سترګے چه درسره نهٔ وی نو ډیر شیان زده کولے شی۔ ۲- او دا تقدیم هم دلالت کوی په فضیلت د غوږ باندے۔ ۳- غوږ شرط د نبوت دے او سترګے شرط نهٔ دے، ددے وجه نه الله تعالیٰ هیڅ نبی کونړ نهٔ دے رالیږلے او په انبیاء علیهم السلام کښې بعض هغه هم تیر شویدی چه په سترګو ړاندهٔ شوی وو۔ ٤- په غوږ سره د زړه نتیجے د یو انسان نه بل انسان ته نقل کولے شی او په سترګو سره نهٔ نقل کیږی۔ نو سمع سبب دے د استکمال العقل بالمعارف۔ یعنی عقل په

علومو کښې د کامل کیدو دپاره سمع ته محتاج دے۔

(۲) **دویم قول** دا دے چه سترګے غوره دی، ځکه دے باندے د الله تعالیٰ کائنات لیدلے کیږی، قرآن پرے لیدلے کیږی، د مؤمنانو مخونه هم پرے لیدلے کیږی. پدے باندے عبرت ډیر اخستلے کیږی۔ ۲- دویم دا چه متعلق د سترګو نور دے او متعلق د غوږ هواګانے دی او نور غوره دے د هواګانو نه۔ (تفسیر الرازی ۳۲۳/۱)

ظاهره دا ده چه سمع افضل دے ځکه چه بنیاد د علومو په سمع دے که ابتداءً دا نهٔ وی نو انسان به په هیڅ خبر نهٔ وے۔ لیکن دواړو له الله تعالیٰ خپله خپله فائده ورکړے ده چه یو د بل په ځائے نهٔ قائمیږی، غوږ د سترګے په ځائے کار نهٔ ورکوی او سترګه د غوږ په ځائے بلکه هر یو کښې ډیره ډیره فائده ده۔

**فائده** : دا درے واړه اندامونه ډیر مهم دی ددے وجے نه الله سبحانه وتعالیٰ د غوږ او سترګے او زړه د هر یو تذکره په یو ځائے په ډیرو سورتونو کښې کړیده سوره نحل (۷۸) کښې ئے کړیده امتناناً بالعباد۔ چه اے خلکو ! تاسو له الله تعالیٰ دا درے نعمتونه درکړی دی۔ ﴿ وَاللَّهُ أَخْرَجَكُم مِّن بُطُونِ أُمَّهَاتِكُمْ لَا تَعْلَمُونَ شَيْئًا وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ وَالْأَفْئِدَةَ ﴾ دا امتنان ئے په سورة المؤمنون (۷۸) او سورة الم السجده (۸) او په سورة الملك (۲۳) آیت کښې کړیدے نو دا غټ نعمتونه دی۔ او په سورة الاسراء (۳۶) کښې ددے په بابت کښې سوال او حساب ذکر شویدے۔

**فائده** : بیا ددے ازاله (زوال) په دوه قسمه دے. (۱) یو ظاهری دے چه ظاهراً بند شی، کار پریږدی، نو ظاهری بندیدل دا ابتلاء ده په مؤمنانو هم راځی، الله تعالیٰ ورته جنت ورکوی، ډیر صحابه کرام په سترګو ړانده شوی دی، لکه عبد الله بن عباس. عبد الله بن عمر، جابر بن عبد الله، زید بن ارقم، عتبان بن مالك، عبد الله بن ام مکتوم، کعب بن مالك رضی الله عنهم اجمعین) او داسے نور۔ او په کافر و هم راځی د هغوی دپاره سزاوی۔

او دلته دا قسم بوتلل ندی مراد ۔(۲) - دویم قسم باطنی بوتلل دی چه حق پرے نه اوریدل کیږی او نهٔ لیدل کیږی، غوږونه سترګے او زړه لری لیکن حق پر نهٔ معلوموی، د الله سبحانه وتعالیٰ د قدرت نښے پرے نهٔ وینی نو دا بیا غټ عذاب دے او دا الله تعالیٰ صرف خپلو دشمنانو له ورکوی او مومنانو له ئے نهٔ ورکوی، هغوی نه سترګے او غوږونه پداسے طریقه نهٔ اخلی چه د الله تعالیٰ د دلائلو او قرآن کریم نه فائده وانهٔ خلی۔

**غشٰوة** : (هُوَ الغِطَاءُ الشَّامِلُ) (هغه پرده ده چه پوره په سترګو راغلی وی) (تفسیر عز الدین

ابن عبد السلام) تنوين په کښې د تنکير دپاره دے او تنکير دپاره د تعجب دے يعنې غِشَاوَةٌ عَجِيبَةٌ) (ناشنا پردے دی) چه ډاکټران ئے په دوربين هم نشي معلومولے۔ او هغه د څه پردې دي؟ ۱ - غِشَاوَةُ التَّعَامِيْ عَنْ آيَاتِ اللّٰهِ۔ (خازن) (د الله تعالىٰ د آيتونو نه د ځان ړوندولو پردے دی) يعنې قصداً ئے ځان ړوند او غافل ساتلے دے، هيڅ عبرت او نصيحت نهٔ اخلي۔ بيا دا پردے د چا زياتے وي او د چا کمے، څوک په هيڅ خبره نهٔ پوهيږي او څوک په يوه خبره نيمه پوهه شي او څوک په زياتو خبرو پوهيږي۔

**فائده** : د قلب او سمع سره د ختم او د بصر سره د غشاوة ذکر کولو حکمة دا دے چه د قلب او د سمع معلومات د هر طرف نه کيدے شي او د بصر معلومات صرف د مخامخ طرف نه وي، نو ختم چه د هر طرف نه بندولو ته وئيلے شي، د قلب او د سمع سره مناسب دے او غشاوة (پرده) چه صِرف د مخامخ نه پټول کوي د سترګو سره مناسب ده۔

**فائده** : په جانب د قلب او سمع کښې ئے جمله فعليه راوړه چه دلالت کوي په تجدد او حدوث او په جانب د بصر کښې ئے جمله اسميه راوړه چه دلالت کوي په دوام او استمرار۔ حکمة دا دے چه دوی د رسول الله ﷺ د نبوت نه مخکښې د هيڅ نذير آواز نهٔ وو اوريدلے او هيڅ حُجت پرے نهٔ وو قائم شوے، او دلائل او حجت قائميدل او د نذير آواز اوريدل د رسول الله ﷺ د نبوت نه بعد شروع شو، نو هغه د مخکښې نه هميشه نهٔ وو، او کوم شے چه په سترګو ليدلے کيږي چه هغه د الله تعالىٰ د وجود او د قدرت دلائل دی نو هغه د رسول الله ﷺ نه مخکښې هم موجود وو، په آسمانونو او زمکو او د دوی په نفسونو کښې نو دوی هغه ليدلے شو او د هغې په وجه ئے خپل رب پيژندلے شو۔ نو ځکه ئے د بصر سره جمله اسميه راوړه۔ (الوسيط للسيد طنطاوي ۱/۲۲)

﴿ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴾

(اَیْ فِی الْآخِرَةِ ۲ - وَقِيْلَ اَلْاَسْرُ وَالْقَتْلُ فِی الدُّنْيَا وَالْعَذَابُ الدَّائِمُ فِی الْعُقْبٰی) (خازن ۱/۱۲)

دا اُخروي عذاب دے۔ کافرانو دپاره لوئي عذاب ځکه دے چه د دوی کفر لوئي دے او کفر ئے ښکاره دے، د الله تعالىٰ د حقوقو او بندګئ نه انکار دے، روستو راځي منافقانو دپاره عذاب اليم دے ځکه هغوی مؤمنانو ته درد ورکوي، د هغوی ضرر پټ دے او ددے کافرانو ضرر ښکاره دے نو جزا من جنس العمل وي۔ ۲ - يا ددے نه مراد دنياوي عذاب هم کيدے شي په قيد کولو او قتل کولو سره، سره د عذاب دائم نه په عقبیٰ کښې۔ (پوره عذاب په آخرت کښې دے)۔

## معنیٰ د عذاب :

(**عذاب**) په لغت کښې د عذاب دوه معنے دي (۱) د عذوبة نه ماخوذ دے، او عذوبة خوند او مزے ته وئيلے شي. نو عذاب ته عذاب ځکه وائي چه پدے کښې سلب العذوبة دے، خوند د يو شي نه زائله کوي، نو پدے کښې معنیٰ د سلب پرته ده. يو شے چه بے خونده شي نو ديته عذاب وائي لکه وهل، زهر، اُور وغيره بے خونده شے دے، مزه پکښې نشته بلکه تکليف پکښې دے، نو بيا عذاب د هر تکليف او هرمصيبت دپاره استعماليږي. لکه سفر ته هم عذاب وئيلے شويدے (اَلسَّفَرُ قِطْعَةٌ مِنَ الْعَذَابِ) الحديث) ځکه په سفر کښې هم تکليف وي. (۲) دويم : عذاب د عَذْبٌ نه ماخوذ دے، په اصل کښې منع او بندش ته وئيلے شي، لکه علي ﷺ فرمائي : (اَعْذِبُوْا نِسَاءَكُمْ) وَفِيْ لَفْظٍ (اَعْذِبُوْا عَنْ ذِكْرِ النِّسَاءِ) (القرطبي) (يعنی منع کړئ خپلے زنانه د وتلو نه، يا په جهاد کښې د زنانو تذکره مه کوئ) (لازم او متعدي دواړه استعماليږي) نو عذاب ورته ځکه وائي چه د صاحب د عذاب نه هر هغهٔ خير او راحت، چه بدن سره مناسب وي، منع کولے شي.

او عذاب په اصطلاح د شريعت کښې هر تکليف او مصيبت ته وائي، که د بدن سره تعلق لري او که د مال سره او که د هر شي سره خو چه تا ته تکليف درکوي نو دغه ته عذاب وائي. ابو هريره ﷺ په يو ماشوم جنازه کوله او داسے اُوفرمايل : (اَللّٰهُمَّ اَعِذْهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ) (يعنی د قبر د پريشانۍ او تنګوالي او وحشت نه ئے بچ کړه)

**فائده : د عذاب** لفظ ماده په قرآن کريم کښې (۳۷۵) کرته ذکر ده، او الله تعالىٰ د عذاب مختلف صفتونه ذکر کړی دي لکه ۱ - کله عذابِ عظيم، ۲ - عذاب اَلِيم،
۳ - سُوْءُ الْعَذَابِ دا به په دے سورت کښې روستو راشي. ٤ - او دارنګه اَشَدُّ الْعَذَاب، ٥ - عذابِ مُهِيْن (سپکونکے او ذليله کونکے عذاب) ٦ - عذاب شديد، ۷ - اَلْحَرِيْقُ (سوزونکے عذاب) ۸ - اَلْمُقِيْمُ، (اَلدَّائِمُ) ۹ - اَلْخِزْيُ (د شرم عذاب په دنيا کښې)
۱۰ - دارنګه لفظ د اَشَقّ استعمال دے (مشقت ورکونکے) ﴿ وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ اَشَقُّ ﴾
۱۱ - عذاب وَاصِبٌ، ۱۲ - عَذَابَ الْخُلْدِ. ۱۳ - عذاب النار. ۱٤ - عذاب جهنم. وغيره.

**فائده** : د کافرو دپاره عذاب عظيم، اشق، مهين، الحريق، اشد العذاب وغيره مخکښې ذکر شوی عذابونه استعماليږي او کافر ددے ټولو مستحق دے او منافقانو دپاره غالباً اليم

ذکر کیږی او ګناهګارو مؤمنانو دپاره هم عذاب ذکر کیږی لیکن هغهٔ تادیبی عذاب وی، مُهین نهٔ وی. (قاله شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله رحمة واسعة)

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ

او بعض د خلقو نه هغه څوك دی چه وائی، مونږ ایمان راوړیدے په الله تعالیٰ او په ورځ روستنۍ

وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ ﴿۸﴾

(حال دا چه) نهٔ دی دوی ایمان والا (په زړونو کښې).

**تفسیر:** دلته اُوس دریمه ډله بیانیږی.

دلته هم یو څو خبرے بیانولے شی : ۱- مناسبت د آیتونو مخکښې سره. ۲- حاصل د آیتونو د رکوع پورے. ۳- د من الناس نه دلته څوك مراد دی.

٤- څلورم به د منافقت متعلق څو بحثونه بیانیږی.

(۱)- اقسام د منافقینو (۲) - منافقینو سره نبی علیه السلام جنګ ولے نهٔ کولو.

(۳) - د منافقانو صفات نے ولے دومره ډیر راوړی دی.

٤- بحث د الفاظو د وضاحت.

**۱- البحث الاول : مناسبت د آیتونو :**

مخکښې د مؤمنانو حالات، بیا د کافر حالت بیان شو، اُوس بین بین خلك بیانوی چه ظاهره کښې خو مسلمانانو وو، لیکن په حقیقت کښې کافر وو، د دنیاوی مصالحو د خاطره ئے اسلام ښکاره کړے وو. (۲) دویم مناسبت د موضوع د سورت سره دا دے چه ایمان بالغیب مفید دے او کفر هلاکت دے او لفظی ایمان آخرت کښې کار آمد ندے اګرکه څه نا څه دنیاوی فائدے به په هغے حاصلے شی. (۳) دا تشریح د ولا الضالین ده نو دا دریمه ډله ده.

(٤) کفارو سره ئے قریب منافقان ذکر کړل د وجه د مناسبت د منافقانو د کافرانو سره.

**۲- حاصل الایات :** دے آیتونو کښې الله تعالیٰ د دریمے طائفے تذکره کوی چه ضالین دی په (۱٦) بدو صفاتو، او دوه عذابونو بیانولو سره، په مینځ کښې او دوه مثالونه په آخر کښې. تفصیل ئے دا دے : اول آیت کښې الله تعالیٰ د منافقانو دا خصلت بیان کړیدے چه وما

هم بمؤمنين (مؤمنان ندي) بيا دويم يُخَادِعُوْنَ اللهَ ( الله تعالىٰ سره دوكه كوي) دريم وما يشعرون (شعور پكښې نشته ) څلورم فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَرَضٌ (په زړونو كښې ئې مرض دے) پنځم بما كانوا يكذبون (دروغجن دي) شپږم اِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُوْنَ (فساد ته اصلاح وائي) اوم خپله مفسدان دي. اتم تَسْفِيْهُ الْعُقَلَاء (په دين كښې چه څوك مشران دي هغوي ته بد گوري) نهم : خپله بے وقوف دي، لسم : لَا يَعْلَمُوْنَ (نهٔ پو هيږي) يو لسم : اِذَا لَقُوا الَّذِيْنَ آمَنُوْا (ذو الوجهين (دوه مخي) دي. مؤمنانو سره چه يو ځائے شي يوه خبره كوي او كافرو سره بله) ۔۱۲ – اِسْتِهْزَاء بِالْمُؤْمِنِيْنَ (په مؤمنانو پورے توقے كوي). ۱۳ – في طغيانهم (الله ئې سركشي ډيروي). ۱٤ – يَعْمَهُوْنَ (زړونه ئې راندهٔ دي). ۱۵ – اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الضَّلٰلَةَ (گمراهي اخلي) (۱٦ ) وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ (په هدايت نهٔ دي روان)

نو روستو ورله دوه مثالونه راوړي. (مَثَلُهُمْ) اول مثال ناري (اُور والا) (اَوْ كَصَيِّبٍ) سره مثال مائي (اُوبو والا). پدے سره منافقان ښهٔ پيژندل كيږي، دوه عذابونه ئې پدے مينځ كښې ذكر كړي دي، يو عذاب اليم، دا د آخرت عذاب دے، الله تعالىٰ به دوي له دردناك عذاب وركوي آخرت كښې، او دنيا كښې ورله هم عذابو نه وركوي، يو په دنيا كښې د دين عذاب، (فَزَادَهُمُ اللهُ مَرَضًا) . الله تعالىٰ به ورله مرض زيات كړي. (وَيَمُدُّهُمْ فِيْ طُغْيَانِهِمْ) دا ئې بل عذاب دے چه سركشي به ورله ډيره كړي، دا دواړه د دين متعلق عذاب دے.

**(وَمِنَ النَّاسِ)** عام مفسرين وائي : دا د منافقانو بحث دے، دلته الله تعالىٰ د منافقينو خصلتونه ذكر كوي. او همدا ظاهر قول دے او بعض اُوسنو تفسيرونو كښې ليكي چه دا د يهودو صفات دي ليكن دا خبره صحيح نهٔ ده ځكه د يهودو بحث روستو راځي. دويم دا چه يهود ټول منافقان نهٔ وو، بلكه ښكاره كافر وو لږ لږ پكښې منافقان وو نو هغوي به هم پدے آيتونو كښې داخل وي.

## د منافقانو تاريخ پيدائش

د دوي پس منظر دا دے چه رسول الله ﷺ چه كله د مكے معظمے نه مدينے طيبے ته هجرت اُوكړو نو هلته درے قسمه خلق اُوسيدل. (۱) د اُوس او خزرج انصار مسلمانان. (۲) او د اوس او خزرج هغهٔ خلق چه اسلام ئې لا قبول كړے نهٔ وو. (۳) او د يهوديانو درے قبيلے. ۱ – بنو قينقاع (د خزرج حلفاء) او بنو نضير ۳ – او بنو قريظه. (د اوس حلفاء).

د رسول الله ﷺ مدينے ته راتلو نه پس د اَوس او خزرج ډير عرب اسلام کښې داخل شو او ډير کم يهوديانو اسلام قبول کړو، په ابتدائي ورځو کښې په مدينه کښې منافقان نهٔ وو موجود ځکه په هغهٔ وخت کښې د مسلمانانو رعب او دبدبه نهٔ وه، بلکه د حالاتو د تقاضے مطابق رسول الله ﷺ د يهوديانو او د عربو ډيرو قبيلو سره مصالحت اُوکړو، د واقعے د بدر نه بعد د مسلمانانو هيبت په کافرانو باندے طاري شو، نو عبد الله بن ابي بن سلول (رئيس المنافقين) چه د خزرج قبيلے وو او د رسول الله ﷺ د راتلو نه مخکښې مدينے والو دهٔ لره خپل بادشاه مقررولو او تاج ئے ورته په سر کولو۔ هغهٔ اُوليدل چه اُوس خو اسلام غالبيږي او د مسلمانانو قدمونه مضبوطيږي نو هغهٔ او د هغهٔ ملګرو (د دنيا د لالچ او د يرے په وجه) د زړه په ناخوښئ سره په اسلام کښې د داخليدو اعلان اُوکړو، څه يهوديانو هم دغه شان اُوکړل نو پدے طريقه منافقان په وجود کښې راغلل، ددے نه روستو خواؤ شا بانديچيانو هم دغه شان اُوکړل او د مؤمنانو په صفونو کښې داخل شول۔ او دے منافقانو به شرك نهٔ ښکاره کولو بلکه دوی به پنځه مونځونه بلکه اووه او اته مونځونه کول حديث کښې راغلي دی چه منافقينو به تهجد هم کول، د ضحیٰ مونځ به ئے هم کولو، د جُمعے مانځه له به هم راتلل، جهادونو ته به تلل او د مسلمانانو په عامو مشورو کښې به هم شامليدل ليکن بيا هم کافر وو، ځکه خبره ئے زړه ته نهٔ وه پريوتے، چه موقعه به ورته ملاؤ شوه نو ورانے به ئے کولو نو پدے آيتونو کښې قبيح صفات د منافقانو بيانيږي۔ دا منافقت بيا په هره زمانه کښې شته لکه روستو راځي۔

## د منافقت وضاحت :

منافقت او نِفَاق څه ته وائي ؟ نَفَقَ اصل کښې سوري کولو ته وائي، د نَفَقَ الْيَرْبُوْعُ نه ماخوذ دے، منافق ته منافق ځکه وائي چه دا دوه لارے لري لکه يربوع (صحرائي مږه) چه دوه سوړې لري، چه ښکاري ورپسے ورشي، نو هغه ترے په بله لاره وځي، چلباز حيوان دے، نو د منافق هم دوه لارے وي، د خولے يوه لاره، او د زړه بله، د مسلمانانو سره يو شان وي، د کافرو سره بل شان۔

## د نفاق اصطلاحي معنیٰ :

نفاق په اصطلاح د شريعت کښې درے قسمه دے۔ (۱) منافق شکي۔ (۲) دويم : اعتقادي

(عقیدوی). (۳) دریم عملی.

منافق شکی دیته وائی چه په زړه کښې ئې شك وی چه دا نبی او دا قرآن کریم به حق وی او که نهٔ ؟، دا منافقان شکیان په مکه کښې لږ لږ موجود وو، عام منافقان نهٔ وو ځکه چه د مؤمنانو زور نهٔ وو. لکه په سورة العنکبوت (۱۱)کښې فرمائی : (وَلَيَعْلَمَنَّ الْمُنَافِقِينَ) منافق هغه ځائے کښې پیدا کیږی، کوم ځائے کښې چه د مسلمانانو زور پیدا شی). او هلته زور نهٔ وو نو منافقان نهٔ وو خو صرف شکیان وو چه دا شك به ئې کولو چهٔ بعض خبرے د نبی (ﷺ) بے لګی او بعض داسے خبرے کوی چه دماغ ئې نهٔ اخلی، نو شك ئې پیدا شوے وو، دا وجه وه چه کله د معراج واقعه راغله نو بعض کسان واوریدل چه دا نبی (ﷺ) څنګه خبرے کوی چه زه په هوا والوتم، او بیت المقدس ته اُورسیدم، او بیا بره آسمانونو ته وُختلم، دا خو زمونږ عقل نهٔ منی، نو ایمان ئې پریخودو، الله تعالیٰ کله کله داسے امتحان راولی.

۲- **دویم اعتقادی منافق** دے (هُوَ اَنْ يُّبْطِنَ الْكُفْرَ وَيُظْهِرَ الْاِيمَانَ) (چه زړه کښې قصداً کفر ساتی او په ظاهره کښې ایمان ښکاره کوی) نبی، قرآن او حدیث منی، لکه دا د منافقانو طریقه وه، رسول الله ﷺ ته به ئې کنځل هم کول او دا کوشش به ئې هم کولو چه څه طریقے سره ئې قتل کړی، ختم شی، دا به ئې خوشوله هم چه بل څوك پرے غالبه شی، څوك راشی او پدے مدینه باندے حمله اُوکړی او دا مسلمانان ختم کړی. دا منافق اعتقادی دے، دا فی الدرك الاسفل من النار دے او دا د کافر نه هم ډیر غټ کافر دے.

۳- **دریم منافق عملی** دے، دا دیته وائی : (هُوَ اَنْ يَّكُوْنَ اَعْمَالُهٗ اَعْمَالُ النِّفَاقِ) (چه عملونه ئې د منافقت وی)، زړه کښې ئې کفر نهٔ وی، الله تعالیٰ، رسول (ﷺ) او قیامت، ټول منی، او اقرار کوی چه دا حقے خبرے دی، خو عملونه ئې خراب وی. لکه د منافقت هغهٔ اعمال قرآن او احادیثو کښې تفصیلاً بیان شویدی. لکه دروغ وئیل، وعده خلافی کول، خیانت کول، کنځل کول، تهنګ تکور آوریدل، د منافقت نه نهٔ یریدل.

۲- ابن کثیر رحمه الله لیکی : منافقت دے ته وائی : (اِظْهَارُ الْخَيْرِ وَاِسْرَارُ الشَّرِّ) (خیر راښکاره کول او زړه کښې شر پټ ساتل)

## نفاق نه د صحابه کرامو ﷺ یره

صحابه کرامو به د زړهٔ کیفیت بدلیدو ته او غفلت راتلو ته هم منافقت وئیلو. لکه د (نَافَقَ

حَنْظَلَةُ) واقعه مشهوره ده. حنظله ﷺ د سيدنا ابوبكر صديق ﷺ سره ملاؤ شو، وے وئيل: (نَافَقَ حَنْظَلَةُ) (حنظله خو منافق شو) تپوس ئے اُوكړو: دا څنګه؟ وے وئيل: مونږ چه د رسول الله ﷺ سره ناست يو، يو شان يو، او چه د هغه د مجلس نه راپاڅيږو (عَافَسْنَا الْأَوْلَادَ وَالْأَزْوَاجَ وَالضَّيْعَاتِ نَسِيْنَا كَثِيْرًا مِمَّا يُحَدِّثُنَا بِهِ) (بچو، ښځو او ځمكو سره مو اختلاط راشي نو د هغه ډيرے خبرے زمونږ نه هيرے شي)، نو دا كار ورته منافقت ښكاره كيدو) بيا نبي ﷺ له ورغلل او هغه ورته علاج اُوخودلو. چه كه تاسو په هغه حالت شئ كوم باندے چه زما په مجلس كښې يئ، نو ملائك به تاسو سره مصافحه شروع كړي.

۲- دارنګه هغوی به دا سوچ كولو چه زمونږ زړونو كښې كله نا كله غفلت او خړ والے او بے محبتي پيدا شي، استحضار د الله تعالیٰ هميشه نۀ وي، نو دا به هم منافقت وي، دے نه به يريدل. سيدنا عمر فاروق ﷺ جناب حذيفة بن اليمان ﷺ ته اُوفرمايل: تاته رسول الله ﷺ د منافقانو نومونه خودلي دي: آيا زۀ ئے په هغوی كښې درخودلے يم كه نه؟ نو اُوكوره سيدنا عمر فاروق ﷺ ته خپل ځان معلوم دے چه زۀ مسلمان مؤمن يم. الله تعالیٰ او د هغه رسول منم خود دغه منافقت نه به يريدل چه كيدے شي مونږه هسے منلي وي، او ډير اثر ئے نۀ وي كړے.

۳- ابن ابي مليكه رحمه الله فرمائي: [أَدْرَكْتُ ثَلَاثِيْنَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ ﷺ كُلُّهُمْ يَخَافُ النِّفَاقَ عَلٰى نَفْسِهِ، مَا مِنْهُمْ مَنْ يَقُوْلُ :إِنَّهُ عَلٰى إِيْمَانِ جِبْرِيْلَ وَمِيْكَائِيْلَ]

(صحيح البخاری ۲۶/۱)

(ما ديرش صحابه كرام موندلي دي چه ټول به د منافقت نه په خپل ځان ويريدل، يو په هغوی كښې هم داسے نۀ وو چه وئيل ئے: زما ايمان د جبرئيل او ميكائيل په شان دے).

۵- حسن بصريؒ فرمائي: (مَا خَافَهُ إِلَّا مُؤْمِنٌ وَلَا أَمِنَهُ إِلَّا مُنَافِقٌ)

(بخاری ۲۶/۱) بَابُ خَوْفِ الْمُؤْمِنِ مِنْ أَنْ يُحْبَطَ عَمَلُهُ)

(د منافقت نه صرف او صرف مؤمن ويريږي او د منافقت نه منافق بے غمه وي) نو دا ښه ده چه كه ته د منافقت نه يريدلے معلومه شوه چه تا كښې به منافقت نۀ وي.

۶- ابراهيم التيمي رحمه الله فرمائي: (مَا عَرَضْتُ قَوْلِيْ عَلٰى عَمَلِيْ إِلَّا خَشِيْتُ أَنْ أَكُوْنَ مُكَذَّبًا) (صحيح البخاری) (ما خپل قول په خپل عمل نۀ دے پيش كړے مګر يريدلے يم چه زۀ به دروغجن يم) ځكه چه ډير كرته د انسان قول د هغه د عمل خلاف وي، په خپلو خبرو

عمل نهٔ کوی، نو دا هم منافقت دے۔
۷۰- جامع العلوم والحکم ص (٤۳٤) کښې علامه ابن رجب رحمه الله فرمائی : (د منافقت عملی لوئی خصلت دا هم دے چه یو انسان عمل کوی د بد غرض حاصلولو دپاره او خلقو ته دا ښکاره کړی چه زما مقصد ښه دے، او بیا پدے کار خوشحاله هم وی او پدے سره د خلقو مدح خان ته راکاږی لکه منافقانو مسجد ضرار جوړ کړو غرض ئے غلط وو لیکن خلقو ته ئے دا ښکاره کړه چه زمونږ نیت او غرض پکښې ښه دے۔ روسته خداع لفظ کښې هم راځی۔
۸۰- حسن بصریؒ فرمائی : (مِنَ النِّفَاقِ اخْتِلَافُ الْقَلْبِ وَاللِّسَانِ وَاخْتِلَافُ السِّرِّ وَالْعَلَانِيَةِ وَاخْتِلَافُ الدُّخُولِ وَالْخُرُوجِ) (جامع العلوم) (دا هم منافقت دے چه د زړه او د ژبے ترمینځ مخالفت وی، او د ظاهر او د باطن ترمینځ مخالفت وی او د وتلو او ننوتو ترمینځ مخالفت وی) ۔او دغه شان قول د ابن جریجؒ هم دے، ابن کثیرؒ نقل کړیدے۔
(**تنبیه**) د سلف صالحینو طریقه دا وه چه دا قسم آیتونه به ئے د ځان سره لګول، او په نورو مسلمانانو به ئے نهٔ چسپانول، لکه نن صبا دا مرض عام دے چه یو آیت یا حدیث راشی نو خلق نوروته ګوتے اُونیسی او حال دا چه دغه مرض به په دهٔ کښې په اعلیٰ درجه موجود وی۔ والله المستعان۔ محمد بن سیرینؒ فرمائی : (اَخْوَفُ آيَةٍ فِي الْقُرْآنِ) دا آیت په قرآن کریم کښې ډیر د ویرے آیت دے) ځکه یو انسان به په ظاهره کښې مسلمان وی او د الله تعالیٰ په نزد به منافق وی، نو صحابه کرام او سلف صالحین به ددے آیتونو نه ډیر ویریدل۔
بعض خلق دا آیتونه د اهل حقو پسے لګوی او هغوی ته د منافقت نسبتونه کوی دا ډیر لوئی تاوان دے، مؤمنانو ته د نفاق نسبت ښه نهٔ وی پخپله ویریدل پکار دی، ځکه ایمان د یو کیفیت نوم دے، د الله تعالیٰ او د رسول الله ﷺ د محبت نوم دے، الله تعالیٰ ته د خشوع نوم دے، ایمان د زړه د تازه ګئ نوم دے او هغه به تاسره نهٔ وی نو تاکښې به منافقت وی۔

## نبی ﷺ د منافقانو سره جنګ ولے نهٔ کولو ؟

هر کله چه نبی ﷺ ته منافقان په نومونو سره معلوم وو، نو جنګ ئے ورسره ولے نهٔ کولو؟ نو ددے یو څو وجوهات او حکمتونه دی۔ (۱) - یو دا چه حدیث د بخاری وغیره کښې دی چه نبی ﷺ فرمائی : (اَكْرَهُ اَنْ يَّتَحَدَّثَ الْعَرَبُ اَنَّ مُحَمَّدًا يَقْتُلُ اَصْحَابَهٗ)
(زهٔ دا بده ګنړم چه عرب به وائی محمد (ﷺ) خپل ملګری وژنی)۔

نو ددے بدگمانی پیدا کیدو خطره وه۔

(۲) – دویم : د الله تعالیٰ حکم نبی ﷺ ته نهٔ وو شوے۔ امام مالك رحمه الله فرمائی : (فِيْهِ دَلِيْلٌ عَلٰى اَنَّ الْحَاكِمَ لَايَحْكُمُ بِرَأْيِهٖ) (دا دلالت کوی چه حاکم به په خپله رایه فیصله نهٔ کوی)۔ بلکه د حکم شرعی لحاظ به ساتی۔

(۳) – دریم دا چه امام شافعیؒ فرمائی : ظاهراً ئے کلمه وئیلے وه، او اسلامی اعمال ئے کول او شرع ظاهر گوری (اُمِرْتُ اَنْ اُقَاتِلَ النَّاسَ حَتّٰى يَشْهَدُوْا اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ)۔

## د منافقانو حکم

بیا د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د منافق حکم دا وو چه څه به ورته نهٔ وئیل کیدل ځکه علت موجود وو چه بدگمانی پیدا کیدله : (اِنَّمَا كَانَ النِّفَاقُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ فَاَمَّا الْيَوْمَ فَاِنَّمَا الْكُفْرُ اَوِ الْاِسْلَامُ) (رواه البخاری، مشکوة باب علامات النفاق)

(حکم د منافقت چه عدم قتال دے– د رسول الله ﷺ په زمانه کښې وو، نن یا کفر دے یا اسلام) یعنی اُوس زمانه کښې د منافقانو حکم دا دے چه وژلے به شی یعنی کله چه یو تن منافقت کوی او د مسلمانانو خبرے وهی، د هغوی جاسوسی کوی، نو وژلے به شی، لیکن حاکم وقت به ئے وژنی، نهٔ عوام۔

## فائده : د منافقانو صفتونه ولے زیات ذکر کیږی ؟

په قرآن کریم او احادیثو کښې د سلو نه زیات بد صفات د منافقانو بیان شویدی، ددے حکمتونه دا دی : (۱) (تَحْذِيْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ صِفَاتِهِمْ) (مؤمنانو ته تحذیر دے چه د دوی د صفاتو نه ځان بیچ کړی)۔

(۲) – دویم : (اِصْلَاحُ الْمُنَافِقِيْنَ) (اصلاح د منافقانو غرض ده)۔ (فَاِنْ يَّتُوْبُوْا يَكُ خَيْرًا لَّهُمْ) (التوبة) (۳) – (لِئَلَّا يَغْتَرَّ بِهِمُ الْمُؤْمِنُوْنَ فَيَقَعُ فَسَادٌ عَرِيْضٌ) (دے دپاره چه مؤمنان خپل دشمنان اُوپیژنی او دوکه پرے نشی، ورنه بیا به ددے په وجه لوئی فساد پیدا شی۔ لکه سوره توبه (٤٧) کښې راځی ﴿لَوْ خَرَجُوْا فِيْكُمْ مَا زَادُوْكُمْ اِلَّا خَبَالًا﴾ (که دا منافقان تاسو سره تبوك ته تلی وے نو فسادونه ئے ډیرول)، ﴿وَفِيْكُمْ سَمّٰعُوْنَ لَهُمْ﴾ (توبه : ٤٨) (کافرانو دپاره جاسوسی کوی)

(٤) قاسمیؒ لیکی : (لِئَلَّا يُظَنَّ بِاَهْلِ الْفُجُوْرِ خَيْرًا) (او دے دپاره چه په بدکارو باندے د

نيكو كارو كمان اُونه شي)۔ (ابن كثير ١/١٧٧) ايضاً
(٥) (تَمييزُ الخَبيثِ مِنَ الطَّيِّبِ) (پاك د ناپاكو نه جدا كول)

## توضيح الكلمات والفوائد

(ومن الناس) دا كلمه په قرآن كريم او لغت عربي كښې ١- كله د تذليل او سپكولو دپاره استعماليږي، لكه دلته. او په آية (٢٠٠) كښې راغلي. يعني دا سپك او ذليل خلق دي.

(٢) او كله د مدح او تعظيم دپاره لكه دے سورة (٢٠٧) كښې (وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْرِيْ نَفْسَهُ) يعني كامل انسان دے.

**الناس** : لفظ د الناس قرآن كريم كښې (٢٤١) كرته راغلے دے. او دا اسم جمع ده، مفرد ئے نشته. ٢- او بعض علماء وائي : دا جمع د انسان او انسانة ده، انسان ئے مفرد دے او الناس د هغے جمع ده. (٣) كسائي وائي : دا اسم تام دے.

بيا بعض وائي دا ماخوذ دے د نَوس نه په معنىٰ د حركت او خوزيدلو سره، لكه حديث د ام زرع كښې هم دا ماده استعمال ده :(أَنَاسَ مِنْ حُلِيِّ عَضُدَيَّ) (بخاري)

(٢) او بعض وائي : د نسيان نه دے، په معنىٰ د هيريدلو سره، د انسان نه هم هيره كيږي.

(٣) يا د آنَسَ نه دے په معنىٰ د ليدلو سره لكه (آنَسَ مِنْ جَانِبِ الطُّوْرِ نَارًا) (القصص: ٢٩) نو انسان هم ليدلے شي، د جناتو په شان پټ نهٔ دے. (٤) يا د اُنس نه دے په معنىٰ د مينے او محبت سره. لكه مخكښې شعر تير شويدے (وَمَا سُمِّيَ الْاِنْسَانُ اِلَّا لِاُنْسِهٖ) (القرطبي) نو انسان به هله انسان وي چه يو بل سره محبت اُولري. او همدا راجح قول دے.

دلته د ناس نه مراد انسانان دي.

**قاعده** : دا وار چه په پيرانو كښې هم منافقان، مؤمنان او كافران شته، ليكن قرآن كريم كښې غالباً بحث د انسانانو سره كيږي او پيريان تابع د انسانانو دي او زنانه تابع د سړو دي، سړي ئے اصل دي او زنانه او پيريان ئے تابع دي، هغه دومره اشرف مخلوق نهٔ دے، لهذا دا بحث انسانان او پيريانو دواړو ته شامل دے.

﴿مَنْ يَّقُوْلُ﴾ ماده د لفظ د قول په قرآن كښې (١٧٢٣) كرته راغلے ده، په مختلفو معنو استعمال ده، (١) - قَالَ يَقُوْلُ كله په معنىٰ د گفتن (خبرو) سره راځي.

نو ددے بدگمانی پیدا کیدو خطره وه۔

(۲) - دویم : د الله تعالیٰ حکم نبی ﷺ ته نهٔ وو شوے۔ امام مالك رحمه الله فرمائی : (فِيْهِ دَلِيْلٌ عَلٰى اَنَّ الْحَاكِمَ لَايَحْكُمُ بِرَأْيِهٖ) (دا دلالت کوی چه حاکم به په خپله رایه فیصله نهٔ کوی)۔ بلکه د حکم شرعی لحاظ به ساتی۔

(۳) - دریم دا چه امام شافعیؒ فرمائی : ظاهراً ئے کلمه وئیلے وه، او اسلامی اعمال ئے کول او شرع ظاهر کوری (اُمِرْتُ اَنْ اُقَاتِلَ النَّاسَ حَتّٰى يَشْهَدُوْا اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ)۔

## د منافقانو حکم

بیا د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د منافق حکم دا وو چه څه به ورته نهٔ وئیل کیدل ځکه علت موجود وو چه بدگمانی پیدا کیدله : (اِنَّمَا كَانَ النِّفَاقُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ فَاَمَّا الْيَوْمُ فَاِمَّا الْكُفْرُ اَوِ الْاِسْلَامُ) (رواه البخاری، مشكوة باب علامات النفاق)

(حکم د منافقت چه عدم قتال دے - د رسول الله ﷺ په زمانه کښې وو، نن یا کفر دے یا اسلام) یعنی اُوس زمانه کښې د منافقانو حکم دا دے چه وژلے به شی یعنی کله چه یو تن منافقت کوی او د مسلمانانو خپے وهی، د هغوی جاسوسی کوی، نو وژلے به شی، لیکن حاکمِ وقت به ئے وژنی، نهٔ عوام۔

## فائده : د منافقانو صفتونه ولے زیات ذکر کیږی ؟

په قرآن کریم او احادیثو کښې د سلو نه زیات بد صفات د منافقانو بیان شویدی، ددے حکمتونه دا دی : (۱) (تَحْذِيْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ صِفَاتِهِمْ) (مؤمنانو ته تحذیر دے چه د دوی د صفاتو نه ځان بیچ کړی)۔

(۲) - دویم : (اِصْلَاحُ الْمُنَافِقِيْنَ) (اصلاح د منافقانو غرض ده)۔ (فَاِنْ يَّتُوْبُوْا يَكُ خَيْرًا لَّهُمْ) (التوبة) (۳) - (لِئَلَّا يَغْتَرَّ بِهِمُ الْمُؤْمِنُوْنَ فَيَقَعُ فَسَادٌ عَرِيْضٌ) (دے دپاره چه مؤمنان خپل دشمنان اُوپیژنی او دوکه پرے نشی، ورنه بیا به ددے په وجه لوئی فساد پیدا شی۔ لکه سوره توبه (٤٧) کښې راځی ﴿لَوْ خَرَجُوْا فِيْكُمْ مَا زَادُوْكُمْ اِلَّا خَبَالًا﴾ (که دا منافقان تاسو سره تبوك ته تلی وے نو فسادونه ئے ډیرول)، ﴿وَفِيْكُمْ سَمّٰعُوْنَ لَهُمْ﴾ (توبه : ٤٨) (کافرانو دپاره جاسوسی کوی)

(٤) قاسمیؒ لیکی : (لِئَلَّا يُظَنَّ بِاَهْلِ الْفُجُوْرِ خَيْرًا) (او دے دپاره چه په بدکارو باندے د

نیکو کارو کمان اُونهٔ شی)۔ (ابن کثیر ۱/۱۷۷) ایضاً
(۵) (تَمِيزُ الْخَبِيثِ مِنَ الطَّيِّبِ) (پاك د ناپاكو نه جدا كول)

## توضیح الکلمات والفوائد

(ومن الناس) دا کلمه په قرآن کریم او لغت عربی کښې ۱- کله د تذلیل او سپکولو دپاره استعمالیږی، لکه دلته. او په آیة (۲۰۰) کښې راغلی. یعنی دا سپك او ذلیل خلق دی.
(۲) او کله د مدح او تعظیم دپاره لکه دے سورة (۲۰۷) کښې (وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْرِىْ نَفْسَهُ) یعنی کامل انسان دے.

**الناس** : لفظ د الناس قرآن کریم کښې (۲٤۱) کرته راغلے دے. او دا اسم جمع ده، مفرد ئے نشته. ۲- او بعض علماء وائی : دا جمع د انسان او انسانة ده، انسان ئے مفرد دے او الناس د هغے جمع ده. (۳) کسائی وائی : دا اسم تام دے.
بیا بعض وائی دا ماخوذ دے د نَوْس نه په معنیٰ د حرکت او خوزیدلو سره، لکه حدیث دام زرع کښې هم دا ماده استعمال ده :(أَنَاسَ مِنْ حُلِيٍّ عَضُدَىَّ) (بخاری)
(۲) او بعض وائی : د نسیان نه دے، په معنیٰ د هیریدلو سره، د انسان نه هم هیره کیږی.
(۳) یا د آنَسَ نه دے په معنیٰ د لیدلو سره لکه (آنَسَ مِنْ جَانِبِ الطُّوْرِ نَارًا) (القصص: ۲۹) نو انسان هم لیدلے شی، د جناتو په شان پټ نهٔ دے. (٤) یا د اُنس نه دے په معنیٰ د مینے او محبت سره. لکه مخکښې شعر تیر شویدے (وَمَا سُمِّيَ الْإِنْسَانُ إِلَّا لِأُنْسِهِ) (القرطبی) نو انسان به هله انسان وی چه یو بل سره محبت اُولری. او همدا راجح قول دے.
دلته د ناس نه مراد انسانان دی.

**قاعده** : دا واوره چه په پیرانو کښې هم منافقان، مؤمنان او کافران شته، لیکن قرآن کریم کښې غالباً بحث د انسانانو سره کیږی او پیریان تابع د انسانانو دی او زنانه تابع د سړو دی، سړی ئے اصل دی او زنانه او پیریان ئے تابع دی، هغه دومره اشرف مخلوق نهٔ دے، لهذا دا بحث انسانان او پیریانو دواړوته شامل دے.

﴿مَنْ يَّقُوْلُ﴾ ماده د لفظ د قول په قرآن کښې (۱۷۲۳) کرته راغلے ده، په مختلفو معنو استعمال ده، (۱) - قَالَ يَقُوْلُ کله په معنیٰ د گفتن (خبرو) سره راځی.

۲- په معنیٰ د عقیدے، لکه ﴿ قَالُوْا اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ ﴾ (البقرة :١٥٦)
۳- دریم قَالَ یَقِیْلُ : (قَیْلُوْلَه) (د غرمے خوب ته هم وائی) لکه ﴿ اَوْ هُمْ قَائِلُوْنَ ﴾ (اعراف:٤)
٤- په معنیٰ د افتراء او دروغ جوړولو سره لکه ﴿ اَمْ تَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴾ (البقرة : ٨٠) دغه شان د باب تفعل نه چه راشی (تقوُّل) لکه ﴿ وَلَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا بَعْضَ الْاَقَاوِيْلِ ﴾ (الحاقة:٤٤) په احادیثو کښې هم ددے لفظ ډیرے معانی استعمال دی، لکه اشاره کول، (فقال بیده هکذا) ای اشار) کله په معنیٰ د کیخودلو او کله راخستلو سره وی۔ (وبالیوم الآخر)

## په الله او په آخرت باندے د ایمان د تخصیص وجه

ددے د تخصیص دوه وجے دی (۱) یوه وجه ئے دا ده چه دوی په نورو شیانو باندے هم دعوی د ایمان لری۔ خو هغه په نورو ځایونو کښې ذکر دی۔ سوره النساء (۶۰) آیت کښې دعویٰ د ایمان بالقرآن ذکر ده ﴿ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ يَزْعُمُوْنَ اَنَّهُمْ آمَنُوْا بِمَا اُنْزِلَ اِلَيْكَ ﴾ الآیة۔ دعویٰ کوی د ایمان بالرسول سوره النور (۳۷) کښې راځی : ﴿ وَيَقُوْلُوْنَ آمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالرَّسُوْلِ ﴾ لهذا ټولے خبرے په یو آیت کښې نهٔ راجمع کوی، دا د قرآن او د حدیث طریقه ده چه په یو ځائے کښې ټولے خبرے نهٔ وی جمع بلکه په مختلفو ځایونو کښې وی، ته به ئے راجمع کوے۔ او هر ځائے ئے د سورت مناسب لفظ ذکر کړیدے لکه روستو نساء کښې تحاکم الی القرآن ذکر دے او سورة نور کښې د رسول الله ﷺ اتباع ده، او دلته ایمان بالله والیوم الآخر دے۔

(۲) دویمه وجه دا ده چه ایمان بالله مبدأ د ایمانیاتو ده او ایمان بالیوم الآخر منتهیٰ د ایمانیاتو ده، نو ابتداء او انتهاء ذکر شوه، مینځنی شیان پکښې تبعاً داخل دی، ملائك، رسولان، د الله تعالیٰ شرائع، دا ټول مونږ منو، او بنده چه الله تعالیٰ او قیامت اُومنی، نو باقی ایمانیات به په طریقه اولیٰ منی، او دوی ته هم دا پته وه چه قرآن کریم کښې ایمان بالله وبالیوم الآخر ډیر ذکر دے نو ځکه ئے دا تخصیص کړے دے۔

**آمَنَّا بِاللّٰهِ** : د ایمان نه د هغوی ایمان شرعی مراد دے چه الله تعالیٰ منو، او صفات ئے منو او شریکان ورسره نهٔ جوړوو، شرع ئے منو، حقوق ئے منو، خبرے ئے منو، قرآن کښې چه کله ایمان مطلق ذکر شی همدا ترے مراد وی، پوره ایمان په الله باندے۔

﴿ وَبِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ﴾ : په ورځ د آخرت باندے ایمان دا دے چه دا ورځ به واقع کیږی په هغے

کښې حساب کتاب دا ټول حق دی، دا د هغوی خبره شوه خو د الله تعالیٰ د طرفه پرې رد اُوشو: ﴿ وَمَا هُم بِمُؤْمِنِينَ ﴾

**(وما هم بمؤمنين)** : (أَيْ وَمَا هُمْ بِمُصَدِّقِيْنَ بِالْقَلْبِ ۲ - يا وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ عِنْدَ اللّٰهِ) .

(۱- یعنی دوی په زړه کښې تصدیق نهٔ لری ۲- یا د الله تعالیٰ په نیز ایمان والا نهٔ دی) نو پدے جمله کښې الله تعالیٰ د دوی تکذیب اُوکړو چه دا خلق په خپله دعویٰ کښې دروغژن دی ځکه حقیقی ایمان خو دا دے چه په ژبه سره څه وائی نو زړه د هغے تصدیق اُوکړی او د دوی په زړه کښې تصدیق نشته۔ یواځے په خوله باندے اقرار کولو سره ایمان نهٔ پوره کیږی۔ دا خو د ونے ځانګے پیدا کول دی بغیر د ستے نه۔ چه ناممکن کار دے۔

۲- یا معنیٰ دا ده چه دوی د الله تعالیٰ په نزد مؤمنان نهٔ دی۔ اګرکه ځان ته به ایمان والا وائی۔ او دنیاوی فائدے به ورته د کلمے د وئیلو په وجه حاصلیږی۔ او دا د یرے خبره ده کله به انسان ځان ته مؤمن وائی او د الله تعالیٰ په نزد به مؤمن نهٔ وی او دینه به سلف یریدل۔

**فائده** : پدے آیت کښې رد دے په کرامیه ډله باندے چه هغوی وائی ایمان صرف د خولے اقرار ته وائی۔ اګرکه زړه کښې تصدیق نهٔ وی۔ دلیل نیسی په آیت : (فَأَثَابَهُمُ اللّٰهُ بِمَا قَالُوْا) (المائده :۸۵ ) چه دغه نصاراؤ په قول د ایمان سره جنت والا شو۔ جواب دا دے : مونږ وایو، دا بعینه منافقت دے۔ چه په خوله اقرار کوی او زړه کښې ئے تصدیق نهٔ وی او هرڅهٔ دغه آیت نه استدلال او دغه شان نور احادیثو نه چه په هغے کښې صرف قول ذکر وی - دا دے چه په شریعت کښې ایمان قول او عمل او تصدیق درے واړو ته وئیل شویدے، نو هغه نصوص پریخودل او یو مجمله خبره باندے دلیل نیول صحیح نهٔ دی، دارنګه دلته قول لفظ عام دے قول باللسان والقلب ټولو ته۔ جمعاً بین الادلة۔ (و انظر القرطبی)

دارنګه دلته نفس اقرار د منافقانو شته او حال دا چه تصدیق ئے نهٔ وو نو ځکه ترے الله تعالیٰ نفی د ایمان اُوکړه۔ فتدبر۔

**فائده ۲** : په ابتداء د آیت کښې ئے (یقول) مفرد ذکر کړو او آخر کښې ئے (مؤمنین) جمع راوړه پدے کښې تنبیه ده په عموم کفر د دوی لکه د مخکنو کافرانو په شان، او بعض کسان دا قول کوی نو پدے کښې اشاره ده چه د دوی کفر ډیر سخت دے۔ (نظم الدرر ۱/ ۱٤)

**فائده ۳** : مخکښې ئے متعلق د ایمان ذکر کړو چه (بِاللّٰهِ وَبِالْيَوْمِ الْآخِرِ) دے او روستو (وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ) سره ئے متعلق د ایمان ذکر نهٔ کړو، حکمة دا دے چه پدے کښې مقصود د

هغوی د دعوے نه انکار او نفی ده نو دائے پداسے طریقه اُوکړه چه غرض مطلوبه هم ورسره حاصل شو او تاکید او مبالغه هم پکښې راغله چه داسے په بل تعبیر کښې نۀ راتله پدے طریقه چه د دوی ذوات او نفسونه ئے د ایمان والو د طائفے نه بهر کړل. ځکه چه الله تعالیٰ ته د دوی حالت معلوم وو چه د دوی حالت د ایمان والو د حالت منافی دے.

۲- دویم دا چه مخکښې ئے ایمان مقید ذکر کړو او دلته ئے مطلق ذکر کړو دے دپاره چه شامل شی هر قسم ایمانیاتو ته چه دوی نۀ په الله او نۀ په آخرت او نۀ په نبی او نۀ په قرآن ایمان راوړی بلکه د ایمان صفت د دوی نه منفی دے. (الکشاف: ۱/۳۳)

| |
|---|
| يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَمَا يَخْدَعُوْنَ |
| دوی دوکه کوی د الله تعالیٰ سره او د هغه کسانو سره چه ایمان ئے راوړیدے او دوی دوکه نۀ کوی |
| اِلَّا اَنْفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۹﴾ |
| مګر د خپلو ځانونو سره او نۀ پوهیږی. |

**تفسیر**: اُوس په منافقانو کښې علامات د عدم الایمان موجود دی هغۀ بیانوی.

پدے آیتِ کریمه کښې د منافقانو دوه صفتونه دی (۱) یو د الله او د رسول ﷺ او مؤمنانو سره دوکه کول او دویم عَدَمُ الشُّعُوْر (ناپوهی). یعنی منافق به چاته وائی چه دوکے والا وی او شعور او علم ورسره نۀ وی.

مطلب د آیت دا دے چه دوی د آمنا لفظ وئیلو سره په حقیقت کښې د الله تعالیٰ او د هغه د رسول او د مؤمنانو سره دوکه کوی، د هغوی د دوکه کولو دپاره صرف په ژبه د اسلام اظهار کوی، او حال دا چه دا ځان له دوکه ورکوی، او دا عجیبه خبره ده، ځکه چه پکار خو دا ده چه دوکه ورکونکے شخص یا خو په خپل کوشش کښې کامیابیږی او د هغۀ مقصد پوره کیږی، یا کم از کم د یو نقصان نه بچ کیږی، لیکن دلته معامله برعکس ده ځکه هغوی د خپل مکر او فریب په وجه ځان هلاکوی ځکه الله تعالیٰ ته خو د هغوی مکر معلوم دے او هغۀ چا ته دوکه ورکول چه هغۀ دوکه نۀ خوری، نو دا د ځان سره دوکه او ځان هلاکول دی او مسلمانانو ته هم څه نقصان نشی ورکولے، ځکه الله تعالیٰ وخت په وخت د وحی په ذریعه

دوی لره د منافقانو د چلونو او دوهوکونه خبروی او حفاظت ئې هم کوی او دفاع ترې کوی، نو دوی ځان ته نقصان ورسولو، عاقبت ئې برباد شو او دنیا کښې هم رسوا شو.

(يُخَادِعُونَ) : خداع په لغت کښې پټولو ته وئیلې شی. او بعض اهل لغت وائی : فساد ته وئیلې شی. او منافق هم خپل کفر پټ ساتی او فساد کوی. او په شریعت کښې دیته وائی: (اَنْ تَعْمَلَ بِمَا اَمَرَكَ اللّٰهُ بِهٖ وَتَطْلُبَ بِهٖ غَيْرَهٗ) (قرطبی) (چه ته عمل اُوکړې په هغه څه چه الله تعالیٰ درته پرې امر کړے وی او د الله تعالیٰ نه ماسوا بل څوك دې پرې مراد وی) او دا نا اشنا خبره ده، یو سړے جهاد کوی خو صرف دنیا ئې مقصد ده، یو سړے دعوت کوی، نوم او شهرت او پیسے ئې مقصد دے. نو دا د الله تعالیٰ سره دوهوکه کوی.

۲- دویم خداع (اِظْهَارُ الْخَيْرِ وَاِسْرَارُ الشَّرِّ) ته وئیلې شی (قاسمیؒ) (یعنی خیر راښکاره کول او د شر په زړه کښې پټ ساتل)، چه بنده خلقو ته خپله نیکی، تقویٰ، راښکاره کړی او پټ دننه شری وی، منافقانو کښې هم دا صفت دے چه خیر ئې راښکاره کړیدے چه ایمان دے چه مونږ مسلمانان یو، دین والا یو، دا نبی (ﷺ) مونږ منلے دے، عبد الله بن ابی بن سلول به منبر خواکښې ولاړ وو، نبی ﷺ به لا راوتے نهٔ وو چه کله به راوتو نو هغه وخت کښې به ئې داسے وئیل : (هٰذَا رَسُوْلُ اللّٰهِ حَقًّا فَاسْتَمْسِكُوْا بِغَرْزِهٖ). اے خلقو دا د الله تعالیٰ حق رسول دے، ددهٔ رکاب اُونیسئ، کامیاب به شئ) او په مینځ کښې ورانے به ئې کولو، آخر پدے منافقت کښې مړ هم شو او د دنیا نه کافر لاړو او دا چغے به ئې هم وهلے چه دا د الله تعالیٰ حق رسول دے. پدے سره به ئې په خلقو خپله مشری او عزت ښکاره کولو چه زهٔ داسے نیك عمل یم.

او نبی ﷺ فرمائی : (وَالْمُنَافِقُ خَبٌّ لَئِيْمٌ) (منافق دهوکه باز او رذیل وی)

۳- هُوَ اَنْ يُوْهِمَ صَاحِبَهٗ خِلَافَ مَا يُرِيْدُ بِهٖ مِنَ الْمَكْرُوْهِ، لِيُوْقِعَهٗ فِيْهِ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ اَوْ يُوْهِمَهُ الْمُسَاعَدَةَ عَلٰى مَا يُرِيْدُ هُوَ بِهٖ لِيَغْتَرَّ بِذٰلِكَ فَيَنْجُوَ مِنْهُ بِسُهُوْلَةٍ)

(تفسیر ابی السعود ۱/ ٤٠) وروح المعانی، والبحر المحیط ۱/ ۵۱)

(خپل ملګری باندے د بدئ اراده لرل او بیا هغه ته دا په ګمان کښې اچول چه زهٔ د خیر اراده لرم، دے دپاره چه هغه په کښې پداسے طریقه واقع کړی چه هغه پرې پو هه نشی، یا هغه ته په ګمان کښې واچوی چه زهٔ ستا سره تعاون کوم او مقصد ئې پدے کښې هغه ته دوهوکه ورکول وی چه د هغه نه په آسانئ سره ځان خلاص کړی)

بیا دلته **مشهور سوال** دے : چه دوهوکه د هغه چا سره کیږی چه هغهٔ نهٔ پوهیږی او الله تعالیٰ ته خو د دوی حالت معلوم دے؟ **۱- جواب** دا دے (یُخَادِعُوْنَ اللّٰهَ بِزَعْمِهِمْ) یعنی دلته خداع د دوی په گمان کښې مراد ده یعنی دوی په خپل گمان کښې دا وائی چه مونږ گنے الله تعالیٰ سره دوهوکه اُوکړه او الله تعالیٰ راباندے خبر نهٔ دے۔ او ظاهر کښې به د ایمان دعوه اُوکړو او مونږ ته به فائده ملاوه شي۔ (ابن کثیر، تفسیر رازی)

۲- یا ذکر د خداع دے مراد ترینه مخالفت دے۔ (اَیْ یُخَالِفُوْنَ اللّٰهَ)

(د الله تعالیٰ د حکمونو مخالفت کوی) (معالم التنزیل)

**۳- جواب** : دلته عبارت بنا دے په حذف د مضاف سره۔ (اَیْ یُخَادِعُوْنَ رَسُوْلَ اللّٰهِ) (یعنی دوی د الله تعالیٰ د رسول سره دوکه کوی او د رسول الله سره دوکه داسے ده لکه د الله تعالیٰ سره دوکه، نو الله تعالیٰ ئے ځکه ځان ته نسبت اُوکړو، او نبی ﷺ خو په غیبو نه پوهیدو نو د هغه سره به ئے دوکه کوله۔

٤- بکر بن جریج فرمائی : (یُظْهِرُوْنَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ، یُرِیْدُوْنَ اَنْ یَّحْرُزُوْا بِذٰلِكَ دِمَائَهُمْ وَاَمْوَالَهُمْ وَاَنْفُسَهُمْ) (بحر العلوم للسمرقندی: ۱/۱٤) (یعنی د الله تعالیٰ سره د دوهکے مطلب دا هم دے چه کلمه د توحید رابښکاره کوی او زړه کښې ئے دشمنی او کفر وی، مقصد ئے دا وی چه پدے سره د دوی مالونه وینے، او نفسونه محفوظ شي) ددے وجه نه حدیث د بزار کښې راغلی دی انس ﷺ فرمائی : صحابه کرامو عرض اُوکړو یا رسول الله ! مونږ تا سره په یو حال یو او کله چه جدا شو نو په بل حال یو ؟ رسول الله ﷺ اُوفرمایل : (کَیْفَ اَنْتُمْ وَرَبُّکُمْ ؟) (ستاسو د رب سره څه حالت وی ؟)۔ (قَالُوْا : اَللّٰهُ رَبُّنَا فِی السِّرِّ وَالْعَلَانِیَةِ، قَالَ : لَیْسَ ذٰلِکُمُ النِّفَاقَ) (هغوی اُووئیل : الله زمونږ رب دے په پټه او په ښکاره) یعنی په تولو حالتونو کښې د الله تعالیٰ لحاظ کوو او هغه رب گنړو۔ رسول الله ﷺ اُوفرمایل : دا منافقت نهٔ دے۔(مسند البزار وابو نعیم فی الحلیة ۲/۳۳۲) وابو یعلی) وفی اسناده مقال)

۵- بعض وائی : (یَفْعَلُوْنَ فِیْ دِیْنِ اللّٰهِ مَا هُوَ خِدَاعٌ فِیْ دِیْنِهِمْ) (بغوی) (د الله تعالیٰ په دین کښې داسے کارونه کوی چه هغه د دوی په دین کښې دوکه ده)۔

**٦- جواب** : ظاهر جواب دا دے چه (یُعَامِلُوْنَهُ مُعَامَلَةَ الْخِدَاعِ) (یعنی د دوی د منافقت معامله مشابه ده د دوهوکے کولو سره) د الله تعالیٰ سره داسے معامله کوی لکه دوهوکه ورکونکے، منافقان اراده د دوکے او چل ول لری، کوی ئے اگرکه د الله تعالیٰ سره ئے نشی کولے۔

او سرته ئې نشي رسولې. لیکن دوی خو خپل وسع اُوکړو۔ او د ناپوهه خلقو طریقه دا وی چه په خپل گمان کار کوی۔ دا جواب صحیح دې د ډیرو وجوهاتو نه (۱) ځکه دا ظاهر القرآن دې۔ (۲) الله تعالیٰ یخادعون لفظ وئیلې دې او دا ئې ندی وئیلی دی چه دوکه په الله تعالیٰ چلیږی۔ (۳) د خداع د تعریف (اَنْ تَعْمَلَ بِمَا اَمَرَكَ اللهُ بِهٖ وَتَطْلُبَ بِهٖ غَيْرَهٗ يا اِظْهَارُ الْخَيْرِ وَ اِبْطَانُ الشَّرِّ نه معلومه شوه چه دا تعریف واخستې شی نو بیا پکښې هیڅ اشکال نشته۔

## د خداع مقصد :

منافقانو خداع او دوهوکه ولې کوله؟ پدې کښې ئې څه مقصد وو؟ نو (۱) یو مقصد ئې دا وو چه د دوی گمان دا وو چه نبی ﷺ او مؤمنان به دوی سره داسې معامله اُوکړی لکه څنګه چه د عامو مؤمنانو سره کوی یعنی لکه څنګه چه د هغوی تعظیم او اکرام کیږی نو د دوی به هم دغه شان اکرام او تعظیم اُوکړې شی۔ نو ځکه ئې ایمان ښکاره کړو او کفر ئې پټ کړو۔ (۲) دویم دا چه کیدې شی نبی ﷺ او ایمان والا دوی ته خپل رازونه ښکاره کړی نو دوی ئې خپلو دوستانو کفارو ته نقل کړی۔ (۳) دریم : دوی پدې کار سره د خپل ځان نه د کفارو احکام دفع کول چه هغه قتل وغیره وو۔ (٤) دوی به د غنیمت په مالونو کښې طمع لرله۔ (تفسیر اللباب لابن عادل ۱/۹۷) وتفسیر الرازی)

## بیا الله ورسره څنګه دوکه کوی؟

په سورة سوره نساء (۱٤۲) کښې ﴿وَهُوَ خَادِعُهُمْ﴾ راغلې دې (چه الله هم د دوی سره دهوکه کوی) او دغه شان د یخادعون لفظ نه هم معلومیږی ځکه دا باب مفاعله ده او پدې باب کښې فعل د جانبینو نه صادریږی، اشتراك پکښې وی۔ نو الله تعالیٰ د دوی سره دوکه کوی، د الله تعالیٰ دوکه د دوی سره په څو طریقو سره ده :

(۱) اوله طریقه : (اِجْرَاءُ اَحْكَامِ الدُّنْيَا بِغَيْرِ اَجْرٍ) (یعنی الله تعالیٰ به دوی باندې په دنیا کښې د اسلام احکام جاری کوی، حدود به پرې قائمیږی، مونځونه به کوی، روژې به نیسی، جهاد له به ځی، میراث به ترې مسلمانان اخلی، دا ټول احکام به پرې جاری وی بغیر د اجر ورکولو نه، اجر به ورله نهٔ ورکوی۔ نو دا لویه دوکه شوه چه یو سړی باندې کار اُوکړی او مزدوری ورنکړی او دا د دوی خپل نقصان دې ځکه دوی د الله تعالیٰ سره د دوکې

اراده لرله نو الله تعالیٰ پرے دا چل اُوکړو چه څه کارونه کوه او اجر درله نشته دے۔
۲- بله دا چه (سَمَّاهُمْ مُسْلِمِيْنَ ظَاهِرًا وَفِي الْحَقِيْقَةِ اَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا) (دوی ته ظاهراً مسلمانان وائی، په مسلمینو کښې ئے داخلوی او په مینځ کښې ئے ورله عذاب دردناك تیار کړیدے)، نو دوی د الله تعالیٰ سره چل کوی نو الله تعالیٰ هم ورسره چل کوی، د الله تعالیٰ سره څوك دوکه نشی کولے او هغه چه په دوکه راغے د بنده سره، نو بنده هلاك شو. او دا دوهوکه د الله تعالیٰ صفت دے څنګه چه د هغهٔ د شان سره مناسبت وی. او ظاهری آثار ئے دا دی چه دوی به ذلیله کوی، دوکه به ئے خلقو ته رابنکاره کوی او په نیك عمل به اجر نهٔ ورکوی۔
۳- دریم : د ابن عباسؓ او حسن بصریؒ نه نقل دی چه دا خداع به آخرت کښې ده. چه الله تعالیٰ به مؤمنان او منافقانو تولو ته نور (رڼړا) ورکړی او د صراط په طرف به ئے روان کړی، نو د منافقانو نه به رڼړا واپس واخلی او په تیاره کښې به پاتے شی او ایمان والو ته به آوازونه شروع کړی ﴿اُنْظُرُوْنَا نَقْتَبِسْ مِنْ نُّوْرِكُمْ قِيْلَ ارْجِعُوْا وَرَآءَكُمْ فَالْتَمِسُوْا نُوْرًا﴾ (الحدید: ۱۳)
(مونږ ته انتظار اُوکړئ چه مونږ ستاسو د رڼړا نه حصه واخلو، ورته اُوبه وئیلے شی دنیا ته واپس لاړ شئ هلته نه ځان له نور راوړئ) نو دا هغه خداع شوه. چه ظاهر کښې ئے ایمان والو سره کړل خو په واقع کښې د کافرانو سره پاتے شو۔
﴿ وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا ﴾ د ایمان والو سره دوکه خو ظاهره ده چه هغوی ته به ئے ځان مؤمنان ښکاره کولو، دوستان به ئے ښکاره کول او په زړونو کښې به ئے ورته شکوك، شبهات او رعب اچولو۔
﴿ وَمَا يَخْدَعُوْنَ اِلَّا اَنْفُسَهُمْ ﴾ (۱) لِاَنَّهُمْ خَادَعُوْا مَنْ لَا يُخْدَعُ) ۔(یعنی دوی ځان سره دوکه کوی څکه دوی د هغه چا سره د دوکے عمل اُوکړو چه هغه دوکه نهٔ خوری او د داسے ذات سره دوهوکه کول چه هغه باندے دهوکه اثر نهٔ کوی نو دا د ځان سره دوکه ده، یو پوهه سړی ته دوکه ورکوے نو داسے ده لکه ځان له دوکه ورکول څکه هغه ستا په دوکه پوهیږی۔
(۲) بله وجه (لِاَنَّ وَبَالَ ذٰلِكَ رَاجِعٌ اِلَيْهِمْ فِي الدُّنْيَا) (دوی د ځان سره څکه دوهوکه کوی چه ددے دوهوکے وبال او ګناه به دوی ته په دنیا کښې راواپس کیږی څکه چه الله تعالیٰ د دوی د دوهوکے ضرر د مؤمنانو نه دفع کوی او دوی ته ئے اړوی۔ (اللباب)
دارنګه الله تعالیٰ به خپل نبی ﷺ له د دوی دوهوکے خبر ورکړی نو په دنیا کښې به اُوشرمیږی او په آخرت کښې به د عذاب مستحق شی۔ (خازن)
(۳) دریمه وجه دا ده چه الله تعالیٰ خو د منافقانو په دوکه باندے پوهیږی نو هغوی د ځان

نقصان اُوکړو، د خان خیر خواهي ئې اُونکړه، ځکه ددې دوکې تاوان دوی ته رسیږي لکه سړې داسې کار اُوکړي چه ظاهره کښې هغه ته فائده ښکاري او مینځ کښې هغه د دوی دپاره تاوان وي نو دا خان سره دوکه ده، لکه یو سړي د حق پرستو خلاف اُوکړو، مناظره ئې اُوکړه او چالاکي ئې پکښې اُوکړه او دا اهل حق ئې غلي کړو نو دې به خوشحاله شي چه زهٔ کامیاب شوم او مقابل مې پرکړو او مینځ کښې ئې دا د خان سره دوکه اُوکړه ځکه په باطل او کفر او په مخالفة الرسول به باقي پاتې شي. منافقانو هم چالاکي اُوکړه او دیته به ئې هوښیارتیا وئیله او مینځ کښې ئې پدې اعمالو خان جهنم ته رسولو. دارنګه ایمان والو ته به کله د دوی د دوکې ضرر رسي او کله نهٔ خو دوی پرې خان تباه کړو او که ایمان والو ته د دوی ضرر اُورسیدو نو هم د آخرت ثواب او اجر به حاصل کړي. خو ټول تاوان د منافقانو اُوشو.

(٤) وجه : خازن داسې معنیٰ کوي : (وَمَا يَخْدَعُوْنَ اِلَّا اَنْفُسَهُمْ اَیْ اِنَّ اللّٰهَ يُجَازِيْهِمْ عَلٰى ذٰلِكَ وَيُعَاقِبُهُمْ عَلَيْهِ فَلَا يَكُوْنُوْنَ فِي الْحَقِيْقَةِ اِلَّا خَادِعِيْنَ اَنْفُسَهُمْ)

(یعني الله تعالیٰ به دوی ته په دې دوهوکې باندې سزا او عذاب ورکړي نو په حقیقت کښې دوی د خپل خان سره دوهوکه کونکي شو)

(**اَنْفُسَهُمْ**) : جمع د نفس ده ۱ - په معنیٰ د ذات الشيء او حقیقة الشيء سره.

۲ - (اَلْجِسْمُ اللَّطِيْفُ الَّذِيْ بِهِ الْحِسُّ وَالْحَرْكَةُ وَالْاِدْرَاكُ)

(هغه باریك جسم چه په هغې سره حس او حرکت او ادراك حاصلیږي).

﴿ **وَمَا يَشْعُرُوْنَ** ﴾ یعني د منافقانو بل عیب دا دې چه دوی کښې شعور هم نشته. د وَمَا يَشْعُرُوْنَ مفعول پټ دې یعني (وَمَا يَشْعُرُوْنَ اَنَّ عَاقِبَةَ الْخِدَاعِ تَرْجِعُ اِلَيْهِمْ)

(نهٔ پوهیږي پدې چه انجام د دوهوکې به دوی ته راواپس کیږي).

(۲) یا ئې مفعول حذف کړو دپاره د تعمیم یعني په هیڅ نهٔ پوهیږي.

## د شعور معنیٰ

۱ - (اَلشُّعُوْرُ عِلْمُ الشَّيْءِ اِذَا حَصَلَ بِالْحِسِّ) (۲) اِدْرَاكُ الشَّيْءِ بِالْمَشَاعِرِ اَیِ الْحَوَاسِّ الْخَمْسِ الظَّاهِرَةِ) (شعور هغه علم ته وائي چه په ظاهري حواسو معلومیږي لکه په غوږونو، سترګو، لاسونو، خوله، او پوزه. او دا د عقل یوه نوع ده، عقل اُوچته درجه ده او شعور ئې ادنیٰ درجه ده او دا شعور د حیواناتو صفت دې. اول شعور وي بیا معرفت، بیا درایة بیا علم او بیا فقه وي.

امام رازیؒ وائی : وَالْمَعْنٰى اِنَّ لُحُوْقَ ضَرَرِ ذٰلِكَ بِهِمْ كَالْمَحْسُوْسِ، لٰكِنَّهُمْ لِتَمَادِيْهِمْ فِى الْغَفْلَةِ كَالَّذِىْ لَا يَحِسُّ (تفسیر الرازی ۱/۳۲٤)

(یعنی ددے دوهوکے ضرر دوی پورے داسے پیوسته دے لکه محسوس (چه په سترګو ښکاری) لیکن هرکله چه دوی په غفلت کښې اوږده پراته دی نو داسے اوګرځیدل لکه چه هیڅ حس نۀ وی) نو ځکه ئے ترے شعور چه د حیواناتو علم دے هم نفی کړو۔

دارنګه د دوی مشاعر (اندامونه) اګرکه روغ دی لیکن دوی ددے نعمت نه هیڅ فائده وانخستله او څه له چه دا پیدا شوی وو نو هغے کښې ئے استعمال نکړل نو ګویا کښې داسے اوګرځیدل چه ګنے دا اندامونه ورسره نشته۔ (الوسیط لسید طنطاوی ۱/٢٦) نو ځکه ئے ترے شعور هم نفی کړو۔ او دوی ئے د حیواناتو نه هم بد تر کړل۔ ځکه حیوانات خو خپله فائده او نقصان پیژنی، کندے، اور، اوبو نه ځان بچ کوی۔

ابن سیرین رحمه الله فرمائی : (لَمْ يَكُنْ عِنْدَهُمْ شَيْءٌ اَخْوَفُ مِنْ هٰذِهِ الْاٰيَةِ) (سلفو ته دا آیت د ډیر یرے والا ښکاره کیدو) وجه دا ده چه الله تعالیٰ د منافقانو متعلق دا وئیلی دی چه دوی دوهوکے او غلط کارونه کوی او په خپل ځان نۀ پو هیږی لهذا په خپل مرض نۀ پو هیږی نو هغوی به یریدل چه هسے نه مونږ به یو عمل کوو په ځان به ښه ګمان کوو او د الله په نیز به مجرمان یو ځکه په خپل مرض نۀ پو هیدل غټ تاوان دے۔ ځکه چه علاج ئے ګران وی، او کله چه انسان په خپل مرض پو هه شی نو بیا ئے زر علاج کوی۔

| |
|---|
| فِىْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ فَزَادَهُمُ اللّٰهُ مَرَضًا ۚ |
| په زړونو د دوی کښې مرض دے، پس زیات دے کړی الله تعالیٰ دوی لره مرض د دوی۔ |
| وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۢ بِمَا كَانُوْا يَكْذِبُوْنَ ﴿۱۰﴾ |
| او دوی دپاره عذاب دردناك دے پدے وجه چه دوی همیشه دروغ وائی۔ |

**تفسیر:** (فِىْ قُلُوْبِهِمْ) دا خلورم صفت دے او بما كانوا يكذبون ئے پنځم صفت دے، د منافقانو په زړه کښې بیماری ده او بل : دروغ وائی، د دین په خبرو کښې هم دروغ وائی او د دنیا په خبرو کښې هم دروغ وائی او په خپلو صفتونو کښې هم دروغ وائی۔

## د مرض لفظ وضاحت :

مرض لفظ په قرآن کریم کښې (۱۳) کرته استعمال دے، ماده ئې (۲۴) خله راغلې ده.
دا مرض په دوه قسمه دے (۱) ظاهری مرض (بیماری) دا په انبیاء علیهم السلام او نیکان صالحینو او بدانو ټولو باندے راځي، البته په انبیاء علیهم السلام او نیکانو باندے چه راشي نو رفع الدرجات پکښې مقصود وي، او ګناهګارو مؤمنانو باندے چه راشي نو سبب د مغفرت وي د تیر شوو ګناهونو او په راتلونکي زمانه کښې تنبیه او نصیحت وي. لکه دا په حدیث کښې راغلي دي (إِنَّ الْعَبْدَ الْمُؤْمِنَ إِذَا أَصَابَهُ سَقَمٌ ثُمَّ عَافَاهُ اللَّهُ كَانَ كَفَّارَةً لِمَا مَضَى مِنْ ذُنُوبِهِ وَمَوْعِظَةً لَهُ فِيمَا يَسْتَقْبِلُ مِنْ عُمُرِهِ) (ابن ابی الدنیا والبیهقی - الدر المنثور ۲/۷۰۲) وفی سنده مقال وَوَرَدَتْ اَحَادِيثُ كَثِيرَةٌ شَوَاهِدَ لَهُ فَالْحَدِيثُ صَحِيحٌ)

او په کافرو چه مرض راشي نو مقصود پکښې تنبیه او تعذیب وي. چه سم شيْ ورنه ددے په شان عذابونه په نور هم درکولے شي. او ددے مرض تعریف داسے دے.

**مرض** : (ضُعْفٌ يَعْتَرِي الْبَدَنَ يُخْرِجُهُ عَنِ الْاِعْتِدَالِ الْمُنَاسِبِ) (دا هغه ضُعف دے چه بدن ته اُولګیږي نو د مناسب اعتدال نه ئې اُوباسي) لکه وینه کښې ئې ډیروالے راشي دیته بلډ پریشر وائي، وینه کښې ئې ډیروالے او تیزي پیدا شي، یا صفراء ئې ډیره شي نو بدن ته ئې ګرمي یا یخني اُورسي پدے وجه بیمار شي. او دا مرض په نیکانو خلقو ډیر راځي، لکه نبی کریم ﷺ یوه ورځ د بیماریانو تذکره اُوکړه نو یو ناست سړي پکښې اُووئیل : (مَا الْاَسْقَامُ؟) بیماریانے څه ته وائي ؟) نبی ﷺ اُوفرمایل : آیا ته هیڅ کله نه ئې بیمار شوے؟) هغه اُووئیل : نهٔ. نو نبی ﷺ اُوفرمایل : (قُمْ عَنَّا فَلَسْتَ مِنَّا) (شرح السنة ۳/۳۱) شعب الایمان (۹۹۱۶) (پاڅه ته زمونږ نه نهٔ ئې) یعنې په مؤمن باندے خو ظاهری بیماري خامخا راځي او څومره چه بنده الله تعالیٰ ته ډیر نزدے وي نو هغه باندے دنیاوي مرضونه زیات وي.

(۲) اَلْمَرَضُ الْبَاطِنِيُّ الشَّرْعِيُّ : مَا يَعْرِضُ لِلْمَرْءِ مِمَّا يُخِلُّ بِكَمَالِهِ مِنْ نِفَاقٍ وَحُبِّ الدُّنْيَا) (باطني مرض هغه شے دے چه انسان باندے راځي او دده کمال خرابوي لکه نفاق، او د دنیا محبت وغیره شو) لکه د هغے انواع روستو راځي هر چا کښې یا څه نا څه درجه کښې دا مرض موجود وي، په ګناهګارو مؤمنانو کښې هم دا مرض وي، دلته څه شے مراد دے ؟

## دلته کوم مرض مراد دے؟

د مرض نه مراد دلته مرض د نفاق (منافقت) دے چه په خوله مؤمن او په زړه کښې کافر۔ (۲) شکوك او شبهات او شهوات نفسانیه او محبت د دنیا او زنانو طرفته میلان دے۔
شبهات دیته وائی چه د الله تعالیٰ او د رسول الله ﷺ په باره کښې شکی وی، شبهو کښې پروت وی، د قرآن کریم او د احادیثو په باره کښې شکونه کوی یا په غلطو عقائدو کښې پروت وی او شهوات دا دی چه د حرامو خواهشاتو پسے روان وی، پردے مال ورته پردے نه ښکاری، پردئ ښځه ورته پردئ نه ښکاری، حرام خواهشات مراد دی، حلال خواهشات جائز دی، هغه الله تعالیٰ د هر چا په نفس کښې اچولی دی۔
**فائده** : شیخ الاسلام ابن قیم رحمه الله هم دلته یوه فائده لیکلے ده : (مَرَضُ الْقَلْبِ خُرُوْجُهٗ عَنِ اعْتِدَالِهٖ وَصِحَّتِهٖ، فَاِنَّ صِحَّتَهٗ اَنْ یَّکُوْنَ عَارِفًا بِالْحَقِّ مُحِبًّا لَهٗ مُؤْثِرًا لَهٗ عَلٰی غَیْرِهٖ)۔
(مرض د زړه : وتل دی د اعتدال او صحت نه څکه صحت ئے دا دے چه حق به پیژنی، حق سره به محبت لری او په نورو شیانو به ئے غوره کوی) نو درے خبرے د زړه صحت دے (۱) حق پیژندل، (۲) حق سره مینه کول (۳) او حق غوره کول په بل شی باندے۔ (فَمَرَضُهٗ اِمَّا بِالشَّكِّ اَوْ بِاِیْثَارِهٖ غَیْرَهٗ عَلَیْهِ) (نو مرض ئے دا دے چه یا خو شکی شی، حق اُونه پیژنی، یا بل شے په حق غوره کړی)، د الله تعالیٰ په محبت باندے غیر الله غوره کړی، د دین په محبت باندے دنیا غوره کړی، په حلالو باندے حرام غوره کړی۔

## د مرض اقسام :

مرضونه دوه قسمه دی : ۱ – مرض المنافقین ۲ – مرض العصاة۔ مخکښې مونږ اُووئیل چه دا مرضونه ګناهګارو مؤمنانو کښې هم وی چه هغے ته مرض العصاة وائی، مرض المنافقین دا دے چه په دین او په قرآن او حدیث کښې شکونه کوی۔ شبهات باطله لری، نو کفر نفاق، شکوك او شبهات ددے قسم نه دی۔
او مَرَضُ الْعُصَاة (مَرَضُ غَیٍّ وَّشَهْوَةٍ) (د ګناهګارو مرض د خواهشاتو تابعداری ده) نو زنا او فواحش او معاصی و سره محبت د دویم قسم نه دی، چه بنده په حق پو هیږی، منی ئے هم، خو په خواهشاتو پسے روان وی، لکه زنا کولو سره بنده منافق کیږی نه خو ګناهګاریږی، د پردو ښځو سره تعلق ساتل، حرامو خواهشاتو پسے ګرځیدل، دا هم د زړه

بیماري ده، اګر که کافر او منافق به نه وي، څکه دواړو ته الله تعالیٰ مرض ونیلي دي
﴿ فَيَطْمَعَ الَّذِي فِي قَلْبِهِ مَرَضٌ ﴾ (الاحزاب: ۳۲) (په طمع به شي هغه سړی چه په زړه کښ ئې بیماري ده) یعنی د پردو زنانو سره ئې عشق او محبت دی. د ښځې سره محبت، الله تعالیٰ د هر سړي په زړه کښ اچولی دی. لیکن د پردو ښځو سره تعلق ساتل او د هغې نه نفرت نه کول دا په اصل کښ بیماري ده.

او حقیقي عافیة دا دی چه انسان د دواړو قسم مرضونو نه بچ شي نو بیا به هغه ته یقین او ایمان حاصلیږي.

**فائدة عجیبة:** انسان چه اوچتو مراتبو ته رسي نو هغه به ډیره خواري کوي اول به په ده باندې (۱) شبهات کیږي نو د هغې جوابات به کوي او خپله عقیده به برابروي (۲) دویم د کمائن النفس تصفیه به کوي یعنی زړه کښ دننه پټ ډیر بد صفات موجود دي، هغه به صفا کوي لکه حسد، ضد، تعصب، خیانت، ریاء او تکبر وغیره.

(۳) تَصْفِيَةُ الْعِبَادَاتِ عَنِ الْآفَاتِ : (عبادتونه به د آفتونو نه محفوظ ساتي لکه ریاء، تکبر، عجب او غفلت شو او په غلطو طریقو به بندګي نه کوي. (٤) اَلتَّرَقِّيْ فِيْ مَقَامَاتِ الْإِيْمَانِ. (د ایمان په مقاماتو کښ به د ترقۍ کوشش کوي) چه دا مقام د احسان دی، یعنی احسان درجې ته به ځان رسوي.

**فائده :** دلته ئې د منافقانو زړونو ته قلب مریض اُووئیلو او د مؤمنانو زړونو ته ئې په سورة الشعراء (۸۹) کښ قلب سلیم ونیلي دي. (اِلَّا مَنْ اَتَى اللّٰهَ بِقَلْبٍ سَلِيْمٍ) نو د منافقانو په زړونو کښ عقیده هم خرابه ده او ورسره اعمال ئې هم خراب دي. غلط خواهشات لري. او دا دویم مرض ګناهګار مؤمنانو کښ هم راتلي شي خو شك نشي راتلي. لیکن مؤمن به ډیر احتیاط کوي.

## په قرآن کریم کښ د مرض مصداقات

په قرآن کریم کښ مرض په ډیرو معنو استعمال دی :

۱- اَلْمَرَضُ الْجِسْمَانِيْ) دا په سوره شعراء (۸۰) آیت کښ ذکر دی ﴿ وَاِذَا مَرِضْتُ فَهُوَ يَشْفِيْنِ ﴾

۲- دویم مرض : اَلنِّفَاقُ : لکه دی (۱۰) آیت د بقره کښ ذکر دی.

۳- دریم : وِلَايَةُ الْكُفَّارِ : (د کافرانو (یهود او نصاراؤ) سره دوستي او مینه کول دا غټ

مرض دے) د هغوی دپاره جاسوسی کول۔ ﴿فَتَرَى الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ يُسَارِعُونَ فِيهِمْ﴾ سورة المائده (۵۲) آية۔

٤- مرض : (اَلْمَيْلُ إِلَى النِّسَاءِ) پردو زنانو ته میلان، د هغوی سره کپ شپ ویشتل، د هغوی د خبرو سره مینه ساتل دا یوه بیماری ده) ﴿فَيَطْمَعَ الَّذِي فِي قَلْبِهِ مَرَضٌ﴾ احزاب (۳۲)

٥- پنځم مرض : اَلتَّوَلِّي عَنْ حُكْمِ الرَّسُوْلِ ﷺ (د پیغمبر د فیصلے نه چه څوك اوړی دا منافق هم دے او غټ بیمار دے). ﴿أَفِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ أَمِ ارْتَابُوا أَمْ يَخَافُونَ أَنْ يَحِيفَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَرَسُولُهُ﴾ (النور : ۵۰)۔ مرض نه پدے آیت کښ التولی عن اتباع الرسول مراد ده۔

٦- مرض : اَلْجُبْنُ : د بزدلئ مرض، بزدلی ته هم مرض وئیلے شویدے کله په مسلمانانو کښ هم راځی د زړه د کمزورتیا د وجه نه خو غالباً منافقان د الله سبحانه وتعالیٰ د حکم لحاظ نهٔ کوی نو هغوی کښ دا مرض ډیر وی۔ ﴿رَأَيْتَ الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ يَنْظُرُونَ إِلَيْكَ نَظَرَ الْمَغْشِيِّ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ فَأَوْلَى لَهُمْ﴾ (سورة محمد : ۲۰)

٧- اووم مرض : (ضِغْنُ الْمُؤْمِنِ) ضغن حسد ته وائی یعنیٰ د مؤمنانو سره حسد لرل او کینه کول۔ ﴿أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ أَنْ لَنْ يُخْرِجَ اللَّهُ أَضْغَانَهُمْ﴾ محمد (۲۹)۔

٨- او مرض په معنیٰ د الشك په سوره احزاب (۳۲) آیت کښ ذکر دے۔

﴿فَزَادَهُمُ اللَّهُ مَرَضًا﴾ دا جمله یا اخبار دے، جمله خبریه ده۔ یعنی الله تعالیٰ زیاتی کړیده د دوی بیماری۔

(۲) او دویم ظاهر تفسیر پکښ دا دے چه دا جمله انشائیه دعائیه ده۔ فَزَادَهُمُ اللهُ (پس زیات دے کړی الله تعالیٰ د دوی بیماریٔ لره)۔ زاد د ماضی صیغه ده خو په معنیٰ د مضارع ده څکه په مقام د دعاء کښ ماضی په معنیٰ د مضارع راځی۔ الله تعالیٰ ورته ښیرے کړیدی او الله ﷻ چه چا ته ښیرے اُوکړی نو دا ضرور قبولے وی څکه الله تعالیٰ ئے پخپله قبلوی، دا د وعید په درجه کښ ده۔ لکه (قَاتَلَهُمُ اللهُ) الله تعالیٰ دے دوی مړهٔ کړی، لعنت دے پرے اُوکړی) نو دا همدغه شان دی چه د دوی په زړونو کښ بیماری ده او علاج ئے نهٔ کوی نو الله ﷻ دے دا بیماری ورله نوره هم ډیره کړی۔

او دا دلیل دے چه دا قسم صفات والو ته ښیرے جائز دی۔ (قرطبیؒ)

او پدے کښ دے ته اشاره ده چه انسان د مخکنو گناهونو په وجه د الله تعالیٰ د طرف نه د سزا په طور په نورو گناهونو کښ اخته کیږی، لکه الله تعالیٰ فرمائی : (وَأَمَّا الَّذِينَ فِي

قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ فَزَادَتْهُمْ رِجْسًا اِلٰى رِجْسِهِمْ) (التوبة :۱۲۵) (یعنی د چا په زړونو کښې چه د گناه گندگی وی نو الله تعالیٰ د هغوی گناه نوره هم زیاتوی نو د گناه سزاد هغې نه بعد بله گناه وی لکه د نیکی ثواب بله نیکی وی. الله تعالیٰ فرمائی : (وَيَزِيْدُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اهْتَدَوْا هُدًى) (مریم/۷۶) یعنی هدایت والوته الله تعالیٰ زیات هدایت ورکوی.

## د مرض د زیاتوالی اسباب :

بیا د منافقانو بیماری چه زیاتیږی نو د دے څه اسباب دی نو هغه ډیر زیات دی بعض دا دی : (۱) نُزُوْلُ الْقُرْآنِ الْكَرِيْمِ) د الله قرآن شفاء ده خو د بعضو خلقو دپاره د مرض سبب گرځی. ﴿ وَإِذَا مَا أُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ فَمِنْهُمْ مَنْ يَقُوْلُ أَيُّكُمْ زَادَتْهُ هٰذِهٖ إِيْمَانًا فَأَمَّا الَّذِيْنَ آمَنُوْا فَزَادَتْهُمْ إِيْمَانًا ﴾. سورة التوبة (۱۲۵) آیة

﴿ وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْآنِ مَا هُوَ شِفَاءٌ وَّرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ وَلَا يَزِيْدُ الظَّالِمِيْنَ إِلَّا خَسَارًا ﴾ سورة بنی اسرائیل (۸۲) ﴿ وَلَيَزِيْدَنَّ كَثِيْرًا مِّنْهُمْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَّكُفْرًا ﴾ (المائدة: ۶۸) (دا قرآن به د دے خلقو طغیان او کفر ډیر کړی).

۲- دویم سبب : تَجَدُّدُ النِّعَمِ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ وَأَصْحَابِهٖ : دوی د مسلمانانو مسلسل دنیوی او دینی کامیابیانے او نعمتونه او احسانات وینی نو د دوی حسد، حقد او کینه او نفاق او کفر نور هم زیاتیږی او د هغوی په حسرتونو او افسوسونو کښې نوره اضافه کیږی. چه ولے الله په ایمان والو احسانات کوی، فتحے او ترقی ورکوی. وخت په وخت زیاتیږی.

## د مرض د زیاتوالی مصداق :

بیا د زیادت د مرض نه مراد (۱) اَلطَّبْعُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ) دے یعنی د دوی په زړونو باندے مهر وهلے کیږی. (۲) او اَلْحَسَدُ وَالْغِشُّ بِإِعْلَاءِ كَلِمَةِ الدِّيْنِ) (کله چه د دین ترقی کیږی نو دوی له حسد او کینه ورځی چه دا ولے کیږی. یعنی دا مرض د دوی زیات شی، ایمان والو او دین ته هیڅ نقصان نشی رسولے. (۳) قاسمیؒ وائی : (وَالرَّذَائِلُ كُلُّهَا أَمْرَاضُ الْقُلُوْبِ)(ټول رذیل صفات لکه حسد کینه، خواهش پرستی، ضد او تعصب ټول د زړه مرضونه دی) دا بد صفات پکښې زیاتوی.

﴿ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيْمٌ ﴾ مینځ کښې الله تعالیٰ د دوی دپاره عذاب بیانوی.

اَلِيْم وزنِ فعیل دے په معنیٰ د اسم فاعل دے (مُؤلِمٌ)، د ایلام نه ماخوذ دے، درد ورکولو ته وائی، یعنی هغه عذاب چه دوی ته درد ورکونکے دے، الیم هغه عذاب ته وائی چه ظاهره کښې پوستکے نهٔ جدا کوی خو دننه هډوکی ماتوی او هغه ډیر سخت وی، ظاهری لاس چه مات شی او بالکل جدا شی، دا دومره سخت نهٔ وی لکه څنګه چه هډوکے مات شی او ظاهری پوستکے پرے جوړوی، دا ډیر درد کوی، سم علاج ئے هم نهٔ کیږی، نو عذاب الیم دیته وائی چه الله تعالیٰ به پټ عذاب ورکوی، زړونه به ئے دردَوی، هډوکی به ورله ماتوی،

## په دنیا کې د عذاب الیم مصداق

دا عذاب الیم دوی دپاره دنیا کښې هم دے او آخرت کښې هم دے، دنیا کښې هم الله تعالیٰ به سخت دردونه پرے راولی لکه سورة توبه کښې الله تعالیٰ دا وعده کړیده : ﴿ فَلَا تُعۡجِبۡكَ اَمۡوَالُهُمۡ وَلَاۤ اَوۡلَادُهُمۡ اِنَّمَا يُرِيۡدُ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمۡ بِهَا فِى الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا ﴾ (التوبة :۵۵/۸۵) په مال او اولادو ورله الله تعالیٰ دنیا کښې هم عذاب ورکوی، او په دنیا کښې عذاب دا هم دے (۱) بِاِجۡرَاءِ الۡحُدُوۡدِ عَلَيۡهِمۡ) (حدود به پرے نافذ کوی) (۲) اِقَامَةُ الۡجِهَادِ (جهادونو ته به بوتلے شی) (۳) اَخۡذُ الۡعُشۡرِ وَالزَّكٰوةِ) (عشر او زکاتونه به ترے اخستے شی او هیڅ اجر به ورته نهٔ ملاویږی)
(٤) اَلۡفِرَاقُ عَنِ اللّٰهِ) (د الله تعالیٰ نه به جدا وی) او دا غټه تباهی ده چه د انسان زړه د الله تعالیٰ نه جدا شی۔

او په آخرت کښې خو دا وعده خامخا ده، ځکه د منافقانو ضرر اسلام او اهل اسلام دواړو ته رسیدلے دے۔ ځکه مؤمنان په عذابوی پرېشانه کوی ئے۔

﴿بِمَا كَانُوۡا يَكۡذِبُوۡنَ﴾ بما کښې باء سببیه ده، په سبب ددے عمل۔ یا باء د مقابلے دپاره ده۔ یعنی په مقابله د دروغو د دوی کښې۔

کان چه په مضارع داخل شی نو ماضی استمراری جوړیږی یعنی په سبب د همیشه دروغو وئیلو د دوی، چه د پخوانه ئے وائی تر اُوسه پورے۔

په باء کښې اشاره ده دیته چه الله تعالیٰ چه سزا ورکوی نو ددے دپاره سبب بندګانو پیدا کړے وی، الله تعالیٰ چا له چټې عذابونه نهٔ ورکوی، خو سبب ئے د دوی سره وی۔

**فائده** : په قرآن کریم کښې د منافقت (۱۵۷) خصلتونه دی بغیر د تکرار نه او سره د تکرار نه (۲۰۰) دی۔ او په هغے کښې څلور ابرز الصفات دی (۱) اول الکذب۔ دا اساس النفاق دے او

ددے بدی په قرآن او احادیثو کښې ډیره زیاته راغلے ده لکه لاندے راروانه ده۔ (۲) دویم نسیان ذکر الله تعالیٰ۔ (د الله تعالیٰ د ذکر نه غافل کیدل او هغه هیرول)۔ نو دا دواړه د منافقت تاداوونه دی، هغه زړونه په منافقت باندے مبتلا کیږی چه د الله نه غافله وی او دروغجن وی او هغه زړه په منافقت الله تعالیٰ نهٔ مبتلا کوی چه د کوم په خوله کښې رشتیا وی او زړه کښې ئے د الله تعالیٰ ذکر وی۔ (۳) (تَرْجِيْحُ جَانِبِ الْمَخْلُوْقِ عَلٰى جَانِبِ الْخَالِقِ) ۔(د مخلوق جانب ته د خالق په جانب باندے ترجیح ورکول او مخلوق دپاره او د مخلوق د وجه نه عمل کول) (يَسْتَخْفُوْنَ مِنَ النَّاسِ وَلَا يَسْتَخْفُوْنَ مِنَ اللّٰهِ وَهُوَ مَعَهُمْ) (النساء:۱۰۸)۔

(٤) الخداع : (دهوکه کول) نو مؤمن له ددے څلورو واړو صفاتونه خان خلاصول پکار دی۔

**فائده** : د کان فائده دا ده چه یو سړی یوه ورځ دروغ اُووئیل او زړئے توبه اُوویستله نو دے آیت کښې هغه نه دے داخل، وجه دا ده چه مؤمن نه هم کله دروغ وئیلے کیږی خو زر توبه اُوباسی، استغفار وائی، او د منافقانو دا خوئی دے چه همیشه دپاره ئے دروغ یوه هوښیارتیا او چالاکی گرځولے ده، لکه بعض عوام وائی چه دروغ د چا د پلار دی، د دروغو مالك څوك نشته، بس وایه ئے، مونږ وایو چه ولے الله تعالیٰ نشته څه، آیا هغه نهٔ دی حرام کړی، او آیا دا علامه د منافقت نهٔ ده څه؟ ولا حول ولا قوة الا بالله۔

**فائده** : نور گناهونه هم شته خو الله تعالیٰ دلته دروغ خاص کړل؟ وجه دا ده، مفسرین وائی چه (اَلْكِذْبُ أَسَاسُ النِّفَاقِ وَالصِّدْقُ أَسَاسُ الْاِيْمَانِ) دروغ د منافقت بنیاد دے او صدق د ایمان بنیاد دے)۔ حدیث کښې هم راغلی دی : (وَاِيَّاكُمْ وَالْكِذْبَ فَاِنَّ الْكِذْبَ يَهْدِيْ اِلَى الْفُجُوْرِ وَاِنَّ الْفُجُوْرَ يَهْدِيْ اِلَى النَّارِ) (مسلم، احمد، ترمذی) (د دروغو نه خان بچ کړئ څکه چه دا بدکارئ ته رسول کوی او بدکاری اُور ته رسول کوی۔ نو کذب سبب د اُور دے۔

او حدیث کښې دی : (آيَةُ الْمُنَافِقِ ثَلَاثٌ اِذَا حَدَّثَ كَذَبَ) ((د منافق علامه دا ده چه کله خبره کوی نو دروغ وائی))۔ یعنی د دروغو نه هیڅ احتیاط نهٔ کوی۔

## د دروغو اقسام :

د دروغو ډیر اقسام او صورتونه دی (۱) یو په دین کښې دروغ وئیل دی نو دا ډیر عظیم جرم دے۔ او دیته تقول علی الله وائی۔ د شرك سره ددے گناه برابره ده۔

(۲) دویم دنیاوی څیزونو کښې دروغ وئیل۔ دا بیا ډیر انواع لری (۱) خلاف الواقع خبره

کول مثلًا یو کار نهٔ دے شوے او تهٔ وائے چه شویدے، یا یو کار شویدے او تهٔ ترے انکار کوے چه نهٔ دے شوے۔ دا دوه نوعے شوے۔ (۳) دریم دا چه مبالغه او زیاتے کول په خبره کښ لکه یو تن مړ وی او بنده اُووائی چه لس کسان مړهٔ شول۔ دیته بعض خلق مبالغه وائی، دا هم دروغ دی لیکن د چالاکو خلقو۔ (٤) دارنګه د یوے خبرے او د یو څیز مرتبه راخکته کول یا پورته کول مثلًا یو شے ضروری دے او انسان اُووائی چه دا دومره ضروری نهٔ دے، یا ضروری نهٔ وی او انسان وائی چه دا ډیر ضروری دے۔ دا هم دروغ دی۔

(۵) او هره خبره بیانول هم دروغ دی۔ حدیث د مسلم کښ دی: (كَفٰى بِالْمَرْءِ كَذِبًا أَنْ يُحَدِّثَ بِكُلِّ مَا سَمِعَ) (مسلم ۱/ ۱۰ رقم: ۵) (د بنده دپاره دا هم کافی دروغ دی چه څه خبره اَوری هغه بیانوی) یعنی تحقیق نهٔ کوی چه دا خبره حقیقت لری او که نهٔ؟ خو صرف د خولے نه ئے راوباسی لکه نن صبا پدے مرض کښ عامه دنیا اخته ده، والله المستعان. تهٔ هم ځان ته فکر اُوکره، آیا تهٔ خو چرے پدے مرض کښ مبتلا نهٔ ئے؟۔

**فائده** : کذب وئیل هر وخت ناجائز او حرام دی او د منافقت علامه ده مګر په بعض ځایونو کښ شریعت ددے اجازه ورکړیده هغه دا دی: (۱) (اَلْكَذِبُ فِي الْحَرْبِ) (په جنګ کښ دروغ وئیل جائز دی) حدیث کښ دی: (الحرب خدعة) (جنګ د دهوکے نوم دے)

(۲) (اَلْكَذِبُ لِإِصْلَاحِ النَّاسِ) (د خلقو د اصلاح او جوړ جاړی پیدا کولو دپاره دروغ وئیل) حدیث کښ دی: (لَيْسَ الْكَذَّابُ الَّذِىْ يُصْلِحُ بَيْنَ النَّاسِ فَيَقُوْلُ خَيْرًا أَوْ يَنْمِىْ خَيْرًا) (بخاری ومسلم) (هغه انسان دروغجن نهٔ دے چه د خلقو ترمینځ اصلاح کوی نو په دروغو سره د خیر خبرے کوی) په روایت د مسلم کښ ورسره دا زیادت راغلے دے۔

ام کلثوم بنت عقبه رضی الله عنها فرمائی: (وَلَمْ أَسْمَعْهُ يُرَخِّصُ فِىْ شَيْءٍ مِمَّا يَقُوْلُ النَّاسُ إِلَّا فِىْ ثَلَاثٍ يَعْنِى الْحَرْبَ وَالْإِصْلَاحَ بَيْنَ النَّاسِ وَحَدِيْثَ الرَّجُلِ زَوْجَتَهٗ وَحَدِيْثَ الْمَرْأَةِ زَوْجَهَا)

(۳) د خاوند خبرے ښځے ته او د ښځے خبرے خاوند ته په هغے کښ دروغ وئیل د هغے د محبت پیدا کولو دپاره جائز دی۔

(٤) توریه کول چه دیته معاریض هم وائی۔ لکه سیدنا عمران بن الحصین ﷺ فرمائی: (إِنَّ فِى الْمَعَارِيْضِ لَمَنْدُوْحَةً عَنِ الْكَذِبِ) (الادب المفرد رقم: ۸۸۵) وَصَحَّحَهُ الْأَلْبَانِىُّ)

(په توریه او تعریضاتو کښ د دروغو نه بچ کیدل دی) او توریه دیته وائی چه انسان یوه داسے خبره اُوکړی چه مخاطب ترے یو مطلب واخلی او د متکلم ترے بل مطلب مراد وی او

ظاهره کښې هغه رښتیا وی. لکه انسان جهاد ته ځي، دده اراده کښې طرفته وی او تپوس د بني طرف کوی. بل مثال: نبي ﷺ او ابوبکر صدیق رضي الله عنه سره په سفر د هجرت کښې یو شیخ په لاره کښې ملاؤ شو، تپوس ئې ترې اُوکړو چه تاسو څوك یئ؟ نو نبي ﷺ ورته اُوفرمایل: اول حال تهٔ اُووایه بیا به زهٔ خبر درکړم. نو هغه سړی اول خبر ورکړو نو د نبي ﷺ نمبر چه راغلو نو وې فرمایل: (نَحْنُ مِنْ مَاءٍ) (مونږ د اُوبو نه یو) نو هغه مشرك دا فهم کړه چه دا به د (ماء) علاقې اُوسیدونکي وی، یعني د عراق وغیره. او د نبي ﷺ مراد دا وو چه مونږ د اُوبو نه پیدا یو. (عیون الاثر ۱/۳۲۹)

او دا توریه به هم انسان هر وخت نهٔ کوی بلکه چه سخت مجبورتیا راشي نو بیا جائز ده.

**فائده**: کذب کله صفت د قول وی، کله د فعل وی، او منافقانو کښې دا دواړه قسمه کذب راجمع دی، خبره ئې هم دروغ ده او فعل او عمل ئې هم دروغجن دے. ○ صدق کله د مکان صفت وی، (مُبَوَّأَ صِدْقٍ) ○ کله د حملې صفت وی (حَمْلَةُ صِدْقٍ)، ○ کله د عقیدې صفت وی (لکه اَلْعَقِيْدَةُ الصَّادِقَةُ). یواځې د قول پورې خاص نهٔ دے.

وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ لَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ قَالُوا إِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُونَ ﴿۱۱﴾

او کله چه اُووئیلې شی دوی ته، فساد مهٔ کوئ په زمکه کښې، دوی وائی: یقیناً مونږ اصلاح کونکي یو.

**تفسیر**: پدې مقام کښې د منافقانو بل بد صفت دا دے (تَسْمِيَةُ الْفَسَادِ إِصْلَاحًا) (فساد ته اصلاح وائی). او دا وائی چه صلح خو څه بد کار نهٔ دے. پدې وخت کښې ددې مثال دا دے چه د وحدة الادیان او تقارب الادیان باندې کوشش روان دے او دا وائی چه عالمي برادري راوستل پکار دی، ټول دینونه یهودیت، نصرانیت او مجوسیت او اسلام یو کوی، او دا وائی چه فراغ بنسټ حکومت جوړول پکار دی. دا فسادونه کوی او دیته اصلاح او کمال وائی.

ددې مثال دا هم دے: بدعت او خرافاتو ته دعوت کوی څوك چه ئې منع کړی، وائی: مونږ د اصلاح د اُمت کوشش کوو، مونږ وایو اصلاح په بدعت او خرافاتو او موضوعاتو نه رازی، اصلاح په کتاب او سنتِ صحیحه رازی.

## د فساد مصداق:

ددې فساد او افساد ډیر مصداقونه دی (۱) یو دا چه (تَعْوِيقُ النَّاسِ عَنِ الْإِيْمَانِ) (خلق د

ایمان نه اړول)، د هغوی په زړونو کښې شکونه اچول، د جهادونو نه خلق منع کول، د رسول الله ﷺ د تابعدارئ نه منع کول، د قرآن او د حدیث نه منع کول. او دا معنیٰ د فساد په قرآن کریم کښې زیاته استعمالیږي.

علامه قاسميؒ وائي : (۲) (تَهْيِيْجُ الْحُرُوْبِ وَالْفِتَنِ) (فتنې او جنګونه راپورته کول).

(۳) اِفْشَاءُ سِرِّ الْمُسْلِمِيْنَ) (د مسلمانانو رازونه کافرانو ته ښکاره کول، جاسوسي کول).

(٤) (اِغْرَائُهُمْ عَلَيْهِمْ) (کافران په مسلمانانو باندې تیزول، چه کم دي او وسله ورسره نشته)

(٥) (اِلْقَاءُ الشُّبَهِ) (د خلقو زړونو کښې شکونه او شبهات اچول) (قاسمي)

(٦) (اَلْكُفْرُ وَالْعَمَلُ بِالْمَعَاصِيْ) (کفر کول او ګناهونه کول) (ابن کثیر وابن جریر)

ابو العاليةؒ نه نقل دي : (مَنْ عَصَى اللّٰهَ فِي الْاَرْضِ اَوْ اَمَرَ بِمَعْصِيَةِ اللّٰهِ فَقَدْ اَفْسَدَ فِي الْاَرْضِ، لِاَنَّ صَلَاحَ الْاَرْضِ وَالسَّمَآءِ بِالطَّاعَةِ) (څوک چه په زمکه کښې د الله تعالیٰ نافرمانی کوي یا په نافرمانئ باندې خلقو ته حکم کوي نو دا په زمکه کښې فساد کونکے دے ځکه چه د زمکے او آسمان روغوالے په طاعت بناء دے) (ابن کثیر وابن جریر عن ابی العالية وقتادة)

(۷) مُظَاهَرَةُ اَعْدَاءِ اللّٰهِ عَلٰى اَوْلِيَاءِ اللّٰهِ، اِذَا وَجَدُوْا اِلٰى ذٰلِكَ سَبِيْلًا) (ابن کثیر) (د الله ﷻ د دشمنانو، کافرانو سره مدد کول په مقابله د اولیاء الله کښې کله چه ورته موقعه ملاؤ شي)

(۸) (اِتِّخَاذُ الْمُؤْمِنِيْنَ اَوْلِيَاءَ) (کافرانو سره دوستي کول).

(۹) (فِعْلُ مَا نَهَى اللّٰهُ عَنْهُ وَتَضْيِيْعُ مَا اَمَرَ بِحِفْظِهٖ) (النکت والعیون) . (د هر حرام کار کول او د کوم څیز د حفاظت امر چه شویدے د هغے ضائع کولو ته فساد وئیلے شي)

(۱۰) خطیب شربینيؒ لیکي : هر ضرري څیز ته فساد شامل دے لکه چه هر نافع څیز ته صلاح شامل ده. (وکذا فی تفسیر ابن عرفه)

او بعض خلق داکارونه نیک عمل ګنړي او داکار ورته ښه عمل ښکاري نو که ته ترے تپوس اُوکړې چه دا کار ولے کوئ، په زمکه کښې کفر او ګناهونه مهٔ کوئ، د کافرانو سره دوستي مهٔ کوئ، د مسلمانانو راز د هغوی دشمنانو ته مهٔ ورکوئ، او کافران د مسلمانانو په جنګ باندې مهٔ تیزوئ نو دوی وائي : دا خو مونږ اصلاح کوو چه د مسلمانانو او کافرانو سره د مدارات نه کار اخلو او د هغوی ترمینځ اتفاق راولو، مسلمانان به څه اصلاح اُوکړي هغوی خو شدت پسند دي، او اصلاح خو منحصر ده په مونږ کښې نو پدې طریقه ئے حقیقت اُلټه کړو، په زمکه کښې فسادونه دوی کوي او بیا وائي مونږ اصلاح والا یو.

شر ورته خیر ښکاري او خیر ورته شر ښکاري دا د منافق علامه شوه.

**وإذا قيل لهم :**

**فائده** : الله تعالیٰ نهي عن المنکر مقدم کړو چه لا تفسدوا دے او امر بالمعروف (آمنوا) نے روستو کړو، (۱) وجه دا ده چه کله به امر بالمعروف مقدم وي او کله به نهي عن المنکر، مقام ته به کتلے شي، او په جمع کولو کښې اشاره ده چه دواړه ضروري دي. نو دا خبره د بعض خلقو غلطه ده چه وائي : امر بالمعروف داسے مثال لري لکه د شمعے، چه هر کله رڼا بله شي نو تیاره خپله ختمیږي، دا خبره بعینه هغه قیاس دے چه په مقابله د نص کښې استعمالیږي، دا مثال د شریعت خلاف دے، ددے مطلب خو دا جوړیږي چه الله تعالیٰ نهي عن المنکر لغو کار ذکر کړیدے. پدے کښې د الله تعالیٰ او د هغه د رسول نه مخکښې کیدل دي. بلکه ددے په مقابل کښې صحیح مثال داسے دے چه منکرات په شان د تیزے هواء او سیلۍ دي، کله چه تیزه سیلۍ راوالوزي نو رڼا به درله مړهٔ کړي او په تیاره کښې به پاتے شے. بلکه کله امر بالمعروف متضمن وي نهي عن المنکر لره او کله نهٔ وي.

نو دواړه مهم اعمال دي او ددے وجه نه الله تعالیٰ په هر ځائے کښې د امر بالمعروف سره نهي عن المنکر یو ځائے کړیدے. (۲) دویمه وجه دا ده چه نهي عن المنکر ځکه مقدم دے چه دا په منزله د تَخْلِيَه (صفائي) دے او امر بالمعروف په منزله د تَحْلِيَه (ښائسته کولو) دے، او د یو شي تخليه (صفائي) مقدم وي په تحليه (ښائسته کولو) باندے، اول به د نفس او زړهٔ نه بد مرضونه لرے کړي بیا به ورته ښائسته صفات رانوزي. او د منافقانو د حال سره اول نهي عن المنکر مناسب دے ځکه چه هغوي کښې فساد غالب دے.

(**قيل لهم**) : **فائده** : قیل دپاره نے فاعل نهٔ دے ذکر کړے، مجهول صیغه نے راوړه، اشاره ده عموم ته چه هر څوك دوي ته دعوت ورکوي او د بدئ نه نے منع کوي نو دوي د هغے نه انکار کوي. که او هغه عظیم شخصیت وي او که حقیر وي خو دوي د هغه د خبرے قبلولو ته تیار نهٔ دي. او پدے کښې تلمیح (اشاره) ده دے خبرے ته چه بنده ته که هر څوك د دین خبره کوي نو هغه دپاره نے منل ضروري دي، او قائل ته به نشي کتلے بلکه د هغه خبرے ته به کتلے شي. لکه دا خبره د عام دین نه معلومه ده. او د اهل السنة اصولو کښې هم ده.

د علي رضی الله عنه نه نقل دي : (أُنْظُرْ إِلَى مَا قَالَ وَلَا تَنْظُرْ إِلَى مَنْ قَالَ) (کنز العمال).

(یعني د خلقو خبرے ته ګوره او ویونکي ته مهٔ ګوره)

**فائده** : اذا لفظ ئے د عموم الاوقات دپاره راوړو، اشاره ده د دوی سخت ضد ته چه دوی داسے ضدیان دی چه هر وخت دوی د فساد نه منع کولے شی نو دوی په هیڅ وخت کښی د هغه خبرے منلو ته تیار نهٔ دی، او د حق په مقابله کښی ضرور څه خبره کوی او ځان بزرګان ګنړی۔

(**لَا تُفْسِدُوْا**) لفظ د فساد په قرآن کریم کښی (۵۰) کرته راغلے دے، لغت کښی (تَخْرِيْبُ الْعِمَارَاتِ) (آبادیانے خرابولو) ته وائی۔ دا په سورة النمل (۳۴) کښی راغلے دے (اِنَّ الْمُلُوْكَ اِذَا دَخَلُوْا قَرْيَةً اَفْسَدُوْهَا) دا به کله شرعی فساد وی او کله به نهٔ وی، لکه د کافرانو کورونه ورانول بعینه عبادت دے۔ او فساد نهٔ دے۔ (۲) قرطبیؒ لیکی : حقیقت د فساد : وتل د څیز دی د استقامت خپل نه او بے فائده کیدل دی او صلاح ددے ضد دے۔

## په قرآن کریم کښی د فساد معانی

په قرآن کریم کښی فساد په ډیرو معنو استعمال دے او دا ټول اسباب د فساد دی او اسباب د عذاب دی او منافقان دے ټولو کارونو ته اصلاح وائی :

(۱) (هَدْمُ الْمَعَابِدِ) (عبادت خانے، لکه مساجد، مدرسے ورانول، نړول) لکه سورة البقره (۲۵۲) (وَلَوْلَا دَفْعُ اللّٰهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لَفَسَدَتِ الْاَرْضُ) او ددے تشریح په سورة الحج (۴۰) کښی اُوکوره۔ (لَهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوَاتٌ وَمَسَاجِدُ) (الحج : ۴۰) لکه دے وخت کښی د کفارو همدا کوشش دے۔

(۲) (خُرُوْجُ الْعَالَمِ عَنِ النِّظَامِ) (ددے عالَم نظام به داسے نهٔ چلیدلے) لکه (لَوْ كَانَ فِيْهِمَا آلِهَةٌ اِلَّا اللّٰهُ لَفَسَدَتَا) (الانبیاء : ۲۱)

(۳) (مُخَالِفَةُ الشَّرِيْعَةِ) ۔(د شریعت خلاف کول) لکه (لَتُفْسِدُنَّ فِي الْاَرْضِ مَرَّتَيْنِ) (الاسراء : ۴)

(۴) اَلشِّرْكُ بِاللّٰهِ (د الله تعالیٰ سره شریکان جوړول) لکه (وَلَا تُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِ بَعْدَ اِصْلَاحِهَا) (الاعراف : ۵۶) ۔

(۵) (اَلتَّفْرِقَةُ وَالْاِخْتِلَافُ) (خلقو کښی بے ځایه تفرقے او اختلافات پیدا کول) لکه (اَتَذَرُ مُوْسٰى وَقَوْمَهُ لِيُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِ) (الاعراف : ۱۲۷)۔

(۶) (اَكْلُ مَالِ الْيَتِيْمِ) ۔(د یتیمانانو مال خوړول) لکه (وَاللّٰهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ) (البقرة : ۲۲۰) ۔

(۷) (اِهْلَاكُ مَالِ الْغَيْرِ) (پردی مالونه هلاکول) لکه (وَاِذَا تَوَلّٰى سَعٰى فِي الْاَرْضِ لِيُفْسِدَ فِيْهَا

وَيُهْلِكَ الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ) (البقرة : ۲۰۵) ـ

(۸) اَلصَّدُّ عَنْ اِتِّبَاعِ الرَّسُوْلِ (د رسول الله ﷺ د تابعدارئ نه خلق منع كول) لكه (وَكَانَ فِي الْمَدِيْنَةِ تِسْعَةُ رَهْطٍ يُفْسِدُوْنَ فِي الْاَرْضِ) (النمل : ٤٨) ـ

(۹) (اَلزِّنَا وَقَطْعُ الطَّرِيْقِ وَالْاِرْتِدَادُ) (زناكانے، لارے شوكول او مرتد كيدل) لكه (مِنْ اَجْلِ ذٰلِكَ كَتَبْنَا عَلٰى بَنِيْ اِسْرَائِيْلَ اَنَّهُ مَنْ قَتَلَ نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ اَوْ فَسَادٍ فِي الْاَرْضِ) (المائدة : ۳۲)

(۱۰) اَلْكُفْرُ : لكه (اَمْ نَجْعَلُ الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَالْمُفْسِدِيْنَ فِي الْاَرْضِ) (ص : ۲۸)

(۱۱) اَلْقَحْطُ وَالْوَبَاءُ : لكه (ظَهَرَ الْفَسَادُ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ) (روم : ٤۱) ـ

دا د فساد اقسام شو دا ټول دلته مراد كولے شي۔

**فِي الْاَرْضِ** : ددے جار مجرور ذكر كولو فائده دا ده چه پدے كښ تنبيه ده چه د دوی فساد عام دے شامل دے فساد ديني اعتقادي ته او دغه شان فساد دنيوي ته۔ يعني ديني فساد هم مهٔ كوئ، ايمان راوړئ، عقيده مه خرابوئ او دغه شان دنيا كښ هم فسادونه مهٔ كوئ نورو خلقو ته د فساد دعوت مهٔ وركوئ۔ (تفسير ابن عرفة)۔

**قَالُوْا اِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُوْنَ** :

دوی د نهي عن المنكر په مقابله كښ غصه شو۔ نو د حق د منلو په ځائے ئے غلطے دعوے شروع كړے۔ ځكه د منافق خوښي دا دے چه د حق په وئيلو او منلو غصه كيږي۔

ددے وجه نه علماء كرامؒ فرمائي : (اَلْحَقُّ مُرٌّ اِلَّا عَلٰى اَهْلِ الْحَقِّ) (حق تريخ دے مگر اهل حقو باندے خوږ لگي) ځكه هغوی كښ مرض نشته، او منافقانو باندے خوږ شے هم بد لگي ځكه چه دوی كښ خپل مرض پروت دے۔ددے وجه نه سيدنا عمر فاروق ﷺ به فرمايل : (رَحِمَ اللّٰهُ مَنْ اَهْدٰى اِلَيَّ عُيُوْبِيْ) (ابن سعد، والدارمي) (الله تعالىٰ دِے په هغه چا رحم اُوكړي چه ما ته زما عيبونه راوبنائي) او سيدنا عمر فاروق ﷺ به وخت په وخت د سلمان فارسي ﷺ نه د خپلو عيبونو تپوس كولو۔ (احياء علوم الدين ٤/۹۱)

**(مُصْلِحُوْنَ)**

**حكمة** : فساد ته ئے اصلاح اُووئيله ؟ نو ددے څو حكمتونه دي (۱) يو دا چه.(لِمَرَضِهِمْ) ځكه مرضيان وو، او مريض ته خوږ شے هم تريخ ښكاري، معده ئے چه خرابه وي نو خاوره او سكارهٔ خوږل ورته ښه ښكاري۔ په مريض باندے د چرگ غوښه هم بد لگي۔

(۲) دويم : (لِتَحْصِيْلِ الْمَعَاشِ وَتَيْسِيْرِ اَسْبَابِهٖ) (يعني دوی دعویٰ د اصلاح ځكه كوي، دے

دپاره چه ژوند ئے حاصل شي او د هغے اسباب ورته آسان شي)، ولے که یو طرف ته اُودریږي نو د دنیا ژوند ئے خرابیږي۔

(۳) (تَنْظِيْمُ اُمُوْرِ الدُّنْيَا لِاَنْفُسِهِمْ) (د دنیا کارونه ورته برابر شي)، که دلته فائده وي چه هغه حاصله کړي او هلته فائده وي نو هغه ورته حاصل شي۔

(٤) (اِحْتِيَاجُهُمْ بِالْمَنَافِعِ الْجُزْئِيَّةِ عَنِ الْمَصَالِحِ الْعَامَّةِ) (تفسیر القاسمیؒ) (منافقت کښې ورته یو جزئي فائده حاصله شي نو بیا هغے ته ګوري او د الله تعالیٰ د دین عام مصلحتونو ته نهٔ ګوري) او دے ته نهٔ ګوري چه د کفر د راتلو په وجه څومره نقصان پیدا کیږي۔ تا ته خو به ضمني جزئي فائده حاصله شي، لیکن د الله تعالیٰ دین او عام مسلمانانو ته به څومره نقصانات اُورسي۔ دا ډیر جامع تعبیر دے پدے باندے ډیر مثالونه تطبیق کیږي۔

نو الله تعالیٰ پرے رد کوي:

اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُوْنَ وَلٰكِنْ لَّا يَشْعُرُوْنَ ﴿۱۲﴾

خبر شئ! یقیناً دوی خاص هم دوی فساد کونکي دي، لیکن دوی نهٔ پو هیږي۔

**تفسیر**: پدے آیت کښې د منافقانو بل بد صفت فساد او عدم شعور دے۔

الله تعالیٰ د دوی ددے باطل زعم تردید اُوکړو چه د دوی نه بل غټ فسادیان څوك کیدے شي؟ او ددے نه غټ فساد بل کوم کیدے شي چه د الله تعالیٰ د آیتونو نه انکار اُوکړي او خلق د دین نه منع کړي او الله تعالیٰ او د هغهٔ اولیاؤ ته دوهو که ورکوي او د هغهٔ د دشمنانو سره دوستي کوي۔ او خپله فساد کوي او وائي مونږ اصلاح والا یو، د الله تعالیٰ او د دین خلاف چه چا اُوکړو نو هغه مُفسد دے، اګرکه ځان ته مُصلح وائي، لکه ددے زمانے مشران وائي، مونږ په ملك کښې اصلاح راولو، ملك کښې بے دیني او غټ فساد او بے حیائي راولي، او بیا هم ځان ورته ښه ښکاري۔

بعض ډلے هم دا کار کوي چه د قرآن او حدیث نه خلق منع کوي او بیا د اصلاح دعوے کوي، په اهل حقو رد کوي او بیا ورته دا د حق د طرفه دفاع او د دین خدمت ښکاري، حال دا چه ځان ئے کندے ته ګوزار کړو نو ځان ته کتل پکار دي چه آیا زه دا ښه کوم که بد کوم؟۔

(وَلٰكِنْ لَّا يَشْعُرُوْنَ) دا دفع د سوال ده چه هرکله دوی کارونه د فساد کوي، نو بیا ولے د

هغې ته ځان نهٔ ساتې ؟ نو جواب اُوشو چه دوی کښې شعور نشته، د فساد کار ورته د اصلاح ښکاری، د نفاق داسې بیماری ورته لګیدلې ده، چه د حق او باطل او د فساد او اصلاح د تمییز احساس ئې ورله ختم کړیدې، پدې وجه په زمکه کښې فساد خورولو باندې د اصلاح ګمان کوی، او حال دا چه زمکه کښې اصلاح خو دا ده چه په الله تعالیٰ باندې صحیح ایمان راوړې شی، د هغهٔ بندګی اُوکړې شی، او د هغهٔ خلاف کول په زمکه کښې فساد خورول او تباهی او بربادی راوستل دی.

بیا د دوی دا ناپوهی عذر نهٔ دې ځکه چه دوی سره اسباب د علم حاصلولو او تحقیق د حق کولو موجود دی، نو په دوی باندې فرض دی چه د حق تحقیق به کوی، دغسې خو هر مشرك او مبتدع ته خپل عمل ښه ښکاری او د هغې په بدیٔ باندې نهٔ پوهیږی نو آیا هغهٔ به هم څه عذر وی ؟.

**فائده** : پدې جمله کښې ډیر تاکید سره الله تعالیٰ د منافقانو تردید کړیدې. اَلَا حرف تنبیه ده (خبردارې ورکوی او پدې سره مخاطب رابیداروې شی) اوروستو جمله اسمیه ده او ان حرف مشبه بالفعل د تاکید دپاره دې او هم ضمیر فصل او او اسم او خبر معرفې دی په حصر باندې دلالت کوی چه دوی په فساد کښې منحصر دی، متجاوز نهٔ دی اصلاح ته.

**فائده** : مخکښې دفع د وهم مقصود نهٔ وه نو ځکه ئې نفس شعور نفی کړو او لکن ئې رانهٔ وړو. او دلته خو دفع د وهم ده نو ځکه ئې لفظ د لکن راوړو.

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ اٰمِنُوْا كَمَآ اٰمَنَ النَّاسُ قَالُوْٓا

او کله چه اُوئیلې شی دوی ته ایمان راوړئ لکه څنګه چه ایمان راوړیدې خلقو (صحابه ؓ) دوی وائی

اَنُؤْمِنُ كَمَآ اٰمَنَ السُّفَهَآءُ ۗ اَلَآ

آیا مونږه ایمان راوړو لکه څنګه چه ایمان راوړیدې کم عقلانو، خبردار شئ!

اِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهَآءُ وَلٰكِنْ لَّا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۳﴾

یقیناً دوی خاص هم دوی کم عقلان دی، لیکن دوی نهٔ پوهیږی. (په کم عقلتیا خبله)

**تفسير** : پدے آیت کښې د منافقانو نور درے قبائح ذکر دی : ۱- عقلمندو (صحابه کرامو) ته سفهاء (بے وقوف) وئیل۔ ۲- او خپله سفاهت والا۔ ۳- دریم : په خپل جهالت باندے نۀ پو هیدل۔ یعنی جهل مرکب والا کیدل۔

**مناسبت** : مخکښې د نهي عن المنکر یعنی د فساد فی الارض نه د منع کولو نه بعد، الله تعالیٰ د منافقانو سره د امر بالمعروف اُسلوب اختیار کړو دے دپاره چه د هغوی ارشاد او راهنمائی پوره طریقے سره اُوشی۔ او پدے کښې اشاره ده چه منافقانو ته به نهي عن المنکر مخکښې کولے شی د امر بالمعروف نه۔ او دوی خو اګرکه د ایمان دعوه کوله لیکن دلته ورته اُووئیل شو چه صحیح د خلوص والا ایمان راوړئ۔

(۲) : مخکښې نهي د فساد فی الارض وه۔ اُوس دلته امر په ایمان دے نو دا دلالت کوی چه کمال د انسان په مجموعه د دواړو کارونو حاصلیږی۔ یو دا چه نا مناسب کار نه به ځان ساتی او مناسب کار باندے به راتلل کوی۔ (اللباب)

**آمنوا** : دا قاعده ده چه کله ایمان مطلق ذکر شی، مراد ترینه ایمان شرعی وی چه هغه په الله او په رسول او په ملائکو او کتابونو او رسولانو او په ورځ د آخرت باندے ایمان لرل دی او بیا الله او د رسول اطاعت کول او د هغوی د نواهی نه ځان ساتل۔

د الناس نه مراد په هغه زمانه کښې صحابه کرام رضی الله عنهم وو، لکه ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی : (هُمْ جَمِيعُ الصَّحَابَةِ) (ټول صحابه کرام ترے مراد دی) (ابن کثیر، قرطبی، ابن جریر) ځکه د انسانانو بهترین صفات او اعلیٰ اخلاق په هغوی کښې د موندلو په وجه په حقیقت کښې هم هغوی "خلق" دی۔ یعنی دلته ئے د صحابه کرامو نه په (الناس) سره تعبیر اُوکړو (لِأَنَّهُمْ فِي الْحَقِيقَةِ نَاسٌ لِجَمْعِهِمْ فَضَائِلَ الْإِنْسَانِيَّةِ) (ځکه دوی د ټول انسانیت فضائل راجمع کړی وو) بهادری په دوی کښې وه، د الله او د رسول تابعداری او په دین باندے قربانی او صحیح نظریه او عقیده او د الله تعالیٰ سره محبت او یره په همدوی کښې وه۔ لکه د یو شاعر شعر هم په دوی تطبیق کیږی ۔

كَأَنَّ رَبَّكَ لَمْ يَخْلُقْ لِخَشْيَتِهِ سِوَاهُمْ مِنْ جَمِيعِ النَّاسِ إِنْسَانَا

(ګویا کښې ستا رب د خپلے یرے دپاره د دوی نه سوئ نور انسانان پیدا کړی نۀ دی)

أُولَئِكَ آبَائِي فَجِئْنِي بِمِثْلِهِمْ إِذَا جَمَعَتْنَا يَا جَرِيرُ الْمَجَامِعُ

**حکمة** : منافقانو خو د ایمان دعوے کولے نو ځکه ورته د ایمان دعوت ورکړے شو ؟ نو

وجه دا ده چه د نفس ایمان دعوه اګرکه هغوی کوله لیکن دلته مقصود دا قید دے (کَمَا آمَنَ النَّاسُ) یعنی د صحابه کرامؓ په شان خالص ایمان راوړئ او دوهوکه او فسادونه ورسره مهٔ ملګرے کوئ لکه څنګه چه د صحابه کرامو د ایمان سره داسے قبائح نهٔ وو ملګری۔ نو په هدایت به روان شئ! لکه د سیپارے په آخر کښ به اُووائی: «که دے خلقو داسے ایمان راوړو څنګه چه تاسو راوړے دے اے صحابه کرامو! نو یقیناً دوی به په هدایت شی»۔ نو د صحابه کرامو ایمان معیار دے د ایمان د باقی امت دپاره۔ نو هرکله چه دوی ته د صحیح او اخلاص والا ایمان دعوت ورکړے شو نو دوی د دغه دعوت تردید اُوکړو او د دین عقلاؤ ته ئے دے وقوفئ نسبتونه شروع کړل۔

دے نه معلومه شوه چه منافقان هغه خلق دی چه نیکانو خلقو ته بے وقوفه وائی۔

## مسئله : آیا صحابه کرام معیار د حق دی ؟

نو دلته دوه خبرے دی یو حق دے او بل اعمال د صحابه کرامو دی۔ نو حق راګیر دے په اعمالو د صحابه کرامو کښ، دین کښ داسے عملونه نشته چه صحابه کرامو دے پرے عمل نهٔ وی کړے بعض، یا ټولو۔ نو حق د هغوی د اقوالو، اعمالو او کارونو او نظریات او عقائدو نه بهر نهٔ دے، نو په دے معنیٰ باندے صحابه کرام معیار د حق دی۔

(۲) دویم اعمال د صحابه کرامو دی نو دا ټول معیار د حق نهٔ دے، ځکه چه هغوی انسانان وو، د بشریت په تقاضا د هغوی نه بعض لغزشات شویدی، ګناهونه ترے صادر شویدی، نو هغه خو حق نشی کیدے۔ لکه مثلاً ماعز اسلمی ﷺ نه زنا واقع شوے وه، او مرأه مخزومیه نه سرقه واقع شوے وه۔ مګر د صحابه کرامو نیکئ زیاتے وے، او سبقیة الی الاسلام ئے کړے وو نو په دے وجه د هغوی د نیکیو په مقابله کښ د هغوی ګناهونه هیڅ نهٔ دی، او هغه ټول الله تعالیٰ بخلی دی۔

دارنګه بعض اعمال د صحابه کرامو اجتهاد دے چه په هغے کښ هغوی ته نص نهٔ دے رسیدلے یا رسیدلے دے لیکن هغوی په کښ اجتهاد کړے دے، او هغه د ظاهری نص مخالف راوتے دے نو دا به هم معیار د حق نهٔ وی۔ لکه سیدنا عمر فاروق ﷺ به د جنب دپاره تیمم جائز نهٔ ګڼړلو او حج تمتع نه ئے انکار کولو، وغیره نور مسائل شو۔ چه دوی ته الله تعالیٰ د هغے پوره پوره اجر ورکړیدے لیکن امت باندے د هغوی تابعداری پدغه مسائلو

کښې لازم نهٔ ده۔

لهذا پدے کښې د صحابه کرامو هیڅ گستاخي نشته بلکه دا بعینه د هغوی ادب دے او دا درمیانه قول دے، نو بعض خلق وائي چه د صحابه کرامو هر عمل معیار د حق دے او بعض زیاتے کوی چه د صحابه کرامو هیڅ عمل معیار د حق نهٔ گنړی او صحیح دا ده چه د صحابه کرامو بعض اعمال معیار د حق دے او بعض نهٔ او حق د هغوی د عقائد او ایمان او نظریات او اعمالو نه بهر نهٔ دے۔

ددے وجه نه الله تعالیٰ ته د هغوی ایمان او عقیده او اعمال دومره بهتر ښکاره کیږی چه نور اُمت ته د هغوی پشان د ایمان راوړو دعوت ورکوی نو دا دلیل دے په عظمتِ شان د صحابه کرامو، نو ددے وجه نه کوم خلق چه د صحابه کرام رضی الله عنهم پسے خبرے کوی، د هغوی تنقیصِ شان او تحقیر بیانوی، نو دا خلق د دین نړونکی او بربادونکی دی، وجه دا ده چه د دین ناقلین اول صحابه کرام دی، هرکله چه هغوی غلط خلق شی نو ټول دین تباه شو او د دین اکثر تعبیرونه د هغوی د علم مطابق شویدی، چه نبی ﷺ داسے کار اُوکړو او دا خبره ئے اُوکړه، او دا خبره ئے په خوشحالیٔ کښې اُوکړه او دا ئے په خفگان کښې اُوکړه۔ دا ټول د صحابه کرامو په تعبیر نقل کړے شویدی، نو که د هغوی خبرو له اعتبار ورنکړے شی نو دین تباه کیږی۔ او دا د یهودو مرض وو چه په سند به ئے اعتراض کولو لکه په جبریل علیه السلام ئے اعتراض کړے وو۔ نو دے امت کښې د شیعه گانو مرض دا دے چه په صحابه کرامو اعتراض کوی چه اصلی دین ختم شی او د دوی خود ساخته دین خلقو کښې رائج شی، شیطان ورته دا خبره ښائسته کړیده، دے امت کښې چه صحابه کرام رضوان الله علیهم اجمعین مؤمنان، متقیان، نیکان نشی نو بیا د الله تعالیٰ هیڅ ولی، مؤمن او مسلمان نشته۔

شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله په العقیدة الواسطیة کښې ذکر کړیدی چه د صحابه کرامو نقصانات ذکر کول ندی جائز ځکه چه الله تعالیٰ هغوی ته معاف کړیدی۔

۲- دویم دا چه د هغوی نیکیانے زیاتے دی او نقصان ئے کم دے او د هغه نیکیانو په مقابله کښې دغه معمولی نقصان هیڅ شے نهٔ دے۔ ۳- دارنگه هغوی اسلام ته سبقیت کړیدے۔ چه د هغے په مقابله کښې ورته الله تعالیٰ دا ټول مغاف کړیدی۔ ٤- دارنگه په ابتداء کښې ئے د دین معاونت او نُصرت کړیدے، نو د هغوی مرتبے داسے اُوچتے شویدی، چه د هغے په مقابله کښې دغه معمولی نقصان هغوی ته هیڅ ضرر نهٔ ورکوی۔ اګرکه

صحابه کرام معصوم نهٔ دی خو الله تعالیٰ ورته معافی کوی۔ (وَلَقَدْ عَفَا اللّٰهُ عَنْهُمْ)
حافظ ابن القیمؒ لیکی : (مَثَلُ اَصْحَابِ مُحَمَّدٍ ﷺ مَثَلُ الْعَیْنِ وَدَوَاءُ الْعَیْنِ تَرْكُ مَسِّهَا) (زاد المعاد : ٤/٩٤) (د صحابه کرامو مثال د سترگے په شان دے، او د سترگے دوائی دا ده چه گوتے مهٔ وروړه، (مرهٔ ئے مهٔ) پخپله به ښه شی۔ نو د صحابه کرامو عیبونه به نهٔ ذکر کوے۔ الله تعالیٰ ته به ئے سپارے۔

• د امام شافعی رحمه الله نه چا تپوس اُوکړو چه د علی او معاویه رضی الله عنهما جگړو باره کښی ته څه وائے ؟ نو هغه ورته عجیب جواب ورکړو چه الله تعالیٰ زما توره او نیزه د هغوی د وینو نه محفوظ کړیده نو ما باندے لازم دی چه زه د هغوی د گناهونو نه خپله ژبه هم محفوظه اُوساتم. لهذا کومو کتابونو کښی چه د صحابه کرامو متعلق گستاخانه انداز اختیار شویدے لکه کتاب الاغانی (۲٤ جلدونه)، او نور غلط تاریخونه نو د هغے د کتلو نه ځان ساتل پکار دی، معتمد تاریخونه (۱) تاریخ الطبری د ابن جریر) (۲) منهاج السنة النبویة د حافظ ابن تیمیةؒ (۳) العواصم من القواصم د ابوبکر بن العربی (٤) او البدایة والنهایة د حافظ ابن کثیر رحمه الله دی۔

(قَالُوٓا اَنُؤۡمِنُ) **سوال** : دوی چه صحابه کرامو ته سفهاء (کم عقل) ونیل نو نبی ﷺ او صحابه کرامو سزا ولے نهٔ ورکوله حالانکه چه په مدینه کښی خو د صحابه کرامو غلبه وه ؟
**جواب** : دا وینا به ئے خپل مینځ کښی په خپلو مجلسونو کښی کوله او د صحابه کرامو نه په غائب والی کښی به ئے ونیل، ورنه د صحابه کرامو مخامخ ئے نشو ونیلے حکه دوی مغلوب وو. کله چه به موقع راغله نو بیا به ئے انکار کولو نو الله تعالیٰ خپل نبی ﷺ ته د هغے خبر ورکړو لکه یو اثر کښی راځی چه ابوبکر صدیق رضی الله عنه او د هغه ملگری په یوه لاره روان وو، عبد الله بن ابی ابن سلول د خپلو ملگرو سره مخے ته راغلو نو ملگرو ته ئے اُوونیل : تاسو گورئ زهٔ درله څنگه دا کسان دوهوکه کوم. نو د ابوبکر صدیق رضی الله عنه خواله راغلو او د هغه صفتونه ئے شروع کړل چه ته اول مسلمان ئے او د رسول الله ﷺ د غار ملگرے ئے۔ او داسے نور صفات، نو دوی ورته هیڅ التفات اُونکړو او هیڅ ئے ورته اُونهٔ ونیل : نو دے منافق اُوونیل : څنگه مے درله دوهوکه کړل، که مونږ ورته دا خبرے نهٔ وے کړے نو مونږ ته ئے دعوت راکولو نو د هغوی دعوت مے درله خراب کړو۔ (کما فی السراج)۔
(۲) دویم مثال : د غزوه د بنی المصطلق په لاره کښی دغه عبد الله بن ابی اُوونیل : که

مونږ مدینې ته واپس شو (لَیُخْرِجَنَّ الْاَعَزُّ مِنْهَا الْاَذَلَّ) مونږ به دغه ذلیله انسان د مدینې نه اُوباسو، نو دا خبره زید بن ارقم ﷺ رسول الله ﷺ ته اُورسوله نو هغه راوغوختلو نو دوی قسمونه شروع کړل چه زید دروغ وائی او مونږ دا خبرې نهٔ دی کړی بلکه مونږ خو ایمان راوړې دې نو نبی ﷺ د زید تکذیب اُوکړو نو الله تعالیٰ سورة المنافقون نازل کړو او د زید تصدیق ئې اُوکړو. نو دوی به دغه شان خبرې پټې کولې.

(**السُّفَهَاءُ**) جمع د سفیه ده د سفاهة نه ماخوذ دې: (هُوَ الْجَاهِلُ الضَّعِیْفُ الرَّأْیِ الْقَلِیْلُ الْمَعْرِفَةِ بِمَوَاضِعِ الْمَصَالِحِ وَالْمَضَارِّ) خفیف العقل (سپك عقل والا) او جاهل او کمزوری رائې والا او د ضرر او فائدې په ځایونو باندې نهٔ پوهیدونکی ته وائی. (ابن کثیر)

(۲) (خِفَّةُ الْعَقْلِ وَالْجَهْلُ بِالْاُمُوْرِ) (اللباب)

(د عقل سپك کیدل او د دنیا په کارونو نهٔ پوهیدلو ته سفاهة وائی)

دا ماده په قرآن کریم کښې (۱۱) کرته راغلې ده. او په اصل کښې خفت او حرکت ته وئیلې شی. او جهل ته هم وئیلې شی. لکه روستو نې معانی راځی.

**حکمة**: منافقانو ولې صحابه کرامو ته سفهاء (بې وقوف) وئیل؟ (۱) لِعَدَمِ اِنْصَافِهِمْ (ځکه چه بې انصافه وو) خپله کم عقل وو نو هغوی ته ئې کم عقل وئیل شروع کړل. لکه علماؤ ته بعض خلق جاهلان وائی او مجاهدینو ته دهشتګرد وائی. دا بې انصافی ده.

(۲) لِجَهْلِهِمْ بِقَدْرِ الصَّحَابَةِ (د صحابه کرامو د قدر او مرتبې نه جاهلان وو. او جاهل انسان اُوچتې مرتبې والا ته سفیه وائی. (۳) (لِفَقْرِ الصَّحَابَةِ) (صحابه کرام غریبانان، فقیران وو او منافقان اصحاب ریاست او ثروت والا وو، پدې وجه ئې صحابه کرامو ته په حقیر نظر کتل. او دغه شان خبره د نوح ﷺ قوم هم د هغه د تابعدارو په باره کښې کړې وه چه دا بادی الرأی خلق ستا ملګری دی. (اعراف/٦٦) وسورة هود (۲۷).

(٤) لِعَدَمِ الْعِلْمِ بِمَا يُصْلِحُ مَعَاشًا) (د دوی په نیز سفاهت دې ته وئیلو شو چه د دنیا اسبابو ته به ئې نهٔ کتل او دا هر څه به ئې په دین قربانول. نو دا دوی ته بې وقوفی ښکاره کیدله. لکه نن صبا هم چه څوك دین ته تول وخت ورکړی، او په دین باندې ځان قربانوی نو خلق وریسې خبرې کوی چه دوی له د کوم ځائې نه راځی؟ لکه سورة الانفال کښې راغلی دی (وَاِذْ يَقُوْلُ الْمُنَافِقُوْنَ وَالَّذِيْنَ فِیْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ غَرَّ هٰٓؤُلَآءِ دِيْنُهُمْ) (٤٩) آیة

(٥) دارنګه صحابه کرامو کښې دهوکې نه وې، چل ول پکښې نهٔ وو، منافقانو به وئیل دا

ساده ګان دي، مېنځ کښې غټ عاقلان د دوی نه بل هيڅوك نه وو۔ نيك سړے سيده ساده مسلمان وی د منافقانو په شان چل ول دهوکه د هغوی په مزاج کښې نۀ وی۔

(٦) وجه دا وه چه دوی به دا وئيل چه دوی د خپل پلار نيکه دين پريخودلو او ددے نبی ﷺ ملګرتيا کښې ئے خپل وطن پريخودلو۔ نو پدے کار ئے دوی کم عقل ګڼړل ځکه منافق ظاهر بين وی۔

(۷) - د منافقانو دا عقيده وه چه د محمد (ﷺ) دين باطل دے او باطل نۀ قبلوی مګر سفيه۔ نو ځکه ئے صحابه کرامو ته کم عقل وئيل۔ (اللباب لابن عادل)

(**اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهَآءُ**) نو الله ﷻ په هغوی باندے سخت مؤکد رد کوی او دا د الله تعالیٰ غيرت دے په خپلو دوستانو، ځکه څوك چه د الله تعالیٰ د دوستانو پسے خبرے کوی، نو الله ﷻ خپله د هغوی د طرفنه مقابله کوی،

حديث قدسی دے : [مَنْ عَادَى لِيْ وَلِيًّا فَقَدْ آذَنْتُهُ بِالْحَرْبِ] (بخاری، ابن حبان، بیهقی)

څوك چه د الله تعالیٰ د دوستانو سره جګړه کوی، الله تعالیٰ ورسره د جګړے اعلان کوی)۔

بيا منافقانو ته ئے ولے کم عقل اُووئيل ؟ : (۱) وجه دا ده چه څوك آخرت په دنيا باندے خرڅ کړی نو دا غټ سفيه وی۔ (۲) دارنګه څوك چه د الله تعالیٰ دشمنی شروع کړی نو همدغه کامل سفيه وی۔ (اللباب) دارنګه څوك چه د الله تعالیٰ د دوستانو سره دشمنی شروع کړی۔ دارنګه څوك چه بده عقيده او عمل اختيار کړی نو دا سفاهة دے۔

• **سوال** : قرآن کريم خو د جاهلانو نه په اعراض باندے حکم کوی نو دلته څنګه په هغوی باندے رد کوی او د هغوی بد رد بيانوی ؟ **جواب** : حکمة دا دے چه دے خلقو، د دين بے عزتی اُوکړه او د دين د نړولو کوشش ئے اُوکړو ځکه چه صحابه کرامو ته ئے کم عقلان اُووئيل نو الله تعالیٰ د هغوی د طرف نه مدافعت اُوکړو۔ چه دين محفوظ شی۔

(۲) دويم دا چه دا مقام د بيان الحق من الباطل دے، که الله تعالیٰ په هغوی باندے ددے خبرو ترديد اُونکړی نو د منافقانو خبره به په ځائے پاتے شی۔ نو په صحابه کرامو باندے به تهمت د سفاهت پاتے شی۔ (۳) بله دا چه د قرآن کريم طريقه دا ده چه د چا تصور او نظريه خرابه شی نو په هغے باندے صراحةً رد کوی نو ددے خلقو په باب د ايمان او اهل التوحيد کښې عقيده خرابه شوے وه۔ نو الله تعالیٰ د هغوی حقيقت رابښکاره کړو۔

## د سفاهة معانی او اسباب

سفاهة په ډیرو معنو استعمال دے چه دے ټولو ته سفاهة وئیلے شی او دا اسباب د سفاهة دی۔ پدے څیزونو سره انسان بے وقوف کیږی۔

۱- اَلۡإِعۡرَاضُ عَنِ الۡمِلَّةِ الۡإِبۡرَاهِيۡمِيَّةِ لکه (وَمَنۡ يَّرۡغَبُ عَنۡ مِّلَّةِ اِبۡرَاهِيۡمَ) (البقرة : ۱۳۰) ځکه چه ابراهیم ؑ په توحید روان وو او د الله تعالیٰ بندګی به ئے کوله او چا چه توحید او د الله تعالیٰ بندګی پریخوده نو غټ سفیه دے۔

۲- (عَدَمُ الۡعِلۡمِ) (بے علمه کیدل) لکه (قَدۡ خَسِرَ الَّذِيۡنَ قَتَلُوۡا اَوۡلَادَهُمۡ سَفَهًا بِغَيۡرِ عِلۡمٍ) (الانعام : ۱٤۱)

۳- نُقۡصَانُ الۡعَقۡلِ : (د انسان عقل کمزورے کیدل) لکه دا ئے خپله لغوی معنیٰ هم ده۔ لکه : (سَفِيۡهًا اَوۡ ضَعِيۡفًا) آية المداينة) البقرة : ۲۸۲) (وَلَا تُؤۡتُوا السُّفَهَآءَ اَمۡوَالَكُمۡ) النساء : ٥)۔

٤- اَلۡاِفۡتِرَاءُ عَلَى اللّٰهِ۔ (په الله باندے دروغ تړل) لکه (وَاَنَّهٗ كَانَ يَقُوۡلُ سَفِيۡهُنَا عَلَى اللّٰهِ شَطَطًا) (الجن : ٤)۔

٥- اَلۡاِعۡتِرَاضُ عَلٰى عَمَلِ الرَّسُوۡلِ وَالصَّحَابَةِ)۔(د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو په عمل باندے اعتراض کول) لکه (سَيَقُوۡلُ السُّفَهَاءُ مِنَ النَّاسِ) البقرة : ۱٤۲)۔

٦- تَسۡفِيۡهُ عُقَلَاءِ الدِّيۡنِ)۔(په دین کښې عاقلانو ته کم عقل وئیل) انسان خپله کم عقل کیږی چه کله علماء او عقلاؤ پسے خبرے شروع کړی۔ لکه دے آیت کښې شو او سورة الاعراف (٦٦)۔ (اِنَّا لَنَرٰكَ فِيۡ سَفَاهَةٍ)۔ تفتازانی په شرح عقائد کښې په یزیدؔ باندے لعنت وئیلے دے او په مختصر المعانی کښې ئے په باب د مسند الیه کښې د (رَكِبَ عَلِيٌّ وَ هَرَبَ مُعَاوِيَةُ) مثال راوړیدے او د صحابه کرامو متعلق ئے وئیلی دی چه دوی په دقائقو د ریاضی باندے نهٔ پوهیدل۔ ددے نه ددهٔ شیعه توب معلومیږی چه د صحابه کرامو ګستاخی کوی۔ دا طریقه په متأخرینو کښې بعض مقلدینو هم اختیار کړیده لکه اُوګوره زمونږ رساله (تحفة المناظر) اُوس هم خلق اهل حقو ته ظاهریین او اهل ظواهر وائی چه دا خلق سرسری روان دی او مونږ ژور روان یو۔

د مناقفانو په نیز باندے کم عقلتیا دا وه چه دهٔ صحابه کم عقل او کمزوری رائے والا دی، د مشرانو دین ئے پریخودے دے او ددے نبی (ﷺ) په ملګرتیا کښې ئے وطن پریخودلو او مال او جان ئے قربان کړو۔

(**وَلٰكِنْ لَّا يَعْلَمُوْنَ**) د لَايَعْلَمُوْنَ مفعول پټ دے (اَیْ لَايَعْلَمُوْنَ سَفَاهَتَهُمْ وَجَهْلَهُمْ) یعنی دوی په خپل سفاهة (کم عقلتیا) نهٔ پوهیږی) نو دوی جاهل مرکب دی چه په خپل جهالت باندے ئے هم علم نشته چه هغهٔ زائل کړی او علم حاصل کړی لهذا د دوی نه د حق منلو اُمید نشی کیدلے۔ یا معنیٰ دا ده (لَايَعْلَمُوْنَ الْعَاقِلَ مِنَ الْجَاهِلِ) (دوی نهٔ پوهیږی چه عقلمند څوك دی او بے عقله څوك دی) دین والا پوره عقلمند او دنیا پرست جاهل دے، د مؤحد نظر په الله تعالیٰ او په آخرت لګی۔ او د دنیا پرست نظر په دنیا او ظاهری مال متاع او خواهشاتو لګی نو دوی غټ بے عقله دی۔ (۳) یا مفعول عام دے۔ (اَیْ لَا يَعْلَمُوْنَ شَيْئًا) ۔په هیڅ شی نهٔ پوهیږی۔ د علم صفت ترے بالکلیه منفی دے۔ او دا عموم اولیٰ دے۔

**فائده :** د مخکښی آیت په تتمه کښی لا یشعرون او دلته ئے لا یعلمون اُووئیل، ددے دوه حکمتونه دی (۱) اول دا چه هلته ذکر د اِفساد وو او هغه په ادنیٰ فکر سره حاصلیدو نو د هغے سره د شعور ذکر مناسب دے چه هغه هم په ظاهری حواسو سره حاصلیږی۔ او دلته په ایمان باندے امر ذکر شو او ایمان خو ژور فکر او تدبر ته محتاج دے ځکه دا امر قلبی دے او دوی هغه اُونکړو نو ددے وجه نه ئے ترے علم نفی کړو۔ او اشاره ده چه (لَايَتِمُّ الْاِيْمَانُ اِلَّا بِالْعِلْمِ الْيَقِيْنِيِّ) ( چه ایمان بغیر د علم یقینی نه نهٔ حاصلیږی) او دوی کښی دغه علم یقینی نهٔ وو نو ځکه ئے ایمان رانهٔ وړو۔ (فتح)

(۲) دویم دا چه سفاهة خفة العقل او جهالت ته وائی (اَیْ عَدَمُ الْعِلْمِ بِمَا يُصْلِحُ مَعَاشَهٗ وَمَعَادَهٗ) (ابن القیم) . (یعنی په هغه څه نهٔ پوهیدل چه د دنیا او آخرت ژوند ورله بنه کوی) او علم نقیض د جهل دے نو دلته نفی د علم د سفاهة سره زیاته مناسب ده۔ نو پدے کښی صنعة الطباق دے۔ (اللباب لابن عادل الدمشقی)

(۳) دا ترقی ده د ادنیٰ نه اعلیٰ ته یعنی شعور ادنیٰ او علم اعلیٰ دے۔ یعنی شعور ورسره نشته نو دغه شان علم هم ورسره نشته چه په هغے سره باطنی امور او فوائد معلومیږی۔

(٤) (اَلْعِلْمُ لَايُنَاسِبُ السَّفِيْهَ) (د کم عقل سره علم مناسب نهٔ دے نو نفی ترے پکار ده)۔

د لَايَعْلَمُوْنَ نه معلومه شوه چه دوی کښی شعور هم نشته او علم هم په کښی نشته نو د حیواناتو نه هم دوی اخوا دی، ځکه حیواناتو کښی خو شعور شته ضرر او نقصان پیژنی، ادنیٰ او اعلیٰ دواړه درجے د دوی نه منفی شوے۔

وَاِذَا لَقُوا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا، قَالُوْا اٰمَنَّا وَاِذَا

او کله چه یو ځائے شی دوی د هغه کسانو سره چه ایمان ئې راوړیدے نو وائی دوی : مونږه هم ایمان راوړے دے او کله

خَلَوْا اِلٰى شَيٰطِيْنِهِمْ قَالُوْا اِنَّا مَعَكُمْ اِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۱۴﴾

چه جدا شی خپلو شیطانانو ملګرو سره، دوی وائی مونږ خو تاسو سره یو، یقیناً مونږه توقے کونکی یو (د مومنانو پسے)

**تفسیر** : پدے آیت کښې الله تعالیٰ د دوی راز افشا کړو چه دوی د مسلمانانو مخکښې خو د اسلام اظهار کوی لیکن په خپلو مجلسونو کښې د صحابه کرامو او مؤمنانو په باره کښې د ګنده خیالاتو اظهار کوی.

**سوال** : مخکښې په (۸) آیت کښې (آمنا بالله) تیر شو نو دلته ئې بیا ولے راوړو؟.

**جواب** : هلته ئې د دوی عقیده او مذهب بیان کړو چه دعوه د ایمان لری او دلته د هغوی په کردار او ګفتار کښې تناقض او تباین د هغوی په ژبه بیانوی. چه کله د مسلمانانو سره وی نو وائی چه مونږ مسلمانان یو، دے دپاره چه د مسلمانانو د اجتماعیت د منافعو او مصالحو نه فائدے اُوچتے کړی او کله چه دخپلو سردارانو مجلس ته لاړ شی نو هغوی ته یقین ورکوی چه مونږ خو ستاسو سره یو. او مسلمانانو پورے توقے کوو.

نو پدے آیت کښې د منافقانو یو لسم خصلت دا ذکر شو چه ذو الوجهین دے (يَأْتِيْ هٰؤُلَاءِ بِوَجْهٍ وَهٰؤُلَاءِ بِوَجْهٍ، يَتَلَوَّنُ) (ایمان والو ته په یو مخ راځی او کافرانو ته په بل مخ، بدلیږی رابدلیږی) لکه د نن زمانے سیاست هم داسے دے چه که یو سیاسی د ډمانو حلقے ته ورشی نو د هغوی صفت کوی چه ملك له خو ترقی تاسو اُوکړه، د خلقو روحونه خوشحالوئ، او ثقافت مخ په وړاندے بوځئ او که نورو کفارو له ورشی نو د هغوی مدح کوی. هر چا خان وی.

نو هغوی ترے تپوس کوی چه دا چرته تلی وئ؟ تاسو خو ددے خلق سره کیښئ پاځئ؟ نو دوی ورته وائی چه مونږ خو تاسو سره یو یعنی عَلَى النَّصْرِ وَالدِّيْنِ (یعنی ستاسو مدد کوو او ستاسو په دین باندے یو). او هلته چه ورځو نو هغوی پسے توقے کوو، په عذابوئے، ملګرتوب ورسره غرض نۀ دے.

**فائده** : دے نه معلومه شوه چه توقے د مسلمان پورے د منافقانو طریقه ده، یو مزاح دے

يعنې خوش طبيعتي هغه جائز کار دے هغه به هم ډيره نۀ کوي، او يو استهزاء ده، بل مسلمان سپکوي، تحقيرئے کوي، نو دا ناروا ده۔

## توضيح الکلمات :

(خَلَوْا) د خلوت نه دے دوه معنے لري (۱) خلا په معنی د (مضیٰ) تيريدلو لکه (قد خلت) او کله په معنیٰ د يواځې والي وي لکه دلته ئې معنیٰ ده (اِنْفَرَدُوْا، وَذَهَبُوْا) (يعنې د هغوی سره يواځې شي، او لاړ شي) دواړه معنے صحيح دي۔

**شياطين** نه مراد (اَلسَّادَةُ وَالْكُبَرَاءُ) د دوی سرداران او مشران دي)، او يهود هم ترے مراد دي ځکه چه د دوی تعلقات د يهودو سره هم وو، شيطانان ئے ورته ځکه اُووئيل چه د شيطان کار دا دے : (تَحْسِيْنُ الْقَبِيْحِ وَتَقْبِيْحُ الْحَسَنِ) (بد کار ښائسته کول او ښه کار بد ښکاره کول) او فساد او ورانے کول، خلقو ته غلطه خبره کول، او د دوی مشرانو به هم غلطه لارخودله، جهاد، مال لګول او د پيغمبر تابعداری به ئے ورته بده ښکاره کوله، نو هر هغه ليډر، پير، ملا او مشر چه تا ته ئے غلطه لار خودله نو بس دغه شيطانان دي۔

**شيطان** (۱) يا د شَطَنَ نه دے، په معنیٰ د بُعد (ورانده والي) سره، او دا هم د الله تعالیٰ او د هغه د رحمت نه بعيد دے۔ (۲) يا د شَاطَ يَشِيْطُ نه دے نونْ په کښې زائد دے په معنیٰ د (اِحْتَرَقَ وَتَلَظّٰی) (يعنې سوزيدل او لمبه وهل) (مفردات راغب) (وَمُسْتَشِيْطٍ تَتَلَظّٰی جَمْرَتُهٗ) (مقامات الحريری) او شيطان هم د لمبو نه پيدا دے او پدے به سوزي۔ لفظ د شيطان په قرآن کريم کښې (۸۸) کرته راغلے دے۔

## د شيطان لفظ اطلاقات او استعمالات

د شيطان په ډيرو خلقو اطلاق کيږي :

۱- ابليس لکه (فَأَزَلَّهُمَا الشَّيْطَانُ) (البقرة : ۳٦)

۲- (اَلْوَسْوَاسُ، سَوَاءٌ كَانَ جِنِّيًّا أَوْ إِنْسِيًّا) (وسوسه اچونکے، که انسان وي او که پيرے وي) لکه (لَا تَتَّبِعُوْا خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ) البقرة : ۱٦۸)

۳- اَلْجِنُّ الشِّرِّيْرُ (شري پيرے چه په انسان کښې داخليږي) لکه (كَالَّذِيْ يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطَانُ مِنَ الْمَسِّ) (البقرة : ۲۷۵)۔

٤- اَلْجَاسُوْسُ ۔ (کافرو ته د مسلمانانو شيطانت کونکے) دا واجب القتل دے کله ئے چه

همیشه کوی. لکه (اَلَّذِیۡنَ قَالَ لَهُمُ النَّاسُ اِنَّ النَّاسَ قَدۡ جَمَعُوۡا لَكُمۡ) (آلعمرن : ۱۷۳) . که یو کرت تری اُوشی نو معاف کولے به شي بدلیل واقعة حاطب ﷺ.

۵- اَلۡخَبَاثُ. (ماران) لکه (طَلۡعُهَا كَاَنَّهٗ رُءُوۡسُ الشَّیٰطِیۡنِ) الصافات : ٦٥).

٦- (اَلسَّادَةُ وَالۡكُبَرَاءُ). (د ګمراهئ سرداران او مشران) لکه پدے آیت کښ شو.

## د شیاطین نور اطلاقات دا دی :

۱- بادشاهان. ۲- د کلی او علاقے مشران. لکه سورة الانعام کښ دی (وَ كَذٰلِكَ جَعَلۡنَا فِیۡ كُلِّ قَرۡیَةٍ اَكٰبِرَ مُجۡرِمِیۡهَا لِیَمۡكُرُوۡا فِیۡهَا) (انعام : ۱۲۳)

۳- اَلۡاَحۡبَارُ السُّوۡءُ. (ناکاره ملیان).

(٤) اَلرُّهۡبَانُ (غلط پیران) لکه عبد الله بن المبارك رحمه الله نه نقل دی :

| | | |
|---|---|---|
| وَهَلۡ اَفۡسَدَ الدِّیۡنَ اِلَّا الۡمُلُوۡكُ | | وَاَحۡبَارُ سُوۡءٍ وَرُهۡبَانُهَا |

**حکمة** : (آمَنَّا) ئے جمله فعلیه راوړه او (انا معکم) ئے جمله اسمیه راوړه، اشاره ده چه زمونږ د ایمان دعوه یو وخت کښ ده، همیشه نۀ ده، او ایمان دوی ته محبوب نۀ دے. او معیت د کافرو سره د دوی محبوب دے او همیشه دے، یعنی مونږ تاسو سره همیشه یو. نو هغه ئے ځکه په جمله اسمیه سره راوړو. (۲) بله وجه دا ده چه مؤمنانو سره په خطاب کښ د هغوی رغبت نۀ وو او د خپلو ملګرو سره د ډیر محبت په وجه ئے جمله اسمیه استعمال کړه.

**اَنَّا مَعَكُمۡ** : لفظ د مع قرآن کریم کښ (۱٦۵) کرته راغلے دے. معیت دوه قسمه دے (۱) یو د مخلوقاتو دے (۲) او بل د خالق دے.

## د مخلوق سره د معیت معانی

د مخلوقاتو د یو بل سره معیة په ډیرو معنو استعمال دے.

۱- اِشۡتِرَاكٌ فِی الزَّمَانِ وَالۡمَكَانِ . لکه سورة البقره (٤۳) آیت کښ دی : (وَارۡكَعُوۡا مَعَ الرّٰكِعِیۡنَ) او (فَلۡتَقُمۡ طَآئِفَةٌ مِّنۡهُمۡ مَّعَكَ) (النساء : ۱۰۲)

۲- اَلۡاِشۡتِرَاكُ الۡوَصۡفِیُّ وَالۡعَمَلِیُّ . (صفت او عمل کښ ملګرے کیدل) لکه (وَ كَاَیِّنۡ مِّنۡ نَّبِیٍّ قٰتَلَ مَعَهٗ رِبِّیُّوۡنَ) آلعمران (٤۳)

۳- رَفَاقَةٌ فِی السَّیۡرِ (په مزل او سیر او سیاحت کښ ملګرے کیدل) لکه (قَالَ : لَنۡ اُرۡسِلَهٗ

مَعَكُمْ) (یوسف : ٦٦)

٤- اَلْاِشْتِرَاكُ فِي الْاُلُوْهِيَّةِ (د الله سره شریك کیدل) او دا نشی کیدے۔ لکه (اَئِنَّكُمْ لَتَشْهَدُوْنَ اَنَّ مَعَ اللّٰهِ آلِهَةً اُخْرٰى) (الانعام :١٩)

٥- اَلْاِشْتِرَاكُ فِيْ دَرَجَاتِ الْجَنَّةِ۔ (د جنت په درجو کښې یو ځائے کیدل) لکه : (وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيّٖنَ الخ) (النساء : ٧٠)

٦- اَلْمَعِيَّةُ فِی النَّجَاةِ مِنَ الْعَذَابِ (د عذاب نه په خلاصیدو کښې ملګرتیا) لکه (فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الْمُؤْمِنِيْنَ) (النساء :١٤٦)

٧- اَلْمَعِيَّةُ فِی الْجُلُوْسِ (په یو ځائے کیناستل) لکه (فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرٰى مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ) (الانعام: ٦٨) او (فَلَا تَقْعُدُوْا مَعَهُمْ) (النساء : ١٤٠)

٨- اَلْمَعِيَّةُ فِی الْعَذَابِ۔ (په عذاب کښې شریك کیدل) لکه (وَاِذَا صُرِفَتْ اَبْصَارُهُمْ تِلْقَاءَ اَصْحٰبِ النَّارِ قَالُوْا رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ) (اعراف : ٤٧- ٥٠)

٩- اَلْمُتَابَعَةُ (تابعداری) لکه (لَنُخْرِجَنَّكَ يٰشُعَيْبُ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَكَ) (الاعراف : ٨٨) او (مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗۤ اَشِدَّآءُ) (سورة الفتح : ٢٩)

١٠- په معنیٰ د بَعْدُ (روستو والی) سره لکه سورة الانشراح : ٥) (اِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا) (ای بَعْدَ ا۔ ر)

١١- په معنیٰ د لزوم او اتصال سره لکه سورة یس : ١٩) کښې۔ (قَالُوْا طَآئِرُكُمْ مَّعَكُمْ)

١٢- په معنیٰ د علیٰ لکه (وَاتَّبَعُوا النُّوْرَ الَّذِیْۤ اُنْزِلَ مَعَهٗ) (اعراف : ١٥٧) او (وَاَنْزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتٰبَ وَالْمِيْزَانَ) (الحدید: ٢٥)۔

## بل معیة د الله تعالیٰ په صفت کښې دے۔

دا په دوه قسمه دے (١) معیت عامه (٢) او معیتِ خاصه۔

**معیت عامه** د الله تعالیٰ د ټولو مخلوقاتو سره دے او دا په علم او قدرت سره دے یعنی الله تعالیٰ د بندګانو سره دے په اعتبار د علم او قدرت سره۔ لکه دا په سورة الحدید (٤) کښې ذکر دے (وَهُوَ مَعَكُمْ اَيْنَ مَا كُنْتُمْ) او (وَلَآ اَدْنٰى مِنْ ذٰلِكَ وَلَآ اَكْثَرَ اِلَّا هُوَ مَعَهُمْ) (المجادلة ٧)

او پدے کښې د سلف صالحینو عقیده دا ده چه الله تعالیٰ په اعتبار د ذات سره فوق العرش دے او علم او قدرت ئے هر ځائے جاری کیږی۔ او ددے مثال داسے دے لکه یو سړے خپل ملګری ته

چه ددهٔ نه جدا ځائے کښې وی جواب ولیږی چه (اَنَا مَعَكَ) (یعنی زهٔ ستا ملګرے یم) او ستا مدد به کوم. او دا مطلب نهٔ دے چه دا د هغه سره په اعتبار د ذات سره موجود دے.
(۲) او دویم معیتِ خاصه چه دا د الله تعالیٰ خصوصی ملګرتیا ده چه هغے ته معیتِ بالنصر والمحبة وائی. یعنی د مدد ملګرتیا او د محبت ملګرتیا، الله تعالیٰ ورسره خصوصی مددونه کوی او محبت او مینه ورسره لری. او دا د خواصو مؤمنانو سره وی. او ددے د حاصلولو یو څو اسباب دی چه انسان هغه اختیار کړی نو د الله معیة ورته حاصلیږی.

## د معیة خاصه د حاصلیدو اسباب

۱- صبر: لکه بقره (۱۰۳) (اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصَّابِرِيْنَ)
۲- التقویٰ. لکه (وَاعْلَمُوْا اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِيْنَ) (البقرة : ۱۹٤)
۳- الصلوة (مونځ) ٤- زکوٰة. ٥- قرض حسن ورکول. ٦- ایمان بالرَّسُوْل (رسول الله ﷺ باندے ایمان راوړل) لکه دا په سورة المائده (۱۲) آیت کښې راغلی دی: (لَئِنْ اَقَمْتُمُ الصَّلٰوةَ وَاٰتَيْتُمُ الزَّكٰوةَ وَاٰمَنْتُمْ بِرُسُلِيْ وَاَقْرَضْتُمُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا...... الآية)
۷- اَلْاِحْسَانُ وَالتَّقْوٰى. لکه (اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا وَّالَّذِيْنَ هُمْ مُّحْسِنُوْنَ) (النحل : ۱۲۸)
یعنی د مخلوق سره هم احسان کول او د الله تعالیٰ بندګی په توجه سره کول)
دلته د معیة نه مراد دینی معیة دے. یعنی مونږ ستاسو په دین کښې ملګری یو او ستاسو مدد به کوو.

**مُسْتَهْزِءُوْنَ** : ماده د استهزاء په قرآن کریم کښې (۳٤) کرته راغلے ده. په لغت کښې ماخوذ دے د الهُزْءِ نه او هُزْء په معنیٰ د الخفة (سپکاوی) سره دے، او په استهزاء کښې هم د یو انسان شرمول او سپکول مقصود وی.
دلته قرطبیؒ داسے معنیٰ کوی: (مُكَذِّبُوْنَ بِمَا نُدْعٰى اِلَيْهِ) (مونږ ته چه د کوم ایمان دعوت راکولے شی نو د هغے تکذیب کوو) او دا هم د مخاطب سپکاوے دے چه هسے سر ورته خوزوے چه منم او په زړه کښې ئے نهٔ منی. دا تفسیر ببعض اللوازم دے.
(۲) (اَلسَّاخِرُوْنَ مِنْهُمْ) (یعنی هغوی پورے مسخرے کوو.)
**فائدة رائعة** : پدے مقام کښې درے څیزونه دی (۱) سخریه (مسخرے) (۲) استهزاء (۳) مزاح.
سخریه مسخرے او خندنې کول دا په اشخاصو کښې استعمالیږی چه یو انسان بل لره د

خان نه ادنیٰ او ذلیل او تابع اُوګنړي او استهزاء عامه ده، اقوالو، احوالو، او اشخاصو ته شامله ده، او دا دواړه شریعت حرام کړیدي، زنانه به ئې هم خپل مینځ کښې نهٔ کوي. دارنګې مسخرې د مؤمنانو په مینځ کښې هم کیدې شي اګرچه دا کبیره ګناه ده او استهزاء په شریعت کښې صفت د کافر او منافق دې. (احسن الکلام)

او په استهزاء او سخریه کښې ډیر ګناهونه راجمع کیږي لکه د مسلمان سپکاوې کول او د خان تکبر دې او کله متضمن وي غیبت، بهتان لره او پردي عیبونه رابنکاره کول او د خپل عیبونو نه خان ړندول.

(۳) او مزاح خوش طبیعتی ته وائي. پدې کښې د ملګرو او خپل طبیعت خوشحالول وي، دا کار جائز دې لیکن زیادت پکښې صحیح نهٔ دې ځکه چه دا کله استهزاء او سخریه ته رسیږي او انسان ددې د وجه نه په حرامو کښې واقع کیږي. او مزاح د رسول الله ﷺ نه هم نقل ده په تول عمر کښې ئې (۲۲) کرته مزاح کړیده. او هغه به هم حقه خبره وه، دروغ به پکښې نهٔ وو، لکه یو سړي ته ئې ذو الیدین (اُوږدو لاسونو والا) ۲ - یو ته ئې ذو الاذنین) (دوه غوږې) وئیلې دې. ۳ - یوې بوډۍ ته ئې وئیلي وو : بوډۍ ګانې به جنت نهٔ ځي. یعني په صفت د بوډۍ والي. ٤ - یو اعرابي ته ئې اُووئیل : زهٔ به دې د اُوښې په بچي سور کړم، هغه اُووئیل : زهٔ درنه اُوښ غواړم او ته بچې راکوې، نو ورته ئې اُوفرمایل : دا ټول اُوښان د اُوښې بچي دي. ۵ - یا ابا عمیر ما فعل النغیر. (ابوعمیره ! بلبل دې څه اُوکړل؟)

○ صحابه کرامو اُوفرمایل : یا رسول الله ﷺ ته هم مونږ سره توقې کوې. نو هغه اُوفرمایل : (مَا أَقُولُ إِلَّا حَقًّا) زهٔ چه څه وایم نو دا حق دي یعني زهٔ په توقو کښې هم دروغ نهٔ وایم.

او په کثرت مزاح سره زړه سختیږي، او دې باکو خلقو کار دې. په انسان کښې بې غمي پیدا کیږي او د انسان وقار، د مخ تازګي او رونق ختمیږي.

○ سیدنا عمر فاروق رضی الله عنه به فرمایل : (مَنْ مَزَحَ اُسْتُخِفَّ بِهِ) (څوک چه ډیر مزاح کوي نو هغه به سپک ګڼړلې شي.) ○ او فرمائیلي ئې دي : چه مزاح د انسان مروءة (سړیتوب) ختموي او سینه کښې تنګي پیدا کوي. ○ او دا خبره ئې خپلو عاملانو ته لیکلې وه : (اِمْنَعُوا النَّاسَ عَنِ الْمِزَاحِ). (خلق د ګپ شپ نه منع کړئ). ○ او دا ئې هم فرمایلي دي : (مَنْ كَثُرَ ضِحْكُهُ قَلَّتْ هَيْبَتُهُ وَمَنْ مَزَحَ اُسْتُخِفَّ بِهِ وَمَنْ أَكْثَرَ مِنْ شَيْءٍ عُرِفَ بِهِ وَمَنْ كَثُرَ كَلَامُهُ كَثُرَ سَقَطُهُ وَمَنْ كَثُرَ سَقَطُهُ قَلَّ حَيَاءُهُ وَمَنْ قَلَّ حَيَاءُهُ قَلَّ وَرَعُهُ وَمَنْ قَلَّ وَرَعُهُ مَاتَ قَلْبُهُ وَمَنْ مَاتَ

قَلْبُهٗ فَالنَّارُ اَوْلىٰ بِهٖ) (قوت القلوب ص (٤٦) تنبيه الغافلين (١/٢١٧)۔
(څوک چه ډیره خندا کوی، هیبت به ئے کمیږی او څوک چه مزاح کوی سپك به ګڼړلے شی او څوک چه د یو شی تذکره زیاته کوی، په هغے به پیژندلے شی او څوک چه خبرے زیاتے کوی، غلطی به ئے زیاتیږی او د چا چه غلطی زیاته شی، حیاء به ئے کمه شی او د چا چه حیاء کمه شی نو ورع او پرهیزګاری به ئے کمه شی او د چا پرهیزګاری او احتیاط چه کم شو نو زړه به ئے مړ شی او د چا زړه چه مړ شی نو اُور د هغه په سیزلو ډیر لائق دے)۔

O- سیدنا سعید بن العاص ﷺ فرمائی : (لَا تُمَازِحِ الشَّرِيْفَ فَيَحْقِدُ عَلَيْكَ وَلَا الدَّنِيْءَ فَيَجْتَرِئُ عَلَيْكَ) (احياء علوم الدين ٤/٢١٣) (شریف انسان سره مزاح مه کوه د هغه د سترګو نه به پریوزے او د خکته انسان سره مزاح مهٔ کوه هغه به درباندے زړهٔ ور شی)۔

O- محمد بن المنکدر رحمه الله فرمائی : ما ته مور اُووئیل: د ماشومانو سره مزاح (ګپ شپ) مهٔ کوه، ځکه ته به په هغوی باندے سپك شے) (احیاء) (شعب الایمان ومسند ابن الجعد ١/٢٥٥)

O- میمون بن مهران رحمه الله فرمائی : اذا كَانَ الْمِزَاحُ اَمَامَ الْكَلَامِ فَآخِرُهُ الشَّتْمُ وَاللِّطَامُ)۔ (کله چه د خبرے شروع د مزاح نه اُوشوه نو پوهه شه چه آخر کښ به ئے کنځلے او څپیړے وهل وی)۔ O محمد بن هبة الله فرمائی : (وَمَنْ تَرَكَ الْمِزَاحَ وُفِّقَ لِلْبَهَاءِ)۔
(څوک چه مزاح پریدی نو هغه ته به توفیق د تازګئ ورکړے شی)۔ (انظر الفوائد)

O بعض علماء فرمائی : (لِكُلِّ شَيْءٍ بَذْرٌ وَبَذْرُ الْعَدَاوَةِ الْمِزَاحُ) (قوت)۔
(د هر شی تخم وی او د دشمنئ تخم مزاح او ګپ شپ دے)۔

O ابن عبد البر رحمه الله فرمائی : د علماؤ حکماؤ نه نقل دی : څوک چه اراده لری چه د هغه د خپل ورور (دوست) سره دوستی او ورور ولی همیشه پاتے شی نو هغه سره دے مزاح نهٔ کوی او کومه وعده چه اُوکړی په هغے کښ دے خلاف نهٔ کوی۔

وقال ابو هفّانَ :

مَازِحْ صَدِيْقَكَ مَا اَحَبَّ مِزَاحَا ... وَتَوَقَّ مِنْهُ فِي الْمِزَاحِ جِمَاحَا
فَلَرُبَّمَا مَزَحَ الصَّدِيْقُ بِمَزْحَةٍ ... كَانَتْ لِبَابِ عَدَاوَةٍ مِفْتَاحَا

(الآداب الشرعية ٢/٢٢٣)

(دوست سره تر هغه وخت پورے ګپ شپ لګوه څو پورے چه هغه خوښوی او چه هغه مزاح بد

کنړی نو بیا ترېے ځان ساتـه، ځکه ډیر کرته یو دوست بل دوست سره داسے مزاح اُوکړی چه د دشمنۍ دروازه راکولاوه کړی).

الله تعالیٰ ددے صحابه کرامو او د مومنانو د طرفه خپله مدافعت کوی فرمائی :

اَللّٰهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ وَيَمُدُّهُمْ فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ﴿۱۵﴾

الله تعالیٰ توقے کوی دوی پورے او زیاتوی دوی لره په سرکشۍ د دوی کښې چه پریشانه به وی.

**تفسير** : پدے آیت کښې دوه سزا گانے ذکر دی (۱) دنیوی سزاء، دوی پورے توقے کول، او مهلت ورکول. (۲) او دینی سزا چه عَمَه (د زړهٔ ړوندوالے) دے.

(يَسْتَهْزِئُ) الله تعالیٰ تـه د استهزاء نسبت کیـږی (۱) د ډیرو متکلمینو دا عقیده ده چه د الله تعالیٰ صفت د استهزاء نشته او دلته چه کومه استهزاء ذکر ده نو دیته مُشَاكَلَةً استهزاء وئیلے شویده یعنی دا بدله او سزا د استهزاء ده او استهزاء الله تعالیٰ نهٔ کوی، او مثال ئے دا بیانوی لکه (وَجَزَاءُ سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا) د بدیٔ بدله بدی نهٔ وی خو مشاكلةً ورته بدی وائی نو معنیٰ داسے کوی : (اَللّٰهُ يُجَازِيْهِمْ بِالْاِسْتِهْزَاءِ) یا (يَفْعَلُ بِهِمْ فِعْلَ الْمُسْتَهْزِئِ) (الله به سزا د استهزاء ورکړی یا داسے کار به ورسره اُوکړی لکه د توقے کوونکی)

پدے باره کښې امام راغب اصبهانیؒ داسے وائی : (وَالْاِسْتِهْزَاءُ مِنَ اللّٰهِ تَعَالٰى فِى الْحَقِيْقَةِ لَا يَصِحُّ كَمَا لَا يَصِحُّ مِنَ اللّٰهِ اللَّهْوُ وَاللَّعِبُ، تَعَالَى اللّٰهُ عَنْهُ، وَقَوْلُهُ اَللّٰهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ اَىْ يُجَازِيْهِمْ جَزَاءَ الْهُزُوِ وَمَعْنَاهُ : اَمْهَلَهُمْ مُدَّةً ثُمَّ اَخَذَهُمْ مُغَافَصَةً فَسَمّٰى اِمْهَالَهُ اِيَّاهُمْ اِسْتِهْزَاءً حَيْثُ اغْتَرُّوْا بِهِ اِغْتِرَارَهُمْ بِالْهُزُوِ فَيَكُوْنُ ذٰلِكَ كَالْاِسْتِدْرَاجِ مِنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُوْنَ اَوْ لِاَنَّهُمْ اسْتَهْزَءُوْا فَعُرِفَ ذٰلِكَ مِنْهُمْ فَصَارَ كَاَنَّهُ يَهْزَأُ بِهِمْ كَمَا قِيْلَ مَنْ خَدَعَكَ وَفَطِنْتَ لَهٗ وَلَمْ تُعَرِّفْهُ فَاحْتَرَزْتَ مِنْهُ فَقَدْ خَدَعْتَهٗ وَقَدْ رُوِىَ اَنَّ الْمُسْتَهْزِئِيْنَ يُفْتَحُ لَهُمْ بَابٌ مِنَ الْجَنَّةِ فَيُسْرِعُوْنَ نَحْوَهٗ فَاِذَا انْتَهَوْا اِلَيْهِ سُدَّ عَلَيْهِمْ فَذٰلِكَ قَوْلُهٗ : فَالْيَوْمَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنَ الْكُفَّارِ يَضْحَكُوْنَ وَعَلٰى هٰذِهِ الْوُجُوْهِ قَوْلُهٗ : سَخِرَ اللّٰهُ مِنْهُمْ) (مفردات راغب ص (۵٤۳). (یعنی په حقیقت کښې د الله تعالیٰ نه استهزاء صحیح نهٔ ده لکه څنګه چه لهو او لعب د الله نـه صحیح نهٔ دی، الله تعالیٰ ددے نه بالاتر دے. او دا قول د الله تعالیٰ چه الله يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ یعنی بدله د توقو به ورکړی (۱) او ددے معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ به دوی تـه څـه موده مهلت ورکړی بیا بـه ئے پدے بدو کارونو ناڅاپی راونیسی نو دوی ته

مهلت ورکولو ته ئے استهزاء اُووئیله ځکه چه پدے (مهلت) سره دوی داسے دوکه شو لکه څنګه چه په توقو کولو سره دوکه شویدی۔ نو دا د دوی دپاره داسے شو لکه استدراج (په درجه درجه رانیول) د هغه ځائے نه چه دوی ته پته نشته (۲) یا پدے وجه چه دوی استهزاء اُوکړه نو دا د دوی نه خلقو اُوپیژندله نو داسے شوه لکه چه دوی پورے توقے اُوشوے ځکه چه وئیلے شویدی چه څوك تاسره دوکه کوی او ته پرے پو هه شے او ځان دے ورته اُونخودلو او احتراز دِے ترے اُوکړو نو ګویا کښ تا د هغه سره دوکه اُوکړه۔ (۳) او نقل شویدی چه مستهزئینو دپاره به د جنت نه یوه دروازه کولاوه شی نو دوی به هغے طرف ته په منډه ورشی خو کله چه هغے ته اُورسی نو بنده به شی په دوی باندے نو دا مصداق ددے آیت دے چه (نن ورځ به ایمان والا د کافرانو پورے خندا کوی) او پدے ترتیب سره دا آیت هم واخله (سَخِرَ اللهُ مِنْهُمْ) (الله به دوی پورے مسخرے اُوکړی) د مسخرے نسبت الله تعالیٰ ته هم پدے وجو هو بنا دے۔

ابن عاشورؒ په التنویر کښ داسے تاویلات کوی : (لِأَنَّ الْمُرَادَ هُنَا أَنَّهُ يَفْعَلُ بِهِمْ فِي الدُّنْيَا مَا يُسَمَّى بِالْإِسْتِهْزَاءِ أَوْ جزاء اِسْتِهْزَائِهِمْ فَيَكُوْنُ مَجَازًا وَمُشَاكَلَةً، أَوْ مَآلُ الْإِسْتِهْزَاءِ مِنْ رُجُوْعِ الْوَبَالِ عَلَيْهِمْ)۔ (۱) – یعنی مراد د استهزاء نه پدے مقام کښ دا دے چه په دنیا کښ به دوی سره داسے کار اُوکړی چه هغے ته د توقو نوم ورکولے شی۔

(۲) یا جزاء او بدله د استهزاء مراد ده نو دا مجاز دے او مشاکلةً ورته استهزاء وئیلے شویده۔

(۳) یا دا چه عاقبت د استهزاء به دوی ته راواپس کیږی چه هغه وبال دے۔ بیا وائی چه دا جمهورو علماؤ مفسرینو قول دے ځکه چه د استهزاء نسبت الله تعالیٰ ته حقیقةً لائق ندے ځکه استهزاء خو قبیح فعل دے۔ او دغه شان تاویلات کشاف، بیضاوی، تفسیر کبیر او روح المعانی وغیره کړیدی۔

دوی ته دا اشکال راپیښ شویدے چه استهزاء خو بد صفت دے نو الله تعالیٰ ئے څنګه اُوکړی ، دغه شان خداع، مکر وغیره واخله۔ (۲) پدے کښ دویم قول د اهل السنة والجماعة المحضه د سلف صالحینو دے چه قرآن او حدیث کښ کله یو صفت د الله تعالیٰ دپاره ذکر شی نو هغه به منلے شی او په هغے کښ به تاویل نشی کیدے لیکن په بعض ځایونو کښ به د هغه صفت نه فعل مشتق کولے شی او په بعضے ځایونو کښ به فعل نهٔ مشتق کوے لکه الله تعالیٰ دپاره حیٰوة، او الحی استعمالیږی لیکن د ماضی

صیغه (حَیِیَ) (ژوندے شویدے) او مضارع (یَحْیٰی) (ژوندے به شي) نهٔ استعمالیږي. نو دغه شان دلته فعل (یَسْتَهْزِءُ) استعمال دے او اسم فاعل (مُسْتَهْزِءٌ) به الله تعالیٰ دپاره نهٔ استعمالیږي. دغه شان، خَادِع او مُخَادِع به نهٔ استعمالیږي. دارنګه (سَخِرَ الله منهم) استعمال دے او ساخر به نهٔ استعمالیږي.

او دلته استهزاء د متشابهاتو نه ده، خو د الله تعالیٰ صفت دے. الله تعالیٰ ټوقے کوي څنګه چه د هغه د شان سره مناسب وي، او د الله تعالیٰ ټوقے کول د هغه کمال دے، دے کښې هیڅ نقصان نشته، ځکه که الله تعالیٰ په ټوقو قادر نهٔ شي نو دا خو یو کمزوري ده. نو بس الله تعالیٰ په ټوقو قادر دے او که دا بد صفت وے نو الله تعالیٰ به ئے ځان ته نسبت نهٔ کولے. ځکه الله تعالیٰ خو داسے هم وئیلے شو (اَللّٰهُ یُجَازِیْهِمْ بِالْاِسْتِهْزَاءِ) (الله تعالیٰ به بدله د ټوقو ورکړي) لیکن هغه ئے ونهٔ وئیل، معلومه شوه چه ټوقے کول د الله تعالیٰ صفت دے. چه د داسے قسم مجرمانو پورے ئے کوي. او ددے ظاهر نه خلاف تفسیر کول حرام دي. او الله تعالیٰ په خپل کتاب کښې ځان ته نهٔ منسوب کوي مګر هغه شے چه هغه ادب او کمال وي. (فَلَا یُتْرَكُ ظَاهِرُ الْقُرْآنِ لِشَغَبِ الشَّاغِبِیْنَ).

بیا د الله تعالیٰ د ټوقو مثال او مصداق به څه وي؟ نو ددے حقیقت خو الله تعالیٰ ته معلوم دے، لیکن ظاهري آثار ئے دا دي. په دنیا کښې ټوقے دا دي چه د مسلمانانو په ډله کښې به اُوسیږي او احکام د اسلام به پرے جاري کیږي او اجر به ورته نهٔ ملاویږي، سترې کیږي به او اجر به ورته نهٔ وي. او عبد الله بن عباس ﷺ فرمائي : په آخرت کښې استهزاء دا ده : (یَسْلُكُ بِهِمْ طَرِیْقَ الْجَنَّةِ ثُمَّ یُدْخِلُهُمْ اِلٰی طَرِیْقِ النَّارِ) (اول به ئے د جنت په لار روان کړي او بیا به ئے راواپس کړي او د جهنم په لار به ئے روان کړي) دا غټ شرم دے. دارنګه په ظاهره کښې به ئے د مؤمنانو سره حساب کړي، او مینځ کښې د مسلمانانو په شان اجر به نهٔ ورکوي، دارنګه آخرت کښې به ټول مشرکان جهنم ته لاړ شي منافقان به پاتے وي، د مؤمنانو په صف کښې به ولاړ وي. په دے مابین کښې به د سجدے امر اُوشي، دوی به محرومه شي د سجدے نه، سجده به نهٔ شي لګولے، ملا به ئے یو طَبَق شي، نو دا استهزاء شوله، دارنګه مؤمنان او منافقان ټول به روان شي ټولو سره به رڼا وي، د منافقانو نه به ناڅاپي رڼا مړهٔ شي او تیاره کښې به پاتے شي، ددے نه غټه استهزاء بله کومه کیدے شي؟ الله تعالیٰ فرمائي : (ینادونهم الخ) یعني مؤمنان چه کله خپله رڼا سره مخکښې روان شي او منافقان تیاره

کښې پاتې شي ټینډ کونه به خوری نو ایمان والو ته به آواز اُوکړي چه آیا مونږ تاسو سره دنیا کښې ملګري نهٔ وو ؟ هغوی به جواب ورکړي چه آو تاسو وئ لیکن تاسو ځان په نفاق کښې مبتلا کړے وو او تاسو زمونږ د هلاکت او تباهئ انتظار کولو، د زړهٔ نه زمونږ خیرخواه نهٔ وئ او تاسو شکیان وئ (الحدید / ۱٤)

نو دا ډیرے زیاتے استهزاګانے دي چه دوی پسے به په آخرت کښې کیږي او الله تعالیٰ سره قسماقسم استهزاء ګانے شته چه هغه به ورپسے کولے شي چه د هغے حقیقت به د قیامت په ورځ ښکاره کیږي. او په دے خبره چه بنده سوچ اُوکړي چه یو مشر انسان د چا پورے توقے اُوکړي نو بنده ډیر شرمیږي، وائي دومره عزت مند سړے وو او زهٔ ئے د خلقو په مخکښې اُوشرمولم، تباه ئے کړم، یو ماشوم چا پورے توقے اُوکړي، دومره خبره نهٔ وي، خو چه یو عالم بنده پورے توقے اُوکړي نو بنده ډیر شرمیږي نو چه بیا الله تعالیٰ د عرصات په میدان کښې د چا پورے توقے اُوکړي نو ددے انسان په تباهي کښې بیا څه شك دے؟ ددهٔ به څه حال وي ؟.

**فائدة عجیبة:** د الله تعالیٰ د اسماء او صفاتو متعلق څلور اقسام دي (۱) بعض هغه دي چه صفت د کمال وي لیکن کله ترے نقصان هم پیدا کیږي. نو الله تعالیٰ ته به هغه نوم نشي کیخودلے اګرچه د الله تعالیٰ صفت پرے په بعض اوقاتو کښې کولے شي. لکه (متکلم، او مرید) دا دواړه د الله تعالیٰ اسماء نهٔ دي. ځکه کلام او اراده کله د خیر وي او کله د شر وي، کله د ظلم وي او کله د عدل وي. نو مطلقاً به الله تعالیٰ ته دا نوم نشي کیخودلے. لیکن دا صحیح ده چه الله تعالیٰ دپاره په طریقه د صفت مطلقاً استعمال شي چه الله تعالیٰ متکلم (خبرے کونکے) دے او مرید (اراده کونکے) دے. یعنی په صورت د اخبار کښې ئے استعمال جائز دے.

۲- دویم قسم : هغه چه سراسر کمال وي لکه الرحمن الرحیم الغفور السمیع البصیر، نو دا نومونه الله تعالیٰ دپاره مطلقاً استعمالولے شي. که صورت د اخبار وي او که انشاء وي. یعني دعاء او اخبار دواړو کښې ئے استعمال جائز دے. ۳- دریم قسم : هغه چه مطلقاً کمال نهٔ وي لیکن که مقید ذکر شي نو بیا کمال وي نو دا به مقید ذکر کولے شي. لکه خداع، مکر، استهزاء، کید. نو پدے کښې به داسے وئیل صحیح نهٔ وي چه الله تعالیٰ ماکر دے، مُخادع، یا مُسْتَهْزِء او ګائډ دے، بلکه داسے به وئیلے شي چه (اَللّٰهُ تَعَالیٰ مَاکِرٌ بِمَنْ یَّمْکُرُ بِه وَبِرُسُلِه) یعني الله تعالیٰ مکر کونکے دے د هغه چا سره چه د الله تعالیٰ سره چل کوي یا د

هغه د رسولانو سره۔ ٤- څلورم قسم : هغه چه مطلقاً نقصان او عيب وي لکه، الضعيف، الاعور، العاجز وغيره نو دا به د الله تعالیٰ دپاره هیڅکله نشي استعمالولے۔ نهٔ اسماً او نهٔ صفةً۔ (انظر تفسير العثيمين)

**فائده** : يستهزء ئے جمله فعليه راوړه اشاره ده دوام تجددي ته يعني دوي پورے به وخت په وخت نوے نوے توقے کوي، ځکه چه يوه توقه اُوګده شي نو دومره اثر نهٔ کوي او کله چه بار بار راواپس کيږي نو بنده دے سره په شرم کښې ډير مبتلا کيږي۔

**(وَيَمُدُّهُمْ)**

مَد لفظ په قرآن کريم کښې په دوه معنو استعمال دے (۱) بمعنى الزيادة۔ لکه د مجاهدؒ نه ابن کثيرؒ نقل کړيدي (اَيْ يَزِيْدُهُمْ) (زياتوي الله تعالیٰ دوي لره) يعني په سرکشئ کښې ورله زياتوالے پيدا کوي، پدے طريقه دوي ته مهلت ورکوي چه ديته املاء او استدراج وئيلے شي۔ (۲) دويم : په معنیٰ د امهال (مهلت) دے۔ يعني زمانه د ګمراهي زياتول۔

او دا ماده په قرآن کريم کښې درے (۳) کرته راغلے ده۔ اصل معنیٰ ئے زيادة ده، او مَدّ (مجرّد) غالباً په شر کښې استعماليږي، او مزيد (امداد) په خير کښې استعماليږي۔

دلته ئے د زيادت معنیٰ غوره ده۔ او په سورة مريم (۷۹) کښې همدا معنیٰ ده (وَنَمُدُّ لَهٗ مِنَ الْعَذَابِ مَدًّا) او معتزله دويمه معنیٰ غوره کوي، ځکه وائي چه نسبة د قبائحو الله تعالیٰ ته جائز نهٔ دے، او سرکشي زياتول خو قبيح کار دے، ليکن مخکښې تير شو، چه يو خَلق د قبائحو دے، دا کمال دے، او بل فعل (کول) او کسب د قبائحو دے، نو دا قبيح دي۔ نو الله تعالیٰ خالق د شر دے، خو فاعل د شر نهٔ دے۔

**فِىْ طُغْيَانِهِمْ** : طغيان ماده په قرآن کريم کښې (۴۹) کرته راغلے ده۔ طغيان دوه قسمه دے

(۱) لغوي معنیٰ : (اَلزِّيَادَةُ فِي الْقَدْرِ وَالْمَرْتَبَةِ) دا لغوي معنیٰ په دوه مقاماتو کښې راغلے ده

۱- سورة الحاقة (اِنَّا لَمَّا طَغَا الْمَآءُ) (آية:۱۱)

۲- او سورة النجم (۱۷) (مَازَاغَ الْبَصَرُ وَمَا طَغٰى)۔

باقي (٤٧) مقاماتو کښې شرعي معنیٰ مراد ده، چه هغې ته سرکشي وائي يعني د حدودو شرعيه ؤ نه په عقيده يا په عمل کښې او په مقدار يا کيفيت يا وخت کښې تجاوز کول دي۔

او دا معنیٰ کفر، شرك، نفاق، بدعت او فسق وفجور ټولوته شامل ده۔ او دے معنیٰ ته علامه آلوسيؒ اشاره کړيده۔ (وَمَنْ أَخَلَّ بِمَا عُيِّنَ مِنَ الْمَوَاقِفِ الشَّرْعِيَّةِ وَالْمَعَارِفِ الْعَقْلِيَّةِ فَلَمْ

یَرُعَهَا فَقَدْ طَغٰی) (روح المعانی ۱/۱۶۹) یعنی څوک چه د شرعی حدودو او د عقلی معلوماتو لحاظ اُونهٔ ساتی نو ده تجاوز اُوکړو)

د طغیان بعض مصداقات دا دی : ۱ – (اَلْاِعْرَاضُ عَنْ طَاعَةِ اللّٰهِ یا اَلزِّیَادَةُ فِی الْمَعْصِیَةِ)۔ (د الله تعالیٰ د طاعت نه اعراض کول) ۲ – او په ګناه کښې زیاتوالے پیدا کول۔

نیشاپوری وائی : (اَلطُّغْیَانُ : اَلْغُلُوُّ فِی الْکُفْرِ، وَمُجَاوَزَةُ الْحَدِّ فِی الْعُتُوِّ)

(تفسیر النیسابوری ۱/۱۰۷)

(کفر کښې غلو او زیادت کول او په سرکشئ کښې د حد نه تیروتل) او طغیان دا دے چه د انسان د بد بختئ او بد عملئ د وجه نه هغه ته د شر اسباب برابر او آسان شی۔ سید قطب معنیٰ کوی : (فَیَدَعُهُمْ یَخْبِطُوْنَ عَلٰی غَیْرِ هُدًی فِیْ طَرِیْقٍ لَایَعْرِفُوْنَ غَایَتَهٗ) (فی ظلال القرآن ۱/۱۶) (یعنی دوی به پریدی چه بغیر د هدایت نه به په لاره کښې ګډوډ روان وی چه ددے لارے آخر سر به نهٔ پیژنی) چه کوم خوا لاړ شی۔

**فائده** : په یَمُدُّهُمْ، طُغْیَانِهِمْ کښې ضمیرونه ئے دوی ته راجع کړل، پدے کښې اشاره ده چه ددے سرکشئ ډیرولو اسباب دوی اختیار کړی دی۔

(**یَعْمَهُوْنَ**) عَمَهَ د زړه په ړوندوالی او د رائے په خطاء والی کښې استعمالیږی او عمی د سترګو په ړوندوالی کښې استعمالیږی خو کله کله استعارةً د زړه په ړوندوالی کښې هم استعمالیږی لکه آیت دے : (فانها لا تعمی الابصار ولکن تعمی القلوب التی فی الصدور) (الحج:۴۶)۔

عَمَهَ لفظ په قرآن کریم کښې (۷) کرته راغلے دے۔ او قوت د لفظ عمه دلالت کوی په قوت د معنیٰ باندے ۔ ځکه هاء د حروف حلقی نه ده، زور والے پکښې دے۔ د یعمهون معنیٰ ده : (یَتَرَدَّدُوْنَ فِی الضَّلَالَةِ مُتَحَیِّرِیْنَ) (خازن) (په ګمراهئ کښې به پریشانه او حیران وی) چل به نهٔ ورځی چه مونږ کوم خوا لاړ شو۔ او ددے کفر نه ځنګه اُوځو۔ او دا هم د منافقانو سره د الله تعالیٰ استهزاء ده چه هغوی ته ډهیل ورکوی او په کفر او فجور کښې ئے مخ په ترقئ بوزی، په داسے حال کښې پریشان به وی او د الله تعالیٰ په صحیح دین کښې راحت او اطمینان دے او په منافقت او کفر او غلطو عملونو کښې پریشانی ده۔

۲ – ابن قتیبة وائی : (یُکِبُّوْنَ عَلٰی رُؤُوْسِهِمْ فَلَا یُبْصِرُوْنَ) ۔ (سر کوزی به وی، هیڅ حق به نهٔ وینی)۔ ۳ – (یَتَمَادَوْنَ فِیْ کُفْرِهِمْ – ابن جریر) ، (په خپل کفر کښې به همیشه پاتے وی) الله به دوی ته هدایت نهٔ کوی او د خپلے ګمراهئ نه به ئے نهٔ راړوی۔ ځکه چه دوی د حق او

اهل حقو پورے توقے کړیدی۔

٤- يَتَرَدَّدُوْنَ وَيَتَحَيَّرُوْنَ بَيْنَ الْإِظْهَارِ وَالْإِخْفَاءِ اَوْ بَيْنَ الْبَقَاءِ عَلَى الْكُفْرِ وَتَرْكِهِ إِلَى الْاِيْمَانِ) (الوسيط ۱/۳۰) (یعنی دوی به شکیان او حیران وی چه منافقت ښکاره کړو او که پټ، یا په کفر باقی پاتے شو او که ایمان ته راشو)۔

٥- بعض علماء داسے معنیٰ کوی : (اَللّٰهُ يَسْتَهْزِءُ بِهِمْ بِمَا يُظْهِرُ لَهُمْ مِنْ صُوَرِ الْكَرَامَاتِ وَالْاِسْتِدْرَاجَاتِ وَيَمُدُّهُمْ فِيْ تَعَاطِي الْعَوَائِدِ وَالشَّهَوَاتِ وَطَلَبِ الْعُلُوِّ وَالرِّئَاسَاتِ، مُتَحَيِّرِيْنَ فِيْ مَهَامِهِ الْخَوَاطِرِ وَالْغَفَلَاتِ) (البحر المديد ۱/۲٤) (یعنی الله تعالیٰ به دوی پورے داسے توقی کوی چه دوی ته به د کرامتونو (عزتونو) او استدراجاتو شکلونه ښکاره کوی او د فائدو او شهواتو حاصلول، او اُوچتے مرتبے او ریاستونه طلب کول به ورله زیاتوی، چه د فکرونو او غفلتونو په بیابانو کښی به حیران وی) الله تعالیٰ او خپلے کامیابئ ته به ئے نۀ فکر کیږی۔ او په خپلو خواهشاتو او دنیاوی مرتبو او فائدو حاصلولو به خوشحاله وی او دا به مانع وی د هغوی د حق قبلولو او صحیح ایمان راوړو نه۔

**فائده** : قرآن کریم کښی غالباً الله تعالیٰ عقوبات دینیه ډیر بیانوی ځکه دا سخت عذاب دے لکه (اَنْ تَحْبَطَ اَعْمَالُكُمْ) (وَنَطْبَعُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ) (وَنُقَلِّبُ اَفْئِدَتَهُمْ وَاَبْصَارَهُمْ) (كَذٰلِكَ يَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ قَلْبِ مُتَكَبِّرٍ جَبَّارٍ) (قُلْ اِنَّ اللّٰهَ يُضِلُّ مَنْ يَّشَاءُ) (كَذٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِيْنَ فَسَقُوْا اَنَّهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ) ۔او دد ے په شان نور امثال ډیر دی۔

| |
|---|
| اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الضَّلٰلَةَ بِالْهُدٰى |
| دغه صفتونو والا هغه کسان دی چه اخستی ئے ده گمراهی په مقابله د هدایت کښی |
| فَمَا رَبِحَتْ تِّجَارَتُهُمْ وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ ﴿١٦﴾ |
| پس گټه ونکړه تجارت د دوی او نۀ دی دوی په سمه لار۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښی دوه صفات نور بیانوی چه هغۀ نتیجه د مخکنو صفاتو ده چه اشتراء الضلالة (گمراهی اخستل) او عدم اهتداء (په سمه لار نۀ روانیدل)۔ یعنی (اَلْمُنَافِقُ ضَالٌّ غَيْرُ مُهْتَدٍ) (منافق گمراه دے او هدایت والا نۀ دے)۔

او پدے کښې د هغوی د بد عقیدگۍ او بد کردار مزید وضاحت کوی چه د دوی په گمراهۍ کښې د پاتے کیدو مینه دومره زیاته شویده لکه څوك چه د یو نفیس (قیمتی) سامان حاصلولو دپاره خپل قیمتی مال خرچ کوی نو دوی هم د الله تعالیٰ د طرف نه رالیږلے شوے هدایت ورکړو او گمراهی ئے پرے قبوله کړه، ډیر خراب تجارت ئے اُوکړو او ډیر بد شے ئے واخستو او ډیر قیمتی څیز ئے ضائع کړو !!. په تجارت کښې د گټے په ځائے ئے تاوان اُوکړو.

اشتراء وئیلے شی (بَذْلُ الثَّمَنِ وَاَخْذُ الْمَبِيعِ) (پیسے ورکول او سامان اخستل)

(۲) کله په معنیٰ د بیع (خرڅولو) هم استعمالیږی. لکه بقره (۹۰) آیت کښې راځی. (بِئْسَمَا اشْتَرَوْا بِهٖ اَنْفُسَهُمْ).

دلته خو دا لغوی معنیٰ نشی مراد کیدے بلکه ددے سره لازم شے مراد دے او هغه دا چه څوك یو شے اخلی نو هغه ورته غوره او ښه ښکاری. نو دوی ته هم کفر ښهٔ ښکاری او پدے وجه ترے تعبیر په اشتراء هم اُوشو. نو دلته ئے معنیٰ د (اِخْتَارُوْا وَاسْتَحَبُّوْا وَاسْتَبْدَلُوْا) ده. (یعنی دوی غوره کړو او ښه ئے اُوگنړو او بدل ئے کړو)

دلته د هدی او ضلالة نه ظاهری معنیٰ د هدایت او گمراهی ده یعنی دوی په معنوی نیغه لاره نهٔ دی روان بلکه ددے لارے نه گمراه شویدی.

## د گمراهۍ اخستلو مصداقات

مفسرین ددے نور مصداقات داسے ذکر کوی قتاده رحمه الله فرمائی : (۱) اِنْتَقَلُوْا مِنَ الْهُدٰى اِلَى الضَّلَالَةِ (۲) وَمِنَ الطَّاعَةِ اِلَى الْمَعْصِيَةِ (۳) وَمِنَ الْجَمَاعَةِ اِلَى الْفُرْقَةِ (٤) وَمِنَ الْاَمْنِ اِلَى الْخَوْفِ (٥) وَمِنَ السُّنَّةِ اِلَى الْبِدْعَةِ) (فتح القدير ۱ / ۷۲) وابن کثیر وابن جریر، واللباب وتفسیر الرازی ۱ / ۳٤٤) یعنی دوی د هدایت نه گمراهۍ ته نقل شو او د طاعت نه معصیت (گناه او مخالفت) ته او د جماعة د مسلمانانو نه فرقة او جداوالی ته او د امن نه خوف ته او د سنة نه بدعت ته نقل شو) دا ټول مصداقات صحیح کیدے شی.

**سوال** : منافقانو سره خو د مخکښې نه ایمان او هدایة نهٔ وو نو څنگه ئے هغه ورکړو او گمراهی ئے واخسته. دا خو به هله صحیح وے چه دوی سره اول هدایت موجود وے بیا ئے پرے گمراهی اخستے وے ؟

**جواب** : (۱) دوی سره هدایتِ فطری موجود وو، څکه حدیث دے (كُلُّ مَوْلُوْدٍ يُوْلَدُ عَلٰى

اَلْفِطْرَةِ) (متفق علیه) (هر بچے په فطرت اسلامی پیدا کیږی) نو کله چه رسول الله ﷺ مدینے ته راغلو نو دوی هغه فطرت پریخودو او کفر ئے اختیار کړو۔

(۲) جواب : دلته هدایت ورکول او ضلالة اخستل کنایه ده د تمکن الهُدیٰ نه (یعنی کَانُوْا مُتَمَكِّنِيْنَ مِنَ الْهُدٰى فَلَمَّا تَرَكُوْهُ فَكَاَنَّهُمُ اسْتَبْدَلُوا الضَّلَالَةَ بِالْهُدٰى) یعنی دا خلك قادر وو په هدایت حاصلولو باندے ځکه چه نبی ﷺ دوی نه مزدوری نهٔ اخسته، د هغه په ژبه هم پوهیدل، عقل هم ورسره وو۔ نو دوی سره هدایت موجود وو نو دوی هغه پریخودلو نو گویا کښ داسے شو لکه چه دوی گمراهی د هدایت په مقابل کښ واخسته۔

(۳) دریمه وجه ظاهره دا هم ده چه منافقان اول نه کافر نهٔ دی بلکه اول نه دوی ایمان راوړے وو، لږ شان رنړا ئے حاصله کړے وه لکه (مَثَلُهُمْ) کښ به راشی۔ نو ددے رنړا لحاظ ئے اُونکړو نو هغه ترے مړه شوه نو دوی دغه زوړ هدایت پریخودو او گمراهی ئے واخسته۔

**فَمَا رَبِحَتْ** : دوی وائی گنے مونږ ډیر ښه تاجران یو، هوښیار یو، دنیا هم اُوگټله او مؤمنانو سره هم ملگری شو، نهٔ ! گټه ئے اُونکړه، دنیا کښ به هم ذلیله شی۔ او دا بعینه په دے زمانه کښ د مسلمانانو غلط حکمرانان دی چه د امریکے نه تاویږی، هغوی ورله څه فائدے هم نهٔ ورکوی او آخرت ئے هم خراب شو۔ دا د منافقانو حال دے چه دنیا او آخرت دواړه ئے خرابیږی۔

فَمَا رَبِحَتْ : دیته بعض خلق اسناد مجازی وائی، ځکه گټه خو تجارت نهٔ کوی بلکه تاجران ئے کوی۔ لیکن تاجران په تجارت گټه کوی نو پدے وجه تجارت ته ئے نسبت هم حقیقةً دے۔

تجارت په قرآن کریم کښ درے قسمه دے (۱) تجارت دنیوی لکه سورة النساء (۲۹) اِلَّا اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِّنْكُمْ)

(۲) تجارت اُخروی لکه (هَلْ اَدُلُّكُمْ عَلٰى تِجَارَةٍ تُنْجِيْكُمْ مِّنْ عَذَابٍ اَلِيْمٍ) (الصف : ۱۰)
یا (يَرْجُوْنَ تِجَارَةً لَّنْ تَبُوْرَ) (فاطر : ۲۹)

۳- تجارت مجازی چه هغه هدایت خرڅول او گمراهی پیرے اخستل دی او هغه دے آیت کښ ذکر دی۔

(**وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ**) هر کله ئے چه د هغوی په تجارت کښ تاوان ذکر کړو نو دلته اُوس دے خبرے ته اشاره کوی چه دا بد نصیبه خلق د تجارت د اصولو نه هم واقف نهٔ وو، دوی ته دا پته نهٔ وه چه تجارت څنگه کیږی؟ یعنی د منافقانو نه دا صلاحیت سلب (اخستے) شویدے چه

هغوی نفع او نقصان، خیر او شر، رڼرا او تیاره، او هدایت او گمراهئ کښې تمییز اُوکړی۔

**حکمة** : هدایة ئے دوباره ذکر کړو سره ددے نه چه د ماقبل نه معلوم شو چه دوی هدایة خرڅ کړو۔ نو ددے (۱) یو حکمة دا دے چه دا مبالغه ده په عدم هدایة کښې. (یعنی وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ اِلٰی طُرُقِ التِّجَارَةِ فَضْلاً عَنِ الْهِدَايَةِ الْحَقِيْقِيَّةِ) (یعنی دوی لارے د تجارت نۀ پیژنی نو حقیقی هدایت بـه څه اُوپیژنی او هغے ته به څنگه اُورسیږی) (۲) دویم دا چه پدے کښې اشاره ده (لِزَوَالِ اسْتِعْدَادِهِمْ وَتَكْدِيْرِ قُلُوْبِهِمْ بِالرَّيْنِ) (چه د دوی استعداد زائل شویدے او زړونه ئے په رین (د گناهونو په زنگ) باندے خړ شویدی چه اُوس هدایت ته نۀ راځی)

(۳) دارنگه دا ئے جدا ذکر کړویدے کښې اشاره ده چه منافقانو گټه هم اُونکړه او رأس المال ئے هم روغ رانۀ وړو بلکه هغه ئے هم د لاس نه ورکړو۔ نو وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ کښې رأس المال ضائع کیدو ته اشاره ده۔ ځکه د تاجر دوه مقصده وی یوه گټه او بل سلامتیا د رأس المال۔ او د دوی نه دواړه مقاصد فوت شو۔

دے ځائے پورے تقریباً شپاړس صفتونه د منافقانو بیان شو۔

| |
|---|
| مَثَلُهُمْ كَمَثَلِ الَّذِى اسْتَوْقَدَ نَارًا ۚ فَلَمَّآ اَضَآءَتْ |
| حال ددے (منافقانو) په شان د حال د هغه چا دے چه بل کړے ئے وی اُور لره، پس هر کله چه رڼرا کړی دا اُور |
| مَا حَوْلَهٗ ذَهَبَ اللّٰهُ بِنُوْرِهِمْ وَتَرَكَهُمْ فِىْ ظُلُمٰتٍ لَّا يُبْصِرُوْنَ ﴿۱۷﴾ |
| هغه څه چه چاپیره وی ددۀ نه، نو بوځی الله تعالیٰ رڼرا د دوی او پریدی دوی لره په تیارو کښې چه هیڅ نۀ وینی. |

**تفسیر** :

**فوائد الآیات** : ۱ – الله تعالیٰ په قرآن کریم کښې او ددے نه مخکښې په آسمانی کتابونو کښې د مثالونو په ذریعه ډیر حقائق واضح کړیدی، رسول الله ﷺ او نور انبیاء علیهم السلام او د حکمائے عالَم په کلام کښې هم ډیر مثالونه موجود دی، ځکه چه د مثال په ذریعه پټے معانی ښکاره کیږی او مخے ته راځی، د ډیرو پټو حقائقو نه پرده پورته کیږی او د غائب نه حاضر جوړیږی او دشمن پرے انسان ته ښکاره کیږی. او مثال په کلام کښې د عجز د وجه نه نۀ راوړل کیږی بلکه دا د مخاطب د پوهے دپاره وی او دا زینت د کلام وی۔

په عربی ژبه او په هره ژبه کښې مثال بیانولے شي دا د عقلاؤ طریقه ده۔

الله تعالیٰ فرمائي : (وَتِلْكَ الْأَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ وَمَا يَعْقِلُهَا إِلَّا الْعَالِمُونَ) (العنکبوت/۴۳) دا مثالونه مونږ د خلقو د پوهه کولو دپاره بیان کړیدي او پدے باندے علم والا پو هیږي)

۲- قرآن کریم کښې (۴۵) امثله ذکر کړیدي، بلکه (۵۲) ته رسیږي لکه الموسوعة القرآنیة لشیخنا الرستمیؒ۔ او حافظ ابن القیم رحمه الله پدے باندے کتاب الامثال لیکلے دے۔ صرف په سورة البقره کښې (۱۵) مثاله ذکر دي۔

۳- ددے ځائے نه روستو دوه مثالونه راوړي، دے دپاره چه د منافقانو حال ښۀ واضحه شي۔ بیا دا یو مثال ناري (اُور والا) دے او دویم مثال مائي (اُوبو والا) دے او دا په قرآن کریم کښې په ډیرو سورتونو کښې بیانیږي لکه سورة رعد (۱۷) کښې هم مثال مائي (أَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَسَالَتْ أَوْدِيَةٌ بِقَدَرِهَا) سره او مثال ناري (وَمِمَّا يُوقِدُونَ عَلَيْهِ فِي النَّارِ) سره بیان شویدے، دلته هم بیان شوے دے، نورو ځایونو کښې هم ورته الله تعالیٰ اشاره کړیده۔ لکه سورة النور کښې (اَللّٰهُ نُوْرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ)۔ او (أَعْمَالُهُمْ كَسَرَابٍ بِقِيعَةٍ) الخ۔ بیا دا دوه مثالونه د اُور او د اُوبو ولے بیانوي؟ نو حکمة دا دے چه اُوبو سره حیات (ژوند) راځي او اُور سره رڼرا راځي۔ او حیات او نور دواړه د کامیابۍ او کمال اسباب دي، کله چه الله سړی له حیوة ورکړي او نُور ورله ورکړي نو زړه ئے ژوندے وي، او رڼرا پکښې وي نو بس دا کامیاب شو لکه آیت: [ أَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَاهُ وَجَعَلْنَا لَهُ نُورًا ]۔ (انعام: ۱۲۲) کښې ورته اشاره ده نو اے مومنه! که ته ژوند غواړے نو پدے دوه مثالونو ځان ژوندے کړه، منافق خو مړ شوے دے، تلے دے، خو ته پرے ځان ژوندے کړه، ددے مثالونو ډیر اسرار او فوائد دي چه په اُوګدو تفسیرونو کښې ئے کتلے شئ۔

لیکن بعض دلته بیانولے شي تبصرةً لاولی الالباب۔ ۱- دلته ئے د حیاة او نور مثالونه راوړیدي۔ د حیات مطلب دا دے چه زړه کښې الله تعالیٰ ته د رسیدلو طلب پیدا شي او چه نور د وحي ورسره شي نو رسیدل آسان شي چه یو نۀ وي بیا رسیدل نشي کیدلے۔ مثال د حیاة او نور دا دے لکه موټر شو، یو د موټر سټارټ کول دي دویم د هغے بیټري بلول دي که سټارټ نشي نو کاړے چلیږي نۀ، هسے به ولاړ وي، فائده به نکوي او که روان شي لیکن بیټري پکښې نۀ وي نو بیا د شپے د غورزیدلو او د اکسیډنټ غالب احتمال دے دارنګه د چا زړه کښې چه حیات نۀ وي نو هغه ولاړ ګاړے دے او چه د وحي (قرآن او سنت) رڼرا ورسره

نهٔ وی نو که ګاړے روان هم شی، تباه کیدو والا دے۔ (مَا ازْدَادَ الْمُبْتَدِعُ اجْتِهَادًا اِلَّا ازْدَادَ مِنَ اللّٰهِ بُعْدًا)۔ (بدعتی چه څومره کوشش زیات کوی هغومره د الله تعالیٰ نه زیات وړاندے کیږی)۔ ځکه چه نُور ورسره نشته۔

**فوائد الامثلة** : قرآن کریم کښې ددے فائده دا ذکر ده ۱- اَلتَّذَکُّرُ: (عبرت اخستل) (وَيَضْرِبُ اللّٰهُ الْاَمْثَالَ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ) (ابراهيم : ۲۵) (چه خلق ترے عبرت واخلی)۔

(۲) اَلتَّفَكُّرُ (فکر کول) لکه (وَتِلْكَ الْاَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ) (الحشر : ۲۱)

۳- (تَقْرِيْبُ الْمَعْقُوْلِ اِلَى الْمَحْسُوْسِ) (معقولات رانزدے کول محسوساتوته)

٤- (اَلْعَالِمُ بِاَمْثَالِ الْقُرآن هُوَ الْعَالِمُ) (په قرآنی امثالو چه څوك پو هه شی نو هم دغه حقیقی عالِم دے) (وَتِلْكَ الْاَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ وَمَا يَعْقِلُهَا اِلَّا الْعَالِمُوْنَ) (العنکبوت : ٤۳)

د عمرو بن مره رحمه الله نه نقل دی چه زهٔ د قرآن کریم په مثال ورتیرشم او پرے پو هه نشم نو ډیر خفه یم۔ چه زهٔ د علماؤ د درجے نه خکته پریوتم۔ (ابن کثیر والقاسمی فی عنکبوت)

## د مثال په مصداق کښې اختلاف

۱- بعض علماء فرمائی : دا اول مثال د منافقانو دے، او دویم د کافرو دے۔ ځکه مخکښې دوه ډلے تیرے شویدی ، منافقان او کافران۔ لیکن دا قول غوره نهٔ دے، ځکه چه مثال د هغه چا بیانیږی چه د هغوی حالت واضح نهٔ وی او د کافرانو حالت واضح دے۔ او منافقان خو په ظاهر کښې د ایمان والو په شان دی نو مثال بیانولو ته محتاج دی۔

۲- قول ثانی : صحیح خبره دا ده (چه ابن کثیرؒ او ابن جریرؒ غوره کړیده) چه اول مثال هم د منافقانو دے، دا دویم هم د هغوی دے، نو روستو راځی اَوْ كَصَيِّبٍ کښې (اَوْ) د تخییر (اختیار) دپاره دے، ستا خوښه ده چه هر یو مثال ورله بیانوے، ۳- دے کښې داسے هم وئیلے شی چه دواړه مثالونه د منافقانو دی خو اول مثال ئے د حیرانتیا دے او دویم مثال ئے د خوف دے یا آسان تعبیر داسے دے چه اول مثال د ضلالة د دوی دے او دویم مثال ئے دے امنئ او خوف دے، هر وخت کښې خوف کښې دی۔ هدایة ئے ترے واخستو ګمراهی ئے ورکړه او امن ئے ترے واخستو خوف ئے ورکړو۔ په خلاف د ایمان والو (اَلَّذِيْنَ آمَنُوْا وَلَمْ يَلْبِسُوْا اِيْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ اُولٰٓئِكَ لَهُمُ الْاَمْنُ وَهُمْ مُّهْتَدُوْنَ) (انعام: ۸۲)

(۳)- دریم قول : منافقان دوه قسمه دی یو مثال د یو قسم دے چه ایمان راوړی او بیرته

کافر شي او بل مثال د بل قسم دے چه ایمان راوړی او اُوس هم د ایمان والو په ډله کښ اُوسیږی. د ایمان والو سره په یره یره اُوسیږی (كَصَيِّبٍ مِّنَ السَّمَآءِ فِيهِ ظُلُمَاتٌ وَرَعْدٌ).

ظاهره دا ده چه منافقان ټول یو قسم وو، څه پکښ اعلیٰ وو او څه پکښ ادنیٰ وو، الله تعالیٰ دوه مثالونه راوړیدی، دا ولے؟ د زیادت وضاحت دپاره چه که ښه ځان پوهه کوے نو مثال ئے اُوګوره. او منافقانو دوه صفتونه راښکاره کړل یو بے نوری او دویم خوف من قراءة القرآن ونزوله. صاحب د تدبر قرآن وئیلی دی چه دا مثالونه د یهودو دی نو دا ډیره بعیده خبره ئے کړیده ځکه چه دا مثالونه د هغوی سره نۀ لګیږی.

## توضیح اللغات

**مَثَلُهُمْ**: مثل ماده په قرآن کریم کښ (۱۶۳) کرته استعمال ده په مختلفو معنو باندے لکه:

۱- په معنیٰ د وصف سره لکه سورة النحل (۶۰) آیت کښ دی: (وَلِلّٰهِ الْمَثَلُ الْأَعْلٰى)

۲- په معنیٰ د وعظ سره لکه (وَاضْرِبْ لَهُمْ مَثَلَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا) (کهف: ۵۴)

۳- په معنیٰ د حالت انسانی سره لکه پدے مقام کښ. او روستو بقره (۲۱۴) (ولما يأتكم مثل الذين) (اى حالتهم).

٤- قاسمیؒ هم لیکلی دی: مثل په معنیٰ د اَلْوَصْفُ وَالْحَالَةُ الْعَجِيْبَةُ وَ الْقِصَه سره دے.

۵- هر قسم بیان لکه (وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِيْ هٰذَا الْقُرْآنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ) (الزمر: ۲۷).

دلته په معنیٰ د حالت او وصف هم دے او خپله معنیٰ د مثال ئے هم کولے شي نو معنیٰ به دا وی: (مَثَلُهُمْ فِيْ نِفَاقِهِمْ) (یعنی د دوی مثال په منافقت کښ دا دے الخ) او یا حال د دوی په شان د حال د هغه سړی دے.

**كَمَثَلِ**: ۱- مثل لفظ زائد دے. په معنیٰ د کالذی دے. ۲- صحیح دا ده چه کاف په معنیٰ د مثل دے او مثل په معنیٰ د حالت دے.

**الَّذِيْ**: پدے کښ دوه قوله دی: (۱) الذی مفرد دے او همدا غوره دے. ځکه چه دلته د منافقانو مثال د یو سړی سره ورکوی. (۲) یا دا مفرد په معنیٰ د جمع دے لکه په سورة التوبة کښ دا استعمال دے (وَخُضْتُمْ كَالَّذِيْ خَاضُوْا).

**تطبیق المثال**: ددے مثال په تطبیق کښ دوه طریقے دی:

(۱) زمونږ بعض مشائخ فرمائی: چه دا مثال د رسول الله ﷺ او د منافقانو دے او په

آیت کښې اندماج دے۔ (یعنې بعض عبارت حذف دے او ظاهري الفاظ پرے دليل وي) او اصل کښې داسې دے (مَثَلُكَ وَمَثَلُ الْمُنَافِقِيْنَ كَالَّذِي اسْتَوْقَدَ نَارًا وَهُنَاكَ رِجَالٌ قَاعِدُوْنَ)

(یعنې ستا او د منافقانو مثال په شان د هغه سړي دے چه هغه اُور بل کړي او هلته څه کسان ناست وي، نو د هغه اُورنه گير چاپيره رڼړا شي بيا دا اُور مړ شي۔ نو دغه ناست خلق په ډيره تياره کښې پاتے شي ځکه چه مخکښې نه تياره وي نو انسان ته دومره تکليف نۀ وي او چه رڼړا راشي او بيا واخستے شي نو انسان ته ډير تکليف وي۔نو نبي ﷺ راغلو دين ئے بيان کړو، منافقان موجود وو، مخکښې نه کافر وو، د نبي ﷺ د رڼړا نه ئے فائده واخسته ظاهره کښې ئے ايمان راوړو او د اسلام نه ئے فائدے واخستے او د اسلام د خير نه خبر شو، نو دا اُور مړ شو دوی د الله تعالىٰ د رسول نه نوره فائده وانخسته، او صحيح ايمان ئے پرے رانۀ وړو نو نبي ﷺ ترے الله تعالىٰ بوتلو۔ نو په سختو تيارو کښې پاتے شو چه هيڅ نۀويني۔ نو دوی له پکار وو چه ددے رڼړا غم ئے کړے وے او لرگي ئے ورته ايخي وے۔ نو د نبي ﷺ نه ئے پوره استفاده اُونکړه۔ دا طريقه د مثال لگولو ضعيفه ده (۱) ځکه ډير حذفونه پکښې دي (۲) دويم دا چه د رسول الله ﷺ د مرگ نه بعد هم دين خو باقي دے د هغه په وفات سره د دين رڼړا ختمه نده۔

(۲) بله طريقه د تطبيق دا ده چه قرآن په ظاهر پريخودل پکار وي، تقدير د عبارت ته حاجت نشته۔ نو دا بعينه د منافقانو مثال دے او منافقانو خپله اُور بل کړيدے۔ يعنې منافقانو اُور بل کړو (اِسْتَوْقَدَ نَارًا بِأَنْ آمَنُوْا) (چه منافقانو ايمان راوړو) نو دے ايمان ورله لږه شان فائده ورکړه، (مَاحَوْلَهُ) کښې دے ته اشاره ده چه رڼړا ډيره نۀ وه، نو دوی په ايمان راوړو کښې د دنيا معمولي فائدو ته کتلي، او هغه ئے واخستے، نو پکار دا وه چه ددے رڼړا اتمام ئے کړے وے او دا اُور ئے پرے زيات کړے وے خو دوی ددے اُور د مړ کيدو غم نۀ کولو نو دا د الله تعالىٰ طريقه ده چه کله څوك اُور ته خشاك نۀ اچوي نو هغه ترے مري، نو الله تعالىٰ د دوی نه د دغه اُور رڼړا واخسته۔ او په تيارو کښې پاتے شو۔ نو دغه شان د ايمان دپاره هم ماده پکار ده چه هغه (اَلْعِلْمُ النَّافِعُ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ) دے يعنې (علم او صحيح عقيده او فائده منے خبرے زده کول او نيك عمل ورسره کول) نو هله به دے ايمان محفوظ وي، نو څوك چه دا ماده نۀ طلب کوي او هسے د خولے ايمان راوړي نو دا ايمان د انسان نه ځي۔ نو دوی سستي اُوکړه، د ايمان غم ئے نۀ کولو، د هغے د صفائي او زياتوالي کوشش ئے نۀ کولو

نو ایمان ترې واخستې شو۔ او دا قانون دې چه د نعمت قدر څوك نهٔ کوی نو الله تعالیٰ ترې بیرته اخلی۔ او صم بکم عمی تتمه ددې مثال ده۔ دیته تشبیه بلیغ وائی۔ چه حرف تشبیه او مشبه ئې حذف کړیده یعنی (هُمْ كَالصُّمِّ هُمْ كَالْبُكْمِ ، هُمْ كَالْعُمْيِ)

(یعنی هرکله چه دوی په سختو تیارو د کفر کښې پاتې شو نو دوی بعینه کانړه او گونګیان او ړانده پاتې شو۔ چه ددې اندامونو نه ئې هیڅ فائده نشوه اخستې۔

ددې مثال **تفصیلی تطبیق** داسې دې۔ چه ددې منافقانو مثال داسې دې چه یو ځائې کښې یو ځنګل کښې تیاره ده او دهٔ ته د رڼړا سخت ضرورت دې، ددهٔ سره هیڅ ذریعه نشته چه اُور اُولګوی او د هغې نه رڼړا حاصله کړی نو پدې کښې دهٔ د بل چا نه شونتهٔ واخسته او ځانله ئې اُور بل کړو، کله چه ددهٔ نه ګیر چاپیره ماحول او علاقه رڼړا شوه نو دهٔ پکښې څیزونه اُولیدل، هغهٔ ځائې هم اُولیدو چرته چه دې ولاړ وو، د هغهٔ ځائې خطرات او بیا د امن او امان اسباب ئې اُولیدل، د هغهٔ اُور نه ئې فائده واخسته، ددهٔ سترګې یخې شوې او ددهٔ دا خیال وو چه دا اُور او دا رڼړا به ددهٔ په اختیار کښې وی، نو ناڅاپه (اچانك) الله تعالیٰ د هغهٔ اُور مړ کړو، د هغهٔ رڼړا ئې واخسته، د هغهٔ خوشحالی ختمه شوه او سختو تیارو کښې پاتې شو، د اُور سوزش پاتې شو او رڼړا ئې لاړه نو دا د هر طرف نه په تیارو کښې راګیر شو، د شپې تیارهٔ، د وریځې تیارهٔ ، د باران تیارهٔ او د رڼړا د تلو نه بعد تیارهٔ نو سوچ اُوکړه د داسې انسان به څه حال وی؟ دغه شان حال د منافقانو د مدینې هم وو چه هغوی په جهالت او کفر کښې پراته وو، دوی له ایمان راغې، نور ورله راغې، قرآن او سنت راغلل، نو دوی ظاهره کښې پکښې داخل شو نو څه نه څه رڼړا ئې واخسته، او د ایمان څه نا څه مزه ئې اُوڅکله او دا پته ورته اُولګیده چه مونږ اُوسه پورې جهالت کښې پراته وو، او دا خو صحیح خبرې دی، د فطرت سره برابرې خبرې دی نو د مسلمانانو د اُور نه ئې ځانله اُور بل کړو، د هغوی ځانونه محفوظ شو، د هغوی مالونه بچ شو، زکوٰة او غنیمت کښې حصې ورته حاصلې شوې او مؤمنانو سره ئې د نکاح وغیره تعلق قائم شو او په دنیا کښې یو قسم سکون ورته ملاؤ شو نو دوی پدې حال کښې وو چه د ایمان رڼړا ترې لاړه ځکه دوی د هغې غم نه کولو نو په تیارو د کفر، نفاق او ګناهونو کښې پاتې شو چه د هغې په نتیجه کښې بیا د قبر او جهنم تیارو ته لاړل۔ نو ددې نه به غټه بد نصیبی بله کومه وی ؟۔

اُوس سوال پیدا کیږی چه الله تعالیٰ ترې دا رڼړا ولې واخسته ؟ نو ددې وجه دا ده چه اُور

چه انسان بلوی نو د هغې دپاره ماده پکار ده، اُور ته به بار بار لرګی ايږدې، که نه ډېر کيخودل اُور به مړ کيږي او دارنګه که ډيوه ډېر بله کړه نو تيل به پکښې اچوې ګنې درنه مړه کيږي، نو روسته به وريسې ماده راروانه وي، که نهٔ وي نو اُور به مړ شي نو منافقانو دا ورانې اُوکړو چه رڼرا خو ئې ځان له بله کړه ليکن روستو ئې بيا غم نهٔ کولو نو ايسته تړې اُور مړ شو نو پدې کښې ديته هم اشاره ده چه کله تا ايمان راوړو نو بيا به بار بار دې ايمان ته تيل وراچوې، قرآن او حديث به آورې، د الله عبادت به کوې، ذکر به کوې، د ګناهونو نه به ځان ساتې ، توبه به الله ته اُوباسې، نو دې سره به ستا ايمان ژوندې وي او که چرته دا کارونه دې نهٔ کول نو اُور به مړ شي، ايمان به ختم شي۔ دا ډير ښکلې مثال دې د ايمان دپاره ماده پکار ده، د وحی، د قرآن او د سنت، د دين د اعمالو، لنډه دا چه ديني عملونه به کوې نو هله به ډېر ايمان ژوندې وي، دا خو تجربهٔ ثابته خبره ده چه کوم کسان دين سره تعلق نه لري، زر ګمراه کيږي۔

## فوائد الآية

۱ – اُورئې په مثال کښې راوړو، ددې فائده دا ده چه (اَلنَّارُ تَقْتَضِيُ مَادَةً) (اُور د بقاء دپاره ماده (لرګی) غواړي۔ (فَكَذٰلِكَ الْاِيْمَانُ يَقْتَضِيُ مَادَةً مِنَ الْعِلْمِ النَّافِعِ وَالْعَمَلِ الصَّالِحِ)

(نو دغه شان ايمان هم ماده غواړي چه علم دين به زده کوې او اعمال به کوې)

(۲) دويم حکمة : چه اُور کښې دوه صفتونه دی، (احراق واشراق) يو رڼرا ده، بل سيزل دی۔ نو دا اُور خو سري له فائده هم ورکوی مګر ضرر هم پکښې دې۔ نو دغه شان قرآن کريم به يا حجت وی ستا دپاره يا به ستا په خلاف حجت وی۔ يا داسې تعبير اُوکړه چه څوك ايمان راوړي اُور بل کړي نو دا به ئې سر ته رسوی او د هغې حفاظت به کوی او که چرې حفاظت ئې نهٔ کوی نو سوزش به ضرور ورته رسيږي۔ خلاصېدل نشته، ايمان نه ډېر فائدې اخستی دی نو اُوس به ددې اُور سوزش ته هم تهنګ شې۔ يا به رڼرا قبلوې يا به درله دغه سوزش وی۔ نو منافقانو رڼرا پريخوده او سوزش ئې واخستو۔

۴ – مَاحَوْلَهُ : کښې ضمير الذی ته راجع دې نو پدې کښې فائده دا ده چه څوك ايمان راوړي نو هر طرف ته ئې رڼرا وی لکه حديث کښې دی : (اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ فِيْ قَلْبِيْ نُوْرًا وَبَصَرِيْ نُوْرًا الخ) که د تکليف حالت وی او که د راحت، ټولو حالتونو کښې ايمان رڼرا کوی۔ او پدې کښې اشاره ده چه د منافقانو رڼرا لرې نهٔ ده رسيدلې۔ بلکه صرف خپل ماحول کښې ده۔ نو

قیامت کښې به هم دغه شان لړه رڼړا ورکوی، او بیرته به ترې دغه شان په سخت مقام کښې اخستې شي۔ لکه ددې متعلق حدیث مخکښې تیر شویدې۔

۳- بِنُوْرِهِمْ ئې اُوونیلو نهٔ (بنارهم) ځکه که (بِنَارِهِمْ) ئې وئیلې وې نو بیا به دا معلومیدې چه رڼړا هم تلې ده او اُور هم تلې دې نو دوی دپاره سزا نشته۔ او هرکله ئې چه (نور) بوتللو نو معلومه شوه چه (نار) اُور ورله باقی پاتې دې۔

٤- حافظ ابن القیمؒ بدائع التفسیر کښې فرمائی: أَذْهَبَ ئې اُونهٔ وئیلو بلکه ذهب ئې راوړو او متعدی کړې ئې دې په باء سره ځکه چه (أَذْهَبَ) کښې هغه بوتلل مراد وی چه سرسره ئې بوځی او تهول لاړ نهٔ شي۔ او ذهب چه متعدی شی په باء سره نو بیا اشاره وی استیصال ته یعنی د ستې نه ئې د زړه نه ورله رڼړا ختمه کړه۔

۵- الله تعالیٰ نسبت د اذهاب ځان ته اُوکړو، اشاره ده چه دې خلقو د الله تعالیٰ د تعلق او د ایمان د رڼړا لحاظ اُونکړو نو دوی له ئې عقوبت ورکړو۔

٦- بِنُوْرِهِمْ ئې اُووئیلو او (بِضَوْئِهِمْ) ئې اُونهٔ وئیلو ځکه چه ضوء ډیرې رڼړا ته وائی او نور لګې رڼړا تـه وئیلې شي، اشاره ده چه دوی سره معمولی شان رڼړا وه، هغه هم ترې الله تعالیٰ اخستې ده، او کـه ضـوء ئې وئیلې وې نـو بیا بـه دا وهـم کیدو چه ډیره رڼړا به ئې اخستې وی او لږه به ورسره پاتې وی۔ ځکه چه ضوء خاص دې او په انتفاء د خاص سره انتفاء د عام نهٔ راځی۔

۷- (نُوْرِهِمْ) کښې ئې ضمیر د جمع راوړو او مخکښې الذی مفرد ذکر دې ځکه چه دا مثال د تهولو منافقانو دې۔ او الذی په معنیٰ کښې جنس دې۔ او دا مثال د یو شخص نهٔ دې۔ بلکه دا د هر دور او زمانې سره تعلق لری۔

۸- ظلمات ئې جمع راوړه چه ډیرو تیرو کښې ئې الله تعالیٰ پریدی، یوه تیاره نهٔ ده، هغه تیاره د کفر، د منافقت، د سیء الاعمال (بد اعمالو) تیارې، یعنی عقیده به ئې غلطه، خبرې به ئې غلطې، کارونه به ئې غلط، اخلاق به ئې غلط وی، بیا د هدایت نه روستو چه څوك ګمراه شی نو هغه ډیر خرابیږی، دا قانون دې چه اصلی کافر دومره ضرری نهٔ وی څو چه مسلمان وی او بیا مرتد کافر شی نو دا ډیر سخت ضرری وی، ځکه په ده باندې ډیرې زیاتې تیرې راځی۔

**اِسْتَوْقَدَ نَارًا**: نار لفظ په قرآن کریم کښې (۱٤۰) کرته راغلې دې، ددې ډیر اطلاقات دی۔

## د نار لفظ اطلاقات

۱- نار جهنم ته وئیلے شی چه د دنیا اُور د هغے نه راوتے دے او اَویا کرته مړ شویدے۔ لکه (فَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِي وَقُودُهَا النَّاسُ) (البقرة : ٢٤)
۲- الحَرَامُ : (مَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ إِلَّا النَّارَ) (بقره : ١٧٤)
۳- اَلْمَعَاصِيُ (گناهونه) لکه (فَمَا أَصْبَرَهُمْ عَلَى النَّارِ) (البقرة :٢٢١)
٤- اَلْحَرَارَةُ (گرمائش) (فِيهِ نَارٌ فَاحْتَرَقَتْ) (البقرة : ٢٦٦)
٥- اَلنَّارُ السَّمَاوِيَّةُ (آسمانی اُور چه پخوا به راتلو او قربانی به ئے خوړله) (بِقُرْبَانٍ تَأْكُلُهُ النَّارُ) (آل عمران : ١٨٢)
٦- مَادَّةُ الْجِنِّ (د پیریانو ماده کوم نه چه پیدا دی) (خَلَقْتَنِي مِنْ نَارٍ وَخَلَقْتَهُ مِنْ طِينٍ) (الاعراف : ١٢)
٧- اَلنَّارُ الدُّنْيَوِيَّةُ (دنیوی اُور) (وَمِمَّا يُوقِدُونَ عَلَيْهِ فِي النَّارِ ابْتِغَاءَ حِلْيَةٍ) (رعد : ١٧)
٨- اَلْعَذَابُ الْبَرْزَخِيُّ۔ (برزخی اُور او عذاب مراد دے) (اَلنَّارُ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَعَشِيًّا) (المؤمن : ٤٦)
٩- اَسْبَابُ الْحَرْبِ (د جنگ اسباب راپیدا کول) (كُلَّمَا أَوْقَدُوا نَارًا لِلْحَرْبِ أَطْفَأَهَا اللَّهُ) (المائدة :٦٤) (په دے آیت کښې اشاره ده چه د یهودو او نصاراؤ جنگی اسباب به الله تعالیٰ ختموی)

## د نور لفظ تحقیق

نور لفظ په قرآن کښې (٤٣) کرته راغلے دے۔ او د هغے دیارلس مصداقات دی۔
۱- نور په معنیٰ د توحید سره لکه په سورة البقره (٢٥٧) (يُخْرِجُونَهُمْ مِنَ النُّورِ إِلَى الظُّلُمٰتِ) ۲- صفت د الله تعالیٰ دے (اَللّٰهُ نُورُ السَّمٰوٰتِ) (سورة النور : ٣٥) والزمر : ٦٩)
۳- د تورات صفت۔ (المائده : ٤٤) ٤- د انجیل صفت ۔ (المائده : ٤٦)
٥- د قرآن کریم صفت۔ (النساء : ١٧٥ او تغابن : ٨)
٦- د الله تعالیٰ دین ته وئیلے شویدے۔لکه (لِيُطْفِئُوا نُورَ اللّٰهِ) (توبه : ٣٢، الصف : ٨)
٧- د رسول الله صفت دے۔ (قَدْ جَاءَكُمْ مِنَ اللّٰهِ نُورٌ وَكِتٰبٌ مُبِينٌ) (المائده : ١٥)
٨- نور الزیت (د تیلو رنړا) ٩- نور الزجاجه (د شیشے رنړا) (النور:٣٥)
١٠- نور مقابل د ظلمت (تیرے) (الانعام : ١) (وَجَعَلَ الظُّلُمٰتِ وَالنُّورَ)

۱۱ – صفت د قمر (سپوږمۍ) ﴿وَالْقَمَرَ نُورًا﴾ (یونس: ٥)
۱۲ – د قیامت د ورځې نور۔ (الحدید: ۱۳)
۱۳ – د اُور نور (رڼا) لکه په دې آیت کښې مراد دے۔
**فِیْ ظُلُمٰتٍ** : ظلمات لفظ په قرآن کریم کښې (۲۳) کرته راغلے دے۔

## د ظلمات لفظ اطلاقات

ظلمات لفظ ډیرے معانی لری۔
۱ – ظلمات د شرك او شبهاتو لکه ﴿یُخْرِجُوْنَهُمْ مِنَ النُّوْرِ اِلَی الظُّلُمٰتِ﴾ (البقره: ۲۵۷)
۲ – ظاهری تیارے۔ (مقابل د نور) لکه ﴿وَجَعَلَ الظُّلُمٰتِ وَالنُّوْرَ﴾ (الانعام: ۱)
۳ – الجهل (ناپوهی) لکه ﴿صُمٌّ وَّبُكْمٌ فِی الظُّلُمٰتِ﴾ (انعام: ۳۹) او ﴿كَمَنْ مَّثَلُهٗ فِی الظُّلُمٰتِ﴾ (انعام: ۱۲۲)
٤ – د زمکے تیارے ﴿فِیْ ظُلُمٰتِ الْاَرْضِ﴾ (انعام: ٥۹)
٥ – ظلمات د بر او بحر (یعنی مصائب) لکه ﴿فِیْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ﴾ (انعام: ٦۳)
٦ – د بُطُوْنُ الْاُمَّهَات (د میندو د خیټو) تیارے۔ لکه ﴿فِیْ ظُلُمٰتٍ ثَلٰثٍ﴾ (الزمر: ٤)
۷ – ظُلُمٰتُ بَطْنِ الْحُوْت (د ماهی د خیټے تیاره) لکه ﴿فَنَادٰی فِی الظُّلُمٰتِ﴾ (الانبیاء: ۸۷)
۸ – مَوْجُ الْبَحْرِ (د دریاب چپے)۔ ﴿اَوْ كَظُلُمٰتٍ فِیْ بَحْرٍ﴾ (النور: ٤۰)
۹ – ظُلُمٰتُ الْمَطَرِ (د باران) لکه ﴿فِیْهِ ظُلُمٰتٌ وَّرَعْدٌ﴾ (البقرة: ۱۹)
۱۰ – تمثیلی ظلمات۔ لکه په دے آیت کښې شو۔ یعنی ظُلُمٰتِ الْكُفْرِ وَالنِّفَاقِ، وَالْقَوْلِ وَالْعَمَلِ وَالْاَخْلَاقِ۔

**وَتَرَكَهُمْ فِیْ ظُلُمٰتٍ لَّا یُبْصِرُوْنَ** : د ظلمات نه مراد د کفر، نفاق او غفلت تیارے دی په دنیا کښې چه په هغے به د آخرت تیارے، د قبر تیارے، او د جهنم تیارے مرتب وی او لَا یُبْصِرُوْنَ معنیٰ دا چه دوی د هدایت سمه لاره نهٔ وینی۔ نو دغه شان په آخرت کښې به په دے باندے دا مرتب وی چه کله جهنم ته داخل شی نو بیا به د جهنم نه د وتلو دپاره هیڅ لار نهٔ وینی۔ ځکه دا قانون دے چه دنیا کښې د انسان کوم حال وی نو په آخرت کښې به ئے هم هغه حال وی که په دنیا کښې په تیارو کښې وی نو په آخرت کښې به هم په تیارو کښې وی، او که په دنیا کښې ئے سیر الی الله قوی وو نو په آخرت کښې به ئے هم سیر الی الله قوی وی۔

**فائده :** ترکهم کښې عدل د الله تعالیٰ دے دا وجه ده چه وجعلهم لفظ ئے رانهٔ ورو۔ فتدبر۔
(۲) بله فائده په وترکهم کښې د دوی نجاست ته اشاره ده چه الله تعالیٰ ورته هیڅ التفات نکوی جَزَاءً وفاقاً ده ځکه چه دوی الله تعالیٰ ته التفات اُونکړو نو الله تعالیٰ دوی ته التفات اُونکړو۔
**فائده :** ظلمات ئے جمع راوړه او نور ئے مفرراوړو اشاره ده چه حق یو وی او کفر ډیر انواع او اقسام لری۔

اُوس دا ښکاره خلق دی نو ددے مثال تتمه کښې وائی :

صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ فَهُمْ لَا يَرْجِعُونَ ﴿۱۸﴾

دوی کانړهٔ دی، ګونګیان دی، ړاندهٔ دی، نو دوی نه راګرځی۔ (د دغه تیَرونه رڼرا طرفته)۔

**تفسیر :** (صم) دیته تشبیه بلیغ وائی چه ادات د تشبیه او مشبه حذف شویدی یعنی هم کالصم۔ نو کاف ئے حذف کړو ګویا کښې دوی ئے بعینه کانړهٔ دی۔ او دلته مراد دا دے چه د حق نه کانړه، ګونګیان او ړانده دی، که نهٔ وی نو هسے لیدل، آوریدل او خبرے خو کولے شی۔ لیکن هرکله چه دوی دا طاقتونه د حق دپاره نهٔ استعمالوی نو د الله تعالیٰ په نیز دا داسے دی لکه چه بالکل نیشت دی۔ نو معنیٰ دا شوه چه دا کافران چه حق نهٔ آوری په شان د هغه کنړو دی چه هیڅ نهٔ آوری د وجه د مبالغے نه او دغه شان په بکم او عمی کښې هم اُووایه۔ یعنی یو سړے هیڅ خبره نهٔ آوری او بل انسان حق نهٔ آوری، دواړه برابر دی، بلکه حق نه ځان کنړونکے غټ مجرم دے، او قدرتی کونړ مجرم نهٔ دے۔ نو دلته وجه د شبه یو طرف نه مطلق ده او بل طرف نه مقید خو بیا هم تشبیه صحیح ده۔
او مطلب دا دے چه هرکله د دوی نه رڼرا د توحید او ایمان لاړه نو دوی داسے حیران شو چه ګویا کښې غوړونه، خوله او سترګے ئے بندے شوے چه هیڅ احساس نشی کولے چه کوم طرف ته لاړ شو، کانړه شو، د داعی آواز نهٔ آوری، چاړا ګان شو چه طاقت نهٔ لری چه د صحیح لارے تپوس اُوکړی او ړاندهٔ شو، چه صحیح لاره اُووینی۔ (زبدة التفسیر)

**لَا يَرْجِعُونَ :** [لَا يَرْجِعُوْنَ مِنَ الْبَاطِلِ اِلَى الْحَقِّ] (یعنی د باطل نه حق طرفته نه راګرځی)
(۲) (لَا يَرْجِعُوْنَ اِلَى الْهُدٰى بَعْدَ اَنْ بَاعُوْهُ وَعَنِ الضَّلَالَةِ بَعْدَ اَنِ اشْتَرَوْهَا وَاخْتَلَّتْ مَشَاعِرُهُمْ جَمِيْعًا فَهُمْ حَيَارٰىٰ) (نهٔ راواپس کیږی هدایت ته پس د هغے نه چه هغه ئے خرڅ کړو او د

گمراهئ نه نهٔ راواپس کیږي پس د هغې نه چه هغه ئې واخسته، او د دوی تول علمی قوتونه خراب شو نو بس اُوس حیران دی) (فتح البیان)

**فائده** : په دې لایرجعون کښې هم عجیبه اشاره ده، چه د اسلام نه یو سړې یو ځل واوړیدو، مرتد شو، په خپل اختیار او په خپله خوښه نو هغه بیا بیرته هدایت نهٔ قبلوی، ډیر خلق چه هغه خلقیان، دهریان، کمیونسټ شوی دی نو که هغوی په ظاهره کښې ګیره هم پریدی، تسبیح هم اړوی، مونځ هم کوی خو زړهٔ کښې ئې هم هغه شانته کفر پروت وی، غالباً هغه نهٔ مسلمانیږی، ځکه کفرئې دننه زړه ته داخل شوې وی۔ او کله چه د کفر غلبه راشي نو بیرته واپس کفر راښکاره کوی، لکه د خلق او پرچم او دهریانو به وئیل چه زمونږ مثال داسې هم لکه د کبلو چه شنه وی، د ریبلو نه پس شلِ کاله به اُوچ پراته وی، خو چه بیرته ئې اُوکړې نو همغه شان به شنه شي۔

**صُمٌّ** : جمع د اصم ده، ماده د صم قرآن کریم کښې (۱۵) کرته راغلې ده۔ تول علی جهة التمثیل دې، یعنی د مثال په طریقه دې، یعنی حقیقي کوڼ نهٔ دې لکه دلته د منافقانو غوږونه د دنیا کارونو دپاره ښه کار کوی لیکن د حق نه ئې ځانونه کاڼهٔ کړیدی۔ صرف په دوه مقاماتو کښې په حقیقي معنیٰ دې۔ لکه هغه په سورة بنی اسرائیل (۹۷) کښې ذکر دې۔ (وَنَحۡشُرُهُمۡ يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ عَلٰى وُجُوۡهِهِمۡ عُمۡيًا وَّبُكۡمًا وَّصُمًّا) (۲) (مَثَلُ الۡفَرِيۡقَيۡنِ كَالۡاَعۡمٰى وَالۡاَصَمِّ وَالسَّمِيۡعِ وَالۡبَصِيۡرِ) (هود:۲۸)

**بکم** : جمع د ابکم ده۔ ګونګی او چاړا ته وئیلې شي۔ قرآن کریم کښې (٦) کرته راغلې دې، تول علی جهة التمثیل دې صرف دوه مقاماتو کښې په حقیقي معنیٰ دې۔ (سورة النحل : ۷٦) آیت : (اَبۡكَمُ لَا يَقۡدِرُ عَلٰى شَيۡءٍ) او مخکښې آیت د بنی اسرائیل : (۹۷)

**عمی** : جمع د اَعمیٰ ده، په قرآن کریم کښې (۳۳) کرته استعمال دې۔ تول په طریقه د تمثیل دې لیکن شپږ مقاماتو کښې حقیقي معنیٰ مراد ده۔ (۱) (عَبَسَ وَتَوَلّٰىٓ اَنۡ جَآءَهُ الۡاَعۡمٰى) (عبس : ۱) (۲) (لَيۡسَ عَلَى الۡاَعۡمٰى حَرَجٌ) (النور:٦١) (۳) (وَنَحۡشُرُهٗ يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ اَعۡمٰى) (طه:۱۲٤) (٤) (مَثَلُ الۡفَرِيۡقَيۡنِ كَالۡاَعۡمٰى وَالۡاَصَمِّ وَالسَّمِيۡعِ وَالۡبَصِيۡرِ) (هود : ۲۸) (۵) (عُمۡيًا وَّبُكۡمًا وَّصُمًّا) (بنی اسرائیل : ۹۷) (٦) (لَيۡسَ عَلَى الۡاَعۡمٰى حَرَجٌ) (سورة الفتح : ۱۸)

اَوۡ كَصَيِّبٍ مِّنَ السَّمَآءِ فِيۡهِ ظُلُمٰتٌ وَّرَعۡدٌ وَّبَرۡقٌ ۚ

یا مثال د دوی په شان د ډیر باران دے د بره نه، چه په دے کښې تیرے وی، او ګړه زارے وی، او بریښنا وی.

يَجۡعَلُوۡنَ اَصَابِعَهُمۡ فِىۡٓ اٰذَانِهِمۡ مِّنَ الصَّوَاعِقِ

دوی ردی ګوتے خپلے په خپلو غوږونو کښې د وجه د تندرونو نه،

حَذَرَ الۡمَوۡتِ ‌ؕ وَاللّٰهُ مُحِيۡطٌۢ بِالۡكٰفِرِيۡنَ ﴿۱۹﴾

د وجه د ویرے د مرګ نه او الله تعالیٰ راګیرونکے دے کافرانو لره.

**تفسیر** : دا بل مثال د منافقانو دے دا (اَوۡ) د شك دپاره نهٔ دے، بلکه د تخییر (اختیار) دپاره دے چه ستا خوښه ده که هغه مثال بیانوے او که دا مثال. (۲) یا دا (او) د تنویع دپاره دے او د تنویع دوه معانی دی (۱) یو دا چه منافقان دوه قسمه وو نو دا په کښې د بل قسم منافقانو مثال دے. (۲) یا دا چه منافقان دوه قسمه صفتونه لری یو صفت ئے دا چه په ګمراهئ کښې ننوتی او هدایة ترے الله تعالیٰ اخستے دے. نو هغه مخکښے مثال شو او دویم صفت ئے د خوف او حیرانتیا دے. په وخت د نزول د قرآن کښې ئے مثال داسے دے لکه یو سړے چه باران راخستے وی.

بل قول دا دے چه (اَوۡ) په معنیٰ د (واو) دے لکه (وَلَا تُطِعۡ مِنۡهُمۡ اٰثِمًا اَوۡ كَفُوۡرًا) کښې (اَوۡ) په معنیٰ د واو دے. **مګر راجح** دا ده چه (او) دلته د تخییر دپاره دے یعنی ستا اختیار دے چه دواړه مثالونه بیانوے او که هر یو بیانوے. او دویم مثال ډیر ابلغ دے ځکه چه دا دلالت کوی په فَرۡطُ الۡحَيۡرَة (زیاته حیرانتیا د منافقانو) او په بد حالئ د دوی باندے. (السراج)

دلته اول توضیح الکلمات بیا تشبیه او تطبیق المثال اُوګوره.

## توضیح الکلمات

**صَيِّب** : (اَلۡمَطَرُ الۡكَثِيۡرُ) (ډیر باران ته) وئیلے شی. د صَبٌّ نه ماخوذ دے، راتویدلو ته وائی چه ډیر راوریږی. دلته مضاف پټ دے. یعنی (كَذَوِىۡ صَيِّبٍ) یا (اَصۡحَابُ صَيِّبٍ) (خاوندان

د باران چه باران رالاندے کړی وی) دا مضاف د روستو نه معلومیږی او دا د بلاغت تقاضا ده ځکه حذف کولے شی۔

**مِنَ السَّمَآءِ** : سماء لفظ (۱۲۰) کرته او لفظ د سموات (۱۹۰) کرته استعمال دے چه مجموعه (۳۱۰) کرته جوړیږی۔ دا دومره ډیر کرته ځکه ذکر شویدے چه آسمان د الله تعالیٰ د قدرت عظیمه نخه ده، الله تعالیٰ پرے معلومیږی۔

د سماء درے اطلاقات دی ۱- الرقیع : (اووه آسمانونه) (سَبْعًا شِدَادًا) (سورة النبأ : ۱۲)

۲- وریځے ته هم وئیلے شی۔ لکه (وَأَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَاءً) (بقره : ۲۲)

۳- (كُلُّ مَا عَلَاكَ وَأَظَلَّكَ فَهُوَ سَمَاكَ) (هر هغه شے چه ستا نه پورته وی او په تا سورے کوی نو دا ستا آسمان شو) نو پدے معنیٰ باندے چت ته هم سماء وائی۔ لکه په سورة الحج (۱۵) (فَلْيَمْدُدْ بِسَبَبٍ إِلَى السَّمَآءِ) کښ۔

**رعد** : د رعد دوه مصداقه دی :

۱- فلاسفه او هغه مفسرین چه د فلاسفو نه متأثره دی وائی : صَوْتٌ عِنْدَ اصْطِكَاكِ أَجْرَامِ السَّحَابِ (یعنی وریځے چه د یو بل سره اُوجنګیږی نو د هغے نه یو آواز پیدا شی) هغے ته رعد وائی۔

۱- د مسلمانانو رایه دا ده : چه دا (صَوْتُ الْمَلَكِ) د ملائك آواز دے۔ لکه حدیث د ترمذی کښ دی : (مَلَكٌ مُوَكَّلٌ بِالسَّحَابِ۔ الحدیث) (هغه ملائك چه په وریځ مقرر دے) او دا آواز د هغه د خولے (تسبیح وئیلو) هم دے، او چه وریځ وهی او شړی نو د هغے نه هم راپیدا کیږی۔ بیا الله تعالیٰ ئے کله راپیدا کوی او کله نه، پدے کښ د الله تعالیٰ حکمتونه دی۔

حدیث کښ دی : (اَلرَّعْدُ مَلَكٌ مِنَ الْمَلَائِكَةِ مُوَكَّلٌ بِالسَّحَابِ (بِيَدِهِ أَوْ فِي يَدِهِ مِخْرَاقٌ مِنْ نَارٍ يَزْجُرُ بِهِ السَّحَابَ) وَالصَّوْتُ الَّذِي يُسْمَعُ مِنْهُ زَجْرَهُ السَّحَابَ إِذَا زَجَرَهُ حَتَّى يَنْتَهِيَ إِلَى حَيْثُ أَمَرَهُ) (حسن : الصحیحة :۱۸۷۲ ترمذی)۔

رعد د ملائکو نه یو ملائك دے چه په وریځ مقرر دے د هغه په لاس کښ د اُور ډبلئ (چابك) دے چه په هغے سره وریځ شړی او هغه آواز چه د هغے نه آوریدلے شی نو هغه د وریځے د شړلو آواز دے کله ئے چه شړی هغه ځائے ته چه الله تعالیٰ ورته امر کړے وی)۔

دلته د رعد نه ګړزارے، ګړګوړ، غرارے، او شور مراد دے۔

**برق** : برق لفظ په قرآن کریم کښ (۵) کرته استعمال دے په معنیٰ د بریښنا (بجلی) برق سره،

صرف یو کرت په معنیٰ د حیرانتیا او د نیغ راوتلو راغلے دے۔ (فاذا بَرِقَ الْبَصَرُ) ای تَحَیَّرَ وشَخَصَ (القیمة :٥) (یعنی کله چه سترگے حیرانے شی او کروغی راوځی) د قیامت په ورځ)

**یَجْعَلُوْنَ** : جعل په معنیٰ د ایخودلو دے۔ اَیْ یَضَعُوْنَ۔ (ایږدی) او جعل خوزولو ته نهٔ وائی۔ لکه حدیث او د فقه په کتابونو کښ راځی (یَجْعَلُ اُصْبُعَیْهِ فِیْ اُذُنَیْهِ) د اذان په وخت به په غوږونو کښ گوتے اږدی نو بعض مُلیان د (یَجْعَلُ) د گرځولو معنیٰ کوی او د گرځولو نه ئے خوزول فهم کړیدی او دا سوءِ فهم دے۔ د خوزولو معنیٰ په هیڅ کتاب کښ نشته۔

**اَصَابِعَ** : لفظ د اصابع قرآن کښ (۲) کرته راغلے دے او مراد دلته انامل (د گوتو سرونه) دی ځکه تهوله گوته غوږ کښ نهٔ کیخودلے کیږی۔ او د اصابع دوه اطلاقه دی (۱) کله په معنیٰ د تولے گوتے سره وی۔ (۲) او کله سرونه د گوتے مراد وی۔

**آذَانِهِمْ** : دا ماده په قرآن کریم کښ (۱۸) کرته راغلے ده۔ جمع د اُذُن ده۔ کله غوږ ته وائی او کله هغه شخص ته وائی چه د هر چا خبره اَوری۔ (قل اُذُنُ خَیْرٍ لَّکُمْ) (التوبة :٦١)

**الصَّوَاعِق** : قرآن کریم کښ (۸) کرته ذکر دے۔ (شِدَّةُ صَوْتِ الرَّعْدِ) (تیز آواز د رعد) ته وئیلے شی۔ (یعنی تندرونه) چه دا تندر کله الله تعالیٰ د هواء نه جوړوی او کله ئے د اُویو نه، چه د اُویو نه اُور جوړ کړی او په بندگانو ئے نازلوی۔ (فَیُصِیْبُ بِهَا مَنْ یَّشَاءُ)

۲- بعض وائی : صواعق جمع د صَاعِقَةٌ ده، هغه چغے ته وائی چه ځوك ئے واوری نو وفات کیږی یا بے هوشه کیږی، ۳- بعض وائی : هر مُهلك (هلاکونکی) عذاب دے۔

٤- بعض وائی : دا یوه قطعه د عذاب ده چه الله تعالیٰ ئے په چا اُوغوارِی رالیږی۔ (بغویؒ)

٥- **لیکن** تحقیق دا دے چه هر هغه شے چه د بل شی حقیقت بدلوی نو دیته صاعقه وئیلے شی ـ (کما قاله ابن جریر) ـ لکه ابن جریرؒ لیکی : «صاعقه په اصل کښ هر هغه یرونکی شی ته وئیلے شی چه انسان هغه اُووینی یا ورته اُورسیږی نو د هغے د هیبت او د لوئی شان په وجه هلاك شی یا ئے عقل لاړ شی یا بے هوشه شی یا بعض اندامونه د جسم ئے ختم شی- برابره ده که دغه شے آواز وی او که اُور وی، زلزله وی او که رجفه وی۔ دلیل پرے دا دے چه موسیٰ علیه السلام باندے صعق راغلے وو او حال دا چه هغه وفات شوے نهٔ وو۔ صرف بے هوشه شوے وو»۔ (تفسیر ابن جریر الطبری) دارنگه دا معنیٰ په سورة حم السجده (۱۳) آیت کښ اُوگوره : (فَقُلْ اَنْذَرْتُکُمْ صَاعِقَةً مِّثْلَ صَاعِقَةِ عَادٍ وَّثَمُوْدَ) ـ

دلته د صاعقة نه مراد مطلق عذاب دے۔

**حَذَرَ الْمَوْتِ** : موت لفظ په قرآن کریم کښ (۱۰۹) کرته راغلے دے۔ ددے په قرآن کریم کښ ډیرے معنے استعمال دی۔

۱ – اَلْعَدَمُ السَّابِقُ : (نشت) (وَكُنْتُمْ اَمْوَاتًا) (البقرة : ۲۸)

۲ – اَلْمَوْتُ الْعِقَابِي۔ (د سزا په طور مرګ) (فَقَالَ لَهُمُ اللّٰهُ مُوْتُوْا) (البقره : ۲۴۳)

۳ – اَلْمَوْتُ الْاِعْجَازِی۔ (معجزه طور سره وژل) لکه (فَاَمَاتَهُ اللّٰهُ مِائَةَ عَامٍ) (البقره : ۲۵۹)

٤ – مَوْتُ الشَّهَادَة۔ (د شهیدګۍ مرګ) (وَلَقَدْ كُنْتُمْ تَمَنَّوْنَ الْمَوْتَ) (آلعمران . ۱۴۳)

۵ – اَسْبَابُ الْمَوْت۔ (د مرګ اسباب) لکه (وَيَاْتِيْهِ الْمَوْتُ مِنْ كُلِّ مَكَانٍ) (ابراهیم : ۱۷)۔

٦ – اَلْجَهْلُ (جهالت او ناپوهی) لکه (اَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا فَاَحْيَيْنَاهُ) (الانعام : ۱۲۲)

۷ – عَدَمُ اِنْبَاتِ الْاَرْضِ (چه زمکه ګیاه نۀ راټو کوی) دا د زمکے مرګ دے۔ (فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا) (البقره : ۱٦۳)

۸ – اَلشِّرْكُ بِالله۔ (وَمَنْ يُّخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ) (یونس : ۳۱)

۹ – موت تمثیلی۔ (د مثال په طور ئے ذکر کړیدے) (اِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى) (روم : ۵۳)

**مُحِيطٌ** : احاطه د الله تعالیٰ د متشابهاتو نه ده، حقیقت ئے الله تعالیٰ ته معلوم دے، او ظاهری معنیٰ ئے مفسرین داسے کوی : (مُحِيْطٌ بِالْعِلْمِ وَالْقُدْرَةِ وَالْاِهْلَاكِ) (الله تعالیٰ به دوی په علم او قدرت کښ راګیروی، په دوی عالِم او په دوی قادر دے او دوی به هلاکوی) یعنی پدے احاطه کښ درے اقوال دی ۱ – یو دا چه یو تن هم د الله تعالیٰ نه نشی خلاصیدلے الله تعالیٰ به ئے قیامت کښ راجمع کوی۔ (قاله مجاهد)۔

(۲) احاطه په معنیٰ د هلاکت ده لکه د (واحیط بثمره) کهف (٤۲) پشان۔

(۳) دریم احاطه په اعتبار د علم سره مراد ده۔ یعنی الله تعالیٰ باندے د دوی د کارونو نه هیڅ پټه ندی، بلکه الله تعالیٰ به ددے بد اعمالو سزا ورکوی۔ (زاد المسیر ۱/ ٤٤)

**بِالْكَافِرِيْنَ** : اشاره ده دے ته چه دا منافقان کافر دی۔

## تطبیق المثال :

ددے مثال تطبیق په دوه طریقو سره کیږی ۔ (۱) تشبیه المفرد بالمفرد۔ چه هر لفظ له خپله مشبه پیدا کړے لکه صیب (باران) سره څه شے مشابه دے او د رَعد او برق او صواعق

نـه څـه مراد دي۔ دا طریقه دومره غوره نهٔ ده، ځکه پدې کښې تکلف زیات وی او معنیٰ زر فهـم تـه نـهٔ راځي۔ (۲) دویمه طریقه : تشبیه المرکب بالمرکب ده۔ چه مجموعی حالت د مجموعی حالت مشابه کړې شي۔ او دا طریقه په امثالو د قرآن کښې غوره ده۔ یو خو پدې کښې تـکـلف نشتـه او حافظ ابن القیمؒ په بدائع التفسیر کښې او زمخشری په کشاف کښې وئیـلـی دی چـه دا طریقه د علماء البیان ده او دا طریقه د عربو اوائلو ده۔او پدې کښې آسانی زیاتـه وی۔ مثلاً دا یو سړې دې، باران راګیر کړې دې، او باران په دغه حالت دې نو هغه به څـنګـه پـریشـانـه وی، نـو دغه شان په وخت د نازلیدو د قرآن کښې دا منافقان هم پریشانه دی۔ دا د مثال لنډ حاصل دې۔

نو **تشبیه المفرد بالمفرد** داسې ده : چـه ذوی صیب (خاوندان د باران) نه مراد منافقان دی۔ صیب نه مراد قرآن دې۔ د قرآن مشابهت ئې د باران سره ورکړیدې۔ وجه د شبه :

۱- باران د بره نه راځي نو قرآن کریم هم د بره نه راغلې دې۔

۲- د باران اُوبه صفاء وی نو قرآن کریم هم صفا کتاب دې۔ګډې وډې پکښې نشته۔

۳- باران سره حیات د زمکې راځي او په قرآن سره هم حیوة القلوب (د زړونو ژوند) راځي۔

٤- دارنګه تشبیه په عموم النفع کښې ده۔ د باران فائده عامه وی (کافر، مسلمان، ښځه او سړي او حیواناتو او حشراتو ته) نو دغه شان د قرآن کریم فائده هم عامه ده۔

بیا صیب ډیر باران ته وائی، چه زمکه صفا کړی او حاجتونه پرې پوره شي، نو دغه شان پـه قرآن کریم کښې د بنده صفائی راځي او ټول حاجتونه پرې پوره کیږي، لکه حدیث کښې هم دا مثال راغلې دې۔ (کَمَثَلِ الْغَيْثِ الْكَثِيْرِ) نـو قـرآن او سنت ناقص نهٔ دی، هره ضروری مسـئـلـه پـکښې ذکـر ده۔ لکه بعض جاهلان ئې ناقص ګڼي۔ وائی په قرآن او حدیث کښې پوره احکام نشته بلکه دا په قیاس کښې دی، غلط وائی۔

فِيهِ ظُلُمَاتٌ : بـاران کـښې تیـارې وی ظاهراً، نو په قرآن کریم کښې هم تیارې د کفر، شرك، منافقت او د ګناهونو او صفات المنافقین والکافرین الله تعالیٰ ذکر کړیدی۔

وَرَعْدٌ : پـه بـاران کـښې ګـړزارې وی، نـو پـه قرآن کریم کښې وعیدونه او زجرونه منافقان او کافرانو دپاره بیان شویدی۔ په باران کښې دوه څیزونه وی:

۱- یو تـازګی او شینکی او فائدې پیداکول دا په کښې مؤمنانو دپاره وی چه د دوی ایمان پرې مضبوطیږي۔

۲- او بل پکښې رعب او خوف وی دا پکښې منافقانو دپاره وی ځکه هغوی ته وعیدونه بیانیږی۔

وبرق : په باران کښې بریخنا وی نو په قرآن کریم کښې د ایمان او د توحید دلیلونه بیان شویدی لکه د بریخنا په شان چه دهغې په آوریدو سره مخالفین د قرآن حیرانیږی۔

**یجعلون اصابعهم** : ضمیرئے جمع راوړو ځکه چه مراد د صیب نه ذوی صیب دی۔ یعنی څه کسان باران راختلی وی نو د تندر د وجه نه په غوږونو کښې گوتے ننباسی۔ نو د صواعق نه مراد سخت وعیدونه دی نو منافقان دغه شان د قرآن د بیان په وخت په غوږونو کښې گوتے ننباسی، چه هسے نه قرآن کریم راباندے تاثیر اُونکړی۔ او ایمان رانهٔ وړو۔ یا څه احکام راته بیان نکړی یائے طبعاً دا کتاب خوښ ندے لکه څنګه چه د نوح ؑ قوم به هم د نوح ؑ د بیان په وخت کښې دا کار کولو (سورة نوح/۷)۔ او د دوی برخه د قرآن کریم نه صرف دغه یره او هیبت دے ، او د باران نورو فوائدو باندے فکر نهٔ کوی۔

دوی دا گمان کوی چه پدے طریقه به زمونږ نه د مرگ خطره واوړی لیکن منافقانو ته چرته نجات ملاویدے شی، الله تعالیٰ دوی لره د هر طرف نه راگیر کړیدی او خوك د الله د احاطے او گیرے نه بچ کیدے شی، الله تعالیٰ به دوی ته د دوی د عملونو او کرتوتونو پوره پوره بدله ورکوی۔

**حذر الموت** : (الموت) نه مراد احکام شرعیه دی۔ ځکه منافقانو ته احکام شرعیه د مرگ پشان ښکاری چه اُوس به راته اُووائی چه جهاد ته لاړ شئ، زکوٰة ورکړئ، مونځ ته راشئ نو ځان پټوی۔ نو الله تعالیٰ فرمائی : ما نه تښتئ خلاصیدے۔

نو حاصل ددے تشبیه المفرد بالمفرد دا شو چه څه کسان باران راختلی وی چه په دغه صفاتو سره وی، نو دغه شان قرآن کریم دا منافقان راختلی دی، ددے نه تښتی راتښتی۔ نو قرآن کریم د هغوی دپاره د پریشانئ ذریعه ده۔ او مؤمنان پرے خوشحاله وی۔ (وهم یستبشرون)

(۲) **طریقه** : **تشبیه المرکب بالمرکب** : داسے تصور اُوکړه چه څه کسان په یو ه دشته کښې روان وی او باران پرے راشی، دومره سخت وی چه په هغے کښې تیارے هم وی او بریخنا او گرزارے هم وی او تندر هم پکښې وی، او ځائے د پټیدلو هم نهٔ وی نو په غوږونو کښې گوتے پدے وجه گدی چه دغوږونو پردے اُونشکیږی او مړهٔ نشو۔ او سترگے مو خرابے نکړی۔ نو د دوی په پریشانئ تاسو سوچ اُوکړئ چه ددوی به څه حال وی؟

نو دغه شان منافقان دی چه په وخت د نزول د قرآن کریم کښې بے قرار او بے امنه دی او په خوف کښې دی ځکه چه منافقان خلق د قرآن کریم ظاهری تکالیفو ته ګوری، چه پدے کښې خو د جهاد، زکوة، مال لګولو، خپلولی کټ کولو، او دوستانو پریخودلو خبرے دی او دا خو ګران کار دے او دارنګه قرآن کریم د هغوی بد صفتونه او حالونه راښکاره کوی لکه سورة توبه (٦٤) کښې راځی : ﴿ يَحْذَرُ الْمُنَافِقُوْنَ أَنْ تُنَزَّلَ عَلَيْهِمْ سُوْرَةٌ تُنَبِّئُهُمْ بِمَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ ﴾ (منافقان د قرآن نه ډیر یریږی، چه دا ولے نازلیږی دا خوزمونږ عیبونه راښکاره کوی)

په خلاف د مؤمنانو چه هغوی ته به هم پدے باران کښې تکلیف وی لیکن هغه په کښې خوشحاله وی. ځکه چه په باران کښې دوه حیثیته دی. ظاهر کښې تکلیف وی، چقړے پیدا شی، د ډیر خلقو کورونه اُونړیږی، مسافرو ته تکلیف وی، سامانونه لامده شی. لیکن دا ضررونه ظاهری دی او کم دی. او بل طرف ته پکښې ډیرے فائدے وی، زمکه کښې شنکیانے بوټی راوخیږی، اُوبه جمع شی، کوهیان ډك شی، ښاروی خړوبه شی. د انسانانو ژوند پرے آباد شی. که دا باران نهٔ نازلیدلے نو روحونه ضائع کیدل. او د الله تعالیٰ دا قانون دے چه فائدے بغیر د تکلیف نه نهٔ ورکوی، ضرور به تکلیف برداشت کومے، بیا به راحت ملاویږی. که څوك د باران تکلیف نهٔ برداشت کوی، نو دا فائدے به د کوم ځائے نه حاصلوی. دغه شان جهاد کښې ظاهر کښې مرګ او تکلیف راځی لیکن ښو مره فوائد پکښې دی. نو مؤمنان ظاهر او باطن دواړو ته ګوری او منافقان صرف ظاهر ته ګوری. که کفار د شریعت د احکامو د فوائدو نه خبر شی چه پدے کښې څومره امن دے نو هغوی به هم شریعت نافذ کړے وے.

**مُحِيْطٌ بِالْكَافِرِيْنَ** کښې اشاره ده چه د باران نه خو به خلاص شی، منډه به کړی یو ګوټ ته، خو دوی کافر دی، ما نه نشی خلاصیدلے.

**حَذَرَ الْمَوْتِ** : دا مفعول له علت دے دپاره د جعل الاصابع یعنی دا ګوتے په غوږونو کښې پدے وجه ورکوی چه مرګ نه یریږی. او دوی ته د پلار نیکه لار پریخودل او حق طرف ته راتلل د مرګ په شان ښکاری.

**يَكَادُ الْبَرْقُ يَخْطَفُ اَبْصَارَهُمْ ۚ كُلَّمَا اَضَآءَ لَهُمْ**

نزدے ده بریښنا چه وتختوی نظرونه د دوی هرکله چه رڼا اُوکړی دغه (بریښنا) دوی ته

مَّشَوۡا فِيۡهِ وَاِذَآ اَظۡلَمَ عَلَيۡهِمۡ قَامُوۡا وَلَوۡ شَآءَ اللّٰهُ

دوی ځئ پہ هغے کښې او کله چه تیاره کړی په دوی باندے نو اُودریږی او که چرے اراده کړے وے الله

لَذَهَبَ بِسَمۡعِهِمۡ وَاَبۡصَارِهِمۡ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ ﴿۲۰﴾

خامخا بولی به ئے وے غوږونه د دوی او سترگے د دوی، یقیناً الله تعالیٰ په هر څیز باندے قدرت والا دے۔

**تفسیر**: دا ددے مخکنی مثال تتمه ده۔ او همدا قول غوره دے۔ چا بیل مثال جوړ کړیدے خو هغه غوره قول ندے ځکه مشبه نشته۔

کَادَ، یَکَادُ په هغه ځائے کښې استعمالیږی چه یو شے واقع نهٔ وی خو واقع کیدوته نزدے وی۔

**اَلۡبَرۡقُ**: هغه بریخنا چه مخکښې مثال کښې ذکر شوه۔

**یَخۡطَفُ**: خطف: یو شے په تیزئ سره تختولو ته وئیلے شی۔ لکه خَطَفَتِ الدَّجَاجَةُ الۡحَبَّةَ (چرگے دانه اُوتختوله) اَلۡبَرۡق الۡخَاطِف: هغه بریخنا ته وئیلے شی چه نظر تختوی۔

یعنی کله چه دغه باران کیږی او په دے کښې بریښنا راشی نو خلق ترے یریږی چه نظرونه لاړ نشی نو دغه شان منافقان خلق د قرآن په وخت دومره پریشانه وی گویا که سترگے ئے اُوځی، بره کتل نهٔ کوی۔

(**اضاء**) لازم او متعدی دواړه راځی، چه متعدی شی نو ضمیر به راجع وی برق ته یعنی کله چه دغه بریښنا رنړا کړی او چه لازم شی بیا معنیٰ ده: هر کله چه رنړا شی۔

**فائده**: اَضَاءَ ئے اُووئیلو او (اَنَارَ لَهُمۡ مَشَوۡا فِيۡهِ) ئے اُونهٔ وئیلو ځکه چه ضوء ډیرے رنړا ته وئیلے شی او نور لگے رنړا ته نو په دے کښې اشاره ده چه دوی په دومره سخته تیاره کښې دی چه په لږه رنړا کښې د دوی مزل نهٔ کیږی بلکه ډیرے رنړا ته ئے ضرورت دے۔ (ابن عرفه)

**فیه**: ددے کلمے نه بغیر هم معنیٰ پوره کیږی لیکن دائے ذکر کړه په دے کښې اشاره ده چه دوی صرف د رنړا په ځائے کښې تلل کولے شی او د هغه ځائے نه سوا په بل ځائے کښې تللٔ نشی کولے۔

(**وَاِذَا اَظۡلَمَ**) دا هم لازم او متعدی دواړه استعمالیږی، که متعدی شی نو ضمیر راجع دے برق ته یعنی کله چه بریخنا تیاره راولی په دوی باندے یعنی هغه ختمه شی۔ او که لازم شی نو معنیٰ کله چه تیاره شی بریخنا۔ یعنی بریخنا لاړه شی۔ او دوی په تیاره کښې پاتے شی۔

**عَلَيۡهِمۡ** : پدې کلمه ذکر کولو کښې فائده دا ده چه دغه تیارې سزا ده نو دا صرف په دوی باندې ده او د دوی د وجه نه ده، نۀ په بل چا۔

**قَامُوا** : قیام په معنیٰ د حصاریدلو دې، که ولاړ وی او که ناست وی۔

معنیٰ دا ده چه کله تیاره وی نو اُودریږی او چه کله رنړا شی نو روان شی نو دا د منافقانو حال دې چه کله ورته په دین او په قرآن او حدیث کښې فائده ملاویږی نو ورځی او چه دین کښې ورته ظاهری دنیاوی فائده نۀ ملاویږی نو بیا په ځائے ولاړ وی، مخکښې نۀ ځی۔ (وَاِنۡ يَّكُنۡ لَّهُمُ الۡحَقُّ يَاۡتُوۡۤا اِلَيۡهِ مُذۡعِنِيۡنَ) (النور:۴۹)

دغه شان سورة الحج (۱۱) کښې هم راغلی دی: (وَمِنَ النَّاسِ مَنۡ يَّعۡبُدُ اللّٰهَ عَلٰى حَرۡفٍ) بعض خلق دی چه په شك باندې عبادت کوی که دنیاوی فائده ورته رسیږی نو په شوق باندې دین ته راځی او که فائده ورته نۀ رسی نو بیا بیرته اَوړی، او د مؤمن حال دا دې چه که په دۀ تکلیف دې، هم په دین روان دې او که راحت دې، هم په دین روان دې۔ دواړو حالتونو کښې به روان وی۔ ځکه چه هغه ته پته ده چه د دې دین انجام او عاقبت ښه دې، لږ لږ تکلیفونه به هم پکښې راځی، په قرآن کریم کښې به لږ تکلیف هم وی خو خیرئے ډیر زیات دې، هغه تکلیف کښې هم خیر دې، او دا دلیل دې چه څوك په دین باندې د دنیاوی مفاداتو دپاره عمل کوی نو دۀ کښې د نفاق صفت راغلے دې۔ لکه روستو ئے تفصیل راروان دې۔

(**وَلَوۡ شَآءَ اللّٰهُ**) : **فائده** : یو د الله تعالیٰ رِضاء ده او بل مشیئت دې۔ مشیت مطلق ارادې ته وئیلے شی، اراده د الله تعالیٰ متعلق کیږی د نیکیو او بدو دواړو پورې، که دنیا کښې هرڅه کیږی، که مؤمن کافر لره قتلوی، که کافر کفر کوی، او که مؤمن ایمان راوړی نو دا ټول د الله تعالیٰ په اراده باندې کیږی۔ هر شے د الله تعالیٰ د ارادې د لاندې دې۔

(۲) دویم رضاء ده، نو هغه په نیکیانو پورې متعلق کیږی۔ په غلطو اعمالو او اقوالو باندې نۀ رضا کیږی (وَلَا يَرۡضٰى لِعِبَادِهِ الۡكُفۡرَ) (الزمر : ۷) (الله تعالیٰ د بندګانو دپاره په کفر نۀ دې رضا) (لَا يَاۡمُرُ بِالۡفَحۡشَآءِ) (اعراف :۲۸)

او دا فرق ډیرو باطل پرستو نۀ دې پیژندلے نو په ډیرو بدعاتو او غلطو عقیدو کښې واقع شو۔ لکه جبریه شو۔ په بل تعبیر باندې داسې هم وئیلے شی چه اراده په دوه قسمه ده (۱) اراده دینی (۲) اراده کونی۔ اراده دینی دیته وائی چه الله تعالیٰ د بندګانو نه د یو کار غوختل کړیدی چه مونځ، حج، زکوٰة او عبادتونه اُوکړئ۔ دې سره د الله تعالیٰ رضا شامله وی۔

او اراده کونی (او دیته اراده تقدیری هم وائی) دیته وائی چه الله تعالیٰ د یو شی طلب د بندګانو نه نهٔ وی کړے چه اُوکړه بلکه الله تعالیٰ تقدیراً د یو شی اراده او فیصله کړی وی چه داسے به کیږی۔ او دا اراده کونی کله د نیکیو سره متعلق کیږی او کله د بدو سره۔ نو که د اراده دینی سره اراده کونی ملګری شی مثلاً تا نه د مونځ کولو طلب اُوکړی نو که دے سره اراده کونی ملګری شی فیصله اُوکړی او توفیق درکړی نو ته به ئے اُوکړے او که دا اراده کونی ورسره ملګرے نشوه، قوت او توفیق ئے درنکړو۔ او مطالبه درنه کوی نو اُوبه ئے نکړے۔ دارنګه الله تعالیٰ پدے رضا دے چه دکافر ډے نهٔ سترګی وی او نه غوږونه او نه د هغه بنهٔ حالت لیکن الله تعالیٰ کوناً دا اراده کړے ده چه دنیا د امتحان ځائے دے، پریده چه ځانله سرکشی زیاته کړی۔ نو دلته د مشیت نه د الله تعالیٰ کونی اراده مراد ده۔ نو داسے معنیٰ کول صحیح نهٔ دی چه که د الله تعالیٰ رضا شوے وے۔ بلکه د ارادے معنیٰ ده۔

**لَذَهَبَ بِسَمۡعِهِمۡ** : ځکه چه غوږونه او سترګے خو ددے دپاره دی چه دا به د الله تعالیٰ دپاره استعمالولے شی او دوی ترے د دنیا فائدے واخستے نو الله تعالیٰ د بندګانو پداسے اندامونو څه کوی نو لائق د ختمولو دی۔ لیکن الله تعالیٰ ورته صبر کړیدے۔

هرکله چه په منافقانو باندے د ایمان تولے لارے بندے شوے، معنوی طور سره کانړهٔ، ګونګیان او ړاندهٔ شو نو الله تعالیٰ هغوی ته اُوس نوره دهمکی بیانوی چه که الله تعالیٰ غوختلے نو د دوی دظاهری غوږونو او سترګو طاقت به ئے ترے اخستے وے۔ ځکه دا قوتونه خو ددے دپاره وو چه الله تعالیٰ پرے اُوپیژنی او دوی هغه پدے کښ استعمال نهٔ کړل نو لائق دی چه دا سترګے او غوږونه ترے واخستے شی لیکن الله تعالیٰ فرمائی : ما دوی ته صبر کړے، ګنے زهٔ ئے اُوس هلاکوم، او پدے نهٔ هلاکولو کښ حکمة دے چه څه زمانے پورے ورته صبر کوی، پریده چه دوی د دنیا فائدے واخلی۔ او دارنګه پدے دهمکی ورکولو کښ دا حکمة دے چه شاید دوی د بعض شرارتونو او منافقانه چالونو نه منع شی۔ ځکه الله تعالیٰ خو د بندګانو خیرخواهی هم کوی، سو چه ردونه نهٔ کوی بلکه د الله تعالیٰ رد هم د اصلاح دپاره وی۔

**فائده** : دلته ئے مشیئت متعلق کړو د بوتللو د سمع او ابصار پورے نهٔ د مرګ پورے۔ یعنی داسے ئے اُونهٔ ویل چه دوی به مړه کړی بلکه داسے ئے اُوئیل چه غوږونه او سترګے به ترے واخلی۔ ددے حکمة دا دے چه مرګ یو عام شے دے، هر سړے یقین لری چه دا به په هر چا راځی نو دے کښ دومره یره نهٔ ده پرته او بوتلل د غوږونو او سترګو کښ یره ډیره پرته

ده۔ او د مرگ نه بچ کیدل د بندګانو په قدرت کښ نشته او هرچه د غوږونو او سترګو بچ کول دی نو انسان ددے حفاظت کولے شی چه اسباب د نجات اختیار کړی۔

(۲) دویم : دوی د مرګ نه ځان پدے طریقه ساتلو چه غوږونه او سترګے به ئے بندے کړے نو ځکه ئے نسبت د بوتلو دے ته اُوکړو۔ چه دغه څیزونه چه تاسو پرے ځان د مرګ نه ساتئ همدغه به درله ختم کړم۔ (تفسیر ابن عرفة)۔

**اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْر** : دا دفع د وهم ده چه الله تعالیٰ به دا اندامونه ترے څنګه بوزی؟، نو جواب اُوشو چه الله تعالیٰ په هر شی قادر دے۔ هسے دهمکی نهٔ ورکوی۔ لکه د ډیرو خلقو وسع نهٔ کیږی او هسے دهمکیانے ورکوی۔ نو الله تعالیٰ داسے نهٔ دے۔

(شیء) د شیء اطلاق په الله تعالیٰ او په مخلوق ټولو باندے کیږی لکه الله تعالیٰ ته شیء وئیلے شویدے۔ (لَیْسَ شَیْءٌ اَغْیَرُ مِنَ اللّٰهِ) (لَیْسَ شَیْءٌ اَحَبَّ اِلَیْهِ الْمِدْحَةَ مِنَ اللّٰهِ)

قرآن کریم کښ دی : (قُلْ اَیُّ شَیْءٍ اَكْبَرُ شَهَادَةً قُلِ اللّٰهُ) (انعام :۱۹)

نو په جمله خبریه کښ د شے اطلاق په الله تعالیٰ کیږی، اګرکه دا ئے اسم (نوم) نهٔ دے۔ او دغه شان د شخص اطلاق هم په الله تعالیٰ شویدے۔

**شَیْءٍ** : د شَاءَ یَشَاءُ نه دے، هرهغه شے چه د هغے اراده کیدے شی۔

د اهل السنة والجماعة عقیده دا ده چه دلته د شیء نه مراد ماسویٰ د الله تعالیٰ نه دے۔ او الله تعالیٰ ددے نه مستثنیٰ دے په استثناء عقلی او استثناءِ شرعی سره، ځکه چه شریعت کښ داسے نهٔ دی وئیل شوی چه (اَللّٰهُ قَادِرٌ عَلٰى نَفْسِه)۔ ځکه پدے کښ سوءِ ادب دے۔

**فائده** : د آیت نه عموم قدرت د الله تعالیٰ معلوم شو چه الله تعالیٰ په ایجاد د معدوم شی او اعدام د موجود شی باندے قادر دے دارنګه نیک بد ته اړول او بد نیکی ته راړولو باندے الله تعالیٰ قادر دے نو معلومه شوه چه د شی اطلاق په موجود هم کیږی او په معدوم هم او الله تعالیٰ په دواړو قادر دے۔

**قدیر** : فعیل وزن دے په دے کښ مبالغه زیاته ده د قادر نه۔ انسان هم قادر دے لیکن د هغه قدرت معدود او محصور دے۔ یو اندازے پورے دے او په اسبابو دے۔ او د الله تعالیٰ د قدرت مقدار او حد نشته، بندګانو ته پوره نهٔ دے معلوم، او بے اسبابو قادر دے۔ او پدے قرآنی صفاتو د الله تعالیٰ باندے یقین پکار دے او دا چه کله د انسان په زړه کښ راشی نو د انسان زړه جوړ شی۔ ایمان ئے برابر شی۔ د توکل ماده پکښ پیدا شی۔

کله چه د بنده دا عقیده جوړه شي چه الله تعالیٰ په هر شي قادر دے، قدرت د هغه په لاس کښې دے۔ هیڅ شے د هغه د قدرت نه بهر نهٔ دے، نو یو به په الله تعالیٰ باندے توکل کوي، او بل به د مخلوق نه نهٔ پریشانه کیږي، د هغوی د لاپو او دهمکیانو نه به نهٔ یریږي چه قدرت خو د الله تعالیٰ سره دے۔ او د اسباب د ختمیدو وخت کښې به نهٔ پریشانه کیږي، ځکه چه الله تعالیٰ قادر دے په بله طریقه به الله تعالیٰ دغه حاجت پوره کړي۔

**حاصل المثال** : بعض مفسرینو تشبیه المفرد بالمفرد طریقے سره لګولے دے۔ البرق نه مراد دلائل د قرآن دي، او خطف الابصار کنایه ده د ایمان راوړونه چه دلائل د قرآن په دوی غلبه اُوکړي او ایمان ته ئے جوړ کړي۔ لکه مخکښې موت کنایه وه د ایمان راوړلو نه۔ دا تفسیر خازن وغیره وئیلي دي۔ (یَكَادُ دَلَائِلُ الْقُرْآنِ اَنْ تَجْعَلَهُمْ مُؤْمِنِيْنَ)

(نزدے دي دلائل د قرآن چه اُوکرځوي دوی لره مؤمنان) یعنې د قرآن دلائل دومره سخت او قوي دي چه نزدے ده چه دوی نه مؤمنان جوړ کړي او هغه ایمان د دوی په نیز داسے دے لکه نظر تختول لکه بعض خلقو ته ایمان راوړل داسے بد او سپك ښکاري ګویا کښې ته ترے غوږونه او سترګے اخلي او وژنے هغه لره۔

(۲) په دے کښې راجح دا ده چه دا د تشبیه المرکب بالمرکب سره لګي : یعنې دغه باران داسے سخت وي چه نزدے ده چه بریښنا د دغه باران د دوی نظرونه واروي نو غوږونو ته ئے هم تکلیف او سترګو ته ئے هم تکلیف دے نو په دے کښې اشاره ده چه کله قرآن کریم او د هغے احکام نازلیږي نو د دوی سترګو ته هم تکلیف وي او غوږونو ته هم۔ لکه دا روستو سورة محمد (۱۹) کښې راغلي دي۔ (فَاِذَا اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ مُّحْكَمَةٌ وَّذُكِرَ فِيْهَا الْقِتَالُ رَاَيْتَ الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ يَّنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ نَظَرَ الْمَغْشِيِّ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ) (یعنې کله چه یو سورت کښې د قتال حکم راشي نو دوی به تاته داسے ګوري لکه د مرګ د وجه نه چه پرے بے هوشي راغلې وي) او په سورة الاحزاب (۱۹) کښې دي (تَدُوْرُ اَعْيُنُهُمْ كَالَّذِيْ يُغْشٰى عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ) (سترګے به ئے داسے اوړي راوړي لکه د هغه سړي په شان چه د مرګ د وجه نه پرے بے هوشي راغلې وي) نو د قرآن کریم احکامو ته ددے منافقانو سترګے هم تیارے نهٔ دي او غوږونه ئے هم۔

د كُلَّمَا اَضَاءَ حاصل دا دے چه د اَضَاءَ نه مراد فائده ده یعنې که اسلام کښې ورته فائده ښکاري نو ورته تیار وي او اذا اظلم نه مراد نقصان او ضرر دے۔ چه حاصل ئې دا دے چه که دین کښې ورته فائده نهٔ ملاویده او بل ځائے کښې ورته ملاویده نو اسلام پریدي او هغه

طرف تـه اَوړی لـکـه ددې معنې تائید په آیت د سورة النساء (۷۰) کښې راغلے دے۔ (د قرآنِ کریم یو آیت د بل تفسیر کوی) (وَاِنَّ مِنۡكُمۡ لَمَنۡ لَّيُبَطِّئَنَّ، فَاِنۡ اَصَابَتۡكُمۡ مُّصِيۡبَةٌ قَالَ قَدۡ اَنۡعَمَ اللّٰهُ عَلَىَّ اِذۡ لَمۡ اَكُنۡ مَّعَهُمۡ شَهِيۡدًا وَلَئِنۡ اَصَابَكُمۡ فَضۡلٌ مِّنَ اللّٰهِ لَيَـقُوۡلَنَّ كَاَنۡ لَّمۡ تَكُنۡۢ بَيۡنَكُمۡ وَبَيۡنَهٗ مَوَدَّةٌ يّٰلَيۡتَنِىۡ كُنۡتُ مَعَهُمۡ فَاَفُوۡزَ فَوۡزًا عَظِيۡمًا) او کـه مـنافقانو ته یو جهاد کښې فائده ښکاری نو بیا وائی : (ذَرُوۡنَا نَتَّبِعۡكُمۡ) (الفتح : ۱۵) (مـونـږه ځان سره پریدئ چه مونږ هم درسره لاړ شو) او که د تبوك په شان کرانه غزا وی نو بیا وائی۔ (ائۡذَنۡ لِّىۡ وَلَا تَفۡتِنِّىۡ) (التوبة : ۴۹) (ما ته اجازه اُوکـړئ چـه پـاتـې شم او فـتـنه کښې واقع نـشم) او سورة الحج (۱۱) آیت کښې فرمائی : (وَمِنَ النَّاسِ مَنۡ يَّعۡبُدُ اللّٰهَ عَلٰى حَرۡفٍ فَاِنۡ اَصَابَهٗ خَيۡرُ ۨاطۡمَاَنَّ بِهٖ وَاِنۡ اَصَابَتۡهُ فِتۡنَةُ ۨانْقَلَبَ عَلٰى وَجۡهِهٖ) (بـعـض خلق د الله تعالیٰ بندگی په شك او طرف باندې کوی که خیر ورتـه ورسیږی نو په دیـن کـلـك شی او که فتنه (امتحان) او مصیبت پرې راشی نو بیا په خپل مخ واوړی) نو دا غـټ تـاوانـیـان دی۔ دارنگه سورة النور (۴۹) کښې راغلی دی۔ (وَاِنۡ يَّكُنۡ لَّهُمُ الۡحَـقُّ يَاۡتُوۡۤا اِلَيۡهِ مُذۡعِنِيۡنَ) (کـه پـه شریعت کښې د دوی دپاره حق ثابتیږی نو په منډه ورله راځی او که دوی ته نقصان وی نو بیا ترې اعراض کوی)۔

نـو کـوم انـسـان چـه په وخت د نعمتونو او فائدو لیدو کښې په دین باندې عمل کوی او په وخت د مصیبتونو کښې ئې نهٔ کوی نو دیتـه نفس پسندی او خود پسندی او اتباع الهوی (د خـواهـش تابعداری) وائی۔ او دا بعینه منافقت دے۔ او مؤمن له که څوك څه ورکوی او که نهٔ ئې ورکوی نو په ټولو حالتونو کښې په دین کلك وی، که څوك څه ورکوی هم قرآن وائی او که نهٔ ئې ورکوی نو هم ئې وائی۔ نو دا حق پرست دے۔ څکه چه دا خپله ذمه واری گنړی، او کـه څـوك دا وائی چه که د دین فلانی کار کښې مال ملاویږی نو کوم، او که نهٔ ملاویږی، نو نهٔ ئې کوم، نو دهٔ کښې به د منافقت نخه موجوده وی، جنازه کښې که اسقاط وی نو ځم، او که نهٔ وی نو نهٔ ځم، دا نفاق دے۔ دغه شان نور مثالونه واخله۔

او په حدیث کښې هم راغلی دی چه یو اعرابی راغلو بیعت ئې اُوکړو، څو ورځې پس راغلو د مدینې تبو وهلے وو، وے وئـیـل : (يَا رَسُوۡلَ اللّٰهِ ! اَقِلۡنِىۡ بَيۡعَتِىۡ) (زهٔ خپل بیعت اخلم) او لوظ مـاتـوم، نـو رسـول الله ﷺ ورتـه اُوفـرمـایـل : زهٔ ستا بیعت نهٔ واپس کوم۔ درې ځل راغلو لیـکـن کله چه رسول الله ﷺ ورله بیعت مات نکړو نو اُوتختیدو، نو پدې رسول الله ﷺ اُوفرمایل : (اِنَّ الۡمَدِيۡنَةَ كَالۡكِيۡرِ تَنۡفِىۡ خَبَثَهَا وَتَنۡصَعُ طِيۡبَهَا) (بخاری و مسلم)

(مدینه د بنئ په شان ده چه خپله پلیتی او گندگی ختموی او پاك خلق پریدی)۔
**فائده :** که عبادت خوند درکوی او که نهٔ خو کول ئے پکار دی، دا نښه د ایمان ده او که خوند نهٔ درکوی او ته ئے پریدے نو دا نښه د نفاق ده۔ (۲) په زړه کښې منافقت په دوه اسبابو رازی ۱ - غم د ایمان نکول۔ ۲ - عبادات او اعمال نکول۔ (۳) ظاهری نعمتونه ددے دپاره دی چه بندگی پرے اُوشی چه هغه نهٔ وی نو بیا په نعمتونو څه ؟۔

| |
|---|
| يَآيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوْا رَبَّكُمُ الَّذِىْ خَلَقَكُمْ |
| اے خلقو! بندگی اُوکړئ د رب خپل هغه ذات چه تاسو ئے پیدا کړی یئ |
| وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿۲۱﴾ |
| او هغه کسان چه ستاسو نه مخکښې وو۔ ددے دپاره چه تاسو بچ شئ (د عذاب د الله نه)۔ |

**تفسیر :**

دلته یو څو ابحاث دی۔ حاصل الآیات تر یو رکوع پورے (۲) ربط او مناسبت د آیتونو د ماقبل سره۔ (۳) او تفسیر او فوائد د آیتونو۔

(۱) حاصل د آیتونو دا دے چه پدے اول آیت کښې امر دے په عبادت د الله تعالیٰ او ورسره دوه قسمه توحیدونه ئے بیان کړیدی چه هغه توحید ربوبیت او توحید اُلوهیت دے چه دا د ایمان سره متعلق دے۔ چه الله تعالیٰ ستاسو رب او پالونکے دے، تاسو له رزقونه او دوډئ گانے درکوی نو راشئ بندگی هم د هغه اُوکړئ۔ (توحید الالوهیة او توحید العبادة یو شے دے۔ او توحید ربوبیت او توحید معرفة یو شے دے) یا داسے تعبیر هم کولے شی چه پدے کښې د الله تعالیٰ د معرفت بیان دے په دلائل عقلیو سره۔ چه متعلق دے د یؤمنون بالغیب سره۔ چه ایمان دے په الله تعالیٰ راوړو نو د هغه بندگی به کوے، او هغه غیب ذات باندے دلائل شته۔ او بیا (فَلَا تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ اَنْدَادًا) کښې تفریع ده د رد الشرك چه په الله تعالیٰ باندے صحیح ایمان او توحید دا دے چه د هغه سره به شریکان نهٔ جوړوی۔ او په (۲۳) آیت کښې بیان دے د صدق القرآن والرسول چه دا هم د ایمان سره متعلق دے۔ چه هر کله دے په الله تعالیٰ ایمان راوړو نو قرآن او رسول به هم منے۔ بیا په (فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلُوْا) کښې تخویف اُخروی (د

آخرت یره) بیانوی چه چا کښې ایمان نشته نو د هغه دپاره اُور تیار دے۔
بیائے په (وَبَشِّرِ الَّذِيْنَ) کښې بشارت (زیرے) ورکړیدے مؤمنانو ته په خلورو طریقو سره چه يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ والا دی. او د هغه کامیابئ بیان دے کومه چه ایمان والو دپاره ده. چه هغه جنت ته همیشه داخلیدل دی۔ گویاکه دلته ئے ټول ایمانیات جمع کړیدی چه الله، رسول، قرآن، جنت، جهنم باندے ایمان راوړئ۔
بیا په (۲۶) آیت کښې بیان حکمة الامثال راوړی۔ (قرآن کریم کښې مثالونه ولے بیانیږی ؟) دا یو عنوان دے، دویم دا مقصد هم پکښې دے : جَوَابُ اِعْتِرَاضِ الْمُعْتَرِضِيْنَ عَلَى الْقُرْآنِ ۔ یعنی څوک چه په قرآن کریم اعتراض لری نو د هغوی جواب بیانوی، دے دپاره چه ددے اعتراضونو په وجه د مؤمنانو ایمان په قرآن کریم خراب نشی۔ او حکمة الامثال دا دے چه بعضو ته هدایت کوی او بعضے پرے گمراه کوی) او کوم چه پرے گمراه کیږی نو هغه فاسقان خلق دی، بیا د فاسقانو درے صفات بیانوی. بیا (کیف تکفرون) نه روستو ذکر د خلورو نعمتونو کوی اول نعمت چه اے بندگانو تاسو نهٔ وئ نو دنیا ته ئے راوستئ۔
۲- د زمکے ټول څیزونه ئے ستاسو د فائدے دپاره پیدا کړل. ۳- آدم ﷺ (چه ستاسو پلار دے) الله تعالیٰ د زمکے خلیفه جوړ کړیدے. او مسجود له د ملائکو دے. ٤- (فتلقی آدم) کښې دی چه الله تعالیٰ د آدم ﷺ توبه قبوله کړے ده. دا ټول متعلق دی ددے سره چه دا انعامات تاسو سره الله تعالیٰ پدے وجه کړیدی چه د الله تعالیٰ بندگی به یواځے کوئ. او دارنگه ددے تعلق د موضوع السورة (ایمان) سره دے چه كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ ۔ ایمان به ضرور راوړے او د کفر هیڅ عذر نشته ، ځکه دے انعاماتو ته اُوگورئ، ددے انعاماتو تقاضا دا ده چه ایمان به خامخا راوړئ او پدے کیف تکفرون کښې د الله تعالیٰ د معرفت تذکره هم ده او د انعاماتو هم. تفصیل ئے روستو رازی۔

**مناسبت** : (۱) (فِيْهِ دَعْوَةُ الطَّوَائِفِ الثَّلَاثَةِ الْمَذْكُوْرَةِ اِلَى عِبَادَةِ اللّٰهِ تَعَالٰى)
(پدے آیت کښې الله تعالیٰ درے واړو مخکنو ډلو ته د عبادت دعوت ورکوی)۔
۲- دویم مناسبت د مخکښې اجمالی حاصل نه معلومیږی چه دا متعلق دے د يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ سره چه په دغه غیب دلائل شته راشئ واورئ (۲) دریم ماسبت دا دے چه دا متعلق دے د هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ سره، قرآن هدایت دے، د هدایت لاره تقویٰ ده او د تقویٰ لاره عبادت دے۔ یا داسے اُووایه چه قرآن هدایت دے، د هدایت د حاصلولو سبب تقویٰ ده او د تقویٰ د حاصلولو

سبب عبادت دے او د عبادت د حاصلولو سبب فكر كول دى په نعمتونو كښې۔ پدے مناسبت كښې عظيمه فائده پرته ده څكه چه چل خودلے شويدے د تقوىٰ او د هدايت۔

(٤) څلورم مناسبت د صفات المنافقين سره دا دے چه منافقان ولے بے نوره شو څكه چه دوى بندگى پريخوستے ده۔ (٥) جزئى مناسبت د قدير سره هم دے چه دلته بيان د قدرت د الله تعالىٰ دے په هر څه باندے۔ ولله الحمد۔

(٦) د موضوع د سورت سره ئے مناسبت دا دے چه دلته د ايمان بالغيب دلائل او مقويات بيانيږى او د ايمانياتو تفصيل دے۔ دارنگه د ايمان شرعى مصداق بيانيږى چه بلا اشراكه د الله تعالىٰ بندگى كول ايمان بالغيب دے كه څوك شرك كوى هغه په الله تعالىٰ مؤمن نۀ دے۔

## فوائد الآيات

(يَا اَيُّهَا النَّاسُ) داسے خطاب قرآن كريم كښې اتلس (١٨) كرته راغلے دے۔

پدے كښې زاد المسير څلور اقوال نقل كړيدى ١ –چه څوك وائى صرف يهودو ته خطاب دے۔ ٢ – څوك وائى منافقان او يهودوته خطاب دے۔ ٣ –څوك وائى چه د عربو عامو مشركانو ته خطاب دے۔ ٤ – عبد الله بن عباس ﷺ نه نقل دى چه يَا اَيُّهَا النَّاسُ مكے والو ته خطاب وى۔ او يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا مدينے والو ته۔ ددے روايت سند ضعيف دے، او دارنگه د قرآن كريم نه هم خلاف دے څكه سورة النساء او سورة الحجرات بالاتفاق مدنى دى او په هغے كښې خطاب يا ايها الناس راغلے دے۔

پدے كښې صحيح دا ده چه دا ټول بنى نوع انسانانو ته خطاب دے، كه موجود وو په هغه زمانه كښې او كه معدوم وو۔ (تَنْزِيْلًا لِلْمَعْدُوْمِ مَنْزِلَةَ الْمَوْجُوْدِ) (معدوم خلق ئے په منزله د موجود فرض كړيدى) يعنى اے ټولو خلقو! مكے والا دى، كه مدينى والا ، عرب دى كه عجم، پيدا شوى دى، كه لا نۀ دى پيدا شوى۔ دے ټولو ته خطاب دے، بندگى اُوكړئ د رب خپل، هر قسم بندگيانے۔ او په دوهو كه كښې مۀ راځئ او د خپل پيدائش مقصد هير نۀ كړئ او په كبر او غرور كښې مۀ راځئ او د الله تعالىٰ بندگى ته تيار شئ نو دا د الله تعالىٰ حكم دے مونږ ته چه بندگى اُوكړو او خاص هغه دپاره ئے اُوكړو، څوك چه عبادت نۀ كوى نو دا چه كوم مقصد له پيدا دے هغه ئے مُهمل (بيكاره) كړو، او څوك چه بندگى كوى خو د الله تعالىٰ نه ماسوا د بل دپاره ئے كوى نو دۀ هم خپل مقصد اُونۀ پيژندلو۔ او دريمه خبره

روستو راځي چه د پیغمبر په طریقه به وي (وَاِنۡ كُنۡتُمۡ فِيۡ رَيۡبٍ) سره اشاره ده دے ته۔

او دا خطاب ځکه عام دے چه د رسول الله ﷺ بعثت او دعوت ټولو بندګانو ته تر قیامته پورے عام او شامل دے۔ نو دا دلیل دے چه د رسول الله ﷺ نه روستو بل نبي نۀ راځي ځکه داسے عام خطاب قرآن کریم کښې ذکر کیږي۔

**تنبیه** : دا خطاب په ظاهر کښې انسانانو ته دے، لیکن پدے کښې جنات (پیریان) هم داخل او مراد دي، هغوی ته هم د الله تعالیٰ د بندګئ دعوت دے۔ ځکه چه په قرآن او حدیث کښې خطاب انسانانو ته کیږي، دا اصل دي او پیریان د دوي تابع دي، لکه څنګه چه سړو ته خطاب کیږي او ښځے د هغوی تابع وي۔ او دلیل پدے دا دے چه په بعض آیتونو کښې الله تعالیٰ دوارو طرفته خطاب کوي لکه (سَنَفۡرُغُ لَكُمۡ اَيُّهَا الثَّقَلٰنِ، فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ)۔ دلته پیران او انسانان دواړه مراد دي۔

بیا پدے آیت کښې الله تعالیٰ ټولو بندګانو ته دعوت د خپل عبادت ورکړیدے په دوه طریقو (۱) بِاِقَامَةِ الۡبَرَاهِيۡنِ : دلائل ئے قائم کړیدي۔ چه الله تعالیٰ مستحق د عبادت دے۔

(۲) مُلَاطَفَةٌ جَمِيۡلَةٌ: ښائسته نرمے لهجے سره الله تعالیٰ بندګانو ته د خپلے بندګئ دعوت ورکړیدے او خپل حقونه ئے پرے شمارلي دي چه ولے زۀ ستاسو او ستاسو د مشرانو رب نۀ یم څه؟۔

(**اُعۡبُدُوۡا**) د عبد الله بن عباس ؓ نه نقل دي : (كُلُّ عِبَادَةٍ فِي الۡقُرۡاٰنِ فَهُوَ التَّوۡحِيۡدُ) (یعني وَحِّدُوۡا رَبَّكُمۡ) (هر عبادت د الله تعالیٰ چه په قرآن کریم کښې ذکر دے نو د هغے نه مراد توحید دے) ددے معنیٰ دا نۀ ده لکه د بعض خلقو په ذهن کښې ده چه د باباګانو او د قبرونو او بتانو عبادت یو انسان نۀ کوي او هغوی ته سجده نۀ لګوي، رامدد شه ورته نۀ وائي نو بس دا به توحید وي، نۀ بلکه ددے معنیٰ دا ده :(اِفۡرَادُ اللّٰهِ بِالۡعُبُوۡدِيَّةِ)

(یعني بندګي یواځے الله تعالیٰ لره کول)۔

د قتاده رحمه الله نه نقل دي چه صحیح عبادت کونکے هغه دے چه درے شرطونه پکښې وي (۱) عبادت به کوي، د الله د بندګئ نه به اعراض او غفلت نکوي (۲) دویم یواځے الله تعالیٰ دپاره به کولے شي۔ د مخلوق، بابا، ولي، بت د عبادت حقدار او لائق نۀ دے۔ اګرکه هرڅومره بزرګ او نیک وي۔ (۳) دریم دا چه د الله تعالیٰ د رسول ﷺ په طریقه به وي۔ نو د ابن عباس ؓ غرض هم دا دے چه عبادت یواځے الله تعالیٰ لره بندګي کولو ته وائي۔ نو پدے کښې اشاره دے ته وه چه مشرکانو به هم الله تعالیٰ لره عبادت کولو لیکن هغه عبادت

نهٔ دي ځکه چه خپلو معبودانو او باباګانو له به ئې هم پکښې برخه ورکړې وه. نو دا په منزله د نشت دي.

د عبادت معنیٰ او تحقیق مخکښې ذکر شويدې. چه محبت او ذلت ته وائي. او ددې ډير افراد او انواع دي. د شيخ الاسلام ابن تيمية نه تپوس شويدې چه كوم كار عبادت دې چه انسان هغهٔ اُوكړي نو عابد بنده جوړ شي، نو هغه پدې باندې مفيده رساله (اَلْعُبُوْدِيَّةُ) اُوليكله چه د دين هر نيك كار د الله تعالىٰ عبادت دې. لكه مونځ، زكوٰة، روژه، حج، امر بالمعروف، نهي عن المنكر، جهاد، دعوت، صله رحمي، صدقه، حسن الخلق، ذكر، تلاوت د قرآن كريم، احسان د ګاونډيانو سره، احسان اِلٰى خَلْقِ الله (د ټول مخلوق سره احسان تردې چه حيواناتو سره هم) (اِنَّ اللّٰهَ كَتَبَ الْاِحْسَانَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ)، عَدَمُ الْاِيْذَاءِ (چا ته ضرر نهٔ وركول) لكه حديث كښې دي چه څوك غلے كيني او چا ته ضرر نهٔ وركوي دا هم صدقه ده. دارنګه خدمت كول. دارنګه باطني صفات شو. لكه صبر، شكر، توكل، توبه، انابت، قنوت، محبة الله (د الله تعالىٰ سره محبت)، مَحَبَّةُ الصَّالِحِيْنَ (د نيك عملو خلقو سره مينه ساتل) زِيَارَةُ الْاِخْوَانِ. او زِيَارَةُ الْاَقَارِبِ (د مسلمانانو ورونو او خپلوانو ملاقات له د الله تعالىٰ د رضا دپاره تلل) دا هم عبادت دې چه ډير خلق ددې نه غافل دي. عِيَادَةُ الْمَرِيْضِ، (بيمار پرسي) اِتِّبَاعُ الْجَنَائِزِ (جنازه كول) اَلسَّلَامُ وَرَدُّهُ. (سلام اچول او د هغې جواب وركول) اِجَابَةُ الدَّعْوَةِ. (د دعوت قبلول)، تَشْمِيْتُ الْعَاطِسِ. (پرنجي كوونكي ته يَرْحَمُكَ اللّٰهُ وئيل)

په ابتداء كښې ئې وئيلي دي: (فَالْعِبَادَةُ هِيَ اسْمٌ جَامِعٌ لِكُلِّ مَا يُحِبُّهُ اللّٰهُ وَيَرْضَاهُ مِنَ الْاَقْوَالِ وَالْاَعْمَالِ الظَّاهِرَةِ وَالْبَاطِنَةِ) (عبادت يو جامع نوم دې د هر هغه شي چه الله تعالىٰ ئې خوښوي او هغه ته پسند وي كه اقوال او اعمال ظاهري وي او كه باطني.

بيا ئې تفصيل كړيدې او آخر كښې ئې حاصل داسې راوستلې دې. (كُلُّ مَا يَرْضَى اللّٰهُ سُبْحَانَهُ وَتَعَالٰى بِهِ وَالْاِجْتِنَابُ عَنْ كُلِّ مَا يُسْخِطُهُ اللّٰهُ) (هر هغه شے چه الله تعالىٰ پرې رضا كيږي د هغې كول او د هر هغه شي نه ځان ساتل چه الله تعالىٰ پرې خفه كيږي)

دا ټول عبادتونه دي. تردې چه مباح كارونه په نيك نيت باندې كول هم عبادت جوړيږي. بيا په بنده باندې لازم دي چه ددې ټولو عبادتونو نه په حصه اخلي.

ربكم: **فائده** : دلته ئې رب لفظ راوړو نهٔ الله لفظ، ځكه چه پدې سره ارتباط راځي د اُعْبُدُوْا سره. يعني عبادت ځكه اُوكړئ چه هغه ستاسو رب دې، ستاسو تربيت كوي. نو ګويا كښې دا

دلیل شو د اُعْبُدُوْا دپاره. او که لفظ د (اُعْبُدُوا اللهَ) ئې وئیلې وے، نو دلیل به نهٔ جوړیدو۔

(خَلَقَكُمْ) **فائده :** خلق لفظ ئې راوړو (اِمْتِنٌ بِالْخَلْقِ) الله تعالیٰ په بندګانو باندے د خلق (پیدائش) احسان اُوکړو ددے څۀ حکمة دے؟

نو ددے یو څو حکمتونه دی (۱) اول دا چه (اَلْخَلْقُ اَصْلٌ لِجَمِيْعِ النِّعَمِ) (پیدائش د ټولو نعمتونو سردار دے) ټول نعمتونه په پیدائش باندے مرتب دی، چه انسان پیدا نۀ شی نو څه به اُوخوری او څه به استعمال کړی. ځکه ئې ددے نعمت تخصیص اُوکړو. (۲) مشرکان او کافران د الله په خالقیت اقرار کولو، چه الله تعالیٰ زمونږ خالق دے. (او پدے باندے تقریباً ټول عالَم اقرار کوی) نو پدے کښې احسان دے په هغۀ نعمت سره چه کفار هم پرے اقرار کوی نو پدے سره به دلیل اُونیسی پدے چه هرکله الله تعالیٰ خالق ګنړئ نو د هغۀ دپاره بندګی هم خاص کړئ۔

﴿وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ﴾ : دا ئې پسے د دفع د وهم دپاره اُووئیلو چه الله تعالیٰ ستاسو خالق دے، نو د پخوانو هم خالق دے دا مه وایئ چه مونږ پلارانو او نیکونو پیدا کړی یو، ځکه ستاسو مشران چا پیدا کړیدی، هغه هم د الله تعالیٰ مخلوق وو. لکه ډیر خلق د اولیاؤ عبادتونه کوی چه دا مونږ له رزق، صحت او برکت راکوی. نو هغوی له رزق او صحت چا ورکړے وو؟۔

(لَعَلَّكُمْ) لعل : په معنیٰ د رجاء او شك سره استعمالیږی. نو د الله تعالیٰ دپاره رجاء او شك څنګه استعمال شی؟ نو جواب دا دے چه دا شك او رجاء په نسبت د بندګانو سره دے یعنی (عَلٰى رَجَاءٍ مِنْكُمْ) يا رَاجِيْنَ التَّقْوٰى) یعنی تاسو د تقویٰ امید د الله تعالیٰ نه اُولرئ۔

(۲) قرطبیؒ او طبریؒ او ابن منظورؒ وئیلی دی چه لعل د الله په کلام کښې په معنیٰ د کَیْ سره دے معنیٰ ئې ده (دے دپاره)۔ (۳) دریم د ابو البقاء نه نقل دی چه لعل په معنیٰ د تعرض سره هم راځی۔ (یعنی مُتَعَرِّضِيْنَ لِلتَّقْوٰى) یعنی د عبادت په وجه ځان پیش کړئ تقویٰ ته)۔

پدے کښې د قرطبیؒ تفسیر غوره دے۔

**بیا** لعل : د چا سره متعلق دے. ۱ – یو دا چه دا علت دے د (اعبدوا) دپاره۔ بندګی ولے اوکړئ؟ علت دا دے چه تاسو کښې تقویٰ راشی۔ نو بیا پدے باندے سوال دا دے چه عبادت هم تقویٰ ده نو یو شے د ځان دپاره څنګه علت اُوګرځی؟۔ **جواب** دا دے چه تقویٰ د عبادت اعلیٰ درجه ده او دا ئې غایه ده۔ او عبادت ئې لاندے درجه ده۔ یعنی عبادتونه کوئ کوئ تردے چه د تقویٰ اعلیٰ درجے او آخر سر ته اُورسیږئ۔

(۲) یا د خلقکم سره متعلق دے یعنی تاسو ئے د تقویٰ دپاره پیدا کړی یئ۔ دا ستاسو د پیدائش مقصد دے۔ (وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُوْنِ) (الذاریات :۵۶)

(۳) دریم دا چه د دواړو دپاره علت او غایه دے او پدے کښې هیڅ منافات نشته۔ وهو الظاهر۔

**تَتَّقُوْنَ** : د تقویٰ دوه معنے دی (۱) تقویٰ لغوی۔ دا په معنیٰ د بچاؤ دے نو معنیٰ به دا وی (دے دپاره چه بچ شئ د الله تعالیٰ د عذاب نه) ځکه چه د الله تعالیٰ د عذاب نه بچاؤ صرف د هغه په بندګئ راځی۔ نو دا به بیا علت وی دپاره د اعبدوا۔ نۀ د خلقکم۔ (۲) دویم تقویٰ شرعی ده۔ چه د الله تعالیٰ د اوامرو تابعداری او د نواهی نه ځان ساتل۔ او قرآن کریم کښې به غالباً همدا معنیٰ مراد وی۔ ځکه الفاظ شرعی به غالباً په شرعی معانیو حمل کولے شی۔ یعنی د الله عبادت ځکه اُوکړئ چه تاسو کښې تقویٰ راشی۔ او صحابه کرامو د تقویٰ معنیٰ او فائدے پیژندلے وے، نو کله چه به ورته اُوئیلے شو چه پدے عمل سره تقویٰ پیدا کیږی نو هغوی به ورته منډه وهله، ځکه په عام احکامو کښې روستو لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ذکر کوی۔ روژے باره کښې وائی: (لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ) معلومه شوه چه تقویٰ الله تعالیٰ ته ډیره محبوبه ده ځکه د هر شی غایه ئے ګرځولے ده نو هر مسلمان له ددے کوشش پکار دے۔

**فائده** : هر عبادت چه سړی کښې تقویٰ پیدا نکړی نو دا عبادت مدخول دے او څه فساد پکښې ضرور شته دے ځکه (اَلْعِبَادَةُ تُرَادُ لِلتَّقْوٰى) ۔عبادت خو د تقویٰ پیدا کولو دپاره کولے شی)۔ دے باندے فکر اُوکړه نو عبادتونه به دِے صحیح شی۔

پدے صورت کښې لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ د اُعْبُدُوْا دپاره هم علت ګرځیدل صحیح دی او د خَلَقَكُمْ دپاره هم۔ لکه چه مخکښې ذکر شو۔

الَّذِىْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ فِرَاشًا وَّالسَّمَآءَ بِنَآءً وَّاَنْزَلَ

هغه ذات دے چه ګرځولے ئے ده ستاسو دپاره زمکه فرش (خوره) او آسمان چهت، او رالیږی

مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَخْرَجَ بِهٖ مِنَ الثَّمَرٰتِ رِزْقًا لَّكُمْ ۚ

د بره نه اُوبه، پس راویاسی په دے باندے د میوو (او غلو) نه، دپاره د خوراک ستاسو،

فَلَا تَجۡعَلُوۡا لِلّٰهِ اَنۡدَادًا وَّاَنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ ﴿۲۲﴾

پس مۀ کرځوئ د الله دپاره شریکان. او تاسو پو هیږئ.

**تفسیر:**

**فائده :** دے ته دلائل عقلیه وائي دا د الله د معرفت دلائل دي، د عقل دلائل دي، او دے ته نعمتونه هم وائي، قرآن کریم کښې دا ډیر بیانیږي د مختلفو مقاصد او فائدو دپاره (۱) بَيَانُ تَوۡحِيۡدِ الرُّبُوۡبِيَّةِ) (کله پکښې مقصود بیان د توحید ربوبیت وي چه دا اوله نوع د توحید ده، یعني دا عقیده ساتل چه الله تعالیٰ زمونږ خالق، مالك، رازق دے. او دا عقیده چه چا کښې نۀ وي نو هغه د الله تعالیٰ بندګي نۀ کوي بلکه هغه دهري کیږي. (۲) بَيَانُ مَعۡرِفَةِ اللّٰهِ(کله پکښې مقصود د الله تعالیٰ معرفت او پیژندګلي وي چه الله تعالیٰ داسے کارونه کوي) او دا هم د قرآن کریم د مسائلو نه مهمه مسئله ده ځکه قرآن کریم ددے دپاره نازل دے چه د الله تعالیٰ تعارف بندګانو ته اوشي. (۳) دریم بَيَانُ النِّعَمِ : (د نعمتونو بیان پکښې مقصود وي، بیا دا نعمتونه کله د نعمت په شکل بیانوي چه کله د شکر بحث کیږي او کله د دلیل په شکل بیانیږي او نعمت پکښې ضمناً پروت وي لکه په کوم سورت کښې چه د ایمان او د الله تعالیٰ د معرفت بیان وي لکه دے مقام کښې شو.

(٤) (رَدُّ الشِّرۡكِ) (کله په کښې رد الشرك مقصد وي) چه الله تعالیٰ خو داسے داسے کارونه کړي نو آیا ستاسو معبودانو داسے کارونه کړیدي (هٰذَا خَلۡقُ اللّٰهِ فَاَرُوۡنِيۡ مَاذَا خَلَقَ الَّذِيۡنَ مِنۡ دُوۡنِهٖ) (لقمان : ۱۱) او پدے مقام کښې هم روستو (فَلَا تَجۡعَلُوۡا لِلّٰهِ اَنۡدَادًا) وائي.

(٥) اِثۡبَاتُ الۡمَعَادِ (په بعض ځایونو کښې الله تعالیٰ پدے دلائلو د قیامت اثبات کوي چه الله تعالیٰ په دنیا کښې داسے کارونه کړیدي نو قیامت به هم راولي. لکه سورة النبأ کښې ددے تفصیل راغلے دے.

(٦) حافظ ابن القیم ډیر ښه تعبیر کړیدے : کله پکښې مقصود (جَلۡبُ قُلُوۡبِ الۡعِبَادِ اِلَى اللّٰهِ) (د بندګانو زړونه خپل ځان ته راجلب کوي) پدے طریقه چه کله الله تعالیٰ د خپلو نعمتونو تذکره کوي ددے دپاره چه د بندګانو د الله تعالیٰ نه امید پیدا شي او د هغه سره ئے تعلق پیدا شي. (۷)- (خَوۡفُ الۡعِبَادِ) او کله په دے دلائلو کښې د خپل قهر او زورورالي

تذكره كوى دے دپاره چه د بنده په زړه كښې خوف پيدا شى. او هغه زړه آباد دے چه په هغے كښې د الله تعالىٰ يره پيدا شى.

(۸)- (اِثْبَاتُ عَظَمَةِ اللّٰهِ وَقُدْرَتِهٖ لِيُنِيْبَ وَيَتَوَكَّلَ عَلَيْهِ الْعَبْدُ) (الله تعالىٰ خپل قدرت او عظمت بيانوى دے دپاره چه بنده هغه ته انابت اُوكړى او په هغه باندے توكل اُوكړى)

(۹) كله نعمتونه دے دپاره بيانيږى چه بنده د هغے شكر اُوكړى.

(۱۰) او دے دپاره چه بنده كښې د حياء ماده پيدا شى. او پدے سره احسان درجے ته اُورسيږى. نو دے دلائل عقليه ؤ نه الله رب العالمين ډيره فائده په قرآن كښې بندګانو ته وركوى. دارنګه كله د اثبات الرسالة وعظمة الموحى كله دے دپاره چه الله تعالىٰ مخلوق عبث ندے پيدا كړے، عبادت له ئے پيدا كړے، كله د خشوع د پيدا كولو دپاره ذكر كيږى لكه په سورة المؤمنون كښې او خپل ځائے كښې به ئے ان شاء الله تعالىٰ مونږ بيانوو چه دلته څه مقصد دے. او دا د علومو د قرآن نه يو مهم علم دے، دا وجه ده چه قرآن كښې دلائل عقليه د يو هزار نه زيات بيان شويدى، شپږمه حصه د قرآن دے باره كښې ده. قرآن كښې هميشه د دوه كتابونو تذكره وى (۱) يو كتاب مكنون (پټ ساتلے شوے) چه ديته قرآن وائى. (۲) او بل كتاب مفتوح (كولاؤ كتاب) چه دے ته كون (كائنات) وائى.

او د بنده په زړه كښې چه صفات پيدا كيږى نو هغه پدے طريقه چه دا دلائل په ډير سوچ او فكر سره اُولولى. دلته دا دلائل د اثبات د توحيد عبادت او رد الشرك اود صحيح ايمان راوړو دپاره بيان شويدى.

## فائده ۲:-- د الله تعالىٰ د وجود دلائل

ډيرو مفسرينو ددے آيت نه د الله تعالىٰ په وجود باندے استدلال كړيدے ځكه كوم شخص چه د سفلى او علوى موجوداتو او مخلوقاتو په شكلونو، رنګونو، مزاجونو او منافعو باندے سوچ او غور اُوكړى او پدے خبره غور اُوكړى چه الله تعالىٰ دا په كوم مناسب انداز او مناسب ځايونو باندے ايخودى دى نو هغهٔ به د خالق په وجود باندے ضرور ايمان راوړى، د هغه په قدرت، علم او حكمت او د هغه په عظيم بادشاهت باندے يقين به د هغه په زړه او دماغو كښې كينى.

د الله تعالىٰ د وجود او د هغه د معرفت دپاره ډير زيات دلائل دى. چه هغه ډير انواع دى. لكه

حافظ ابن کثیر رحمه الله پدے مقام کښې د ائمه اربعه ؤ نه د الله تعالیٰ د معرفت واقعات او دلائل راوړی دی۔ او موږ په دے باره کښې په (الفوائد فی تزکیة النفوس ۲) کښې راوړیدی:
بعض د هغے دلائلونه دا دی:
(۱) (فِطْرَةُ النَّاسِ) : (الله تعالیٰ ټول مخلوق په فطرت باندے پیدا کړیدے) او د فطرت معنیٰ ده (تَهَيُّؤُ الْقُلُوْبِ وَاسْتِعْدَادُهَا لِمَعْرِفَةِ اللّٰهِ)
(یعنی الله تعالیٰ زړونو کښې داسے قابلیت او استعداد پیدا کړیدے چه الله تعالیٰ پیژنی۔ لکه مثلًا په شیشه کښې د تصویر ښکاره کیدو استعداد شته او په کاڼړی کښې نشته۔
(۲) (عقل سلیم) (د چا چه څومره عقل زیات وی هغومره به الله تعالیٰ زیات مني۔ لکه انبیاء علیهم السلام، علماء کرام او اهل تقویٰ او صالحین او د ټولو مذاهبو عقلمند خلق د الله تعالیٰ په وجود اقرار کوی۔
(۳) (اَدِلَّةُ الْكَوْنِ) (کائناتو کښې بنده نظر واچوی نو دۀ ته به ډیر عجیب څیزونه ښکاره شی چه هغه به دلیل وی د الله تعالیٰ په وجود باندے لکه د امام ابو حنیفه رحمه الله مناظره د دهریه ؤ سره مشهوره ده۔ چه دۀ هغوی ته اُووئیل: زۀ څکه ناوخته راغلم چه کشتئ نۀ وه، آخر کښې لرګی راغلل، خپله آره شو، او خپله پرے میخونه اُووهل شو او خپله روانه شوه او موږ په کښې راکیناستو او دغه دے چه راورسیدو نو هغوی اُووئیل: دا څنګه کیدے شی؟ نو امام صاحب ورته اُوفرمایل: دیوے کشتئ دپاره دا حالت ستاسو عقل نۀ برداشت کوی او دا دومره عظیم کائنات دِے بغیر د صانع او موجد نه روان وی دا څنګه کیدے شی؟ نو هغوی ایمان راوړو۔
هارون رشید د امام مالك رحمه الله نه تپوس اُوکړو چه الله تعالیٰ په څه سره معلومولے شی؟ نو امام صاحب اُوفرمایل: حلق (مرئ) یو ده لیکن د خلقو خبرے او آوازونه او لهجے مختلف دی آیا ددے نه نۀ ثابتیږی چه یو اُوچت ذات موجود دے چه ددے خبرو مُعلم او د لهجو خالق دے؟۔
امام شافعی رحمه الله فرمائی: د توت پاڼړے ته اُوګوره چه کله ئے د وریښمو چینجے اُوخوری نو نرم وریښم ترے پیدا شی او چه د شاتو مچئ ئے اُوخوری نو شهد ترے پیدا شی او چه غوا او چیلئ ئے اُوخوری نو سوتے او پچے ترے پیدا شی او چه صحرائی هوسئ ئے اُوخوری نو مشك ترے پیدا شی، نو د یو شی نه داسے مختلف څیزونه پیدا کونکے څوك دے؟ (الله تعالیٰ دے)۔
امام احمد رحمه الله فرمائی: یوه مضبوطه قلعه ده چه هیڅ دروازه ئے نشته، چه ظاهر

کښې سپینه چاندي ده او باطن ئې خالص د سرو زرو پشان دے، بیا ددے دیوالونه مات شي او د هغے نه لیدونکے، اوریدونکے ښائسته حیوان په ښائسته آواز کښې پیدا شي. (یعنی هګۍ، انډه) بیا فکر اُوکړه. د چرګے بچے چه پیدا شي نو سمدست ګرځي او د انسان بچي تر کاله پورے نشي ګرځیدلے؟. دے سره الله تعالیٰ پیژندلے شي.

یو اعرابي نه نقل دي: (اَلْبَعْرَةُ تَدُلُّ عَلَى الْبَعِيْرِ وَآثَارُ الْأَقْدَامِ تَدُلُّ عَلَى الْمَسِيْرِ فَسَمَآءٌ ذَاتُ أَبْرَاجٍ وَالْأَرْضُ ذَاتُ فِجَاجٍ وَالْبَحْرُ ذَاتُ أَمْوَاجٍ كَيْفَ لَاتَدُلُّ عَلَى اللَّطِيْفِ الْخَبِيْرِ)

(په یوه لاره کښې یوه پچه دلالت کوي په اُوښ باندے او د قدمونو نخے دلالت کوي په مزل کولو، نو هغه اسمان چه برجونو والا دے او هغه زمکه چه غټو لارو والا ده او هغه دریابونه چه چپو والا دي دا به څنګه دلالت نهٔ کوي په هغه لطیف او خبیر ذات باندے ؟).

(۳) اَلْمَعَاصِيْ وَالطَّاعَاتُ : (دا د الله تعالیٰ د وجود نخه څکه ده چه په عصیان سره عذاب او تکلیف راځي او په طاعاتو کولو سره راحتونه او نعمتونه ملاویږي. نو په دنیا کښې چه انسان په تکلیف شي نو دۀ ته پته اُولګیږي چه دا د معصیت په وجه نو دلیل دے چه الله تعالیٰ شته څکه په ګناه عذاب ورکوي او په طاعت نعمت ورکوي).

(٤) اِسْتِجَابَةُ الدَّعَوَاتُ : (د بندګانو دعاګانے په سخت وقت کښې قبلولے شي، دا څوك قبلوي معلومیږي چه ددے نه روستو یو طاقت دے چه هغه سمیع قریب مجیب الداعین دے.

(٥) اِهْلَاكُ الْأُمَمِ الْمُكَذِّبَةِ ذَوِى الْقُدْرَةِ وَاِنْجَاءُ الْمُؤْمِنِيْنَ الضُّعَفَآءِ) (کمزوري، بے اسبابو خلقو چه کله د رسولانو خبره منلے ده هغوي له الله تعالیٰ نجات ورکړیدے او کومو قومونو چه تکذیب کړیدے، سره د سخت قوت او طاقت نه الله تعالیٰ هلاك کړیدي لکه فرعون، عاد او ثمود. دا چا هلاك کړل ؟ آیا د دوي سره وسائل او اسباب د نجات نه وو؟.

(٦) وُجُوْدُ الرُّوْحِ : (په بدن کښې چه کله روح وي نو طاقت پکښې وي او کله چه ترے اُوځي نو بے حس او بے حرکته شي) دے له دا طاقت څوك ورکوي؟

(۷) اَلْقُرْآنُ الْكَرِيْمُ. دا هم د (۲۵) وجونه د الله تعالیٰ د وجود او معرفت عظیم دلیل دے چه د هغے تفصیل په الفوائد في تزکیة النفوس (۲) کښې اُوګورئ.

(۸) (وُجُوْدُ الْكَعْبَةِ) (د کعبے وجود هم د (۱۲) وجونه د الله تعالیٰ د وجود دلیل دے)

(۹) (وُجُوْدُ الْجِنَّاتِ) (د جنـاتو وجود هم د الله تعالیٰ د وجود دلیل دے چه دا هم یو موجود مخلوق دے او مونږ ته نهٔ ښکاري، نو دغه شان الله تعالیٰ هم موجود ذات دے اګرکه مونږ

ته په سترګو نهٔ ښکاري۔

(۱۰) (مُعْجِزَاتُ الرَّسُوْلِ ﷺ) (د رسول الله ﷺ معجزات په دوه خبرو دلالت کوي ۱- د الله تعالیٰ په عظمت، قدرت او علم باندې۔ ۲- او د رسول الله ﷺ په رسالت باندې۔ که دا معجزات د رسول الله ﷺ ذاتي کمال وې نو نورو خلقو به هم د هغې مقابله کړې وې او هغوی به خلقو ته خودلې وې۔

(۱۱) مَحَاسِنُ الدِّيْنِ الْإِسْلَامِيِّ :(د دین اسلامي خوبیانې هم د الله تعالیٰ د وجود دلائل دي، که ته د دین اسلام په محاسن، کمالات او جمال باندې غور اُوکړې نو تا ته به معلومه شي چه څنګه پدې دین کښې هر شي ته خپل مناسب ځائې ورکړې شوېدې دا دلیل دې چه دا دین د الله تعالیٰ غالب او حکمتونو والا ذات د طرف نه دې۔

(۱۲) عَدَمُ اَكْلِ الْاَرْضِ اَجْسَادَ الْاَنْبِيَآءِ) (زمکه د انبیاء کرام او د شهداء او صالحینو بدنونه نهٔ خوري حال دا چه د ټولو انسانانو بدنونه یو شان دي او د زمکې طبیعت هم یو دې نو دا هم د الله تعالیٰ په عظیم قدرت باندې یو دلیل دې۔ باقي دلائل په الفوائد في تزکیة النفوس کښې اُوګوره۔

که خارجي دلائلو ته اُونهٔ کتلې شي بلکه قرآني دلائلو کښې سوچ اُوکړې شي نو دا هم کافي دلائل دي د الله تعالیٰ د معرفت او د هغه د وجود۔

**جَعَلَ** : ۱- جَعَلَ کله په معنیٰ د صَيَّرَ (ګرځولو) سره وي لکه دې آیت کښې څکه متعدي دې دوه مفعولو ته او کله په معنیٰ د سَمّٰى (نوم کېخودلو او ورکولو) سره وي لکه (اِنَّا جَعَلْنَاهُ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا) (الزخرف :۳) (اَیْ سَمَّيْنَاهُ)

۲- او کله په معنیٰ د خَلَقَ (پیدائش) وي لکه (مَا جَعَلَ اللّٰهُ مِنْ بَحِيْرَةٍ) (المائدة :۱۰۳) (وَجَعَلَ الظُّلُمَاتِ وَالنُّوْرَ) (الانعام:۱) ۔۳- کله په معنیٰ د اخذ راځي او کله زائده راځي لیکن هغه په قرآن کښې ندې استعمال۔ (القرطبي)

**الارض** : زمکه الله تعالیٰ ډیرو لاکهونو کاله مخکښې پیدا کړیده۔

(لَكُمْ) زمکه سره د نورو فوائدو نه الله تعالیٰ د انسان دپاره پیدا کړیده۔ ددهٔ نیک عمل الله تعالیٰ ته ډیر خوښ دې او ددهٔ بد عمل ورته ډیر بد ښکاري۔ د بنده اعمالو ته الله تعالیٰ اهتمام ورکړیدې۔ څکه ټول عالَم د انسان دپاره پیدا دې او انسان د الله تعالیٰ بندګۍ دپاره۔

**فِرَاشًا** : (بستره) فراش دیته وائي : (بَيْنَ اللُّيُوْنَةِ وَالصُّعُوْبَةِ) (په مابین د نرموالي او سخت

والی کښې ده) یعنې داسې همواره ده چه نه نرمه ده، (چه خلق په کښې خخیږی، ډوبیږی) نهٔ داسې سخته ده چه څه کښتل پکښې ګران وی۔ تهول غرونه نهٔ دی، بلکه فائده ترې اخستلې کیږی۔ کورونه آبادیانې پکښې جوړیږی، کرونده پکښې کیږی، د یو ځائې نه بل ځائې ته پکښې انتقال کیږی۔

آسمان ئې درله چت ګرځولې دې په ډیر ښائسته انداز، څومره ښائسته رنګ ئې دې چه د انسان زړه پکښې نهٔ تنګیږی او بیا ددې آسمان نه څومره فائدې نازلوی۔

**بناء** : اَیْ سَقْفاً (چت)۔

دې ځائې پورې خو خیمه تیاره شوه چه آسمان چت او زمکه فرش۔ نو اوس خوراك ته ضرورت دې هغه بیانوی۔ وانزل الخ۔

**مَاءً** : د اوبو په وجه دنیا کښې مخلوقات ژوندی دی، او دې ته د مخلوق ډیر ضرورت دې۔

**فائده** : اوبه ئې مقدم ذکر کړې د ثمراتو نه ځکه چه اوبه سبب دې د ثمراتو او سبب مقدم وی (۲) دارنګه اوبو ته ضرورت زیات دې نو د هغې اهتمام زیات دې۔ که اوبه کمې وې، نو انسانان به د بدبویانو نه مړهٔ شي، او فصلونه او میوه جات به کم شي، حیوانات به قتل شي۔ او کوم شي ته چه ضرورت زیات وی نو هغه الله تعالیٰ فراخه کړی وی لکه کلمه د توحید ته ضرورت زیات دې نو الله تعالیٰ آسانه کړیده۔ او هواء او اوبه ئې هم فراخه کړیدی په آسانئ ملاویږی۔

**فَاَخْرَجَ بِهٖ** : الله تعالیٰ بغیر د اوبو نه هم د زمکې نه فصلونه راویستې شي لیکن الله تعالیٰ د هر شي دپاره سبب مقرر کړیدې پدې کښې د الله تعالیٰ عجیب حکمتونه دی۔

مِنَ الثَّمَرٰتِ :

## د ثمرات مصداقات

ثمرات ماده په قرآن کریم کښې (۲۶) کرته راغلې ده او په مختلفو معانئیو استعمال دې۔

۱- فواکه (میوه جات) لکه (وَمِنْ ثَمَرٰتِ النَّخِیْلِ وَالْاَعْنَابِ) (النحل : ۶۷) (واحیط بثمره) (الکهف : ۴۲)

۲- اولاد : لکه (وَنَقْصٍ مِّنَ الْاَمْوَالِ وَالْاَنْفُسِ وَالثَّمَرٰتِ) (البقره : ۱۵۵) علی تفسیر۔

دارنګه حدیث کښې دی : (قَبَضْتُمْ ثَمَرَةَ فُؤَادِهٖ) (الحدیث)

(ملائکو ته فرمائی : تاسو زما د بنده د زړه میوه واخسته)۔

۳- کُلُّ مَا خَرَجَ مِنَ الْاَرْضِ : (هر شي چه د زمکې نه راوځي یعنې آمدنئ د زمکې ته

وائی۔ (وَأُحِيطَ بِثَمَرِهِ) (کهف : ٤٢)
او دلته د ثمرات نه همدا عامه معنیٰ مراد ده یعنی آمدنئ د زمکے، غنم، جوار، وریشے او نور میوه جات ټول په کښې داخل دی۔ (قرطبي)
رِزْقًا : رزق په معنیٰ د مرزوق (ورکړے شوی شی) دے یعنی خوراك۔
او علماء کرامٓ فرمائی په رزق کښې لباس هم داخل دے ځکه دا لباسونه هم ددے بوټو وغیره نه جوړیږی، او بوټی په اُوبو سره کیږی۔
**د آیت مطلب** : الله تعالیٰ فرمائی : ما د نشت نه شته کړئ، دنیا ته مے راوستئ او زما په زمکه اُوسیږئ، زما د آسمان نه لاندے ورځے او شپے تیروئ، او زما اُوبه څکئ او زما دوډئ خورئ، او لباسونه مے درکړیدی، د الله تعالیٰ خیمه کښې اُوسیږئ او عبادت د غیر الله کوئ، او الله تعالیٰ د سره نهٔ پیژنئ، خپل خالق هم اُونهٔ پیژندلو دا څومره بده خبره ده۔ او څومره لویه ناشکری ده۔ هغه درله د ژوند اسباب برابر کړیدی او ژوندی مو هغه ساتی او عبادت د بل کوئ۔ کله یو دربار ته سر ځکته کوئ او کله د بل دربار ته۔ او کله یو بابا او بت ته سجده او کله بل ته۔ دا څومره بے انصافی او ظلم او جهالت دے۔ او دا ټول شرکونه د جهالت نه پیدا شوی دی پدے وجه الله تعالیٰ مونږ ته په قرآن کریم کښې علم راکوی نو ځکه پرے اُوس تفریع د رد الشرك کوی :
(**فَلَا تَجْعَلُوا لِلّٰهِ**) دا تفریع ده په ماسبق باندے یعنی (اِذَا كَانَ الْاَمْرُ كَذٰلِكَ اَيِ النِّعَمُ كُلُّهَا مِنَ اللّٰهِ) (یعنی هر کله چه دا ټول نعمتونه د الله تعالیٰ د طرف نه دی نو ددے ټولو نعمتونو تقاضا دا ده چه تاسو د الله تعالیٰ سره نور شریکان مهٔ جوړوئ چه هغه ستاسو په شان مخلوق دے او د آسمان او د زمکے ترمینځ د یو یے ذرّے هم مالك نهٔ دی۔
(جعل دلته په معنیٰ د عقیدے دے نو د فلا تجعلوا معنیٰ ده : فَلَا تَعْتَقِدُوا لِلّٰهِ اَنْدَادًا) د الله تعالیٰ دپاره د شریکانو عقیده مهٔ ساتئ، هغه سره هیڅوك شریك نشته۔
(**اَنْدَادًا**) دا لفظ قرآن کریم کښې (٦) کرته راغلے دے، جمع د ند ده (اَلْمِثْلُ الْمُنَاوِئُ) ته وئیلے شی (یعنی د یو شی مشابه ته وائی چه د یو بل مقابله کوی لکه دوه مجاهدین او دوه فوجیان د یو بل ند دی۔ یو بل سره مقابله کولے شی۔
نو پدے باندے **سوال** دا دے چه مشرکانو خو خپل معبودان د الله تعالیٰ سره مقابله کونکی شریکان نهٔ جوړول بلکه د الله تعالیٰ نه یے لاندے گڼړل، داسے انسانان خو ډیر کم تیر

شویدی چه هغوی دوه خالقان گنړي، عام مشرکانو خو معبودان خکته گنړلی دی ؟
**جواب** : کوم انسان چه د الله تعالیٰ یو صفت مخلوق له ورکړو (فَقَدْ جَعَلَهُ لِلّٰهِ نِدًّا) (نو دهٔ دغه انسان د الله تعالیٰ دپاره مقابل او ند اُوگرځولو) لکه حافظ ابن قیم رحمه الله فرمایلی دی : چه دوی دا شریکان د الله تعالیٰ جوړ کړی وو په دوه څیزونو کښې (فِي الْمَحَبَّةِ وَالتَّعْظِيْمِ) (یو په محبت کښې او بل په تعظیم کښې) چه د اُلوهیت محبت ئې غیر الله ته ورکړے وو او دهغوی تعظیم ئې داسے کولو لکه څنګه چه د الله تعالیٰ کولے شي۔ هغوی ته به ئې سجدے لګولے او سرونه به ئې خکته کول نو دا صفت د الله تعالیٰ پورے خاص دے او دوی خپلو معبودانو ته ورکړے وو نو خکه انداد شو۔ لکه پدے سورة (۱٦۵) آیت کښې به راشي : (وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّتَّخِذُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ أَنْدَادًا)
(هلته به د محبت تشریح اُوشي چه کوم محبت شرك دے او کوم جائز او کوم لازم دے)۔
او په احادیثو کښې ددے ډیر مثالونه دی چه چا یو صفت غیر الله ته ورکړو نو هغے ته ند وئیلے شویدے۔ لکه (مَا شَاءَ اللّٰهُ وَشِئْتَ) ددے وینا نه رسول الله ﷺ یو سړے منع کړو او دا ئې ورته اُوفرمایل : (أَجَعَلْتَنِيْ لِلّٰهِ نِدًّا، قُلْ : مَا شَاءَ اللّٰهُ وَحْدَهُ) (احمد وصحیح ابن خزیمة)
آیا تا زهٔ د الله تعالیٰ سره ند (شریك) اُوگرځولم ، داسے وایه ! څه چه الله تعالیٰ غواړي هغه به کیږي)۔ او بل روایت کښې دی داسے وایه : (مَا شَاءَ اللّٰهُ ثُمَّ شَاءَ فُلَانٌ)
(څه چه الله غواړي او بیا فلانے) یعني (بیا) لفظ پکښې استعمالوه۔
او دا منع پدے وجه اُوشوه چه دلته د بنده د الله تعالیٰ سره په مشیئت کښې شرکت راځي۔
(۲) ابن ابی حاتم د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړیدی چه انداد دا هم دی چه ته داسے اُووائې : (وَاللّٰهِ وَحَيَاتِكَ يَا فُلَانُ وَحَيَاتِيْ) (قسم په الله تعالیٰ او ستا او زما په ژوند) دارنګه داسے اُووائې : (لَوْ لَا كَلْبَةُ هٰذَا لَأَتَانَا اللُّصُوْصُ) (که ددهٔ سپے نهٔ وے نو مونږ ته به غلان راغلی وے) یا داسے اُووائې : لَوْ لَا اللّٰهُ وَفُلَانٌ)(که الله تعالیٰ او فلانے نهٔ وے) نو داسے کار به شوے وے۔ یا داسے اُووائې : چه درياب چپو اخستے وی او بیا ئې الله تعالیٰ خلاص کړی او دا وائي (كَانَ الْمَلَّاحُ حَاذِقًا) (کشتیبان ډیر هوښیار وو) دارنګه (مَاشَاءَ اللّٰهُ وَشِئْتَ) کلمات شو دا ټول شرك دے۔ انتهیٰ۔ (تفسیر فتح القدیر ۱/ ۸۰)
(۳) دارنګه حدیث د بخاری کښې دی چه کله باران اُوشي نو بعض بندګان کافران شی او بعض مؤمنان۔ که څوك اُووائي : مُطِرْنَا بِفَضْلِ اللّٰهِ وَرَحْمَتِهٖ) (متفق علیه) ـ (مونږ باندے د

الله تعالیٰ په فضل او رحمت سره باران اُوشو نو دا په ما مؤمن دے او په ستورو کافر دے۔ او که څوك اُووائی : (مُطِرْنَا بِنَوْءِ كَذَا) (مونږ باندے د فلانی ستوری د پریوتو په وجه باران اُوشو) نو دا په ما باندے کافر دے او په ستوری مؤمن دے۔ نو ګوره غیر الله ته د باران او د کارونو نسبت ته ئے هم شرك او کفر وئیلے دے۔

صحیحینو کښ د عبد الله بن مسعود ﷺ روایت دے چه ما اُووئیل یارسول الله ! ﷺ (أَيُّ الذَّنْبِ أَعْظَمُ ؟ قَالَ :أَنْ تَدْعُوَ لِلَّهِ نِدًّا وَهُوَ خَلَقَكَ) د ټولو نه غټه ګناه کومه یوه ده ؟ نبی ﷺ اُوفرمایل : چه د الله تعالیٰ سره شریك جوړ کړے په داسے حال کښ چه ته ئے پیدا کړے ئے۔ الحدیث۔

(۲) خطیب شربینیؒ لیکی : دلته د انداد نه مراد مطلق شریکان دی، برابره ده چه د الله سره ئے برابر ګنړی او که د الله تعالیٰ نه ئے خکته ګنړی۔

بیا دا انداد عام دی یواځے بتانو ته نهٔ دی شامل، لکه بعض خلق وائی دا آیتونه د بتانو په باره کښ دی۔ ملاعلی القاریؒ په شرح فقه اکبر کښ لیکی :(سَوَاءٌ كَانَ مِنَ الْأَصْنَامِ أَوْ مِنَ الْأَنَامِ) که د بتانو نه وی او که د انسانانو نه وی، او که د ملائکو نه وی۔ دا ټول به د الله تعالیٰ سره نهٔ شریکوئ۔ که ژوندے مخلوق وی، او که مړے وی، بلکه قرآن کریم کښ الله تعالیٰ د پیغمبرانو شریکولو باندے هم په مشرکانو رد کړیدے۔ او دا اتفاقی مسئلے دی۔ د هیڅ مسلمان پدے کښ اختلاف نشته۔ سویٰ د بعض جهالو نه۔ دارنګه د مخکښ دلائلو نه هم معلومه شوه چه د ند اطلاق په انبیاء علیهم السلام هم کیږی۔

ددے وجه نه کامل توحید دا دے چه انسان په ظاهری اسبابو هم توکل اُونکړی اګرکه ظاهری اسباب به استعمالوی، لیکن اعتماد به په الله تعالیٰ کوی، پیسے دِے جیب کښ واچوی، ډاکټر له دِے لاړ شی، دوائی دِے استعمال کړی، وسله دِے ځانله تیاره کړی لیکن په هغے به یقین نهٔ کوی بلکه یقین به په الله تعالیٰ کوی۔ پدے وخت کښ د اسبابو نه ارباب جوړ شویدی، که دا سبب نهٔ وی نو بس ذهن ئے بالکل کار نهٔ ورکوی او دا وائی که دا سبب نهٔ وی نو څه به کوم ؟ څه به خورم، زه خو به غرق یم، که دکان یا ډیوټی نهٔ وی نو ژوند به مے ختم وی دا ټول دے توکل او ناقص توحید والو خبرے دی، او پدے کښ هم شائبه د شرك ده۔

**(وَأَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ)** ددے یوه معنیٰ ده : (۱) وَأَنْتُمْ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ) نو دلته مفعول متروك شویدے۔ (یعنی تاسو د علم والا یئ او ځان ته پوهه وایئ۔ او دا د علم تقاضا ده چه انسان به د الله تعالیٰ بندګی کوی او د هغه سره به شریکان نهٔ جوړوی۔ یعنی تاسو له خو الله

تعالیٰ علم درکړیدے۔ د علم خاوندان يئ، نو پدے علم به تاسو څه کوئ، علم باندے به صرف خوارکونه کوئ او که نه علم خو دے دپاره دے چه الله تعالیٰ پرے اُوپیژنئ، او د مخلوق اندازه او مرتبه اُوپیژنئ،کوم علم باندے چه الله تعالیٰ اُونهٔ پیژندے شی هغه علم نهٔ دے۔ هغه هسے کسب دے۔

(۲) یا مفعول مقدر دے(وَأَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ بِأَنَّهُ لَانِدَّ لَهُ) (یعنی تاسو پو هیږئ چه د الله تعالیٰ شریك او مثل نشته)۔ د هغه پشان رازق او خالق او مالك نشته۔

(۳) یا مفعول محذوف دے وَأَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ التَّفَاوُتَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْأَنْدَادِ)

یعنی تاسو پدے پو هیږئ چه د الله تعالیٰ او ددے شریکانو په مابین کښی څو مره تفاوت او فرق دے۔ الله څو مره لوئی دے او مخلوق څو مره کمزورے دے۔ نو ولے تاسو کمزورو پسے لګیا شوی یئ۔

(٤) - یا (وَأَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ أَنَّ الْأَنْدَادَ لَمْ يَخْلُقُوْكُمْ، وَلَمْ يَجْعَلُوا الْأَرْضَ فِرَاشًا وَلَا السَّمَاءَ بِنَاءً وَلَا أُخْرَجُوا لَكُمْ نَبَاتًا) (زبدة التفسیر)

(یعنی تاسو پدے پو هیږئ چه تاسو شریکانو نهٔ يئ پیدا کړی او نهٔ يئ زمکه فرش او آسمان چهت جوړکړیدے او نهٔ يئ د زمکے نه څه ګیاه راویستلے ده)۔

**فائده** : امام قرطبیؒ او ابن عادل الدمشقیؒ لیکی : (وَفِيْ هٰذَا دَلِيْلٌ عَلَى الْأَمْرِ بِاسْتِعْمَالِ حُجَجِ الْعُقُوْلِ وَإِبْطَالِ التَّقْلِيْدِ) (القرطبی واللباب وایسر التفاسیر)۔

دا آیت دلیل دے چه دلائل عقلیه استعمالول ضروری دی او تقلید کول باطل دی۔ ځکه چه الله تعالیٰ حکم کړیدے په تدبر د قرآن۔

**سوال** : مخکښ اُووئیل شو چه دا مهرزده ګمراه جاهلان دی او دلته ورته د علم نسبت کوی ؟ **جواب** : دلته خاص علم مراد دے چه الله تعالیٰ خالقیة پیژندل دی او مخکښ علم د هدایت مراد دے۔

مخکښ د الله معرفت (توحید ربوبیت) او رد د شرك اُوشو، (د غیر الله د عبادت نه انکار چه د الله تعالیٰ سره به برخه داران نهٔ جوړو)۔ او دا لله په عبادت حکم اُوشو۔ (توحید الوهیت)، دا د قرآن کریم د بلاغت کمال دے چه یوه خبره شروع کړی مینځ کښ ډیرے مهمے فائده منے مسئلے راوباسی لکه ددے نظائر به ډیر راشی ان شاء الله تعالیٰ۔

نو اُوس د رسول الله ﷺ او د قرآن حقانیت بیانوی :

وَإِنْ كُنْتُمْ فِي رَيْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلَىٰ عَبْدِنَا فَأْتُوا بِسُورَةٍ

او که چرته تاسو په شك کښې يئ د هغه کتاب نه چه موږ رالیږلے دے په بنده خپل، نو راوړئ يو سورت

مِّنْ مِّثْلِهِ وَادْعُوا شُهَدَاءَكُمْ مِّنْ دُونِ اللَّهِ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ﴿۲۳﴾

په شان دده قرآن او راوغواړئ مددګاران (معبودان) خپل سوا د الله تعالیٰ نه که چرته يئ تاسو رشتینی۔

**تفسیر :**

**عنوان الآیة** : (۱) بَيَانُ صِدْقِ الْقُرْآنِ وَ الرَّسُوْلِ ۔ (د قرآن کریم او د رسول الله ﷺ د رشتین والي بيان دے) (۲) دويم : (بَيَانُ تَحَدِّي الْكُفَّارِ بِالْقُرْآنِ) (د كافرانو تحدی او مقابله كوی په قرآن سره) چه پدے قرآن ایمان راوړئ ورنه که ایمان نۀ راوړئ نو مقابله ئے اُوکړئ۔

او پدے آیت کښې اعجاز القرآن هم دے۔

**ربط** : مخکښې د الله تعالیٰ معرفت ذکر شو په دلائلو سره، او د هغه د تعلق سبب ئے بيان کړو چه هغه عبادت دے نو اُوس پدے آیت کښې په قرآن کریم او رسول باندے د ایمان تذکره کوی چه په قرآن او رسول باندے ایمان راوړئ ځکه چه ددے مقابله څوك نشی كولے او دا رسول اُومنئ ځکه چه دا رسول هم دغه الله تعالیٰ رالیږلے دے۔ او د توحید او رسالت د یو بل سره مناسبت دے۔ پوره مؤمن به هله جوړیږی چه توحید او رسالت او قرآن باندے یقین اُوکړی۔

۲- بَيَانُ الْعَقَائِدِ : مخکښې هم د عقیدے مسئله وه چه توحید وو، اُوس هم د عقیدے مسئله ده چه هغه ایمان بالقرآن والرسول دے۔

۳- مخکښې عبادات وو، اُوس صدق د مُعلم العبادات بیانوی چه هغه رسول الله ﷺ دے۔ ځکه د عبادتونو تشریحات هغه بیان کړیدی او عبادت د هغه د طریقے نه سوئ قبول نۀ دے۔

او د توحید سره ئے مناسبت دا دے چه ددے کتاب د مقابلے نه خلق ولے عاجز دی ؟ ځکه چه دا کتاب دغه عظیم ذات او عظیم صفاتو والا رالیږلے دے، او د لوئی ذات مقابله څوك نشی كولے نو د هغه د کتاب مقابله هم څوك نشی كولے۔

۴- مناسبت : د موضوع د سورت سره دا دے چه دا کتاب (هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ وَمُزِيْلُ اِرْتِيَابِ الْمُرْتَابِيْنَ) دے (یعنی دا کتاب هدایت دے متقیانو لره او د شك كونكو شكونه ختموی)۔

او مقصد د آیت دا دے چه که تاسو ددے قرآن په باره کښې د الله تعالیٰ د طرفنه کیدو او ددے نبی د حق کیدو نه په شك کښې یئ نو راشئ ددے مقابله اُوکړئ دا خو ستاسو په شان انسان دے نو تاسو ددے په شان کتاب راوړئ په فصاحت، بلاغت، کمال، هدایت او رشتینوالی کښې او پدے کښې چه کوم علوم او اخبارِ صادقه پراته دی، او بیا ددے سره تاسو چه د چا عبادت کوئ هغه ټولو ته آواز اُوکړئ. باباګانو نه مدد اُوغواړئ. دا به ستاسو کله پکار راځی، یا شهداء نه مراد علماء دی یعنی علماؤ نه هم مدد اوغواړئ. یا داسے خلق راوغواړئ چه هغه تاسو دپاره ګواهی اُوکړی چه آؤ دا تاسو چه کوم څیز راوړو دا د قرآن کریم مثل دے. (زبده) او که چرته تاسو ددے قرآن په شان کتاب یا یو سورت نشئ راوړئ (لکه تاریخ ګواه دے چه څوارلس سوه دیرش کاله اُوشو او هیچا دا چیلنج قبول نهٔ کړے شو) نو دا ښکاره ښه او واضحه دلیل دے ددے خبرے چه زما رسول رشتینی دے او هغه کتاب رشتینی دے کوم چه ما په دهٔ باندے نازل کړیدے او هرکله چه تاسو عاجز شوئ نو تاسو له پکار دی چه ددے اتباع اُوکړئ او ځان د اُور نه بچ کړئ.

## توضیح الکلمات :

إِنْ كُنتُمْ : دے ته خطاب التعجیز (د خلقو عاجز کولو) وئیلے شی.

دلته بیا **سوال** دے چه ان خو د شك دپاره راځی او مشرکان خو یقیناً په شك کښې وو؟ نو څنګه ان لفظ استعمالوی؟ **الجواب** : ریب د دوی نازل شویدے په منزله د عدم ریب. څکه دلائل موجود دی ددے په حقانیت باندے چه هغه د دوی ریب زائله کوی. او تفصیل ئے د سورت په اول سر کښې تیر شویدے.

د ریب معنیٰ مخکښې تیره شویده امام راغبؒ فرمائی : (وَالرَّيْبُ أَنْ تَتَوَهَّمَ بِالشَّيْءِ أَمْرًا مَّا فَيَنْكَشِفُ عَمَّا تَتَوَهَّمُهُ) . (ریب دیته وئیلے شی چه ته په یو شی باندے یو قسم ګمان اُوکړے لیکن ستا د ګمان نه علاوه خبره بل شان ښکاره شی).

مِمَّا : کښې د (ما) نه مراد قرآن کریم دے، نهٔ احادیث څکه چه احادیث معجز نهٔ دی.

نَزَّلْنَا : نزلنا د باب تفعیل نه دے، لږ لږ نازلولو ته وئیلے شی، او دے دپاره انزل (په یو ځل نازلول) هم استعمال شویدے، څکه چه قرآن کریم اول لوح محفوظ نه آسمان د دنیا ته په یو ځل نازل دے او بیا زمکے ته د حالاتو مطابق لږ لږ نازل شویدے. په دے خبره دلیل به په

دويمه پاره آيت (شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِيْ) كښې راشي ان شاء الله تعالىٰ۔

(عَبْدِنَا) په اتفاق د مسلمانانو سره ددې نه مراد رسول الله ﷺ دے۔ عبوديت اشرفه مرتبه ده ځکه ئې پدې مقام د تحدي كښې ذكر كړو، او په رسول الله ﷺ كښې د ټولو نه رومبې صفت همدا وو، ځكه چه هغه د الله تعالىٰ د عبوديت حق داسې طريقې سره ادا كړو چه د بل چا نه ئې تصور نشي كيدے۔

**فائده** : الله تعالىٰ رسول انسان راليږلے دے ځكه كه ملائك وے نو بيا به انسانان د هغه په خبره پوره نۀ پوهيدلے ځكه چه يو جنس خپل جنس ښه پوهه كولے شي۔

(۲) دے دپاره چه د هغوى په اتباع كښې د چا عذر پاتے نشي چه دا خو خوراك څكاك نۀ كوى او مونږ خو ښځه او بچي او خيته او دكان لرو۔

**بِسُوْرَة** : سورة : (قِطْعَةٌ مِنَ الْقُرْآنِ لَهَا أَوَّلٌ وَآخِرٌ وَأَقَلُّهَا ثَلَاثُ آيَاتٍ) (يوه حصه د قرآن ده چه اول او آخر لرى او كمه درجه ئې درے آيتونه دى) ماخوذ دے د سور البلد نه ديوال ته وئيلے شي چه د ښار نه چاپير وى؛ نو په سورة كښې آيتونو ځه احكام راګير كړى وى۔

(۲) بعض وائي: د سورة اُوچتوالي معنىٰ ده۔ لكه تَسَوَّرَ (يعني ديوال باندے اُوختلو) نو سورة ته ځكه سورة وائي : (قِطْعَةٌ عَالِيَةُ الْمَضْمُوْنِ) ځكه چه دا يوه ټكړه ده چه اُوچت مضمون والا وى) (۳) يا په معنى د تمام او كمال سره راځي لكه عرب چاقے (ځرېے) اُوښے ته سورة وائي۔ (٤) يا په معنى د قِطْعَةٌ مِنَ الْقُرْآنِ عَلَيحِدَةٌ سره (قرطبي ۱/٦٥) (٥) قِطْعَةٌ مُفْرَدَةٌ مِنْ جُمْلَةِ الْقُرْآنِ) (مفردات راغب) (د مجموعه قرآن نه يوه جدا حصه ده)

په سورت كښې آيتونه وى۔ آية (۱) په معنىٰ د (العلامة الظاهره) ظاهرى نخے سره۔

(۲) عبرت۔ (۳) برهان او دليل۔ (٤) او معجزے ته وئيلے شي۔

او آية ته آيت ځكه وائي چه دا د پيغمبر د رسالت او د الله تعالىٰ د قدرت نخه وى۔

او آية اصطلاحاً : (مَا لَهَا أَوَّلٌ وَآخِرٌ وَأَقَلُّهَا كَلِمَتَانِ)(چه اول او آخر لرى او اقل ئې دوه كلمے وى)۔ (٥) او آية كله جماعت ته وئيلے شي دا هم جماعة د حروفو وى۔

(٦) آية كله اَلْبِنَاء الْعَالِي (اُوچتے آبادئ) ته وئيلے شي۔ لكه (أَتَبْنُوْنَ بِكُلِّ رِيْعٍ آيَةً) (الشعراء : ۱۲۸)۔ (كُلُّ جُمْلَةٍ مِنَ الْقُرْآنِ دَالَّةٍ عَلٰى حُكْمِ آيَةٍ) ۔(هره حصه د قرآن كريم چه په جدا حكم دلالت كوى ديته آيت وئيلے شي) (مفردات راغب كتاب الالف ص ٦١)۔

**مثله** : كښې ضمير قرآن كريم ته راجع دے او د مثليت معنىٰ ده : (مِثْلِهٖ فِي الْفَصَاحَةِ

وَالْبَلَاغَةِ وَالْبَيَانِ، وَالصِّدْقِ، وَاِخْبَارِهِ بِالْمَغِيْبَاتِ وَالدَّلِيْلِ) (د قرآن په شان وی په فصاحت، بلاغت او وضاحت کولو کښې او په رشتینوالی کښې او د غیبو په خبرونو ورکولو کښې او په دلیل بیانولو کښې) چه یو موضوع راونیسی نو پوره دلائلو سره ئے ثابتوی۔

## د قرآن کریم د اعجاز وجوهات :

(۱) اِنَّهٗ خَارِجٌ عَنْ طَوْقِ الْبَشَرِ، لِمَا فِيْهِ مِنَ الْبَلَاغَةِ (دا د انسانانو د طاقت نه بهر دے، ځکه پدے کښې بلاغت پروت دے (۲) وَلِمَا فِيْهِ مِنَ الْعُلُوْمِ) (او پدے کښې ناشنا علوم دی) چه انسانانو سائنس او ټیکنالوجی د قرآن کریم نه راویستلے ده۔ (۳) وَلِمَا فِيْهِ مِنَ الْاَخْبَارَاتِ الصَّادِقَةِ)۔(رشتینی خبرونه پکښې دی چه هغه تر اُوسه پورے چا غلط نهٔ دی ثابت کړی)

(٤) وَلِاَنَّهٗ مِنْ رَجُلٍ اُمِّيٍّ) ۔(دا امی شخص راوړیدے، عالِم نهٔ دے راوړے چه د خلقو شك پکښې پیدا شی۔ او عربو ته معلومه وه چه رسول الله ﷺ بهر ملك ته ندے تلے نهٔ مدرسه وه نهٔ سکول او حروف هجاء ورته نهٔ وو معلوم بیانے داسے کلام راوړو چه دوست او دوشمن د هغے د مقابلے نه عاجز شو نو دا دلیل دے چه دا د الله تعالیٰ کلام دے۔

(٥) وَلِمَا اَنَّهٗ لَايُمَجُّهُ السَّمْعُ مَعَ تَكْرَارِهٖ)(په غوږ باندے بد نهٔ لګی سره ددے نه چه بار بار لوستے شی) بلکه که دا په صحیح لهجه اُوئیلے شی نو هر سلیم الطبع انسان له مزه ورکوی او زړه کښې روښنوالے پیدا کوی۔

(٦) وَلِمَا اَنَّ كَلِمَاتِهٖ فِيْ مَوْضِعِهَا)

(هره کلمه ئے په خپل خپل ځائے کښې ده) او دا هله کیږی چه د شخص سره علم پوره وی۔ او دا د الله تعالیٰ نه ماسویٰ هیچا دپاره ممکن نهٔ ده۔

ددے وجه نه په ټول عالم کښې هیچا د قرآن کریم مقابله نهٔ ده کړے۔

یوه واقعه کښې راځی چه یو انسان اراده کړے وه او کور ته ننوتے وو چه د قرآن کریم مقابله اُوکړی نو ډیرے ورځے ئے لیکل اُوکړل لیکن بیرته به ئے ورانول، هغه به ورته ښه نهٔ ښکاره کیدل، نو قادر نشو۔بلکه کال پس ئے یو عبارت تیار کړو په خپل ګمان د قرآن په شان چه بهر را اُووتلو نو دا آیت ئے واوریدو (وَقِيْلَ يَا اَرْضُ ابْلَعِيْ مَاءَكِ الخ (سورة هود :٤٤)۔ نو خپل کاغذ ئے اُوشکولو او دا ئے اُووئیل چه د قرآن مقابله څوك نشی کولے۔ نوم ئے عبد الله بن المقفع وو۔ (انظر قضية الاعجاز القرآنی)۔

او چا چه خپله وسعه کړیده او د مقابلې کوشش ئې کړیدے نو هغوی داسې کلام راوړیدے چه هغې پورې خندا کیدے شي، تول د خوراکونو او ښځو خبرو پکښې دي او بعض هسې مهمل کلام دے چه هیڅ معنویت نهٔ لري. لکه مسیلمة الکذاب داسې وئیلي وو: [وَالْعَاجِنَاتِ عَجْنًا وَالْخَابِزَاتِ خُبْزًا، وَاللَّاقِمَاتُ لُقْمًا، اِهَالَةً وَسَمْنًا، اِنَّ قُرَيْشًا قَوْمٌ يَعْتَدُوْنَ] دارنګه (اَلْفِيلُ وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْفِيلُ لَهُ زَلْقُوْمٌ (اَیْ خُرْطُوْمٌ) طَوِيْلٌ) دارنګه: (يَا ضِفْدَعُ بِنْتَ الضِّفْدَعَيْنِ، نَقِّيْ كَمَا تُنَقِّيْنَ، لَا الْمَاءَ تُكَدِّرِيْنَ وَلَا الشَّارِبَ تَمْنَعِيْنَ) (ابن کثیر/ سورة یونس)

دا د مسیلمه قرآن وو چه تول د ماشومانو د خندا لائق کلمات دي.

په مکه کښې د بیت الله پورې انا اعطیناك الکوثر جمله لیکلې زوړنده شوې وه نو یو مشرك راغلو او د هغې سره ئې خوا کښې اُولیکل. (مَا هٰذَا قَوْلُ الْبَشَرِ) (دا د انسان خبرې نهٔ دي)

خو مونږ ته ددې پته څکه نهٔ لګي چه زمونږ د عربیت سلیقه او مهارت نشته او د فصاحت او بلاغت مراتب نهٔ دي معلوم. مونږ ته عامه عربي او قرآن یو شان ښکاري.

(۲) پدې کښې دویم قول دا دے چه مثله ضمیر راجع دے عبدنا ته خو دا غوره نهٔ دے څکه چه ددې مطلب دا راوځي چه د نبي ﷺ په شان امي انسان ئې مقابله نشي کولې او عالم ئې کولې شي. او دا د روستو جملې نه خلاف دے.

**وَادْعُوْا شُهَدَاۤءَكُمْ** : دعاء قرآن کریم کښې په دوه معنو استعمالیږي (۱) دعاء النداء (آواز کول) لکه (ثُمَّ ادْعُهُنَّ) (البقرة: ۲۶۰) . (۲) دعاء العبادة . (آواز کول یو ذات ته په طریقه د عاجزئ او بندګئ) دا صرف د الله تعالیٰ دپاره استعمالیږي. دلته ئې دواړه معنې کولې شي. څکه مشرکانو سره بحث دے. لیکن دا دویمه معنیٰ ډیره واضحه ده او ددې سره به شهداء نه مراد معبودان وي.

شهداء : لفظ د شهداء قرآن کښې (۲۰) کرته راغلي دے. جمع د شهید ده.

## د شهادت معاني

د شهادت ډیرې معاني دي.

۱- ګواهي ورکول. لکه (فَاِنْ شَهِدُوْا فَاَمْسِكُوْهُنَّ) (النساء : ۱۵)

۲- په معنیٰ د بیانولو د توحید سره لکه (شَهِدَ اللّٰهُ اَنَّهٗ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ) (آل عمران : ۱۸)

(اِنَّا اَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا) (احزاب : ٤٥)

۳- په معنیٰ د حاضریدلو او لیدو سره لکه (اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَاءَ) (بقره: ۱۸۵) ٤- فیصله کول لکه گواه ته شاهد ځکه وائی چه ددیے په وجه فیصله کیږی۔ (شَهِدَ اللّٰهُ) (آلعمران : ۱۸)

۵- حکم کول لکه (وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِنْ اَهْلِهَا) (یوسف : ۲٦)

٦- په معنیٰ د علم سره۔ لکه (ثُمَّ اَقْرَرْتُمْ وَاَنْتُمْ تَشْهَدُوْنَ) (البقره : ۸٤)

٦- خبر ورکول۔ لکه (وَاللّٰهُ يَشْهَدُ اِنَّهُمْ لَكَاذِبُوْنَ) (التوبة : ۱۰۷)۔

۷- قسم کول لکه (وَيُشْهِدُ اللّٰهَ عَلٰى مَا فِیْ قَلْبِهٖ) (البقره : ۲۰٤)۔

۸- تائید کول لکه (وَيَتْلُوْهُ شَاهِدٌ مِّنْهُ) (سورة هود : ۱۷)۔

۸- توجه او حضور د زړه (اَوْ اَلْقَى السَّمْعَ وَهُوَ شَهِيْدٌ) (سورة ق: ۳۷)

۹- وصیت کول۔ (وَلَا نَكْتُمُ شَهَادَةَ اللّٰهِ) (المائدة : ۱۰٦)

۱۰- د الله په لار کښ شهید کیدل۔ (وَيَتَّخِذَ مِنْكُمْ شُهَدَاءَ) (آلعمران : ۱٤۰)

۱۱- حاضر څیزونه (عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ) (انعام : ۷۳)

۱۲- کلمات د شهادات د توحید او رسالت لکه (وَالَّذِيْنَ هُمْ بِشَهَادَاتِهِمْ قَائِمُوْنَ) (المعارج : ۳۳)

۱۳- مدد کول لکه پدیے آیت کښ په یوه توجیه سره۔

## د شهداء مصداقات

۱- گواهان۔ لکه بناء په یو تفسیر (لِتَكُوْنُوْا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ) (البقره :۱٤۳)

۲- معبودان۔ لکه (قُلْ هَلُمَّ شُهَدَاءَكُمْ) (انعام : ۱۵۱)

۳- علماء۔ لکه (وَاَنْتُمْ شُهَدَآءَ) (آل عمران :۹۹)۔

دلته گواهان هم مراد دی چه هغوی به دواړه عبارتونه گوری او گواهی به ورکوی۔ دارنگه معبودان هم مراد دی چه ستاسو نور معبودان سویٰ د الله نه راوغواړئ هغوی دیے هم ددیے کتاب په شان جوړ کړی۔ او علماء هم مراد دی۔

(٤) د عربو میډیا شاعران وو، د مجلس او جرگو مشری به دوی کوله او د عربو گمان وو چه د شاعر سره جنی مقرر وی چه هغه ورته القاء کوی۔ دا وجه ده چه په رسول الله ﷺ هم دوی دا گمان کولو۔ لکه سورة الشعراء کښ راځی۔ نو دلته مراد د شهداء نه دغه شیطانان، پیریان چه دوی به ورله عبادت کولو هم مراد کیدیے شی۔ کما فی تدبر القرآن۔

**من دون الله** : دون لفظ د خکته والی په معنیٰ هم راځی۔ لکه په حدیث د معراج کښې دی : (دَابَّةٌ دُوْنَ الْبَغْلِ وَفَوْقَ الْحِمَارِ) (۲) دویم په معنیٰ د ماسوی الله هم رازی۔ دیته غیر الله هم وائی او دون الله هم۔ که هغه هر څوك وی، ملائك وی که پیران او که انسانان لکه الله تعالیٰ فرمائی : (قُلْ لَئِنِ اجْتَمَعَتِ الْإِنْسُ وَالْجِنُّ عَلٰى أَنْ يَّأْتُوْا بِمِثْلِ هٰذَا الْقُرْآنِ لَا يَأْتُوْنَ بِمِثْلِهٖ) (اسراء :۸۸)

**(ان کنتم صادقین)** : (۱) دا متعلق دے د فأتوا بسورة سره یعنی (فَأْتُوْا بِسُوْرَةٍ مِّنْ مِّثْلِهٖ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِيْنَ بِأَنَّ الرَّسُوْلَ افْتَرَاهُ) (یعنی که تاسو پدے خبره کښې رشتینی یئ چه دے رسول دا قرآن د خان نه جوړ کړیدے نو ځئ ددے په شان یو سورت خو راوړئ) او مقابله ئے اُوکړئ چه لانجه ختمه شی۔

(۲) یا د وَادْعُوْا شُهَدَائَكُمْ سره متعلق دے۔ (وَادْعُوْا شُهَدَاءَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِيْنَ بِأَنَّهَا آلِهَةٌ مُّدَبِّرَةٌ) (خپل معبودان راطلب کړئ (او مدد ترے اُوغواړئ) که تاسو رشتینی یئ چه دغه آلهه تدبیر کونکی دی) او ستاسو حاجتونه پوره کولے شی نو دا غټ حاجت دے، دا ورته درله پوره کړی، دا څنګه معبود دے چه خانونه مو ستړی کړل او د سخت حاجت په وخت کښې ستاسو مدد نشی کولے۔ (۳) یا که تاسو رشتینی یئ پدے قول کښې (لَوْ نَشَاءُ لَقُلْنَا مِثْلَ هٰذَا) (انفال:۳۱) (چه مونږ مقابله او معارضه کولے شو)

او **راجح** دا ده چه إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِيْنَ د دواړو سره متعلق دے ځکه د مشرکینو دوه دعوے وے د خپلو آلهه وُ اُلوهیت ثابتول او د رسول الله ﷺ دروغژن والے ثابتول نو دلته ئے رد اُوشو۔

او د قرآن کمال دا دے چه ټول تفسیرونه چه متضاد نهٔ وی هغه به اخستے شی څه صراحةً وی او څه ضمناً لکه دلته صراحةً د قرآن کریم رشتینوالے ثابتول دی او ضمناً پکښې دا هم ثابته شوه چه معبودان څه نشی کولے۔ ۲- او دا پیغمبر حق دے۔ ۳- او دا هم ثابته شوه چه مشرکان کاذبان او دروغجن دی پدے کښې چه دے نبی دا قرآن د خان نه جوړ کړیدے۔

٤- دارنګه ثابته شوه چه قرآن کریم معجزه خالده ده تر قیامته پورے، ددے څوك مقابله نشی کولے۔ د رسول الله ﷺ معجزات د ټولو انبیاؤ نه زیاتے دی لکه نبی ﷺ فرمائی : هر نبی ته دومره معجزات ورکړے شویدی څومره امتیانو چه پرے ایمان راوړے وو۔ او ما ته ډیره وحی شویده۔ بعض علماء وائی : زر معجزات۔ بعض وائی : دوه زره وو۔

۳- سیوطیؒ لیکی : درے زره معجزات وو۔ په دلائل النبوة کښې امام بیهقیؒ هم دے ته

اشاره كړيده۔ او شفاء د قاضي عياض" كښې هم۔ د ټولو نه لويه معجزه قرآن كريم دے۔
**فائده** : الله رب العزت كله د يو سورت د مقابلے مطالبه كړے ده لكه پدے مقام كښې شو او كله د ټول قرآن، لكه په سورة الاسراء (۸۸) كښې۔ او كله د لسو سورتونو، لكه په سورة هود (۱۳) كښې۔ دے ته ارخاء العنان للخصم وائي۔ (دشمن ته واګے سستول) دپاره د غلبے كولو په هغه باندے۔
**فائده ۲** : د اهل السنة والجماعة عقيده دا ده چه د قرآن كريم هر آيت كښې اعجاز پروت دے چه خلق ئے د مقابلے نه عاجز دي۔ (۲) او متكلمين وائي : صرف يو آيت مُعجز دے لا على التعيين۔ لكه دا خبره امام رازيؒ په خپل تفسير كښې كړيده۔
(۳) بعض متكلمين وائي : انسانانو ته د قرآن كريم مقابله ممكن ده، ليكن الله تعالىٰ د هغوي صرف الهمة كړيدے، يعني د بندګانو همت ئے ددے د مقابله نه اړولے دے۔ دا روستنۍ دواړه عقيدے خطاء دي۔
**فائده ۳** : بعض خلق وائي چه ﴿فَلْيَاْتُوْا بِحَدِيْثٍ مِّثْلِهٖ﴾ كښې د يوے جملے مطالبه شويده۔ ليكن دا مطلب غلط دے ځكه د حديث نه مراد كتاب دے لكه سورة الطور كښې به راشي ان شاء الله تعالىٰ۔

فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلُوْا وَلَنْ تَفْعَلُوْا فَاتَّقُوا

پس كه چرے دا كار مو اُونكړو، او هيچرے ئے كولے نه شئ، نو بس اُويرېږئ (د توحيد په قبلولو او د ايمان په راوړو سره)

النَّارَ الَّتِيْ وَقُوْدُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ اُعِدَّتْ لِلْكٰفِرِيْنَ ﴿۲۴﴾

د هغه اُور نه چه خشاك د هغے خلق او كاڼړي دي، تيار شويدے كافرانو لره۔

**تفسير :**
اُوس ترهيب او ترغيب بيانيږي يا تخويف اخروي او بشارت يا تهديد كفارو ته او تفريح مؤمنانو ته بيانيږي او دا د قرآن كريم عادت دے چه ترغيب او ترهيب جمع كوي دے دپاره چه خلقو كښې خوف او اميد پيدا شي او د كفر او انكار نه خلاص شي) پدے كښې نور هم ډير فوائد دي۔

**عنوان الآیة** : اَلتَّخْوِیْفُ الْاُخْرَوِیُّ لِمَنْ کَذَّبَ بِالْقُرْآنِ ۔ (۲) اَلتَّخْوِیْفُ الْاُخْرَوِیُّ لِمَنْ اَنْکَرَ مِنَ الْقُرْآنِ ۔ (څوك چه د قرآن کریم تکذیب کوی او د هغه نه انکار کوی او پدے باندے ایمان نهٔ راوړی نو هغه ته د آخرت یره ورکوی۔ او د آخرت عذاب ورله ذکر کوی)۔

**فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلُوْا** : یعنی که سورة مو رانهٔ وړو۔ نو ددے جزاء پټه ده۔ یعنی (فَآمِنُوْا) (پس ایمان راوړئ) او دا روستو فَاتَّقُوا النَّارَ ئے دلیل د جزاء دے۔ لیکن فَاتَّقُوا النَّارَ ئے دهغے په ځائے کیخودو څکه چه یره ورکول مقصد دے۔ او د آخرت یره چه د چا په زړه کښې راغله نو هر خیر به پکښې راجمع کیږی۔ ایمان به هم راوړی۔

**وَلَنْ تَفْعَلُوْا** : دا اخبار بالغیب دے او صادق شویدے چه الله تعالیٰ فرمائی، دوی هیچرے دا مقابله نشی کولے، ترقیامته پورے ئے هم څوك نهٔ شی، او کومو کسانو چه د نبوت په زمانه کښې یا روستو دور کښې خپله خواری د مقابلے کړیده نو هغوی داسے څهٔ راوړی دی چه د عقلمندو دپاره مَضحکه او خندا گرځیدلے ده لکه مسیلمة الکذاب وغیره۔ نو قرآن کښې دومره کمالات موجود دی۔ چه خلق ئے د مقابلے نه عاجز شویدی۔ او بعض اعجازات القرآن دی۔

**فَاتَّقُوا النَّارَ** : یعنی اُویریږئ د اُور نه په ایمان راوړلو په الله تعالیٰ او کتابونو او رسولانو او د هغه د فرائضو په عملی کولو او د هغه د مناهیو نه په ځان ساتلو سره۔

دلته د تقویٰ نه لغوی معنیٰ مراد ده۔

**النَّارَ** : دلته ئے نار معرفه راوړه او سورة التحریم (٦) کښې ئے ناراً نکره راوړے وه څکه چه دا سورة مدنی دے او تحریم مکی دے نو دلته ورته اشاره اُوکړه چه هغه اُور نه اُویریږئ چه تاسو ته مخکښې معلوم شویدے۔ او هغه داسے اُور دے چه د دنیا د اُور نه اووبا چنده زیات دے۔

**وَقُوْدُهَا** : (وَقُوْد) په زبرد واو سره) (مَا یُتَوَقَّدُ بِهِ النَّارُ مِنَ الْحَطَبِ وَغَیْرِهَا) (هغه شی ته وائی چه په هغے باندے اُور بلیږی که خشاك وی او که بل څه وی) وَقَدَ په معنیٰ د بلولو سره دے۔ لکه اِسْتَوْقَدَ نارًا۔

**النَّاس** : ددے نه مراد انسانان دی چه د توحید او رسالت نه منکر دی، لکه روستو (اُعِدَّتْ لِلْکَافِرِیْنَ) پرے دلیل دے۔ او دارنګه په سورة آلعمران (۱۰) کښې دی۔ اگرکه پیریان هم جهنم ته ځی لیکن هغه د انسانانو تابع دی په مکلف کولو کښې۔

**وَالْحِجَارَةُ** : ددے درے مصداقات دی (۱) عبد الله بن عباس او ابن مسعود رضی الله عنهما نه

نقل دی په صحیح سند سره چه ددے نه مراد حجارة الکبریت (د گند هك (گوگړو) کانړی) دی او دائے خاص ذکر کړل ځکه چه پدیکښې خصوصیات دی، ۱- سخته گرمی ورکونکے. ۲- سختے لمبے وهونکے، ۳- زر بلیدونکے ٤- بدبوئی کونکے. ٥- ډیر لوگے کونکے. ٦- او سخت جوختیدونکے وی.(۲) - (حِجَارَةُ الْأَصْنَامِ) یا ددے بتانو او د قبرونو کانړی دی، دا پکښې سوزوی چه مشرکان ذلیله او خر کړی چه مشرکانو ته پته اُولګی چه زمونږ معبودانو هیڅ هم نشو کولے. لکه آیت کښې دی : (اِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ) (الانبیاء/ ۹۸)

(۳) یا عام کانړی مراد دی. بیا د جهنم اُور خومره سخت گرم دے چه د سختے گرمی په وجه پکښې د لرگو په ځائے کانړی سوزی.دا د الله تعالیٰ اِیتم دے. او دلته درے واړه مراد کیدل صحیح دی.

**اُعِدَّتْ :** پدے جمله کښې یو څو **فوائد** دی (۱) اُعِدَّتْ ئے صیغه د ماضی مجهول راوړه اشاره ده چه جهنم او جنت د پخوا نه تیار کړے شویدی، جهنم اُوس هم پیدا دے او دا د اهل السنت والجماعت عقیده ده او ډیر صحیح احادیث ددے تائید کوی. خلاف ثابت دے جهمیه ؤ لره. نو سوال دا دے چه دا الله تعالیٰ د مخکښې نه څه له پیدا کړیدی ؟ نو جواب دا دے چه ددے په پیدائش کښې مختلف فوائد دی : ۱- کله چه یو شے مخکښې نه موجود وی نو خلق د هغے طلب کوی او د هغے نه یره کوی. ۲- د مؤمن او د کافر روح ورځی. (اِنَّ نَسَمَةَ الْمُؤْمِنِ طَيْرٌ تَعَلَّقُ مِنْ شَجَرِ الْجَنَّةِ) (ترمذی) نو د هغوی د عملونو بدله اُوس نه شروع ده. په قبر کښې او په برزخ کښې او په جنت او جهنم کښې. ۳- دنیا کښې د جنت او جهنم آثار شته. لکه اُوړے ژمے د جهنم براس دے. (اِنِّیْ اَجِدُ رِيْحَ الْجَنَّةِ مِنْ دُوْنِ اُحُدٍ)

(۲) **فائده** : اعدت کښې بشارت دے مؤمنانو له او تحذیر او سخته دهمکی ده کافرانو له چه ایمان والو دپاره تیار نۀ دے بلکه کافرانو له تیار دے. نو سوال دا دے چه ایمان والا بیا ځنګه ورځی ؟ جواب دا دے چه ایمان والا تبعاً ورځی. مثال ئے داسے دے چه طعام میلمه له تیار وی لیکن خادم ئے هم خوری. او الله تعالیٰ ایمان والو ته ادب ورکوی چه تاسو کښې ولے گنده صفات راغلی وو. او ایمان والو ته الله تعالیٰ فرمائی : چه د کافرانو ځائے ته ځان ولے راکاږئ. بیا ایمان والا چه جهنم ته لاړ شی نو یو وخت د اوقاتو کښې به تریے واپس راوځی خو الله تعالیٰ ته پته ده چه څومره موده به وی، د هر سړی د ګناه مطابق وخت تیرول به وی لکه دا خبره د نصوص شرعیه ؤ نه معلومه ده.

وَبَشِّرِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ اَنَّ لَهُمْ جَنّٰتٍ

او زیرے ورکړه هغه کسانو ته چه ایمان ئے راوړے او نیك عملونه ئے کړیدی چه بیشکه دوی دپاره جنتونه دی

تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ؕ كُلَّمَا رُزِقُوْا مِنْهَا مِنْ ثَمَرَةٍ رِّزْقًا

چه بهیږی به لاندے د هغے نه نهرونه، هر کله چه ورکړے شی دوی ته د هغے نه څه میوه، دپاره د خوراك

قَالُوْا هٰذَا الَّذِيْ رُزِقْنَا مِنْ قَبْلُ

، وائی به دوی دا هغه څیز دے چه راکړے شوے وو مونږ ته مخکښ ددے نه (په دنیا کښ).

وَاُتُوْا بِهٖ مُتَشَابِهًا ؕ وَلَهُمْ فِيْهَا اَزْوَاجٌ

او راوړے به شی دوی ته دا رزق چه مشابه به وی (د دنیا د میوو سره) او د دوی دپاره به په دے جنتونو کښ بیبیانے وی

مُّطَهَّرَةٌ وَّهُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۲۵﴾

پاکے کړے شوے او دوی به په هغے کښ همیشه وی.

**تفسیر :**

ددے مقابله کښ اُوس زیرے ورکوی چه یو سړے الله تعالیٰ باندے ایمان راوړی هغه اُوپیژنی، او نبی ﷺ باندے ایمان راوړی نو څه به اُوشی؟ نو الله تعالیٰ فرمائی :ډیر غټ انعام به ورته ملاؤ شی. **عنوان الآية** : (اَلْبِشَارَةُ لِلْمُؤْمِنِيْنَ الصَّادِقِيْنَ بِبِشَارَاتٍ اَرْبَعٍ)

(رشتینی ایمان والو دپاره په څلورو طریقو زیرے بیانوی او دا کامل زیرے دے).

د قرآن کریم دا طریقه ده چه د هر ترهیب (یرے) بیانولو نه روستو ترغیب (رغبت ورکول) او د هرے خوشحالئ نه روستو دهمکی ذکر کوی، دیته وعد او عید، او تخویف او بشارة او ترغیب او ترهیب وائی. قرآن کریم کښ اضداد بیانیږی. پدے وجه هر کله چه د کفار او د هغوی د اعمالو او د عقاب ذکر اُوشو نو مناسب وه چه د ایمان والو او د هغوی د بشارتونو

ذکر اُوشی، نو پدے آیت کښې اول مخاطب رسول الله ﷺ دے او بیا په هر دور کښې د هغه قائم مقام دا عیان خلق دی۔ رسول الله ﷺ چه قرآن کریم بیان کړو نو بس دا د هغه زیرے شو، مستقل زیری ورکولو ته حاجت نشته لیکن بیا هم رسول الله ﷺ په ډیرو طریقو سره بشارتونه ورکړیدی فرمایلي ئې دی: (مَوْضِعُ سَوْطِ أَحَدِكُمْ مِنَ الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا)(د چابك هومره ځائے د جنت، د دنیا او مافیها نه غوره دے)

(که یوه جنتی زنانه زمکے ته راښکاره شي نو د زمکے او آسمان مابین به د خوشبوئی او رنړا نه ډك کړی) (او د جنتی زنانه د سر لوپټه د دنیا او مافیها نه غوره ده) (احمد والبخاری)

(وَبَشِّرْ) بشارت: (د باء زیر دے او پیخ هم جائز دے او فتحه وئیل خطاء دی) (اَلْخَبَرُ الْأَوْلٰی السَّارُّ الَّذِیْ یَظْهَرُ أَثَرُهٗ عَلَى الْبَشَرَةِ) (هغه اول خبر ته وائی چه د هغے په آوریدو سره د انسان په مخ کښې خوشحالی پیدا کیږی)۔

**فائده**: ددے متعلق د صحابه کرامو واقعات واوره چه هغوی باندے به وعد او وعید (بشارت او تخویف) څومره اثر کولو۔ (۱) رسول الله ﷺ یوه ورځ (د صلاة الکسوف) نه روستو اُوفرمایل: (قَدْ أُوْحِيَ إِلَيَّ أَنَّكُمْ تُفْتَنُوْنَ فِيْ قُبُوْرِكُمْ مِثْلَ أَوْ قَرِيْبًا مِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ) (ما ته وحی شویده چه په تاسو باندے به په قبرونو کښې امتحان راځی، د دجال د فتنے په شان یا د هغه زمانے ته قریب پورے) نو دا خبره مونږ ټول اُورو، دومره اثر راباندے نهٔ کوی لیکن صحابه کرامو باندے دومره اثر اُوکړو: (فَضَجَّ الْمُسْلِمُوْنَ ضَجَّةً) (بخاری، نسائی) نو مسلمانانو یوه چغه اُووهله)۔

(۲) یوه ورځ رسول الله ﷺ راغلو او څه کسان اصحاب صفه قرآن کریم ته ناست وو دیو بل نه روستو، دے دپاره چه عورتونه ئې ښکاره نشی۔ نو رسول الله ﷺ ورته اُوفرمایل: (لِيُبَشَّرْ فُقَرَاءُ الْمُهَاجِرِيْنَ بِمَا يَسُرُّ وُجُوْهَهُمْ فَإِنَّهُمْ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ قَبْلَ الْأَغْنِيَاءِ الخ) (فقیران مهاجرین دے خوشحاله شي په هغه شي چه د دوی مخونه به پرے خوشحاله وی ځکه دوی به د مالدارونه څلویښت کاله مخکښې جنت ته داخلیږی) نو عبد الله بن عمرو ﷛ فرمائی: (فَلَقَدْ رَأَيْتُ أَلْوَانَهُمْ أَسْفَرَتْ حَتّٰى تَمَنَّيْتُ أَنْ أَكُوْنَ مِنْهُمْ)

(سنن النسائي الکبرئ: ۵۸۷۶) وابوداود) (ما د هغوی مخونه اُولیدل چه پرقیدل او تازګی پکښې راغله تردے چه ما ارمان اُوکړو چه زه د هغوی نه حساب شم)۔

(۳) دارنګه عبد الله بن عمر ﷛ د عبد الله بن عمرو بن العاص ﷛ نه حدیث واوریدلو نو

په ژړا شو او په صفا غونډۍ کیناستو او ژړل ئے چا ورته اُووئیل : یا ابا عبد الرحمن ولے ژاړے ؟ نو هغه اُوفرمایل : (هـٰذَا يَعْنِيْ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرٍو زَعَمَ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ : مَنْ كَانَ فِيْ قَلْبِهٖ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ مِنْ كِبْرٍ، كَبَّهُ اللّٰهُ عَلٰى وَجْهِهٖ فِي النَّارِ) ـ

(د چا په زړه کښې چه د اُوړی د دانے په مقدار تکبر او غرور وی نو الله تعالیٰ به ئے پړمخے اُورته گوزار کړی)ـ (مسند الشامیین، ابی یعلی – شعب الایمان)ـ

کله چه په انسان کښې قوة الایمان وی نو بشارت او تخویف په هغه باندے دغه شان اثر کوی۔

**فائده** : په بشارت کښې یو څو شیان وی۔ (۱) مُبَشِّرْ (بشارت ورکونکے) (۲) مُبَشَّرْ لَهُمْ (چا له چه زیرے ورکړے کیږی) (۳) مُبَشَّرْ بِهٖ (په څه سره چه زیرے ورکولے شی) (٤) مُبَشَّرْ عَلَيْهِ (په څه باندے چه زیرے ورکولے شی)

نو مُبَشِّر محمد رسول الله ﷺ دے او مُبَشَّرْ لَهُمْ : مؤمنان دی او مُبَشَّرْ بِهٖ ایمان او عمل صالح دے۔ او مُبَشَّرْ عَلَيْهِ جنت دے۔

(آمَنُوْا) یعنی کوم خلقو چه په زړه سره ایمان راوړو او بیا ددے ایمان تصدیق ئے په نیک اعمالو سره اُوکړو۔ نو د ایمان نه مراد ایمان شرعی دے۔

(وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ) ورسره څکه وائی چه د منافقانو نه ئے تمییز راشی څکه چه منافقانو ایمان راوړے خو نیک عمل نکوی او ایمان والا ورسره نیک اعمال کوی۔

په ایمان کښې عمل صالح داخل دے او د ایمان یوه حصه ده۔ لیکن قرآن کریم کښې (عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ) ورسره جدا ذکر کوی، ددے حکمة دا دے چه په ایمان کښې عمل صالح مُهم جزء دے۔ شیخ الاسلام ابن تیمیةؒ لیکلی دی چه یواځے معرفة بلاعمل کافی نهٔ دے او الله تعالیٰ د انسان نه پدے نهٔ رضا کیږی۔ (مجموع الفتاوی ۷/۳۷۱) داسے معرفت خو د یهودیانو هم وو چه دا نبی حق دے لیکن تابعداری ئے نهٔ کوله نو هغوی ته کافر وئیلے کیږی۔

نو دلته تخصیص بعد التعمیم اُوشو د زیادتِ اهتمام او رفعتِ قدر د عمل صالح د وجه نه۔ او عطف همیشه دپاره تقاضا د مغایرت نهٔ کوی بلکه عطف څلور قسمه دے۔

(۱) عطف کله د مترادفینو وی لکه اسد وغضنفر۔

(۲) کله د متباینینو وی لکه زید وعمرو۔ پدے وخت کښې تقاضا د مغایرت کوی۔

(۳) کله عطف د خاص وی په عام باندے لکه (مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّلّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَجِبْرِيْلَ وَمِيْكٰلَ)

(٤) او کله عطف د جزء وی په کل باندے۔

## فائده : عمل صالح څه ته وائی :

۱- بیضاویؒ فرمائی : (كُلُّ مَا سَوَّغَهُ الشَّرْعُ وَحَسَّنَهُ)
(هر عمل چه شریعت ورته جائز وئیلی وی او بیا ئے ورته ښه وئیلی وی) که صرف ئے جائز کړی نو دا مباح وی او چه ښه ورته اُووائی نو بس عمل صالح شو۔
(۲) (اِتِّبَاعُ الرَّسُوْل) (د رسول الله ﷺ تهولې تابعداری ته عمل صالح وائی چه هغه څنګه اعمال کړی وی او کوم ئے کړی وی نو هغه عمل صالح دے)۔
(۳) شیخ الاسلام ابن تیمیہؒ فرمائی : عمل به هله صالح کیږی چه دوه شرطونه پکښې وی ۱- کم ۲- او کیف۔ کم مقدار ته وئیلے شی یعنی چه څومره عمل به وی لکه تعداد د رکعتونو شو او کیف طریقے ته وئیلے شی چه په کومه طریقه به وی۔ دا تعریف په رد د بدعت کښې ډیر مُهم دے۔
(٤) هر عمل به هله صالح کیږی او د الله تعالیٰ په دربار کښې به قبلیږی چه یو څو شرطونه پکښې راشی۔ (۱) ایمان۔ چه ایمان نهٔ وی نو په دنیا کښې فائده کله ورکوی لیکن آخرت کښې فائده نهٔ ورکوی، پدے وجه ئے ایمان مخکښې ذکر کړو۔ (۲) دویم اخلاص به پکښې وی۔ د ریاء، عُجُب او د خود پسندئ دپاره به نهٔ وی۔(۳) صدق۔ دیته وائی چه په طریقه د عادت به نهٔ وی۔ د صدق او اخلاص فرق دا دے چه اِخْلَاص : اِفْرَادُ الْمَعْبُوْدِ بِالْعِبَادَة دے (عبادت یو اځے د الله تعالیٰ دپاره کول) او صدق : اِفْرَادُ الْعِبَادَةِ عَنِ الْعَادَةِ ۔ عبادت د عادت نه جدا کول۔ نو په طریقه د عادت به عبادت نهٔ کوی۔ پدے وجه شریعت وئیلی دی په مسجد کښې یو ځائے ځانله مهٔ مقرروه ځکه بیا عادت جوړیږی۔
(٤) اِتِّبَاعُ السُّنَّة ۔ (د پیغمبر تابعداری سره به وی) (۵) احتساب۔ د ثواب په نیت کول۔ او د عمل حساب لګول چه دے عمل کښې کوم اجر دے هغه ما ته ملاؤ شی۔
(٦) اَلْاِحْسَان۔ (دهان او توجه سره عمل کول) اَنْ تَعْبُدَ اللهَ كَاَنَّكَ تَرَاهُ۔
(۷) اَدَاءُ حُقُوْقِ الْعِبَادِ : د بندګانو حقونه به اداء کوی، که دا نهٔ وی نو نیک اعمال ئے بربادیږی لکه کنځلے کوی، ظلم کوی، قرض نهٔ ادا کوی۔
(۸) اَلتَّاَثُّرُ مِنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ۔ د الله تعالیٰ او د رسول نه به پکښې متأثر وی یعنی د الله تعالیٰ د وجه نه او د الله تعالیٰ د رسول د وینا د وجه نه به ئے کوی۔ او که څوک په یوه مسئله عمل

کوی او د امام او مذهب نه پکښې متأثر وی او د هغې د وجه نه ئې کوی نو دا عمل صالح نهٔ دے، بلکه برباد عمل دے۔ او دا شرط اخلاص ته نژدے دے۔

(۹) اَلْاَدَبُ مَعَ اللّٰهِ۔ د الله تعالیٰ په ادب او احترام سره به وی۔ ځکه دے ادبه انسان اعمال نهٔ قبلیږی۔ (۱۰) اَلْوَلَاءُ وَالْبَرَاءُ ۔ (دوستی او دشمنی د الله تعالیٰ دپاره)۔

(۱۱) (مَحَبَّةُ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ) (د الله تعالیٰ سره به ئې انتهائی مینه وی)

(۱۳) اَلذِّلَّةُ (الله تعالیٰ ته به ځان انتهائی ذلیله کوی) ۔

(۱٤) د کبائر الذنوب نه ځان ساتل ځکه پدے سره کله عمل برباد شی۔

(۱۵) (اَکْلُ الْحَلَالِ) ۔(حلال خوراك ځکاك او لباس به استعمالوی)

(۱٦) (خَوْفُ الآخِرَةِ وَخَوْفُ لِقَاءِ اللّٰهِ سُبْحَانَهٗ) ۔(د آخرت او د الله تعالیٰ د ملاقات نه به په یره عمل کوی) (راجع الفوائد فی ترکیة النفوس)

**اَنَّ لَهُمْ** : لام د ملکیت دے۔ الله تعالیٰ به ئې مالکان جوړوی۔

جنات : جنة په لغت کښې هغه باغ ته وائی چه په هغې کښې انگور ډیر وی او فردوس هغه ته وائی چه کجورے پکښې زیاتے وی۔ دلته ئې لغوی معنیٰ نهٔ ده مراد بلکه مطلق باغونه مراد دی۔

جنات ئې جمع راوړه ځکه چه جنتونه څلور دی۔ دوه جنتونه د سرو زرو او دوه جنتونه د سپینو زرو۔ (لکه دا خبره حدیث کښې ذکر ده)

او بعض ځایونو کښې په یو دیوال کښې یوه خښته د سرو او یوه د سپینو لگیدلے ده۔ او په هغې کښې الله تعالیٰ سل درجے پیدا کړیدی، د هرے درجے ترمینځ دومره فاصله ده لکه د آسمان نه تر زمکے پورے۔ رسول الله ﷺ فرمائی: (لَوْ اَنَّ الْعَالَمِيْنَ اجْتَمَعُوْا فِيْ اِحْدَاهُنَّ لَوَسِعَتْهُمْ) (احمد والترمذی) (که دا ټول مخلوقات په یو کښې راجمع شی نو هغه به ورته فراخه شی) (أَعَدَّهَا اللّٰهُ لِلْمُجَاهِدِيْنَ فِيْ سَبِيْلِهٖ) (نسائی)

(الله تعالیٰ د مجاهدین فی سبیل الله دپاره تیار کړیدی)۔

په یو حدیث کښې دی : (اِقْرَأْ وَارْقَ وَرَتِّلْ كَمَا كُنْتَ تُرَتِّلُ فِي الدُّنْيَا فَاِنَّ مَنْزِلَتَكَ عِنْدَ آخِرِ آيَةٍ تَقْرَؤُهَا) (احمد، ترمذی، ابن حبان بیهقی بسند صحیح)

(قاری د قرآن ته به وائی، قرآن وایه او د جنت په درجو خیژه او داسے ئې وایه لکه څنگه چه دے په دنیا کښې لوستلو ستا درجه به هغه ځائے وی کوم ځائے چه آخری آیت راشی)

ددے حدیث نه معلومیږی چه د جنت درجات د سلو نه هم زیات دی او د قرآن کریم د

آیتونو په مقدار دی. او یو حدیث کښې صراحةً راغلی دی چه درجات الجنة په مقدار د عدد دآیات القرآن دی. (ابن ماجه : ۳۷۸۰) لیکن دا پدے سلو درجو کښې دننه وړے وړے درجے دی، لهذا هیڅ تعارض نشته.

بیا په جنت کښې اته دروازے دی په هره دروازه باندے د یو عمل نوم کیخودلے شویدے. :
۱ - باب الرَّیَّان، ۲ -بابُ التَّوَّابِین. ۳ - باب الصَّدَقَة، ٤ - باب الصلٰوة، ٥ - باب الجهاد، ٦ - باب الرَّاضِیْنَ بِالْقَضَاءِ. (په تقدیر باندے رضا والا خلق) ۷ - باب صَلٰوةِ الضُّحیٰ. ۸ - باب اَلْاَیْمَن چه د هغے نه به اویا زره کسان بلا حسابه داخلیږی. اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنَا مِنْهُمْ آمِیْن.

(۲) دویمه وجه د جمع راوړو دا ده چه مجموعه جنات د مجموعه مؤمنانو دپاره دی.

په جنت ایمان راوړل هم فرض او مینه ساتل هم ورسره فرض دی، حدیث کښې دی په جنت کښې داسے نعمتونه دی. (مَا لَا عَیْنٌ رَأَتْ وَلَا اُذُنٌ سَمِعَتْ وَلَاخَطَرَ عَلٰی قَلْبِ بَشَرٍ) (بخاری کتاب التفسیر) (چه سترګو نهٔ دی لیدلی او غوږونو نهٔ دی اوریدلی، او د یو انسان په زړه نهٔ دی تیر شوی) او دا جنتونه انسان ته په معمولی معمولی اعمالو حاصلیږی لکه حدیث کښې دی : (اَلْجَنَّةُ اَقْرَبُ اِلٰی اَحَدِکُمْ مِنْ شِرَاكِ نَعْلِهٖ) (بخاری) (جنت یو تن ستاسو ته د څپلئ د تسمے نه هم زیات نزدے دے) حدیث کښې دی : چه ازغے د لارے نه لرے کړی، یا دوه رکعاته مونځ سره هم جنت حاصلیږی. صرف په اوداسه سره او د هغے نه روستو اشهد ان لا اله الا الله الخ دعاء وئیلو سره هم د جنت اته واړه دروازے کولاویږی.

**مِنْ تَحْتِهَا** : اَیْ مِنْ تَحْتِ قُصُوْرِهَا وَاَشْجَارِهَا) (د جنت د بلډنګونو او ونو لاندے به روانے وی) په حدیث کښې دی : (فِیْ غَیْرِ اُخْلُوْدٍ) (ابن ابی شیبه) (وابونعیم فی صفة الجنة)

(ژورے کندے به نهٔ وی بلکه د زمکے په سر به روان وی)

**اَلْاَنْهَار** : جمع د نهر ده، په جنت کښې څلور قسمه (٤) نهرونه دی. لکه سورة محمد (۱۵) کښې راغلی دی. د خالص اُوبو، پیو، شهدو او شرابو نهرونه.

او جنت کښې نور نهرونه هم شته لکه زنجبیل، سلسبیل، تسنیم، کافور وغیره. لیکن دغه څلور مشهور او غټ غټ دی.

(**رُزِقُوْا**) ئے مجهول صیغه اُووئیله څکه چه دوی به مخدوم وی او غلامان به ورته خوراکونه او میوه جات راوړی. نو دوی به د میلمنو پشان وی.

**هٰذَا الَّذِیْ رُزِقْنَا مِنْ قَبْلُ** : ددے دیر مطلبونه دی ۱ - بعید تفسیر دا دے چه : هٰذَا جَزَاءُ

اَلْعَمَلِ الَّذِیْ وُفِّقْنَا مِنْ قَبْلُ اَیْ فِی الدُّنْیَا) (دا جنت او میوه جات بدله ده د هغه عمل چه مونږ ته نے په دنیا کښې توفیق راکړے شوے وو) دا تفسیر راجح نهٔ دے ځکه چه تقدیر پکښې زیات دے۔ او د ظاهر خلاف دے۔ بلکه دا چه جنتیان به وائی : (اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْٓ اَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ) فاطر (۳٤) (اَلَّذِیْٓ اَحَلَّنَا دَارَ الْمُقَامَةِ مِنْ فَضْلِهٖ) (فاطر : ۳۵)۔ (د الله په فضل جنت ته راغلو)

۲- دویم تفسیر : دا هغه رزق دے چه مونږ ته راکړے شوے وو په دنیا کښې ځکه د جنت میوے د دنیا د میوه جاتو سره مشابه دی۔ او روستو لفظ هم ددے تائید کوی۔

عبد الله بن عباس ﷺ فرمائی : (لَیْسَ فِی الدُّنْیَا مِنْ ثِمَارِ الْجَنَّةِ اِلَّا الْاَسْمَاءُ) (په دنیا کښې د جنت د میوه جاتو نه صرف نومونه دی) لکه سیب، مالټا، کیله، اګرکه خوندونه او مزه به ئے جدا جدا وی۔ ځکه چه ناشنا میوه چه چا لیدلی نهٔ وی نو هغه انسان له مزه نهٔ ورکوی۔ دا معنیٰ ابن جریرؒ غوره کړیده۔

۳- دریم : دا به په جنت کښې وائی چه کله دویم ځل ورکړے شی، نو دویم ځل به وائی چه دا خو مونږ ته مخکښې راکړے شو، پدے کښې اشاره ده چه د جنت د میوو رنګونه به یو شان وی لیکن هر یو کښې به خوند جدا وی، دنیا کښې ئے مثال دا دے لکه یو سیب دے چه د سوات د سیب جدا خوند او د پنجاب جدا او د کابل جدا خوند وی۔ دا قول حافظ ابن القیمؒ غوره کړیدے ځکه چه په دنیا کښې د جنت د ټولو میوه جاتو نمونه نشته۔

**وَاُتُوْا بِهٖ** : ضمیر د (بِهٖ) راجع دے رزق ته په معنیٰ د میوه جاتو سره۔

**مُتَشَابِهًا** : ۱- (مُتَشَابِهًا فِی اللَّوْنِ لَا فِی الطَّعْمِ) (مجاهد وابی العالیة، واختاره ابن جریر) (یعنی دا میوے به د یو بل سره مشابه وی په رنګ کښې نهٔ په خوند کښې) ۲- مُتَشَابِهًا بِثِمَارِ الدُّنْیَا) (عکرمة) (یعنی د دنیا د میوو سره به مشابه وی په رنګونو او نومونو کښې مګر خوندونه به ئے مختلف وی)۔ (۳) -(مُتَشَابِهًا یَعْنِیْ یُشْبِهُ بَعْضُهَا بَعْضًا فِی الْجَوْدَةِ وَلَا یَکُوْنُ فِیْهَا رَدِیْءٌ) (بحر العلوم للسمرقندی ۱/۳۰) (یو بل سره به مشابه وی په کره والی او مزیدار والی کښې چه ردی به پکښې هیڅ نهٔ وی) ددے نه قتاده او حسنؒ داسے تعبیر کوی : (خِیَارٌ کُلُّهٗ لَا رَذْلَ فِیْهِ) (ابن جریر، قرطبی، لباب) (د جنت میوے ټولے د یو بل مشابه دی په غوره والی کښې چه هیڅ خرابه میوه پکښې نشته) لکه دنیا کښې ګاړی ته چه اُودریږے نو اکثر پکښې ګند پروت وی، هغه به داسے نهٔ وی بلکه ټول به یو شان وی، د هغے مالټے، کیلے، سیوان ټول به ښه وی، خو دا ملاویږی په ایمان او عمل صالح۔

بيا (جنات) د هغوی کور شو (كُلَّمَا رُزِقُوا) ئې خوراك شو نو اُوس ملګري بيانوي :

(وَلَهُمْ فِيهَا أَزْوَاجٌ) : ښځه چه د سړي نۀ وي نو که ډير خوراکونه وي خو سړے خفه وي او چه ښځه هم د سړي ښه مزيداره وي او خوشحاله وي، ليکن بله ورځ مري، نو ډير خفه وي، چه دا نعمتونه رانه پاتے کيږي۔ نو وائي چه دوي به په کښې هميشه وي۔ ددے نعمتونو دپاره دنيا کښې ډيره سخته تيرول هم معمولي دي۔

(ازواج) جمع د زوج ده، سړي او زنانه دواړو ته وئيلے شي او زوجه ديته وائي چه د انسان سره موافقت لري په محبت، ايمان او عقيده کښې۔ دا وجه ده د کافرانو بيبيانو ته ازواج نۀ وئيلے کيږي۔ او امرأة لفظ عام دے۔ او دا بيبيانے حوري د جنت دي او د دنيا مؤمنے زنانه دي چه دا به هم ورله الله تعالیٰ ورکړي او د جنت حوري هم۔ لکه سورة الطور (۲۰) او سورة الواقعه (۲۲) (۳۵) کښې راغلي دي۔

حديث کښې راځي چه د هر جنتي به د حور العين نه دوه بيبيانے وي چه آويا جوړے به ئې اغوستي وي۔ چه د هغے نه اخوا به ئې د پنډئ مغز ښکاره کيږي (د ډير صفاوالي په وجه) (مسند احمد)

(مُطَهَّرَةٌ) يعني هر اعتبار سره به پاکے وي، د هغوي اخلاق، د هغوي خِلقت، د هغوي ژبه او نظرونه ټولو کښې به طهارت او پاکيزګي وي، مفسرينو ليکلي دي او د احاديثو نه معلوميږي چه د حيض، نفاس، متيازو، لاړے او د سپيګمو نه ګندونه راوتل، خيرو، او بد بوئيانو نه به پاکے وي لکه د دنيا زنانو کښې دا څيزونه وي۔ او دارنګه اخلاق د اکثرو زنانو کاږه وي، چلونه او جګړے کوي، د خاوندانو سره اختلافات کوي۔ او جنتي زنانه به داسے نۀ وي، دا انتهائي ډير لوئي سعادت دے۔

(خَالِدُونَ) د خلود معنیٰ ده هميش والے۔ او دا ډير لوئي سعادت دے چه ددے قسماقسم نعمتونو سره انسان ته د هميشه ژوند اعلان اُوکړے شي، چه نۀ به نعمتونه ختميږي او نۀ به مرګ راځي لکه حديث کښې راغلي دي : مرګ به د ګډ په شکل راوستے شي او د جنتيانو او جهنميانو دواړو ترمينځ به ذبح کړے شي او جنتيان او جهنميانو ته به اعلان اُوکړے شي۔ (خُلُودٌ لَا مَوْتَ) (اے جهنميانو ! مرګ ختم شو او اے جنتيانو! مرګ ختم شو۔ په بل روايت کښې دي (کومه ډله چه په کوم حالت وي په همغه حالت به هميشه دپاره وي) (صحيح بخاري کتاب الرقاق - بَابٌ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ سَبْعُونَ أَلْفًا)

او دا آيت دليل دے چه جنت او د هغے نعمتونه او جنتيان به هميشه وي په دوي به فناء نۀ

راضي لكه دا قول د ټول اهل السنة والجماعة دے۔ او معتزله او جهميه ددے خلاف كوي او د هغوي سره هيڅ نقلي دليل نشته۔

| |
|---|
| اِنَّ اللّٰهَ لَا يَسْتَحْيٖٓ اَنْ يَّضْرِبَ مَثَلًا مَّا بَعُوْضَةً فَمَا فَوْقَهَا ۚ فَاَمَّا |
| يقيناً الله حياء (شرم) نه كوي ددے نه چه بيان كړي يو مثال لره د ماشي يا د هغے نه بره۔ پس هر چه |
| الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ ۚ وَاَمَّا |
| هغه كسان دي چه ايمان ئے راوړے، دوي پو هيږي چه بيشكه دا مثال حق دے د طرفه د رب د دوي نه او هر چه |
| الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَيَقُوْلُوْنَ مَاذَآ اَرَادَ اللّٰهُ بِهٰذَا مَثَلًا ۘ يُضِلُّ بِهٖ كَثِيْرًا |
| كافران دي نو وائي څه اراده كړيده الله تعالىٰ په دے مثال بيانولو۔ گمراه كوي پدے سره ډير خلق |
| وَّيَهْدِيْ بِهٖ كَثِيْرًا ۚ وَمَا يُضِلُّ بِهٖٓ اِلَّا الْفٰسِقِيْنَ ﴿۲۶﴾ |
| او هدايت كوي پدے سره ډيرو خلقو ته او نه گمراه كوي پدے سره مگر نافرمان خلق۔ |

**تفسير:**

اُوس حكمة الامثال بيانوي۔ او ضمناً پكښې د قرآن كريم كمال ذكر دے۔ او ترغيب ايمان ته دے په قرآن كريم باندے او رد په كفر دے۔ او څوك چه په الله تعالىٰ باندے اعتراض نه كوي نو هغوي گمراه كيږي۔

**مناسبة** : د وان كنتم في ريب سره دے چه دوي په قرآن كريم كښې شك كولو په بيانولو د مثالونو۔ نو دلته جواب اُوشو چه مثال كښې نقصان نشته۔ (۲) متعلق دے د مثلهم او كصيب سره۔ (۳) موضوع د سورت سره مناسبة په ايمان بالقرآن كښې دے۔ (٤) دارنگه متعلق دے د هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ سره يعني (هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ وَضَلَالٌ لِّلْمُعْتَرِضِيْنَ الْفَاسِقِيْنَ)۔ (دا كتاب خو د متقيانو دپاره هدايت دے ليكن د اعتراض كونكو فاسقانو دپاره سبب د گمراهئ دے)

**شان نزول** : په دوه طريقو : (۱) مفسرين فرمائي : دا آيت نازل شويدے، دے باره كښې

چه کله مخکښې دوه مثالونه بیان شو نو منافقانو له غصه ورغله او په شمول د یهودیانو او بعض مشرکانو ئے اعتراض اُوکړو چه قرآن کریم کښې مثالونه څنګه بیان شی، مثال بیانول خو د عاجز او کمزورو خلقو کار دے او د هغه چا کار دے چه فصاحت او بلاغت پکښې نه وی، مخاطب په خبره بغیر د مثال نه نشی پو هه کولے او الله تعالیٰ کامل ذات دے هغه څه له مثال بیان کړی او بیا هم تاسو دعوه کوئ چه دا قرآن کریم د الله تعالیٰ کتاب دے۔ نو الله تعالیٰ جواب کوی په ذکر کولو د حکمتونو د مثال سره یعنی فرمائی چه زه هم مثالونه بیانوم پدے کښې خو څه نقصان نشته۔ بلکه په مثالونو کښې انسانانو ته ډیر حکمتونه او پو هه حاصلیږی۔ (۲) او قرطبیؒ د حسنؒ او قتادهؒ نه نقل کړیدی چه دا اعتراض یهودیانو کړے وو کله چه پدے سورت کښې د کافرانو او منافقانو مثالونه ذکر شول او په هغوی کښې خو یهودیان هم داخل وو نو په هغوی باندے دا مثالونه بد اُولګیدل نو اعتراض ئے اُوکړو۔

(۳) بعض وائی : دا آیت په جواب ددے کښې وو چه الله تعالیٰ په سورة الحج او عنکبوت کښې د مچ او عنکبوت (جولاګی) مثال ورکړے وو دپاره د عجز د معبودانو، نو مشرکانو اُووئیل چه الله تعالیٰ خو غټ ذات دے څنګه وړے خبرے کوی؟ نو الله رب العزت ددے جواب کوی او حکمة د مثال راوړی۔ دا ټول جائز دی اګرکه اوله خبرد د سورت سره زیاته تعلق لری۔ (ابن کثیر) غوره دا ده چه هر چا چه دا اعتراض کړے دے، یا ئے اُوس کوی نو دا جواب د هغوی دپاره دے۔

## توضیح الکلمات وفوائدها :

(**لا یستحي**) **حیاء** : په لغت کښې (اَلْاِنْقِبَاضُ عَنِ الشَّیْءِ وَالْاِمْتِنَاعُ مِنْهُ) (د یو شی نه راغونډیدل او منع کیدل) او په اصطلاح کښې : (خُلُقٌ یَمْنَعُ الْاِنْسَانَ عَنْ مُوَاقَعَةِ الْقَبِیْحِ شَرْعًا اَوْ عَقْلًا)۔ (دا یو خوئی دے چه انسان منع کوی د ځان واقع کولو نه په قبیح کښې، شرعاً یا عقلًا) دا حیاء په صفت د بندګانو کښې ده۔ بله عرفی حیاء ده : (خُلُقٌ اَوْ ضُعْفٌ یَمْنَعُ الْاِنْسَانَ عَنِ الْاَفْعَالِ الْحَسَنَةِ) (یو خوئی دے یا ضعف دے چه انسان د ښائسته کارونو نه منع کوی) دیته شرمیدل او رُعب وائی لکه یو انسان تقریر، دعوت، اذان او امامت نشی کولے، شرمیږی، او رعب پرے راځی دا د زړه د کمزورتیا نه پیدا کیږی۔ حدیث کښې د حیاء

ډیر فضائل راغلي دي۔ (اَلْحَیَاءُ خَیْرٌ کُلُّهٗ) (حیاء ټول سراسر خیر دے) (اَلْحَیَاءُ لَا یَأْتِیْ اِلَّا بِخَیْرٍ) ۔(حیاء صرف خیر راوړي) (اِنَّ مِمَّا اَدْرَكَ النَّاسُ مِنْ کَلَامِ النُّبُوَّةِ الْاُوْلٰی : اِذَا لَمْ تَسْتَحْیِ فَاصْنَعْ مَا شِئْتَ) (خلقو چه د پخوانو انبیاؤ خبره موندلے ده هغه دا ده چه کله ته حیاء نهٔ کوے نو کوه څه چه دِ ے خوښه وي) کله چه د انسان نه حیاء ختمه شي نو بیا هر شر په هغه کښې راجمع کیدے شي۔ د ټول یهود او نصاراو دا کوشش دے چه د بندګانو نه حیاء اُوباسي۔ او حدیث کښې راغلي دي : (اِنَّ الْاِیْمَانَ وَالْحَیَاءَ قُرِنَا جَمِیْعًا فَاِذَا رُفِعَ اَحَدُهُمَا رُفِعَ الْآخَرُ) (الادب المفرد ۱/٤٤٥/١٣١٣)، ابونعیم، حاکم، بیهقي في الشعب– بسند صحیح) ۔ (ایمان او حیاء دواړه ترلي دي، کله چه یو پورته کیږي نو بل هم ورسره پورته کیږي)۔

**فائده** : د الله تعالیٰ په صفاتو کښې حیاء کول او نهٔ کول دواړه راغلي دي، لکه دلته او سورة الاحزاب (۵۳)کښې دي : (وَاللّٰهُ لَا یَسْتَحْیِیْ مِنَ الْحَقِّ) (الله تعالیٰ د حق بیانولو نه حیاء نکوي) ام سلیم رضی الله عنها هم د رسول الله ﷺ نه د مسئلے تپوس کولو نه مخکښې داسے اُوفرمایل : یَارَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ اِنَّ اللّٰهَ لَا یَسْتَحْیِیْ مِنَ الْحَقِّ فَهَلْ عَلَی الْمَرْأَةِ مِنْ غُسْلٍ اِذَا هِیَ احْتَلَمَتْ) (صحیحین)

او حیاء د صحیح څیزونو نه کوي لکه الله رب العالمین په فحشاء باندے امر نهٔ کوي، دارنګه (اِنَّ اللّٰهَ حَیِیٌّ کَرِیْمٌ یَسْتَحْیِیْ مِنْ عَبْدِهٖ اَنْ یَّرْفَعَ اِلَیْهِ یَدَیْهِ فَیَرُدُّهُمَا صِفْرًا) (ترمذی، ابوداود، ابن ماجه) ۔ (یو انسان ورته لاس اُوچت کړي، الله تعالیٰ له حیاء ورځي چه لاس ورله هسے واپس کړي)، سپین ګیرې ته د عذاب ورکولو نه حیاء کوي۔

او حدیث کښې دي : (اِنَّ اللّٰهَ حَیِیٌّ سِتِّیْرٌ) (ابوداود والنسائي) (ډیر حیاناك او پرده کونکے ذات دے) مګر د حق بیانولو نه حیاء نکوي، څکه دا حیاء په درجه د رُعب کښې ده، او رعب خو د وجه د ضعف نه راځي او الله تعالیٰ باندے رُعب نهٔ راځي، څکه الله تعالیٰ کامل ذات دے او رُعب د انسان صفت دے نو الله تعالیٰ له دا حیاء نهٔ ورځي چه یو مثال بیان کړي چه اُووائي دا مثال وروکے دے، زهٔ یے نهٔ بیانوم څکه خلق به راپسے خاندي، الله تعالیٰ ددے خبرو نه نهٔ یریږي۔

لهذا حیاء الله تعالیٰ له ثابته ده لکه څنګه چه د هغه د شان مطابق وي او په دے کښې لازمي معنے کول انکار دے د الله تعالیٰ د صفت نه لکه چه اکثرو مفسرینو هغه تاویلات کړیدي چه دلته لا یستحیي په معنیٰ د (لَا یَتْرُكُ اَوْ لَا یَخْشٰی) سره دے (یعنی الله تعالیٰ بیان نهٔ پریدي او نهٔ یریږي د بیانولو د مثال نه) وائي چه څوك حیاء کوي نو هغه قبیح کار

نۀ کوی او د هغې د کولو نه یریږی. لیکن دا تاویلات صحیح نۀ دی.

**ان یضرب**: ضرب :۱- په معنیٰ د وهلو. (فَضَرْبَ الرِّقَابِ) (محمد:٤) ۲- په معنیٰ د سفر کولو وی کله ئې چه په صله کښې فی راشی لکه (وَآخَرُوْنَ يَضْرِبُوْنَ فِي الْأَرْضِ) (المزمل:۲۰)
۳- که صله کښې ئې لام راشی نو په معنیٰ د بیانولو وی. لکه (وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِيْ هٰذَا الْقُرْآنِ) (الزمر:۲٦) (وَتِلْكَ الْأَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ) (العنکبوت:٤٣) دلته ئې د بیان معنیٰ ده.

**مثلًا مّا**: مثل په معنیٰ د مثال دے، او بعوضة د هغې نه بدل دے، یعنی هغه مثال څه شے دے؟ هغه ماشے دے. مثل اصل کښې قصه عجیبه ته وائی ناشنا قصه چه یود بل سره مشابه کول وی. (ما) زائده د تاکید د مثل دپاره ذکر ده.

**بعُوضَةً**: (ماشی ته وائی) دیته بق هم وائی. بعض وائی: دواړه یو شے دے، لیکن راجح دا ده چه بق غټ ماشی ته وئیلے شی او بعوضه وړوکے ماشے دے. (تفسیر خازن، لسان العرب)

او بَعُوْضَةٌ مفرد او بَعُوْضٌ ئې جمع ده. د بعض نه ماخوذ دے، ځکه چه دا هم بعض او وړوکے شان وی. دلته ئې بعوضة راوړو، نۀ بق، دپاره د تقلیل او تحقیر. په ابتداء د قرآن کریم کښې الله تعالیٰ وړوکے حیوان (بعوضه) ذکر کړیدے او په آخر کښې ئې فیل (هاتی) غټ حیوان ذکر کړیدے.

(**لطیفه**) په حیٰوة الحیوان کښې علامه دَمیری لیکلی دی چه ماشے د هاتی په شکل دے لیکن د هاتی نه ئې اندامونه زیات دی، د هاتی څلور خپے یو خرټم او یوه لکۍ ده او د ماشی دوه خپے زیاتے دي او دوه وزرے ئې هم شته او خرټم د هاتی کوتلے دے او خرټم د ماشی دډ وی، پدے وجه خازن لیکلی دی چه دا عجیب خلق د الله تعالیٰ دے چه ماشے سره د وړوکوالی نه خپل خرټم په سخته څرمن د هاتی، د میخے او اُوښ کښې ننباسی تردے چه کله اُوښ ددۀ د چیچلو په وجه مړ هم شی. دارنګه د ماشی دماغو کښې درے طبقات دی.

ابن جریرؒ او سمرقندیؒ فرمائی: ماشے د دنیا په مثال کښې پیش کیدے شی ځکه چه ماشے کله اُوګے وی، نو ژوندے وی او چه موړ شی نو مړ شی نو دغه شان انسان چه د دنیا د مال نه خالی وی نو د هغۀ زړه کښې روحانی ژوند وی او چه د دنیا په مال سره موړ شی نو زړه ئې مړ او غافل شی. (طبری، بحر العلوم ۳۱/۱) شاعر فرمائی:

يَا مَنْ يَرٰى مَدَّ الْبَعُوْضِ جَنَاحَهَا     فِيْ ظُلْمَةِ اللَّيْلِ الْبَهِيْمِ الْأَلْيَلِ
وَيَرٰى عُرُوْقَ نِيَاطِهَا فِيْ نَحْرِهَا     وَالْمُخُّ فِيْ تِلْكَ الْعِظَامِ النُّحَّلِ

اِغْفِرْ لِعَبْدٍ تَابَ مِنْ فُرُطَاتِهٖ مَا كَانَ مِنْهُ فِى الزَّمَانِ الْاَوَّلِ

(الکشاف ۱/۱۱٦) (اے هغه ذات ! چه په تکه توره ابتدائی شپه کښې د ماشي د وزر د اُوکدولو لیدونکے دے. ۲- او د هغه د زره رګونه د هغه په سینه کښې وینی او د هغه په نرو هلوکو کښې مغز وینی، ۳- بخښه اُوکړه هغه بنده ته چه توبه اُوباسی د خپلو هغه تجاوزونو نه چه ددهٔ نه په مخکښې زمانه کښې شویدی)

**فائده** : په قرآن کریم کښې (۳۱) حیوانات ذکر دی، که انسانان او پیران ورسره واخستے شی نو بیا (۳۳) جوړیږی. ماشے، سخے، غوا، خنزیر، خر، مارغه، اس، ځاروی، درنده، کارغه، شادو، ګډ، بیزه، اُوښ، اُوښه، اژدها، مار، نرے مار، ملخ، سپګے، چندخ، مهیان، سپے، شرمخ، خچر، توره مچۍ، مچ، میږے، ملا چرګک، جولاګے، وینهٔ، پتنګ، هاتی.

(**فَمَا فَوْقَهَا**) فوق اُوچت او زیات ته وئیلے شی که هغه اُوچتوالے په بدن کښې وی لکه نورغټ حیوانات شو او که په سپکوالی کښې وی لکه د ماشی وزر شو. او هغه په حدیث کښې ذکر دے. رسول الله ﷺ فرمائی : که دنیا الله تعالیٰ ته د ماشی د وزر هومره برابره وے نو کافر ته به ئے ددے نه یو ګوټ اُوبه هم نهٔ وے ورکړے) (احمد، وسنن الترمذی - والسلسلة الصحیحة /٦٨٦)

نو د ماشي د وزر نه ئے هم کمه کړیده او قرآن کښې ذره مثال ورکړے شوے دے.

**فَاَمَّا الَّذِيْنَ** : اُوس الله تعالیٰ فائده د مثال بیانولو ذکرکوی هغه دا چه مؤمنان ددے نه فائده اخلی، مؤمنانو ته د مثال حقانیت په دوه طریقو معلومیږی (۱) یو علی وجه التفصیل. په تفصیل ئے پوهه شی او د مثال په حقائق او نکتو او باریکاتو پوهه شی نو پدے سره ئے ایمان زیات شی. (۲) علی سبیل الاجمال. لکه عام مؤمنان په اجمالی طریقه پوهیږی او د تفصیلات او باریکاتو معلومات ورته نهٔ کیږی خو اجمالاً منی چه دا مثال حق دے او دوی ورته تسلیم شی نو دا هم د هغه دپاره فائده شوه چه خپل عقل قاصر ګنړی او د الله تعالیٰ علم کامل ګنړی چه اے الله ! ته په هر څه عالم ئے او مونږ ته هیڅ علم نشته. لکه روستو به ملائك هم داسے اُووائی.

پدے سورت کښې د ایمان موضوع شروع دهٔ، پدے وجه ئے د ایمان لفظ راوړو چه ایمان والا د قرآن نه او د مثالونو د قرآن نه فائده اخلی.

(**اَنَّهُ الْحَقُّ**) : حق لفظ په قرآن کریم کښې د (۲٤۰) کرته راغلے دے. په لغت کښې (الثابت) ثابت شی ته وئیلے شی. مختلفے معانی لری :

## د حق لفظ معانی

۱- د الله تعالیٰ په نومونو کښې یو نوم دے (الحق). (وَیَعْلَمُوْنَ اَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ الْمُبِیْنُ) (النور:۲۵) اَیِ الثَّابِتُ۔

۲- کله په معنیٰ د صدق سره وی (یعنی یو شے او خبر د واقع سره موافق کیدل). لکه (اِنَّا اَرْسَلْنَاكَ بِالْحَقِّ) (البقره:۱۱۹) لکه ذلته ئے دا معنیٰ مراد ده چه دا مثال مطابق دے د واقع او ممثل سره۔

۳- حق کله اسلام ته وائی. لکه (وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ) (العصر:۳)

٤- کله حکمة ته وئیلے شی۔ یعنی غایه محموده. (وَمَا خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَیْنَهُمَا اِلَّا بِالْحَقِّ) (الحجر:۸۵)

۵- حق کله په معنیٰ د ارادے او شهوت سره وی. لکه (مَا لَنَا فِیْ بَنَاتِكَ مِنْ حَقٍّ) (هود:۷۹)

٦- حق کله په مقابله د باطل کښې وی۔

۷- کله په مقابله د ضلال کښې وی۔

۸- او کله په مقابله د کفر کښې وی۔

**مِنْ رَّبِّهِمْ** : ددے نه معلومیږی چه الله تعالیٰ د مثالونو په ذریعه د بندګانو تربیت کوی، او د ایمان تقاضا دا ده چه د خپل رب خبرو ته به تسلیمیږی، اګرکه بنده ئے په حکمة پو هه نشی۔

**کَفَرُوْا** : (یعنی د حق منکرین) او هر چه کافر عنادیان دی نو هغوی په تردد کښې پریوځی او د هغوی په کفر کښې اضافه کیږی او اعتراض کوی چه الله تعالیٰ دا مثال څه له بیانولو او پدے کښې څه فائده ده ؟، نو کافران د الله تعالیٰ په شرع نهٔ پو هیږی نو پدے وجه اعتراض او انکار کوی۔

**فَیَقُوْلُوْنَ** : اَیْ اِعْتِرَاضًا ـ **مَاذَا اَرَادَ اللّٰهُ** : دا وینا د دوی په طریقه د اعتراض ده، ورنه تپوس د حکمة جائز دے۔ کله ئے مؤمن هم کوی۔ او د ایمان د زیادت دپاره دا معلومات علماء هم کوی۔

**بِهٰذَا مَثَلًا**: بهذا کښې اشاره ده مذکور شی ته۔ او مثلًا یا حال دے یا تمییز دے۔ یعنی څه اراده کړے ده الله تعالیٰ پدے مذکور مثال سره په مثال بیانولو سره۔ یعنی دا مثال ولے بیانوی۔ بیا ددے دوه مطلبه جوړیږی (۱) یو دا چه اصل کلام د الله تعالیٰ نهٔ منی یعنی الله تعالیٰ څه اراده کړیده پدے مثال بیانولو یعنی دا د الله تعالیٰ د طرف نه نهٔ دے۔ (۲) دویم دا

چه اصل کلام د الله تعالیٰ منی چه دا د الله تعالیٰ د طرف نه مثال دے لیکن په الله تعالیٰ باندے اعتراض کوی چه دا څنګه کلام دے چه مثالونه پکښې بیانوی پدے باندے الله تعالیٰ د څه اراده کوی۔

او د دوی داسے اعتراض په سورة المدثر کښې هم ذکر دے چه الله تعالیٰ نورلس ملائك د جهنم ذکر کړل نو دوی اُووئیل : نورلس ئے ولے ذکر کړل پدے کښې څه حکمة دے؟ نو بعض مشرکانو پکښې اُووئیل : چه د اتلسو مقابله به زه اُوکړم او د یو مقابله تاسو اُوکړئ۔ داسے توقے ئے کولے۔

(**یُضِلُّ بِهٖ**) : دے سره د مثال بیانولو دویمه فائده ذکر کوی چه ګمراه او تا اهله خلق پدے سره ګمراه کیږی کوم خلق چه پرے اعتراضونه کوی نو د هغوی دپاره سبب د ګمراهئ اُوګرځی او ډیرو مؤمنانو ته- چه په هغوی کښې د هدایت د قبلولو صلاحیت وی- پکښې هدایت ملاویږی، هغوی په مثال کښې سوچ اُوکړی او ځان پرے هدایت ته اُورسوی۔

**یُضِلُّ** : کښې نسبت د ګمراه کولو الله تعالیٰ ځان ته کړیدے او دا د اهل السنة والجماعة عقیده ده چه د اضلال (ګمراه کولو) نسبت الله تعالیٰ ته صحیح دے او اسباب د ضلالت بنده اختیاروی۔ نو الله تعالیٰ پرے فیصله د ګمراهئ کوی۔ معتزله وائی چه نسبت د اضلال الله تعالیٰ ته صحیح نۀ دے، ځکه دا خو قبیح کار دے۔ نو دلته تاویلات کوی چه یضل نه مراد دا دے چه نوم ګډی دوی ته د ګمراهانو۔

**لیکن** جواب دا دے چه یو د ګمراهئ پیدا کول دی په درجه د سزا کښې بندګانو ته نو دا الله تعالیٰ کوی او بل ابتداءً په درجه د ظلم کښې بنده لره ګمراه کول دی نو الله تعالیٰ دا کار هیڅ کله نۀ کوی۔ او د ګمراه کولو نسبت چه کله شیطان وغیره تۀ اُوشی نو مراد ترے د دعوت ورکولو او د وسوسے اچولو په وجه ګمراه کول وی۔

**بِهٖ** : ضمیر په درے وارو ځایونو کښې قرآن یا مثل ته راجع دے او د دوارو مطلب یو دے۔

**کَثِیرًا** : **سوال** : کثیراً ئے دوارو جانبینو ته وئیلے دے او حال دا چه هدایت والا خو کم دی د کافرانو نه؟ **جواب** : ۱- دا کثرت فی نفسه دے، خو که په نسبت د کافرو ئے واخلے نو بیا هدایت والا کم دی۔ او فی نفسه (خپل مینځ کښې) ایمان والا هم ډیر دی۔

۲- **جواب** : پدے کښې تسلی ده ایمان والو ته چه تاسو هم ډیر یئ۔ که داسے ئے وئیلی وے چه کمو ته پکښې هدایت کیږی نو مؤمنان به خفه شوی وے، او شك به ئے پیدا شوے وے۔

تفسیر زبدة التفسیر (د محمد سلیمان الاشقر) کښې ئے لیکلی دی چه (یُضِلُّ بِهٖ كَثِيْرًا) دا

جواب دے د سوال د کفارو چه (مَاذَا أَرَادَ اللّٰهُ بِهٰذَا مَثَلًا) یعنی هغوی اُووئیل الله پدے مثال څۀ اراده لری ؟ نو الله تعالیٰ اُوفرمایل : چه زما اراده دا ده چه ډیر خلق پرے گمراه کړم او ډیروته هدایت اُوکړم یعنی الله تعالیٰ داسے مثالونه د امتحان دپاره رالیږی چه څوك گمراه کیږی او څوك هدایت قبلوی ؟۔

(وَمَا یُضِلُّ بِه) : اُوس سوال پیدا شو چه آیا قرآن کنے د گمراهئ کتاب دے څه ؟ نو الله تعالیٰ جواب ورکوی چه پدے مثال او قرآن باندے نۀ گمراه کوی مگر نافرمان خلق۔ ددے مثال داسے دے لکه چرگ، غوړی او شهد د صحت دپاره ډیر ښه څیزونه دی، لیکن که سړے ناجوړه وی نو هغه دپاره دغه څیزونه ضرر شی۔ لکه بعضے بیمارانو دپاره دا ضرر لری۔ نو دا ددے سړی نقصان دے، ددے څیزونو نقصان نۀ دے۔ نو دغه شان دے قرآن کریم کښں او مثالونو د قرآن کریم کښں هیڅ قسمه نقصان نشته، خو دے کسانو کښں فسق (تَمَرُّدُ فِی الْکُفْر) (په کفر کښں سرکشی) موجود ده ځکه گمراه شو۔

**اِلَّا الْفٰسِقِیْنَ : فسق** په لغت کښں خروج (وتلو) ته وائی لکه میوے دپاره هم استعمالیږی (فَسَقَتِ الثَّمَرَةُ) اَیْ خَرَجَتْ۔ یعنی میوه راووتله د خپلے کسوړے نه۔

فاسق ته فاسق ځکه وائی چه دا هم خارج وی د الله تعالیٰ د طاعت نه۔ فسق په شریعت کښں وتل دی د الله تعالیٰ د طاعت نه، دا کله په کفر او شرك سره وی او کله په عصیان (گناهونو) سره وی۔ دلته اول مراد دے۔

ابن الاعرابیؒ وئیلی دی : لَمْ یُسْمَعِ الْفَاسِقُ فِیْ کَلَامِ الْعَرَبِ فِیْ وَصْفِ الْاِنْسَانِ)(د انسان په صفت کښں فاسق عربو نۀ وو آوریدلے) هغوی به فاسق حیوان ته وئیلے وو چه کله به د طاعت نه اُووتلو۔ نو فاسق هم د الله تعالیٰ د طاعت نه وتلے دے، انسانیت نه بهر شویدے او حیوان ترے جوړ شویدے۔

## د فسق اقسام :

فسق په دوه قسمه دے (۱) فسق فی الکفر۔ دیته وائی چه کفر سره پکښں سرکشی او تمرد هم راغلی وی۔ دا اعلیٰ درجه فسق دے لکه دے آیت کښں مراد دے۔ او سورة المائده (۴۷) (وَمَنْ لَّمْ یَحْکُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفَاسِقُوْنَ) او منافقانو ته هم الله تعالیٰ فاسقان وئیلی دی۔ لکه (اِنَّ الْمُنَافِقِیْنَ هُمُ الْفَاسِقُوْنَ) (توبه:۶۷)

(۲) دویم : فسق فی الاسلام دے، چه یو سړے مسلمان دے لیکن په اسلام کښې کبیره ګناهونه او معاصی کوی لکه غلا، غیبت، بهتان، زنا وغیره کوی. د اولنی فاسق حکم دا دے چه دا کافر دے او مُخَلَّد فِی النار دے. مګر هله چه په دنیا کښې توبه اُویاسی.
او د دویم حکم دا دے چه دا په درجه د ګناهګار کښې دے. الله تعالیٰ ته سپارلے شویدے که معاف کوی ئے او که سزا ورکوی خو همیشه به اُور کښې نهٔ پاتے کیږی.
په احادیثو کښې دا قسم فسق زیات راځی او په قرآن کریم کښې اعلیٰ درجه فسق زیات بیانیږی.

## په قرآن کریم کښې د فسق معانی:

بیا فسق په قرآن کریم کښې پنځوس کرته استعمال دے په څلورو معانیو سره : ۱- مطلق ګناه کبیره لکه (وَلَا فُسُوْقَ) (بقره : ۱۹۷) ۲- په معنیٰ د کفر او شرك سره لکه (ذٰلِكُمْ فِسْقٌ) (المائده : ۳) ۳- ګناه کبیره خکته د کفر او شرك نه لکه (اِنْ جَاءَكُمْ فَاسِقٌ) او (بِئْسَ الِاسْمُ الْفُسُوْقُ بَعْدَ الْاِيْمَانِ) (الحجرات : ۱۱) (وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفَاسِقُوْنَ) (سورة النور:٤)
٤- صرف وتل د طاعت نه: لکه (فَفَسَقَ عَنْ اَمْرِ رَبِّهٖ) (الکهف : ۵۰)

## په قرآن کریم کښې د فسق اسباب

۱- تولی (اَوړیدل) د ایمان او د اتباع د آخری رسول نه لکه (فَمَنْ تَوَلّٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفَاسِقُوْنَ) (آلعمران : ۸۲)
(۲) په ما انزل الله باندے فیصله نهٔ کول ـ (سورة المائده : ٤٧)
(۳) منافقت (سورة التوبه : ٦٧)
(٤) کفر کول (سورة النور : ۵۵)
(۵) مسلمان ته د زنا کنځل. (سورة النور : ٤)
(٦) ضرر ورکول کاتب او ګواه ته (سورة البقره : ۲۸۲)
(۷) تبدیل د شرع (سورة البقره : ۵۹)
(۸) په احکام شرعیو کښې حیله کول (اعراف : ۱٦۵)
(۹) ذبح په نصب او استقسام بالازلام (قسمت معلومول په غشو سره) (مائده : ۳)
(۱۰) په وخت د ذبح کښې نوم د الله تعالیٰ قصداً پریخودل (انعام : ۱۲۱) نو پدے اسبابو

سره په انسان کښې فسق راځي بیا که هغه ته په قرآن کریم سره وعظ ورکړے شي نو د هغه ګمراهي زیاتیږي (الا ما شاء الله) (احسن الکلام)

اَلَّذِيْنَ يَنْقُضُوْنَ عَهْدَ اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ مِيْثَاقِهٖ ۪ وَيَقْطَعُوْنَ مَآ اَمَرَ اللّٰهُ

دا هغه خلق دي چه ماتوي لوظ د الله پس د مضبوط والي د هغے نه او پریکوي هغه شے چه حکم کړیدے الله

بِهٖٓ اَنْ يُّوْصَلَ وَيُفْسِدُوْنَ فِي الْاَرْضِ ؕ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۲۷﴾

په هغے چه پیوسته دے کړے شي او فسادونه کوي په زمکه کښې، همدا کسان هم دوی تاوانیان دي۔

**تفسیر:**

اُوس ددے د پیژندلو صفات راوړي چه دا صفات په هر چا کښې وي نو الله تعالیٰ ئے په قرآن باندے ګمراه کوي که اُوغواړي۔ چه دوی د خپل رب سره او د نورو انسانانو سره دکړي عهود او لوظونو پرواه نهٔ لري، د الله تعالیٰ اوامر ئے شاته ارتولي دي او د الله تعالیٰ په نواهي باندے اخته دي۔ د هغے نه ځان نهٔ ساتي۔

**اَلَّذِيْنَ:** (۱) دا بدل دے د مخکښې الفاسقین نه۔ نو ګویا کښې دا تعریف د فاسقانو دے۔

(۲) یا الذین مبتداء ده او اُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ئے خبر دے۔ اول قول غوره دے۔ ځکه تفسیر د ماسبق دے او په کلام کښې ارتباط هم راځي۔

**نقض:** ماتولو او سپړدلو ته وئیلے شي۔ او د شریعت په اصطلاح کښې په مقابل د ایفاء (پوره والي) کښې استعمالیږي۔ لکه نقض العهد او ایفاء بالعهد۔ یعني لوظ کښې مخالفت او خلاف کول۔

**عَهْدَ اللّٰهِ:** عهد مضبوطے وعدے ته وائي او کله الحکم المؤکد (مضبوط حکم) ته وئیلے شي۔ دلته ترے لوظ مراد دے۔ من بعد میثاقه: دلته ضمیر راجع دے (۱) الله تعالیٰ ته۔ یعني چه الله تعالیٰ مضبوط لوظ اخستے ددے بنده نه (اَیْ مِنْ بَعْدِ مِیْثَاقِ اللّٰهِ اِیَّاهُ)۔

(۲) یا دے فاسق ته راجع دے۔ (۳) یا عهد ته راجع دے۔ یعني پس د مضبوطوالي د وعدے نه۔ راجح دا ده چه الله تعالیٰ ته راجع دے ځکه چه هغه مرجع قریب ده او پدے کښې تاکید زیات دے یعني الله تعالیٰ دغه لوظ مضبوط او محکم کړیدے او سره ددے نه دا

فاسق ئې ماتوي !۔
وعده ماتول د كافرانو او منافقانو صفت دے۔
**فائده** : الله تعالیٰ پدے مقام کښې ددے څيزونو مرادات نهٔ دي بيان کړي چه د عهد الله نه څه مراد او د قطع د ما امر الله نه څه مراد او د فساد نه څه مراد دے؟ ځکه دلته د فاسقانو تعريف کول مقصود دے او مسئلے بيانول ئې مقصود نهٔ دے، چه فلانے حکم نهٔ ماتوي او فلانے فساد نهٔ کوي بلکه د فاسقانو طبع او مزاج بيانول ئې مقصود دے چه د دوی مزاج دا دے چه دوي د الله تعالیٰ لوظونه ماتوي او فسادونه کوي وغيره۔

## نو د عهد الله څه مصداق دے؟

۱ – مفسرين وائي : دا لوظ دے په عالم الذر کښې (چه ديته عالم الارواح وائي) چه الله تعالیٰ تولو انسانانو ته وئيلي وو : (اَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوْا : بَلٰى) (الله تعالیٰ ترے د توحيد لوظ اخستے وو) او بندګانو اقرار کړے وو چه مونږ به تاسره شريکان نهٔ جوړوو او يواځې ستا عبادت به کوو۔ او دا لوظ الله تعالیٰ په ژبو د رسولانو مضبوط کړيدے۔
(۲) دارنګه (اَلْاِنْکَارُ مِنَ الْاَدِلَّةِ الدَّالَّةِ عَلٰى تَوْحِيْدِ اللهِ تَعَالٰى) ۔ (يعنی انکار کول د هغه دلائلو نه چه الله تعالیٰ نصب کړيدي په توحيد د الله تعالیٰ باندے) چه کائنات او عقل دے۔ دا ګويا کښې د بندګانو نه لوظونه اخستل شو۔ او دا کافران دے دلائلو ته نهٔ ګوري۔
(۳) دارنګه عهد الله نه معجزات د رسولانو هم مراد دي، نو دوی ددے معجزاتو لحاظ نهٔ ساتي او په انبياء عليهم السلام باندے ايمان نهٔ راوړي۔
(٤) يا د عهد الله نه مراد د بندګانو خپل مابين کښې لوظونه دي چه الله تعالیٰ په هغے باندے د وفادارئ حکم کړيدے۔ نو مطلب دا راووتو چه دوی د الله تعالیٰ او د بندګانو لوظونه تهول مات کړيدي۔ (۵) که د فاسقانو نه منافقان او يهود مراد شي نو بيا هغوی وعده د ايمان هم کړيده په خوله او اقرار سره، هغه ئې هم ماته کړيده۔
**مِنْۢ بَعْدِ مِيْثَاقِهٖ** : کښې اشاره ده چه دا لوظ ترے هير شوے نهٔ دے بلکه بنه مضبوط ورته ياد دے۔ خو بيا هم مخالفت کوي۔
**مَآ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖٓ اَنْ يُّوْصَلَ** : اَنْ يُّوْصَلَ په تاويل د مصدر (وصل) سره مفعول به دے د امر الله دپاره۔ (اَىْ مَا اَمَرَ اللّٰهُ بِوَصْلِهٖ) (چه الله تعالیٰ د هغے په يوځائے کولو حکم کړے وي)
د (**مَآ اَمَرَ اللّٰهُ**) ډير مصداقات دي (۱) صلة الارحام (خپلولي پالل) چه الله تعالیٰ ددے

حکم کړیدے او خلق ئے په معمولی بهانو باندے پریکوی۔ دارنګه دوی د رسول الله ﷺ رشته داری پریکړے وه په دشمنی کولو د هغه سره۔ (السراج)

(۲) شربینیؒ او قاسمیؒ لیکی : [وَيَحْتَمِلُ كُلُّ قَطِيعَةٍ لَا يَرْضَاهَا اللّٰهُ تَعَالىٰ كَقَطْعِ الرَّحْمِ وَالْإِعْرَاضِ عَنْ مُوَالَاةِ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالتَّفْرِقَةِ بَيْنَ الْأَنْبِيَاءِ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ وَالْكُتُبِ فِي التَّصْدِيْقِ وَتَرْكِ الْجَمَاعَاتِ وَسَائِرِ مَا فِيْهِ رَفْضُ خَيْرٍ اَوْ تَعَاطِي شَرٍّ فَاِنَّهٗ يَقْطَعُ الْوُصْلَةَ بَيْنَ اللّٰهِ وَبَيْنَ الْعَبْدِ الْمَقْصُوْدَةِ بِالذَّاتِ مِنْ كُلِّ وَصْلٍ وَفَصْلٍ] (السراج ونقله القاسمی)۔

(پدے کښې داخل دی پریکول د هر هغه شی چه الله تعالیٰ په هغے ناراضه وی لکه صله رحمی پریکول او د مؤمنانو د دوستانے نه اعراض کول، او د انبیاء علیهم السلام او د کتابونو منزله ؤ په تصدیق کښې تفرقه راوستل او جماعتونه پریخودل او ټول هغه څیزونه چه په هغے کښې د خیر پریخودل وی او د شر کول وی نو هغه د الله تعالیٰ او د بنده ترمینځ هغه تعلق پریکوی کوم چه مقصود بالذات دے د هر وصال او فراق نه)۔

(۳) بښهٔ مصداق حافظ ابن القیمؒ ذکر کړیدے۔ (وَيَدْخُلُ فِيْ هٰذَا ظَاهِرُ الدِّيْنِ وَبَاطِنُهٗ وَحَقُّ اللّٰهِ وَحَقُّ خَلْقِهٖ فَيَصِلُوْنَ مَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ رَبِّهِمْ بِعُبُوْدِيَّتِهٖ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ وَالْقِيَامِ بِطَاعَتِهٖ وَالْإِنَابَةِ اِلَيْهِ وَالتَّوَكُّلِ عَلَيْهِ وَحُبِّهٖ وَخَوْفِهٖ وَرَجَاءِهٖ وَالتَّوْبَةِ اِلَيْهِ وَالْاِسْتِكَانَةِ لَهٗ وَالْخُضُوْعِ وَالذِّلَّةِ لَهٗ وَالْاِعْتِرَافِ لَهٗ بِنِعْمَتِهٖ وَشُكْرِهٖ عَلَيْهَا وَالْاِقْرَارِ بِالْخَطِيْئَةِ وَالْاِسْتِغْفَارِ مِنْهَا فَهٰذِهٖ هِيَ الْوُصْلَةُ بَيْنَ الرَّبِّ وَالْعَبْدِ)۔ (داخلیږی پدے کښې د دین ظاهری احکام او باطنی او د الله تعالیٰ حقوق او د بندګانو حقوق، نو دوی تعلق قائموی د خپل رب سره په یواځے بندګی کولو د هغه سره چه هیڅ شریکان ورسره نهٔ جوړوی، او د هغه طاعت کوی او هغه ته په زړه سره انابت (رجوع) کوی، او په هغه باندے توکل کوی او د هغه سره محبت ساتی او د هغه نه یره کوی او امید ساتی او هغه ته توبه اُوباسی، او هغه ته عاجزی او خشوع کوی او خان ورته ذلیله کوی او د هغه په نعمتونو اقرار او شکر کوی، او د خپلے ګناه اقرار کوی او د هغے نه بخښنه غواړی نو دا هغه څیزونه دی چه د رب او د بنده ترمینځ د وُصلة او تعلق ذریعه ده)۔

(وَأَمَرَنَا اَنْ نُوْصِلَ مَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ رَسُوْلِهٖ بِالْاِيْمَانِ بِهٖ وَتَصْدِيْقِهٖ وَتَحْكِيْمِهٖ فِيْ كُلِّ شَيْءٍ وَالرِّضَا لِحُكْمِهٖ وَالتَّسْلِيْمِ لَهٗ وَتَقْدِيْمِ مَحَبَّتِهٖ عَلٰى مَحَبَّةِ النَّفْسِ وَالْوَلَدِ وَالْوَالِدِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ فَدَخَلَ فِيْ ذٰلِكَ الْقِيَامُ بِحَقِّهٖ وَحَقِّ رَسُوْلِهٖ وَاَمَرَ اَنْ نَصِلَ مَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ بِالصِّلَةِ وَاَمَرَ اَنْ نَصِلَ مَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ الزَّوْجَاتِ بِالْقِيَامِ بِحُقُوْقِهِنَّ وَمُعَاشَرَتِهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ وَاَمَرَ اَنْ نَصِلَ مَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ

الرِّقَـابِ بِـأَنْ نُّطْعِمُهُمْ مِمَّا نَأْكُلُ وَنَكْسُوْهُمْ مِمَّا نَكْتَسِيْ وَلَانُكَلِّفُهُمْ فَوْقَ طَاقَتِهِمْ وَأَنْ نَصِلَ مَا بَيْنَنَـا وَبَيْـنَ الْجَارِ الْقَرِيْبِ وَالْبَعِيْدِ بِمُرَاعَاةِ حَقِّهٖ وَحِفْظِهٖ فِيْ نَفْسِهٖ وَمَالِهٖ وَأَهْلِهٖ وَأَنْ نَصِلَ مَا بَيْنَنَا وَبَيْـنَ الرَّفِيْقِ فِي السَّفَرِ وَالْحَضَرِ وَأَنْ نَصِلَ مَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ عُمُوْمِ النَّاسِ بِأَنْ نَأْتِيَ اِلَيْهِمْ بِمَا نُحِبُّ أَنْ يَّـأْتُوْا اِلَيْنَـا وَأَنْ نَّـصِـلَ مَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْحَفَظَةِ الْكِرَامِ الْكَاتِبِيْنَ بِأَنْ نُّكْرِمَهُمْ وَنَسْتَحْيِيْ مِنْهُمْ كَمَا يَسْتَحْيِي الرَّجُلُ مِنْ جَلِيْسِهٖ وَمَنْ هُوَ مَعَهٗ مِمَّنْ يُجِلُّهٗ وَيُكْرِمُهٗ)

(عدة الصابرين :/۲۷)

(او الله تـعـالـیٰ مـونـږ ته دا حکم کړيدے چه زمونږ او د رسول ترمينځ تعلق اُوساتو چه په هغـه ايمان راوړو، د هغه تصديق اُوکړو، هغه ته په هر شی کښ فيصله ورووړو او بيا د هغه په فيصله رضا شو او هغے ته تسليم شو، او دارنګه د هغه محبت په نفس او بچو او مور او پـلار او ټولـو خـلـقو باندے مقدم کړو، نو پدے کښ داخليږی د الله تعالیٰ حقوق او د هغه د رسول حـقـوق اداء کـول۔ (۳) دارنـګـه د والـدين او خپلوانو سره صله رحمی قائمول (٤) د بيبيـانـو سـره تـعـلـقات قائمول، د هغوی حقونه اداء کول (مثلاً هغوی ته دين خودل) او د هـغـوی سره د شريعت مطابق ښائسته ژوند تيرول (۵) او د غلامانو سره تعلق ساتل پدے طريقه چه څه مونږ خورو او اَغوندو نو هغوی له به هم هغه شان ورکوو، او د طاقت نه بهر بـه پـه هـغـوی باندے تکليف نهٔ اچوو۔ (٦) او د نږدے او لرے ګاونډی سره تعلق ساتل دا دی چه د هـغـه د حقوقو لحاظ اُوسَتی او د هغه د نفس او مال او اهل حفاظت اُوکړے شی (۷) او د سفر او حضر ملګری سره تعلق قائمول او احسان کول (۸) لنډه دا چه عامو انسانانو سره تعلق ساتل پدے طريقه چه هغوی ته په هغه حالت راتـګ کـول څنګه چه تهٔ غواړے چه تا تـه راتـګ اُوکړی (هغه شان نرمه خبره کوه، احسان کوه، ادب او احترام ئے کوه څنګه چه ته دا خيزونه خان دپاره غواړے) (۹) د کرام کاتبين ملائکو سره تعلق ساتل دا دی چه د هغوی اکرام اُوکړو او د هـغـوی نـه حياء اُوکړو۔ لکه څنګه چه د يو عزتمند انسان نه حياء کيدے شی) دے ټولو کارونو باندے الله تعالیٰ امر کړيدے چه مونږه ئے يو ځائے کړو۔

بيا پـه سـورة الـرعـد کښ ورسره دا راغلی دی چه دا کارونه به ولے کوی (وَيَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ وَيَخَافُوْنَ سُوْءَ الْحِسَابِ) (۲۱)

(د الله تعالیٰ نه په يره او د بد حساب نه په يره سره) دا به پرے باعث وی۔

**حاصل** دا چـه ددے نـه مـراد ټـول هغهٔ خيزونه دی چه الله تعالیٰ پرے حکم کړيدے، الله تعالیٰ

مونږ ته دا حکم کړیدے چه د ایمان او د عبودیت په ذریعه د هغه سره تعلق مضبوط کړو، او د رسول الله ﷺ تعلق مضبوط کړو، چه په هغه ایمان راوړو ، د هغه سره محبت اُوکړو او د هغه اتباع اُوکړو، دغه شان صله رحمی مراد ده، تول پیغمبرانو، کتابونو باندے ایمان دے، د مور او پلار خدمت، د بچو او ښځے سره احسان دے او د انسانی لوظونو پابندی ده او تول هغه نیك عملونه مراد دی چه الله تعالیٰ پرے د عمل کولو حکم کړیدے۔ مؤمنان ددے تولو حقوقو رعایت او حفاظت کوی او دا فاسقان هغه خلق دی چه صله رحمی کټ کوی، د ښځے او بچو سره تعلق کټ کوی، امانت کښې خیانت کوی، دا تول مرضونه پکښې دی، د خالق او د مخلوق د حقوقو لحاظ نهٔ کوی۔ نو څومره جامعیت دے په قرآن کریم کښې چه صرف یو یے کلمے تول دین راګیر کړیدے حقوق الله او حقوق العباد ئے ذکر کړیدی۔

**وَيُفْسِدُوْنَ فِى الْاَرْضِ** : د فساد تشریح مخکښې تیره شویده۔ دلته ترے مراد (۱) شرك دے (۲) او اعتراض کول په قرآن کریم باندے او ددے په ذریعه خلق د قرآن نه اړول۔ مفسرین وائی : خلق د قرآن نه اړول او د هغے سپکوالے خلقو ته په زړه کښې کینول۔او د دین او دین والو پورے توقے کول۔لکه نن صبا کافران هم دا کوشش کوی چه په قرآن کریم اعتراضونه اُوکړی او خلق ترے واړوی۔ او فساد یو داسے عام لفظ دے چه ډیرو مصداقاتو ته شامل دے۔

مخکښې د دوی د عقیدے خرابوالے وو او په فساد کښې بل ته دعوت د ګمراهئ دے۔ بلکه غالباً قرآن کریم کښې فساد بمعنی الصَّدِ عَنْ سَبِيْلِ اللهِ استعمالیږی۔

**(الخاسرون)** سخت تاوان والا دغه کسان دی چه په قرآن ګمراه شو او د شفاء کتاب او د هدایت کتاب د دوی دپاره سبب د تاوان او هلاکت اُوګرځیدو۔ او دا تاوانیان دنیا او آخرت دواړو کښې دی۔

كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللهِ وَكُنْتُمْ اَمْوَاتاً فَاَحْيَاكُمْ

څرنګ کفر کوئ تاسو په الله تعالیٰ حال دا چه تاسو مړه (یعنی نیشت) وئ نو راژوندی ئے کړئ (په دنیا کښې)

ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۲۸﴾

بیا به مو وژنی بیا به مو راژوندی کوی بیا به دے الله ته ورګرځولے شئ تاسو۔

**تفسیر:**

**مناسبت** : (بَيَّنَ اللّٰهُ آثَارَ الْكُفْرِ وَهُنَا التَّوْبِيخُ عَلَى الْكُفْرِ) (مخکښې الله تعالیٰ د کفر آثار بیان کړل چه د الله په کتاب اعتراضات کول او فساد کول او هر قسمه ګندونه په انسان کښې راجمع کیدل نو اوس توبیخ او زجر ورکوی په کفر کولو باندے)

۲- دارنګه ربط د موضوع د سورة سره دا دے چه سورة کښې موضوع د ایمان ده نو دلته اوس منع کوی د کفر نه چه په کفر تاسو سره هیڅ دلیل نشته۔

۳- ددے آیت تعلق دے د يَا أَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوا سره یعنی اے خلقو ! د الله تعالیٰ بندګی اوکړئ او په الله تعالیٰ باندے کفر مهٔ کوئ۔ نعمتونه ئے درباندے کړیدی۔ د هدی للمتقین سره هم متعلق دے، دا قرآن هدایت چا ته کوی، متقیانو مؤمنانو خلقو ته ئے کوی نو اے خلقو! تاسو ولے ایمان نهٔ راوړئ او په الله تعالیٰ باندے کفر کوئ۔ او ځان په زوره د هدایت نه محروم کوئ۔

نو اوس په دے آیت کریمه کښې الله توبیخ ورکوی په کفر سره د وجود د نعمتونو نه یعنی الله رب العالمین زجر او رټنه ورکوی هغه چا ته چه په الله تعالیٰ کفر کوی، ایمان پرے نهٔ راوړی او حال دا چه الله تعالیٰ پرے بے شماره نعمتونه کړیدی، دلته الله تعالیٰ یو څو نعمتونه شمارلی دی، چه اوګوره ته مخکښې نهٔ وے بیا الله وجود درکړو بیا به درباندے مرګ راولی، بیا به دِے راژوندے کوی نو ستا په هغه باندے ورتیریدل دی نو ته ولے په هغه کفر کوے ستا په کفر کولو کښې هیڅ عذر نشته۔ او بل غټ نعمت په (۲۹) آیت کښې ذکر کوی چه د زمکے ټول خیزونه ئے ستا د فائدے دپاره پیدا کړل، دا خوراکونه څکاکونه، ښځے او بچی او جائیدادونه ټول شیان ستاسو دپاره دی۔

بیا فرمائی : چه الله درسره دا احسان اوکړو چه انسانان ئے په ټولو مخلوقاتو کښې عزتمند پیدا کړل، الله تعالیٰ ملائکو ته اوفرمایل چه تاسو به د آدم او د هغه د بچو خدمت کوئ، او خلافت د زمکے ئے درکړو نو اوګوره بیا د آدم عليه السلام نه نقصان اوشو نو الله تعالیٰ ئے توبه قبوله کړه چه ستاسو دپاره هم الله تعالیٰ دغه لاره کولاوه کړیده چه کله درنه نقصان او ګناه اوشی نو الله تعالیٰ درته د توبے دروازه کولاوه کړیده، دا خومره لوئی احسان دے۔ مینځ کښې وائی : اوګوره آدم عليه السلام ستاسو پلار دے، دا مسجود د ملائکو دے، ملائکو هغه ته سجده کړے ده، هغه له الله تعالیٰ دومره عزت ورکړو چه یو ښائسته مخلوق (ملائك) الله تعالیٰ ددهٔ تابع کړل، اشاره ده دے ته چه ملائك به ستاسو خدمت کښې لګیا وی، ستاسو عمل

بنامے به ليكي، حفاظتونه به كوي، دعاگانے به كوي، ډير كارونه ملائك كوي، د انسانانو د فائدے دپاره لګيا دي. نو دے ټولو دلائلو او نعمتونو ته اُوګورئ چه په الله تعالیٰ باندے اُوس ايمان راوړل پكار دي او كه نه ؟ آؤ ! راوړل پكار دي، د هغه سره به شريكان نهٔ جوړوي، د هغه په ذات به يقين كوي، چه هغه ډير ښكلے ذات دے، بيا ددے ايمان د حفاظت دپاره به كوشش كوي، نيك عملونه به كوي، د هغه د رضا د حاصلولو په تالاش كښې به لګيا وي.

پدے روستنو آيتونو كښې دا فائده هم ده چه الله تعالیٰ دا زمكه پيدا كړه، ددے دپاره يو خليفه پكار دے، خليفه ئے انسان مقرر كړو، د زمكے خلافت الله تعالیٰ انسانانو مؤمنانو له وركړو، اول آدم ﷺ تـه، بيا نورو پيغمبرانو ته پاتے شو، بيا بني اسرائيلو ته وركړے شو، بيا د بني اسرائيلو – چه ددے خلافت او مشرئ اهليت پكښې نهٔ وو- يو پنځوس فسادونه به بيان كړي چه دا دا مرضونه پكښې راغلل، نو الله تعالیٰ د هغوي نه دا مشري واخسته، او د محمد رسول الله ﷺ دے اُمت ته ئے وركړه، نو پدے كښې به مونږ ته اشاره وي چه كه تاسو غواړئ چه تاسو نه الله تعالیٰ د دين كار واخلي او د زمكے مشري درله دركړي چه په هغے كښې ستاسو دين جاري كړي، نو د يهودو صفات به د ځان نه لرے كوئ، يهودو كښې دا مرضونه وو چه د الله تعالیٰ د وعدو پابنديانے به ئے نهٔ كولے. روستو به راشي چه ايمان نهٔ راوړي، د مانځه پابند نهٔ وو، بل ته امر خپله عمل نهٔ كول وغيره وغيره. نو دا ددے آيتونو مختصر فوائد دي.

**فائده** : دا آيت متضمن دے نورو فوائدو له لكه پدے آيت كښې اثبات د صانع دے (۲) اثبات د افعالو د هغه چه مړه كول او ژوندي كول كوي، (۳) اثبات المعاد. الله تعالیٰ دلته څلور څيزونه ذكر كړيدي درے محسوس او يو معقول. زمونږ نشت والے بيا شته كيدل او بيا مړه كيدل محسوس او معلوم دي. يوه خبره معلومه نهٔ ده چه دوباره ژوندي كيدل دي نو الله تعالیٰ فرمائي : چه پدے دريو اقرار كوئ نو په دے څلورمه خبره هم اقرار اُوكړئ چه دوباره به مو راژوندي كوي. نو پدے آيت كښې استدلال كول دي د محسوس نه په معقول باندے او د مبدأ نه په معاد. لكه داسے استدلال په سورة الروم (۴۰) كښې هم شويدے.

(**كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ**) پدے تپوس كښې تعجب او توبيخ او زورنه غرض ده يعني ستاسو څه عذر دے چه په الله تعالیٰ باندے كفر كوئ. او په الله تعالیٰ باندے كفر دا دے (۱) چه د الله تعالیٰ د ذات او صفاتو نه انكار اُوكړي (۲) دويم دا چه د هغه سره د غير الله عبادت اُوكړي

لکه ابن کثیرؒ دا معنی کوی : (کَیْفَ تَعْبُدُوْنَ مَعَهٗ غَیْرَهٗ) (د الله تعالیٰ سره د غیر الله عبادت څنګه کوئ) یعنی د غیر الله عبادت بعینبه په الله تعالیٰ باندے کفر دے۔ لکه د مکے مشرکانو به دا کار کولو۔ نو دلته عام خطاب دے که مشرکان وی او که دهریان وی او که کتابیان وی۔ او ابن کثیرؒ دیته اشاره کوی چه د مکے مشرکانو خو الله تعالیٰ منلو لیکن د هغه سره ئے شرك کولو پدے وجه ورته کافران اُوئیل شو۔

امواتاً : د موت نه مراد عدم سابق دے (یعنی نشتوالے) د اموات نه مراد غیر موجودین دی یعنی انسان په ابتداء کښې نیشت وو، فَاَحْیَاکُمْ) اَیْ فِی الدُّنْیَا) بیا ئے دنیا ته راوستو، (ثُمَّ یُمِیْتُکُمْ) بِالْمَوْتِ الْمَعْرُوْفِ) بیا به مو وژنی په معلوم مرګ۔ دا درے کارونه تول خلق منی۔

ثُمَّ یُحْیِیْکُمْ : اَیْ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ ۔ (د قیامت په ورځ به مو راژوندی کوی) (یحییکم) ددے نه بعث بعد الموت (د آخرت) ژندګی مراد ده لکه دا په روایت د ابن عباس او ابن مسعود کښې راغلے دی (قرطبیؒ وغیره) او دغه شان سورة المؤمنون (۱۵) کښې دی : (ثُمَّ اِنَّکُمْ یَوْمَ الْقِیَامَةِ تُبْعَثُوْنَ) نو د موت پسے ئے د قیامت بعث ذکر کړیدے۔

ثُمَّ اِلَیْهِ تُرْجَعُوْنَ اَیْ لِلْحِسَابِ۔ (یعنی د الله تعالیٰ د حساب دپاره به واپس کولے شئ)

نو الله تعالیٰ فرمائی چه دا منے نو دا هم ورسره اُومنه چه بیرته به دِے په آخرت کښې راژوندے کوی او بیا به هغه ته اُوګرځولے شئ د حساب کتاب دپاره، چه تا له الله نعمتونه درکړیدی نوتا څه شکر کړیدے۔ د اعمالو بدله به درکوی۔ نو پکار خو دا وه چه تاسو ایمان راوړے وے او د تقویٰ لار مو اختیار کړے وے او د هغهٔ د عذابونو نه یریدلی وے او د هغه د ثوابونو امید مو ساتلے وے۔

(تُرْجَعُوْنَ) ئے مجهول صیغه ذکر کړه اشاره ده دیته چه که د انسان خوښه وی او که نه خو الله به ئے ځان ته راغواړی او خپلے مخے ته به ئے اُودروی۔ لکه حدیث کښې راغلی دی چه په تاسو کښې به هریوتن د الله سره خبرے کوی چه مینځ کښې به هیڅ ترجمان نه وی۔ (متفق علیه)

(۲) پدے کښې بعض مفسرینو **دویم تفسیر** داسے ذکر کړیدے۔ چه ثم یحییکم نه مراد په قبر کښې ژوندی کول دی او ثم الیه ترجعون کښې د قیامت ژوند دے۔ وائی څکه چه بیا خو پدے آیت کښې د قبر ژوند نهٔ ثابتیږی۔ او حال دا چه په قبر کښې ژوند هم حق دے۔

دا تفسیر ئے د معتزلو په رد کښې کړیدے چه هغوی په قبر کښې ژوند نهٔ منی۔ او وائی چه عذاب قبر په احادیثو ثابت دے او احادیث اخبار احاد تول ظنیات دی او په هغے باندے

عقیده نهٔ ثابتیږی۔ لیکن دا قاعده غلطه ده بلکه صحیح احادیث یقینی دی، امت پرے اتفاق کړیدے، بله دا چه عذاب قبر د قرآن کریم نه هم ثابت دے۔

دا تفسیر جواز لری لیکن پدے مقام کښ اکثرو مفسرینو ورته غریب او بعید وئیلے دے۔ لکه ابن کثیرؒ، آلوسیؒ په روح المعانی کښ او شاه عبد العزیزؒ په تفسیر فتح العزیز او ابن الجوزیؒ په زاد المسیر کښ۔ وجه د ضعف دا ده چه دا د آیت د سورة المؤمنون (۱۵) (ثُمَّ اِنَّكُمْ بَعْدَ ذٰلِكَ لَمَيِّتُوْنَ ثُمَّ اِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ تُبْعَثُوْنَ)او سورة زمر (۳۰) (اِنَّكَ مَيِّتٌ وَّاِنَّهُمْ مَّيِّتُوْنَ ثُمَّ اِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عِنْدَ رَبِّكُمْ تَخْتَصِمُوْنَ)نه خلاف دے۔ دویم دا چه د سورة المؤمن په (۱۱) آیت کښ راځی : جهنمیان به الله تعالیٰ فرمائی : (رَبَّنَآ اَمَتَّنَا اثْنَتَيْنِ وَاَحْيَيْتَنَا اثْنَتَيْنِ) دلته ئے دوه مرګونه او دوه ژوندونه ذکر کړیدی۔ نو که دلته د قبر ژوند مراد شی نو بیا مونږ تپوس کوو چه ثم الیه ترجعون سره به بعث بعد الموت مراد وی او که نهٔ وی ؟ که مراد وی نو په حیات فی القبر پسے به بل مرګ مراد وی او که نهٔ وی ؟ که بل مرګ مراد وی نو اول د هغے دپاره صحیح دلیل نشته او دویم دا چه لازم شول درے مرګونه او درے ژوندونه او که حیات فی القبر پسے بل مرګ مراد نهٔ وی نو یو خو بعث بعد الموت سره احیاء د ژوندی لازمیږی او دا خو تحصیل د حاصل دے او بله دا چه درے حیاتونه لازم شول او دا ټول مخالف دی د دغه آیت (۱۱) د سورة المؤمن نه۔ (انظر تفسیر احسن الکلام)

بیا **سوال** دا دے چه که دا تفسیر وانخلو نو بیا خو حیات د قبر ثابت نهٔ شو ؟ (۱) ددے **جواب** دا دے چه د قبر عذاب ئے پدے مقام کښ ځکه نهٔ دے ذکر کړے چه دا مقام دے د مقابلے د کافران او مشرکینو سره نو هغوی سره په غټو معروفو خبرو مقابله کوی چه ټولو خلقو ته تسلیم دی، او هر چه د قبر ژوند دے نو هغه باریك او عجیبه دے، نو هغے ته د باریك زړونو رسیدل کیږی، عام خلق هغه نشی فهمولے، او هغهٔ د آخرت پیش خیمه او مقدمه ده او د آخرت د متعلقاتو نه دے او هغهٔ حکمی حیات دے، مستقل حیات نهٔ دے، پدے وجه الله تعالیٰ دلته نهٔ دے بیان کړے۔ او هرکله چه مشرکان د حقیقی حیات نه انکار کوی نو د حکمی حیات نه خو په طریق اولیٰ انکار کوی۔ نو ددے وجه نه ئے هم حیات د قبر ذکر نکړو او حقیقی حیات ئے ذکر کړو چه دا عقل ته قریب دے۔ او حیات د قبر ځکه حقیقی حیات نهٔ دے چه حیات حقیقیه دیته وائی چه په هغے کښ تعلق د روح د بدن سره وی په تعلق د اتصال او ادخال سره او په قبر کښ د بدن نه د روح د جدا کیدو نه پس د شعور

او د ادراك د بقاء نه تعبير په حيات سره كيږي او اصلاً تعلق د روح د بدن سره نهٔ وي. په بل تعبير په بدن كښې روح نهٔ وي بلكه د روح او د بدن خپل مينځ كښې يو كنكشن شانته وي چه پدې سره د مړي نه نوم د مرګ نهٔ لرې كيږي. لكه دا خبره محمد بن عبد الهادي متوفى (٧٤٤ هـ) په كتاب الصارم المنكي ص (١٨٥) كښې ذكر كړيده.

**فائده** : په دنيا كښې اصل ژوند د بدن وي، او روح ئې تابع وي، او په قبر كښې اصل ژوند د روح وي او بدن ئې تابع وي او په آخرت كښې اصل ژوند د روح او بدن دواړو وي نو هغه حقيقي ژوند دے. او د قبر ژوند دومره قوي نهٔ دے. نو څكه هغه پدے مقام كښې ذكر نشو. بلكه هغه بمنزلة النوم دے لكه ولكن لا تشعرون پرے دليل دے. نو څكه هغه قرآن كريم كښې مستقل ژوند نه دے شمار شوے.

(٢) دويمه وجه دا ده چه په يو آيت يا حديث كښې توله مسئله نهٔ وي، نو د قبر حيات به د بل ځائے نه طلب كړے شي، او د هغے دپاره ډير دلائل د آيت او د متواترو احاديثو نه شته، قرآن كريم كښې څوارلس آيتونه د عذاب قبر د اثبات دپاره دي.

**فائده** : په قبر كښې كوم شي له عذاب وركولے شي روح له كه بدن له ؟ پدے باره كښې شيخ الاسلام ابن تيمية په الاعتقاد المفصل كښې درے اقوال ذكر كړيدي (١) اول قول دا دے چه صرف روح له عذاب دے او بدن هسے جماد دے، هيڅ عذاب او راحت ورله نشته. او بدن سره ئے هيڅ تعلق نشته. او دا رايه علامه آلوسيؒ په روح المعاني كښې غوره كړيده وائي : څكه چه د خلقو شكونه پيدا كيږي چه كله بدن حيوان خوړلے وي، او كله اُويو وړے وي، او كله سوزيدلے، ذره شوے وي. نو بس داسے به اُووايو چه صرف روح له عذاب او نعمت دے چه اشكالات ختم شي. ليكن دا قول ضعيف دے. (٢) دويم قول د اكثرو اهل السنة والجماعة دے چه : عذاب او نعمت روح له هم شته او بدن له هم شته، روح اصل او بدن ئے تابع دے. نو بدن له څنګه عذاب وركولے شي؟. ١ – نو بعض وائي چه بدن كښې بيل روح اچولے شي (بقدر ما يحس بالتعذيب والتنعيم والالم)(داسے روح وي چه صرف عذاب او نعمتونه او دردونه محسوس كولے شي). ٢ – بعض وائي : بدن له عذاب پدے طريقه دے چه د روح د بدن سره كنكشن او رابطه وي. لكه د بجلئ او موبائل وغيره په شان. (٣) دريم دا چه بدن له الله تعالىٰ عذاب وركوي هرڅنګه چه وي خو شريعت وئيلي دي، الله تعالىٰ قادر دے په عذاب او نعمت وركولو او د هغه ژوند پته بندګانو ته

نشته. او نهٔ د دغه حالاتو نه څوك خبر دی او الله او رسول د هغې خبر ورکړیدے چه قبر کښې عذاب شته په هر کیفیت چه وی او دا د ایمان بالغیب مسئلے دی. او دریم قول ندے لیکلے شوے ځکه هغه شاذ دے.

اُوس **دلیل د عذاب القبر** : ۱- نبی ﷺ په شپږ قبرونو تیر شو نو اُوښه پرے اُوخوزیدله، نزدے وه چه گوزار کړے وے، نو تپوس ئے اُوکړو چه دا قبرونو والا څوك پیژنی؟ یو سړی عرض اُوکړو : زهٔ، وے فرمایل : دا کله مړهٔ شویدی؟ وے وئیل : په شرك کښې. وے فرمایل : (اِنَّ هٰذِهِ الْاُمَّةَ تُبْتَلٰی فِیْ قُبُوْرِهَا فَلَوْلَا اَنْ لَّا تَدَافَنُوْا لَدَعَوْتُ اللّٰهَ اَنْ یُّسْمِعَكُمْ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ الَّذِیْ اَسْمَعُ مِنْهُ) (صحیح مسلم : ۷۳۹۲ ومسند احمد) (دے امت له په قبرونو کښې عذاب ورکولے شی نو که دا یره نهٔ وے چه تاسو به مړی خخ نکړئ، نو ما به د الله تعالیٰ نه غوختلی وے چه تاسو ته عذاب د قبر واوروی کوم چه زهٔ اُورم) پدے کښې عذاب دے.

(۲) (تَعَوَّذُوْا بِاللّٰهِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ) (صحیح مسلم) نبی ﷺ فرمائی : د الله تعالیٰ پورے د عذاب د قبر نه پناهی طلب کړئ.

(۳) (اِنَّ هٰذِهِ الْقُبُوْرَ مَمْلُوْءَةٌ ظُلْمَةً وَاِنَّ اللّٰهَ یُنَوِّرُهَا لَهُمْ بِصَلَاتِیْ عَلَیْهِمْ)

(مسند احمد : ۱۲۵۳۹) ومسلم : ۹۵٦، بسند صحیح والدارقطنی)

(دا قبرونه د تیارو نه ډك دی خو الله تعالیٰ ئے زما د مانځه په وجه روښانه کوی).

(٤) دلیل : شرعی قاعده ده چه کله په قرآن او حدیث کښې یوه خبره ذکر وی او په زمانه د نزول د قرآن او حدیث کښې د خلقو په ذهن کښې په عرف کښې یوه معنیٰ راتله نو هغه معنیٰ به شرعاً هم مراده وی، ولے که هغه مراده نهٔ وی نو په الله تعالیٰ او په رسول ﷺ واجب دی چه خلقو ته به بیان کوی چه ددے لفظ نه چه تاسو کوم مطلب اخلئ، دا مراد نهٔ دے. لکه مثال : نبی ﷺ اُوفرمایل : تاسو پهلوان چا ته وایئ؟، صحابه کرامو اُوفرمایل : هغه څوك دے چه خلق راپرزوی، وے فرمایل : (لَیْسَ الشَّدِیْدُ بِالصُّرَعَةِ اِنَّمَا الشَّدِیْدُ الَّذِیْ یَمْلِكُ نَفْسَهٗ عِنْدَ الْغَضَبِ) (پهلوان دیته نهٔ وائی چه خلق راحملوی بلکه پهلوان د الله تعالیٰ په نیز هغه دے چه د غصے په وخت ځان په کنټرول کښې کړی).

نو دغه شان په قرآن او حدیث کښې د قبر لفظ ذکر کیږی. قرآن کریم کښې دی :(ثُمَّ اَمَاتَهٗ فَاَقْبَرَهٗ) او په عرف د مسلمانانو کښې هم قبر همدے کندے ته وئیلے شی نو که دے قبر کښې عذاب او نعمتونه نهٔ وے نو په نبی ﷺ باندے واجبه وه چه امت ته به ئے وئیلی وے چه زهٔ

چه د قبر لفظ ذکر کوم نو ددے نه دا قبر مراد نهٔ دے بلکه برزخ یا بل ځائے مراد دے۔
او په دنیا کښې ددے مثال د خوبی انسان دے چه خوب کښې وهل او خوشحالی وینی او ته به ورته خوا کښې ناست ئے په هیڅ حالت به ئے نهٔ خبریږے نو دا د ایمان بالغیب سره تعلق لری۔ او آیت کښې دی (وَلَوْ تَرٰی اِذْ یَتَوَفَّی الَّذِیْنَ کَفَرُوا الْمَلٰٓئِکَةُ یَضْرِبُوْنَ وُجُوْهَهُمْ وَاَدْبَارَهُمْ) (الانفال: ۵۰) چه ملائک کله د کافرانو نه ساه اخلی نو مخونه او شاگانے ئے وهی) او حال دا چه مونږ خو یو کافر هم داسے اُونهٔ لیدلو چه مخ ئے د وهلو په وجه شین شوے وی نو دا ټول ایمان بالغیب دے او ددے نه انکار نهٔ کوی مگر غټ جاهل خواهش پرست۔ وبالله التوفیق۔ څوک چه د عذاب قبر او نعیم د قبر منکر دی اولًا دا سړے بے ایمانه دے۔ دویم جاهل دے۔ د شریعت د حقائقو نه خبر نهٔ دے۔ د کتاب او سنت صحیح فهم ورسره نشته۔

**هُوَ الَّذِیْ خَلَقَ لَکُمْ مَّا فِی الْاَرْضِ جَمِیْعًا ثُمَّ**

خاص الله هغه ذات دے چه پیدا کړی ئے دی ستاسو د فائدے دپاره هغه څیزونه چه په زمکه کښې دی ټول۔ بیا

**اسْتَوٰٓی اِلَی السَّمَآءِ فَسَوّٰهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ ۚ وَهُوَ بِکُلِّ شَیْءٍ عَلِیْمٌ ﴿۲۹﴾**

اراده اُوکړه الله تعالیٰ آسمان ته پس برابر ئے جوړ کړل اُووه (۷) آسمانونه۔ او هغه په هر شی باندے پوهه دے۔

**تفسیر** : دلته الله تعالیٰ نور نعمتونه ذکر کوی چه تاسو له الله آسمان او زمکه او ټول نعمتونه ستاسو د فائدے دپاره پیدا کړی دی، نو تاسو څنگه د هغه عبادت نکوئ او د هغه سره شریکان جوړوئ او خالق نه انکار کوئ۔

**عنوان الآیة** : (۱) پدے آیت کښې تعارف د الله تعالیٰ دے۔ (۲) دویم پدے کښې بیان النعمة دے چه الله تعالیٰ په تاسو عجیب انعامات کړیدی (۳) او دلیل د رد الکفر دے چه ټول نعمتونه د هغه د طرفه دی نو کفر نهٔ دے پکار۔

**هُوَ الَّذِیْ** : دے کښې معنیٰ د خصوصیت ده څکه هُوَ او اَلَّذِیْ دواړه معرفے دی۔

(لَکُمْ) کښې لام د انتفاع (فائدے) دپاره دے، څکه مقصود د پیدائش د څیزونو د هغے نه فائده اخستل دی۔

**لَکُمْ** : کښې اشاره ده چه انسان لـه الله تعالیٰ کائنات پیدا کړیدی او هغه په کښې خلیفة

الارض جوړوي، نو الله تعالیٰ ته ددې انسان اعمال ډیر خوښ دي، نو د دنیا ټول څیزونه بنده له او بنده الله تعالیٰ له پیدا دي. نو دا آیت مقدمه شوه د راتلونکي آیت چه الله تعالیٰ تاسو له خلافت درکړو او د دنیا فائدې ئې درله درکړې نو د الله تعالیٰ قانون به نافذ کوئ.

مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا : دې کښې بعض خلق غلط تفسیر کوي (۱) چه جمیعاً مفعول به دې دپاره د پټ فعل. (اَیْ اِعْتَقِدُوْا جَمِيعًا مِنْهُ) (عقیده اُوساتئ چه دا ټول څیزونه د الله تعالیٰ د طرفه دي) وجه دا ده چه دا خبره خو د آیت نه خپله معلومیږي ځکه چه جمیعاً د خَلَقَ سره متعلق دې. نو خپله معلومه شوه چه الله تعالیٰ د ټولو څیزونو خالق دې. نو دې پټ فعل راوخکلو ته ضرورت نشته.

**سوال** : ډیر څیزونه د انسانانو د ضرر دپاره دي لکه مار، لړم، زمرې، پړانګان، زهریلي حیوانات، بمونه وغیره؟ **جواب ۱** : په هغې کښې هم فائده شته ځکه فائده یا دیني وي یا دنیوي نو په هغې کښې دیني فائده شته چه د الله تعالیٰ قدرت پرې معلوم کړي، چه الله تعالیٰ داسې قادر ذات دې چه دومره ضرري څیزونه هم پیدا کولې شي.

(۲) **جواب** : دنیا کښې ضرري څیزونه پیژندل د آخرت د عذاب دپاره نخې دي. پدې سره د انسان اصلاح کیږي. ډیر داسې څیزونه دي چه مونږ ته ئې فائده نهٔ ښکاري لیکن الله تعالیٰ علیم او خبیر دې (فَلَآ اُقْسِمُ بِمَا تُبْصِرُوْنَ وَمَا لَا تُبْصِرُوْنَ) زمونږ علم قاصر دې.

**فائده**: بعض اباحیه، دهریه ددې نه استدلال کوي چه زر، زن، زمین مشترك دې د ټولو انسانانو ترمینځ، ځکه دا ټول د انسانانو د فائدې دپاره پیدا دي. جواب دا دې چه ددې معنیٰ دا نهٔ ده چه د هر شي نه ته فائده اخستې شې، اګر که پردې شې هم وي. او حرام شې وي لکه بعضِ اباحیه دهریه وائي. نهٔ بلکه معنیٰ دا ده چه مجموعه ټول انسانان د مجموعه ټولو شیانو نه فائده اخلي، د زمکې نه، ددې آسمانونو نه، ددې ورځو، شپو نه، حیواناتو، خاورو، آب وهواء نه، بیا د چا لږ وي د چا ډیر. خو دا شیان ستاسو د فائدې دپاره دي. نو دلته مقابله د جمع د جمع سره راغلې ده چه دا تقاضا کوي د تقسیم د احادو په احادو. نو چه د بعض مسلمانانو د دنیا د څیزونو نه فائده واخسته نو دا داسې شوه لکه چه تا ترې واخسته. ځکه هغه ستا همجنس دې. نو دې سره دا اعتراض هم ختم شو چه ډیر څیزونو نه خو مونږ فائده نشو اخستې لکه پردئ ښځه، پردې مال وغیره.

او د قرآن کریم په نورو آیتونو کښې د هغې حرمت ذکر دې. نو څنګه یو ځائې نه استدلال

کوی او بل ځائے نهٔ منی ؟!۔

## فائده : اصل په اشیاؤ کښې څه شے دے ؟ اباحت دے او که نهٔ ؟

بعض بدعتیان ددے نه دلیل نیسی چه اصل په اشیاؤ کښې اباحت دے نو مونږ چه کوم بدعات کوونو دا هم مباح دی لکه غلط خیراتونه، کلیزے، څلویښتیانے او خوراکونه۔

جواب دا دے چه دلته فقهی قاعده ده چه اشیاء درے قسمه دی (۱) عبادات او قربات دی۔ نو اصل پدے کښې توقف دے۔ د خان نه څوك عبادت او تقرب نشی جوړولے، خیراتونه، مونځونه د خان نه جوړول غلط دی بلکه دا به د الله تعالیٰ او د هغه د رسول نه زده کوے۔ ورنه غلے به کیږے۔ (۲) دویم خوراکی مواد، بیوع، لباسونه خوراکونه دی نو اصل پدے کښې اباحت دے۔ هر خوراك، هره بیعه، هر لباس جائز دے مگر هغه چه شریعت ترے منع کړی وی۔ (كُلْ مَا شِئْتَ وَالْبَسْ مَا شِئْتَ مَا اَخْطَأَتْكَ اثْنَتَانِ سَرَفٌ وَمَخِيلَةٌ) (قاله ابن عباس كَمَا فِي الْبُخَارِيِّ كِتَابُ اللِّبَاسِ) وَوَرَدَ مِثْلُهُ مَرْفُوعًا رَوَاهُ النَّسَائِيُّ فِي الزَّكٰوةِ وَابْنُ مَاجه فِي اللِّبَاسِ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا وَتَصَدَّقُوْا وَالْبَسُوْا مَا لَمْ يُخَالِطْهُ إِسْرَافٌ وَمَخِيلَةٌ) (تخريج الأحاديث والآثار الواقعة في تفسير الكشاف -لعبد الله بن عبد الرحمن السعد ۱/ ٤٥٩) سورة الاعراف) (خورئ، څکئ، او صدقه کوئ او اغوندئ ترڅو پورے چه ورسره اسراف او تکبر نهٔ وی یو ځائے شوے)۔

په مرفوع حدیث کښې دی :

(وَمَا سَكَتَ عَنْهُ فَهُوَ مِمَّا عَفَى عَنْهُ) (ترمذی و ابو داود وصححه الالبانی)

(کوم شی نه چه شریعت سکوت کړیدے نو هغه ئے امت ته معاف کړیدے)۔

(۳) اصل په زنانو کښې حرمت (حراموالے) دے، ټولے ښځے حرامے دی، که کافره وی، که هندوه، که سکه او که مشرکه وی۔ مگر هغه چه شریعت ئے اجازت ورکړی، او شریعت د څلورو ښځو او د وینځو اجازت ورکړیدے، باقی زنانه استعمالول حرام دی۔

نو مبتدعینو ته به وئیلے شی چه تاسو چه دا کوم خیراتونه او اسقاطونه او مابنامی او چهلمونه کوئ نو دا تاسو عبادت گنړئ او که نهٔ ؟ که عبادت ئے گنړئ نو د الله تعالیٰ او د هغه د رسول نه به دلیل راوړئ، که نهٔ وی دا به بدعت وی۔ حدیث د مسلم کښې دی : (مَنْ عَمِلَ عَمَلًا لَيْسَ عَلَيْهِ أَمْرُنَا فَهُوَ رَدٌّ) (چا چه یو داسے عمل اُوکړو چه په هغے باندے زمونږ

حکم او اجازه نهٔ وی نو دا به مردود وی) نو دا دلیل دے چه کوم عبادت شرع نهٔ وی خودلے نو هغه به د خان نه عبادت نشی جوړیدے۔ بلکه هغه به بدعت وی۔ اُوس پدے خبره باندے ډیر مسائل معلوم کړه !۔ (راجع فتح القدیر) ددے مسئلے تفصیل په الحق الصریح ۴۴۵/۱) کښې تفصیلاً اُوګوره۔

**ثُمَّ اسْتَوٰى** : د استوئ په صله کښې چه کله الیٰ راشی نو په معنیٰ د قصد او ارادے سره وی۔ او چه په صله کښې ئے علی راشی نو په معنیٰ د علا وارتفع (پورته او اُوچت شو) او کیناستو سره وی۔ لکه ( اَلرَّحْمٰنُ عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوٰى ) (لِتَسْتَوٗا عَلٰى ظُهُوْرِهٖ) او د الله تعالیٰ په صفت کښې استوئ راغلے دے۔ او د متشابهاتو نه دے۔

(۳) کله په معنیٰ د كَمُلَ او تَمَّ سره وی کله چه مطلق ذکر شی۔ لکه (وَلَمَّا بَلَغَ أَشُدَّهٗ وَاسْتَوٰى) (القصص :۱٤) ای كَمُلَ عَقْلُهٗ) (عقل ئے کامل شو)۔

(٤) کله په معنیٰ د برابر والی سره وی چه واو ورسره راشی لکه (اِسْتَوَى الْمَاءُ وَالْخَشَبَةُ) اَیْ مَعَ الْخَشَبَةِ۔ (اُوبه د لرګی سره برابرے شوے)۔

**فَسَوّٰهُنَّ** : برابر ئے کړل او ترتیب ئے ورله ورکړو۔ (هُن) ضمیر یا راجع دے السماء ته او هغه جنس دے، په لږ او ډیرو ئے اطلاق کیږی۔ (۲) یا ضمیر مبهم دے، مرجع ئے روستو (سَبْعَ سَمٰوٰتٍ) ده او دا اضمار قبل الذکر دے۔

**سَبْعَ سَمٰوٰتٍ** : د اهل السنة والجماعة رأیه دا ده چه آسمانونه اُووه دی که نور وے نو د هغے خبر به ئے ورکړے وے۔ (۲) فلاسفه وائی (او دا امام رازیؒ غوره کړیده) چه آسمانونه نهه دی، عرش او کرسی ئے هم په آسمانونو کښې شمارلی دی۔ او وائی چه تخصیص بالعدد نفی د زائد نهٔ کوی۔ لیکن دا قول ضعیف دے۔ د عامو نصوصو خلاف دے۔

او زمکے هم اُووه دی لکه د سورة الطلاق آخر کښې (۱۲) ذکر دی (وَمِنَ الْأَرْضِ مِثْلَهُنَّ) لیکن هغهٔ دیو بل سره انختی دی او د آسمانونو ترمینځ فاصلے دی لکه د زمکے نه تر آسمان پورے او خپل خپل مخلوق پکښې الله تعالیٰ پیدا کړیدی، ډیر ملائک دی چه د څلورو ګوتو په مقدار ځائے په آسمانونو کښې نشته مگر په هغے کښې ملائک په عبادت کښې ولاړ دی۔

## مسئله : کوم یو مخکښې پیدا دے، زمکه او که آسمان ؟

پدے اختلاف ذکر کولو کښې فائده دا ده چه تطبیق د آیتونو راشی۔ ځکه چه د دوه

آيتونو نه معلوميږي چه زمکه مخکښ پيدا ده لکه دا آيت شو۔ دلته ثم استوى الى السماء روستو ذکر شو د زمکے د پيدائش نه۔ دويم حم السجده (۱۱) کښ دى (خَلَقَ الْأَرْضَ فِيْ يَوْمَيْنِ...... ثُمَّ اسْتَوٰى إِلَى السَّمَآءِ وَهِيَ دُخَانٌ)

او د سورة النازعات (۳۱) نه معلوميږي چه آسمان مخکښ پيدا دے۔ (وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذٰلِكَ دَحٰهَا) نو د بعد نه معلوميږي چه زمکه روستو پيدا شويده۔ (۱) نو چا پدے آيتونو کښ تاويل کړيدے چه دلته ثم د تراخي ذکري دپاره دے، نهٔ د تراخي زماني دپاره۔ او معنىٰ دا ده چه بيا دا هم واوره چه آسمان ته ئے قصد اُوکړو۔ نو آسمان مطلقاً مخکښ پيدا دے او زمکه روستو او په سورة النازعات کښ بعد لفظ په خپل حال دے۔ او دلته ئے زمکه مخکښ ذکر کړه ځکه چه انسان ترے فائده زياته اخلي۔ او دا قول د قتادةؒ دے۔

(۲) او چا په آيت د نازعات کښ تاويل کړيدے چه بعد هلته په معنىٰ د مع دے يعنى (والارض مع ذلك دحها) لکه (عُتُلٍّ بَعْدَ ذٰلِكَ زَنِيْمٍ) يعنى مَعَ ذٰلِكَ لهذا زمکه مخکښ پيدا شوے هم ده او غوړولے شوے هم ده۔ او دا قول امام قرطبيؒ په تفسير د سورة النازعات کښ ذکر کړيدے۔(۳) دريم قول چه د احاديثو او د قرآن کريم ددے آيتونو نه معلوميږي، هغه دا چه اول زمکه پيدا شوه، بيا آسمان او د هغے برابرول اُوشو بيا روستو زمکه خوره شوه او خوراکونه او ځيزونه پکښ پيدا کړے شو۔نو نفس پيدائش د زمکے مُقدم دے، لکه ددے آيت او د حم السجده نه معلومه ده او دَحْوُ الارض مؤخر دے لکه د نازعات آيت نه معلومه ده۔ او پيدائش د آسمان مؤخر دے۔ لهذا په يو آيت کښ هم تأويل ته ضرورت نشته۔

د آسمان او زمکے د پيدائش طريقه څنګه ده؟ نو په سورة حم السجده کښ او د تورات د سفر الخلق (۱/۲) نه معلوميږي او دا د عبد الله بن عباس ﷺ اثر هم دے چه الله تعالىٰ اُوبه پيدا کړے او بيا ئے دے نه غبار راوچت کړو۔او بيا ددے غبار نه ئے مضبوط آسمانونه پيدا کړل، بيا دا اُوبه الله تعالىٰ منجمدے کړے نو ددے نه ئے زمکه او کائنات پيدا کړل او پدے اُوبو کښ چه کومه رڼرا وه د هغے نه ئے نمر او سپوږمۍ جوړ کړل کله چه نمر او سپوږمۍ پيدا شو نو بس مخلوقات او کائنات په دے سره روان شو۔ ورځ او شپه هم ددے نه پيدا شوه، رڼرا او تيارے هم۔ نو دا ټول ځيزونه د اُوبو نه پيدا دي، لکه د سورة الانبياء (۳۰) آيت نه هم معلوميږي (اَوَلَمْ يَرَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَنَّ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ كَانَتَا رَتْقًا فَفَتَقْنٰهُمَا وَجَعَلْنَا مِنَ الْمَآءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ)۔ او دا په حديث د ابو هريره ﷺ کښ هم راغلى دى : (عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ

قُلْتُ : يَارَسُوْلَ اللّٰهِ! اَنْبِئْنِىْ عَنْ كُلِّ شَىْءٍ ؟ قَالَ :كُلُّ شَىْءٍ خُلِقَ مِنَ الْمَآءِ)
(ابن ماجه- ورواه ابن حبان ٤/١١٥) - (ما اُووئیل : یارسول الله ! ما له خبر راکړه چه دا ټول څیزونه د څه نه پیدا دی ؟ نو هغه اُوفرمایل : ټول څیزونه د اُوبو نه پیدا دی-

**وَهُوَ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيْمٌ** : د الله تعالیٰ د علم حواله ئې ورکړه پدے کښې ترغیب او ترهیب پروت دے چه اے انسانانو ! تاسو به څرنګ عمل کوئ ما ته ستاسو اعمال معلوم دی- (۲) بل اشاره ده چه الله تعالیٰ دا ترتیب د عالم روان کړو دا مبنی دے په علم د الله تعالیٰ لکه (ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ) -آیت شو-

د قرآن په دلائلو کښې دا دوه مقصده وی، الله تعالیٰ خالق اُوګنړئ او عالم ئې اُوګنړئ، د هرڅه خالق او په هر څه پو هه-او دا خلاصه د ټولو صفاتو ده- په انسانانو کښې چه چا کښې علم وی نو هغه کښې قوت نهٔ وی او چه قوت وی نو علم ورسره نهٔ وی او چه دواړه جمع شی نو هغه هم ناقص وی- او الله تعالیٰ کښې دواړه صفتونه په طریقه د کمال راجمع دی-

او دا په سورة طلاق (۱۲) کښې هم راغلی دی : ﴿ذٰلِكَ لِتَعْلَمُوْا اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ قَدِيْرٌ وَاَنَّ اللّٰهَ قَدْ اَحَاطَ بِكُلِّ شَىْءٍ عِلْمًا﴾ (الله تعالیٰ خالق، قادر او عالم دے)- (وَرَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ وَيَخْتَارُ) (القصص:٦٨)

| |
|---|
| وَاِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلٰٓئِكَةِ اِنِّىْ جَاعِلٌ فِى الْاَرْضِ خَلِيْفَةً ۚ قَالُوْٓا اَتَجْعَلُ |
| او کله چه اُووئیل رب ستا ملائکو ته زهٔ پیدا کونکے یم په زمکه کښې یو بادشاه، ملائکو اُووئیل : آیا تهٔ پیدا کوے |
| فِيْهَا مَنْ يُّفْسِدُ فِيْهَا وَيَسْفِكُ الدِّمَآءَ ۚ وَنَحْنُ نُسَبِّحُ |
| په دے کښې هغه څوك چه فساد به کوی په دے کښې- او تویه وی به وینو لره (په ناحقه) او مونږ پاکی وایو |
| بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ ۚ قَالَ اِنِّىْٓ اَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۳۰﴾ |
| سره د صفتونو ستا نه او مونږه پاکی وایو ستا د ذات - الله تعالیٰ اُوفرمایل : زهٔ پو هیږم په هغه څه چه تاسو پرے نهٔ پو هیږئ- |

## تفسیر:

په دے ځائے کښې الله تعالیٰ واقعه د آدم عليه السلام بیانوی او د ملاء اعلیٰ خبرے دی چه الله تعالیٰ

ئې مونږ ته بیانوی او دا ډیر زوړ تاریخ دے چه د وحی نه بغیر نهٔ معلومیږی نو دا د قرآن کریم کمال دے که دا نهٔ وے نو انسان ته د خپل پیدائش پته هم نهٔ وه۔

دلته یو څو بحثونه دی ۱- مقاصد۔ ۲- دویم مناسبة۔ ۳- دریم : فوائد او تفسیر۔

## مقاصد الواقعة :

(۱) د مقاصدو نه یو مخکښې بیان شو چه هغه ذکر النعم دے۔ آدم علیه السلام ئې خلیفة الارض، مسجود له د ملائکو گرځولے دے او توبه ئې ورله قبوله کړیده۔ نو د الله تعالیٰ شکر او عبادت پکار دے۔ خو نعمت الله تعالیٰ په بل طرز هم بیانولے شو نو پدے کښې زمونږ بعض مشائخ فرمائی : چه (۲) مقصود پکښې رد الشرك دے۔ او نفی د علم الغیب دے۔ لیکن دا مسئله جزئی ده او استنباطاً معلومیږی۔ (۳) بله فائده دا ده چه مخکښې الله تعالیٰ مکان (زمکه) ذکر کړه، اُوس مکین بیانوی چه انسان دے۔ او انسانان د کوم ځائے نه شروع شویدی نو هغه د آدم علیه السلام نه، چه اول دا پیدا شو۔ او بیا هغه ته خلافت او احکام ورکړے شو۔ او که دے احکامو کښې تقصیر اُوشو نو توبه او استغفار به کوی۔

(٤) غرض : نو پدے کښې شرافت د انسانانو دے چه دا خلافت د زمکے ئې ملائکو او پیرانو ته نهٔ دے ورکړے۔ خو دا خلافت چه ددهٔ نه زائله کیږی نو د الله تعالیٰ په مخالفت او د هغه په امر ماتولو۔ لکه آدم علیه السلام جنت کښې وو لیکن د خطائی په وجه دنیا ته راکوز شو، تکلیف کښې شو۔ بنی اسرائیلو نه ئې خلافت ولے واخستو د هغوی د فسادونو د وجه نه۔ او انسان ته چه عزت ملاویږی نو د الله تعالیٰ په ایمان او طاعت باندے۔ چه ایمان پکښې نهٔ وی، نو بیا د ټولو نه ډیر ناولے او ناکاره دے۔ الله تعالیٰ ئې اسفل السافلین ته رسوی، لکه روستو وائی جهنم ته به ئې رسوم (خالدین فیها)، بیا به په دے جهنم کښې همیشه وی۔ انسان چه قیمتی دے نو دا په څه ؟ دا د الله تعالیٰ د خبرو په منلو۔ (٥) دا واقعه مقدمه ده د روستو خطاباتو د بنی اسرائیلو چه د هغوی نه ولے خلافت واخستل شو۔ (٦) ترغیب دے یهودو او منافقینو او مشرکینو ته چه توبه اُوباسئ وقت باقی دے۔ (٧) تنبیه ده عامانو انسانانو ته چه تاسو ابتلاء دپاره پیدا شوی یئ۔ (٨) تعریض دے په یهود چه هغوی کښې فساد، قتل، تکبیر دے لکه د شیطان په شان۔ (٩) د انسان اصل ځائے جنت دے، نو هغے ته بیرته د واپسئ کوشش پکار دے۔ (١٠) انسانانو ته دشمن په گوته کول دی۔ دارنگه نور

مقاصد هم شته روستو تفسیر کښې راځي.

**مناسبة** : ۱- يو دا چه مخکښې ئے زمکه بیان کړه نو اُوس د زمکے خلیفه بیانوي.

۲- مخکښې ئے اُووئیل الله تعالیٰ په هر څه عالِم دے او دلته وائي چه پیغمبران، ملائک، پیریان په غیبو نهٔ پوهیږي. ۳- یَا اَیُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوْا سره ئے مناسبت او تړون دے چه نعمتونه الله تعالیٰ ورکوی دپاره د شکر او عبادت کولو. (٤) دارنګه د مابعد سره ئے هم مناسبت دے چه دا مقدمه د روستو دپاره ده. (۵) نعمتونه دوه قسمه دي ظاهري صوري کوم چه په حِس کښې راځي لکه خوراك، څکاك، پیسه، مکان جائیداد وغیره.

۲-دویم معنوی لکه عزت، خوشحالي، علم، اکرام وغیره شو نو په مخکښې آیتونو کښې د صوري او ظاهري نعمتونو ذکر وو او پدے راتلونکو آیتونو کښې د معنوی نعمتونو ذکر دے. او هغه داسے چه مونږ ستاسو والد آدم عليه السلام ته د علم دولت ورکړو او دا عزت مے ورکړو چه ملائکو ورته سجده اُوکړه او تاسو ته مے ددے فخر موقع درکړه چه د هغه په اولاد کښې مے راوستې. (معارف)

(وَاِذْ) کلمه د اذ ظرف دے عامل غواړي، بعض وائي متعلق دے د روستو (قالوا) پورے. او د ظرف تقدیم په خپل عامل جواز لري. (۲) اکثر مفسرین لیکي چه دلته فعل پټ دے. (اُذْكُرْ) رایاده کړه دا واقعه او قصه) او خلقو ته ئے بیانه کړه. او مقصود پکښې تنبیه وی چه دے راتلونکی واقعے ته متوجه شه او دا مطلب نهٔ دے چه نبی صلی الله علیه وسلم ته مخکښې نه واقعه معلومه ده. ( (۳) شاه ولی الله الدهلویؒ فرمائي : دا اشاره وی اختلاف المضمون والواقعه ته، کله چه یوه واقعه د بلے نه جدا کیږي، نو هلته الله تعالیٰ (اذ) کلمه ذکر کوي. لکه دے سورة کښې به دا (اذ) کلمه زیاته استعمالیږي.

**فائل** : دا دلیل دے چه د الله تعالیٰ خبرے شته، او احادیثو کښې دي چه الله تعالیٰ ملائکو سره اُوس هم خبرے کوي. چه په ملائکو بے هوشي راځي.

**لِلْمَلٰئِكَةِ** : جمع مَلَكٌ ده د الوکة نه ماخوذ دے په معنیٰ د رسالة (رالیږلو) سره، او الله تعالیٰ ملائك د پیغامات په وړلو باندے مقرر کړیدي، او د مخلوق تربیت پدے طریقه کوي.

○ نضربن شمیل رحمه الله فرمائي : (لَا اِشْتِقَاقَ لِلْمَلَكِ عِنْدَ الْعَرَبِ) (قرطبي) .(د عربو په نیز د ملائکة لفظ دپاره اشتقاق نشته).

ملائك د الله تعالیٰ هغهٔ نوراني مخلوق دے چه الله تعالیٰ د نور نه پیدا کړیدي او په

آسمان کښې ئې اوسوی، د الله تعالیٰ په اوامر عملي کولو او د هغه په تحمید او تقدیس کښې مصروف وی، او نهٔ ستومانه کیږی او د الله تعالیٰ د هیڅ حکم نه خلاف نهٔ کوی، او د کائناتو خدمتونه پرې کوی، څوك په ورېځو مقرر دی څوك په انسانانو، څوك په عرش، څوك په عملنامو لیکلو وغیره وغیره۔

ملائك د الله تعالیٰ داسې مخلوق دې چه نهٔ مذکر دی او نهٔ مؤنث، د دوی صفات پکښې نشته۔ نهٔ ستړی کیږی، نهٔ خوراك څکاك کوی، نهٔ ئې شهوات شته۔ او عدد ئې صرف الله تعالیٰ ته معلوم دې، صرف یو حدیث کښې دی چه هره ورځ اَوویا زره ملائك بیت المعمور ته داخلیږی او دوباره ئې نمبر نهٔ راځی۔ او یو بل روایت کښې دی د اوزاعی نه نقل دی چه: موسیٰ علیه السلام الله تعالیٰ ته اُوفرمایل : تاسره آسمان کښې څوك دی ؟ الله تعالیٰ اوفرمایل : زما ملائك دی۔ اې ربه ! ددې شمار څومره دې؟ الله تعالیٰ اُوفرمایل : دولس سبط (خاندانونه) دی۔ د هر سبط څومره عدد دې ؟ وې فرمایل : (عَدَدَ التُّرَابِ)۔ (د خاورو په اندازه دی)۔

(رواه الاصبهانی فی العظمة رقم : ۱۸)۔

او اصبهانی دا هم نقل کړیدی چه ملائك دومره زیات دی چه د الله تعالیٰ په ټولو کائناتو او مخلوقاتو کښې دومره ډیر مخلوق بل نشته، او دارنګه د ابن عباس نه ئې مرفوعاً روایت راوړیدې چه په دنیا کښې هر شې راز رغونیږی نو په هغې باندې ملائك مقرر دې۔ (رقم: ۲۲) او جبرئیل علیه السلام ئې مشر دې او د ملائکو وزرې دی، د جا دوه، د جا درې او د جا زیاتې او د جبرئیل علیه السلام شپږ سوه وزرې دی۔ ښائسته شکلونه الله تعالیٰ ورکړیدی او دوی ته په قرآن او حدیث کښې ضمیر د مذکر راجع کیږی، او څوك چه دې ته مؤنث وائی نو کافر کیږی کله ئې چه عقیده وی۔ (اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ لَيُسَمُّوْنَ الْمَلٰٓئِكَةَ تَسْمِيَةَ الْاُنْثٰى) (النجم: ۲۷) ۔او (تا) په ملائکة کښې د جمعیت دپاره ده، نهٔ د تانیث۔ ملائك الله تعالیٰ د بندګانو په کارونو لګولی دی، او د الله تعالیٰ هیڅ خلاف نهٔ کوی۔ او په بندګانو ډیر مهربانه دی، هغوی دپاره بخنه او استغفار او دعاګانې غواړی۔

په ملائکو کښې بعض صفات د انسانانو په شان شته لکه (۱) خوف راتلل (۲) لباس اغوستل (۳) بد بوئی بد ګنړل۔ (٤) لیکل وغیره۔ او ناکاره صفات پکښې نشته لکه حسد، غیبت وغیره۔

جاعل: یعنی زهٔ پیدا کونکې یم۔ جعل دلته په معنیٰ د خلق دې۔

**خلیفة :**

**معانی الخلیفة** : ددے ډیرے معانی راځی (۱) حاکم (۲) خلیفة الجن یعنی د پیریانو نه روستو راغلے، ځکه په دے زمکه اول پیریان آباد وو۔ د ابن التینؒ نه فتح الباری کښې نقل شویدی۔ او دا قول د ابن عباس رضی الله عنهما نه په صحیح سند سره امام ابو عبد الله الحاکمؒ په المستدرك کښې ذکر کړیدے او ذهبیؒ په تلخیص کښې د هغه موافقة کړیدے۔

(۳) ابن کثیرؒ وئیلی دی : مراد دا دے (قَوْمًا يَخْلُفُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا وَقَرْنًا بَعْدَ قَرْنٍ) (داسے خلق پیدا کوم چه د یو بل جانشین به وی او یو بل پسے به راځی) بناء پدے باندے خلیفة جنس دے۔ (٤) په معنیٰ د مامور سره۔ چه الله تعالیٰ ورته حکمونه ورکړی وی۔ (٥) نائب۔ دا د الله تعالیٰ نائب نهٔ دے چه د الله تعالیٰ په ځائے به کار کوی او (العیاذ بالله) الله تعالیٰ به مُعطل وی۔ بلکه دیته نیابة فی الشرع وائی۔ یعنی د الله تعالیٰ شریعت به په زمکه کښې نافذ کوی۔ ځکه الله تعالیٰ شرع رالیږلے ده نو فیصله به پرے انسانان کوی۔

د **خلافة** په اصطلاح کښې دوه معانی دی (۱) مشهوره معنیٰ دا ده چه یو مشر وی او نور ئے رعیت وی او هغوی ته حکومت ملاؤ شی۔ او د الله تعالیٰ دین نافذ کوی۔ او دا په اسلام کښې ډیر اهمیت لری چه نبی ﷺ د خخولو نه مخکښې ابوبکر صدیق رضی الله عنه خلیفه مقرر کړے شو۔ بیا چه رعیت کښې څو مره دینداری وی هغه شان خلیفه پرے الله تعالیٰ مقرر کوی۔ ددے خلیفه بیا دولس شرطونه دی چه په خپل ځائے کښې به راشی۔ خاصکر الاحکام السلطانیه کښې او فتاوی الدین الخالص (۶/) اُوګوره۔

(۲) دویم خلافة : د دین مشری ته وائی، برابره ده که په هره درجه کښې وی، که نبوت وی او که امامت وی او که تدریس وی۔ ددے سره حکومت ضروری نهٔ دے۔

**فائده** : پدے کښې اختلاف دے چه آیا بنده ته د الله تعالیٰ خلیفه (جانشین) وئیلے شی؟ یو قول دا دے چه جائز دے نو د خلیفة الله فی الارض معنیٰ به دا وی چه د الله تعالیٰ ورکړی اختیارات د الله تعالیٰ د مرضیٔ مطابق استعمال کړی او په دنیا کښې د الله تعالیٰ د مرضیٔ مطابق نظام قائم کړی۔ دے دپاره چه دنیا ته امن او سکون ملاؤ شی۔ ۲– دویم قول دا دے چه بنده ته خلیفة الله نشی وئیلے ځکه خلیفه څو هغه خلقو ته وئیلے شی چه د یو بل پسے راځی او د یو بل جانشین کیږی۔ او دا صفت د انسانانو دے نو پدے معنیٰ باندے بنده د الله تعالیٰ خلیفه نهٔ جوړیږی۔ اول قول ډیر راجح دے۔ لیکن داسے عبارت وئیل پکار دی چه

«خلیفه د زمکے د جانب د الله تعالیٰ نه» ځکه دا عبارت بے غباره دے۔

**فائدة** : پدے آیت کښ الله تعالیٰ د انسان حقیقة اُوخودلو چه انسان د الله تعالیٰ د طرف نه په زمکه کښ خلیفه دے، د هغه احکام به عملی کوی، د هغه وعدے به پوره کوی، د هغه نظام به نافذ کوی او د الله تعالیٰ د منشأ مطابق ژوند به تیروی۔ دا د انسان شرعی تصور دے نو پدے کښ رد دے په منطقیانو چه هغوی د انسان تعریف په حیوان ناطق سره کوی۔ او فلاسفه وائی چه انسان نوم دے د جذبو او احساساتو او حرکاتو۔ دا ناقص تعریفونه دی۔ د الله تعالیٰ په نیز باندے د انسان تصوراو تعریف ته پدے آیت کښ اشاره شویده نو بس کوم انسان چه د هغے مطابق ژوند تیر کړو نو دهٔ خپل حقیقت اُوپیژندلو او که چا الله تعالیٰ اُونهٔ پیژندلو، د هغه احکام ئے عملی نهٔ کړل او د خپل خواهش مطابق ژوند ئے تیر کړو او بندګی ئے اُونکړه نو دے د خپل حقیقت نه جاهل پاتے شو۔

**فائده** : ملائکو ته ئے دا خبره ولے اُوکړه ؟ نو ددے حکمتونه الله تعالیٰ ته ښه معلوم دی خو بعض فائدے دا دی (۱) تَعْلِيمًا لِلْمَشُوْرَةِ) پدے کښ مقصود بندګانو ته تعلیم ورکول دی چه په کارونو کښ د یو بل سره مشوره کوئ او الله تعالیٰ پخپله مشوره د چا سره نهٔ کوی ځکه مشوره هغه څوك کوی چه خپله نهٔ پوهیږی، د یو شی د عاقبت نه خبر نهٔ وی۔ دا حکمة دومره قوی نهٔ دے۔ (۲) اِظْهَارُ شَرَافَةِ آدَمَ لِلْمَلَائِكَةِ) ۔(ملائکو ته الله تعالیٰ د آدم علیه السلام شرافت ښکاره کولو) او مخکښ نه ئے ورته وئیلی وو چه زهٔ یو بنده پیدا کوم تاسو به ئے اکرام کوئ (فَقَعُوْا لَهٗ سَاجِدِيْنَ) ددے مثال داسے دے لکه انسان کور کښ اُووائی چه یو میلمه راروان دے، تاسو به داسے داسے کارونه د هغه په خدمت کښ اُوکړئ۔ (۳) دارنګه دا حکمتونه ښکاره کوی چه ملائك په غیبو نهٔ پوهیږی۔ (٤) او آدم علیه السلام له الله تعالیٰ شرافت په علم ورکړیدے۔ او هغه نور حکمتونه راروان دی۔ (۵) دارنګه پدے کښ ابتلاء او زمیښت وو په ملائکو باندے چه دوی ددے مخلوق په باره کښ څه وائی؟۔

(۵) زبدة التفسیر لیکی : دا مشوره نهٔ وه بلکه د هغوی رایه راښکاره کول مقصود وو چه دوی پکښ څهٔ وائی۔ آه۔ او د انسانانو تعظیم ورښکاره کول وو۔ (٦) الله تعالیٰ ته د ابلیس په نفس کښ کبر او غرور معلوم وو نو د هغے د راښکاره کولو اراده ئے اُوکړه۔ (۷) یا مقصود پدے کښ بیان د ابتلاء (امتحان) دے په ملائکو باندے۔ (۸) یا دا چه کله اُور پیدا شو نو ملائك د هغه نه اُویریدل نو الله تعالیٰ اُوفرمایل : زه په زمکه کښ خلیفه جوړوم او

دا اُور به د هغه د نافرمان اولادو دپاره وی۔

**اتجعل فیها** : دا جمله داسے ښکاری لکه اعتراض لیکن ملائك په الله تعالیٰ باندے هیڅرے اعتراضات نهٔ کوی بلکه اعتراضاتو والا هغه څوك وی چه بے ایمانه وی او د الله تعالیٰ شان ئے نهٔ وی پیژندلے او ملائکو ته خو د الله تعالیٰ شان معلوم دے۔ نو دیته استفسار (ځان پوهه کول) وائی۔ چه اے الله رب العالمین! ته چه انسانانو ته عزت ورکوے نو ددے څه حکمة دے؟ سره ددے نه چه مونږ هر وخت ستا په عبادت کښې مصروف او مشغول یو او مونږ کښې شر او فساد نشته او دے انسانانو کښې خو خیر هم شته او فساد او ورانی هم شته، نو په دوی کښې خیر او شر دواړه شته او په مونږ کښې سو چه خیر دے نو د دوی په پیدا کولو کښې څه حکمة دے؟ لکه د مشرانو او علماؤ نه خلق دا قسم تپوس کولے شی۔ نو دیته سؤال الحکمة (د حکمة تپوس) وائی۔

حافظ ابن کثیرؒ وائی : سُؤَالُ اسْتِعْلَامٍ وَاسْتِكْشَافٍ عَنِ الْحِكْمَةِ فِيْ ذٰلِكَ)

(د حکمة د معلوم مولو او راښکاره کولو باره کښې تپوس وو)

نو الله تعالیٰ ورته روستو حکمة ښکاره کړو۔ ددے مثال داسے وی لکه یو شاګرد ته استاذ ډیرے نمبرے ورکړی نو بل شاګرد ترے د حکمة تپوس اُوکړی چه ما هم خواری کړے وه تا دهٔ له څنګه ډیرے نمبرے ورکړے؟۔

**سوال** : ملائکو د کوم ځائے نه معلومه کړه چه دوی به فسادونه کوی او وینی به تویه کوی، ملائك خو په غیبو نهٔ پو هیږی؟ **الجواب** : (۱) دوی استدلال اُوکړو د لفظ د خلیفة نه ځکه خلیفه هغے ته وائی چه د خلقو د جګړو فیصلے به کوی۔ او ملائك تول عُقول دی، سراسر عقل عقل دے، الله تعالیٰ ورله هوښیارتیا ورکړیده او یو هوښیار انسان چه یو شے اُووینی نو د مخکښې نه ورته پته اُولګی چه دے کښې به دا صفت وی۔ لکه په قبر کښې به هم بنده ته وائی چه (قَدْ كُنَّا نَعْلَمُ اَنَّكَ تَقُوْلُ هٰذَا) (مونږ ته پته وه چه ته به داسے صحیح خبره کوے)

(۲) دارنګه قیاس ئے کړیدے په پیریانو چه هغوی فسادونه کول نو دوی به ئے هم کوی۔ (نقله القرطبی وابن کثیر عن ابن عباس) (۳) ددے نه ئے هم معلومه کړه چه دا انسان د څه شی نه جوړ دے؟ د خاورے نه، او په خاوره کښې مختلف صفات دی، توره خاوره، سره خاوره، خوره، او ګند بلا۔ نو د دوی په ماده کښې اختلاف دے لهذا په دوی کښې به اختلافات وی او اختلاف چه راځی نو خامخا فساد او وینې تویول به راځی۔

(٤) ډيره واضحه دا ده چه الله تعالىٰ د مخکښې نه د انسان صفات ورته بيان کړی وو چه دا قسم مخلوق به زه پيدا کوم چه په هغوی کښې به ښه او بد صفات وی نو هغوی ته قتل او فساد ډير بد ښکاره شو نو ځکه ئې په انسان دا رد اُوکړو.لکه قرطبیؒ او ابن کثيرؒ د ابن عباسؓ او ابن مسعود ؓ او قتادهؒ او ابن جريجؒ او ابن زيدؒ وغيره نه نقل کړيدی چه الله تعالىٰ ملائکو ته د آدم عليه السلام د اولادو د طبيعت خبر ورکړے وو چه دوی به په زمکه کښې فسادونه کوی او وينے به تويه کوی-ابن مسعود او ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی : کله چه الله تعالىٰ اُوفرمايل : زه به خليفه پيدا کوم نو ملائکو اُووئيل : دا خليفه به څنګه وی ؟ الله تعالىٰ اُوفرمايل : ددهٔ به اولاد وی چه زمکه کښې به فسادونه کوی او يو بل سره به حسدونه کوی او يو بل به وژنی-انتهىٰ- نو پدے کښې هم تعريض دے په کفار او يهودو او منافقينو باندے.

**يُفْسِدُ فِيهَا** : **سوال** : دلته ذهن ته دا سوال راځی چه ملائکو څنګه د انسانانو غيبت کړے دے؟- **الجواب** : ملائك پاك مخلوق دے، د چا غيبت او سپکاوے نهٔ کوی، بلکه پدے کښې غرض استفسار او تپوس کول وی- او دا قانون دے چه قاضی ته کله دوه جګړه ماران راشی نو يو وائی چه دے انسان په ما زياتے کړے، نو شرعاً دا غيبت نهٔ وی.

(۲) بله دا چه دا د يو شخص غيبت نهٔ دے بلکه د جنس په باره کښې خبره ده- اول قول غوره دے- (۳) بله دا چه تا نه څوك د يو چا په باره کښې استفسار (تپوس) اُوکړی نو ته د هغه عيب بيان کړے، دے کښې ګناه نهٔ وی، لکه نبی ﷺ ته يوه زنانه راغله، وے وئيل : ما باندے معاويه ؓ او ابوجهم ؓ جرګه کړيده چا سره نکاح اُوکړم ؟ نو نبی ﷺ ورته د دواړو بدی بيان کړه چه ابوجهم ؓ زنانه ډيرے وهی او معاويه ؓ ډير غريب دے- هيڅ مال ورسره نشته- د اسامه (ؓ) سره نکاح اُوکړه.

**وَيَسْفِكُ الدِّمَاءَ** : دا په فساد کښې داخل وو نو جدائے ولے ذکر کړو ؟ نو حکمة دا دے چه دا تخصيص بعد التعميم دے پدے کښې مقصود زيات اهتمام وی چه بے ګناه او ناحقه وينه تويول د الله تعالى په نزد غټ فساد دے اګرکه کافر وی، لکه حديث کښې دی چه څوك معاهد (ذمی) کافر قتل کړی نو د جنت خوشبوئی به مونده نهٔ کړی-(صحيح بخاری) او حديث کښې دی : ((که آسمانونو او زمکو والا ټول د يو مؤمن په قتل راجمع شی نو الله تعالىٰ به ټول جهنم ته ګوزار کړی)) (ترمذی : ۱۳۹۸ صححه الالبانی)

**فائدة** : ملائکو ته دا معلومه ده چه زمکه الله تعالىٰ د صلاح او ښه انتظام دپاره پيدا

کړے ده نو خُکه ئے تعجب اُوکړو۔
**وَنَحْنُ نُسَبِّحُ** : ددے مقصد د ځان صفائی نهٔ ده بلکه غرض ئے اظهار د خپل شان چه اے الله ! څه وجه ده چه زمونږ د علم مطابق اُوچت مخلوق له خکته والے ورکوے او خکته مخلوق بره کوے ؟ دے کښ څه حکمة دے ؟۔او هر کله چه ستا صفات بیانیږی او ستا عبادتونه کیږی نو انسانانو پیدا کولو ته څه ضرورت دے او پدے کښ څه حکمة دے؟۔
(۱) د نُسَبِّحُ او نُقَدِّسُ ښهٔ معنیٰ دا ده چه تسبیح د صفاتو وی او تقدیس د ذات وی یعنی مونږ ستا د ذات او صفاتو پاکی بیانوو۔ یعنی ستا په صفاتو کښ هم نقصان نشته او نهٔ په ذات کښ۔ د ملائکو ذکر سبحان الله والحمد الله ولا اله الا الله والله اکبر دے۔
(۲) دویم فرق دا دے چه تسبیح په قول او فعل سره وی او تقدیس دا دے چه انسان د کمال صفات کوم چه د ذات عالیه سره مناسب وی په هغے باندے عقیده اُوساتی۔
(۳) امام ضحاک داسے معنیٰ کوی : [ نُقَدِّسُ اَنْفُسَنَا لَكَ] (مونږ خپل ځانونه تا ته صفا کوو) دا معنیٰ کمزورے ده ځکه ملائك خو ګناهونه نهٔ کوی۔
(٤) میمون بن مهران فرمائی : (سُبْحَانَ اللّٰهِ كَلِمَةٌ يُعَظَّمُ بِهَا الرَّبُّ وَيُحَاشٰى بِهَا مِنَ السُّوْءِ) (سبحان الله (تسبیح) یوه کلمه ده چه پدے سره د رب تعظیم کولے شی او د هرے بدئ نه لرے کولے شی)
ابن عباس رضی الله عنه فرمائی : (هِيَ تَنْزِيْهُ اللّٰهِ مِنْ كُلِّ سُوْءٍ)۔
(سبحان الله د الله تعالیٰ د هرے بدئ نه پاك ګنړلو ته وئیلے شی)
(وَالتَّسْبِيْحُ هُوَ التَّنْزِيْهُ الْكَامِلُ وَلِذٰلِكَ لَا يُسْتَعْمَلُ اِلَّا لِلّٰهِ تَعَالٰى) (فتح البیان) ۔ تسبیح :کامله پاکی بیانول دی پدے وجه دا صرف د الله تعالیٰ دپاره استعمالولے شی) او تسبیح په لغة کښ بعد (وړاندے والی) ته وئیلے شی۔
**وَنُقَدِّسُ لَكَ** : (نُقَدِّسُكَ وَنُنَزِّهُكَ عَمَّا لَا يَلِيْقُ بِكَ) ۔ مونږ ستا پاکی بیانوو د هغه څه نه چه ستا سره لائق ندی)۔
(قَالَ اَبُوْصَالِحٍ : نُعَظِّمُكَ وَنُمَجِّدُكَ)۔ (مونږ ستا تعظیم کوو او ستا شرافت بیانوو)۔
(وَقَالَ مُجَاهِدٌ : نُعَظِّمُكَ وَنُكَبِّرُكَ)۔ (مونږ ستا تعظیم کوو او ستا کبریاء او لوئی بیانوو)
(وَقَالَ بَعْضُهُمْ : نُنَزِّهُكَ عَنِ السُّوْءِ فَلَا نَنْسُبُهُ اِلَيْكَ)۔
(مونږ تا د بدئ نه پاك ګنړو نو بدی تا ته نهٔ منسوب کوو)
ابن جریر فرمائی : (نَنْسُبُكَ اِلٰى مَا هُوَ مِنْ صِفَاتِكَ مِنَ الطَّهَارَةِ مِنَ الْاَدْنَاسِ وَعَمَّا اُضَافَ

اِلَيْكَ اَهْلُ الْكُفْرِ بِكَ) (بدائع التفسير)۔ (مونږ ستا نسبت هغه كامل صفاتو ته كوو چه هغه د خيرو او ګندو نه صفائي ده او د هغه څه نه چه كافرانو ئې تا ته نسبت كړيدے)۔ پدے كښې مقصد رد دے په تفسير د ضحاك باندے۔

**حكمة** : په وَنَحْنُ نُسَبِّحُ كښې يو خو تفويض دے الله تعالىٰ ته چه اے الله ! تهٔ ښه پوهيږے، زمونږ كار خو صرف تسبيح ده لكه مشورے والا چه اول مشوره وركړي بيا خبره مشوره اخستونكي ته اُوسپاري چه ته ښه پو هيږے او خپل علم ناقص اُوګڼړي لكه د بلقيس اهل حكومة چه بلقيس ته وئيلي وو (نَحْنُ اُولُوا قُوَّةٍ وَّاُولُوْا بَأْسٍ شَدِيْدٍ وَالْاَمْرُ اِلَيْكِ)۔

(۲) يا پدے كښې د خالق دپاره د پاكئ اعلان كول دی ددے نه چه پټ شي په هغه باندے هغه خبره چه دوی ته ښكاره شويده چه هغه د آدم ﷺ د خليفه جوړولو مانع دے۔ يعنی د آدم ﷺ د خليفه جوړولو نه مانع لكه څنګه چه مونږ ته معلوم دے نو تا ته ډير په ښه شان سره معلوم دے، په تا باندے هغه څرته پټيدے شي ؟!۔ (التنوير ۲۳۱/۱)

**قَالَ اِنِّىٓ اَعْلَمُ** : دا د الله تعالىٰ حاكمانه انداز كښې د ملائكو د خبرے ترديد وو، چه ستاسو رأيه د خليفه په باره كښې درست نهٔ ده۔ نو الله تعالىٰ ورته اُوفرمايل : زما په دے كار كښې ډير حكمتونه دی چه هغه تاسو ته نهٔ دی معلوم۔ زهٔ په دوی كښې انبياء او رسل پيدا كوم، په هغوی كښې به صديقين او شهداء او صالحين، عُبّاد، زُهّاد، آولياء او علماء او متقيان او د الله تعالىٰ سره خالص محبت كونكي پيدا كيږي چه پدے سره به د الله تعالىٰ عبادت كيږي او د الله تعالىٰ معرفت به حاصليږي۔ (ابن كثير)

او دا دليل دے چه ملائكو سره علم الغيب او علم محيط او علم كلي نشته۔ او قرطبيؒ وائي : د (مَا لَا تَعْلَمُوْنَ) نه مراد (مَا كَانَ اَوْ مَا يَكُوْنُ اَوْ مَا هُوَ كَائِنٌ) مخكښې او روستو كيدونكي كارونه دی۔ او اشاره ده چه د الله تعالىٰ په هر كار كښې حكمة وی كه چا ته د هغے علم وی او كه نهٔ۔

**فائده** : نو الله تعالىٰ آدم ﷺ په جنت كښې پيدا كړو او حديث كښې دی : (خُلِقَ آدَمُ مِنْ قُبْضَةٍ قَبَضَهَا مِنْ جَمِيْعِ الْاَرْضِ فَجَاءَ بَنُوْ آدَمَ عَلٰى قَدَرِ الْاَرْضِ مِنْهُمُ الْاَحْمَرُ وَالْاَسْوَدُ وَالسَّهْلُ وَالْحَزْنُ وَبَيْنَ ذٰلِكَ وَالْخَبِيْثُ وَالطَّيِّبِ) (ابوداود والترمذی والحاكم والبيهقی بسند صحيح) (آدم ﷺ پيدا شو د هغه موټي خاورے نه چه الله تعالىٰ د ټولے زمكے نه راخستے وه نو انسانان د زمكے په اندازه پيدا شو څوك سرهٔ څوك تور، او څوك نرم خوئي او څوك سخت خوئي او څوك ددے ترمينځ

دی او څوك خبيث او څوك پاك دی) يعنې د خاورې صفات پكښې راغلل۔
بيا الله تعالیٰ آدم عليه السلام په خپل لاس پيدا كړو او كلمه د كن ئې پكښې نۀ ده استعمال كړې په جنت كښې كالبوت (بلا روح) پروت وو، ابليس ورغلو چه وې كتل دۀ كښې سوری ډير وو نو وې وئيل : (خُلِقَ خَلْقًا لَا يَتَمَالَكُ) (داسې مخلوق دې چه د ځان اختيار نۀ لري) او زړه كښې ئې تيره شوه كه زه پرې مقرر شوم نو بنه به ئې گمراه كړم نو الله تعالیٰ پرې رشتيا مقرر كړو۔ كله چه په كښې الله تعالیٰ روح واچولو نو پرنجې ئې اُوكړو نو الحمد لله ئې اُووئيله نو الله تعالیٰ ورله جواب وركړو (يَرْحَمُكَ اللهُ) بيا ئې ورته اُوفرمايل : دغلته ملائك ناست دی ورشه سلام پرې واچوه نو سلام ئې ورته اُوخودلو۔ (ترمذی بسند صحيح) بيا ورله الله تعالیٰ د گسې پښتئ نه بی بی پيدا كړه يو بل ئې اُوپيژندل او فطرةً ئې يو بل ته توجه پيدا شوه۔
دا د ټولو مسلمانانو عقيده ده چه د انسانانو اصل آدم عليه السلام دې او د بعض دهريه ؤ دا عقيده ده چه انسان مخكښې شادو وو، بيا پكښې ترقي پيدا شوه نو انسان ترې جوړ شو۔ مونږ وايو زمونږ اصل خو آدم عليه السلام دې او ستاسو اصل به شادوگان وی۔ لكه دا عقيده د دروين ده۔

وَعَلَّمَ اٰدَمَ الْاَسْمَآءَ كُلَّهَا ثُمَّ عَرَضَهُمْ عَلَى الْمَلٰٓئِكَةِ

او تعليم وركړو الله تعالیٰ آدم ته د نومونو د ټولو څيزونو بيا ئې پيش كړل دغه څيزونه ملائكو ته

فَقَالَ اَنْۢبِئُوْنِيْ بِاَسْمَآءِ هٰٓؤُلَآءِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۳۱﴾

پس الله اُووئيل : خبر راكړئ ما ته په نومونو ددې څيزونو۔ كه چرته يئ تاسو رشتينی۔ (چه مونږ د آدم نه غوره يو)۔

**تفسير :**

ددې ځائې نه اُوس هغه حكمتونه رابنكاره كوی او د ملائكو تفصيلی علم راولی چه آؤ د الله تعالیٰ په هر كار كښې حكمة وی۔ او په اجمالی طور سره د فضيلت د آدم عليه السلام نه روستو اُوس تفصيلی طور سره د آدم عليه السلام فضيلت او غوره والې بنكاره كوی او دا ډير حكيمانه انداز دې۔ دارنگه د ملائكو په سوال كښې دې طرف ته اشاره وه چه مونږ د آدم (عليه السلام) نه افضل يو، پدې وجه الله تعالیٰ هغوی ته دا خودل غواړی چه آدم (عليه السلام) د هغه علم په وجه كوم چه الله تعالیٰ هغه ته وركړيدې، د هغوی نه غوره دې۔

استعماليږي ليكن مُعَلِّم ورته نشي وئيلے۔ ځكه نص پكښې نشته۔

(۲) **دا تعليم په څه طريقه وو** ؟ ۱- بعض وائي دا په واسطه د ملائك وو۔ الله تعالىٰ ورته يو ملائك راليږلے وو۔ ليكن دا خبره ضعيفه، بے دليله ده۔ ۲- يا دا تعليم په واسطه د فطرت دے، ديته تعليم فطري وائي، لكه د هيلۍ د بچو په فطرت كښې دي چه اُوبو ته دانګي۔ ۳- يا دا تعليم په طريقه د وحي سره دے، په شان د نورو انبياء عليهم السلام۔

٤- راجح دا ده چه دا تعليم بلا واسطه وو لكه حديث كښې راغلي دي: (اَنَّهٗ نَبِيٌّ مُكَلَّمٌ) (رواه احمد وصححه الالباني في المشكاة)۔ آدم عليه السلام هغه نبي وو چه الله تعالىٰ ورسره خبرے كړے وے۔

(۳) **فائده** : بيا آيت نه معلوميږي چه انسان ته شرافت حاصل دے په علم سره۔ چه انسان ته ئے وركړے وي لكه انسانان جهازونه اوګاړي وغيره جوړوي۔ ۲- دويم د شرافت وجه ئے دا وه چه دا د الله تعالىٰ په لاس جوړ شويدے او ملائك په كلمه د كن پيدا دي۔ لكه حديث كښې دي چه ملائكو اُووئيل : اے الله! مونږ له جنت راكړه او دے انسانانو له خو دے دنيا وركړے ده، نو الله تعالىٰ اُوفرمايل : (لَا اَجْعَلُ مَنْ خَلَقْتُهٗ بِيَدَيَّ كَمَنْ قُلْتُ لَهٗ كُنْ فَكَانَ) (ابن عساكر، البيهقي مسند الشامين) وَالْحَدِيْثُ صَحِيْحٌ وَرُوِيَ بِاَلْفَاظٍ مُتَقَارِبَةٍ وَاِسْنَادُهٗ صَالِحٌ – روضة المحدثين (۷۱/۱۰) وكتاب النقض على المريسي للدارمي) العلو (۱/٦٦) (زهٔ هغه مخلوق چه ما په خپل لاس پيدا كړيدے نهٔ ګرځوم په شان د هغه چا چه په كلمه د كن مے پيدا كړيدے)

(٤) فائده: آدم عليه السلام د الله تعالىٰ نبي مُكلم دے، لكه حديث كښې راغلي دي، الله تعالىٰ ورسره خبرے كړيدي۔ (احمد، طيالسي، بيهقي) ځكه دلته ئے ورته تعليم هم وركړيدے۔

**آدم** : څوك وائي : عجمي عبراني لفظ دے۔ او اَدَمَة په عبرانۍ ژبه كښې خاورے ته وائي (قاسميّ) او ددے لغت موافقت راغلے دے د عربۍ سره پدے لفظ كښې نو په عربي كښې دا ماخوذ دے د د اَدَمَة الارض وَاَدِيْمُهَا) نه (مخ د زمكے ته وئيلے شي) او آدم عليه السلام هم د مخ د زمكے يعني د خاورے نه پيدا وو۔ ۲- يا ماخوذ دے د اُدْمَةٌ نه غنم رنګ والي ته وائي۔ او د آدم عليه السلام بدن هم غنم رنګے وو۔ ۳- بعض وائي : اِئْتَدَمَ په معنىٰ د موافقت دے نو د اَلْاِلْفُ وَالْمُوَافَقَة معنىٰ ئے ده۔ يعني يو ځائے كيدل او موافق كيدل۔

**فائده** : قرآن كريم كښې د اُووه ويشت (۲۷) انبياء عليهم السلام نومونه ذكر دي او د پنځه انبياؤ په كښې دوه دوه نومونه دي لكه (احمد، محمد)، ذون النون او يونس، يعقوب او اسرائيل۔ الياس او ذو الكفل۔ (ذكره البيهقي عن الخليل بن احمد) (البحر المحيط ۲۱۹/۱)

د کومو انبیاؤ تذکره چه الله تعالیٰ قرآن کریم کښې کړیده نو دا افضل دی، ځکه چه دوی باندے عجیب حالات راغلی دی۔ او د کومو تذکره چه نده شوے نو د هغوی هم ډیر لوئی شان دے لیکن ددے انبیاؤ علیهم السلام نه به خکته وی۔

**اَلْاَسْمَاءَ**: پدے کښې یو څو اقوال دی چه دا د څه شی نومونه وو؟ (۱) بعض وائی: ددے نه مراد د الله تعالیٰ نومونه دی۔ لیکن دا راجح نهٔ ده ځکه چه ملائکو ته هم د الله تعالیٰ نومونه یاد دی، په هغې باندے ذکر کوی۔ (۲)– دویم: (اَسْمَاءَ الْمَلَائِكَةِ) (ربیع بن انس) د ملائکو نومونه ئې ورزاخودل)۔ لیکن دے باندے دلیل نشته۔

(۳) بعض وائی: (اَسْمَاءَ ذُرِّيَّتِهٖ) د اولاد آدم نومونه ئې وراُوخودل۔ او دا قول بعضو راجح کړیدے وجه دا ده چه ملائکو په انسانانو باندے یو قسم اعتراض کړے وو نو الله تعالیٰ په اولاد آدم کښې ورته د انبیاء او صالحینو نومونه اُوخودل۔ (تدبر القرآن)

(٤) اَسْمَاءَ الْاَشْيَاءِ كُلِّهَا عُلْوِيَّةً اَوْ سُفْلِيَّةً جَوْهَرِيَّةً اَوْ عَرَضِيَّةً) (د ټولو څیزونو نومونه چه عالم علوی وی او که سفلی وی، جواهرات وی او که اعراض) ځکه یو خو دے څیزونو ته حاجت وو، دویم: په انسان کښې داسے فطرت دے چه ددے بعض څیزونو لائق به وی او ملائك به په هغې خبر نهٔ وی۔ او په حدیث د شفاعة کښې په بخاری کښې داسے راغلی دی: (وَعَلَّمَكَ اَسْمَاءَ كُلِّ شَيْءٍ) (تاته ئې د ټولو څیزونو خودنه کړے وه)

بل په الاسماء کښې فائده دا ده چه روزمره زندگی پرے تیریږی مثلاً که د جبل (غر) نوم نهٔ وے نو انسان به بل ځنګه پوهه کولے۔ د لاس نه به ئې نیولے چه راځه یو شے درته ښایم او غر ته به ئې بوتللے نو څو مره تکلیف به وے وهلم جراً۔ دارنګه آسمان، زمکه دریاب، اُوبه وغیره واخله۔

**كُلَّهَا**: دلته کل عرفی ده لکه (وَاُوْتِيَتْ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ) یعنی د ټول څیزونو نه مقصد دا دے چه کوم کارونه د ضرورت وو لکه ژبه ئې ور زدهٔ کړه، (عربی یا سریانی) او دارنګه د څیزونو فائدے ئې ورواُوخودلے چه دا اُوبه دی، دے ته (ماء) وائی او ددے دا فائده ده، دا خوراك دے دا ئې فائده ده، دا بنځه ده، دا ئې فائده ده، دا سمسئ، دا کاسه، دا پیاله ده۔ عبد الله بن عباس رضی الله عنه فرمائی: [ حَتّٰى الْقَصْعَةَ وَالْقُصَيْعَةَ) تردے چه د کاسے او د سمسئ علم ئې هم ورته اُوخودلو۔ او نومونه ئې ورته زده کړل۔ ځکه چه انسان مخکښې ددے سره آموخته نهٔ دے، دنیا کښې نوے ژوند دے۔ او کل استغراقی نهٔ ده مراد، چه د هرے ذرے علم ورکړی ځکه چه

بیا ئے د الله تعالیٰ سره علم برابریږی۔

**الاسماء**: ددے نه مراد مسمیات دی۔ یعنی هغه څیزونه چه هغوی له نوم کیخودے شی۔ دلیل پرے روستو عرضهم ضمیر دے ځکه که نفس نومونه مراد وے نو بیا به ئے عرضها وئیلی وے۔ او په ضمیر د عرضهم کښ غلبه ورکول دی هغه څیزونو له چه عقل پکښ وی په هغه باندے چه عقل پکښ نۀ وی۔

**عَرَضَهُمْ**: عرض کښ ضمیر الله تعالیٰ ته راجع دے یعنی الله تعالیٰ پیش کړل دا څیزونه په ملائکو۔

**فَقَالَ**: هرکله چه تعلیم پوره شو نو اُوس پرے امتحان کوی۔

**أَنْبِئُونِيْ**: خبر راکړئ ما ته د نومونو ددے څیزونو سره د فائدو ددے نه۔ دے ته خطاب التعجیز او خطاب الامتحان وائی۔ یعنی اظهار د عجز د ملائکو دے۔ ځکه چه ملائك خو عاجز وو د هغے د بیانولو نه، الله تعالیٰ د هغوی په فطرت کښ دا څیزونه نۀ وو اچولی ځکه چه د هغوی ورته ضرورت نۀ وو۔ او دا مقصد پکښ نۀ دے چه الله تعالیٰ د ملائکو نه زده کړه کوی۔ ځکه چه اِنباء په هغه ځائے کښ استعمالیږی چه افاده د متعلم پکښ مقصود نۀ وی۔ ددے وجه نه ئے (علمونی) ئے اُونه وئیلو۔

(**اِنْ كُنْتُمْ صَادِقِيْنَ**) صادق کله په مقابله د کاذب کښ استعمالیږی نو دوی دا خبره کړے وه (لَنْ يَّخْلُقَ رَبُّنَا خَلْقًا أَكْرَمَ عَلَيْهِ مِنَّا وَلَا أَعْلَمَ مِنَّا) (هیڅ رے به زمونږ رب بل داسے مخلوق پیدا نۀ کړی چه هغه ورته زمونږ نه عزتمند وی او یا زمونږ نه زیات پوهه وی)

یعنی که پدے خبره کښ تاسو رشتینی یئ نو خبر راکړئ نو ستاسو دا خبره صحیح نۀ ده بلکه تاسو نه اکرم او اعلم مخلوق ما پیدا کړیدے۔ ۲- ابوحیانؒ وائی: صادق په معنی د مُصِیْب سره دے یعنی که چرته تاسو رسیدونکے یئ حق ته په دے خبره کښ او په خطاء نه یئ۔ نو زئ خبر راکړئ۔ خو معلومیږی چه تاسو حق ته نۀ ئے رسیدلی۔ او دا د الله تعالیٰ عادت دے چه څوك په ظاهر کښ لوئی خبرے کوی نو الله تعالیٰ پرے امتحان راولی۔

دلته مشهور **سوال** دے چه ملائك ولے ددے څیزونو په بیانولو قادر نشو او جواب نه عاجز شو او هغوی ته ولے ددے تعلیم ورنکړے شو؟۔

**جواب** دا دے چه الله رب العزت انسان په داسے شکل او په داسے فطرت پیدا کړو چه هغه دا څیزونه یادولے شو او ملائکو له ئے داسے فطرت ورکړے وو چه دا ئے نشو یادولے

ځکه چه د هغوی دے ځیزونو ته ضرورت نهٔ وو. هغوی د ښځو په فائده یا د خوراك او د اُوبو په فائده نهٔ پوهیږی چه دا ځنګه شے دے او ځنګه سکلے کیږی او چه مِعدے ته لاړ شی نو څه چل کیږی. ددے علم الله تعالیٰ هغوی له فطرةً نهٔ دے ورکړے. نو هر کله چه الله تعالیٰ انسان له دا کمال ورکړو او تاسو له ئے دا کمال نهٔ دے درکړے نو معلومه شوه چه د الله تعالیٰ د آدم ﷺ په پیدا کولو کښې حکمة وو. دویم دا چه د دنیا د نظام چلولو دپاره د علم اهمیت او فضیلت ئے ورته اُوخودلو. او پدے کښې د امتحان اهمیت هم معلوم شو.

بیا دا سوال نهٔ کیږی چه د ملائکو په فطرت کښې به ئے هم دا استعداد اچولے وے؟.

وجه دا ده (وَرَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ وَيَخْتَارُ) (القصص :٦٨) الله تعالیٰ دا دوه قسمه مخلوق پیدا کول غوختل، ملائکو له ئے جدا فطرت او طبیعت ورکړو او انسان له ئے جدا ورکړو نو هیڅ اعتراض نشته او پدے کښې د الله تعالیٰ حکمتونه دی. او د هغه حکمتونو نه انسانان پوره طریقے سره نهٔ شی خبریدلے. ځکه ددے سوال بیا دا مطلب جوړیږی چه فرشتے، ولے د انسانانو په شان اُونهٔ ګرځولے شوے.

**فائده** : ددے نه دا فائده حاصله شوه چه حاکم له ضروری دی چه د خپل رعیت د خلقو د مزاج، طبیعتونو او د هغوی د خواصو او آثارو نه پوره ډول واقف وی ورنه د انصاف حکمرانی پرے نشی کولے، ځکه که څوك لوږه تنده نهٔ پیژنی او دا قسم فیصله ورته مخے ته راشی نو هغه به دا فیصله ځنګه اُوکړے شی ؟. شیخ سعدیؒ فرمائی : یو بادشاه ته په سیلاب سره د ډنبی د تباه کیدو فریاد چا اُوکړو نو هغه ورته اُووئیل چه وریځ ډے ولے نهٔ کړله.

قَالُوْا سُبْحٰنَكَ لَا عِلْمَ لَنَآ اِلَّا مَا

اُووئیل ملائکو : پاکی ده تا لره (د شریك نه په علم کښې)، مونږ له علم نشته مګر هغه چه

عَلَّمْتَنَا ؕ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ﴿۳۲﴾

تا مونږ ته پوهه راکړیده. یقیناً ته پوهه (ئے په هر څه) او حکمتونو والا ئے.

**تفسير** : هر کله چه دا حکمة او د علم اهمیت ملائکو ته واضح شو نو هغوی د خپل علم او پوهے په قصور باندے اعتراف او إقرار اُوکړو چه واقعی انسان کښې ډیر کمال دے او

خپل نقصان ورته ښکاره شو نو د الله تعالیٰ پاکي ئې اُووئیله، او هغهٔ ته په توبه شو۔

**سبحانك** : دا کلمه په ابتداء د کلام کښې د خپل قصور د اعتراف دپاره ذکر کیږي، لکه موسی ﷺ په سورة الاعراف (۱۴۳) (سُبۡحَانَكَ تُبۡتُ اِلَيۡكَ) او یونس ﷺ په سورة الانبیاء (۸۷) کښې (لَا اِلٰـهَ اِلَّا اَنۡتَ سُبۡحَانَكَ) د توبې په افتتاح کښې وئیلې ده۔ او دلته مقصد دا دې چه مونږ په تا اعتراض نهٔ کوو او تکبر او د بنی آدمو سپکوالې زمونږ مقصد نهٔ دې۔

(۲) دارنګه دا کلمه کله د تعجب دپاره وي لکه (سُبۡحَانَكَ هٰذَا بُهۡتَانٌ عَظِيۡمٌ) (النور:۱۶)

(۳) او کله د نا مناسب خبرې نه د الله تعالیٰ د پاکي بیانول مقصد وي لکه (سُبۡحَانَ اللّٰهِ عَمَّا يُشۡرِكُوۡنَ) (الحشر:۲۳)۔

(٤) کله د دعاء په موقعه کښې وي لکه (دَعۡوَاهُمۡ فِيۡهَا سُبۡحَانَكَ اللّٰهُمَّ) (یونس : ۱۰)

(۵) کله د امر په موعق کښې وي لکه (فَسُبۡحَانَ اللّٰهِ حِيۡنَ تُمۡسُوۡنَ الخ) (الروم:۱۷)

دلته د حکمة دپاره استعمال ده یعني ته پاك ئې تا باندې اعتراض نهٔ کیږي۔

(**لا علم لنا**) هر کله چه ملائك په غیبو نهٔ پوهیږي نو هیڅوا دپاره علم د غیبو نهٔ شته لکه دلته قرطبيؒ او ابن جریرؒ ددې معنیٰ داسې ذکر کوي : (تَنۡزِيۡهًا لِلّٰهِ مِنۡ اَنۡ يَّكُوۡنَ اَحَدٌ يَعۡلَمُ الۡغَيۡبَ) (الله تعالیٰ دپاره پاکي ده ددې نه چه یو تن دې په غیبو پوهه شي) نو د الله تعالیٰ سره شریك فی العلم هیڅوك نشته۔

امام قرطبيؒ لیکي : دې نه معلومه شوه چه ادب د ملائکو، انبیاء او فضلاؤ دا دې چه په کومه مسئله نهٔ پوهیږي نو (لَا اَعۡلَمُ او لَا اَدۡرِيۡ) (زهٔ نهٔ پوهیږم) به وائي او څوك چه دا کلمه استعمالول بد ګڼړي نو هغه بې انصافه دې او ریاست او مشري غواړي۔

**علمتنا** نه معلومه شوه چه الله تعالیٰ ورته تعلیم ورکړې دې۔ دا خبره غلطه ده چه ابلیس د دوي استاذ وو، بلکه د احادیثو او قرآن نه دا خبره ښکاره ده چه د ټولو ملائکو استاذ جبرئیل ﷺ دې چه هغه د الله تعالیٰ نه خبره راوړي او ملائکو ته ئې بیانوي۔ او دا هم معلومه شوه چه ملائکو سره صرف دومره علم دې چه څومره الله تعالیٰ ورکړیدې، نو نیکانو بندګانو او انبیاء علیهم السلام سره هم صرف دومره علم وي چه الله تعالیٰ ورکړې وي، علم غیب کلي سوا د الله تعالیٰ نه هیچا ته نشته۔

**العلیم الحکیم** : د دوه نومونو حواله ئې ورکړه څکه پدې کښې اشاره کوي دې ته چه په تا مونږ اعتراض نهٔ کوو څکه چه علم او حکمة خو تا سره دي۔ بیا علم نفس پوهې ته وائي او حکمة

اعلیٰ وی۔ د حکمة لفظ تفصیل په دیے سورة البقره (۲٦۹) کښې راروان دیے ان شاء الله تعالیٰ۔
دلته **حکیم** هغه ذات ته وائی (اَلَّذِیْ لَا اِعْتِرَاضَ عَلَیْهِ) (چه په هغه اعتراض نۀ کیږی)۔
۲- (اَلَّذِیْ یَعْلَمُ بِدَقَائِقِ الْاُمُوْرِ)۔او هغه ذات چه په دقائقو او باریکانو پو هیږی۔
(۳) اَلَّذِیْ یُحْکِمُ الْاُمُوْرَ وَیُتْقِنُهَا ۔
(هغه ذات چه مضبوط کارونه کوی، او کوم کار چه کوی نو هغه مُحکم وی)۔
(٤) حکمة کامل علم ته وئیلے شی۔
(۵) (اَلْحِکْمَةُ : اَلْعِلْمُ بِالشَّیْءِ وَاِتْقَانُ عَمَلِهٖ)۔
حکمة : په یو شی باندے پو هیدل او هغه په مضبوطه طریقه سره عملی کول)
(٦) (اَلْحِکْمَةُ ضَبْطُ الْعِلْمِ وَکَمَالُهٗ)۔ (حکمة مضبوط علم او کامل علم ته وئیلے شی)
(۷)- (اَلْحَکِیْمُ : اَلَّذِیْ یَفْعَلُ الْاَفْعَالَ لِغَایَاتٍ حَمِیْدَةٍ وَّاَسْرَارٍ عَجِیْبَةٍ)۔
حکیم هغه ذات دیے چه هر کار د بهترین مقصدونو او عجیبه حکمتونو او رازونو دپاره کوی) په هر کار کښې ئے حکمتونه وی۔ دلته ئے دریمه او اُوومه معنیٰ واضحه ده۔
**فائده :** د اهل السنة والجماعة مذهب دیے چه د الله تعالیٰ په هر کار کښې حکمة وی او دا حکمة ئے په شرع کښې هم شته لکه مونځ، اودس، روژه وغیره کښې هم بے شماره حکمتونه دی۔ په تقدیر کښې ئے حکمتونه دی، د کائناتو په پیدا کولو کښې، زمونږ په دیے بدن کښې خو مره رازونه دی۔ دارنګه علماؤ لیکلی دی چه په دیے ګناهونو کښې چه د بنده نه کیږی هم د الله تعالیٰ ډیر حکمتونه دی، د الله تعالیٰ نیك بنده دیے، ګناه ترے کیږی او غفلت ترے کیږی دا ولے ؟ دیے کښې هم د الله تعالیٰ ډیر رازونه وی۔
۲- اشاعره او ماتریدیه وائی چه د الله تعالیٰ حکمة نشته ځکه که د الله تعالیٰ حکمة اُومنلے شی نو استکمال بالغیر به راشی۔ ځکه چه (اَلَّذِیْ یَفْعَلُ الْفِعْلَ لِغَرَضٍ یَسْتَکْمِلُ بِذٰلِكَ الْغَرَضِ) (څوك چه یو کار د یو غرض دپاره کوی نو هغه پدغه غرض ځان کامل کوی) ددیے جواب دا دیے چه الله تعالیٰ یو کار د حکمة دپاره کوی د وجه د کمال د هغه نه۔ او مخلوق (فَعَلَ فَکَمُلَ) یو کار اُوکړی نو کمال ته اُورسی او الله تعالیٰ ( کَمُلَ فَفَعَلَ)
(الله تعالیٰ کامل وی نو ځکه کار کوی)۔
**فائده :** د الله تعالیٰ حکمتونه ډیر قسمه دی (۱) حِکْمَتُهٗ فِیْ خَلْقِ الْکَائِنَاتِ)
(د الله تعالیٰ حکمتونه په پیدائش د کائناتو د عالَم کښې) چه آسمانونه، زمکے، بوټی،

اندامونه د انسان وغیره۔
(۲) حَكِيمٌ فِي الشَّرْعِ ) (د الله تعالیٰ په احکامو کښې مختلف حکمتونه وی، لکه اُودس، روژه، زکوة، حج وغیره۔
(۳) (حِكْمَتُهُ فِي صُدُورِ الذُّنُوبِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ)
(کله بنده نه گناه صادریږی نو دے کښې کله حکمة دا وی چه بنده الله تعالیٰ ته عاجزی اُوکړی او الله تعالیٰ ته نور هم نزدے شی۔ او هغه ته توبه او استغفار اُوکړی۔ او الله تعالیٰ ته تائبین بندګان ډیر خوښ وی۔
او ددے حکمتونو تفاصیل د حافظ ابن القیم په کتاب مفتاح دار السعادة ص (۳۵۸) کښې او پنځه حکمتونه په الحق الصریح شرح مشکاة المصابیح (۳۰۳/۱) کښې او څه یو څو صفحے روستو په مسئله د عصمة الانبیاء کښې اُوګورئ۔

قَالَ يَآدَمُ اَنْۢبِئْهُمْ بِاَسْمَآئِهِمْ ۚ فَلَمَّآ اَنْۢبَاَهُمْ بِاَسْمَآئِهِمْ ۙ

الله اُوفرمایل : اے آدم! خبر ورکړه دے ملائکو ته په نومونو ددے څیزونو، هر کله چه خبر ورکړو آدم هغوی ته په نومونو د څیزونو

قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكُمْ اِنِّيْٓ اَعْلَمُ غَيْبَ

الله اُوفرمایل : آیا ما نهٔ وو وئیلی تاسو ته چه زهٔ پوهیږم په غیب (پټو څیزونو)

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۙ وَاَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَمَا كُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ ﴿۳۳﴾

د آسمانونو او د زمکو او زهٔ پوهیږم په هغه څه چه تاسو ئے ښکاره کوئ او په هغه څه چه تاسو ئے پټوئ۔

**تفسیر**: اُوس ورته الله تعالیٰ د آدم عليه السلام د مرتبے او شرافت اظهار کوی چه ته خبر ورکړه چه ستا مرتبه خو معلومه شی۔ ولے که آدم عليه السلام خبر ورنکړی نو د ملائکو په ذهن کښې به راشی چه دے هم عاجز او مونږ هم عاجز یو نو ددهٔ فضیلت به ښکاره نهٔ شی۔ نو آدم (عليه السلام) د بیل بیل شی نوم او فائده ذکر کړه۔ نو الله تعالیٰ ملائکو ته خپل علم بیانوی چه زهٔ په هر هغه څه پوهیږم چه ستاسو د سترګو نه غائب دی، که په آسمان کښې وی، او که په زمکه کښې، دا ټول ما ته معلوم دی۔ او دے کښې اشاره وه چه د آدم اولاد به په زمکه کښې

خلیفه ګان وی او په هغوی کښې به هم د علم صلاحیت پروت وی.
**أَنبِئْهُم** : دلته ئې داسې اُونۀ فرمایل : چه انبئوني ځکه چه آدم علیه السلام له خو ددې علم ورتلو نو که الله تعالیٰ لره خبر ورکړی نو پدې کښې وَهم د تعلیم الله تعالیٰ ته راتلو نو ځکه ئې داسې اُوفرمایل چه ملائکو ته خبر ورکړه. بلکه دا چه دلته اظهار د مرتبې د هغه دې ملائکو ته، نۀ ځان ته.
**خارجي فائده:** (یَا آدَمُ) دا آواز د نورو پیغمبرانو په شان قرآن کریم کښې الله تعالیٰ کړیدې. او زمونږ رسول الله ﷺ ته ئې په خپل نوم آواز نۀ دې کړې. ډیر ادب ئې د محمد رسول الله ﷺ کړیدې.
اعلم : دا یا صیغه د اسم تفضیل ده یا واحد متکلم ده.
**غَیْبَ السَّمٰوٰتِ:** دا بیان او تفصیل دې د مخکښې (مَا لَا تَعْلَمُوْنَ). او دا صریح دې په نفی د علم الغیب کښې لکه چه قرطبیؒ تفصیل سره لیکلی دی. نو نجومیان او کاهنان د علم غیب په دعویٰ کښې بالکل دروغجن دی. دارنګه نور هغه کسان چه د غیب علم د ځان له یا بل دپاره ثابتوی په غیر د الله تعالیٰ نه.
**مَا تُبْدُوْنَ** : ابن مسعودؓ فرمائی : ما تبدون نه مراد هغه خبره د ملائکو وه چه (أَتَجْعَلُ فِيْهَا مَنْ يُّفْسِدُ فِيْهَا وَيَسْفِكُ الدِّمَاءَ) او ما تکتمون نه مراد هغه تکبر وو چه ابلیس په زړه کښې پټ ساتلے وو. (زبدة التفسير) نو ابن عطیهؒ وئیلی دی چه دا جمع په معنیٰ د مفرد ده او مراد ترې ابلیس دې. چه دا هم په ملائکو کښې اُوسیدو، هغه په زړه کښې تکبر او حسد او معصیت پټ ساتلو. یا ددې نه مراد هغه خبره وه چه دوی وئیلې وه (لَنْ يَّخْلُقَ خَلْقًا أَكْرَمَ عَلَيْهِ مِنَّا) (زمونږ نه به عزتمند څوك پیدا نۀ کړی)
○ بعض خلق وائی : ملائکو په زړه کښې حسد پټ کړې وو. دا غلطه خبره ده. ملائك پاك مخلوق دې، حسد ونه چا سره نۀ کوی، هغوی د انسانانو ډیر سخت خیر خواه دی، بلکه دلته مقصود شمول او عموم د علم د الله تعالیٰ دې چه که څوك هره خبره ښکاره کوی او که په ذهن کښې ئې تیروی، دې دواړو ته د الله تعالیٰ علم شامل دې او په دواړو حالتونو کښې الله تعالیٰ پوهیږی، د هغه د علم نه هیڅ شے بهر نشته، عجیب قدرت او علم د الله تعالیٰ دې. یو وخت کښې ټول څیزونه د هغه په علم کښې حاضر دی.
اوبیا پدې تعلیم د نومونو کښې ډیر فوائد دی چه هغه الله تعالیٰ ته معلوم وو چه بیا ئې

عام انسانانو ته هم هغه ورکړیدی لکه مثلاً غر په نوم سره پیژندلے شی که ددے دپاره نوم نهٔ وے کیخودلے شوے نو بیا به د خلقو د پوهه کولو دپاره هغه د لاس نه نیولے شو او غر ته به بوتلے شو چه دا غر دے۔ نو څومره مشکلات به وو دغه شان نور څیزونه واخله۔

**فائده** : واقعه د آدم علیه السلام په قرآن کریم کښې اُووه کرته راغلے ده، دلته د امتنان دپاره ذکر ده چه الله تعالیٰ تاسو سره څومره احسان کړیدے اے بندګانو ! چه ستاسو پلار ته ئے علم زده کړو۔ او په نورو ځایونو کښې ئے نورے فائدے دی چه خپل ځائے کښې به راشی ان شاء الله تعالیٰ۔

**فائده** : خطیب شربینیؒ وئیلی دی چه ددے واقعے نه معلومه شوه چه انبیاء علیهم السلام افضل دی د ملائکونه ځکه چه علم افضل دے د عبادت نه او مُعلم غوره وی د متعلم نه او دا مسلك د اهل السنة والجماعة دے، دارنګه معلومه شوه چه په علم د ملائکو کښې هم زیاتے راتلے شی خلاف ثابت دے فلسفیانو لره چه هغوی دوی ته عقول وائی او وائی چه د دوی په علم کښې زیاتے نهٔ راځی۔

نو هر کله چه آدم علیه السلام عالم شو، او الله تعالیٰ ورله علم ورکړو او عزت په علم باندے راځی لکه دے نه دا معلومه شوه نو اُوس ملائك ددهٔ په خدمت کښې لګیا کوی۔

امام ابن القیم رحمه الله فرمائی : دا قصه دلالت کوی په شرافت د علم باندے د ډیرو وجوهو نه بیا ئے هغه ذکر کړیدی۔ (مفتاح دار السعادة)

| |
|---|
| وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِيْسَ |
| او کله چه اُووئیل مونږ ملائکو ته سجده اُوکړئ آدم ته نو سجد اُوکړه ټولو مګر ابلیس اُونکړه، |
| اَبٰى وَاسْتَكْبَرَ وَكَانَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿٣٤﴾ |
| انکار ئے اُوکړو، او ځان ئے لوی اُوګڼړلو، او وو دے د کافرانو نه۔ |

**تفسیر** : هرکله چه آدم علیه السلام د ټولو څیزونو نومونه بیان کړل او د هغه فضیلت په ملائکو ثابت شو نو الله تعالیٰ ملائکو ته حکم اُوکړو چه هغوی آدم (علیه السلام) ته سجده اُوکړئ، او پدے سجدے سره مقصود د آدم علیه السلام تعظیم او د ملائکو د طرف نه یو قسم اعتذار (عذر) وو د هغه خبرے، کومه چه هغوی د آدم علیه السلام په باره کښې وئیلے وه۔

**مناسبة** : (۱) مخکښې دریم انعام اُوس څلورم انعام ذکر کوی په بنی آدمو چه د هغوی د پلار اکرام ئې کړیدے په سجده د ملائکو او په جنت کښې داخلول وغیره سره۔ (۲) دویم پدے کښې تَعْظِيْمُ الْمُعَلِّمِ وَالْعَالِمِ دے پس د بیان د شرافت او علم د هغه نه او د هغه خدمت دے۔

**فائدة مهمة** : پدے کښې اختلاف دے چه دا سجده آدم علیه السلام ته د هغه د استخلاف او تعلیم د نومونو نه مخکښې وه او که روستو ؟

(۱) نو حافظ ابن کثیرؒ وغیره دا غوره کړیده چه واقعه د سجدے مخکښې وه پس د پیدائش د آدم علیه السلام نه وه او روستو بیا د هغه استخلاف او تعلیم الاسماء اُوشو۔ دلیل دا ذکر کوی چه په سورة الحجر (۲۹) کښې راغلی دی :

(إِنِّيْ خَالِقٌ بَشَرًا مِّنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُوْنٍ، فَإِذَا سَوَّيْتُهٗ وَنَفَخْتُ فِيْهِ مِنْ رُّوْحِيْ فَقَعُوْا لَهٗ سٰجِدِيْنَ) نو دلته ئې د پیدائش پسے سجده ذکر کړیده او بیا دنیا ته راغلے دے۔ او خلیفه جوړ شویدے۔ او وائی چه دلته (وَإِذْ قُلْنَا) کښې واو د ترتیب دپاره نهٔ دے۔

(۲) دویم قول دا دے چه واقعه د استخلاف او د تعلیم الاسماء مخکښې شویده او چه کله د آدم علیه السلام فضیلت ښکاره شو نو اُوس د هغه اکرام کوی په سجده کولو د ملائکو سره لکه دا د ترتیب قرآنی موافق قول دے۔ او سورة الحجر کښې چه کومه خبره راغلے ده نو هغه تعلیقی ده یعنی الله تعالیٰ د آدم علیه السلام د پیدائش نه مخکښې فرمایلی وو چه زه به یو بشر پیدا کوم او تاسو به ورته سجده کوئ او پس د پیدائش نه سمدست سجده نهٔ ده شوے بلکه هغه دنیا ته راکوز شویدے او بیا هغه ته تعلیم الاسماء شویدے او بیا ئې ملائکو ته د سجدے کولو حکم کړیدے۔ لهٰذا هٰذا قول راجح ښکاره کیږی۔

**قلنا** : صیغه د جمع ئې راوړه دپاره د تعظیم ځکه دلته سجده آدم علیه السلام ته شویده او دا ظاهر کښې تعظیم د غیر الله دے نو الله تعالیٰ صیغه د تعظیم راوړه چه گوره ستا د زړه نه چرته د الله تعالیٰ عظمت اُونهٔ وځی، هغه دا حکم کړیدے۔

شیخ الاسلام فرمایلی دی چه (قُلْنَا) د الله تعالیٰ په باره کښې د متشابهاتو نه دے۔ لیکن زما په نیز تعظیم ډیر راجح دے ځکه چه قرآن کریم د عربو په عرف نازل شویدے او په عرف د عربو کښې صیغه د جمع د تعظیم دپاره هم استعمالیږی۔

**لِلْمَلٰٓئِكَةِ** : ددے نه ټول ملائک مراد دی، د زمکے وی او که د آسمان لکه بل آیت دے (فَسَجَدَ الْمَلٰٓئِكَةُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُوْنَ) (ص:۷۳)

د سجدے معنیٰ ده تذلل او خضوع (عاجزی)، او ددے انتهاء دا ده چه تندے په زمکه کیدی (قرطبیؒ)۔ **سوال** : مخلوق ته څنګه سجده کیږی ؟ ددے مفسرینو څو جوابونه کړیدی لیکن راجح جواب آخر کښې راځی۔ **جواب** ۱: دا سجده الله تعالیٰ ته وه لیکن په طرف د آدم ﷺ وه لکه زمونږ سجدے الله تعالیٰ ته دی لیکن په طرف د قبلے دی، نو آدم ﷺ صرف قبله جوړه شوے وه۔ ۲- **جواب**: (اُسۡجُدُوۡا شُكۡرًا لِاَجۡلِ خَلۡقِ آدَمَ)

(یعنی سجده د شکر اُوکړئ ځکه چه الله تعالیٰ آدم (ﷺ) پیدا کړو) او دده په وجه به شکر ځکه کوئ چه دده په وجه به عالَم آباد وی او د الله تعالیٰ طاعتونه به کیږی او قیامت به څه وخت پورے نهٔ راځی۔ نو د انسانانو د پیدائش په وجه په ملائکو هم رحم دے۔

۳- **جواب** : دا معروفه سجده نهٔ وه، صرف انحناء وه، او دا په هغه شریعت کښې جائز وه او زمونږ شریعت ددے نه هم منع فرمائیلے ده۔ په صحیح حدیث کښې دی :

صحابه کرامو اُوفرمایل : (اَيَنۡحَنِىۡ بَعۡضُنَا لِبَعۡضٍ ؟ قَالَ لَا) (ترمذی، ابن ماجه)

(آیا مونږ به یو بل ته سر ټیټوو ؟ وے فرمایل : نهٔ)

۴- **راجح جواب** : دا معروفه سجده وه، او سجدة التحیه (د سلام سجده وه) او په طریقه د تعظیم وه او د عبادت سجده نهٔ وه، لیکن دا د الله تعالیٰ په امر باندے شویده۔ او زمونږ په دین کښې دا هم حرامه ده ۔ معاذ بن جبل ﷺ رسول الله ﷺ ته اُوفرمایل : زهٔ حِیره علاقے ته تلے وم هلته مے خلق اُولیدل چه خپلو مشرانو ته ئے سجدے کولے نو ما اُووئیل چه رسول الله ﷺ ددے ډیر لائق دے چه مونږ ورته سجده اُوکړو، رسول الله ﷺ اُوفرمایل : (اَرَاَيۡتَ لَوۡ مَرَرۡتَ بِقَبۡرِىۡ اَكُنۡتَ تَسۡجُدُ لَهٗ) (که ته زما په قبر تیریږے نو آیا ته به هغه ته سجده کوے، هغه اُووئیل : نهٔ ) یعنی لکه څنګه چه زما قبر ته سجده کول منع دی نو دغه شان په ژوند کښې ما ته سجده کول منع دی۔ بیائے اُوفرمایل : (قَالَ فَلَا تَفۡعَلُوۡا لَوۡ كُنۡتُ آمِرًا اَحَدًا اَنۡ يَّسۡجُدَ لِاَحَدٍ لَاَمَرۡتُ النِّسَآءَ اَنۡ يَّسۡجُدۡنَ لِاَزۡوَاجِهِنَّ لِمَا جَعَلَ اللّٰهُ لَهُمۡ عَلَيۡهِنَّ مِنَ الۡحَقِّ) (ابوداود بسند صحیح) (وے فرمایل : ما ته به سجده نهٔ کوئ، او که ما یو تن ته حکم کولے چه بل ته دے سجده اُوکړی نو ما به زنانو ته حکم کړے وے چه خپلو خاوندانو ته سجده اُوکړی ځکه چه الله تعالیٰ په هغوی باندے د سړو ډیر حق مقرر کړیدے)۔

(دا جواب بالکل راجح او غوره دے او نور تقریباً ے ځایه تاویلات دی ځکه پدے سجده باندے د الله تعالیٰ امر وو نو دے کښې هیڅ اشکال نشته، ځکه الله تعالیٰ چه د څه په باره

کښې بندګانو ته حکم کوی نو بنده له د امر اتباع پکار ده۔ لکه ددے مثال په حالت د حیض کښې د زنانه مونځ پریخودل، په سفر کښې د مانځه قصر، په جنګ کښې د مشرك پلار په قتلول دی او دا ټول جائز دی۔ ځکه چه الله تعالیٰ پدے کښې اجازت ورکړیدے۔

شیخ الاسلام ابن تیمیهٔ فرمائی : ملائکو آدم علیه السلام ته سجده کړے وه او دا ئے د الله تعالیٰ په حکم سره کړے وه۔ الله تعالیٰ (اُسۡجُدُوۡا لِاٰدَمَ) اُووئیل (اِلٰی آدَمَ) ئے اُونهٔ وئیل او د هر حرف یوه معنیٰ وی یعنی آدم علیه السلام ته د سجدے کولو حکم ئے اُوکړو او د آدم طرف نهٔ وو مراد، یعنی دا سجده الله تعالیٰ ته نهٔ وه لکه الله تعالیٰ فرمائی : (لَاتَسۡجُدُوۡا لِلشَّمۡسِ وَلَالِلۡقَمَرِ، وَاسۡجُدُوۡا لِلّٰهِ) یعنی نمر او سپوږمئ ته سجده مهٔ کوئ او صرف الله تعالیٰ ته سجده کوئ) (فصلت ۳۷) (دلته هم نفی د سجدے ده نمر او سپوږمئ ته نهٔ طرف د هغوی ته)۔

بیا فرمائی : سجده یو تشریع (حکم شرعی) دے، ددے په باره کښې به د الله تعالیٰ د حکم اتباع کیږی، که الله تعالیٰ مونږ ته حکم اُوکړی چه د هغه کوم مخلوق ته سجده اُوکړو نو مونږ به د هغه د حکم اتباع کوو، او هغه مخلوق ته به سجده کوو...... معلومه شوه چه د ملائکو آدم ته سجده کول د الله تعالیٰ بندګی او اطاعت وو او هغه د آدم علیه السلام تعظیم او تکریم وو۔ او دا تحیه او سلام وو۔ او زمونږ په شریعت کښې د ادب او احترام په طور هم دا قسم سجده حرامه شویده لکه حدیث کښې دی : که سجده د الله تعالیٰ نه سوا بل چا دپاره جائز وے نو ما به ښځے ته حکم کړے وے چه خپل خاوند ته سجده اُوکړی۔ (ابو داود والترمذی کتاب الرضاع، باب ما جاء فی حق الزوج علی المرأة) لهٰذا زمونږ په دین کښې مخلوق ته سجده او سر ټیټول نشته، او پخوانو دینونو کښې وه، بیا منسوخ شوه، د فارس والو طریقه وه چه په وخت د سلام کولو کښې به ئے سر ټیټولو او تندے به ئے په زمکه کیخودلو۔ زمونږ په دین کښې به سجده صرف او صرف الله تعالیٰ ته وی، ځکه دا اُمت غوره دے چه د دوی عبادت خالص الله تعالیٰ لره وی، مخلوق دپاره نهٔ وی۔ (ابن کثیرؒ) نو کومو پیرانو او کومو مشرانو ته چه د سلام په وخت داسے قسم سجده کولے شی یا ورته په خپو پریوځی نو دا سو چه حرامه ده او د کفارو طریقه ده۔ که ددے سره په زړهٔ کښې تعظیم د غیر الله راغلو نو انسان پرے کافر او مشرك کیږی۔

**اِبۡلِیۡسَ** : دا په قرآن کریم کښې (۱۱) کرته ذکر دے، بعض وائی : عجمی لفظ دے یا عربی دے د ابلاس نه ماخوذ دے، نا اُمیدئ ته وئیلے شی۔ (یعنی نا امیده د الله تعالیٰ د رحمت او د

هر خير نه) دا د شيطانانو او پيريانو پلار دے (جَان) هم ورته وائي. او په سرياني ژبه كښې ئے نوم عزازيل وو او په عبراني كښې حارث وو، (قرطبي عن ابن عباس) ليكن كله ئے چه نافرماني اُوكړه نو نوم او صورت ئے بدل شو .او ابليس نوم ورته وركړے شو. (بغوى) نو دا ئے صفتي نوم او لقب دے.

## مسئله آيا ابليس د ملائكو نه دے او كه نهٔ ؟

او دا د ملائكو نه نهٔ وو، بلكه ددهٔ جنس جدا دے، او همدا راجح قول دے. او دا قول د ابن مسعود ﷺ او حسن بصريؒ او ابن زيدؒ او شهر بن حوشبؒ وغيره دے (ابن جرير، قرطبي)

**دليل** : ١- ابليس نسل او اولاد لرى او ملائكو كښې توالد او تناسل نشته. لكه سورة الاعراف (٢٧) كښې دى (وَقَبِيلُهٗ) او كهف (٥٠) كښې دى (كَانَ مِنَ الْجِنِّ فَفَسَقَ عَنْ أَمْرِ رَبِّهٖ أَفَتَتَّخِذُونَهٗ وَذُرِّيَّتَهٗ أَوْلِيَاءَ).

٢- دارنګه دا د اُور نه پيدا دے او ملائك د نور نه. (كما في حديث مسلم برواية عائشة)

٣- دارنګه ملائك د الله تعالىٰ هيڅ قسم خلاف نهٔ كوى او دهٔ خو مخالفت كړيدے. او كوم علماء چه دا د ملائكو د جنس نه شمارى نو هغوى استثناء ته كتلى دى چه دلته استثناء د ابليس شويده د ملائكو د جماعت نه. معلوميږى چه دا د هغوى د جنس نه دے. ددے جواب دا دے چه جنس ئے جدا دے ليكن په نفس جماعت د ملائكو كښې شريك وو او د نفس جماعت كښې د شريك كيدو نه جنس كښې اتفاق ضرورى نهٔ دے. او امتحاناً الله تعالىٰ د ملائكو سره يو ځائے كړے وو.نو استثناء د نفس اشتراك د وجه نه شويده.او بله دا چه دا استثناء منقطع ده په معنىٰ د ليكن ده او په استثناء منقطع كښې مستثنىٰ د جنس د مستثنىٰ منه نه نهٔ وى.او د انقطاع دپاره دليل دا مخكښې آيتونه او احاديث دى (كَانَ مِنَ الْجِنِّ) صريح دے.

بعض خلقو وئيلى دى چه دا د جناتو نه دے، او بعض ملائك په شكل د جناتو دى نو ځكه ابليس د هغوى سره اُوسيدو. مقصد ئے دا دے چه جنات يوه نوعه او قبيله د ملائكو ده. ليكن دا مصادره على المطلوب ده او بے دليله خبره ده.لهذا جنات نوعه د ملائكو نه هم نهٔ ده، بلكه جدا جنس دے. او ماده د خلقت د دوارو جدا جدا ده.

ابليس ته هم دا حكم شوے وو چه سجده اُوكړه ځكه هغه هم د ملائكو سره اُوسيدو.د

هغوی په شان عبادت به ئې کولو نو په اصل خلقت کښې د ملائکو نه جدا دے لیکن په صورت او شکل کښې د ملائکو په شان وو نو ملائکو ته حکم دا دهٔ ته هم حکم وو۔ (ابن القیم) او سورهٔ اعراف (۱۲) کښې دی : چه ابلیس ته ئې اُووئیل : (مَا مَنَعَكَ أَلَّا تَسْجُدَ إِذْ أَمَرْتُكَ) (ته څه منع کړے د سجدے کولو نه آدم ته کله چه ما تا ته حکم اُوکړو)

لهذا هغه ته هم مستقل حکم شوے وو نو دا سوال نهٔ پیدا کیږی چه هغه ته به امر نهٔ وی شوے ځکه به ئې سجده نهٔ وی کړی۔

نو ولے ئې سجده اُونکړه ؟ وجه دا ده (أَبٰى) : انکار ئې اُوکړو او دا اِنکار ئې د توحید د وجه نه نهٔ وو، چه زهٔ غیر الله ته سجده نهٔ کوم بلکه ځان ئې لوئی ګنړلو، د الله حکم ته ئې غاړه نهٔ کیخودله۔

**وَاسْتَكْبَرَ** : کله کله داسے وی چه امر انسان اُو نهٔ منی، د ادب رعایت کوی، ځکه کله (اَلْاَدَبُ فَوْقَ الْاَمْرِ) وی او کله (اَلْاَمْرُ فَوْقَ الْاَدَبِ) وی۔ یعنی دا خبره نهٔ منم ځکه دے کښې بے ادبی ده، او بے ادبی نشم کولے، نو کیدے شی چه ددهٔ به بے ادبی نهٔ کول مقصد وو، نو (واستکبر) ئې وروسته ذکر کړو چه ځان ئې لوئی ګنړلو، بے ادبه هم وو۔ او د هغه استکبار ئې نورو ځایونو کښې ذکر کړیدے چه دهٔ اُووئیل : دا د خاورے نه پیدا دے او زه د اُور نه پیدا یم، او اُور غوره دے د خاورے نه۔ نو خپل عقل ئې د الله تعالیٰ د امر په خلاف استعمال کړو۔

**فائده** : محمد بن سیرین رحمه الله فرمائی : (أَوَّلُ مَنْ قَاسَ فِيْ مُقَابَلَةِ النَّصِّ إِبْلِيْسُ، فَمَنْ قَاسَ الدِّيْنَ بِرَأْيِهِ قَرَنَهُ اللّٰهُ بِإِبْلِيْسَ) (اول هغه څوک چه د نص په مقابله کښې ئې قیاس کړیدے هغه ابلیس دے، نو څوک چه دین په خپله رأیه قیاس کوی نو الله تعالیٰ به ئې د ابلیس سره یو ځائے کړی) او سورة الاعراف کښې به راشی ان شاء الله تعالیٰ چه علماء کرامو ابلیس ته جواب ورکړیدے چه ستا قیاس د دیارلس وجوهو نه فاسد دے۔

(**كَانَ**) لفظ ئې راوړو ځکه چه ددهٔ به د پخوا نه زړه کښې تیریدل چه که زهٔ په دے آدم مسلط شم نو دا به زهٔ بنبه ګمراه کړم، حدیث کښې راځی چه کله آدم ﷺ په جنت کښې پروت وو، لا روح پکښې نهٔ وو اچولے شوے، نو دا ترے ګیر چاپیره اُوګرځیدو او کتل ئې چه دا څه شے دے کله ئې چه اُولیدل چه دا خو ډډ (سورے سورے) دے نو پوهه شو چه : (خُلِقَ خَلْقًا لَا يَتَمَالَكُ) : (دا یو داسے مخلوق دے چه دِ خپل ځان اختیار ئې نشته) او بعض آثارو کښې ورسره دا هم راغلی دی چه دهٔ اُووئیل : (لَئِنْ سُلِّطْتُ عَلَيْهِ لَأُهْلِكَنَّهُ وَلَئِنْ سُلِّطَ عَلَيَّ لَأَعْصِيَنَّهُ) (که زهٔ په دهٔ مسلط شوم نو

گمراه به ئے کړم او که په ما باندې مسلط شي نو زۀ به ئې مخالفت کوم)
(التفسير القيم لابن القيم ١/٢٣٨) والبغوی، واللباب والبحر) نو د مخکښې نه ئې د کفر ارادې وې۔
(۲) دویمه معنی :(ضَاىٌ) یعنې اُوس اُوګرځیدو د کافرانو نه یعنې خاتمه ئې خرابه شوه۔ او ددې خبرې نه ډیره یره پکار ده چه انسان به ډیر جهادونه کړي وی خو آخر کښې به د کافرانو ملګرې شي، امتحان کښې به فیل شي۔ ددې وجه نه علماء کرام فرمائی : که یو سړې فی الحال ښه وی نو سمدستي به پرې فیصله نۀ کوې چه دا جنتي دې ترڅو چه خاتمه ئې په ایمان باندې نۀ وی شوی، مخکښې اعمالو ته به نشي کتلې۔امام شافعيؒ او بايزيد بسطامي دواړه فرمائی : (اِذَا رَأَيْتُـمْ رَجُلًا يَمْشِيْ عَلَى الْمَاءِ اَوْ يَطِيْرُ فِي الْهَوَاءِ فَلَا تُصَدِّقُوْا بِاَنَّهٗ وَلِيُّ اللّٰهِ حَتّٰى تَعْرِضُوْا عَمَلَهٗ عَلَى الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ) (کله چه ته یو سړې اُووینې چه د اُوبو په سر روان دې (خپې ئې نه لمدیږی) او یا هوا کښې الوزی، نو سمدستي تصدیق پرې مۀ کوه چه دا د الله تعالیٰ ولی دې، تردې چه د هغه عمل په کتاب او سنت پیش کړې) چه آیا عمل ئې د قرآن او حدیث برابر دې او که نه۔ هسې نه چه ساحر چرته نۀ وی، دارنګه انجام له اعتبار دې۔ نو د یو سړي په باره کښې به دا نۀ وائې چه دا ډیر لوئې بزرګ دې دا به هم نۀ وائې چه دا غرق دې، ځکه چه پته نۀ لګی چه انجام به ئې څنګه کیږی، ظاهراً به ورته ښه ګورې که نیك عمل وو او یا به فی الحال ورته بد ګورې که بد عمل وو۔
مفسرینو لیکلی دی چه د تولو نه رومبنے کافر ابلیس وو، او د هغې سبب کبر او غرور وو۔ د عبد الله بن مسعود ﷺ نه نقل دی چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی : (لَايَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنْ كَانَ فِيْ قَلْبِهٖ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ مِنْ كِبْرٍ) چه د کوم انسان په زړه کښې ذره برابر هم کبر وی هغه به جنت ته نۀ داخلیږی۔ (صحیح مسلم- کتاب الایمان)
**فوائد الآیة** : ۱ – آیت کښې دا فائده ده چه اَلْاِعْتِبَارُ لِلْخَوَاتِيْمِ (د اعمالو دارومدار په خاتمه دې) ۲ – د الله تعالیٰ د امر نه خلاف کول ګناه ده او د هغې نه انکار کول کفر دې۔
۳ – تکبر د الله تعالیٰ د حکمونو نه سبب د هلاکت دې۔
٤ – د علم شرافت او د ملائکو خدمت د انسان دپاره معلوم شو۔
٥ – یو انسان به د دین په مجالسو او محفلونو کښې وخت تیروی او د ښو خلقو ملګرتیا کښې به وی لیکن په زړه کښې به ئې غلطې ارادې وی، اخلاص به پکښې نۀ وی نو الله تعالیٰ ئې اُوشرموی او امتحان پرې راشي، د دنیا خواهشات غوره کړی۔ نو هلاك شي۔

٦- انسان همیشه په هر حالت کښې په امتحان کښې دے، نو عاقل له هر کار په سوچ او فکر سره پکار دے، او د الله تعالیٰ نه مدد غوښتل پکار دی۔

**٧- خارجي فائده** : الله تعالیٰ چه انسان پیدا کړو نو امتحان کښې ئے واچولو پدے طریقه چه ابلیس ئے پرے مقرر کړو

۲- بل نفس اماره بالسوء ئے ورکړو۔

۳- او شهوات د دنیا ئے ورکړل۔ دنیا ئے ورته ډولی کړه۔ لیکن الله تعالیٰ انسان لره دے څیزونو ته اُونهٔ سپارلو بلکه احسان ئے ورسره اُوکړو،

ددے په مقابل کښې ئے ۱- ورته انبیاء او کتابونه راولیږل۔ ۲- او عقل ئے ورکړو۔

۳- ملائک ورته د خیر الهامونه کوی۔

٤- واعظ الله فی قلب المؤمن۔ الله تعالیٰ د مؤمن په زړه کښې یو واعظ اچولے وی۔

٥- بل رحم ئے دا دے چه باب د توبه ئے کولاو کړیدے۔

٦- او د نیک عمل اجریو په لس دے او بدی یو په یو ده۔ نو د رحم طرف غالب دے۔

نو انسانان په درے قسمه دی :

(۱) اول هغه دی چه کامیاب دی، د انبیاء علیهم السلام او د عقل او د ملائکو د الهامونو تابع دی۔

(۲) دویم د ابلیس او د خواهشاتو تابع دی، دا کفار او منافقین دی۔

(۳) دریم هغه کسان دی چه بین بین دی کله د انبیاء علیهم السلام د خبرے اتباع کوی او کله د ابلیس، پدے کښې بیا ډیرے مرتبے او تفاوتونه دی، الله تعالیٰ ته معلوم دی، نو هر انسان له اُوس لاره اختیارول پکار دی۔

**حکمة** : ملائکو اطاعت اُوکړو ځکه نفسونو کښې ئے خشوع او عاجزی وه او ابلیس معصیت اُوکړو ځکه چه نفس کښې ئے کبر او غرور وو نو خشوع اساس الطاعات ده او کبر اساس المعاصی دے۔

**حکمة** : پدے کښې تعریض دے په یهود او منافقینو چه دوی کښې هم کبر دے د ابلیس په شان او د صحابه کرامو په شان ایمان نهٔ راوړی۔

وَقُلْنَا يٰٓاٰدَمُ اسْكُنْ اَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ وَكُلَا مِنْهَا رَغَدًا

او اُووئیل مونږ اے آدم! اُوسیږه ته او بی بی ستا په جنت کښې او خوراك کوئ ددے نه فراخه

حَيْثُ شِئْتُمَا ۖ وَلَا تَقْرَبَا هٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَكُوْنَا مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۳۵﴾

کوم خائے کښې چه خوښه وی ستاسو۔ او مه نزدے کیږئ دے ونے ته بس شئ به تاسو د ظالمانو نه۔

**تفسیر** : الله تعالیٰ آدم علیه السلام لره پیدا کړو، هغه له ئے عزت ورکړو او بیائے د هغه د کسے (کینړیے) پوختئ نه د هغه بی بی (حواء رضی الله عنها) پیدا کړه، دے دپاره چه آدم علیه السلام په هغے سره سکون (آرام) حاصل کړی، او الله تعالیٰ په هغه باندے نعمتونه تمام کړل چه دے دواړو ته ئے اُوفرمایل : جنت کښې اُوسیږئ او ددے نعمتونو نه مزے اخلئ او سورۃ طه (۱۸/۱۹) کښې راځی دا ئے ورته اُوفرمایل : (اِنَّ لَكَ اَلَّا تَجُوْعَ فِيْهَا وَلَا تَعْرٰى، وَاَنَّكَ لَا تَظْمَؤُا فِيْهَا وَلَا تَضْحٰى) (په جنت کښې به نهٔ اُوږے کیږے او نهٔ به بربنډیږے او نهٔ به تږے کیږے او نهٔ به دِ‌ے ګرمی کیږی) نو دا دریم فضیلت د آدم علیه السلام شو چه جنت ئے ورله کور جوړ کړو۔

اُسْكُنْ : د سُکنیٰ نه دے نهٔ د سکون نه۔ د اُوسیدو معنیٰ ده۔

وزوجك : دا ئے عطف کړه په انت باندے ځکه چه ښځه د سړی تابع ده په اُوسیدو کښې، چرته چه سړے اُوسیږی هلته به ورسره ښځه وی۔

(الجنة) **فائده** : پدے کښې اختلاف دے چه کوم جنت مراد دے (۱) یو قول دا دے چه دنیا کښې یو باغ مراد دے، وجه دا ده چه هغه جنت حقیقی ته انسان په عمل ځی۔ ۲- دویم دا چه هغه جنت کښې امتحانات نهٔ وی۔ چه دا خوره او دا مهٔ۔ ۳- دارنګه هغه جنت ته شیطان نشی داخلیدے او دلته خو شیطان ورغلے دے۔ دغه شان اعذارئے وئیلی دی۔ حافظ ابن قیم په مفتاح دار السعاده کښې فرمائی : دا قول د ملحدینو، فلاسفو او معتزلو او مبتدعین متکلمینو دے۔ او د ټولو اهل السنة او سلفو خلاف قول دے۔ص (۱/ ۳۸)

(۲) قول ثانی دا دے چه د الجنة نه مراد دار الثواب دے کوم ته چه به انسانان او پیریان پس د مرګ نه او په آخرت کښې داخلیږی۔ ځکه چه قرآن او حدیث کښې چه (الجنة) مطلق ذکر شی نو مراد ترے نه حقیقی جنت وی، او که بل جنت مراد وے نو نبی صلی الله علیه وسلم به ئے

تشریح کړے وے۔ ۲- دویم دا چه اهبطوا دلیل دے، چه د حقیقی جنت نه کوزیدل مراد دی۔ ۳- ولکم فی الارض مستقر نه معلومیږی چه که دا باغ په زمکه کښې وے نو بیا ئے ولے فی الارض لفظ ذکر کولو۔ ٤- د آثارو نه هم معلومیږی چه آدم ؑ په سراندیپ غر د هندوستان کښې راکوز شو او حواء په جده کښې راکوزه شوه۔ (روح المعانی)

٥- بله وجه دا ده چه الله تعالیٰ آدم ؑ لره په جنت کښې پیدا کړے وو۔ ٦- بله وجه دا ده چه انسانان د ابلیس سبې (قیدیان) دی د جنت نه ئے راویستلی دی، بیرته ئے الله تعالیٰ خپل وطن ته واپس بوځی که طاعت اُوکړی لکه یو اثر کښې راغلی دی۔

او د پابندئ جواب دا دے چه کله انسان په عمل باندے لاړ شی نو بیا پابندی نهٔ وی او دا مخکښې نه هلته پیدا شوی وو۔

**وَكُلَا** : دواړه ئے په یوه صیغه کښې یو ځائے کړل ځکه چه ښځه په خوراك کښې د سړی تابع نهٔ ده۔

(**رَغَدًا**) په یو داسے کور کښې ژوند تیرولو ته وائی چه هغه مبارك وی او بغیر د مشقت او تکلیف نه وی (قرطبی) یا فراخه او ډیر مزیدار بغیر د مانع نه۔ (خازن، خطیب شربینی)

(**وَلَا تَقْرَبَا**) الله تعالیٰ د آدم دپاره د جنت هر نعمت مباح کړو، سوا د هغه ونے نه چه د هغے خوړل الله تعالیٰ د هغه دپاره منع کړل، دے دپاره چه ددے منع شوے ونے په خوړلو سره د هغه عذر باقی پاتے نهٔ شی، او دا منع کول د الله تعالیٰ د طرف نه امتحان وو، او هغه ونے ته د نږدے کیدو نه ئے منع کړو پدے کښې د ونے د خوړلو نه د منع کیدو زیات تاکید دے چه خوا له هم مهٔ ورځئ، ځکه چه څوك د ممنوع څیزونو په خوا کښې خوزیږی نو کیدے شی چه په حرامو کښې واقع شی نو معلومه شوه چه د حرامو اسباب هم حرام دی۔

او اشاره ده بعد عن المعصية ته چه د ګناه نه وړاندے کیږه۔

(الشجرة) د شجرے نه مراد بعض وائی : د انځر ونه وه۔ څوك وائی : د غنم وه، څوك وائی : انګور وه، اُووه قوله پکښې دی خو د هغے تعیین ته څه حاجت نشته ځکه فائده پکښې نشته۔ او قرآن او حدیث هم د هغے نه ساکت دی۔ نو بس په همدغه ابهام ئے پریخودل پکار دی۔ چه یوه ونه وه، که په معلومات کښې ئے خیر وے نو الله تعالیٰ به ئے بیان کړے وے۔

بیا د الله تعالیٰ حکمة پدے کښې هم دے چه په جنت کښې هم پابندی لګوی، امتحان دے، روستو زمانه کښې به جنت کښې پابندی نهٔ وی ځکه د ثواب دپاره به ورغلے وی خو دوی د ثواب دپاره نهٔ وو ورغلی بلکه الله تعالیٰ هسے دیره کړی وو۔

(الظالمین) ظلم : (وَضْعُ شَیْءٍ فِیْ غَیْرِ مَوْضِعِهٖ) (یو شے بے ځایه کیخودل او استعمالول) ته وائی، لکه عبادت غیر الله له ورکړی او د مور نه خادمه جوړه کړی او ځان نه مخدوم. ظلم کلی مشکك دے، په لږ او ډیر تولو ئے اطلاق کیږی په صغیره او کبیره ګناه ئے اطلاق کیږی. نو دلته ظلم په درجه د کفر کښ هم نهٔ دے او د ګناه کبیره کښ هم نهٔ دے بلکه په درجه د ګناه صغیره کښ دے.

د ظلم مشهوره معنیٰ په استعمال د عربو کښ (الاعتداء) (تجاوز) دے، دا اعتداء کله په ماتولو د نهی سره وی او کله اعتداء په خپل نفس او خپل فضیلت باندے وی نو که اوله معنیٰ واخلو نو معنیٰ به دا شی (تاسو به شیٔ د ظلم کونکو نه په ځانونو د عقاب او غضب په وجه). او که دویم مطلب واخلو نو معنیٰ به دا شی : (تاسو به شیٔ د زیاتی کونکو نه په ځان په محرومولو د دوام الکرامة فی الجنه نه). (التنویر)

## د انبیاء علیهم السلام د عصمة مسئله

۱- د شیعه ګانو مسلك دا دے چه انبیاء معصوم دی لیکن تقیةً پرے کفر راتلے شی.دا خبره سو چه غلطه ده. نو دا خو ترے بهر کړه او د اهل السنة دوه قوله دی (۱) اول قول دا دے چه د صغائر او کبائر تولو نه منزه دی، قبل النبوة وی او که بعد النبوة. ځکه چه بیا په انبیاؤ علیهم السلام باندے تهمت لګی چه تاسو بل ته د نیکیٔ حکم کویٔ او خپله ګناه کویٔ، دارنګه د انبیاء کرامو د اتباع حکم شویدے نو بیا به امت د هغوی د ګناهونو تابعداری هم کوی او دا خو باطله خبره ده.نو په دوی باندے سوال راځی چه آیتونو سره به څه کویٔ چه (وَعَصٰی آدَمُ رَبَّهٗ فَغَوٰی)، او (ثَلَاثُ کَذِبَاتٍ) والا روایت شو. نو د هغے جواب دا کوی چه پدے کښ به ښهٔ تاویلات اُوکړو او هغه په درجه د حَسَنَاتُ الْاَبْرَارِ سَیِّئَاتُ الْمُقَرَّبِیْنَ کښ دے.(یعنی د نیکانو نیکیانے د مقربینو خلقو ګناهونه شمارلے شی) نو د دوی معمولی شان خطائی هم غټه شمارلے شی. او عند التدبر دغه آیتونو کښ ګناهونه نهٔ دی بلکه دا خلاف اَولیٰ کارونه دی.

(۲) **قول ثانی** : شیخ الاسلام فرمائی (او دا قول د اکثرو اهل السنة دے) چه منزه دی د کفر او د کبیره ګناهونو نه قبل النبوة او بعد النبوة. هر چه صغیره دی نو دا قبل النبوة او بعد النبوة صادریدل ترے ممکن دی او د بعضو نه واقع دی کله کله.او دا قول تفسیر

قرطبیؒ په سورة طه کښې غوره کړيدے۔
**دلیل** : يو په قرآن او حديث کښې صراحةً دغه انبياء عليهم السلام ته د گناه نسبت شويدے، بيا د هغے نه استغفار او توبه ذکر ده نو که مونږ په هغے کښې تاويل اُوکړو نو دغه تاويل به په منزله د تحريف شی څکه الله تعالیٰ فرمائی : (وَعَصٰی آدَمُ رَبَّهٗ) (عصيان ئے اُوکړو) او مونږ وايو چه نهٔ ئے دے کړے نو لازم به شی تقدم بين يدی الله۔(د الله تعالیٰ نه مخکښې کيدل)۔ ۲ – قيامت کښې به مؤمنان آدم ؑ ته وائی : (اِشْفَعْ لَنَا اِلٰی رَبِّكَ)۔(مونږ دپاره سفارش رب ته اُوکړه) نو هغه به وائی : (وَهَلْ أَخْرَجَكُمْ مِنَ الْجَنَّةِ اِلَّا خَطِيْئَةُ أَبِيْكُمْ) (تاسو خو زما د گناه په وجه د جنت نه راويستلی شوی يئ) دارنگه نوح ؑ به فرمائی : ما د الله تعالیٰ نه هغه سوال کړے وو چه زما سره لائق نهٔ وو۔
٤ – دارنگه ابراهيم ؑ به فرمائی : ما درے دروغ وئيلی وو۔
٥ – موسی ؑ به وائی : ما قبطی وژلے دے۔ نو په حديث الشفاعة کښې هم د انبياء عليهم السلام بعض تقصيرات ذکر شويدی۔
**ليکن** دا خبره ياد ساته ! چه د انبياء عليهم السلام گناهونه ذکر کول په منبر باندے يا په کتابونو کښې ليکل نقصان دے، د خلقو په انبياء عليهم السلام باندے بدگمانی پيدا کيږی۔ او استدلال کوی د خپلو گناهونو دپاره۔ بلکه دا به هغه ځائے ذکر کولے شی چه کوم ځائے کښې ضرورت وی لکه د قرآن کريم درس وی يا د حديثو درس وی، دے دپاره چه د تحريف نه بچ شے۔ ليکن د بعض انبياء عليهم السلام نه په ټول ژوند کښې چرته يوه صغيره واقع شوی وی او بيا ترے هغوی توبه هم ويستلے ده، داسے نبی نشته چه هغه توبه نهٔ وی ويستلی، او حسنات ئے دومره زيات دی چه دا صغيره د هغے په مقابله کښې داسے ده لکه يو څاڅکے په نسبت د درياب۔ او بله دا چه ددے صغيرے نه روستو د انبياء عليهم السلام حال ډير برابر شوے وی په نسبت د مخکښې حال، ډير استغفار او ژړاگانے ئے کړی دی۔ مفسرين ليکی : نوح ؑ چه کله د بچی متعلق سوال اُوکړو او الله تعالیٰ ورته زورنه ورکړه نو ټول ژوند کښې ئے ژړل۔ او آدم ؑ چه دنيا ته راکوز شو نو ژړاگانے ئے کولے چه د اُوښکو نه به ئے گياه راټوکيدله، او علماء فرمائی : کله کله بعض انسانان په گناه باندے جنت ته داخل شوی وی او بعض په نيکيو باندے جهنم ته۔ د هغے وجه همدغه ده۔ نيکی باندے فخر کوی نو د الله تعالیٰ د نظر نه پريوزی او يو انسان به گناه هميشه يادوی

نو الله تعالیٰ ته به نږدې شي. نو په انبیاء علیهم السلام باندې هم دغه شان حالت کیږي.

**حکمة** : د انبیاء علیهم السلام او نیکانو نه چه بعض خطاګانې کیږي ددې ډیر حکمتونه وي: (۱) اِشَارَةٌ اِلٰى اَنَّ الْاَنْبِيَاءَ بَشَرٌ: (انبیاء انسانان دي) او انسان کمزورې وي)

(۲) (دَفْعًا لِلْعُجْبِ عَنْ اَنْفُسِ الصَّالِحِيْنَ) (د نیکانو خلقو د زړونو نه عجب او خود پسندي زائله کیږي) هسې نه چه عبادتونه کوي او په عجب کښې واقع شي نو الله تعالیٰ ئې پدې طریقه تربیت کوي.

(۳) (تَوْلِيْدًا لِلتَّوَاضُعِ فِيْ اَنْفُسِ الصَّالِحِيْنَ) (د صالحینو په زړونو کښې عاجزي او زاري پیدا کول) ځکه د ګناه نه روستو انسانان ډیره زاري کوي.

(٤) (رِقَّةُ الْقَلْبِ) (پدې سره زړه نرمیږي، چه همیشه خپله ګناه یادوي)

(۵) د الله تعالیٰ د هر نوم یو اثر دې لکه غفار، غفور، رحمن، رحیم وغیره نو که د دغه انسانانو نه ګناه نۀ کیدلې نو بیا به د دغه نومونو اثر نۀ ښکاره کیدې. یا غفار یا غفور آواز به ئې خنګه کولې. لکه حدیث کښې هم دې ته اشاره ده چه د الله تعالیٰ ژړا او زاري او عاجزي او توبه او استغفار ډیر خوښ دې. (لَوْلَمْ تُذْنِبُوْا لَجَاءَ اللّٰهُ بِقَوْمٍ يُذْنِبُوْنَ فَيَسْتَغْفِرُوْنَ) (ترمذی، واحمد، واصله فی مسلم) (که تاسو ګناهونه نۀ کوئ نو الله تعالیٰ به داسې قوم راولي چه ګناهونه به کوي او د الله تعالیٰ نه به بخنه غواړي نو الله تعالیٰ به ورته بخنه کوي) پدې حدیث کښې مطلب دا دې چه الله تعالیٰ ته د ګناه نه روستو توبه او استغفار طلب کول ډیر محبوب دي.

(٦) د ګناه نه بعد ډیر احتیاط کول.

(۷) په دې پو هیدل چه زما عصمت د الله تعالیٰ په لاس کښې دې، که هغه زما حفاظت اُونکړي نو زه به ضرور په ګناه کښې واقع شم. او دا یوه غوره عقیده ده.

(۸) په نورو ګناهګارو شفقت پیدا کیدل او په هغوی رحم کول.

(۹) په معصیت باندې الله تعالیٰ پیژندل.

(۱۰) مَرَارَةُ الْمَعْصِيَةِ (د ګناه تریخوالې) ځکل چه د عبادت په مکمل خوند پو هه شي. نور حکمتونه هم شته.

## په آیتونو کښې د مفسرینو تاویلونه

نو اُوس کوم مفسرین چه وائي د پیغمبرانو نه بالکل ګناه نۀ صادریږي نو داسې تاویل

کوی: روح المعانی لیکی: (وَلَا تَقْرَبَا اَیْ عَمْدًا) (یعنی قصداً دے ونے ته مهٔ نزدے کیږئ) او هغوی قصداً نهٔ دی نزدے شوی بلکه نسیاناً وو. خبره ترے هیره شوے وه. (فَنَسِیَ وَلَمْ نَجِدْ لَهٗ عَزْمًا) راغلے دے. جواب دا دے چه نسی معنیٰ د ترك ده. او عزم نه مراد صبر دے. او دا گناه صغیره وه ددے وجوهات دا دی اول دا چه ابلیس ورته رایاده کړیده. (اَلَا اَدُلُّكَ عَلٰی شَجَرَةِ الْخُلْدِ) (مَا نَهَاكُمَا رَبُّكُمَا عَنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ اِلَّا اَنْ تَكُوْنَا مَلَكَيْنِ)

۲- دارنگه حواء ورته دعوت ورکړو چه اُوبه ئے خورو او فائده پکښ شته.

۳- نو ابلیس ورته یو قسم اُوکړو، او د هغه گمان نهٔ وو چه په دروغو به څوك قسم کوی.

٤- بل ئے ورته دا لالچ ورکړو چه جنت کښ به همیشه شئ، نو دوی اُووئیل: گناه به اُوکړو او څه الله مهربانه دے. او په گناه کښ خو نقصان شته لیکن بل طرفته به جنت کښ همیش والے نصیب شی. او د گناه نه به الله تعالیٰ ته معذرت اُوکړو. لکه دا د هر مؤمن زړه کښ راځی، کله چه د یو بے حیائی یا گناه خوا ته ورورانده کیږی، نو شیطان ورته ډیرے وسوسے اچوی، چه یره الله غفور رحیم دے او دومره غټ بزرگ خو نه ئے، دا گناه به اُوکړے روستو به توبه اُوباسے، د توبے دروازه څه دپاره کولاوه ده، او الله تعالیٰ په توبه ډیر خوشحالیږی نو ایسته ئے ورته ورورانده کړی، زرورتیا ئے مقصد نهٔ وی نو پدے وجه په تاویدو کښ وران شی نو آدم ﷺ هم تاویل اُوکړو او خطاء کړے شو، شیطان ورته دا یقین ورکړو چه زهٔ ستاسو خیر خواه یم. نو علماؤ دیته گناه صغیره وئیلے ده او کبیره گناه بالکل نهٔ ده. ۵- څکه چه کیدے شی تاویل ئے هم کړے وی چه د معینے ونے نه به منع شوی یم او جنس نه به نهٔ یم منع شوے، نو دے بله ونه خوړلو کښ به هغه ضرر نهٔ وی.

بل تاویل: ظالمین نه مراد خلافِ اولیٰ کار کول دی.

۴- دریم دا چه ظالم نه مراد ظالم علی نفسهٖ دے، یعنی په ځان باندے به ظلم اُوکړئ چه د جنت مزے به درنه فوت شی. لیکن راجح معنیٰ دا ده چه شئ به د گناهگارو نه خو وړه گناه ده. او پدے کښ د الله تعالیٰ حکمة وو چه که همداسے الله تعالیٰ دنیا ته راکوز کړے وے نو بیا به ئے په الله تعالیٰ بدگمانی پیدا کیدلے او خفه به وے، نو الله تعالیٰ د انسان عذر په ځان نهٔ پریدی نو څکه ئے د هغه نه گناه صادره کړه چه خپل ځان ملامته کړی.

او دا آیتونه مونږ ته دا سبق راکوی چه عصاة (گناهگار) بندگان د الله تعالیٰ په خوا کښ نشی اُوسیدلے. دارنگه د الله تعالیٰ نافرمانی داسے شے دے چه انسان بربندوی او د جنت او د

نعمتونو نه ئې محرومه کوی (اَلْمَعَاصِيْ تُزِيْلُ النِّعَمْ) (گناهونه نعمتونه زائله کوی) د انسان صحت خرابوی، د انسان علم، مشری، عزت ختموی. يو شاعر فرمائی :-

اِذَا كُنْتَ فِيْ نِعْمَةٍ فَارْعَهَا     فَاِنَّ الْمَعَاصِيْ تُزِيْلُ النِّعَمْ

(کله چه ته په يو نعمت کښې ئې نو د هغې لحاظ ساته ځکه چه گناهونه نعمتونه زائله کوی).

او دا آيت دليل دے چه په آيت کښې نهی د تحريم دپاره ده ځکه د ممنوعه ونې خوړلو نتيجه ئې ظلم اُوخودله.

## د آدم ﷺ زمکې ته راکوزولو کښې حکمتونه

۱- جنت دار الثواب دے، د عمل په مقابله کښې به ئې بندگانو ته ورکوی او جنت د عمل ځائے نهٔ دے. ۲- دويم دا چه د الله تعالىٰ جهاد خوښ دے او جهادونه په جنت کښې نهٔ کيدل.

۳- د الله تعالىٰ موالات او معادات خوښ دے، مؤمنانو سره دوستی او کافرانو سره دشمنی. او دا په دنيا کښې کيدل.

٤- الله تعالىٰ ته د بندگانو اعمال، عاجزی، انکسار، او توبه او استغفار ډير خوښ دی او دا په جنت کښې نهٔ کيدل.

٥- په جنت کښې مراتب دی، غټ او واړه او درميانه نو کومو انسانانو له ئې چه لاندے مرتبے ورکولے نو هغوی به خفه وے چه مونږ ته اُوچتے مرتبے ولے ملاؤ نشوے. نو الله تعالىٰ دا په اعمالو تقسيم کړيدی. او عمل په دنيا کښې کيږی.

٦- الله تعالىٰ انسانان د عبادت دپاره پيدا کړيدی او د عبادت ټول انواع په جنت کښې نهٔ کيږی. بلکه دے دپاره دنيا مناسب ده.

۷- انسانان د الله تعالىٰ د صفاتو مظهر دے، په دهٔ کښې د الله تعالىٰ د صفاتو اثر ښکاره کيږی ځکه چه د الله تعالىٰ رحمتونه هم شته نو انسانان ئې پيدا کړل چه الله تعالىٰ پرے دا بے شماره رحمتونه اُوکړی، او د الله تعالىٰ غضب او قهر هم شته. نو دا به په نافرمانو ښکاره کيږی.

۸- د الله تعالىٰ ابتلاء او امتحان کول عادت دے او دا په دنيا کښې کيږی.

۹- د انسان په ماده کښې ظلم او جهل دے نو د هغے د صفائی دپاره د امتحان په بټۍ کښې اچول دی او دا کار په دنيا کښې کيږی.

۱۰- ايمان بالغيب الله تعالىٰ ته ډير محبوب وو لکه ددے سورت موضوع هم دا ده نو دا په جنت کښې نهٔ حاصليدلو. زيات حکمتونه په مفتاح دار السعادة کښې اُوگوره.

فَاَزَلَّهُمَا الشَّيْطٰنُ عَنْهَا فَاَخْرَجَهُمَا مِمَّا

نو را اُوخویول دواړو لره شیطان د هغې (ونې د خوړلو دوجه) نه پس راویستل دا دواړه د هغه نعمتونو نه

كَانَا فِيْهِ ۪ وَقُلْنَا اهْبِطُوْا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ۚ

چه وو دواړه په هغې کښې۔ او مونږ اُووئیل کوز شئ تاسو ټول، بعض ستاسو به د بعضو دپاره دشمنان وی

وَلَكُمْ فِى الْاَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَّمَتَاعٌ اِلٰى حِيْنٍ ﴿٣٦﴾

او تاسو لره به په زمکه کښې ځائے د اُوسیدو وی او فائدے به وی تر یو وخت پورے۔

**تفسیر**: یعنی شیطان ورته مختلف قسمه دوهوکو او وسوسو سره مخے ته راغلو او قسمونه ئے ورته اُوکړل او یقین ئے ورکړو چه ستا د ونے خوړلو په وجه تهٔ په جنت کښې همیشه کیږے۔ او ځان ئے ورته خیرخواه ثابت کړو (وَقَاسَمَهُمَآ اِنِّىْ لَكُمَا لَمِنَ النّٰصِحِيْنَ) (اعراف : ۲۱) (اوشیطان قسم اُوخوړو چه زهٔ ستاسو د دواړو ډیر غټ خیر خواه یم)۔

اَزَلَّ دیته وائی چه د سړی اراده نهٔ وی خو ایسته اُوخویږی بل څوك ئے راخوے کړی نو پدے کښې من وجه د سړی تقصیر وی چه کله دا دے ځائے ته نهٔ حاضریدلے نو ولے به راغورزیدلے او من وجه معذور وی ځکه هغه خو ځان نهٔ راغورزولو لیکن غیر اختیاری راپریوتو۔

فَاَخْرَجَهُمَا : نسبت د اخراج ئے شیطان ته اُوکړو ځکه چه دهٔ وسوسه اچولے وه دا ئے سبب وو او اصل راویستونکے الله تعالیٰ دے۔

الشَّيْطَانُ : شیطان نه ابلیس مراد دے۔او دا وسوسه په کومه طریقه وه ؟ نو پدے کښې بعض مفسرینو نقل کړیدی چه د مار په خوله کښې ابلیس جنت ته داخل شو او وسوسه ئے واچوله۔ دا د یهودو خبرے دی، خلقو له د جنت نه زړه توره وی، چه جنت کښې ماران هم شته۔ ۲- بعض علماء فرمائی : چه کله الله تعالیٰ ابلیس لره د جنت نه شړلو نو د وتلو په وخت کښې ئے هغوی ته وسوسه واچوله۔ ۳- دریم دا چه ابلیس هوائی مخلوق دے، د لرے نه هم وسوسه اَچولے شی، نو دلته ئے هم براوِراست وسوسه واچوله۔

اودا هم واضح شوه چه لکه څنګه چه شیطان د سجدے د حکم په وقت کښې د الله تعالیٰ د

حکم په مقابله کښې د قیاس او عقل نه کار اخستے وو چه زهٔ د آدم (ﷺ) نه بهتریم او د هغه د سجدے نه ئے انکار اُوکړو نو دغه شان پدے موقعه کښې ئے د الله تعالیٰ په حکم (ولا تقربا) کښې ورته تاویل کولو سره د آدم ﷺ په انخلولو کښې کامیاب شو، نو غلط تاویلونه د نص په مقابله کښې او عقل او خپله رایه او قیاس چلول اول د شیطان کار دے۔ (نَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنْ هٰذَا)

اِهْبِطُوْا ئے جمع راوړه ځکه دا خطاب آدم ﷺ، حواء او شیطان درے وارو ته دے۔ دا هم ممکن ده چه خطاب صرف آدم او حواء علیهما السلام ته وی ځکه دا د نسلِ انسانی د پیدائش ذریعه وه۔ نو د هغوی اولاد هم ورسره شامل دی۔ لکه سورة طه (۱۲۳) کښې ئے د تشنیه خطاب کړیدے [قَالَ اهْبِطَا مِنْهَا جَمِيْعًا] ۔ او دلته بیا روستو ورسره بعضکم راوړی اشاره ده چه دا خطاب د هغه اولادو ته هم شامل دے۔

د ابو هریره ﷺ نه روایت دے، رسول الله ﷺ اُوفرمایل : د ټولو ورځو نه غوره ورځ د جُمعے ده، پدے ورځ آدم (ﷺ) پیدا کړے شویدے او پدے ورځ جنت ته داخل شویدے او پدے ورځ د جنت نه رابهر شویدے۔ (مسلم، نسائی)

د جنت نه راوتل څنګه نعمت شمار شویدے؟ ددے تفصیل په الحق الصریح (جلد۵) کښې اُوګورئ۔ دلته دا چه دنیا ته راتللو کښې ډیرے فائدے دی لکه چه لږ مخکښې ذکر شوے نو هغه حاصلول پدے ورځ اُوشو نو ځکه نعمت شو۔

بَعْضُكُمْ : (۱) یعنی آدم ﷺ او د هغه اولاد، او ابلیس او د هغه اولاد به یو بل سره دشمنان وی۔ او معلومه ده چه هر شخص خپل دشمن ته د نقصان رسولو هر ممکن کوشش کوی۔ او کوشش کوی چه د هغه دشمن د هر قسم نعمت نه محروم شی۔ لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿إِنَّ الشَّيْطَانَ لَكُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوْهُ عَدُوًّا﴾ (فاطر/٦) (شیطان ستاسو دشمن دے نو دا دشمن اُوګنړئ) (أَفَتَتَّخِذُوْنَهُ وَذُرِّيَّتَهُ أَوْلِيَاءَ مِنْ دُوْنِيْ وَهُمْ لَكُمْ عَدُوٌّ بِئْسَ لِلظَّالِمِيْنَ بَدَلًا) (الکهف/ ۵۰) (آیا بیا هم تاسو هغه او د هغه اولاد زما نه بغیر خپل دوستان نیسئ؛ حال دا چه هغه خو ستاسو دشمن دے، واسے ظالمانو دپاره بده بدله ده)

(۲) یا انسانان به خپلو کښې هم دشمنان وی او دا به د الله تعالیٰ ابتلاء وی۔ لکه حدیث کښې راغلی دی : رسول الله ﷺ فرمائی : ما د خپل رب نه درے سواله اُوکړل دوه ئے راکړل او یو ئے رانه منع کړو۔ ما د الله تعالیٰ نه اُوغوختل چه زما امت په قحط مهٔ هلاکوه، او زما امت باندے دشمنان د دوی نه علاوه مه مسلط کوه، دا دواړه ئے راکړل او ما ترے

اُوغوختل چه (اَنْ لَّايَجْعَلَ بَأْسَهُمْ بَيْنَهُمْ فَمَنَعَنِيْهَا) (مسلم، احمد)

(د دوی خپل مينځ کښې جګړې مهٔ راوله، نو الله تعالیٰ دا منع کړو)

او پدې کښې د الله تعالیٰ حکمتونه دی، ولې که دا بنديز الله تعالیٰ لګولے وے نو بيا به بندګان قسراً او قهراً د ګناه نه بند شوی وے، او امتحان به نهٔ وے بلکه دنيا کښې به دشمنيانې ختمې وے او حال دا چه الله تعالیٰ دنيا کښې انسانانو ته اختيار ورکړے دے۔

**مُسْتَقَرٌّ** : عام انسانان په زمکه کښې اُوسيږي او ددے نه عيسیٰ عليه السلام مستثنیٰ دے په استثناء شرعی سره يا هغه هم اول کښې په زمکه کښې وو او روستو به هم زمکے ته راکوزيږي لکه يو انسان په جهاز کښې وی نو دا هم د زمکے په حکم کښې دے، ځکه زمکے نه لرې وخت دپاره اُوچتيدل محال نهٔ دی، البته داسے نښې کيدے چه انسانان په نمر، سپوږمۍ او ستورو کښې وخت تير کړی او هلته دے پيدا شی او هلته ژوند تير کړی ځکه الله تعالیٰ هلته هواګانے نهٔ دی پيدا کړی (هائيډروجن او آکسيجن) نهٔ دی پيدا، په هغے کښې ساه بنديږي، په زمکه کښې الله تعالیٰ صفت د کشش اچولے دے، کوم جهازونه چه زمکے ته نزدے وی نو زور پرے ډير وی او چه کله انسان ډير لرے اندازے ته اُوخيژی نو بيا خکته نهٔ راپريوزی ځکه چه د زمکے کشش ختم شی، او زمکه کښې الله تعالیٰ ثقل پيدا کړے که دا نهٔ وے نو نمر به ځان ته راکخلے وے، او ټول نظام به خراب شوے وے ځکه چه نمر کښې خپل ډير کشش دے۔

**(مَتَاعٌ)** (مَا يُتَمَتَّعُ بِهٖ قَلِيْلًا ثُمَّ يَفْنٰى) هغه شی ته وائی چه په هغے په ژوند کښې فائدے اخستے شی او بيا زر فانی کيږي۔ که ښه شے وی او که بد وی۔ خو چه فائده ئے کمه وی۔

ابن منظورؒ په لسان العرب کښې ليکی : متاع هغه مردارے ته وائی چه مضطر (مجبوره) شخص هغے ته محتاج وی او خوراك د درندګانو او سپو وی نو دارنګه دنيا يوه مرداره ده چه په هغے سره اضطراری فائده اخستل پکار دی، او مقصد ګرځول نهٔ دی پکار، او ددے وجه نه لفظ د متاع د دنيا په سامانونو او ژوند باندے اطلاق کيږي۔

**فائده** : حياة ته ئے متاع اُوئيلو (۱) وجه دا ده چه دا يو امر مرغوب فيه دے د ټولو انسانانو۔ هر انسان ته ژوند محبوب دے۔ لکه متاع هر چا ته محبوب وی۔ (۲) دويم دا چه ژوند د لذات او تمتع نه خالی نهٔ وی ځکه چه الله تعالیٰ مونږ ته ډير ملائمات او د خواهش مطابق څيزونه په ژوند کښې راکړيدی چه مونږ بندګان د هغے نه فائده اخلو۔ (التنوير)

**حین** : مطلق زمانے تـه وائی الله تعالیٰ ته معلومه ده چه قیامت به کله راځی خو د هر سړی یو وخت دے، نو د چا شپیته کاله او د چا اوویا او د چا پنځوس وغیره مقرر دی۔

**فائده خارجی** : ابلیس مونږ د جنت نه راویستلی یو او مونږ ئے ځان سره قیدیان کړی یو او قانون دا دے چه د وفادار قیدی زړه د خپل وطن سره لګیدلے وی، چه زۀ ددے قید نه ځان خلاص کړم او خپل وطن ته واپس شم او نا اهله قیدی، په خپل قید کښې خوشحاله وی او خپل اصلی وطن هیر کړی، نو انسانان د شیطانانو قیدیان دی نو بیرته د واپسئ طریقه توبه او استغفار او د الله تعالیٰ طاعت دے، او کتاب او رسول پسے روانیدل دی۔ او که پدے تابعدارئ کښې درنه تقصیر کیږی نو توبه او استغفار ئے علاج دے۔

| |
|---|
| فَتَلَقّٰی اٰدَمُ مِنْ رَّبِّهٖ كَلِمٰتٍ فَتَابَ عَلَيْهِ ۚ |
| پس زده کړے آدم (علیه السلام) د خپل رب نه یو څو خبرے نو الله تعالیٰ مهربانی اُوکړه په دۀ باندے، |
| اِنَّهٗ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ﴿٣٧﴾ |
| یقیناً الله تعالیٰ ډیرتوبه قبلونکے، مهربان دے۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کښې نور احسانات په آدم علیه السلام بیانیږی چه هغه ته کلمات خودلِ او بیا د هغه توبه قبلول دی۔ او پدے کښې بیرته جنت ته د واپس کیدو طریقه ښائی چه هغه توبه او استغفار دے۔

تَلَقِّیْ دیته وائی چه د چا ملاقات ته انسان اُوځی استقبال ئے کوی، او په استقبال کښې د انسان په زړه کښې ډیر احترام او محبت وی نو د آدم علیه السلام هم دے کلماتو ته ډیر ضرورت وو چه کله به ما ته داسے خبرے کیږی چه په هغے سره زه الله تعالیٰ ته بیرته نزدے شم او زما او د الله تعالیٰ اُنس بیرته فعال شی۔ او دا به د هر مؤمن حال وی چه په ګناهونو سره د هغه تعلق د الله تعالیٰ نه کټ شی نو بیرته به ئے شوق وی چه کله به الله تعالیٰ سره زما اُنس برابریږی۔ دے وجه نه یو لفظی توبه وی چه صرف په خوله وی او بله په زړه سره او په محبت او شوق سره توبه وی او دا اصلی توبه ده۔

هر کله چه آدم علیه السلام نه خطائی اوشوه او د جنت نه راکوز شو نو ده اوئیل اے الله ! زه به دے

جنت ته بیرته څنګه واپس شم او ته به ما نه څنګه راضي شې؟ ددې اسباب به څه وي؟ نو الله ورته څه کلمات اُوخودل چه دا اُووایه بس زۀ به درنه راضي کیږم۔

**کلمات**: ددې کلماتو ډیر مصداقات دي (۱) آدم ﷺ داسې کلمات لوستل (سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالىٰ جَدُّكَ، لَا اِلٰهَ اِلَّا أَنْتَ، ظَلَمْتُ نَفْسِيْ فَاغْفِرْ لِيْ، اِنَّهٗ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا أَنْتَ) (ذکره الشربینی فی السراج)

(۲) دویم قول: عبد الله بن عباس رضی الله عنهما د فَتَلَقّٰى آدَمُ په ضمن کښې فرمائي: (قَالَ آدَمُ يَارَبِّ: أَلَمْ تَخْلُقْنِيْ بِيَدِكَ؟ قَالَ: بَلىٰ، قَالَ: أَلَمْ تَنْفُخْ فِيَّ الرُّوْحَ مِنْ رُوْحِكَ؟ قَالَ: بَلىٰ، قَالَ: أَلَمْ تُسْكِنِّيْ جَنَّتَكَ؟ قَالَ: بَلىٰ، قَالَ: يَارَبِّ! اِنْ تُبْتُ وَأَصْلَحْتُ، أَرَاجِعِيْ أَنْتَ اِلَى الْجَنَّةِ؟ قَالَ: نَعَمْ،) (الحاکم فی المستدرک (۲/۵۹٤) رقم: (٤٠٠۲) وصححه ووافقه الذهبی) (السراج المنیر)

(آدم ﷺ اُووئیل: اې ربه! آیا تا زه په خپل لاس نه یم پیدا کړې؟ الله اُوفرمایل: آؤ۔ آدم اُووئیل: آیا تا په ما کښې خپل روح نۀ دې اچولې؟ الله اُوفرمایل: آؤ۔ آدم اووئیل: آیا ستا رحمت ستا په غضب باندې مخکښې نۀ دې؟ الله اوفرمایل: آؤ۔ آدم اُووئیل: که زۀ توبه اُوباسم او خپل حالت دُرست کړم نو آیا ته به ما دوباره جنت ته واپس کړې؟ الله اُوفرمایل: آؤ۔نو دا مصداق دې ددې آیت چه فتلقی آدم من ربه کلمات۔

(۳) صحیح او راجح دا ده چه هغه کلمات په سوره اعراف (۲۲) کښې ذکر دي (او قرآن خپله تفسیر د قرآن کوي): ﴿رَبَّنَا ظَلَمْنَا أَنْفُسَنَا وَاِنْ لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ﴾ نو پدې کښې الله تعالىٰ مونږ له تلقین راکوي چه داسې تاسو هم کوئ ځکه چه دا خو هسې فضول قصه نۀ ده بلکه پدې کښې رازونه او د امت هدایت پروت دې۔ مونږ ته وائي چه اې د آدم اولاد! تاسو سره به شیطان او د هغه اولاد داسې چلونه کوي ګناهونه به درنه کوي خو تاسو به هم دغه شان توبه اُوباسئ۔

۱- یعني مقصود دلته یو انعام دې په قبول د توبه د آدم ﷺ۔

۲- بل مقصود ترغیب الی التوبه دې ځکه دا بهتر عبادت دې۔

۳- بل مقصود یهود او منافقینو او مشرکینو ته دعوت دې چه وقت باقي دې، توبه اُوباسئ، د آدم ﷺ تابع شئ او د ابلیس ضدي اتباع مکوئ دا وجه ده چه دې سورت کښې د توبې مسئله او د التواب الرحیم بار بار مکرر کړیدي ځکه دعوت دې یهودو او کفارو ته۔

(٤) غلط قول دا دې چه توسل بالنبی ﷺ ئې اُوکړو۔ لیکن هغه حدیث ضعیف جداً دې

لکه روستو راځئ۔ پدے کښې مخکښې درے قوله په یو ځل جمع کول هم جائز دی۔

**مِنْ رَّبِّهٖ** : یعنی دا کلمات ئے د خپل رب نه واخستل، هغه ورته زده کړل، داسے نۀ ده چه عرش نه ئے واخستل، لکه دا دروغو قصه لیکلے شویده (روح المعانی او الدر المنثور لیکلے ده) چه آدم ﷺ کله خطائی اُوکړه نو په عرش لا اله الا الله محمد رسول الله لیکلے شوے وه نو دۀ د محمد (ﷺ) په وسیله دعا اُوکړه نو الله تعالیٰ ورته اُوفرمایل : ته محمد (ﷺ) څنګه پیژنې ؟ هغه اُووئیل تا چه ددۀ نوم د ځان سره یو ځائے لیکلے دے، نو ما ته پته اُولګیده چه دا ستا نزدے بنده دے نو ددۀ په وسیله درنه سوال کوم نو الله تعالیٰ ورته اُوفرمایل : چه ځه معاف شوے۔ (وَلَوْلَا مُحَمَّدٌ مَا خَلَقْتُكَ) (که محمد (ﷺ) نۀ وے ما به ته نۀ وے پیدا کړے) کما فی المستدرك (۶۱۵/۱) کتاب التاریخ، ومیزان الاعتدال (۲۴۶/۳) للامام الذهبی) وفی سنده عبد الرحمن بن زید بن اسلم وهو ضعیف وحدیثه لا شیء) (الضعفاء والمتروکین ۱/(وضعفه النسائی) وعلی بن المدینی جداً) (ضعفاء العقیلی ۳۳۲/۲)

او بیا پکښې د لَوْلَاكَ لَمَا خَلَقْتُ الْاَفْلَاكَ موضوع حدیث هم خلق بیانوی۔

**تَابَ** : توبه دلته په معنیٰ د مهربانی کولو سره ده، او توبه چه د الله تعالیٰ په صفت کښې راشی نو معنیٰ دا وی چه رجوع ئے اُوکړه د سزا نه ثواب ته۔ نو الله تعالیٰ ورله سزا ورنکړه او ثواب ئے ورله ورکړو۔ او انسانان چه توبه اُوباسی نو معنیٰ دا ده : (اَلرُّجُوْعُ مِنَ الْمَعْصِيَةِ اِلَى الطَّاعَةِ) (رجوع به کوی د ګناه نه طاعت ته) که نیك عمل ورسره نۀ کوی نو بیا دا توبه نۀ ده۔ د ګناه د ختمولو دپاره بهترین علاج توبه ویستل دی، د توبے مثال داسے دے لکه جامه وینځل چه د خیرو نه پاکه شی۔

حدیث کښې راغلی دی، نبی ﷺ فرمایلی دی : (اِنَّهٗ لَيُغَانُ عَلٰى قَلْبِىْ وَاِنِّىْ لَاَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ فِى الْيَوْمِ مِائَةَ مَرَّةٍ) (مسلم) (زما په زړه باندے خړوالے او خفګان راځی نو زۀ د الله تعالیٰ نه په ورځ کښې سل کرته بخنه غواړم) نو هرکله چه د الله تعالیٰ رسول (ﷺ) دومره بخنے غواړی چه هغه لا بخلے شوے بنده دے نو مونږ له خو ډیر استغفار او توبه پکار ده۔ کامیابی په توبو ویستلو کښې ده، لکه الله تعالیٰ فرمائی : (وَتُوْبُوْا اِلَى اللّٰهِ جَمِيْعًا اَيُّهَا الْمُؤْمِنُوْنَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ) (النور: ۳۱)

د لږو خلقو د استغفار او توبے په وجه په ډیرو خلقو رحمتونه او راحتونه نازلیږی۔

## د توبې د قبولیت شرطونه

بیا توبه د بنده په حقوقو کښې څلور شرطونه لري.
(۱) (اَلنَّدَمُ) په تیره شوې ګناه پښیمانه کیدل.
(۲) (اَلْعَزْمُ عَلٰی اَنْ لَّا یَعُوْدَ) (کلکه اراده کول چه دا کار به بیا نهٔ کوي)
(۳) (اَلْاِقْلَاعُ عَنِ الذَّنْبِ) (فوراً د ګناه نه لاس اخستل).
(٤) (اَدَاءُ الْحَقِّ اَوِ التَّحَلُّل) .(هغه غیر ته حق اداء کول یا ترې معافي غوختل) او د الله تعالیٰ په حقوقو کښې دغه درې شرائط لري. خو ورسره دا شرط هم دې چه طاعت به شروع کوي. او نیک عمل به کوي لکه سورة فرقان (۷۱) کښې رازي (وَمَنْ تَابَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَاِنَّهٗ یَتُوْبُ اِلَی اللّٰهِ مَتَابًا)

**التَّوَّابُ**: او تواب او رحیم ئې دوه صفتونه راوړل او جمله اسمیه ئې راوړه، پدې کښې یو قسم وعده ده تهول مخلوق سره چه هرکله ستاسو نه تقصیر کیږي نو زه به درته معافي کوم په توبه او دعاء سره ، د هر چا توبه قبلوي او په هر چا مهرباني کوي، یوائې د انبیاؤ پورې خاص نهٔ ده. او د تواب صیغه ئې د مبالغې راوړه اشاره ده چه توبه الله تعالیٰ بار بار قبلوي.

**فائده** : تواب مبالغه ده ځکه د توبې تعلق د الله تعالیٰ سره په څو قسمه دې (۱) توجه پیدا کول توبې طرف ته (۲) توفیق د توبې ورکول (۳) توبه قبلول (٤) ګناه معاف کول (۵) او په توبه باقي پاتې کیدل (٦) بار بار توفیق ورکول (۷) د هر چا توبه قبلول (۸) د هر قسم ګناه نه توبه قبلول ځکه الله تعالیٰ عاجز ندې د هر قسم ګناه معاف کولو نه (۹) لږ او ډیر ګناهونه معاف کول. (۱۰) پاخه او کچه ګناهونه لرې کول او د هغې اثر ختمول څومره مهربانه رب دې ؟!.

په لفظ د الرحیم کښې دوام الرحمة بالتوبه وغیره ته اشاره ده چه الله تعالیٰ په توبې سره همیشه رحم کوي. ځکه تواب د فعال وزن دې انقطاع پکښې راتلې شي نو الرحیم ئې پسې ذکر کړو دپاره د دلالت په دوام باندې.

قُلْنَا اهْبِطُوْا مِنْهَا جَمِیْعًا ۚ فَاِمَّا یَاْتِیَنَّکُمْ مِّنِّیْ هُدًی فَمَنْ

موږ اُووئیل : کوز شئ ددې جنت نه ټول پس که چرته راشي تاسو ته زما د طرفنه هدایت نو بس چا چه

تَبِعَ هُدَایَ فَلَا خَوۡفٌ عَلَیۡهِمۡ وَلَا هُمۡ یَحۡزَنُوۡنَ ﴿۳۸﴾

تابعداری اُوکړه د هدایت زما نو نهٔ به وی هیڅ یره په دوی او نه به دوی غمژن شی۔

**تفسیر** : دا بل علاج دے د تقصیر معاف کولو۔ او جنت ته د واپس کیدو نور دوه اسباب ذکر کوی۔

(اهْبِطُوا): دوباره ئے د کوزیدو حکم اُوکړو دیته زمونږ د مشائخو په اصطلاح کښ اعادةُ بُعُد عَهْد وائی۔ (یعنی زمانه ډیره تیره شویده نو بیرته خپل مقصد ته واپس کیږی)

(۲) دارنګه دے دپاره چه راتلونکے حکم پدے باندے مرتب کړی۔ او هرکله ئے چه مخکښ یو ځل دکوزیدلو حکم اُوکړو اوبیا ئے د توبے خبره اُوکړه نو دا وَهم پیدا شو چه هرکله توبه قبوله شوه نو کیدے شی چه دوی ته د کوزیدو حکم منسوخ شوے وی، نو دویم ځل ئے ذکر کړو چه معاف خو شوئ لیکن بیا به هم د جنت نه کوزیږئ ځکه که انسان د ګناه نه بعد معاف هم شی خو ګناه به خپل اثر کوی۔ مثال ئے دا دے: سړے زهر اُوخوری، که زر توبه اُوباسی او قبوله هم شی لیکن بیا به هم زهر خپل تاثیر کوی۔ نو ددے ونے خوړلو دا تاثیر شو چه د جنت نه محروم شو او پدے کښ د الله تعالیٰ حکمة وو، خپله وعده ئے پوره کوله چه کومه ئے په (اِنِّیۡ جَاعِلٌ فِی الۡاَرۡضِ خَلِیۡفَةً) سره کړے وه۔ لیکن که یو انسان په اخلاص سره توبه اُوباسی نو الله تعالیٰ ورله د ګناه اثر هم ختموی لکه آدم علیه السلام چه دنیا ته راغلو نو بیا خوشحاله هم شو۔

(۳) او بعض وائی: مخکښ کوزیدل وو د جنت نه آسمان ته او دا دویم کوزیدل دی د آسمان نه زمکے ته۔ لیکن اوله خبره غوره ده۔ (ابن کثیر/۱/۲٤۰)

(فَاِمَّا یَاۡتِیَنَّکُمۡ) پدے عبارت کښ ترغیب الی اتباع الکتاب والسنة دے په بشارت سره۔

(که چرته) لفظ ځکه وائی چه په الله تعالیٰ خو فرض نهٔ ده چه پیغمبران او کتابونه به رالیږی۔ یعنی که زما خوښه شوه پیغمبر به در اُولیږم، او که دروسے نهٔ لیږلو نو په الله تعالیٰ څه زور نشته۔ خو الله تعالیٰ د هدایت دپاره رسولان رالیږلی دی او دا د الله تعالیٰ محض احسان دے او پدے کښ تسلی ده چه د جنت نه خو راکوز شوئ لیکن که دنیا کښ مو د هدایت تابعداری اُوکړه بیرته به دے جنت ته راواپس کیږئ۔ او دا خطاب دے آدم او

حواء او د هغه اولادو ته۔ او د فاما جزاء پته ده (فَاتَّبِعُوْهُ) (یعنی تابعداری ئے اُوکړه)

(۲) بله فائده ئے دا ده چه د الله تعالیٰ ضرورت او حاجت نشته بلکه انسانان د هدایت اتباع ته محتاج دی۔ نو ځکه ئے په طریقه د تعلیق سره ذکر کړو۔

**هُدَایَ** : د هدایت نه مراد دلته : (اَلْكُتُبُ وَالرُّسُل) (کتابونه او رسولان) دی۔ (ابو العالیة)۔

او نسبت د هدایت ئے ځان ته اُوکړو ځکه چه د ځان نه هدایت جوړول او په هغے باندے عمل کول الله تعالیٰ ته مقبول نهٔ دی۔ (۲) بل پدے کښې تعظیم د امر الهدایة دے چه کوم هدایة د الله تعالیٰ د طرف نه راشي نو هغه لائق د تابعدارئ دے۔ او په همدغه سره په دنیا کښې اطمینان د زړه راځي او په آخرت کښې کامیابی۔ (الوسیط ۱/۶۲)

دا د هدایت ذریعے دی، لکه قرآن هدایت دے : (هدی للمتقین)۔ د هغے سره ئے تعلق شو۔

**فَمَنْ تَبِعَ هُدَایَ** دلته دا معنی هم ده : (فَمَنْ تَبِعَ كِتَابِی) (چا چه زما د کتاب تابعداری اُوکړه)۔ په سورة طه کښې (۱۲۳) ئے (فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَایَ) مزید ذکر کړیدی۔

وجه دا ده چه هلته موضوع، د قرآن کریم عظمتِ شان بیانیدله نو تاکیدی لفظ ئے راوړو او دلته خو عامه خبره ده نو ځکه ئے تَبِع مجرد راوړل۔

**(فَلَا خَوْفٌ)** ۱ – (فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ مِنَ الْعِقَابِ وَالْحُزْنِ مِنَ الثَّوَابِ)

(خوف) د عقاب (سزا) نه وی او حزن د (عدم ثواب) نه وی۔ (یعنی نهٔ به یره وی په دوی د عذاب د الله تعالیٰ نه او نهٔ به د ثواب نه د محرومیدو خطره ورسره وی)۔

(۲) (لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ فِي الْآخِرَةِ) یا یو د آخرت سره اُولګوه او بل د دنیا سره (یعنی خوف به پرے په آخرت کښې نهٔ وی)

(وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ بِمَا فَاتَهُمْ مِنَ الدُّنْيَا) (یعنی د دنیا د څیزونو پسے به غم نهٔ کوی)

(۳) یا معنیٰ داسے ده : (إِنَّ نُفُوْسَهُمْ آمِنَةٌ مُطْمَئِنَّةٌ لَا يَعْتَرِيْهَا فَزَعٌ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ لِفَوَاتِ مَطْلُوْبٍ أَوْ فَقْدِ مَحْبُوْبٍ) (الوسیط)

(یعنی د دوی نفسونه به په امن او اطمینان کښې وی هیڅ قسم یره به پرے په آخرت کښې نهٔ وی او غمجن به نهٔ وی په فوت کیدو د مقصود او ورک کیدو د محبوب څیز)

او خوف نکره ده دلالت کوی پدے چه په نیکانو بندګانو به په وخت د مرګ او په قبر او په وخت د راپاڅیدو د قبرونو نه او په میدان د حشر کښې او په وخت د تقسیم د عملنامو کښې او په وخت د میزان او صراط کښې هیڅ قسم خوف نهٔ وی۔

**فائده** : دا دواړه ئے ذکر کړل ځکه ټول انسانان چه په دنیا کښ څومره کوشش کوی نو ددے دوه مقاصدو دپاره. إِزَالَةُ الْخَوْفِ وَالْحُزْن. (چه خوف او غم زائل شی او امن او خوشحالی حاصل شی) دے خبره کښ ته سوچ اُوکړه، دا څومره انسانان چه لګیا دی څوك مزدوریانے کوی او څوك د بادشاهیانو پسے منډے وهی، او څوك تجارتونه اوکاروبارونه کوی، ددے دوه کارونو دپاره چه خوف رابانديے رانشی او امن راته ملاؤ شی او غمجن نه شم خوشحالی رابانديے راشی. بیا به هر مؤمن صادق ته دا دوه نعمتونه ورکولے شی۔ لیکن د درجاتو ترمینځ په هغوی کښ ضرور فرق شته۔ چا چه مکمل تابعداری د هدایت کړی وی نو هغه بانديے به هیڅ قسم خوف نۀ وی او چا چه تابعداریٔ کښ معمولی نقصان راوستے وی نو هغه بانديے به معمولی خوف او حزن وی۔

وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِاٰيٰتِنَا

او هغه کسان چه کفرئے اُوکړو په الله بانديے او دروغجن ئے کړل آیتونه زمونږ

أُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خٰلِدُونَ ﴿٣٩﴾

دا کسان اُور والا دی دوی به په دے کښ همیشه وی.

**تفسیر** : اُوس نۀ منونکو ته یره او عذاب بیانوی یعنی دنیا کښ چه هدایت (رسولان او کتابونه) راغلل که ددے نه چا اعراض اُوکړو او خپل خواهشات ئے رامخکښ کړل او د الله تعالیٰ او د رسول او د هغه د کتابونو تکذیب ئے اُوکړو نو دوی سره د اُور وعده شویده چه الله تعالیٰ به ئے اُور ته داخلوی او همیشه همیشه به پکښ اُوسیږی۔ ځکه دۀ د خپل ژوند مقصد شا ته ګوزار کړو۔

نو پدے آیت کښ ترهیب دے (یره ورکول دی) د اُور نه په سبب د کفر او تکذیب۔ په دے ترغیب او ترهیب کښ مقصد ایمان بکتاب الله ته دعوت دے او تعریض دے په یهودو۔

(**كَفَرُوا وَكَذَّبُوا**) (١) د كَفَرُوا او كَذَّبُوا تنازع ده په بآیتنا کښ۔ یعنی کفر او تکذیب ئے زما د آیتونو کړے وی۔ (٢) - كَفَرُوا بِاللهِ) یعنی ذغه د هدایت رالیږونکے ذات ئے اُونه منلو، او (**كَذَّبُوا**) یعنی د هغه آیاتونو نه ئے هم انکار اُوکړو۔ د هغه شرع منلو ته تیار نۀ

شو۔ (۳) یا (کَفَرُوْا بِالْجَنَانِ وَکَذَّبُوْا بِاللِّسَانِ)
یعنی په زړهٔ کښې ئې کفر اُوکړو او په ژبه ئې تکذیب اُوکړو۔
**بِآيَاتِنَا**: کښې اشاره ده (مِنِّیْ هُدًی) ته چه دا آیتونه راغلل۔ او په هغې باندې دوی تکذیب اُوکړو۔ او ضمیر د جمع متکلم ئې راوړو دې دپاره د مخاطبینو په زړه کښې یره کینوی چه دا زمونږ آیتونه دی او دوی پرې تکذیب کوی۔

## د آیات لفظ معانی

آیتونه درې معنې لری: ۱- یو آیتونه د قرآن دی۔ چه دا څوك اُونه منی نو جهنم ته به ځی۔دیته آیات متلوه وئیلې شی۔ ۲- دویم آیتونه په معنی د معجزاتو سره، یعنی د پیغمبرانو معجزې اُونهٔ منی۔ ۳- او دریم (اَلْآيَاتُ الْكَوْنِيَّة) (کونی آیتونه (دلائل) لکه آسمان، زمکه، رزقونه بارانونه وغیره، دا ټول څیزونه د الله تعالیٰ د وجود او د هغه د توحید نخې دی۔ لکه مخکښې بیان شو په (خَلَقَكُمْ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ) او په (كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللهِ) کښې۔
**فائده** : داسې ئې اُونهٔ وئیل : (وَمَنْ لَّمْ يَتَّبِعْ هُدَايَ) الخ خکه چه بیا په دې وعید کښې ماشومان او هغه څوك چه دعوت ورته نهٔ وی رسیدلې، داخلیدل۔
**اَصْحَابُ النَّارِ**: اصحاب جمع د صاحب ده په معنیٰ د ملگری او پیوسته سره، دلته ترې لازم مراد دې یعنی د اُور سره به لازم وی او د اُور لائق خلق دې۔(۲) دویم د اصحاب النار کله اطلاق په خزانچیانو د اُور کیږی۔ لکه په سورة المدثر (۱۹) کښې۔
**خَالِدُوْنَ** :دا د الله تعالیٰ آخِله فیصله ده چه الله تعالیٰ وائی : کتاب او رسول مې دراُولیږلو که چا د هغه خبره اُومنله نو جنتی او که چا اُونهٔ منله نو جهنمی دې۔دا ئې لنډ حاصل دې۔بس په دغې ډې هر انسان ځان تلی، نو قرآن کریم د ټول کتاب دې، چه مونږ هدایت د الله تعالیٰ څومره منو۔ ○ د ابوسعید خدری ﷺ روایت دې چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : جهنمیان -کوم چه د جهنم اهل دی- په جهنم کښې به همیشه دپاره اُوسیږی، نهٔ به په هغې کښې مری او نهٔ به ژوندی وی (په فائده مند ژوند) لیکن څه خلق به داسې وی چه هغوی به د خپلو گناهونو په وجه جهنم ته گوزار شی بیا به هغوی مړهٔ شی تردې چه سکارهٔ به شی، د هغې نه بعد به د هغوی دپاره د شفاعت (سفارش) اجازت اُوکړې شی۔ (دمسلم روایت دې – او الفاظ د ابن جریرؒ د روایت دی)۔ (ابن کثیر)

يٰبَنِیٓ اِسۡرَآءِيۡلَ اذۡكُرُوۡا نِعۡمَتِيَ الَّتِیۡٓ اَنۡعَمۡتُ عَلَيۡكُمۡ وَاَوۡفُوۡا

اے اولاد د یعقوب (علیه السلام) رایاد کړئ نعمتونه زما هغه چه ما انعام کړے په تاسو باندے، او پوره والے اُوکړئ

بِعَهۡدِيۡٓ اُوۡفِ بِعَهۡدِكُمۡ وَاِيَّايَ فَارۡهَبُوۡنِ ﴿٤٠﴾

په لوظ زما (ستاسو سره)، زۀ به پوره کړم لوظ ستاسو او خاص ځما نه اُویرېږئ (په احکام منلو سره)

**تفسیر** : ربط : (۱) مخکنو آیتونو کښې الله تعالیٰ د بنی نوع انسان د پیدائش ابتداء ذکر کړه، بیا ئے عام انسانانو ته د خپلے بندګئ دعوت ورکړو ددے نه بعد اُوس پدے آیتونو کښې خاص بنی اسرائیلو ته د اسلام د قبلولو دعوت ورکولے شی دارنګه د صحیح بندګئ دعوت هم ورکولے شی ځکه هغوی په مدینه کښې د رسول الله ﷺ سره نزدے اُوسیدل او زیات حقدار وو چه په رسول الله ﷺ باندے ئے ایمان راوړے وے، ځکه د تورات په ذریعه هغوی د رسول الله ﷺ صدق پیژندلے وو۔

(۲) د آدم علیه السلام خلافت ذکر شو نو اُوس بیانوی چه دا خلافت په بنی اسرائیلو کښې رالروان وو نو د هغوی نه دا خلافت ولے مسلمانانو ته نقل کړے شو؟ ځکه هغوی کښې د الله تعالیٰ صحیح عبادتونه نۀ وو او صحیح اخلاق هم پکښې نۀ وو۔ بلکه فسادونه پکښې وو۔ (فی ظلال القرآن)

(۳) مخکښې (هو الذی خلق لکم) کښې بیان د پیدائش د زمکے او د هغے د څیزونو وو، بیا خلافة الارض د انسانانو دپاره او د هغے اسباب د بقاء او د حصول چه هغه د کتابونو او د رسولانو هدایة قبلول۔ وو اُوس واقعه د بنی اسرائیلو بیانوی چه پدے کښې اسباب د زوال د خلافت دی۔ (٤) مخکښې اشارةً دعوت وو یهودو ته اُوس صراحةً خطاب ورته کوی۔

(۵) مخکښې آیاتونه په منزله د مقدمه وو اُوس مقصود شروع شو لیکن د قرآن کریم مقدمه هم د عظیم مقاصدو نه ډکه وی۔

**فائده** : په قرآن کریم کښې د بنی اسرائیلو تذکره زیاته کیږی او د هغوی قبائح ډیر بیانیږی ددے یو څو حکمتونه دی (۱) بنی اسرائیل په هر وخت کښې موجود دی او ډیر دی، یهودیت او نصرانیت هر وخت شته۔ (۲) امت محمدیه غالباً په اکثرو څیزونو کښې د یهودو او نصاراؤ تابعداری کوی لکه حدیث کښې دی : (لَتَتَّبِعُنَّ سُنَنَ مَنۡ كَانَ قَبۡلَكُمۡ حَذۡوَ

النَّعْلِ بِالنَّعْلِ حَتّٰى لَوْ دَخَلُوْا جُحْرَ ضَبٍّ لَتَبِعْتُمُوْهُمْ) (متفق علیه واحمد والطیالسی)
(تاسو به د پخوانو خلقو په طریقو پسے داسے برابر راونیړئ لکه یو څپلئ چه د بلے سره څنګه برابره ده، تردے چه که هغوی د خادمئ سوړے ته ننوتی وی نو تاسو به هم د هغوی تابعداری اُوکړئ) یعنی په احکامو کښ به حیلے اُوکړئ څکه خادمئ حیله ګر حیوان دے۔ صحابه کرامو عرض اُوکړو : یا رسول الله ﷺ یهود او نصاریٰ مراد دی؟ وے فرمایل : (فمن ؟) (نور څوك دی ؟)۔ یعنی همدغه مراد دی۔
(۳) دریم مقصد : (تَحْذِيْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ عَنِ الْاِتِّصَافِ بِأَوْصَافِهِمْ) (مسلمانانو ته یره ورکول دی چه د هغوی په شان صفات اختیار نکړی ورنه دوی نه به هم خلافت زائل شی)۔
(٤) بل مقصد پکښ اصلاح الیهود ده چه تاسو کښ دومره قبائح دی نو راشئ دا د ځان نه اُوباسئ او صحیح ایمان راوړئ چه په دے امت کښ داخل شئ۔
(۵) (تَنْبِيْهُ الْمُؤْمِنِيْنَ عَلٰى أَعْدَائِهِمْ)
(مؤمنانو ته خبردارے ورکوی چه خپل دشمنان اُوپیژنئ او د هغوی تابعداری اُونکړئ)
(٦) (تَصْحِيْحُ التَّصَوُّرِ فِيْهِمْ) ۔(د امت مسلمه د تصور او عقیدے او ګمان اصلاح کوی او تصفیه کوی چه هسے نه په یهودو او نصاراؤ ښه ګمان اُونکړی۔ نو په غټ فساد کښ به واقع شی۔
(۷) دا امت د بنی اسرائیلو سره مشابه دے او نبی ﷺ ځان د موسیٰ علیه السلام سره مشابه کړیدے نو کوم خطاب چه بنی اسرائیلو ته وی هغه به دے اُمت ته هم وی۔
ددے وجه نه عمر فاروق رضی الله عنه په منبر باندے اُوفرمایل : (قَدْ مَضٰى بَنُوْ إِسْرَائِيْلَ (وَفِيْ رِوَايَةٍ مَضَى الْقَوْمُ) وَإِنَّمَا يَعْنِيْ بِهٖ أَنْتُمْ) (تفسیر ابن ابی حاتم ۱۲۷/۱) وابن المنذر)۔
(بنی اسرائیل تیر شویدی او الله تعالیٰ پدے آیتونو باندے تاسو قصد کوی)۔
لهذا چا کښ دا صفات راغلل نو هغه به د یهودو سره مشابه وی او د هغوی په شان عذابونه به پرے راځی۔
(يَا بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ) دے ته خطاب خاص پس د خطابِ عام نه وائی، مخکښ عام خطاب وو (يَا أَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوْا) دلته اُوس خاص بنی اسرائیلو ته الله تعالیٰ متوجه کیږی۔ یعنی یهود او نصاراؤ ته۔ چه راشئ سم ایمان راوړئ دا تاسو څه ګلے ودے شروع کړیدی۔ دا نور عرب او عجم که ایمان نۀ راوړی نو دا خو جاهلان او ناپوهه دی، تاسو خو پوهه خلق یئ، الله تعالیٰ کتابونه درکړیدی، څومره انعامات ئے درسره کړیدی، اُوګوره سزاګانے ئے هم درکړیدی، الله

تعالیٰ هم هغه دے۔ که نهٔ سمیږئ همغه شان عذابونه به درکوی او نهٔ به مو پریږدي۔

او ددے نږدے واقعے سره ئے مناسبت دا دے چه الله تعالیٰ اول انسانانو ته خلافت ورکړے وو، بیا ئے روسته بنی اسرائیلو ته ورکړو، بنی اسرائیلو کښې نا اهلی پیدا شوه نو الله تعالیٰ ترے بیرته د دین مشری واخستله۔ دے اُمت ته ئے رانقل کړه او هغوی ئے بے مشرئ پریخودل۔ د دین مشری اُوس د بنی اسرائیلو (د یهود او نصاراؤ) سره نشته، اُوس د گمراهئ مشران دی۔

**مضمون:** پدے آیتونو کښې تر (٤٦) شپږ خلویښت آیت پورے نهه امرونه (اُذْكُرُوْا، اَوْفُوْا، فَارْهَبُوْنِ، آمِنُوْا، فَاتَّقُوْنِ، اَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ، آتُوا الزَّكٰوةَ، وَارْكَعُوْا، وَاسْتَعِيْنُوْا) او پنځه نواهي (لَا تَكُوْنُوْا اَوَّلَ كَافِرٍ بِهٖ، لَا تَشْتَرُوْا، لَا تَلْبِسُوْا، لَا تَكْتُمُوْا، وَتَنْسَوْنَ اَنْفُسَكُمْ په معنى د وَلَا تَنْسَوْا) الله ذکر کړيدی۔ یعنی الله تعالیٰ فرمائی : دا کارونه اُوکړئ او ددے کارونو نه ځان اوساتئ۔ نو تاسو به هم په دے غوره اُمت کښې داخل شئ۔ او پدے کښې دعوت دے ایمان بالله ته او قرآن او رسول ته، او تحذير (یره ورکول) دی د هغه کارونو نه چه دین تروی، او تیزی ورکول دی په ذکر د داسے امورو چه په هغے سره د دین او خلافتِ حقه مضبوطوالے راځی۔

او ددے آیتونو نه تر (١٤٢) آیت پورے ټول بحث د بنی اسرائیلو سره دے، کله الله تعالیٰ دوی ته په نرمه لهجه کښې اسلام طرف ته دعوت ورکوی، په دوی او د دوی په پلارانو او نیکونو باندے خپل نعمتونه ذکر کوی، کله ئے هغوی یرولی دی نو کله ئے د هغوی په خلاف حجت قائم کړیدے او د هغوی بد عملیانے ئے ذکر کړیدی او د هغوی د پلار نیکه سزاګانے ئے ذکر کړیدی، دا ټول دوی ته د دعوت طریقے دی۔

﴿ يَا بَنِىٓ اِسْرَآئِيْلَ ﴾ (بَنِيْ) لفظ په عرف کښې په ټولو اولادو اطلاق کیږی که نارینه وی که زنانه، نږدے اولاد وی که وړاندے۔

**اِسْرَآئِيْل** د دوه لفظونو نه جوړ دے، په عبرانئ (یا سُریانئ) ژبه کښې د اِسْر معنیٰ ده عبد (بنده) او اِیْل په معنیٰ د الله سره (یعنی عَبْدُ الله) (د الله تعالیٰ بنده)۔

بعض وائی : په معنیٰ د (صَفْوَةُ الله) (د الله تعالیٰ غوره بنده) سره دے۔ او دا د یعقوب ﷺ لقب (صفتی نوم) وو، یعنی اے اولاد د یعقوب ! چه هغه د الله تعالیٰ بندګی کړے وه نو تاسو هم اُوکړئ۔ نو په دے کښې هغوی ته ترغیب او تیزی ورکول دی په خالص عبادت او بندګئ باندے۔ چه د پلار نیکه طریقه خو راتینګه کړئ۔ د یعقوب ﷺ د اَولادو نه یهود

او نصارىٰ مراد دي.

د يعقوب عليه السلام دولس ځامن وو، چه د هغې نه دولس قبيلې جوړې شوې وې او په هغوى كښې ډير انبياء او رسولان (عليهم الصلاة والتسليمات) راغلي وو، ترديے چه امام حافظ عماد الدين ابن كثير ليكي : ټول انبياء په بني اسرائيلو كښې وو، سوئ د لسو نه نوح، هود، صالح، شعيب، ابراهيم، لوط، اسحاق، يعقوب، اسماعيل او محمد عليهم الصلاة والسلام. او عرب د اسماعيل عليه السلام اولاد دي، د قحطان او د عدنان په اولادو كښې راغلي دي.

د بني اسرائيلو نه يهوديان پيدا شو چه په عربو كښې دوى ته د تير شوى تاريخ او د علم او مذهب سره د تعلق په وجه يو خاص مقام حاصل وو، پديے وجه دوى ته دعوت وركوى چه زما زاړۀ او نوى نعمتونه راياد كړئ. او زما د وعدو پوره والے اُوكړئ.

(**اُذْكُرُوْا نِعْمَتِيَ**) راياد كړئ هغه احسانات چه ما په تاسو كړيدي، هغه احسانات كوم دي نو هغه ډير شے دي چه الله تعالىٰ اته احسانات روستو بيان كړيدي (۴۸) او (۶۸) آيت كښې او سورة آل عمران (۱۸۷) او سورة المائده (۱۲) آيت كښې هم ذكر دي. چه اُوګوره الله تعالىٰ تاسو كښې بادشاهان مقرر كړيدي او تاسو كښې ئے پيغمبران راليږلي دي، كتابونه ئے نازل كړيدي او د خوراك دپاره ئے من او سلوىٰ دركړي دي. او د فرعون او د هغه د لښكر نه ئے بچ كړئ، د كاڼړو نه ئے ستاسو دپاره چينے روانے كړے. او تاسو ئے په خپله زمانه كښې په نورو خلقو غوره كړئ، او دا نعمتونه دوه قسمه دي، ديني، او دنيوى.

**فائده** : نعمة ئے ولے مخكښې ذكر كړو؟ (۱) - (لِأَنَّ ذِكْرَ النِّعَمِ بَاعِثٌ عَلَى الشُّكْرِ وَالْحَيَاءِ) وجه دا ده چه كله بنده نعمت او احسان د الله تعالىٰ راياد كړي نو هغه كښې حياء پيدا شي او د شكر ماده پكښې راشي او د منلو والا جوړيږي، ځكه چه چا كښې لږ شان عقل وي نو د الله تعالىٰ په احسانات يادولو سره زر راګرځي، ددے وجه نه ئے اول نه ورته دا سے اُونه وئيل چه ايمان راوړئ ځكه چه د ايمان باعث د الله تعالىٰ نعمتونه رايادول دي، او پس د يادولو نه به خپله ايمان راوړي. (۲) ابو حيانؒ فرمائي : (لِأَنَّ تَذْكِيرَ النِّعَمِ السَّالِفَةِ يُطْمِعُ فِي النِّعَمِ اللَّاحِقَةِ وَذَلِكَ الطَّمَعُ يَمْنَعُ مِنْ إِظْهَارِ الْمُخَالَفَةِ) (البحر المحيط ۱/۲۱۹)

(ځكه چه مخكني نعمتونه رايادول طمع وركوى په نوى نعمتونو، او كله چه بنده د الله تعالىٰ د نوى نعمتونو په طمع شي نو بيا د هغه مخالفت نۀ كوى)

**فائده** : نعمة مفرد دے او مضاف شويدے، نو دا مفيد د استغراق وى. يعني زما ټول

نعمتونه دینی او دنیوی رایاد کړئ. او ځان ته ئے نسبت اُوکړو اشاره ده د هغه نعمتونو فراخوالی او غټ والی ته چه ډیر زیات احسانات دی. او تخصیص ته اشاره ده چه صرف زما د طرف نه دی.

**عَلَيْكُمْ** : یعنی ستاسو په پلارانو او نیکونو باندے الله تعالیٰ دغه احسانات کړیدی او په پلار نیکه احسان داسے وی لکه په بچو باندے نو د هغوی په شان سرکشی مهٔ کوئ ګنے د هغوی په شان عذابونه به درکړے شی. دارنګه په تاسو هم دغه شان احسانات شویدی.

**فائده** : بیا د نعمت رایادولو څه معنیٰ ده ؟ نو د نعمت رایادولو مطلب دا وی چه د هغے شکر اُوکړئ، توحید اُومنئ، ددے رسول ﷺ رسالت باندے ایمان راوړئ، د الله تعالیٰ د آیتونو تکذیب مهٔ کوئ، او په ژبه باندے د هغے یادول هم یو نوع د شکر ده. ځکه د شکر نخه دا ده چه انسان دغه نعمت په خوله باندے ذکر کړی لکه حدیث کښ راغلی دی : (فَإِنَّ مَنْ أَثْنَى فَقَدْ شَكَرَ وَمَنْ كَتَمَ فَقَدْ كَفَرَ) (ترمذی بسند صحیح)

(یعنی چا باندے چه نعمت اُوشو او د هغے اظهار اُوکړی (په صفت کولو) نو دهٔ شکر اُوکړو او چه پټ ئے کړو نو ناشکری ئے اُوکړه). (وَأَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ) (د الله تعالیٰ نعمت بیانوه) اګرکه تعیین ضروری نهٔ دے.

رسول الله ﷺ یو مالدار صحابی (د ابو الاحوص پلار مالك) چه بیکاره جامے ئے اغوستے وے - ته اُوفرمایل : (فَلْيُرَ أَثَرُ نِعْمَةِ اللَّهِ عَلَيْكَ)

(د الله تعالیٰ د نعمت اثر دے په تا ښکاره شی) (احمد، ترمذی، ابوداود بسند صحیح)

او د ذکر نه مراد په زړه کښ هم رایادول وی چه د هغه نه به رضا کیږی. او خفه به نهٔ وی.

(**وَأَوْفُوا بِعَهْدِي أُوفِ بِعَهْدِكُمْ**) ددے عهدی نه څه مراد دے ؟ نو ددے ډیر مصداقات دی :

(۱) (اَلْعَمَلُ بِكِتَابِ اللَّهِ) (د الله تعالیٰ په کتاب به عمل کوئ) لکه بقره : ٦٣) کښ دی.

(۲) توحید اختیارول (یعنی د شرك فی العبادة نه ځان ساتل) (بقره : ۸۳)

(۳) او د والدینو او ذوی القربی او یتیمانانو او مسکینانو حقوق اداء کول (بقره : ۸٤)

(٤) خلقو ته دعوت د دین کول. (وَقُولُوا لِلنَّاسِ حُسْنًا) (بقره : ۸۳)

(۵) اقامة الصلاة.

(٦) زکوٰة اداء کول.

(۷) د ناحقه قتل نه ځان ساتل.

(۸) يو بل د كورونو ويستلو نه ځان ساتل۔ (بقره : ۸۳/۸٤)

(۹) (اَلْاِيْمَانُ بِمُحَمَّدٍ ﷺ وَاِظْهَارُ صِفَتِهٖ)

(په آخري رسول به ايمان راوړي او ددهٔ صفات به راښكاره كوي كوم چه په تورات او انجيل كښې ذكر دي) دا په سورة آلعمران (۸۱) كښې ذكر دي۔

(۱۰) خلقو ته د الله تعالىٰ د كتاب تبيين (تشريح او تفسير) كول۔ (آلعمران :۱۸۷)

(۱۱) اقامة الصلاة، ايتاء الزكوة، او ايمان په ټولو رسولانو لرل او د هغوى د دين امداد كول او په دين حق باندې خرچ كول۔ (المائدة : ۱۲)

(۱۲) تقوىٰ اختيارول او په ټولو آيتونو باندې مضبوط ايمان لرل۔ (اعراف : ۱۷۲)

(۱۳) توحيد ربوبيت منل۔ (اعراف : ۱۵٦)

نو الله تعالىٰ دوى ته وئيلى وو چه زما پيغمبران به منئ، زما كتابونه، زما امرونه به منئ كه دا تاسو اُومنئ نو زهٔ به ستاسو لوظ پوره كړم، جنت به دركړم، دنيا كښې به درله خائسته ژوند دركړم، او تاسو ته چه كوم عروج او فضيلت حاصل وو هغه به تاسو ته دوباره دركړې شي۔

**مفسرينو** داسې مصداقات بيان كړيدى : (۱) امام قرطبىؒ فرمائي : (هُوَ عَامٌّ فِيْ جَمِيْعِ اَوَامِرِهٖ وَنَوَاهِيْهِ وَوَصَايَاهُ فَيَدْخُلُ فِيْ ذٰلِكَ ذِكْرُ مُحَمَّدٍ ﷺ الَّذِيْ فِي التَّوْرَاةِ وَغَيْرِهٖ) (۱/۳۳۲)

(يعنى ددې عهد نه ټول اوامر او نواهى او وصيتونه د الله تعالىٰ مراد دى نو پدې كښې د رسول الله ﷺ تذكره هم مراد ده كومه چه په تورات وغيره كښې وه) چه هغه به خلقو ته ښكاره كوى او ايمان به پرې راوړي۔

(۲) (اَوْفُوْا بِعَهْدِيْ فِيْ اَدَاءِ الْفَرَائِضِ عَلَى السُّنَّةِ وَالْاِخْلَاصِ اُوْفِ بِقَبُوْلِهَا مِنْكُمْ وَمُجَازَاتِكُمْ عَلَيْهَا) (تاسو زما لوظ پوره كړئ په اداء كولو د فرائضو په سنت او اخلاص سره زهٔ به پوره والې اُوكړم په قبلولو د دغه عبادتونو او بدله دركولو)

(۳) زجاجؒ وئيلى دى : چه هغه لوظ مراد دې چه په تورات كښې وو چه هغه اتباع د محمد ﷺ ده۔

(٤) (اَوْفُوْا بِعَهْدِيْ فِي الْعِبَادَاتِ اُوْفِ بِعَهْدِكُمْ اَيْ اُوْصِلْكُمْ اِلٰى مَنَازِلِ الرِّعَايَاتِ) (قرطبى)

(تاسو زما عبادتونه پوره پوره ادا كړئ زه به تاسو د رعايتونو مقاماتو ته اُورسوم) قرطبىؒ وئيلى دى چه اول قول صحيح دې۔

**فائده :** اُوفِ بِعَهۡدِكُمۡ ئے روستو راوړو، دے کښ حکمة دا دے چه دا د الله تعالیٰ قانون دے چه بنده به اول د الله تعالیٰ لوظ پوره کوی، د الله تعالیٰ دپاره به مجاهدے کوی، تکلیفونه به تیروی، عبادتونه او طاعتونه به کوی، بیا به الله تعالیٰ وعدے پوره کوی، ښائسته ژوند به ورکوی او کله چه بنده د الله تعالیٰ وعدے نهٔ پوره کوی او د الله تعالیٰ نافرمان وی او وائی چه الله تعالیٰ په مونږ رحم نهٔ کوی۔ او څه مجاهده ئے نهٔ وی کړی او اُوچتے مرتبے او درجے او نعمتونه غواړی۔ دا د الله تعالیٰ غالباً قانون نهٔ دے۔ ځکه دلته الله تعالیٰ شرط لګولے دے چه زهٔ به لوظ هله پوره کوم چه ستا د طرف نه لوظ پوره شی، نو که بنده د الله تعالیٰ لوظ پوره نهٔ کړی نو الله تعالیٰ باندے به په نهٔ وفاء د لوظ کښ هیڅ اعتراض نهٔ وی۔

**(وَاِيَّايَ فَارۡهَبُوۡنِ)** اِيَّايَ : نه مخکښ فعل پټ دے، (فَارۡهَبُوۡنِ اِيَّايَ فَارۡهَبُوۡنِ) نو پدے کښ د تکرار معنیٰ ده او پدے کښ ډیر تاکید دے۔ اوتخصیص دے، حاصل ئے داسے دے :

(اِرۡهَبُوۡا اِيَّايَ اِنۡ كُنۡتُمۡ رَاهِبِيۡنَ عَنۡ شَيۡءٍ فَارۡهَبُوۡنِيۡ)

(خاص زما نه یره اُوکړئ که چرته تاسو د یو شی نه یره کوئ نو ما نه یره اُوکړئ)

ابن جریرؒ ددے تفسیر داسے کړیدے چه اے بنی اسرائیلو ! هغه خلقو چه زما لوظ مو ضائع کړو او زما د رسول تکذیب مو اُوکړو د کوم په باره کښ چه ما ستاسو نه ستاسو په کتابونو کښ لوظ اخستے وو، ما نه اُویریږئ او خبر شئ چه که تاسو زما د رسول اتباع مو اُونکړه او په قرآن کریم مو ایمان رانهٔ وړو نو هسے نهٔ چه تاسو ته هغه عذاب اُورسی کوم چه ستاسو نیکونو ته رسیدلے وو، کومو چه زما د حکم خلاف ورزی کړے وه او زما د رسولانو تکذیب ئے کړے وو۔

**فائده :** دلته ئے امر په رهبة اُوکړو او روستو ئے په تقوىٰ۔ ددے یو حکمة دا دے (۱) چه یهودیانو کښ چه به څوك متقی وو نو هغه ته به ئے راهب وئیلو نو دوی د ایمان راوړو نه مخکښ رهبة پیژندلو او چه کله ئے ایمان راوړو نو بیا به ورته د قرآن په اصطلاح متقی وئیلے شی۔ (۲) دویم دا چه رهبة متعلق دے د ذات پورے او تقوىٰ متعلق دے د احکامو پورے۔ یعنی زما د ذات نه یره اُوکړئ او زما د احکامو تابعداری اُوکړئ۔

**فائده :** الله تعالیٰ همیشه په خپله تقوىٰ او یره باندے حکم کوی، وجه دا ده چه انسان نه ګنده صفات هله اُوځی او ښائسته صفات پکښ هله راځی چه زړه کښ ئے د الله تعالیٰ نه یره پیدا شی۔ ابو سلیمان الدارانیؒ فرمائی :

(مَا فَارَقَ الْخَوْفُ قَلْباً إِلَّا خَرِبَ) (د زړه نه چه خوف جدا شی نو هغه ضرور خرابیږی).

ابراهیم بن سفیان رحمه الله نه نقل دی : (اذا سَكَنَ الخوفُ القلوبَ، أَحْرَقَ مَوَاضِعَ الشَّهَوَاتِ مِنْهَا وَطَرَدَ الدُّنْيَا عَنْهَا) (کله چه په زړه کښې خوف ځائے اُونیسی نو د شهوت ځایونه اُوسوزوی، او دنیا ترے اُوشړی).

**فائده** : د رهبة سره قریب المعنیٰ کلمات قرآن او حدیث کښې استعمالیږی، ددے پیژندل هم ډیر فائده مند دی. **رَهْبَة** وائی : (خَوْفٌ مَعَ حُزْنٍ وَاضْطِرَابٍ) (خازن)

(بنده د الله تعالیٰ نه یریږی او غمجن او پریشانه وی)،

(۲) (خَوْفٌ مَعَ تَحَرُّزٍ) (یره چه ورسره تحرز او بچاؤ هم کوی).

(۳) (خَوْفٌ مَعَ هَرَبٍ) . (هغه یره چه ورسره تیخته هم وی).

**تَقْوىٰ** : (خَوْفٌ مَعَ حَزْمٍ) (هغه یره چه هوښیارتیا ورسره وی).

**خَوْف** : (هَرَبُ الْقَلْبِ مِنْ حُلُوْلِ الْمَكْرُوْهِ عِنْدَ اسْتِشْعَارِهٖ) (د زړهٔ تختیدل دی د یو مکروه څیز د نازلیدو په وخت چه کله د هغے احساس اُوکړے شی) دا د عوامو کار دے.

**خَشْيَةٌ** : (خَوْفٌ مَقْرُوْنٌ بِالْمَعْرِفَةِ مَعَ تَعْظِيْمِ الْمَخْشِيِّ عَنْهُ) (هغه یره ده چه معرفت ورسره وی او د چا نه چه یره کوی نو د هغه تعظیم هم ورسره وی) او دا د علماؤ په باره کښې استعمالیږی. **وَجَلٌ** : (رَجْفَانُ الْقَلْبِ لِذِكْرِ مَنْ يُخَافُ سُلْطَانُهٗ وَعُقُوْبَتُهٗ)

(د زړه رپیدل دی د وجه د یادولو د هغه چا نه چه د هغه د قوت او عذاب نه یره کیږی)

**هَيْبَة** : (خَوْفٌ مُقَارِنٌ لِلتَّعْظِيْمِ) (دا هغه یره ده چه تعظیم ورسره وی) دا د مُحبینو کار دے.

**اِجْلَال** : (تَعْظِيْمٌ مَقْرُوْنٌ بِالْحُبِّ)

(د چا تعظیم کول سره د محبت ساتلو نه د هغه سره) او دا د مقربینو صفت دے.

او حافظ ابن القیمؒ فرمائی : (وَعَلٰى قَدْرِ الْعِلْمِ وَالْمَعْرِفَةِ يَكُوْنُ الْخَوْفُ وَالْخَشْيَةُ).

(څومره چه علم او معرفة وی نو هغومره به خوف او خشیت وی).

**اِشْفَاق** : (ظُهُوْرُ أَثَرِ الْخَوْفِ فِيْ ظَاهِرِ الْبَدَنِ) (په ظاهری بدن باندے د خوف اثر ښکاره کیدل) که څوك ګیره خرنیوی، او تانی پتلون اچوی، ګډوډ روان وی نو دهٔ کښې د الله تعالیٰ نه یره نشته. څکه چه شکل باندے یٔے اثر نهٔ ښکاری.

**فائده** : خوف د کوم څیزونو نه کیږی ؟ (۱) (خَوْفٌ عَنْ عَذَابِ اللّٰهِ) (د الله تعالیٰ د عذاب نه خوف). (۲) (خَوْفٌ عَنْ عَظَمَةِ اللّٰهِ) . (د الله تعالیٰ د عظمت نه یره کول) لکه څنګه چه

یو بچے د خپل مشفق والد نه یریږی.
(۳) (خَوْفُ الْقَطِيْعَة). (یریدل چه د گناه په وجه د الله تعالیٰ نه قطعه نهٔ شم).
(٤) (خَوْفٌ عَنِ الذُّنُوْبِ) (د گناهونو نه یریدل).
(٥) (خَوْفٌ عَنْ عَدَمِ قَبُوْلِ الْاَعْمَالِ). (دا یره کول چه اعمال به مے قبول نهٔ شی).
(٦) (اَلْخَوْفُ عَنْ سُوْءِ الْخَاتِمَة). (د بدے خاتمے نه یریدل).
(۷) خوف د عملنامے نه په قیامت کښ.
(۸) خوف د غلطو اسبابو نه. نور خوفونه هم شته "الفوائد فی تزکیة النفوس" اُوگوره.

وَاٰمِنُوْا بِمَآ اَنْزَلْتُ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمْ

او ایمان راوړئ په هغه کتاب چه ما نازل کړیدے تصدیق کونکے دے د هغه کتابونو چه تاسو سره دی

وَلَا تَكُوْنُوْٓا اَوَّلَ كَافِرٍۢ بِهٖ ۖ وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِىْ ثَمَنًا قَلِيْلًا ۡ وَّاِيَّايَ فَاتَّقُوْنِ ﴿٤١﴾

او مهٔ کیږئ اول کفر کونکی په دے قرآن او مهٔ اخلئ په آیتونو زما پیسے لږے او خاص ما نه اُویریږئ.

**تفسیر**: مخکښ آیت کښ توحید طرف ته دعوت وو، اُوس پدے کښ په قرآن او رسول باندے ایمان راوړو ته دعوت دے، او په دے کښ دوه اوامر او دوه نواهی ذکر دی.

بِمَآ اَنْزَلْتُ: ددے نه مراد قرآن کریم دے. او په لفظ د انزلت سره ئے ذکر کړو چه شامل شی وحی غیر متلو (حدیث) ته هم.

**مُصَدِّقًا**: دا لفظ قرآن کریم کښ دولس (۱۲) کرته راغلے دے. دوه قسمه استعمالیږی. د تصدیق لفظی معنیٰ ده: رشتینی کونکے. قرآن مصدِق دے د تورات او انجیل. تصدیق اجمالی او تفصیلی دواړه کوی. اجمالًا دا چه قرآن وائی موسی علیه السلام او عیسی علیه السلام حق انبیاء دی او تورات او انجیل حق کتابونه وو. او تفصیلًا دا چه کومے مسئلے په تورات او انجیل کښ دی هغه قرآن کښ رانقل شوی دی. لکه تورات او انجیل کښ د محمد صلی الله علیه وسلم صفات او د هغه د صحابه کرامو صفات ذکر وو دارنگه په هغے کښ توحید او اصول الایمان او اصول د محرماتو او پنځه بناگانے د اسلام ذکر وے، ښو اخلاقو او ښائسته صفاتو خپلولو

ته دعوت وو، نو دا تهول په قرآن کریم کښې هم شته نو تاسو ولے ددے قرآن خلاف کوئ۔
او ابـن جریرؒ وائـی چه الله تعالیٰ دوی ته د قرآن کریم د تصدیق حکم اُوکړو او دا ئے اُووئیل چه د قـرآن تـصـدیـق دا په اصـل کښې د تورات تصدیق دے ځکه دوی ته که په قرآن کښې د نبی کریم ﷺ د نبوت تصدیق او د هغه د اتباع حکم شوید ے نو همدغه خبره په تورات او انجیل کښې هم موجوده وه، پدے وجه که هغوی په محمد ﷺ باندے د نازل شوی کتاب تـصـدیـق کوی نو ګویا کښې د تورات تصدیق کوی او که ددے تکذیب کوی نو ګویا کښې د تـورات تـکـذیـب کوی۔ دارنګه د تصدیق صورت دا هم دے چه تورات کومے پیشن ګویانے ورکـړیـدی نـو هـغـه په قرآن کریم کښې صادق شوی دی نو قرآن مصدق د تورات شو چه د هغه پیشن ګوئی ئے رشتینے کړه۔

**فائده** : د مـصـدق نه معلومه شوه چه د اهل حقو طریقه دا ده چه د حق تائید او تصدیق بـه کـوی کـه د هـر چا سـره وی او د اهـل بـدعـت او یهود او نصاراؤ طریقه دا ده چه د خپل مخالف سره که حق هم وی نو تسلیمیدو ته ئے تیار نۀ وی۔ فتفکر۔

(وَلَا تَكُونُوٓا أَوَّلَ كَافِرٍۭ بِهِۦ) **سوال** دا دے چه اول کفر خو د مکے مشرکانو کړے وو ؟

**جواب** (۱) دا دے (وَلَاتَكُونُوٓا أَوَّلَ كَافِرٍ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ) (یعنی په اهل کتابو کښې د تهولو نـه اول د قـرآن کـریـم انـکـار کـونکی مۀ جوړیږئ)، ورنه د مکے مشرکانو خو د تهولو نه اول انکار کړے وو، او په مدینه کښې د اهل الکتاب نه یهود اول هغه خلق وو چه الله تعالیٰ ورتـه پـه قـرآن کـریـم باندے د ایمان راوړو دعوت ورکړو نو حقه خو دا وه چه هغوی د تهولو نه اول پـه دے ایمان راوړے وے، ځکه دوی ته خو د رسول الله ﷺ صفات د مخکښې نه د تورات په ذریـعـه مـعـلـوم وو، لیـکـن هغوی د کفر لاره اختیار کړه او د قرآن او د رسول الله ﷺ نه ئے انکار شروع کړو۔ او دا حکم تاکید دے د مخکښې (آمِنُوا) دپاره یعنی ایمان راوړئ او کفر مۀ اختیاروئ او مشران د کفر مۀ جوړیږئ۔

۲ – یا دا اولیّت اضافی دے یعنی په نسبة د خپلو کشرانو اول کفر کونکی مۀ جوړیږئ او مـراد دا دے چـه مـقـتـدیٰ د کـفـر مـۀ ګرځئ؛ ځکه چه اول مخاطب په دے کتاب باندے دغه یهـود دی نـو کـلـه چـه دوی کـفـر اُوکړو نو د دوی کشران او تابعدار به هم د دوی په شان کفر کـوی، نو دوی به د هغوی دپاره په کفر کښې امامان او مُقتدیٰ شی، نو دوی به مخکښې وی او هغوی به وریسے وی۔ نو مطلب دا شو چه د بل چا دپاره ذریعه د کفر مۀ ګرځئ، خپله به

هم تاوانیان شئ او د بل تاوان به هم دریاندے راشي۔

۳- یا کافر په معنیٰ د (کَاتِمُ الْحَقِّ) (حق پټونکی) دے یعنی اول ددے قرآن په باره کښې خپل علم د خلقو نه پټ مه ساتئ۔ او مشرکان خو منکر د حق نه وو لیکن کاتمین د حق نهٔ وو ځکه جاهلان وو۔ او اهل کتاب منکرین او کاتمین دواړه وو۔

٤- راجح دا ده چه دا کنایه ده د عدم تدبر نه او اول مقابل د ثاني نهٔ دے، یعنی د ابتداء نه بغیر د سوچ او فکر او تدبر نه سمدست انکار مهٔ کوئ بلکه د سوچ نه پس که تاسو ته ددے باطل والے معلوم شو، نو بیا که تریے انکار کوئ نو څه جواز به درله ثابت شي۔ (دا فرض محال دے) ددے مثال په محاوره کښې داسے وی لکه یو سړے چا ته خبره اُوکړي او بیا ورته تاکیداً وائي، د اول نه انکار مه کوه لږ سوچ اُوکړه نو اول نه مراد په نسبت د ثاني نهٔ وی۔ بلکه معنیٰ ده سمدستي او بغیر د سوچ انکار مه کوه۔

(به) ضمیر قرآن یا رسول ته راجع دے او دواړه صحیح دی۔

(۲) دویم دا چه (به) ضمیر ما معکم ته راجع دے یعنی په خپل کتاب (تورات او انجیل) باندے اول کفر کونکی مهٔ کیږئ ځکه چه د قرآن کریم نه منکر شي نو په خپل کتاب به کافر شي ځکه په هغه کتاب کښې الله تعالیٰ د قرآن کریم صفت کړیدے، نو چه قرآن اُونهٔ مني نو خپل کتاب ئے اُونهٔ منلو نو کفر بالقرآن متضمن دے کفر بالتوراة والانجیل لره۔ مګر دا تفسیر دومره راجح نهٔ دے، ځکه ټوله خبره د قرآن کریم شروع ده۔

**فائده وقاعده** : افعل صیغه چه نکره مفرده ته مضاف شي نو بیا د تمییز مفهوم کښې وی او کله چه معرفے ته مضاف شي نو بیا مضاف الیه جمع وی، لکه اِنْ كَانَ لِلرَّحْمٰنِ وَلَدٌ فَاَنَا اَوَّلُ الْعَابِدِيْنَ۔ نو اول کافر لفظ چه استعمال شي نو دا تپوس به نهٔ وی چه بل کافر شته یا نشته۔ او دویم ترکیب کښې به دا معنیٰ وی چه دا سړے د ټولو نه مخکښې دے لکه اول الکافرین کښې به دا معنیٰ کوی چه فلانے د ټولو نه مخکښې کافر دے بخلاف الاول۔

﴿وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِيْ ثَمَنًا قَلِيْلًا ﴾ دا دویمه نهی ده او مطلب ئے دا دے چه دنیا او د دنیا د خواهشاتو په وجه (کوم چه لږ او فاني دی) د قرآن کریم او د نبي ﷺ نه انکار مهٔ کوئ او دنیا په دین باندے مهٔ غوره کوئ ورنه ایمان ته به مو نقصان اُورسي۔ یعنی د دنیا د عارضي نعمتونو په دهوکه کښې رانشئ بلکه د حق تابعداری اُوکړئ۔

پدے آیت کښې ضلال د یهودو دے (یعنی خیله ګمراهان وو) او روستو آیت (وَلَا تَلْبِسُوا

الْحَقَّ) کښې ئې اضلال (د بل گمراه کول) ذکر دی۔
يهودو کښې دا خصوصی مرض وو چه دين ئې د دنيا ذريعه گرځولے وه، او دا مرض پدے امت کښې هم زيات شويدے۔ ابن الاعرابی رحمه الله نه چا تپوس اُوکړو چه سَفَله (خکته خلق، کمينه او پسمانده) څوك دی ؟ وے فرمايل : (اَلَّذِىْ يَخْتَلُ الدُّنْيَا بِالدِّيْنِ، الَّذِيْنَ يَأْكُلُوْنَ الدُّنْيَا بِدِيْنِهِمْ) (دين په دنيا خرابوي او دنيا په دين گټی) بيا ورته اُووئيل شو : (مَنْ سَفَلَةُ السَّفَلَةِ ؟) (د خکتونه خکته (سپك خلق) څوك دی) ؟ وے فرمايل : (اَلَّذِىْ اَذْهَبَ آخِرَتَهٗ بِدُنْيَا غَيْرِهٖ) (القرطبی) (د بل چا د دنياوی فائدو دپاره خپل آخرت تباه کوی) لکه غلط څوكيداران، دربانچيان، مزدوران چه د مالکانو دپاره دروغ وائی۔ او ښځه د خاوند او خاوند د ښځے دپاره۔
(ثَمَنًا قَلِيْلًا) ددے لفظی معنیٰ ده، (لږے پيسے، عوض) ليکن حسن بصریؒ فرمائی : (اَلدُّنْيَا بِحَذَافِيْرِهَا) ټوله دنيا مراد ده۔ ځکه دا ټوله دنيا په نسبت د آخرت کمه ده۔ لکه سورة النساء (۷۷) (قُلْ مَتَاعُ الدُّنْيَا قَلِيْلٌ) او آل عمران (۱۹۷) (مَتَاعٌ قَلِيْلٌ ثُمَّ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ) کښې دی۔ او دا مطلب نۀ دے چه لږے پيسے مۀ اخلئ او که ډيرے اخلئ نو خير دے۔ لکه بعض اهل بدع وائی د ځلوېښتو روپو نه زياتے اخستے شے، نۀ کمے ځکه پدے کښې د قرآن اکرام دے۔ نو دا د قرآن تحريف دے۔
پدے مقام کښې اول يو څو تفسيرونه بيا شرعی مسئله بيانيږی:
(۱) اشتراء بالآيات نه مراد په آيتونو کښې تحريف لفظی او معنوی کول دی۔ معنیٰ دا ده چه د الله تعالیٰ آيتونه تاسو بدلوئ او د هغے په مقابله کښې پيسے اخلئ لکه دوی به تحريف کولو نو معنیٰ ده : (بِتَحْرِيْفِ الْآيَاتِ)۔ د آيتونو په بدلولو سره دنيا د خلقو نه مۀ اخلئ۔ دين هم خراب کړے او بيا پرے حرام مال هم حاصلوے۔ ځکه دوی به احکامو کښې رشوتونه اخستل۔ او ثمن قليل نه مراد مشری د دنيا هم ده چه دوی ورته احکام به بدلول او تحريف به ئې کولو دے دپاره چه دا کشران بل طرفته لاړ نۀ شی او د خپل ځان تابع ئې کړی لکه ډير پيران او مليان دا کار کوی چه کشران د اهل حقو خواته ورتلو نه منع کوی۔ او دے کښې دا هم داخليږی چه قرآنی حکم او قانون بدل کړی او ددے په ځائے بل قانون مينځ ته راوړی، او په هغے باندے دنيا اخلی لکه يهودو په رجم کښې دا کار کړے وو، د مالدارونه به ئې پيسے اخستے۔ او دا ټول مرضونه دے امت کښې په کامله طريقه موجود دی۔

۲- دویمه معنیٰ ده : (بِالْاِیْمَانِ بِآیَاتِیْ) چه په آیتونو د الله تعالیٰ ایمان نهٔ راوړئ او دنیا غوره کوئ، یهودو ولے ایمان نهٔ راوړو؟ وئیل به ئے که مونږ ایمان راوړو نو د دنیا عزت مو خرابیږی، مال ته مو نقصان رسی، او دا ئے په الله تعالیٰ بدګمانی وه. اوس هم ډیر مُلیان حق ته نهٔ راځی، ډیر عوام حق ته نهٔ راځی، ولے ؟ وائی : بیا مو کاروبار خرابیږی، نهٔ ! دا په الله تعالیٰ بدګمانی ده او دا نهٔ ده پکار. ته په کفر او بدعت او باطل پرستیٔ کښ وے الله تعالیٰ تاله رزق درکولو، دنیا ئے درکوله او چه حق ته راشے نو ولے الله به ئے تا ته نه درکوی څه ؟ ستا ایله په الله دا ګمان شو!!.

٤- نو دارنګه ابو العالیهٔ وئیلی دی : (بِتِلَاوَةِ آیَاتِیْ) یعنی د الله تعالیٰ د آیتونو په تلاوت هم پیسے مهٔ اخلئ. (اَیْ لَا تَاْخُذُوْا عَلٰی کِتَابِ اللّٰهِ اَجْرًا) (د الله تعالیٰ په کتاب باندے اجر مهٔ اخلئ.

**فائده** : دلته یو بل شے دے چه د مصحف خرڅول جائز دی، دلیل دا دے چه د ابن عباس رضی الله عنه نه چا تپوس اُوکړو چه کاتبان قرآن اُولیکی بیا ئے خرڅوی دا څنګه دی؟ هغه اُوفرمایل : (اِنَّمَا هُمْ مُصَوِّرُوْنَ، وَاِنَّمَا یَاْکُلُوْنَ مِنْ عَمَلِ اَیْدِیْهِمْ) (دوی خو تصویر د خط جوړوی او د خپل لاس کار وکسب خرڅوی) یعنی قرآن خو کلام الله ته وائی لفظ او معنیٰ دواړه او د هغے اخستل، خرڅول خو امکان نهٔ لری، او کوم شے چه خرڅیږی نو هغه قیمت د کاغذ، او د محنت د کتابت او د طباعت او جلد دے. نو هغه اتفاقاً جائز دی. امام احمدؒ وئیلی دی چه دا هم مکروه دی ځکه بیا به ئے خلق نشی اخستے، نو تلاوت د قرآن کریم به کم شی خو د عام اهل علمو په نیز جائز ده وهو الحق.

## آیا تعلیم د قرآن کریم پدے کښ داخل دے او که نهٔ ؟

نو اول دا خبره یاده کړه چه اول دا آیت د یهودو په باره کښ دے لیکن حکم ئے د یهودو پورے خاص نهٔ دے ځکه عموم د الفاظو لره اعتبار وی او خاص سبب لره اعتبار نهٔ وی لکه دا په شریعت کښ معلومه قاعده ده. او په اصول التفسیر کښ هم ده.

یو مسئله د اجرت اخستو ده په عباداتو باندے.

نو د هغے تفصیل په فتاوی الدین الخالص او الحق الصریح (ج ٤) کښ اُوګوره لنډه خلاصه ئے دا ده چه : (۱) په تلاوة القرآن باندے اجرت اخستل په نزد د عامو علماؤ حرام دی، وجه دا ده چه تلاوت د قرآن کریم او په کورونو کښ ختمونو کولو ته ضرورت نشته،

بلکه صرف برکت غرض وی، نو پدې باندې پیسې او عوض اخستل حرام دي۔
(اَلآخِذُ وَالْمُعْطِیْ كِلَاهُمَا آثِمَانِ لِأَنَّ ذٰلِكَ يُشْبِهُ الإِسْتِئْجَارَ عَلَى الْقِرَاءَةِ وَهُوَ لَايَجُوْزُ) (حاشية رد المحتار ۲/۷۸) (اخستونکې او ورکونکې دواړه ګناهګار دي ځکه دا مشابه دې د مزدوري اخستلو په قراءت باندې او دا کار حرام دې) بلکه دا چه کورونو کښې د برکت دپاره ختمونه کول په دین کښې نشته، او نۀ په تراویحو کښې ختم کولو باندې پیسو اخستو باره کښې څه دلیل شته، امام احمدؒ ته چا اُووئیل : دلته یو سړې دې په تراویحو باندې پیسې اخلي۔ هغه اُوفرمایل : (اُفٍّ، اَيُصَلِّىْ خَلْفَهُ) (افسوس ! آیا دده پسې به هم څوك مونځ کوي) یعني دا خو د مانځه لائق انسان نۀ دې) عمر فاروق ﷛ نه نقل دي : (لَاتَأْخُذُوْا عَلٰى كِتَابِ اللّٰهِ أَجْرًا فَتَسْبِقُكُمُ الزُّنَاةُ إِلَى الْجَنَّةِ) (کنز العمال) (د الله تعالیٰ په کتاب باندې مزدوري مۀ اخلئ ورنه زناکار به ستاسو نه جنت ته مخکښې لاړ شي)۔
د مصعب بن سعد (تابعي) رحمه الله باره کښې راځي چه ده یو ځائې کښې تراویح اُوکړې چا جامې او یو شے بل شے ورکړو نو هغه بیرته واپس کړې چه ما تراویح دے دپاره نۀ دي کړي۔
**دلیل** : حدیث کښې دي : (اِقْرَأُوا الْقُرْآنَ وَاعْمَلُوْا بِهٖ وَلَاتَجْفُوْا عَنْهُ وَلَاتَغْلُوْا فِيْهِ وَلَاتَأْكُلُوْا بِهٖ وَلَا تَسْتَكْثِرُوْا بِهٖ) (صحیح الجامع : ۱۱۶۸ وسنده صحیح)
(یعني په قرآن کریم باندې خوراکونه مۀ کوئ او پدې باندې مالونه مۀ ډیروئ)۔
(۲)- په دم باندې پیسې اخستل جائز دي او واقعه د ابوسعید خدري ﷛ پرې دلیل دې چه بخاري وغیره کښې راغلې ده، دۀ په یو سړي دم اچولے وو او دیرش ګډے ئې پرې اخستے وے او نبي ﷺ ورته اُوفرمایل : (اَحَقُّ مَا اَخَذْتُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا كِتَابُ اللّٰهِ) (ډیر لائق هغه شے چه تاسو په هغې مزدوري اخلئ هغه کتاب د الله دې) لیکن دے نه به کاروبار نۀ جوړوي۔
(۳) - په تعلیم د دین باندې اجرت اخستو کښې اختلاف دې۔ ۱ - امام زهريؒ، عطاء بن ابی رباحؒ، ابن جریجؒ، امام ابوحنیفةؒ وئیلي دي چه په تعلیم او تدریس د قرآن او حدیث او دیني کتابونو باندې اجرت اخستل جائز نۀ دي ځکه دا عبادت دې، او مبنیٰ د عبادت په اخلاص ده او اجرت اخستل د اخلاص خلاف دي۔
**۲- دویم دلیل** : حدیث عبادہ بن صامت ﷛ کښې راغلي دي (ما یو سړي ته (د اصحاب صفه ؤ نه د قرآن تعلیم ورکړو او هغه په هدیه کښې لینده راکړه، ما اُووئیل : پدې به زۀ جهادونه کوم دا خو مال نۀ دې نو ما واخسته بیا مے نبي ﷺ ته اُووئیل : نو هغه

اُوفرمایل : که ته غواړې چه د اُور طوق درواچولے شی نو دا لینده قبوله کړه۔ (مشکاة ۱/ سنن ابن ماجه : ۲۱۵۷) والصحیحة (۲۵۶) ومسند احمد)

۳- **دلیل** : ابی بن کعب ﷺ فرمائی : زۀ به یو سړی ته ورتلم د قرآن تعلیم به ورته ورکولو نو هغه به ما له ښۀ خوراك راکولو، ما رسول الله ﷺ ته ددے خبرے تذکره اُوکړه نو هغه اُوفرمایل : که د کور عام خوراك درکوی نو خیر دے او که تا له امتیازی خوراك درکوی نو بیا ئے مۀ خوره (مسند البزار - نیل الاوطار)

۲- اکثر اهل علم وائی : په تعلیم د قرآن او په تدریس د علومو باندے اجرت اخستل بالکل جائز دی خو په شرطونو سره۔

**دلائل** : ۱- دلیل عقلی: د قرآن کریم تعلیم او تدریس د علومو ته د اُمت ضرورت دے که علماء دا اُونکړی او کاروبار او تجارت شروع کړی، نو بیا به اُمت ضائع شی۔

۲- (أَحَقُّ مَا أَخَذْتُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا كِتَابُ اللّٰهِ) (صحیح بخاری) (ډیر حقدار هغه څه چه تاسو پرے مزدوری اخستے ده هغه د الله تعالیٰ کتاب دے) یعنی د الله تعالیٰ کتاب لائق دے چه پدے اجرت واخستے شی۔ دا حدیث په نسبت د حدیث د عباده او ابی بن کعب ﷺ ډیر اصح دے۔ ۳- دریم حدیث د بخاری وغیره کښ راغلی چه یو سړی ته ئے فرمایلی وو (فَقَدْ زَوَّجْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ) یعنی هغه له ئے زنانه د قرآن په مقابله کښ ورکړے وه او د قرآن تعلیم ئے ورله مهر مقرر کړو۔ او مهر خو مال وی لهذا قرآن په مقابله د مال کښ استعمالولے شی۔

٤- ابوبکر صدیق ﷺ چه خلیفه شو نو بازار ته روان شو، عبد الرحمن بن عوف ﷺ او عمر فاروق ﷺ ورته اُووئیل : که ته کاروبار کوے نو د مسلمانانو د کارونو تربیت به څوك کوی۔ نو تنخواه ئے ورله مقرر کړه۔ نو هغه اُوفرمایل : (يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّيْ شُغِلْتُ بِأَمْرِ الْمُسْلِمِيْنَ فَسَيَأْكُلُ آلُ أَبِيْ بَكْرٍ مِنْ هٰذَا الْمَالِ وَيَحْتَرِفُ لِلْمُسْلِمِيْنَ فِيْهِ)

(اے خلقو زه د مسلمانانو په کارونو مشغول شوم نو د ابوبکر کور والا به ددے مال نه خوراك کوی او (ددے په بدله کښ به) هغه د مسلمانانو دپاره کار کوی) نو انی شغلت بامر المسلمین کښ هر شغل داخلیږی خصوصاً تعلیم۔

۵- عمر فاروق ﷺ خپلو عاملانو ته لیکلی وو چه په تعلیم د قرآن باندے خلقو ته عطیے ورکوئ۔ او بل روایت کښ دی چه هغه به مُعلمینو ته وظیفه ورکوله۔ (نصب الرایه

(۴/۱۳۷) کتاب الاموال لابی عبید (۲۶۱)
او کوم احادیث چه په باره د نهی د اجرت اخستو کښې راغلی دی نو هغه په باره د تلاوت کښې دی او په تلاوت باندے پیسے اخستل خو اتفاقی ناجائز دی۔
او حدیث د عباده او ابی بن کعبؓ دواړه ضعیف دی ځکه په حدیث د ابی بن کعب ﷺ کښې ابوعبیده او عبد الرحمن بن سلیم دواړه ضعیف راویان دی۔ او په حدیث عباده بن صامت ﷺ کښې مغیره بن زیاد راوی ضعیف او منکر الحدیث دے (لکه امام احمدؒ وئیلی دی) نو دا په تعلیم باندے د اجرت په حراموالی دلیل نهٔ ګرځی۔ او که صحیح شی نو بیا به مطلب دا وی چه اولًا د الله تعالیٰ رضا غرض وی بیا پکښې پیسے راوستل صحیح کار نهٔ دے او که ابتداءً د ضرورت په وجه څه تنخواه مقرره شی بیا جواز لری۔
(۴) په اذان باندے اجرت اخستو نه صحیح حدیث کښې منع راغلے ده۔ (وَاتَّخِذْ مُؤَذِّنًا لَا يَأْخُذُ عَلَى أَذَانِهِ أَجْرًا) (ابو داود، نسائی، ترمذی) او عبد الله بن عمر ﷺ د یو سړی سلام نهٔ وو قبول کړے پدے وجه چه هغه په اذان اجرت اخستو۔
(۵) په امامت باندے پیسے اخستل هم جائز نهٔ دی ځکه د جواز دلیل نشته۔ او بله دا چه د امامت سره کاروبار کیدے شی، البته که د امامت سره درس او تدریس کوی نو بیا به جائز وی او دا په اصل کښې په درس او تدریس اجرت دے، او که چا خود بخود ورکولو او شرط ئے نهٔ وو لګولے نو جائز ده۔ نبی کریم ﷺ عمر فاروق ته اُوفرمایل :
(وَمَا آتَاكَ مِنْ هٰذَا الْمَالِ وَأَنْتَ غَيْرُ مُشْرِفٍ وَلَا سَائِلٍ فَخُذْهُ وَتَمَوَّلْهُ) (بخاری)
(تا ته چه مال راشی او تهٔ سوال نکوے او هغے ته ځان نیغ نیغے کوے نهٔ نو هغه واخله او خپل مال کښې ئے شامل کړه)
**خلاصه** دا چه په تلاوت، امامت، او اذان باندے پیسے اخستو باره کښې هیڅ دلیل د جواز نشته او دا آیت ورته شامل دے او په تعلیم د قرآن وغیره باندے پیسے اخستل جائز دی، صحیح مرفوع احادیث پکښې موجود دی۔
وَإِيَّايَ فَاتَّقُونِ: د تقویٰ معنیٰ مخکښې ذکر شوه چه زما د احکامو تابعداری کوئ۔

وَلَا تَلْبِسُوا الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُوا الْحَقَّ وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿۴۲﴾

او مهٔ ګډوډ کوئ حق د باطل سره او مهٔ پټوئ حق او حال دا چه تاسو پوهیږئ۔

**تفسیر:** مخکښې اشتراء الآیات کښې د دوی ضلال (خپله ګمراهي) ذکر شوه، اُوس ددوی اِضلال ذکر کوی یعنی بل څوك ګمراه کول۔ لیکن بل ګمراه کول په دوه قسمه دی یو نیمګړی ملایان او طالبان او دویم خالص عوام نو اول په شبهاتو باطله ؤ او په تلبیس سره ګمراه کولے شی، او د دویم قسم خلقو د ګمراه کولو طریقه د حق پټول دی۔نو پدے آیت کښې الله تعالیٰ بنی اسرائیل د حق او باطل خلط ملط کولو او د رسول الله ﷺ په باره کښې د حق پټولو نه منع کوی ځکه پکار خو دا وه چه اهل علم (علم ته منسوب) او کتاب والا د باطل تردید اُوکړی او حق رابښکاره کړی، خلقو ته اُووائی چه محمد ﷺ د الله تعالیٰ رشتینے رسول دے، دے دپاره چه هدایت غوختونکے هدایت حاصل کړی او ګمراه خلق حق طرف ته رجوع اُوکړی او په اجتماعیت کښې د حق د مخالفینو خلاف حجت قائم شی ځکه چه څوك داسے کار کوی نو هغه د قومونو رهنما او د رسولانو نائبان وی او څوك چه حق د باطل سره ګډوډ کوی او د کتمانِ حق نه کار اخلی، هغه جهنم طرف ته دعوت ورکونکی دی ځکه عوام خلق په دینی امورو کښې د علماؤ تابعداری کوی پدے وجه اے د یعقوب اولاد! تاسو په دوه لارو کښې یوه لاره ځان له اختیار کړئ۔

(**وَلَا تَلْبِسُوا الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ**) ۱- باء سببیه ده ۲- یا د مصاحبة ده او باطل نه مراد شبهات باطله او تاویلات فاسده دی۔ (۱) یوه معنیٰ دا ده چه مه ګډوډ کوئ حق په خلقو په سبب د باطل چه هغه شبهات باطله دی، د خلقو زړونو کښې شبهے مه اچوئ چه دا پیغمبر حق نهٔ دے، او دا مونږ نه علاوه بل چا ته رالیږلے شویدے۔دا قرآن مهٔ منئ، دے کښې دا تعارض دے۔ دا نورے مسئلے دی، پلار نیکه لاره ولے پریدئ، نو دا شبهے مه اچوئ۔ او تغییر او تبدیل هم په باطل کښې داخل دے۔ لکه نن صبا باطل پرست مُلیان هم داسے تلبیس کوی چه یو امی څه ناڅه په حق پو هه شی، یوه مسئله کښې یو حدیث یو بدعتی ملا ته یوسی چه دے باره کښې دا حدیث راغلے دے نو هغه ورته پکښې تلبیس اُوکړی او خبره اخوا دیخوا کړی چه ددے دا مطلب نهٔ دے۔ بلکه د ځان نه ورته یو مطلب بیان کړی۔ دا منسوخ شویدے، او دا د یهودو په باره کښې وو۔ او ګله وائی : دا د امام شافعیؒ دلیل دے۔

۲- دویمه معنیٰ : مه یو ځائے کوئ حق د باطل سره چه بعضے خبرے ښے بیانوئ او بعضے غلطے۔ بلکه ټولے خبرے حقے بیانوئ او دا زمونږ د زمانے د بدعتیانو طریقه هم ده

چه بنے مسئلے به بیانوی لیکن ایسته به په آخر کښې د شرك یوه مسئله هم بیانه کړي چه د فلانی د قبر نه داسے فیوضات حاصلیږی نو توله خواری به ضائع کړي۔ او دا دواړه مرضونه زمونږ په دے امت کښې څومره په کامله طریقه موجود دی، ملا به خلقو ته په احادیثو کښې غلط تاویلات کوی، هغوی که په صحیح طریقه روان وی نو شکوك او شبهات ورته اچوی چه دا خو منسوخ دی او دا نا غوره طریقه ده۔

ددے وجه نه کوم خلق چه حق هم وائی او بیا ورسره څه ناڅه باطل هم وائی نو هغوی ته کیناستل او د هغوی خبره اوریدل صحیح نهٔ دی، ځکه چه عام مبتدعین خو ټولے خبرے غلطے نهٔ کوی بلکه قرآن او حدیث وائی لیکن یوه خبره نیمه پکښې د شرك او د بدعت اوکړی لهذا دوی ته کیناستل صحیح او جائز نهٔ دی۔

وَتَكْتُمُوا الْحَقَّ په اصل کښې (لَا تَكْتُمُوا الْحَقَّ) دے، په (تَلْبِسُوْا) باندے عطف دے د (لَا) د لاندے دے۔ او دا واو الصرف دے۔ یعنی حق مهٔ پټوئ۔

دلته دوه تفسیرونه دی (۱) که واو عطف دپاره شی نو بیا دلته دوه نهی دی، یو لَا تَلْبِسُوا دویم لَا تَكْتُمُوا او بیله بیله جمله ده۔ (۲) او که واو الصرف شی نو بیا به یوه جمله شی یعنی دواړه کاره مه جمع کوئ چه تلبیس او کتمان دے۔ حافظ ابن قیمؒ فرمائی: (وَهٰذَا الْقَوْلُ اَعْرَبُ وَاَمْيَزُ مِنَ الْاَوَّلِ) (بدائع التفسیر ۱/۳۱۳)

(دا قول د عربیت د قواعدو سره ډیر برابر او واضح دے او د اول نه ډیر ممتاز دے)

بیا حق عام دے که وجوبی عملونه وی او که استحبابی وی او سنت وی او اصولی مسائل وی او که فروعی، ټول به امت ته بیانولے شی، داسے به نشی وئیلے چه د توحید مسئله ضروری ده دا مخکښې بیانول پکار دی او سنت طریقے به روستو په قلاره بیانوو، دا خبره غلطه ده بلکه ټول بیانول ضروری دی، دین پوره شویدے، او بل نبی نهٔ راځی اګرکه د مقام او وخت مناسب خبره مخکښې کول ضروری دی، خو بیان به د ټول دین کولے شی۔

ډیر خلق پدے بهانه باندے مداهنت کوی او دیته حکمة وائی، حال دا چه حکمة حق بیانولو ته وائی چه په ښائسته ترتیب او الاهم فالاهم مقدم کولو او اخلاقو سره وی۔

(وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ) (۱) (وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ قَبَاحَةَ الْكِتْمَانِ)

(یعنی تاسو ته د حق د پټولو قباحت او ګناه معلومه ده) او بیا هم حق پټوئ۔

(۲) (وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ الْحَقَّ) (یعنی تاسو ته حق معلوم دے بیا ئے هم پټوئ) نو دا ډیره لویه

گناه ده څکه که يو انسان په صحيح طريقې سره په حق نۀ پوهيږي او هغه پټ کړي نو گناهگار نۀ دے۔ احاديثو کښې ډيرے مسئلے دي او مونږ ته نۀ دي معلومے۔

**فائده** : بيا کتمان حق ديته نۀ وائي چه هره مسئله دے ليدله نو بس هغه به بيانوے بلکه کتمان حق دا دے چه يوه ضروري مسئله د ايمان او د توحيد او د عمل او د رسول الله ﷺ د تابعدارئ سره تعلق لري، او انسان ئے پټه کړي نۀ بلکه د هغے بيانول به ضروري وي او ډيرے مسئلے داسے شته چه يو وخت کښې ورته ضرورت نۀ وي، يا باريکے وي، د عوامو ذهن ورته نۀ ورسيږي او د هغے نه بغير هم د هغه ايمان جوړ دے۔ نو که هغه بيان نکړے شي نو څه حرج به پکښې نۀ وي، اگرکه اعلیٰ درجه نۀ ده۔ لکه علي ﷛ نه نقل دي : چه ته به کله يوه خبره بيانوے نو د بعض خلقو دپاره به فتنه اُوگرځي۔ نو د خلقو د عقلونو مطابق کلام به کولے شي۔

**فائده** : خلق کتمان حق ولے کوي ؟ ددے يو څو وجے دي : (۱) کله کتمان حق کيږي د دنيا پرستئ د وجه نه، وائي که حق بيان کړم نو دا تنخواه او امامت رانه زائله کيږي۔
(۲) کله کتمان حق کيږي د ضد او عناد او حسد د وجه نه، که حق بيان کړم نو د مخالف خبره راباندے اُوچتيږي۔ (۳) کله د يرے د وجه نه وي، چه کلي کښې راته شر جوړيږي۔

| |
|---|
| وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَارْكَعُوْا مَعَ الرّٰكِعِيْنَ ﴿۴۳﴾ |
| او پابندي د مانځه کوئ او ورکوئ زکوٰة او رکوع کوئ سره د رکوع کونکو نه۔ |

**تفسير** : مخکښې امرونه د ايمان د حفاظت طريقے وے، نو اُوس د ايمان د کامل کيدو او د هغے د مضبوطيدو اعمال ذکر کوي، اول د مانځه پابندي او دا بدني عبادت دے او بل زکوٰة ورکول دي او دا دليل دے چه د بني اسرائيلو په دين کښې هم مونځ او زکوٰة فرض وو، ليکن دوي کښې ددے شي کموالے راغلے وو۔ څکه ورته امرونه کوي۔ او هرکله چه دوي ايمان راوړي نو اُوس به زمونږ د نبي ﷺ په طريقه مونځ او زکوٰة ورکوي۔
بيا په هغوي باندے څلور مونځونه فرض وو او په مونږ باندے پنځه مونځونه فرض دي، او دا امر لکه څنگه چه هغوي ته دے نو مونږ ته هم دے۔
وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ : زکوٰة په ډيرو اديانو کښې الله تعالیٰ لازم کړيدے، په قرآن کريم کښې مونځ

اوزکوٰة دواړه په یو ځائے ذکر کیږی۔ وجه دا ده چه مال او بدن دواړه الله تعالیٰ د مؤمن نه اخستلی دی (إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَىٰ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ) (التوبة: ۱۱۱) (جنت انسان ته هله حاصلیږی چه مال او بدن اُولګوی)۔ دلته امر په زکوٰة باندے مطلق راغلے دے او تفصیلات ئے بیا احادیثو کښې رسول الله ﷺ کړیدی۔

زکوٰة په لغت کښې طهارت او نمو (ترقی) ته وائی۔ نو د زکوٰة په وجه مال پاکیږی او نمو اوزیادت پکښې پیدا کیږی۔ زکوٰة هغه مال ته وائی چه د نصاب نه بعد مسکینانو ته ورکولے شی۔ بیا په هر دوه سوو روپو کښې پنځه روپۍ دی، او په زرو کښې پنځه ویشت روپۍ دی۔ یهودو کښې دا دواړه مرضونه وو چه د مانځه پابند هم نهٔ وو او د بل چا نه به ئے مالونه راجمع کول او خپله به ئے نهٔ لګول۔

یهود د زکاة نه انکار نهٔ وو کړے لیکن دوه غلط فهمیانے هغوی کښې راغلی وے (۱) د زکاة نهٔ اداء کول۔ (۲) دویم د زکاة مصرف فقراء او مساکین وو نو دوی د هغے مصرف احبار او کاهنان جوړ کړل او مسکینان ئے په ځائے پریخودل۔ لکه د تورات په کتاب الاحبار کښې د کاهنانو حقوق، فرائض، نذرونه او هغوی دپاره قربانی ذکر دی لیکن د مسکینانو ذکر په کښې بالکل نشته۔

زکوٰة چه څوک نهٔ ادا کوی نو خلیفه د مسلمانانو به د هغه سره قتال کوی، لکه ابوبکر صدیق رضی الله عنه مانعینو د زکوٰة سره قتال کړے وو۔

## په قرآن کریم کښې د زکوٰة فوائد

(۱) دا د نیکانو د اعمالو نه دے (سورة البقره: ۱۷۷) (۲) دا سبب د اجر دے د الله تعالیٰ په نزد (سورة البقره: ۲۷۷) (۳) دا سبب د حصول د جناتو او تکفیر د سیئاتو دے (مائده: ۱۲)

(٤) دا صفت د هغه چا دے چه حقدار د دوستانے کولو وی (مائده: ٥٥)

(٥) دا سبب دے د حصول د رحمتِ خاصه (اعراف: ۱٥٦)

(٦) دا سبب دے د حفاظت او عصمت د وینے او د مال (سورة التوبة: ٥/۱۱)

(۷) دا سبب د فلاح او کامیابۍ دے (المؤمنون: ٤)

(۸) دا سبب د زیاتوالی دے۔ (روم: ۳۹) (۹) دا د صفاتو د محسنین نه دے (سورة لقمان: ٤)

(۱۰) ددے پریخودل د صفاتو د مشرکانو نه دی (سورة حم السجده: ۷) انظر احسن الکلام۔

﴿ وَارْكَعُوا مَعَ الرَّاكِعِينَ ﴾ :ددے يو څو معانى دى (۱) يعنى ځان كښې د خشوع والا صفت پيدا كړئ. نو ركوع په معنىٰ د خشوع سره. ځكه چه دوى كښې تكبر زيات وو، د الله تعالىٰ د حكم نه به ئے سرغړونه كوله. ديته معية فى الوصف وائى يعنى د خشوع والو په شان صفت ځان كښې راولئ. ځكه خشوع چه چا كښې راغله او تكبر ترے ختم شو نو هغه كښې هر خير راځى. (۲) دويمه معنىٰ د ركوع نه مراد انقياد دے. (اَىْ اِنْقَادُوْا مَعَ الْمُنْقَادِيْنَ) (تابعدار او منقاد شئ د هغه بندګانو سره چه منقاد دى) د الله تعالىٰ د حكم تابعدار دى.دا ئے عامے معنے دى. خصوصى معنے دا دى:

(۳) ركوع نه مراد مونځ دے. او پدے آيت كښې الله تعالىٰ امر بالجماعة كړيدے. (يعنى صَلُّوْا مَعَ الْمُصَلِّيْنَ) (يعنى د نورو مونځ كونكو سره په شريكه د جمعے مونځونه كوئ) او د راكعين نه مراد دا اُمت دے يعنى ايمان راوړئ او راشئ ددے امت سره شريك مونځ كوئ. بيا دلته تفسير قرطبيؒ د جماعت احكام هم ذكر كړيدى.

جماعت فرض دے، نهٔ به ئے پريدى مګر د سخت ضرورت د وجه نه لكه باران او سخت مرض، يا يو انسان غلط مونځ كوى. قراء ت ئے خطاء وى يا ركوع او سجده ورپسے نهٔ شى رسولے، د جماعت نه بغير هم مونځ كيږى ليكن انسان به د فرض د پريخودو مطابق ګناهګار وى. لكه ددے تفصيل په فتاوى الدين الخالص (٤) او الحق الصريح شرح مشكاة المصابيح (٥) كښې اُوګورئ.

(٤) – ظاهر معنىٰ دا ده چه دلته حكم دے په ركوع كولو باندے دوى ته او پدے كښې اشاره ده چه ركوع په دوى فرض وه ليكن دوى قصداً پريخوستے وه ځكه په تورات كښې يهودو ته ګردن كش" وئيلے كيږى. او د يهودو علماؤ وئيلى وو چه په مونږ صرف كال كښې يوه سجده فرض ده او هغے كښې هم دا اجازت دے چه كه په ديوال دِے اُوكړه يا په بل شى باندے، په ولاړه ولاړه ئے اُوكړه بس ته غټ عابد شوے. نو دوى د الله تعالىٰ عبادت نه ځان دومره جدا كړے وو او لاپے او د ځان صفتونه به ئے دومره كول چه حد ئے نشته. (تدبر قرآن).

نو معنىٰ دا ده: ركوع اُوكړئ د ركوع كونكو سره.يعنى نور خلق چه څنګه ركوع كوى نو دغه شان ركوع اُوكړئ. په ركوع ئے ولے خاص امر اُوكړو؟ ځكه چه د دوى په مانځه كښې ركوع ختمه شوے وه. بلكه قراءت به ئے ختم كړو نو سمدست به سجدے ته تلل، او يا به ئے زر زر كوله حال دا چه دا عظيم ركن د مانځه دے، انسان په كښې الله تعالىٰ ته ډير ذليله كيږى نو الله

تعالیٰ ورته وائی چه دا رکوع پکښې خصوصاً مهٔ پریدئ. او رکوع کښې ملا سمه نهٔ برابرول او زر زر کولو سره مونځ درست نهٔ دے۔ رسول الله ﷺ په مسئ الصلاة صحابی باندے درے کرته مونځ راواپس کړے دے ځکه چه رکوع او قومه او جلسه ئے برابره نهٔ وه. بعض علماء وائی: دا امر ورته ځکه کوی چه د یهودو په مانځه کښې رکوع نهٔ وه. لیکن دا قول ضعیف دے وجه دا ده چه روستو سورة آلعمران (۴۳) آیت کښې مریم علیها السلام ته په رکوع امر شویدے۔

دا تهولے معانی پدے کښې صحیح کیدے شی او تهولے دلته مراد دی، ځکه چه تعارض پکښې نشته، او دا حکمونه لکه څنګه چه بنی اسرائیلو ته وو دغه شان دا حکمونه مونږ ته هم متوجه دی. عمر فاروق ﷺ یو ورځ تقریر کښې أوفرمایل: اے خلقو! دا آیتونه د بنی اسرائیلو په باره کښې خان له نهٔ دی ځکه هغوی خو مخکښې تیر شویدی بلکه الله ئے تاسو ته أوروی (ستاسو دپاره هم دی). کوم خلق چه وائی چه دا آیتونه صرف د بنی اسرائیلو دپاره دی، غلط وائی۔

پدے آیتونو کښې د یهودو قبائح دا ذکر شو: ناشکره دی، وفاء بالعهد پکښې نشته. رهبة او تقویٰ پکښې نشته. ایمان پکښې نشته اول کفر کونکی دی په قرآن، او په رسول. او اشتراء بالآیات کوی، تلبیس د حق او د باطل کوی. کتمان حق کوی، د مانځه پابند نهٔ دی او زکوٰة نهٔ ورکوی، او رکوع او د جمعے پابندی پکښې نشته. نور مرضونه:

| |
|---|
| أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنْسَوْنَ أَنْفُسَكُمْ |
| آیا تاسو امر کوئ خلقوته په نیکئ باندے او هیروئ ځانونه خپل |
| وَأَنْتُمْ تَتْلُونَ الْكِتٰبَ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿۴۴﴾ |
| او (حال دا چه) تاسو لولئ کتاب نو آیا تاسو د عقل نه کار نهٔ اخلئ. |

**تفسیر : عنوان الآیة** : (اَلتَّوْبِيْخُ بِتَرْكِ الْعَمَلِ مَعَ دَعْوَةِ النَّاسِ اِلَى الْعَمَلِ) أوس یو توبیخ ورکوی چه دوی بل ته مسئلے کوی خپله پرے حملے کوی). نو الله تعالیٰ فرمائی په تاسو کښې یو بل بد صفت هم موجود دے او هغه دا چه تاسو خلقو ته خو د ایمان او د نیکئ حکم ورکوئ (مسئلے بیانوئ) او خپله مو ځانونه هیر کړیدی ګویا کښې دا دین ستاسو

دپاره نهٔ دي۔ حالانکه تاسو تورات لولئ چه په هغې کښې خیانت، ترکِ خیر او په قول او عمل کښې په تضاد باندې ډیر سخت وعید راغلې دې، ددې خصلت د زیات بد ښکاره کولو دپاره په آخر کښې فرمائي چه آیا په تاسو کښې دومره هم عقل نشته چه د قول او د عمل د تضاد قباحت او بد والې محسوس کړئ؟! ۔ او په یو حدیث کښې د قیامت د علاماتو نه دا خبره خودلې شویده چه خطیبان او مقررین به ډیر شي او فقهاء او علم والا به کم شي۔

(**أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ**) نیکو خبرو باندې بل ته امرکوئ چه پدې نبي باندې ایمان راوړئ او بیا خپله پرې ایمان نهٔ راوړئ۔ ددې ډیر **مصداقات** دي :

(۱) یو دا چه بعض یهودیانو به په رسول الله ﷺ باندې د ایمان راوړلو حکم کولو لکه دوه حدیثونه بخاري او مشکاة کښې راغلي دي چه یو یهودي به د رسول الله ﷺ خدمت کولو، نو په مرض الوفات کښې رسول الله ﷺ د هغه خواته ورغلو، ورته ئې اُوفرمایل : (قُلْ لَا اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ) (کلمه د توحید اُووایه) هغه خپل پلار ته اُوکتل، نو پلار ئې غلې شو، رسول الله ﷺ بیا دعوت ورکړو، هغه بیا پلار ته اُوکتل نو پلار ئې اُووئیل : (أَطِعْ أَبَا الْقَاسِمِ (ﷺ) (د رسول الله ﷺ تابعداري اُوکړه) نو هغه اُووئیل : (أَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ وَأَنَّكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ) بیا وفات شو۔ (رضي الله عنه) نو رسول الله ﷺ د هغه نه راووتو او دا ئې فرمایل : (اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ أَنْقَذَهٗ مِنَ النَّارِ) (بخاری باب اذا اسلم الصبی : ۱۲۹۰)

(حمد دې هغه ذات لره چه زما په وجه ئې د اُور نه خلاص کړو)۔

۲- تفسیر الدر المنثور کښې د ابن سعد او احمد روایت راوړیدې چه یو پلار د خپل خوی د وفات کیدو په وخت کښې تورات د خپلې تسلئ دپاره کولاؤ کړې وو او هغه ئې لوستلو نو رسول الله ﷺ ورته اُوفرمایل : تا ته قسم درکوم په هغه ذات چه تورات ئې نازل کړیدې، آیا ته پدې تورات کښې زما صفت او زما د راوتو ځائې مونده کوې؟ نو هغه په سر اشاره اُوکړه چه نهٔ، نو خوی ئې اُووئیل : قسم په هغه الله تعالیٰ چه تورات ئې نازل کړیدې ضرور مونږ ستا صفت او مخرج مونده کوو۔ او بیا ئې کلمه د شهادت اُووئیله۔ بیا وفات شو، بیا نبي ﷺ صحابه کرامو ته اُوفرمایل : دا یهودیان ستاسو د وررور د خوا نه پاځوئ، بیا ئې کفن ورکړو او مونځ ئې پرې اُوکړو۔ (الدر المنثور ۵۷۳/۲) (وَهٰذَا إِسْنَادٌ جَيِّدٌ وَلَهٗ شَاهِدٌ فِي الصَّحِيْحِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضي الله عنه - صحیح السیرة النبویة ۷۳/۱) للشیخ الالباني رحمه الله)

۳- دوه وروڼه (ابوحارثه او کرز بن علقمه) په لاره روان وو، یو امي (کرز) او بل (ابوحارثه)

د انجیل عالم وو، نو د ابو حارثه اُوښه اُووخویدله نو کرز د نبی ﷺ په باره کښې ښیرے اُوکړے (تَعِسَ الْاَبْعَدُ) (الله دِے دا وړاندے انسان هلاك کړی) نو ابو حارثه وروړ ورته اُووئیل :(بَلْ اَنْتَ تَعِسْتَ) (تهٔ دِے هلاك شے) نو کرز ورته اُووئیل : دا ولے ؟ ابو حارثه اُووئیل : (وَاللّٰهِ اِنَّهٗ لَلنَّبِیُّ الَّذِیْ کُنَّا نَنْتَظِرُ) (قسم په الله دا هغه نبی دے چه مونږ ئے انتظار کولو) نو کرز ورته اُووئیل : (وَمَا یَمْنَعُكَ وَاَنْتَ تَعْلَمُ هٰذَا) (هرکله چه تا ته دا معلوم دے نو تهٔ ئے بیا تابعداری ولے نهٔ کوے؟) نو ابو حارثه ورته اُووئیل : (مَا صَنَعَ بِنَا هٰؤُلَاءِ الْقَوْمُ، شَرَّفُوْنَا وَاَمَّرُوْنَا وَاَکْرَمُوْنَا الخ) یعنی زهٔ د تابعدارئ نه دے خبرے منع کړے یم چه دے قوم (نصرانیانو) مونږ له شرافت راکړے، مونږه ئے مشران جوړ کړی یو، او ز مونږ عزتونه کوی او دوی خو ددے نبی خلاف دی نو که زهٔ ئے تابعداری اُوکړم نو دا ټول څیزونه کوم چه ته ګورے رانه اخلی، نو کرز دا خبره په زړه کښې ټینګه کړه او ددے نه روستو ئے اسلام راوړو۔

(المعجم الاوسط: ۶۰۰۳۹ ومجمع الزوائد وفی سنده بریدة بن سفیان وهو ضعیف) (وتفسیر کبیر)

۲- او د البر بل مصداق صدقات او خیراتو نه دی لکه د سلمان فارسی ﷺ په اُوږده واقعه کښې راځی چه د هغه پیر به خلقو ته په صدقاتو امرونه کول او دهٔ به جمع کولے۔ نو په هغوی کښې به بعضو وئیل : صدقے ورکوئ، زکاتونه ورکوئ او خپله به ئے نهٔ ورکول، بخیلان وو۔ او دا صفت په ډیرو مُلیانو کښې شته چه ښه مالداروی بل ته د صدقے او خیرات فضائل بیانوی او خپله ئے نهٔ کوی۔ بل ته به ئے وئیل خیانتونه مهٔ کوئ او خپله غټ خائنان وو۔ ۳- او عام نیك اعمال ئے هم مصداق دے۔

**البِرّ** : (۱) (اَلطَّاعَةُ الْوَاسِعَةُ) فراخه نیکئ ته وائی، بیا دا عام دے هر قسم نیکئ ته شامل دے، د ایمان، د مانځه او مالونو ټولو نیکیانو ته شامل دے، خصوصاً ایمان بالرسول ته۔

(۲) دارنګه بر لفظ عربی کښې ایفاء عهد، وفاداری او د اداء الحقوق په معنیٰ رازی۔ د بر په مقابله کښې اثم، عقوق، غدر، ظلم رازی۔

خطیب شربینیؒ لیکی :

(اَلْبِرُّ : هُوَ التَّوَسُّعُ فِی الْخَیْرِ مِنَ الْبَرِّ بِالْفَتْحِ وَهُوَ الْفَضَاءُ الْوَاسِعُ یَتَنَاوَلُ کُلَّ خَیْرٍ وَلِذٰلِكَ قِیْلَ الْبِرُّ ثَلَاثَةٌ، بِرٌّ فِیْ عِبَادَةِ اللّٰهِ وَبِرٌّ مَعَ الْاَقَارِبِ وَبِرٌّ فِیْ مُعَامَلَةِ الْاَجَانِبِ (السراج)

(برّ په خیر کښې فراخی کولو ته وئیلے شی، جوړ دے د بَر نه په زور د باء سره هغه میدان چه فراخه وی، نو بِر هم هرے نیکئ او خیر ته شامل دے ددے وجه نه وئیلے شی چه بر درے

قسمه ده یو د الله تعالیٰ په عبادت کښې نیکی ده او بله نیکی ده د خپلوانو سره او بله د پردو خلقو سره په معامله کښې نیکی کول دی)۔
﴿ وَتَنسَوْنَ أَنفُسَكُمْ﴾ یعنی تاسو ځانونه هیر کړیدی د هغې د عمل کولونه۔ د ځان هیرولو معنیٰ دا ده چه خپله دا سوچ نهٔ کوئ چه آیا مونږ دا عملونه کوو او که نهٔ ؟۔ او په مونږ لازم دی او که نهٔ ؟ دارنګه د عمل پرېخودو معنیٰ ئې ده۔
﴿ وَأَنتُمْ تَتْلُونَ الْكِتَابَ ﴾ یعنی تاسو خو کتاب (تورات) هم لولئ چه هغه تاسو ته حکم کونکے دے په عمل کولو۔ دا قید د زیات قباحت دپاره دے۔ چه یو انسان د الله تعالیٰ کتاب لولی او هغے کښې ورته امر او نهی هم معلوم وی او بیا هم عمل نهٔ کوی دا خو ډیر لوئی مجرم او بے عقله دے۔
(۲) دارنګه تاسو کتاب لولئ او هغه ستاسو دپاره هم دے او د عوامو دپاره هم، نو څنګه بل ته پرے نصیحت کوئ او خپله پرے عمل نهٔ کوئ۔ کتاب په بل چا لګولے او ستا دپاره به نهٔ وی !!۔ وتنسون نه دا وهم پیدا کیدو چه په هیره باندے خو الله تعالیٰ رانیول نکوی، چه انسان نه هیر وی او ګناه اُوکړی یا نیکی پریږدی۔ نو ددے وهم د ازالے دپاره الله تعالیٰ ورسره وانتم تتلون الکتاب اُوښیل چه دا کتاب تاسو لولئ او دا درته خبره هم رایادوی او بیا هم تاسو هیڅ سوچ نهٔ کوئ۔
﴿ أَفَلَا تَعْقِلُونَ﴾ (۱) أَفَـلَا تَعْقِلُونَ سُوْءَ صَنِيعِكُمْ) (آیا تاسو سوچ نهٔ کوئ پدے بد کار خپل) چه انسان بل لره د جهنم نه بچ کوی او خپل ځان اُورته بوځی۔ حدیث کښې دی :
(مَثَلُ الْعَالِمِ الَّذِيْ يُعَلِّمُ النَّاسَ الْخَيْرَ، وَيَنْسَى نَفْسَهُ كَمَثَلِ السِّرَاجِ يُضِيءُ لِلنَّاسِ وَيُحَرِّقُ نَفْسَهُ).
(الضیاء فی المختارة والالبانی فی صحیح الجامع :۱ ٥٨٣) (واقتضاء العلم العمل : ٤٩)
(مثال د هغه عالم چه خلقو ته د خیر تعلیم ورکوی او خپل ځان ئې هیر کړے وی لکه د هغه ډیوے دے چه خلقو ته رڼا کوی او ځان سوزوی)
ددے وجه نه د قرآن او حدیث په زدهٔ کړه کښې به اول د خپل ځان د اصلاح نیت کیږی، او د ځان اصلاح چه اُوشوه نو بیا د الله تعالیٰ قانون دے چه الله رب العالمین ددهٔ د خولے او د عمل نه داسے احوال راوُباسی چه د بل اصلاح پرے په ښه شان کیږی او چه انسان خپله ناجوړه وی، او د بل اصلاح کوی نو دا په پوره طریقے سره نشی کیدے۔
وَغَيْرُ تَقِيٍّ يَأْمُرُ النَّاسَ بِالتُّقَى طَبِيبٌ يُدَاوِي النَّاسَ وَهُوَ مَرِيضٌ

(غير متقي انسان چه خلقو ته په تقویٰ امر کوی ددے مثال داسے دے لکه طبیب چه بل له علاج کوی او خپله مریض وی) نو دا به څه علاج اُوکړی۔

ابو الاسود الدئلي رحمه الله فرمائي :

لَاتَنْهَ عَنْ خُلُقٍ وَتَأْتِيَ مِثْلَهُ عَارٌ عَلَيْكَ إِذَا فَعَلْتَ عَظِيْمُ
تَصِفُ الدَّوَاءَ لِذِي الْأَسْقَامِ وَذِي الضَّنٰى كَيْمَا يَصِحَّ بِهِ وَأَنْتَ سَقِيْمُ
اِبْدَأْ بِنَفْسِكَ فَانْهَهَا عَنْ نَحْيِهَا فَإِذَا انْتَهَتْ عَنْهُ فَأَنْتَ حَكِيْمُ
فَهُنَاكَ يُقْبَلُ مَا تَقُوْلُ وَيُقْتَدٰى بِالْقَوْلِ مِنْكَ وَيَنْفَعُ التَّعْلِيْمُ

(الفوائد ٢) (د بد کار نه خلقو له منع کول او خپله ورته راتلل دواړه مۀ جمع کوه څکه دا کار په تا باندے ډير شرم تماميږي الخ)

بعض کسان دا شکايت کوی چه زما په بيان کښې اثر نۀ وی، يا پوره خبره نشم کولے نو د هغے طريقه دا ده چه د ځان اصلاح اُوکړه نو ستا په زړه کښې به خير خواهي او اخلاص پيدا شي بيا به غير اختياري ستا د خولے نه بے خبرے راوزی چه په خلقو به اثر کوی۔

(٢) (أَفَلَا تَعْقِلُوْنَ اَىْ أَفَلَا عَقْلَ لَكُمْ)

(آيا ستاسو عقل نشته) ځان ته ملايان وايئ او کارونه د بے عقلو کوئ۔

**فائده مهمه** : بيا نيک اعمال په دوه قسمه دی : ١- يو فرضي اعمال لکه په الله تعالیٰ باندے ايمان راوړل، د هغه توحيد منل، د رسول الله ﷺ رسالت منل، الله تعالیٰ باندے توکل، هغه ته انابت، او قرآن کريم کښې چه د ايمان والو کوم صفات ذکر دی لکه مونځ، زکوٰة، روژه، حج، منافقت نه ځان بچ کول دی۔ ٢- دويم مستحب اعمال دی۔ نو په فرائضو چه ډيے امر اُوکړو نو خپله به ئے خامخا کوے۔ او په مستحباتو که ډيے امر اُوکړو نو هغه تا دپاره کول افضل دی، او که عمل ډيے پرے اُونکړو نو د اُوچتے درجے نه به خکته راپريوزے خو گناهگار به نۀ ئے۔او دا وعيد به تا ته نۀ شامليږی۔لکه تا چا ته اُووئيل چه تهجد کوه، ډير ښه عمل دے، او خپله درنه پاتے شو، نو الله تعالیٰ به تا نۀ راګيروی، ليکن تا له ئے کول پکار دی۔ او که چا ته ډيے اُووئيل فرض مونځ کوه، د زنا، فساد، غلا او ګناه نه ځان ساته۔ نو خپله به ترے خامخا ځان ساتے۔ فرض مونځ به کوے، که اُوډيے نکړو، غټ مجرم ئے او پدے آيت کښې داخل ئے۔ ليکن تا باندے دوه فريضے دی : ١- يو دعوت ٢- بل عبادت۔

که عبادت ډيے اُونکړو۔ دعوت ډيے اُوکړے شو۔ يوه فريضه خو به ادا شي۔

ددے آیت دا معنیٰ نهٔ ده چه بل ته دعوت به هله ورکوے چه اول پرے خپله عمل اُوکړے۔ داسے معنیٰ ئے نهٔ ده، بلکه پدے کښ توبیخ او زورنه ده یعنی چه بل ته امر کوے، دعوت کوے، نو پکار ده چه عمل هم ورسره اُوکړے۔ خو که چا عمل اُونکړو نو هغه یوه ګناه اُوکړله او که چا عمل اُونکړو او دعوت ئے هم اُونکړو۔ نو دوه ګناهونه ئے اُوکړل۔

عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائی : ( كَفٰى بِالْمَرْءِ اِثْمًا اَنْ يَّقُوْلَ لَهٗ اَخُوْهُ اِتَّقِ اللّٰهَ ! فَيَقُوْلُ : عَلَيْكَ بِنَفْسِكَ) (دا کافی (کبیره) ګناه ده چه یو انسان ته ورور مسلمان اُووایئ: د الله تعالیٰ نه اُووېرېږه او دا ورته جواب کښ اُووائی : د خپل ځان غم کوه) (القرطبی۳/۱۹)

او په مرفوع حدیث کښ دی : [اِنَّ اَبْغَضَ الْكَلَامِ اِلَى اللّٰهِ اَنْ يَّقُوْلَ الرَّجُلُ لِلرَّجُلِ اِتَّقِ اللّٰهَ فَيَقُوْلُ : عَلَيْكَ بِنَفْسِكَ] (الصحيحة ٦/٩٩رقم: ٢٥٩٨) (یعنی دا خبره الله تعالیٰ ته ډیره ناخوښه ده (ډیره ئے بدی شی) چه یو سړے بل ته اُووائی د الله نه یره اُوکړه او هغه ورته وائی د خپل ځان غم کوه)۔

**تنبيه** : او کوم اثر د ابراهیم نخعیؒ کښ چه رازی چه زه درے آیتونو د بیان نه منع کړے یم، دا آیت او لِمَ تَقُوْلُوْنَ مَا لَا تَفْعَلُوْنَ (سورة الصف) او وَمَا اُرِيْدُ اَنْ اُخَالِفَكُمْ اِلٰى مَا اَنْهٰاكُمْ عَنْهُ (سورة هود) نو هغه محمول دے په هغه وخت چه بل عالم موجود وی او دعوت فرض عین نهٔ وی۔

نو اُوس به څوك وائی چه هلکه دا شیان مونږ پرېږدو۔ نو دا اړے، خپله مشری او مالونه په دهوکو، ډرکو ګټو نو ددے نه به څنګه خلاص شو؟ نو الله تعالیٰ دلته چل ښائی :

| |
|---|
| وَاسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ ؕ |
| او مدد واخلئ (د الله تعالیٰ نه) په صبر کولو او په مونځ کولو سره |
| وَاِنَّهَا لَكَبِيْرَةٌ اِلَّا عَلَى الْخٰشِعِيْنَ ﴿٤٥﴾ |
| او یقیناً دا کار خامخا ډیر ګران دے مګر په عاجزی کونکو (نهٔ دے ګران) |

**تفسير** : مخکښ آیتونو کښ بنی اسرائیلو ته د دنیا او د مال د محبت نه د بچ کیدو نصیحت اُوکړے شو، چه هغه بغیر د صبر او ثبات نه نهٔ حاصلیږی، پدے وجه الله تعالیٰ پدے آیت کښ هغوی ته د صبر او د مانځه تلقین اُوکړو۔ چه تاسو پدے مخکښ احکامو او اوامرو باندے هله عمل کولے شئ چه صبر درپکښ پیدا شی۔ او دے کښ دا هم اشاره ده

چه صبر او مونځ نه کار واخلئ الله تعالیٰ به بیرته خلافت او عزت درکړي.
یهودو په دین باندې صحیح عمل پدې وجه نهٔ کولو چه د دنیا مال او متاع او تنخواه ګانې او اړې به رابانديې بندې شي، په الله تعالیٰ ئې توکل نهٔ وو. او دغه شان خبره بعینه د مکې مشرکانو هم کړې وه ﴿وَقَالُوٓا إِن نَّتَّبِعِ ٱلۡهُدَىٰ مَعَكَ نُتَخَطَّفۡ مِنۡ أَرۡضِنَآ﴾ (القصص:٥٧)
(که مونږ د هدایت تابعداری اُوکړو نو خلق به رابانديې حملې اُوکړي او تباه به شو)
نو دا په الله تعالیٰ بد ګمانی ده ځکه چه الله تعالیٰ تاته په یهودیت او شرك او بدعة کښې رزق او مالونه درکوی نو چه ته د الله تعالیٰ هدایت قبول کړې نو آیا تا به الله تعالیٰ د لوږې نه مړ کړي؟ هیچرې نهٔ!.
نو پدې آیت کښې الله تعالیٰ دوی ته د هدایة د قبلولو او د حق بیانولو طریقه دا اُوخودله چه صبر او مونځ کوئ او د الله تعالیٰ نه دعاګانې غواړئ.
د صبر نه بغیر خو هیڅ د خیر کار نهٔ موجودیږی او د مانځه مقصد خپل زړه الله تعالیٰ ته متوجه او مائل کول دی چه دا د ایمان او د عمل په میدان کښې د ثابت قدمئ دپاره د تولو نه غټ مددګار شے دے. یهودو به په ډیر دین باندې د خلقو د یرې نه عمل نهٔ کولو، یا د محبت د مال او سردارئ د وجه نه نو دلته ورته اُووئیل شو صبر اُوکړئ.
﴿وَٱسۡتَعِينُواْ﴾ استعانة: مدد طلب کولو ته وائی. بیا پدې کښې معانی او تفسیرونه دی (۱) یو دا چه استعانة په معنیٰ د استقامة دے. (اَیْ اِسْتَقِیْمُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ)
(کلك او مضبوط شئ په صبر او مانځه باندې) نو حاجتونه به مو پوره شئ.
(۲) مدد حاصل کړئ د دغه ماموراتو او منهیاتو د عمل کولو دپاره په صبر کولو سره د لذتونو نفسانیو نه (چه مال او جاه او مشری وغیره دی) او په مانځه سره. (خازن والنیسابوری).
(۳) دریم استعانة په خپله معنیٰ دے، مدد طلب کول. او معنیٰ دا ده (اِسْتَعِیْنُوْا بِوَسِیْلَةِ الصَّبْرِ وَالصَّلَاةِ عَلٰی قَضَاءِ حَوَائِجِ الدُّنْیَا وَالْآخِرَةِ) (یعنی مدد طلب کړئ د الله تعالیٰ نه په وسیله د صبر او مانځه سره په پوره کولو د حاجتونو د دنیا او آخرت)
یعنی صبر کوئ او مونځونه کوئ نو الله تعالیٰ به درسره مدد کوی، د عذابونو نه به نجات او خلاصې درکوی او حاجتونه به مو پوره کوی)
(٤) مدد حاصل کړئ په تکالیف او مصائبو کښې په صبر کولو سره په مصائبو باندې.
(٥) مدد حاصل کړئ په حق بنکاره کولو باندې په صبر او صلوة سره.

(٦) (اِسْتَعِيْنُوْا فِيْ كُلِّ اُمُوْرِكُمْ بِالصَّبْرِ بِجَمِيْعِ اَنْوَاعِهِ وَكَذٰلِكَ الصَّلَاةُ)
(التفسير الميسر ۱/۵۹)

(د الله تعالیٰ نه په ټولو کارونو کښې په ټولو اقسامو د صبر سره مدد حاصل کړئ او په مانځه سره)

(۷) ابو العالیة فرمائي : (اِسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَاةِ عَلٰى مَرْضَاةِ اللّٰهِ، وَاعْلَمُوْا اَنَّهَا مِنْ طَاعَةِ اللّٰهِ) (تفسیر ابن ابی حاتم ۱/۱۲۳) (مدد حاصل کړئ په صبر او مانځه سره په رضا د الله تعالیٰ۔ او پوهه شئ چه دا د الله طاعت دے)

لکه نبی ﷺ پدے باندے عمل کریدے (كَانَ اِذَا حَزَبَهٗ اَمْرٌ صَلّٰى) (ابو داود)

(نبی ﷺ ته به چه یو مصیبت راپیښ شو یا به یو کار غمجن کړو نو مانځه ته به زر متوجه شو)۔ او دیته توسل وائی په اعمال صالحه ؤ سره، چه انسان حاجت پوره کول غواړی نو نورو وسیلو ته ضرورت نشته چه باباګانو او قبرونو خوا له ورشی او د هغوی نه مددونه غواړی لکه ډیر مشرکان د تکلیف په وخت کښې د اولیاؤ مزارات او قبرونو ته حاضریږی او د هغوی نه برکت او مدد حاصلوی۔ بلکه شرعی طریقه د وسیلے دا ده چه خپل نیک عمل الله تعالیٰ ته وسیله اُوګرزوه، مونځونه ډیر کړه۔ او صبر ورسره کوه۔بس مسئلے به دِے حل شی۔ (وَمَنْ دَقَّ بَابَ كَرِيْمٍ فُتِحَ)

(څوك چه د عزتمند ذات دروازه ټکوی هغه ضرور کولاویږی)

بعض خلق یو کرت نیم دعاء اُوغواړی او دوه رکعاته مونځ اُوکړی او بیا وائی مونږ سره مدد اُونشو، تلوارګرن وی، حال دا چه صبر او مونځ به کوے کوے تردے چه آخر به الله تعالیٰ دروازه کولاوه کړی او حاجت به پوره شی۔ دارنګه مخلوق ته متوجه کیدل او د الله تعالیٰ دربار پریخودل هم د یقین د خرابئ نښه ده۔

نو پدے آیت کښې د ټولو مصیبتونو علاج که دنیوی وی او که دینی وی، دغه دوه څیزونه خودلے شویدی۔

**تنبیه** : دلته ډیرو مفسرینو د صبر نه مراد صوم اخستے دے یعنی روژے نیسئ (او دا قول د مجاهدؒ دے) لیکن دا نیمګړے مصداق دے ځکه چه حدیث کښې صوم ته نصف الصبر وئیلے شویدے او دلته مقصود امر کول دی په کامل صبر باندے۔ لهذا په عموم باندے پریخودل اولیٰ دی۔ چه صوم ته هم شامل شی۔ بیا په مذکوره تفسیرونو کښې

شپږم تفسیر غوره دے۔

## د لفظ صبر وضاحت

صبر په لغت کښې مرارة او تریخوالی ته وئیلے شی لکه مصبر یو تریخ کنډ دے هغے ته هم صَبِر وائی، صبر هم ډیر تریخ شے دے، هسے په خوله باندے وئیل ئے خو آسان دی، لیکن اختیارول ئے ډیر ګران کار دے۔ لکه یو شاعر دا معنیٰ ادا کړیده :

اَلصَّبْرُ مِثْلُ اسْمِهٖ مُرٌّ مَذَاقَتُهٗ    لٰكِنْ عَوَاقِبُهٗ اَحْلٰی مِنَ الْعَسَلِ

(صبر د خپل نوم په شان دے، تریخ خوند ئے دے لیکن انجام ئے د ګبین نه هم زیات خوږ دے)۔

(۲) دویم صبر په معنیٰ د حبس (بندوالی) سره دے، او په صبر کښې هم د یو شی نه یا په یو شی باندے بندیدل وی۔

په اصطلاح کښې حافظ ابن قیمؒ په مدارج السالکین (۲/۱۵۲) کښې داسے تعریف کوی : (فَالصَّبْرُ : حَبْسُ النَّفْسِ عَنِ الْجَزَعِ وَالتَّسَخُّطِ وَحَبْسُ اللِّسَانِ عَنِ الشَّكْوٰی وَحَبْسُ الْجَوَارِحِ عَنِ التَّشْوِيْشِ) (بندول د نفس دی د فریاد کولو او خفګان نه او بندول د ژبے دی د شکایت کولو د الله تعالیٰ نه او بندول د اندامونو دی د ګډوډ کولو نه)۔

(۲) ذو النون المصریؒ فرمائی : (اَلصَّبْرُ : التَّبَاعُدُ مِنَ الْمُخَالَفَاتِ وَالسُّكُوْنُ عِنْدَ تَجَرُّعِ غُصَصِ الْبَلِيَّةِ وَاِظْهَارُ الْغِنٰی مَعَ حُلُوْلِ الْفَقْرِ بِسَاحَاتِ الْمَعِيْشَةِ) (مدارج ۲/۱۵۲)

(صبر : د الله تعالیٰ د مخالفتونو نه وړاندے کیدل، او د مصیبت د سختیو د ګوټ کولو په وخت په آرام کیدل او د ژوند په پړاوونو کښې د فقر د نازلیدو په وخت کښې د مالدارئ اظهار کول) دی۔

بیا صبر لفظ قرآن کریم کښې (۱۰۳) کرته راغلے دے او اته نوی (۹۸) کرته صبر ممدوح دے او (۵) کرته صبر مذموم ذکر دے۔ لکه روستو راځی۔

دا خبره زده کړه چه (اَلصَّبْرُ سَاقٌ لِكُلِّ عَمَلٍ) (صبر د هر عمل پوندئ ده) هیڅ عمل بغیر د صبر نه ممکن نهٔ دے۔ که هغه دینی عمل وی او که دنیوی۔ ددے وجه نه د صبر اجر هم زیات دے ـ د الله تعالیٰ ارشاد دے :(اِنَّمَا يُوَفَّى الصّٰبِرُوْنَ اَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ) (الزمر: ۱۰)

(صبرناکو ته به بے حسابه اجر ورکړے شی)

ددے وجه نه دا د ایمان نیمه حصه ده۔ ایمان د دوه څیزونو نه جوړ دے۔ صبر او شکر، او په مانځه سره شکر حاصلیږی۔

## د صبر اقسام : اول تقسیم :

**۱- صبر علی المقدور:** تقدیر کښې چه کوم مصیبت لیکلے شوے وی په هغے کښې د الله تعالیٰ نه رضا کیدل او صبر کول. او دا په درے طریقو آسانیږی :

۱- (بِمُلَاحَظَةِ حُسْنِ الْجَزَاءِ) (دا خیال کول چه ددے مصیبت بدله به د الله تعالیٰ سره ډیره مزیداره وی). ۲- (وَانْتِظَارُ رُوْحِ الْفَرَجِ وَلَذَّتِهِ)

(د مصیبت د لرے کیدو او د کشادګۍ د خوند انتظار کول) او امید ساتل چه راحت راروان دے.

۳- (بِتَعْدَادِ نِعَمِ اللّٰهِ السَّالِفَةِ وَالْآتِيَةِ) (د الله تعالیٰ د مخکنو نعمتونو او د آینده نعمتونو شمارل) کله چه بنده د الله تعالیٰ احسانات او د هغه فراخه رحمت او نعمت یاد کړی نو دا مصیبت به داسے اُوګڼړی لکه قطرة من بحر. (د دریاب یو څاڅکے).

**۲- صبر علی المأمور** (یعنی اَلصَّبْرُ عَلَی الطَّاعَاتِ) : په ماموراتو (عباداتو) باندے صبر کول.

او صبر عَلَی الطَّاعَةِ په دے طریقه راځی : چه د طاعت محافظت اُوکړی همیشه دپاره، او په اخلاص سره د هغے رعایت اُوکړی او په علم سره د هغے تحسین (ښائست) اُوکړی.

**۳- صبر عن المحظور.** (اَلصَّبْرُ عَنِ الْمَعَاصِیْ) د حرامو او ګناهونو نه صبر.

٤- اَلصَّبْرُ عَنْ كَثِيْرٍ مِنَ الْمُبَاحَاتِ : (د ډیرو مباح خواهشات او لذتونو د دنیا نه صبر کول) او دلته صبر ټولو اقسامو ته شامل دے. (ابن کثیر، خازن)

**دویم تقسیم : صبر** بیا په دوه قسمه دے (۱) اَلصَّبْرُ الْاِخْتِيَارِیْ ـ په صبر باندے هله اجر ملاویږی چه دا اختیاری وی، او د مصیبت په ابتداء کښې اُوشی. لکه حدیث کښې دی :(اِنَّمَا الصَّبْرُ عِنْدَ الصَّدْمَةِ الْاُوْلٰی). ۲- دویم صبر اِضْطِرَارِی : مجبوراً صبر کول دی چه انسان اول جزع فزع، شکایتونه، فریادونه، رد بد اُوکړی نو بیا مجبوراً صبرناك شی ځکه نور څه پاتے نشی نو پدے باندے اجر نشته. دے عقلو خلقو طریقه دا ده چه مصیبت هم پرے راشی او د ځان نه د صبر ثواب هم ختم کړی.

**دریم تقسیم : صبر په دوه قسمه دے**

(۱) اَلصَّبْرُ الْمَحْمُوْدُ وَالْمَمْدُوْحُ. پدے کښې هغه مخکنی څلور واړه اقسام داخل دی.

(۲) اَلصَّبْرُ الْمَذْمُوْمُ : مذموم صبر دا دے چه (۱) انسان د الله تعالیٰ نه بے غمه شی، په هغه هیڅ پرواه نهٔ لری. دا ډیر ناکاره صبر دے.

اَلصَّبْرُ يُحْمَدُ فِى الْمَوَاطِنِ كُلِّهَا اِلَّا عَلَيْكَ فَاِنَّهُ لَا يُحْمَدُ

(٢) - په اُور باندے صبر كول (فَمَا أَصْبَرَهُمْ عَلَى النَّارِ) (البقره: ١٧٢)

﴿سَوَاءٌ عَلَيْنَا أَجَزِعْنَا أَمْ صَبَرْنَا مَا لَنَا مِنْ مَحِيصٍ﴾ (ابراهيم)

(٣) - په بابا گانو او معبودانو باندے صبر كول، (لَوْلَا أَنْ صَبَرْنَا عَلَيْهَا (فرقان: ٤١)

٤- اِصْبِرُوا عَلَى آلِهَتِكُمْ) (ص: ٦) په باطل باندے صبر كول او كلك پاتے كيدل.

## د صبر نور اقسام:

(١) اَلصَّبْرُ بِاللهِ (٢) اَلصَّبْرُ لِلهِ (٣) اَلصَّبْرُ مَعَ اللهِ.

صبر بالله ديته وائي چه د الله تعالىٰ مدد غوختل او دا گنړل چه صبر وركونكے صرف الله تعالىٰ دے. لكه (وَاصْبِرْ وَمَا صَبْرُكَ اِلَّا بِاللهِ) (النحل: ١٢٧)

(يعنى كه الله تعالىٰ درله صبر درنكړى نو ته صبر نشے كولے).

الصبر لله (د الله دپاره صبر) دا دے چه په بنده باندے په صبر كولو كښ باعث د الله تعالىٰ محبت او د هغه رضا وى او هغه ته ځان نزدے كول وى، د خپل نفس د قوت اظهار او د خلقو صفت راجلب كول ئے اراده نهٔ وى.

الصبر مع الله (د الله تعالىٰ سره صبر كول) دا دى چه بنده د الله تعالىٰ د دينى مراد او د هغه د احكامو سره گرزى راگرزى، د هغے سره ئے ځان بند كړے وى، يعنى خپل نفس ئے د الله تعالىٰ په اوامر او محبوب څيزونو پورے تړلے وى. او دا په ټولو كښ اهم او سخت دے.

**د صبر فوائد**: حديث كښ دى: بنده ته نهٔ ده وركړے شوے يوه عطيه چه هغهٔ غوره او فراخه وى د صبر نه. (احمد ٤٧/٣ والبخارى)

١- د الله تعالىٰ معيت ورسره حاصليږى. (اِنَّ اللهَ مَعَ الصَّابِرِيْنَ)

٢- اجرئے بے اندازے دے. كما مرّ. ٣-جنت او فوز او نجات بغير د صبر نه نهٔ حاصليږى، قرآن كښ د ايمان والو د صفاتو په آخر كښ د صبر صفت راوړى.

﴿بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ﴾ (رعد: ٢٦) (اُولٰئِكَ يُجْزَوْنَ الْغُرْفَةَ بِمَا صَبَرُوْا) (فرقان: ٧٥)

٤- د الله تعالىٰ مدد او نصرت وعده د صابرينو سره ده. (آل عمران/ ١٢٥)

٥- صبر چه چا كښ نهٔ وى، هغه د گناهونه نشى بچ كيدے او نيكى پكښ نشى راتلے. او كمالاتو ته هم نشى رسيدلے. امامت فى الدين په صبر سره دے. او الله تعالىٰ په

بندګانو امتحان کوی چه دوی څومره صبر کوی۔
(وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ اَئِمَّةً يَّهْدُوْنَ بِاَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوْا) (الم السجدة: ۲٤)

**فائده** : په صبر کښې شکوی الی الله بهتر عمل دے، چه انسان الله تعالیٰ ته فریاد کوی، پدے سره بنده الله تعالیٰ ته نزدے کیږی۔ او شکوی من الله (چه مخلوق ته شکایت کوی) مذموم عمل دے۔ یو سړی بل سړی اُولیدو چه مخلوق ته ئې د فاقې او حاجت شکایتونه کول نو هغه ورته اُووئیل : (یَا هٰذَا ! تَشْكُوْ مَنْ يَّرْحَمُكَ اِلٰى مَنْ لَّا يَرْحَمُكَ)

وَاِذَا شَكَوْتَ اِلَى ابْنِ آدَمَ اِنَّمَا تَشْكُو الرَّحِيْمَ اِلَى الَّذِىْ لَايَرْحَمُ

(ته د الله رحیم ذات شکایت هغه چا ته کوے چه رحم دریاند ۔نشی کولے) د صبر زیات تحقیقات په کتاب عدة الصابرین کښې کتلے شی۔

**وَالصَّلَاةِ** : مونځ سره د انسان مشکلات حل کیږی او د الله تعالیٰ سره عجیب اُنس اومحبت حاصلیږی، او کله چه دا حاصل شی، نو بیا بنده وائی چه دغه مشکل ډیر وی، او دا ضرورت ډیر حاصل نشی خو چه دا اُنس رانه لاړ نشی، د بعض سلفو نه نقل دی چه ما باندے کله مصیبت راشی نو زهٔ د الله تعالیٰ نه دعا غوارم غوارم تردے چه زما د الله تعالیٰ سره عجیب تعلق جوړ شی چه بیا غوارم چه دغه حاجت مے پوره نشی ځکه که هغه پوره شی، نو بیا دا تعلق کټ کیږی۔ نو د مؤمن بنده په مونځ باندے ډیره تسلی کیږی او په زړه کښې یو عجیبه غِنیٰ پیدا کیږی۔ خو که دا قسم مونځ جوړ شی هله ؟!۔

﴿وَاِنَّهَا﴾ (۱) (ها) ضمیر دے خصلت د صبر او مانځه ته راجع دے۔
(۲)- یا العبادة ته راجع دے۔ یعنی دا عبادت د صبر او د مانځه۔(۳) بعض وائی : استعانة ته راجع دے۔ تول صحیح دی۔ (٤) لیکن راجح دا ده چه : اِنَّهَا ضمیر صلوٰة (مانځه) ته راجع دے، د یو څو وجوهاتو نه (۱) اوله وجه دا ده چه دا اقرب مذکور دے۔ (۲) دویم دا چه د صبر ګران والے هرچا ته معلوم دے، د هغے بیان ته حاجت نشته۔ (۳) دریم دا چه صبر تریخ دے نو د هغے خوږوالے بیانول پکار دی، نهٔ سختوالے، لکه د ترغیب طریقه همدا ده۔
(٤) څلورم دا چه صبر خو خاشعین او غیر خاشعین دواړه کولے شی اُوګوره کفار څومره صبر کوی د خپل فاسد مقاصدو دپاره، ډاکوان، غله، مفسدان د حصول د خپلو خواهشاتو دپاره څومره صبر کوی او دلته الله تعالیٰ په (اِلَّا عَلَى الْخَاشِعِيْنَ) سره حصر کړیدے نو ظاهر دا ده چه ضمیر صلاة ته راجع دے، بیا دا تفسیر د مجاهدؒ دے او ابن جریرؒ

هم اختیار کریدے۔ (۵) بله وجه دا هم کیدے شی چه په صلاة کښې صبر ضمنی طریقے سره داخل دے، د مونځ گرانوالے د صبر نه په غیر نهٔ حل کیږی او صبر ورسره ضروری دے۔

**فائدتان** : (۱) صبر عجز او کمزورئ ته نهٔ وائی بلکه استقامت او کلك والی ته وئیلے شی لکه په لغتِ عربی کښې په اشعارو کښې راغلی دی او قرآن کریم کښې هم راځی۔

(۲) سکینة، وقار، صَمت (چپوالے) کِتْمَانُ السِّرِّ (راز پټ ساتل) حُسْنُ السَّمْتِ (ښائسته سیرت) صَوم (روژه) عِفَّتُ مِنَ الْفَوَاحِش (د بی حیائی نه ځان پاك ساتل) عَفَافٌ عَنِ السُّؤَال (د سوالونو نه ځان ساتل) حِلْم، (بُردباری) اَلتُّؤَدَه (اطمینان) وغیره په صبر کښې داخل دی بلکه د صبر انواع دی۔

**فائده** : قرآن او حدیث کښې غالباً مزدوجات ذکر کیږی لکه (۱) صبر او صلاة (۲) عبادة او توکل (۳) ایمان او عمل صالح (٤) صبر او شکر (۵) ذکر او شکر (٦) او کله ذکر او فکر (۷) کله توکل او توبه (۸) کله توبه او انابت (۹) کله توبه او استغفار (۱۰) ایمان او یقین (۱۱) کله تقویٰ او ایمان (۱۲) کله زکاة او صلاة (۱۳) کله قرآن او ایمان بالآخرة (۱٤) کله قرآن صلاة جمع کوی (۱۵) کله درے واړه (قرآن، صلاة، آخرت) جمع کوی۔ (۱٦) التوحید، الرسالة (۱۷) کله حج او عمره (۱۸) کله ایمان، هجرت او جهاد یو ځائے ذکر کیږی۔ (۱۹) کله علم او خشیت (۲۰) او کله علم او ایمان (۲۱) کله توبه او عمل صالح (۲۲) او کله ایمان او خوف (۲۳) او کله توکل او حق پرست کیدل۔ (فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ إِنَّكَ عَلَى الْحَقِّ الْمُبِينِ) څکه ددے اعمالو یو بل سره گهرا او مضبوط تعلق وی، چه تدبر سره هغه معلومیږی۔ (۲٤) او صبر خو ډیرو شیانو سره یو ځائے راوړی لکه صبر عمل صالح، صبر او ایمان، صبر او شکر، صبر او تقویٰ وغیره دا فائده ډیره مفصله ده چه د الفوائد په دریم جلد کښې به ان شاء الله تعالیٰ راځی۔

﴿ إِلَّا عَلَى الْخَاشِعِينَ ﴾ یعنی چا کښې الله تعالیٰ ته عاجزی وی نو هغه باندے صبر او مونځ او هر عبادت گران نهٔ وی۔ وجه دا ده چه هغه په دغه عبادت کښې د الله تعالیٰ د رضا او د ثواب اُمید لری او د الله تعالیٰ په وعدو ئے یقین وی، او په پریخودلو کښې ئے یره د عذاب نه او د آخرت نه کوی۔

امام ابن جریرؒ او حافظ ابن کثیرؒ دلته د خاشعین څلور معانی ذکر کړیدی۔ (اَلْخَائِفِينَ) (ابو العالیة) (یره کونکی د الله تعالیٰ د عذاب او غضب نه)۔

(۲) (اَلْمُصَدِّقِيْنَ بِمَا اَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى) (ابن عباس) (هغه کسان چه تصدیق د ما انزل الله کوی).

(۳) (اَلْمُؤْمِنِيْنَ حَقًّا) (مجاهد)۔ (رشتینی او یقینی مؤمنان).

(٤) (اَلْمُتَوَاضِعِيْنَ) (مقاتل بن حیان)۔ (عاجزی کونکی).

او په دا کښې چه دا ټول صفات راشی نو هغه باندے هیڅ عبادت مشکل او درونه نهٔ وی.

دلته **سوال** راځی چه الله تعالیٰ فرمائی : مونځ ډیر ګران عمل دے او حال دا چه مونځ خو منافقان او فاسقان خلق هم کولے شی او مونږ ټول ئے کوو، سره د هغے نه چه ډیر انسانانو کښې خشوع نهٔ وی او لګیا وی مونځ کوی؟ نو دا څنګه ګران دے ؟

**جواب** دا دے چه یو د خلقو په اصطلاح کښې هسے خکته پورته کیدل او ورزش دے، او یو اصلی مونځ دے، د شارع په نیز، هسے خکته پورته کیدل ورزش دے، دا هر څوك کولے شی۔ کافر ئے هم کولے شی، مسلمان، منافق، خاشع او غیر خاشع ټول، بلکه غیر خاشع ډیر ښه مونځ کولے شی، داسے سرکوندئ اروی، مونځونه کوی لګیا وی او یو داسے مونځ دے چه الله تعالیٰ پرے رضا کیږی، په هغے کښې الله تعالیٰ ته کامله توجه وی او د الله تعالیٰ سره پکښې محبت وی او د هغه هیبت او جلال وی او انسان پکښې په وقار وی او په هغه باندے اثر کوی۔ نو داسے مونځ ډیر ګران کار دے مګر په هغه کسانو باندے آسان دے چه هغوی کښې خشوع وی د مخکښې نه۔ بهر د مانځه نه۔ کله چه مخکښې نه تا کښې خشوع ده، چه مانځه ته اُودریدے نو بیا ډیر آسان دے۔ خو چه مخکښې نه درکښې مستی، فساد او ورانے وی نو بیا چه په مانځه اُودریدے نو تاکښې به خشوع څنګه راشی؟۔ دے وجه نه شریعت وئیلی دی چه تاسو مانځه له راځئ نو مخکښې سنت اُوکړئ، نفل اُوکړئ، صف کښې کینئ، ذکر، دعا اُوکړئ نو خشوع به درکښې څه نه څه پیدا شی۔ بیا چه ته کله په مانځه اُودریږے نو مونځ به درته آسان وی او آسانے طریقے سره به ئے کولے شے۔ او تجربه هم داسے ده، یو سړے ډیے د مانځه نه مخکښې منډے ترړے وهلی وی، دکان نه ډیے راپاڅیدلے وی او بیا ډیے راشی زر دے په مانځه اُودریږی نو ده کښې به خشوع څنګه پیدا شی، ټول مونځ به ئے بے خشوع وی، دا چه خپله خشوع برابروی نو سلام به ئے اړولے وی.

**معنی الخشوع** : خشوع په لغة کښې (اَلْاِنْخِفَاضُ وَالذُّلُّ وَالسُّكُوْنُ) (خکته کیدل، ذلیله کیدل او په آرام کیدل) دی لکه (اَنَّكَ تَرَى الْاَرْضَ خَاشِعَةً) (اَىْ ذَلِيْلَةً) (فصلت :۳۹) (وَخَشَعَتِ الْاَصْوَاتُ لِلرَّحْمٰنِ) (طه :۱۰۸) (اَىْ سَكَنَتْ)

او دا لغوی معنیٰ په اصطلاحي معنیٰ کښې مراد وي. په خشوع کښې هم د مخلوق نه ځان خکته کنړل وي او الله تعالیٰ ته ځان ذلیله کول وي او آرام وي)

خشوع په اصطلاح کښې : (۱) (سُكُوْنُ الْقَلْبِ مَعَ سُكُوْنِ الْجَوَارِحِ)ته وئیلے شي.

(یعنی د زړه په آرام کیدل سره د اندامونو نه) یعنی زړه کښې ئے عاجزي او خضوع پیدا شي او اندامونه ئے په آرام شي)

(۲) شیخ الاسلام ابن قیم الجوزیة رحمه الله جامع تعریف کوي : (قِيَامُ الْقَلْبِ بَيْنَ يَدَيِ الرَّبِّ بِالْخُضُوْعِ وَالذُّلِّ وَالْجَمْعِيَّةُ عَلَيْهِ) (د زړه اُودریدل دي د رب مخے ته په عاجزئ او ذلیله کیدو سره او د زړه راجمع کیدل دي په الله تعالیٰ باندے) (وَمِنْ مُوْجَبَاتِهِ الْإِنْقِيَادُ إِلَى الْحَقِّ)

(د خشوع نه انقیاد او تابع کیدل د حق پیدا کیږي) چا کښې چه خشوع وي نو هغه د حق منقاد وي، او چا کښې چه تکبر وي نو هغه کښې ضد او تعصب وي.

او محل د خشوع زړه دے او د خشوع ثمره (میوه) راښکاره کیږي په اندامونو کښې نو چه په زړه کښې خشوع پیدا شي نو اندامونه ئے په آرام وي، کبر په کښې نهٔ وي او خوله او لاسونه او سترګے وغیره اندامونه ئے غلط نهٔ استعمالیږي.

او خشوع اصل کښې د زړه صفت دے. ظاهري اندامونه په هغې باندے صرف دلیل وي. یو سړے به په ظاهره کښې ډیر په عاجزئ ولاړ وي، خو زړه کښې به ئے هیڅ خشوع نهٔ وي، او دا د منافقانو خشوع ده.

## د خشوع اقسام

خشوع دوه قسمه ده. (۱) خشوع النفاق، (۲) او خشوع الایمان . د ایمان والو خشوع دا ده چه (أَنْ يَكُوْنَ فِي الْقَلْبِ وَيَظْهَرُ أَثَرُهُ عَلَى الْجَوَارِحِ) (په زړه کښې وي او ظاهر باندے ئے اثر ښکاره کیږي). او خشوع د نفاق دا ده چه (أَنْ يُرَى الْجَسَدُ خَاشِعًا وَالْقَلْبُ فَاجِرًا)

(ظاهره کښې سړے ډیر عاجزه وي او دننه زړه ئے خراب وي). ددے وجه نه علماء وائي : دومره خشوع راښکاره کوئ چه څومره زړهٔ کښې وي، چه زړه کښې هیڅ هم نهٔ وي او ظاهره کښې خشوع ډیره جوړه کړي. دا ریا کار دے.

سفیان الثوريؒ د ابراهیم نخعيؒ نه نقل کړیدي چه خشوع دا نهٔ ده چه اُوچه ډوډئ خوري او زګے جامے اغوندي او سر ئے ټیټ کړے وي، خشوع دا ده چه مالدار او غریب ورته په حق

کښې مساوي ښکاري او په هر فرض کښې الله تعالیٰ ته عاجزي کوي۔
او مرفوع حدیث کښې دي : (أَوَّلُ مَا يُرْفَعُ مِنْ هٰذِهِ الْأُمَّةِ الْخُشُوْعُ)
(اول ددې امت نه چه پورته کیږي هغه خشوع ده)
عباده بن صامت ﷺ فرمائي : نزدې ده چه ته به یو جامع مسجد ته ننوځې او یو رجل خاشع به اُونه وینې۔
حسن بصريؒ فرمائي : (إِذَا هَانَتْ عَلَيْكَ صَلَاتُكَ فَأَيُّ شَيْءٍ يَعِزُّ عَلَيْكَ) (قوت القلوب ۱۷/۲ والکبائر للذهبي الکبیرة الرابعة) (کله چه تا ته مونځ سپك او معمولي عمل ښکاري نو ددې نه روستو به بل کوم څیز تا ته عزتمند ښکاري)

## د خشوع د پیدا کیدو اسباب

په مانځه کښې د خشوع د پیدا کیدو ډیر اسباب دي :
۱- ضُعْفُ الشَّاغِلِ : (کوم شے چه تا مشغوله کوي نو هغه کمزورې کړه) لکه د بول وبراز نه ځان فارغ کړه۔
۲- قُوَّةُ الْمُقْتَضِیْ : (تقاضا کونکے د خشوع قوي کول چه هغه یره د الله تعالیٰ ده) ۔
۳- تَدَبُّرُ فِي الْآيَاتِ : (کوم آیتونه چه ستا په خوله جاري وي په هغې کښې تدبر کول)۔
٤- اِعْظَامُ الْمَقَامِ : د مقام تعظیم کول) چه زه په مسجد کښې ولاړ یم په مصلیٰ ولاړ یم او الله عظیم ذات ته ولاړ یم۔
۵- اَلْجَهْرُ بِالْقِرَاءَ ةِ : (قراء ت معمولي شان په زوره وئیل) چه خپله ئې اَوري۔
٦- (صَلِّ صَلَاةَ مُوَدِّعٍ) (داسې مونځ کوه ګویا کښې دا ستا آخري مونځ دې او ددې نه روستو وفات کیږې) یعني طُوْلُ الْاَمَلِ (اُوږد امید) کمول۔
۷- دا خیال کول چه زما هغه حصه مونځ قبول دې چه خشوع پکښې وي نو ولې خپل عبادت تباه کوم۔ داسې نور اسباب هم دي۔د هر رکن بیله بیله خشوع ده۔ او خشوع چه کله په مانځه کښې پیدا شوه نو بیا بهر هم پیدا کیږي۔ د خشوع پوره تفصیل په الحق الصریح او الفوائد کښې اُوګوره۔
**فائده** : د خشوع، خضوع او تضرع فرق دا دې چه خشوع په زړه کښې وي او تضرع په ژبه کښې وي (زاريْ ته وئیلے شي) او خضوع په عام بدن کښې وي، او کله خضوع د سترګو

دپاره استعمالیږي۔ دارنګه د زړه لین (نرموالی) ته هم خضوع ونیلے شي۔ کما في السراج امام راغب فرمائي : (اَلْخُشُوْعُ: اَلضَّرَاعَةُ وَاَكْثَرُ مَا يُسْتَعْمَلُ الْخُشُوْعُ فِيْمَا يُوْجَدُ عَلَى الْجَوَارِحِ وَالضَّرَاعَةُ اَكْثَرُ مَا تُسْتَعْمَلُ فِيْمَا يُوْجَدُ فِي الْقَلْبِ وَلِذٰلِكَ قِيْلَ فِيْمَا رُوِيَ : اِذَا ضَرَعَ الْقَلْبُ خَشَعَتِ الْجَوَارِحُ) (مفردات /١٤٨) (خشوع، تضرع ته ونیلے شي، لیکن خشوع اکثر په هغه څه کښې استعمالیږي چه په اندامونو کښې موجودیږي او ضراعة (تضرع) اکثر د زړه سره استعمالیږي لکه یو روایت کښې دي : اِذَا ضَرَعَ الْقَلْبُ خَشَعَتِ الْجَوَارِحُ) یعنی کله چه زړه کښې تضرع پیدا شي نو اندامونو کښې خشوع راځي۔

| |
|---|
| اَلَّذِيْنَ يَظُنُّوْنَ اَنَّهُمْ مُّلٰقُوْا |
| دا هغه کسان دي چه دوی یقین لري چه یقیناً دوی ملاویدونکي دي |
| رَبِّهِمْ وَاَنَّهُمْ اِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ ﴿٤٦﴾ |
| د رب خپل سره او یقیناً دوی خامخا هغهٔ ته ورګرځیدونکي دي۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې اُوس د خشوع طریقه ښائي او باعث د خشوع بیانوي۔

(اَلَّذِيْنَ يَظُنُّوْنَ) یعنی په آخرت او د الله تعالیٰ په ملاقات باندے ئے یقین دے، او کله چه انسان الله تعالیٰ لره ډیر یادوي او په بعث بعد الموت باندے یقین لري نو هغه کښې خشوع زیاته پیدا کیږي۔ ظن دلته په معنیٰ د یقین دے ځکه چه ظن نه روستو کله (اَنْ) یا (اَنَّ) راشي نو معنیٰ ئے د یقین وي۔

(مُلٰقُوْا رَبِّهِمْ) : (۱) کښې یو مقصد دا دے چه په دے کسانو کښې دا خشوع ولے راغلے ده؟ نو ددے وجه دا ده چه د دوی په زړونو کښې د الله تعالیٰ تعظیم دے، همیشه ئے زړه کښې دا وي چه مونږ به الله تعالیٰ له ورځو۔ او په آخرت ئے یقین وي۔ یعنی مُلٰقُوْ رَبِّهِمْ فِي الْاٰخِرَةِ۔

(۲) دویم دا چه ظن په معنیٰ د ګمان شي یعنی دوی داسے مونځ کوي چه دا ګمان کوي چه مونږ د الله تعالیٰ سره ملاقات کوو (اَنْ تَعْبُدَ اللّٰهَ كَاَنَّكَ تَرَاهُ) في الحال په مانځه کښې د الله تعالیٰ سره ملاؤ دي۔ او دا ګمان لري چه د مانځه نه پس به الله تعالیٰ ته ورګرځو۔ یعنی دا آخرنے مونځ ګنړي لکه حدیث کښې دي (صَلِّ صَلَاةَ مُوَدِّعٍ)

(داسے مونځ کوه ګویا کښې دا ستا آخری مونځ دے)۔
نو د خشوع سبب دا شو چه سړے داسے مونځ اُوکړی چه ګویا کښې دا صلاة مودع (د رخصتونکی (وفات کیدونکی) انسان مونځ) دے۔ دلته اوله معنیٰ غوره ده وجه دا ده چه
(۱) یو خو ایمان بالآخرة جامع لکل الخیرات دے نو په صلاة مودع کښې داخل دے۔
(۲) دویمه وجه دا ده چه لقاء قرآن کریم کښې غالباً د آخرت معنیٰ ورکوی لکه روستو معلومیږی۔
د لقاء درے معانی دی (۱) لقاء الله په معنیٰ د موت (مرګ) سره۔ (۲) البعث بعد الموت۔
(۳) کله د الله تعالیٰ رؤیت (لیدلو) ته هم وائی۔ (احزاب : ۴۴)
او مؤمنان دلته د درے وارو یقین لری چه په مونږ به مرګ راځی، بعث بعد الموت راتلونکے دے او بیا به د الله تعالیٰ مخے ته اُودریږو د حساب دپاره۔
﴿رَاجِعُوْنَ﴾ یعنی د الله تعالیٰ مخے ته به اُودریږی او بیا به ورسره حسابونه کوی۔

| |
|---|
| يٰبَنِيْٓ اِسْرَآئِيْلَ اذْكُرُوْا نِعْمَتِيَ الَّتِيْٓ اَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ |
| (اے اولاد د یعقوب علیه السلام رایاد کړئ نعمتونه زما هغه چه ما کړی دی په تاسو |
| وَاَنِّيْ فَضَّلْتُكُمْ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۴۷﴾ |
| او یقیناً ما تاسو غوره کړی وئ په مخلوقاتو (د خپلے زمانے)۔ |

**تفسیر** : (مضمون) بنی اسرائیلو ته خطاباتو کښې اول خطاب ددے آیت پورے بیان شو اُوس ددے ځائے نه تر (۶۲) پورے بل خطاب دے او دریم خطاب (۷۳) پورے او څلورم (۸۲) پورے او پنځم (۸۶) او شپږم (۹۶) پورے بیانیږی۔ دا شپږ خطابات دی یعنی بنی اسرائیلو سره خبرے دی د ﴿قُلْ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ﴾ پورے، په دے اولنی خطاب کښې اته انعامونه بیانوی، چه دا رایاد کړئ او ددے په مقابله کښې تاسو له ایمان راوړل پکار دی۔ او دوه عذابونه۔ او دیته تذکیر بِالنِّعَمِ وَالنِّقَمِ وائی۔ او دا نعمتونه ئے په پخوانو بنی اسرائیلو باندے کړی دی خو دے اُوسنو باندے هم دی، پلار باندے چه نعمت اُوشو نو په ځوی هم اُوشو۔ چه الله تعالیٰ دومره دومره نعمتونه کړی نو ظالمانو ولے ایمان نۀ راوړئ، ولے حق نه منئ،

ولې ضدونه کوئ، د الله تعالیٰ د نعمت په مقابله کښې درله ناشکري پکار ده که شکر ؟،
ګوره الله تعالیٰ که نعمتونو والا دے خو عذابونو والا هم دے. پلار نیکه له ئې درله څنګه
عذابونه درکړي وو، رجز من السماء ئې پرېنه وو نازل کړي څه ؟ او ذلت، او مسکنت او
غضب ئې پرېنه وو نازل کړے؟ د الله رب العزت عذابونو نه هم ویرېږئ. (ترغیب مع
الترهیب دواړه بیانیږي. ذکر د نعمت د ترغیب دپاره دے او ذکر د عذابونو د ترهیب دپاره
دے. ترغیب او ترهیب سره بنده جوړیږي. سړي کښې چه اهلیت وي یا په ترغیب جوړ
شي یا په یره باندې جوړ شي. چه نهٔ په ترغیب او نهٔ په ترهیب جوړیږي دا هسې یو کاڼړے
دے). بیا ذکر د اته انعاماتو دے په سبب د ایمان او تابعدارئ د دوی د موسیٰ ﷺ. او دوه
عذابونه بیانوي د وجه د نا شکرئ د نعمتونو نه او په آخره کښې دوه شپیته آیت کښې : (ان
الذین آمنوا) سره بیا ترغیب ایمان او عمل صالح ته ورکوي چه راشئ تیر په تیر او هیر په
هیر، اُوس ایمان راوړئ، الله رب العزت به تاسو اُوس هم اُوبخښي. (داسے مهربانه الله دے،
زرکاله دے تا کفر کړے وي، اُوس ایمان راوړه الله تعالیٰ ئې درنه قبلوي. اُوس هم اجر درکوي
او جنت ته دے رسوي. دغه مقاصد به بیانیږي.
قرآن کریم کښې الله تعالیٰ د موسی ﷺ واقعات زیات بیانوي ددے وجوه مخکښې بیان
شویدي چه زمونږ نبي مشابه دے موسی ﷺ سره او دا امت د بني اسرائیلو سره.
**(یٰبَنِیٓ اِسۡرَآءِیۡلَ)** دا خطاب مخکښې هم تیر شو، دوباره ئې راوړو څکه چه هرکله
انسان نعمت رایاد کړي نو دا هله فائده ورکوي چه د هغې مطابق عمل اُوکړي نو دلته وائي
هرکله چه تاسو نعمتونه رایاد کړئ نو راشئ اُوس پدے باندې عمل اُوکړئ (زبدة التفسیر)
۲- یا دا چه مخکښې انعامات وو په موجوده بني اسرائیلو او اُوس انعامات ذکر کوي په
مشرانو د هغوي باندې چه ستاسو مشرانو سره هم الله تعالیٰ دغه شان احسانات کړیدي
نو تاسو چرته ناشکري د نعمتونو اُونکړئ، ګنې د هغوي په شان سزاګانې به درکړم.
۳- دارنګه تاکیداً ئې دوباره راواپس کړو او دے دپاره چه دا مقدمه شي د راتلونکو نورو
نعمتونو دپاره.
**﴿وَاَنِّیۡ فَضَّلۡتُکُمۡ عَلَی الۡعٰلَمِیۡنَ﴾** او هرکله چه تاسو له الله تعالیٰ غوره والې درکړے وو نو
تاسو له شکر کول پکار دي څکه چه یو انسان الله تعالیٰ نبي یا عالم د دین اُوګرځوي، په
خلقو ورله غوره والې ورکړي نو هغه له شکر کول پکار وي.

دا فضیلت په څه باندے دوی ته ورکړے شوے وو؟ : (بِالْكِتَابِ وَالنُّبُوَّةِ) (دوی له کتابونه ډیر ورکړے شوی وو او نبوت پکښې زیات راغلے وو) لکه سورة المائده (۲۰) کښې هغه ذکر دی۔
د عام نعمتونو ذکر کولو نه روستو یو خاص نعمت ذکر شو او خطاب اگرچه د رسول الله ﷺ د زمانے یهودو سره دے، لیکن مراد د هغوی پلاران نیکونه دی او د عالمین نه مراد د هغه زمانے خلق دی۔
**سوال** : که یهودیان او نصاریٰ سوال اُوکړی چه ستاسو قرآن کښې دی چه بنی اسرائیل په ټول مخلوق غوره دی؟ نو ۱- **جواب** دا دے چه په العالمین کښې الف عهدی دی، (أَيْ عَالَمِيْ زَمَانِهِمْ) (د خپلے زمانے په عالَم باندے غوره وو) او د رسول الله ﷺ د راتګ نه روستو د هغوی غوره والے ختم شویدے مګر هله که په محمد رسول الله ﷺ باندے ایمان راوړی نو بیا به ورته دوه اجرونه ملاویږی او که ایمان رانهٔ وړی نو (أُولَئِكَ هُمْ شَرُّ الْبَرِيَّةِ)
(په ټول مخلوق کښې دوی شریان او بد عمله خلق دے)
ددے امت نه څکه نشي غوره کیدے چه الله تعالیٰ په سورة آلعمران کښې ددے امت مؤمنانو ته فرمائي : (كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ) (آلعمران ۱۱۰) (تاسو غوره امت یئ)
(وَكَذَلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا) (بقره : ۱٤۲) (تاسو ما غوره امت ګرزولی یئ)
لهذا دا اُمت غوره دے، یهود او نصاریٰ خوك دی چه هغوی به دے اُمت غوره کیږی؟! هغوی خو د انبیاؤ قاتلین او مغضوب علیهم او ضالین دی۔
۲- **جواب** : هغوی ته دا جزئی فضیلت ورکړے شوے وو چه انبیاء او رسولان او کتابونه پکښې زیات نازل شوی وو۔ او باقی دا اُمت غوره دے لکه د احادیثو نه معلومیږی چه دا امت به اول جنت ته داخلیږی، او دوی سره به اول حساب کتاب کیږی، او دنیا کښې ئے وخت لږ تیر کریدے او اجر به ورته زیات ملاویږی۔
۳- **جواب** : دوی ته دا فضیلت د ډیر کرامات او خوارق العادات کارونو په وجه ورکړے شوے وو، یعنی د هغوی سره به ناشنا کارنامے کیدلے، او دے اُمت ته الله تعالیٰ نور فضیلتونه ورکړی دی، سره د دغه کراماتو نه لکه احادیث ددے نه ډك دی۔ لیکن خوارق د دوی کم دی، د وجے د قوة الایمان نه نو د هغوی صرف جزئی فضیلت شو او دا هم په پخوا زمانه کښې۔

**تفسیر** : تردے ځائے پورے اجمالًا د الله تعالیٰ نعمتونه بیان شو، نو اُوس د آخرت تخویف (یره) ورکوی ځکه د آخرت په یره سره ټول احکامو باندے عمل کول آسانیږی۔ او دا باعث دے په شکر د نعمتونو۔ او دے ته د انسانانو په اصطلاح کښې غاړه خلاصول وائی، الله تعالیٰ ورله ډیره خیرخواهی کړیده۔ درے ځل ئے ورته یا بنی اسرائیل آواز کړیدے۔ مطلب دا چه که تاسو زما رسول او په هغه نازل شوی کتاب باندے ایمان رانهٔ وړئ او پدے حال کښې تاسو قیامت ته راشئ نو نهٔ به کوم رشته دار په هغه ورځ په کار راځی او نهٔ کوم سفارش او نهٔ به د عذاب نه د ځان بچ کولو دپاره کومه معاوضه او رشوت قبلیږی او نهٔ به ستاسو مدد ته څوك راځی، هر تعلق، هره رشته داری او هر سفارش به بیکاره ثابت شی، په هغه ورځ به فیصله صرف د الله تعالیٰ په اختیار کښې وی او بدانو ته به د هغوی د بدئ او نیکانو ته به د هغوی د نیکئ بدله ورکولے شی۔

﴿وَاتَّقُوْا﴾ : تقویٰ ئے ځکه راوړه چه تقویٰ یره ده سره د بچاؤ نه نو نفس یریدل کار نهٔ ورکوی ترڅو چه په اعمالو باندے د قیامت د عذابونو نه انسان ځان بچ نکړی۔ نو پدے کښې تیاری کولو ته اشاره ده۔

(**یَوْمًا**) یعنی د دغه ورځے د عذابونو نه اُویریږئ او په صحیح ایمان او عمل صالح باندے ځان ترے خلاص کړئ۔ ددے ورځ نه مراد د قیامت ورځ ده چه پنځوس زره کاله ده۔

**لَا تَجْزِیْ** : یوه معنیٰ ده (لَا تَكْفِیْ)۔ (نهٔ کافی کیږی یو نفس په ځائے د بل نفس) او کار به نهٔ ورکوی د هغه په ځائے۔ (۲) دویم : (لَاتُغْنِیْ) (نهٔ به شی دفع کولے یو نفس د بل نه هیڅ شے)۔

(۳) دریم جزاء بدلے ورکولو ته وئیلے شی۔ یعنی بدله به نشی ورکولے۔ چه مثلًا پلار یا بل خپلوان راشی او الله تعالیٰ ته اُووائی زما خوی معاف کړه، ما اُونیسه۔ یا د هغه ضمانت اُوکړی۔ دا به نهٔ وی۔ (وهذا ظاهر)۔

**نفس** : دا لفظ قرآن کریم کښې (۱۱۳) کرته راغلے دے، کله په معنیٰ د روح وی۔ (أَخْرِجُوْا أَنْفُسَكُمُ الْيَوْمَ تُجْزَوْنَ) (انعام) (اَللّٰهُ يَتَوَفَّى الْأَنْفُسَ حِيْنَ مَوْتِهَا) (الزمر)

(۲) او کله روح مع الجسد دواړه مراد وی۔ لکه پدے مقام کښې دا مراد دے۔

او نفس د الله تعالیٰ صفت هم دے او د بندګانو هم۔ د الله تعالیٰ په صفت کښې د متشابهاتو نه دے۔ نفس د تنفس نه ماخوذ دے، ساه اخستلو ته وئیلے شی او نفس هم ساه اخلی۔

**فائده** : نفسونه درے قسمه دی۔ (۱) اَلنَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ : دا اعلیٰ نفس دے۔ سورة الفجر کښې

راغلے دے۔ (۲) النفس اللوامه۔ چه په گناه باندے ځان ملامته کوی۔ دا د مؤمن نفس وی۔ (وَلَا أُقْسِمُ بِالنَّفْسِ اللَّوَّامَةِ) (القيمة) (۳) اَلنَّفْسُ الْأَمَّارَةُ بِالسُّوْءِ۔ (هغه نفس چه په گناه باندے امر کوی) (إِنَّ النَّفْسَ لَأَمَّارَةٌ بِالسُّوْءِ) (یوسف) دا د مشرکان او کافرانو او گناهگارو خلقو وی۔

دلته د اول نفس نه مراد پاك نفس دے او دویم نفس نه مجرم نفس مراد دے۔

**شَيْئًا** : دا مفعول مطلق دے د لاتجزی دپاره یا مفعول به دے۔یعنی شَيْئًا مِنَ الْإِغْنَاءِ او شَيْئًا مِنَ الْكِفَايَةِ۔ هیڅ قسم کفایت او بدله به نشی ورکولے۔

﴿ **وَلَا يُقْبَلُ مِنْهَا شَفَاعَةٌ** ﴾ د هغه پاك نفس نه به سفارش هم نهٔ قبلیږی۔ (مِنْهَا) ضمیر دے اول نفس ته راجع دے، سفارش دا دے چه یو نیك سړے راشی الله تعالیٰ ته اُووائی : یا الله دا معاف کړه! الله تعالیٰ به وائی نهٔ، کافر دپاره سفارش نشته۔ که بالفرض پیغمبران ورله سفارش کوی، هم الله تعالیٰ ئے نه قبلوی۔ شفاعت شته خو لیکن د مؤمنانو گناهگارو دپاره دے۔

(**وَلَا يُؤْخَذُ مِنْهَا عَدْلٌ**) (عدل) فدیے او بدلے ته وائی یعنی الله تعالیٰ به د انسان نه فدیه او مال هم نهٔ اخلی چه ورشه، دومره پیسے راوړه نو ته به خلاص شے، ځکه پیسو ته د الله تعالیٰ حاجت نشته۔ دویم عدل کله په معنیٰ د انصاف استعمالیږی او هغه دلته نهٔ دے مراد۔ بلکه د عدل معنیٰ ده فدیه چه مساوی وی د انسان د قیمت سره او په عدل کښې معنیٰ د مساوات پرته ده اشاره ده چه د انسان څومره قیمت دے که هغه ورکړے هم نهٔ قبلیږی۔

﴿ **وَلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ** ﴾ ملگری به ورسره مدد هم نشی کولے۔

**فائده** : غالباً چه سړے د جیل وغیره نه بچ کیږی نو په دے څلورو اسبابو۔ (۱) یو دا چه یو سړے د بل په ځائے کار ورکړی چه دا مه نیسه، دا کمزورے دے، بس زه به کفاله بالنفس اُوکړم۔ زه به دلته ناست یم۔ (۲) دویم دا چه مخوریز خلق راشی هغه ئے په سفارش راخلاص کړی۔ (۳) دریم دا چه پیسے وغیره اُولگوی۔ (٤) څلورم دا چه خپلو ملگرو ته اُووائی چه زور اُولگوئ، په جیل وغیره باندے حمله اُوکړئ وغیره۔ دا څلور واړه طریقے په آخرت کښې نهٔ چلیږی۔ بلکه په صحیح ایمان او توحید او نیك عمل کار کیږی۔

## مسئله د شفاعت :

شفاعة په لغت کښې یو ځائے والی ته وئیلے شی، نو په شفاعت کښې هم پاك نفس ځان سره مجرم یو ځائے کړی او د چا خواله ورشی چه دا معاف کړه۔ شفاعة لفظ په قرآن کریم کښې

(۲۳) کرته راغلي دي.

## اقسام د شفاعة

شفاعت دوه قسمه دي دنیوي، اخروي. دنیوي شفاعت (۱) - یو حسنه (نیك شفاعت) دي (۲) او بل سیئه (بد) دي. شفاعت حسنه دا دي چه یو مسلمان ته د خیر رسیدو دپاره منډه وهل چه بل مسلمان ته پکښې ضرر نه وي، دا ښهٔ عمل دي حدیث دي (اِشْفَعُوْا فَلْتُؤْجَرُوْا) (صحیحین) (سفارش کوئ اجر به درکولے شي) .

(۲) بد (سیئه) شفاعت دا دي چه د ګناه په کار کښې د چا سره مرسته کول.

او د شفاعتِ اُخروي څلور اقسام دي: ۱ - د مؤمنانو ګناهګارو دپاره د پیغمبرانو سفارش، هر پیغمبر به خپل امت له سفارش کوي. ۲ - شفاعت د ملائکو ګناهګارو لره. ۳ - د مؤمنانو خپل مینځ کښې یو بل له سفارش کول. ٤ - او د الله تعالیٰ سفارش کول خپل ځان ته. لکه حدیث کښې دي (وَبَقِيَ اَرْحَمُ الرَّاحِمِيْنَ) الله تعالیٰ به فرمائي چه زهٔ اُوس پاتے یم نو د جهنم به د انسانانو یو موټے راوړك کړي چه هغوي به موحدین وي اګرکه نیکي به ئې نهٔ وي.

یو شفاعت کبریٰ دے، هغه د حساب کتاب د شروع کولو دپاره دے، هغه زمونږ د رسول الله ﷺ پورے خاص دے. او بل شخصي سفارش د اُمت دپاره دے نو دا بیا ډیرو طریقو سره دے ۱ - یو دا چه د چا نیکي او بدي برابره شوي وي، نو نبی ﷺ به ئې سفارش کوي چه الله تعالیٰ ئې جنت ته بوزي. ۲ - د جنت د دروازے کولاوولو دپاره وي. ۳ - جهنم کښې د چا موده زیاته مقرر شوي وي د پیغمبر په سفارش به راکمیږي.

په بل **تقسیم شفاعت** په څلور قسمه دے. (۱) شَفَاعَة بِالْاِذْن (د الله تعالیٰ په اجازت سره سفارش کول) دا به د مؤمنانو په حق کښې وي.

۲ - شفاعت قَهْرِيْ (په زوره سفارش کول بغیر د اجازت د الله تعالیٰ نه نو دا په قیامت کښې نشته، لکه څنګه چه مشرکان دا عقیده لري چه مونږ به خپل معبودان بابا ګان د الله تعالیٰ نه خلاصوي.

۳ - شفاعت بِالْوَجَاهَة (یو مخوریز په سفارش کښې بوتلل).

٤ - شفاعت بِالْمَحَبَّة : (یو محبوب سړے چا ته سفارش کښې بوتلل). نو دا درے قسمه شفاعت په قیامت کښې نشته. ځکه ددے مطلب دا جوړیږي چه الله تعالیٰ باندے العیاذ بالله د چا زور رسي یا هغه د چا د مخ نه مجبوره وي، یا د چا د محبت نه مغلوبه وي واتي

که دا سفارش قبول نکړم نو محبوب رانه خفه کیږی۔ نو دا کارونه په الله تعالیٰ نشی راتلے۔ او شفاعت منل د مسلمانانو عقیده ده، معتزله او خوارج او اباضیه وغیره باطلے فرقے ئے نهٔ منی، د مطلق آیتونو نه استدلال کوی چه په هغے کښ نفی د شفاعت راغلے وی (فَمَا لَنَا مِنْ شَافِعِيْنَ) (الشعراء : ۱۰۰)۔

حال دا چه دغه آیتونو کښ د کافرو د شفاعت نه نفی راغلے ده یا بغیر د اجازت نه شفاعت کول مراد دی۔ او ډیر نصوص د آیتونو او حدیثونو نه دلالت کوی چه شفاعت حق دے۔ قرآن کریم کښ بار بار (اِلَّا بِاِذْنِه) لفظ راغي يعنی سفارش د الله تعالیٰ په اذن ا 'جازت سره شته۔ علامه قرطبیؒ ونیلی دی چه پدے باره کښ احادیث متواتره معنیً وارد دی از اجماع د سلفو صالحینو د امت هم ده۔ او شفاعت شرکی خو بالکل نشته چه يو مړی يا بابا 'نه انسان ورشی چه زهٔ تا له راغلے یم او تهٔ ئے الله تعالیٰ ته اُووایه او زما دا حاجت پوره کړه نو دا سُو چه شرك دے۔

| |
|---|
| وَاِذْ نَجَّيْنٰكُمْ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَسُوْمُوْنَكُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ يُذَبِّحُوْنَ |
| او کله چه مونږ خلاص کړئ تاسو د فرعونیانو نه، رسول به ئے تاسو ته بد عذابونه، حلالول به ئے |
| اَبْنَآءَكُمْ وَيَسْتَحْيُوْنَ نِسَآءَكُمْ وَفِيْ ذٰلِكُمْ بَلَآءٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيْمٌ ﴿۴۹﴾ |
| ځامن ستاسو، او ژوندئ به ئے پریخودلے زنانه ستاسو او په دے (نجات) کښ انعام وو ستاسو د رب د طرفه، لوئی۔ |

**تفسیر** : دے کښ په بنی اسرائیلو باندے د نعمتونو تفصیل بیانوی۔ دا دویم قسم خطاب دے بنی اسرائیلو سره پدے کښ بیان النعم والنقم علیهم دے۔ (یعنی د نعمتونو او عذابونو بیان دے) دپاره د جلب کولو د ایمان د هغوی۔ نو دلته (۱۰) غټ غټ انعامات ذکر کوی (۱) النجاة من فرعون (۲) نجات د غرق کیدو نه (۳) هلاکول د فرعون (۴) د شرك نه روستو معافی کول (۵) کتاب ورکول (۶) توبه قبلول (۷) بعث بعد الموت۔ (دوباره ژوندی کول) (۸) وریځ سورے کول او من او سلویٰ نازلول۔ مینځ کښ يو عذاب دے په قول او عمل بدلولو۔ (۹) نعمت : اُوبه نازلول۔ (۱۰) من او سلوئی۔ بیا بل عذاب غضب نازلول او آخر کښ (۶۲) آیت کښ ترغیب دے چه راشئ ایمان راوړئ۔

دلته هم اګرچه خطاب د مدینې یهودو ته دے لیکن مراد د هغوی آباء واجداد دی ځکه چه د هغوی نجات د کشرانو د پیدائش دپاره سبب دے۔
او پدے آیت کښې اول نعمت ذکر دے په بنی اسرائیلو : (اَلنَّجَاةُ مِنْ فِرْعَوْنَ) (الله تعالیٰ تاسو د فرعون او د هغه د عذابونو نه خلاص کړئ)۔ او نعمتونه په مشرانو دا نعمتونه وی په کشرانو۔

## د بنی اسرائیلو تاریخی پس منظر

ددے آیتونو تاریخی پس منظر دا دے چه کله یوسف عليه السلام د کنعان نه خپل والدین، ورونه او خپل خپلوان مصر ته راوغوختل نو هغوی ته ئے د مصر د بادشاه په حکم سره زرخیزه زمکه ورکړه، نو په هغې کښې به په کثرت سره اولاد پیدا کیدل، د یوسف عليه السلام او د عزیز مصر د وفات نه بعد، د هغوی وقعت خو کم شو لیکن د نسل زیاتیدل جاری وو، آخر دا اُوشو چه د مصر یو داسے تن بادشاه شو چه د اسرائیلیانو کثرت او ډیر والی نه اُویریدو او خپل قوم ته ئے اُووئیل چه بنی اسرائیل زمونږ نه په شمیر او شان وشوکت کښې زیات شو، دا ستاسو دپاره د خطرے سبب دے، د دوی فوج به زیات شی، چرته داسے اُونۀ شی چه مونږ ددے زمکے نه بے دَخله نۀ کړی، پدے وجه هغه حکم اُوکړو چه دا خلق په سخت نه سخت کارونو اُولګولے شی، او د دوی چه کوم نر بچی پیدا کیږی هغه دِے قتل کړے شی۔

**بیا** فرعون د بنی اسرائیلو اولاد ولے وژل؟ پدے کښې د مفسرینو درے اقوال مشهور دی۔

(۱) – بعض وائی : کاهنانو او نجومیانو ورته وئیلی وو، چه ستا بادشاهی به د یو بنی اسرائیلی دلاسه اَوړی، نو هغه په ذبح د اولادو شروع اُوکړه۔ او دا هم یوه وجه کیدے شی چه فرعون دِے د کاهنانو په خبره یقین کړے وی، اګرکه مسلمانان به د کاهنانو په خبره یقین نۀ کوی، حدیث کښې ددے نه منع راغلے ده۔ (څوک چه کاهن ته راغلو او د هغه د خبرے تصدیق ئے اُوکړو نو دۀ کفر اُوکړو په هغه دین چه الله تعالیٰ په محمد ﷺ نازل کړیدے الحدیث۔ (احمد بسند صحیح)

(۲) راجح وجه هغه ده چه د ابن عباس رضي الله عنه نه په حدیث الفتون کښې نقل ده او هغه حافظ ابن کثیرؒ په تفسیر د سورة طه کښې او مجمع الزوائد کښې هیثمی مفصلًا باسناد حسن ذکر کړیدے۔ چه کله ابراهیم عليه السلام د خپلے بی بی (ساره) رضی الله عنها سره په مصر راتیریدو او د مصر بادشاه د سارے دے حیائی کوشش کولو نه بعد ناکام شو نو ابراهیم

ﷺ خپلے بی بی تـه اُوفـرمايـل : تـه مه خپه کیږه، داسے وخت راروان دے چه ددے مصر بادشاهی به زمونږ اولادوته پاتے کیږی۔

او دا رشتینی پیشینګوئی وه، نو بنی اسرائیلو به دا خبره اړوله راړوله تردے چه فرعون تـه هـم اُورسیدله نو هغه سره خطره پیدا شوه چه زما په زمانه کښې دا راښکاره نشی نو په قتـل د اولادو ئے حـکـم اُوکـړو۔ (لکه اُوس هم کافران دا يره کوی چه مجاهدین (دهشتګر) چرته زیات نشـی، زمـونـږ حـکـومتونه د دوی د لاس نه وانهٔ وړی او زمونږ امن ته خطره پیوسـتـه نشـی او هسـے نـه چـه ایټم د دوی لاس تـه راشـی۔ نو د دوی د ختمولو کوشش کـوی۔ او هـمیشـه دپاره د کافرانو دا خوښی دے، چه غواړی چه مسلمانان کم کړی او خپل کفار ډیر کړی۔ دوی ته وائی تاسو منصوبه بندی کوئ او بچی کموئ او خپل بچی ډیروی لـګـیـا دی۔ لیـکـن دا د کـافـرانـو بـے عـقـلـی ده چه د پیغمبر د خبرے مقابله کوی او د هغه پیشـیـنـګـوئـی غـلـطـه ثابـته وی، حال دا چه پیغمبر بوه پیشنګوئی اُوکړی نو هغه ضرور ثابتیږی اګر که انسان هرڅومره د هغے مقابله اُوکړی)۔

(۳) وجـه : او بـعـض مـفـسـريـن (خـازنؒ، قـرطبیؒ، ابـن کثیرؒ) وئیلی دی چه فرعون خوب اُولیـدو چه د بیت المقدس د طرف نه اُور راغلو او کورونو د قبطیانو د مصر کښې داخل شو او د بنی اسرائیلو کورونه ترینه بچ شو چه د هغے تعبیر ورته دا اُوشو چه بنی اسرائیلو کښې بـه يو هلك پیدا کیږی چه د هغه په ذریعه به ستا حکومت ختمیږی، نو هغه حکم اُوکړو چـه د بـنـی اسـرائـیـلـو هر نر بچے پیدا کونکے دے ذبح کړے شی، دے دپاره چه بنی اسرائیل پـدے طـريـقـه کـمـزوری کړی نو کله چه قبطیانو اُولیدل چه پدے طریقه خو بنی اسرائیل کـمـیـږی نـو زمـونـږ خدمتونه به څوك کوی ؟ نو فرعون ته ئے شکایت اُوکړو نو هغه دویمه فیـصـلـه دا اُوکـړه چه يو کال ئے وژنیٔ او يو کال ئے پریدئ۔ په کوم کال ئے چه نهٔ وژل، هارون ﷺ پیـدا شـو او په کوم کال ئے چه وژل، نو موسیٰ ﷺ پیـدا شو نو مورئے په تابوت کښې واچـولـو الـی آخـر القصه چه ددے تفصیل به په سورة القصص (٤) کښې راځی۔ ان شاء الله تـعـالـیٰ۔ بـنـی اسـرائـیـل ددے پریشانونه تیریدل چه پدے کښې الله تعالیٰ موسیٰ ﷺ نبی راولیږلو او هغوی ئے د فرعون د عذابونو نه راخلاص کړل۔

## تفسیر او فوائد

د (آل فـرعـون) نه مراد فرعون او د هغه لښکر او تابعدار دی۔ آل په اصل کښې د يو شخص

قومیانو، تابعدارو او د هغه مسلك والو ته وئیلے شي، که د هغه په اولادو کښې وي او که نهٔ وي، ددے وجه نه څوك چه د ایمان او توحید عقیده نهٔ لري نو هغه په آل محمد ﷺ کښې داخل نهٔ دي اگر که د هغه قریب او نسبي وي او ځان ته سید وائي (قرطبيؒ)
د لفظ د آل اضافت د قوم مشر ته کیږي او اشرافو کښې استعمالیږي، او په وخت د اضافت کښې مضاف او مضاف الیه دواړه په حکم کښې داخل وي. او هرچه اهل لفظ دے نو هغه کلو ته مضاف کیږي او د هغے په حکم کښې مضاف الیه داخل نهٔ وي. دلته د آل نه مراد تابعدار دي ځکه چه د فرعون ځوی، لور، پلار، ترهٔ او ورور او خاندان (نزدے خپلوان) نهٔ وو. (قرطبي). لیکن د قرطبيؒ دا خبره خطاء ده ځکه چه د فرعون لور وه لکه په حدیث د ماشطه کښې راغلي دي چه هغه امام احمد (۱/۳۰۹) رقم (۲۸۲۱) راوړیدے: (هٰذِهِ رَائِحَةُ مَاشِطَةِ ابْنَةِ فِرْعَوْنَ وَأَوْلَادِهَا قَالَ : قُلْتُ وَمَا شَأْنُهَا قَالَ بَيْنَمَا هِيَ تُمَشِّطُ ابْنَةَ فِرْعَوْنَ إِذْ سَقَطَ الْمِشْطُ الخ)
**فرعون** : دا د مصر د باشاهانو لقب وو لکه قَیْصَر د رومیانو د بادشاهانو لقب وو او كِسرىٰ د فارس (ایران) د باشاهانو وو. او تُبَّع د یمن د بادشاهانو وو. او ددهٔ خپل نوم ولید بن مصعب بن ریان وو. (کما نقل ابن اسحاق) (۲) وهب بن منبهٔ وائي : قابوس وو. (قرطبي، رازي). (۳) بعض وائي : نوم ئے مصعب وو. (ابن کثیر، آلوسی)
(٤) بعض وائي : مرنفتاح بن رعمیس ثاني وو. اول قول ډیر مشهور دے.
د موسیٰ علیه السلام په دور کښې راغلے وو، عمر ئے (٤٥٠) کاله وو، او په ټول عمر کښې پرے مرض نهٔ وو راغلے نو ځکه دومره متکبر شوے وو. ددهٔ د عقیدے متعلق دوه قوله دي پس د اتفاق نه چه کافر خو وو. (۱) یو قول دا دے چه دا د معطله، دهریه ؤ نه وو، الله تعالیٰ ئے نهٔ منلو او ځان ته ئے رب وئیلو. (۲) مشهور قول دا دے چه دا مشرك وو، الله تعالیٰ ئے منلو، خو ځان ته ئے جحوداً او استکباراً رب وئیلو. لکه قرآن فرمائي : (وَجَحَدُوا بِهَا وَاسْتَيْقَنَتْهَا أَنْفُسُهُمْ ظُلْمًا وَعُلُوًّا) (النمل : ١٤) په الله تعالیٰ او د موسیٰ علیه السلام په حقانیت ئے یقین وو لیکن د ضد او تکبر د وجه نه ئے نهٔ منلو. څوك چه فرعون مسلمان ګڼړي لکه ابن عربي صوفي حلولي نو هغه خپله کافر دے ځکه د صریح قرآن نه انکار دے.
**يَسُومُونَ** : سام : چا ته تکلیف ورکولو ته وئیلے شي.
**سُوءَ الْعَذَابِ** : ددے نه مراد ناکاره عذابونه دي چه دا په ډیرو قسمونو سره وو، یو د هغے نه دا دے چه ذبح کول به ئے بچي د هغوی. د بعضو نه ئے خادمان جوړ کړي وو، په چا باندے

ئې په زوره زمینداری کوله، او بعضو باندې به ئې د غرونو نه گټې راوړلې او بعضو به کچه خختې جوړولې او بعضو به پخې خختې جوړولې او چا باندې به ئې کورونه جوړول او چا باندې به ئې آهنگری کوله او چا باندې به ئې نجاری کوله او چا باندې به ئې بلډنگونه جوړول، او کوم کسان چه به ضعیف وو کار به ئې نشو کولې نو هغوی باندې به ئې جزیه لگولې وه، او زنانو به جامې گنډلې او سپنږسی او څرخې به ئې کولې۔(بغوی)

**يُذَبِّحُونَ** : عطف ئې رانهٔ وړو ځکه چه دا تفسیر د سوء العذاب دې، او مقصد دلته نعمت ذکر کول دی او په سورة ابراهیم کښې ئې عطف راوړيدې ځکه چه هلته تعداد د عذابونو وو۔

**اَبۡنَآءَكُمۡ** : یعنې ماشومان به ئې د پیدائش په وخت ذبح کول او دا لوئې مصیبت دې چه د انسان مخامخ د هغه بچې ذبح کیږی۔

﴿**وَيَسۡتَحۡيُونَ نِسَآءَكُمۡ**﴾ ددې دوه معانی دی (۱) یو دا چه استحیاء د حیاء نه اخستې شویده یعنې بې حیاء کولې به ئې زنانه ستاسو او دا استحیاء پدې طریقه وه چه د زنانو حمل به ئې کتلو، په خیټو به ئې ورله گوتې وهلې، یا خاص قسم حیاء وه ځکه ئې په مخکښې باندې عطف کړه۔ (التنویر)

(۲) دویم دا د حیات نه اخستې شویدې په معنیٰ د ژوند سره یعنې ژوندئ به ئې پریخودلې جینکئ ستاسو) او دا پدې طریقه عذاب دې چه د زنانو ډیر والې او د نارینو کموالې سبب د ډیرو فتنو دې لکه په حدیث کښې دا د قیامت علامه خودلې شویده۔ دواړه معانی صحیح دی۔ خو ظاهره معنی دا ده چه جینکئ به ئې ژوندئ پریخودلې۔ ولې که بې حیاء کولې نو الله رب العزت په بې حیائی باندې صبر نهٔ کوی۔ بیا به ئې هغوی ته امر کړې وې د هغوی سره د جهاد کولو، خو دومره ده چه څه نه څه بې حیائی پکښې دا وه چه د زنانو پسې به ئې نورې زنانه لیږلې چه تاسو اُوگورئ چه دا حاملې شوی دی او که نه او د چا کور کښې بچې دې او د چا نه ؟۔ او دا هم یو نوع بې حیائی ده۔ او ددې بله وجه تاریخ هم دې چه تورات نقل کړیدی چه فرعون دایانو (ښځو) ته وئیلی وو چه هر نر بچې چه پیدا کیږی هغه قتل کړئ۔(التنویر)

**فائده** : په قتل کښې ئې ابناء کم لفظ راوړو او په یستحیون کښې ئې بناتکم اُونهٔ وئیلو بلکه نساء کم ئې اُووئیلو، پدې کښې په دوی باندې شفقت راوچتول او د هغوی غیرت په زنانو راپاڅول مقصد دې۔

**بَلَآءٌ** : امتحان ته هم وائی او ذلك اشاره ده دغه مصیبتونو او تکلیفونو ته۔ یعنې الله

تعالىٰ دربانديے سخت امتحان راوستے وو او بيا ئے پکښې کامياب کړې وی۔ نو دا هم نعمت شو۔ ابن عاشور رحمه الله فرمائی : د بلاء غالباً اطلاق به هغه مصيبت بانديے کيږی چه په بنده بانديے نازليږی ځکه پديے سره د بنده په صبر او حلم بانديے امتحان کيږی۔ (التنوير)

(۲) – يا ذلك اشاره ده نجات ته او بلاء انعام ته وائی۔ لکه سورة الانفال (۱۷) کښې راغلے ده (وَلِيُبْلِيَ الْمُؤْمِنِيْنَ مِنْهُ بَلَاءً حَسَنًا) يعنى نجات ئے درکړو دا ډير لوئى انعام دے۔ او دا تفسير پديے مقام کښې راجح دے ځکه د نعمتونو شمارل شروع دی۔ نو څومره غټ نعمت ئے درسره اُوکړو چه د فرعون غټ جبار بادشاه د لاس نه ئے راخلاص کړئ۔ نو شکر درله پکار دے۔

| |
|---|
| وَاِذْ فَرَقْنَا بِكُمُ الْبَحْرَ فَاَنْجَيْنٰكُمْ |
| اوکله چه جدا کړو مونږه ستاسو (د بچ کولو) دپاره درياب، پس خلاص مے کړئ تاسو |
| وَاَغْرَقْنَا اٰلَ فِرْعَوْنَ وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ ﴿۵۰﴾ |
| او غرق مے کړل فرعونيان (سره د فرعون نه) او تاسو ورته کتل۔ |

**تفسير** : پديے آيت کښې د نجات ورکولو تفصيل بيانوی او پديے کښې دويم خاص نعمت ذکر دے چه هغه د غرقيدو نه نجات دے او د دشمن هلاك كيدل دی۔ او پديے كښې وړو واقعو ته اشاره کوی۔ ځکه چه دا واقعات يو بنی اسرائيلو ته معلوم وو او بل هغوی پريے فخر کولو نو ځکه مختصر مختصر واقعات دلته ذکر شو۔

موسىٰ عليه السلام چه کله نبی شو او راغے فرعون ته ئے دعوت د ايمان ورکړو، هغه خبره اُونه منله، مناظروته تيار شو، پديے کښې وخت تيريدو نو الله تعالىٰ موسى ته د هجرت حکم اُوکړو نو هغه اراده اُوکړه چه خپل قوم بانديے هجرت اُوکړی او د فرعونيانو د مصيبتونو نه ئے بچ اُوساتی او دا ورته د الله تعالىٰ حکم وو نو د شپے د بحر قلزم (چه پديے وخت کښې ورته بحر احمر وئيلے شی او تورات کښې ورته بحر سوف وئيلے شی) طرف ته روان شو، فرعون سحر خبر شو نو دوی پسے په تکبر روان شو چه دوی راګير کړی، او قتل ئے کړی نو د الله تعالىٰ د فيصلے مطابق فرعون دوی لره د بحر قلزم په غاړهٔ اُوليدل، بنی اسرائيلو موسىٰ عليه السلام ته اُووئيل مونږ خو رالاندے کړے شو، موسىٰ عليه السلام ورته اُوفرمايل : هيڅکله نهٔ، ما سره زما رب ملګرے دے۔ نو موسىٰ عليه السلام د الله تعالىٰ په حکم سره خپله آمسا بانديے

اُویـه اُووهلے نـو اُویـه دوه ټـکړے شوے، او جدا جدا لارے پکښې جوړے شوے، موسیٰ علیه السلام پرے خپـل قـوم واړولـو، دوی چـه هـغـه طرفـته رسیدل نو فرعون او د هغه لښکرے په اول طرف بانـدے راداخـل شـو، د دوی دا خیـال وو چـه مونږ به (د بنی اسرائیلو په شان) واوړو، (دریاب به پار کړو) لیکن کله چه د دریاب مینځ ته شو نو ټول اُوبو راګیر کړل او ټول پکښې غرق شو۔ فرعون پدغه وخت کښې د ایمان نعرے وهلے لیکن وخت تیر وو۔

نـو ګوره پدے کښې د بنی اسرائیلو هجرت او د موسیٰ علیه السلام مـعـجزه او د دشمن مخامخ غرق کیدل دا ټول لوئی انعامات دی۔

**بِکُمْ** : ۱ – بـاء د مـلابسة دپاره ده او د مـلابسـة مـعنیٰ دلته دا ده چه د دوی د داخلیدو سره سره دریاب به جدا کیدو ۔ (۲) دا هم جائز ده چه باء سببیه شی (اَیْ بِسَبَبِ اِنْجَاءِ کُمْ) یعنی ستـاسـو د نـجات دپاره۔ (التنویر)۔ دریاب دولـس لارے شو ځکه چه دوی دولـس اسباط (خـانـدانـونـه) وو۔ قـتـاده رحـمـه الله فرمائی : د موسیٰ علیه السلام سره شپږ لاکهـه ملګری وو۔او فـرعون سره (۱۱) یولس لاکهه کسـان وو په آسونو باندے۔ ځکه ئے بنی اسرائیلو ته کم هم وئیلی وو۔ (اِنَّ هٰؤُلَاءِ لَشِرْذِمَةٌ قَلِیْلُوْنَ) (الشعراء : ٥٤) (تفسیر الطبری)

بعض د فرعون لښکر (۱۸) لاکهه یادوی۔

**اَلْبَحْرَ** : ددے بـحـر نـوم بحیرهٔ قلزم یا قرزم دے چه کنیه ئے ابو خالد ده، د سدیؒ نه نقل دی چه کله موسیٰ علیه السلام دا وهلو نو دیته ئے کنیه ابو خالد کیخوده۔ (طبریؒ)

دا دریاب د مصر او د فلسطین په مینځ کښې دے۔

عـلامـه ابـن عـاشـور رحمه الله لیکی : کله چه موسیٰ علیه السلام بـنـی اسـرائیلو لره د ځان سره راروان کـړل نـو فـرعـون تـه بعض ملګرو اُووئیـل چه دوی راواپس کول پکار دی ځکه چه د مـصـر کـارونـه خـرابـیـږی کـوم بـانـدے چه بنی اسرائیل مقرر وو۔ او بنی اسرائیل چه کله د مـصـر د ښـاریو د اطرافو نه اُووتل چه په دغه زمانه کښې د هغوی ښار (منفیس) وو نو دوی شام تـه پـه غیـر مـعـروفه (شاړه) لاره باندے روان شو دے دپاره چه د دوه نیم سوه میلونو نه زیاتـه فاصله مزل قطع نکړی نو دوی په جنوبی مشرقی طرف چه د بحر احمر اعلیٰ طرف تـه کـومـه لاره تلے وه په هغے باندے روان شو۔ او په مشهوره لاره روان نشو کوم باندے چه بـه د مـصریانو قافلے تللے دے دپاره چه د فرعون لښکرے ئے رالاندے نکړی او بیرته ئے راواپس نـکـړی ځـکـه موسیٰ علیه السلام تـه پـه وحـی سـره مـعـلـومـه شوے وه چـه فرعون بـه ستاسو د راحـصـارولو نه نهٔ منع کیږی (وَاَوْحَیْنَـا اِلٰی مُوْسٰی اَنْ اَسْرِ بِعِبَادِیْ اِنَّکُمْ مُّتَّبَعُوْنَ) نـو بس په

دغه ځائے کښې دوی محتاج شو چه د دریاب مخے ته اُودریدل۔ او دغه ځائے ته ئے (فم الحیروث) وئیلو نو دلته معجزه د موسیٰ ؑ راښکاره شوه چه دریاب ئے په امسا اُووهلو نو لاره پکښې اُوچه شوه، بنی اسرائیل پرے راداخل شو او د فرعون لښکرو د دوی پسے اراده د داخلیدو دریاب ته اُوکړه نو چه راداخل شو نو بس الله تعالیٰ پرے دریاب رابند کړو او هلاك ئے کړل۔ انتهیٰ۔

**فَأَنْجَيْنَاكُمْ** : د الله د قدرت عظیمه نخه وه چه د اُوبو طبیعت سیلان (بهیدل) دی او بنی اسرائیلو ته اُودریدلے او فرعونیان ئے پکښې تول په تولہ غرق کړل۔ او د موسیٰ ؑ عجیبه معجزه وه۔ د اُوبو اُودریدل، بیا په هغے کښې لارے جوړیدل لکه د غرونو په شان او په هغے کښې مزل کول۔ دارنګه بله معجزه دا وه چه د فرعون نه ئے عقل واخستو او همدغه دریاب باندے پے سو چه او بے فکره ورګډ شو۔ او بل کمال دا دے چه فرعون سره ډیر لښکر وو د هغے نه یو کس هم بچ نۀ شو او د موسی ؑ لوئی قوم دے د هغوی نه یو کس هم هلاك نۀ شو، دا تول د الله تعالیٰ د قدرت نظارے دی، او د بنی اسرائیلو سره احسانات دی۔بیا په دریاب کښې په یو ځل غرقیدل استیصالی عذاب وو چه الله رب العالمین هغوی ته ورکړو، او دا قسم عذابونه به هله راتلل چه کله جهادونه نۀ وو مشروع شوی، خو کله چه جهاد فرض شویدے نو بیا دا قسم عذابونه د اُمتونو نه الله تعالیٰ بند کړیدی لکه دا خبره په سورة القصص کښې الله تعالیٰ اشارةً ذکر کړیده۔

**آلَ فِرْعَوْنَ** : فرعون او د هغه تول مصر والا کوم چه بلوغ ته رسیدلی وو هغه ئے ځان سره روان کړل، سوا د ضعیفانو او زنانو نه نو دا تول غرق شو۔

د فرعون غرقیدل ددے آیت نه هم ثابت دی ځکه چه په آل کښې مضاف الیه په حکم د مضاف کښې داخل وی۔ لکه دا قاعده حافظ ابن القیّم په جلاء الافهام کښې لیکلے ده، بل دا چه د فرعون غرقیدل صراحةً سورة بنی اسرائیل (۱۰۳) کښې ذکر دی (فَأَغْرَقْنَاهُ وَمَنْ مَعَهُ جَمِيعًا) دارنګه سورة الذاریات (٤٠) او یونس (۹۰) او نازعات (۲۵) کښې۔ نو کوم ګمراه صوفیاء (محیی الدین ابن عربی وغیره) چه دا عقیده لری چه فرعون ایمان راوړے وو نو دا سو چه دروغ وائی۔ او د فرعون نسبیان دی۔

(**وَأَنْتُمْ تَنْظُرُونَ**) دشمن چه سرے ګوری او هغه هلاك کیږی نو خوشحالیږی۔ لکه اُوس دے وخت کښې چه د امریکی جهاز چرته راپریوځی نو مؤمن پرے ډیر خوشحاله

شي۔ كه يو كافر اُونيولے شي، انسان ډير خوشحاليږي۔

**فائده** : الله تعالىٰ ولے فرعون د بني اسرائيلو مخامخ غرق كړو؟ وجه دا وه چه د فرعون او د هغه د قوم هيبت د بني اسرائيلو په زړونو كښې دننه ننوتے وو نو كه دوى مخامخ د هغه هلاكت نۀ وے ليدلے او موسىٰ عليه السلام خبر وركړے وے نو د دوى به گمان كښې نۀ راتلے چه فرعون څنگه هلاك شي، لكه د ډيرو خلقو په زړونو كښې د امريكى او نورو كافرانو عظمت پروت وى چه امريكه به څنگه اُووهلے شي !!۔ نو الله تعالىٰ د دوى د يقين پيدا كولو دپاره د دوى مخامخ هلاك كړل۔

د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دے چه رسول الله ﷺ كله مدينے ته راغلو نو وے ليدل چه يهود د محرم په لسم تاريخ (عاشورے ورځ) باندے روژه نيسى، تپوس ئے اُوكړو چه دا روژه څنگه ده؟، نو هغوى اُووئيل : پدے ورځ باندے الله تعالىٰ موسى (عليه السلام) او بني اسرائيلو لره د دشمن نه نجات وركړے وو، پدے وجه موسى عليه السلام د الله تعالىٰ د شكر كولو په طور روژه نيولے وه، نو نبي ﷺ اُوفرمايل : مونږ د موسى عليه السلام ستاسو نه زيات حقدار يو (چه د هغه تابعدارى اُوكړو) بيا رسول الله ﷺ (دغه ورځ) روژه اُونيوله او د روژے نيولے حكم ئے اُوكړو۔ (بخاري، مسلم، نسائي، ابن ماجه) ليكن هغه ورسره د نهمے ورځے روژے نيولو اراده كړے وه، دے دپاره د چه د يهوديانو سره مشابهت رانشي۔

| |
|---|
| وَإِذْ وٰعَدْنَا مُوْسٰى اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ |
| او كله چه وعده اوكړه مونږ د موسىٰ عليه السلام سره خلوېښت شپے (چه دا به پوره كوے) بيا تاسو اُونيولو |
| الْعِجْلَ مِنْۢ بَعْدِهٖ وَاَنْتُمْ ظٰلِمُوْنَ ﴿۵۱﴾ |
| سخے (په اُلوهيت) پس د تگ د هغه نه او تاسو ظلم كونكي وئ۔ (په ځانونو په شرك كولو سره)۔ |

**تفسير** : پدے او روستني آيت كښې بل نعمت ذكر دے (اَلْعَفْوُ بَعْدَ الشِّرْكِ) چه الله تعالىٰ درله توبه قبوله كړه۔ شرك مو اُوكړو۔ او الله تعالىٰ معاف كړئ۔

واقعه داسے وه چه كله الله تعالىٰ فرعون او د هغه تابعدار هلاك كړل او بني اسرائيل ئے د درياب د غرق كيدو نه خلاص كړل نو دوى اخوا په يو ميدان (صحرائے سينا، ميدان تيه) كښې آباد شول، نو د دوى دپاره اُوس يو قانون او نظام او كتاب ته ضرورت وو، د الله تعالىٰ

رزقونه خوري نو پکار ده چه په یو قانون باندے خو عمل هم اُوکړی او یو قوم چه بغیر د کتاب او نظام نه اُوسیږی نو پریشانیانے ئے زیاتوی، نو الله تعالیٰ موسیٰ ؑ لره جبل طور ته د تورات ورکولو دپاره راوغوختو، موسیٰ ؑ هارون ؑ لره خپل نائب مقرر کړو او لاړو کوهِ طور کښِ ئے څلویښت ورځے او څلویښت شپے تیرے کړے، د مودے ختمیدو نه بعد الله تعالیٰ هغه ته تورات ورکړو، لیکن موسی ؑ چه طور ته لاړو دوی دلته شرك شروع کړو، د سامری او شیطان په وسوسه د سخی عبادت ئے شروع کړو. (عبادت ئے دا وو چه طوافونه به ئے تریے کول او گرد به تریے تاویدل او ورته گډیدل به او ډولکی به ئے ورته وهل) (نو گډا او ډولکی وهل د سامری او عیسایانو طریقه ده)

موسیٰ ؑ ته الله تعالیٰ خبر ورکړو نو راغلو خپل ورور، سامری او قوم ته غصه وو لکه سورة طه کښِ ددے تشریح راځی، هر یو ته ئے خپل خپل خطاب اُوکړو. سورة الاعراف کښِ راځی چه موسیٰ ؑ ورته د توبے حکم اُوکړو نو دوی کښِ اکثرو بیا توبه اُوویستله او الله تعالیٰ معاف کړل. او لږ کسان بیا هم په شرك کښِ پاتے شو. لکه (اِنَّ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ سَيَنَالُهُمْ غَضَبٌ الخ) (اعراف : ۱۵۲) نه معلومیږی.

نو پدے آیتونو کښِ دا خبره ورته رایادوی چه ستاسو مشرانو داسے کارونه کړیدی او الله تعالیٰ ورته دا عظیم جرم معاف کړو چه شاید چه شکرگزار به شی او الله تعالیٰ ته به رجوع اُوکړی.

(**مُوسیٰ**) دا نوم په قرآن کریم کښِ (۱۳٦) کرته راغلے دے او دا عبرانی لفظ دے (مُو) اُوبو ته وئیلے شی او (سَا) شجر (ونے) ته وائی نو دا د ونے په لرگی کښِ په اُوبو کښِ موندلے شوے وو. کله چه د هغه مور دا په تابوت کښِ اچولے وو. او فرعون موندلے وو.

بعض مفسرین وائی دا نوم ورته مور ایخودے وو. نو دا بیا نکته بعد الوقوع ده.

ددهٔ نسب داسے دے : موسی بن عمران بن یصهر بن قاهث بن لاوی بن یعقوب ؑ دے.

په مصر کښِ پیدا شویدے په حدودو د سنه (۱۵۰۰) کښِ مخکښِ د ولادت د عیسیٰ ؑ نه. د مور نوم ئے (یوحانذ) وه هغه هم د اولادو د لاوی بن یعقوب ؑ نه وه، او د موسیٰ ؑ والد د هغه د ولادت نه مخکښِ وفات شوے وو. نو هغے د قبطیانو نه درے میاشتے پټ ساتلے وو. بیا ورته الله تعالیٰ الهام اُوکړو چه په یو صندوق کښِ ئے بند کړه او په دریاب کښِ ئے واچوه او سورة القصص کښِ راځی چه د فرعون کور والو راونیولو او تاریخی روایاتو کښِ راځی چه د فرعون ښځے هغے له نوم کیخودو (موشی) بیا په عربئ

کښې تړي موسى جوړ شو مگر ظاهر دا ده چه موسى عبراني لفظ دے او کیدے شي چه د فرعون په کور کښې دده بل نوم وي او د هغې نه روستو ئے نوم بدل کړے وي، او موسیٰ ﷺ د فرعون په کور کښې غټیدو لکه د هغه د خوي په شان، کله چه غټ شو پته اُولګیده چه دا خو اسرائيلي دے نو د هغه نه لاړو نو الله تعالیٰ په کښې محبت د عدل او مدد د ضعیف پیدا کړو. او باقي واقعات ئے مشهور دي. راجع الى (التنوير)

موسیٰ ﷺ د اولوالعزم پیغمبرانو نه دے، حديد المزاج (تيز مزاج) والا پیغمبر وو. د بدن نه قوي وو، د هارون ﷺ نه عمر کښې کشر وو، لیکن نبوت کښې تړے مخکښې وو. دا د بني اسرائيلو مشر پیغمبر وو، او بني اسرائيل دده نه یریدل هم او هارون ﷺ د خوئي نه نرم وو.

**اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً :** په سورة الاعراف (۱٤۲) آیت کښې دي چه اول وعده د دیرشو شپو وه بیا په کښې لس زیاتے شوے نو څلویښت شوے. هلته چونکه تفصیل غرض دے نو ځکه ئے دواړه حالتونه ذکر کړیدي او دلته انعام ذکر کول مقصود دے نو آخري حالت ئے ذکر کړیدے.

بیا د الله تعالیٰ به پدے کښې حکمة وو چه موسیٰ ﷺ ته ئے سمدست کتاب ورنکړو بلکه په طور کښې ئے څلویښت شپے حصار کړے وو، د الله تعالیٰ بندګي ئے کوله، نو هرکله چه د بشري کدوراتو نه بالکل صفا شو نو الله تعالیٰ ورته خپل کتاب ورکړو.

او څلویښت ورځو کښې یو اثر هم وي چه انسان یو عمل څلویښت ورځے اُوکړي نو په مزاج کښې ئے تغییر راځي، ددے وجه نه حدیث کښې دي چه چا څلویښت ورځے په اخلاص سره د الله تعالیٰ دپاره عمل اُوکړو نو د هغه د خولے نه به د حکمة چینے روانے کړي. (رواه رزين و ابونعيم في الحلية وفي سنده نكارة) راجح دا ده چه دا قول د مکحول (تابعي) رحمه الله دے. بل حدیث دے چه څوك څلویښت ورځے تکبیر اولیٰ سره مونځ اُوکړي نو د منافقت او د جهنم نه به بچ شي. (رواه الترمذي و ابن ماجه باسناد حسن)

**فائده :** ددے څلویښت شپو نه بعض صوفیاء چهلے ثابتوي، چه ګوره موسى ﷺ څلویښت ورځے لګولے وے، نو دوي بیا چهلے وېستل عبادت ګڼړي حال دا چه شریعت یو وخت نهٔ وي متعین کړے او ته ئے متعین کوے او بیا هغې ته عبادت وائے نو ددے نه بدعات پیدا کیږي. زمونږ نبي ﷺ پدے چهله کوم ځائے عمل کړیدے؟. البته دلته یو قانون دے چه یو امور انتظامیه دي. او بل د الله تعالیٰ تعیین دے. نو په امور انتظامیهٔ کښې د یو وخت متعین کول چه عبادت او لازم ئے نهٔ ګڼړي– بدعت نهٔ دے لکه مدرسه د دین مرکز

وی، د شروع او رخصت وخت ئے معلوم دے، دارنګه درسونه پکښې د (۸) بجو نه شروع کیږی او په (۱۲) یا یوه بجه ختمیږی، او په شوال کښې شروع کول او په رجب کښې ختمول دا کوم خاص فضیلت نهٔ لری، چه بس په همدغه ترتیب به کار کیږی او که ددے نه په کښې خلاف راغلو نو دا به ګناه وی نو پدے طریقه کښې څه بدعت والے نهٔ راځی. او که یو انسان دا لازم اوګنړی چه بس په همدے طریقه کښې ثواب دے او کمے زیاتے کول ورته ګناه ښکاری نو دا به بیا خامخا بدعت وی. نو ددے وجه نه که څوك د دین خدمت په یو ترتیب په یو وخت کښې کوی نو دا جائز ده خو که د هغے تغییر ګناه ګنړی نو دا بیا بدعت دے. لکه د بعضے تبلیغیانو دا مزاج جوړ شویدے چه درے ورځو یا څلویښت ورځو یا څلور میاشتو کښې که چا کمے اوکړو نو دا ورته بد ګوری نو دا کار ښه نهٔ دے. څکه التزام د امور مباحه ؤ بدعت دے. بل په تبلیغ والو کښې نور ډیر بدعات او خرافات شته چه د هغے نشاندهی ضروری ده مونږ به ئے وخت په وخت د دین د صفائی او د خیر خواهی په نیت کوو ان شاء الله تعالیٰ.

بیا دلته **سوال** دا دے چه بنی اسرائیلو خوځان ته ډیر عاقلان وئیل نو د سخی عبادت ئے څنګه کولو؟ **۱ - جواب** دا دے چه دوی مشرکان وو او د مشرك سری نه الله تعالیٰ عقل او بصیرت اخلی (لَايَعْقِلُوْنَ او لَايُبْصِرُوْنَ) وی، که پدے امت کښې مشرکین دی، هغه هم بے عقله دی، د کانړو، قبرونو عبادت کوی او په هندوانو کښې داسے خلق هم شته چه د انسان د عورت (ذکر) عبادت کوی، نو شرك بے عقله کړی وو.

۲ - دویم دا چه دوی کښې د حلول عقیده وه (چه الله تعالیٰ (العیاذ بالله) په مخلوق کښې داخلیږی) یعنی الله تعالیٰ (العیاذ بالله) په دے سخی کښې داخل شویدے. نو څکه ئے د سخی عبادت کولو، څکه چه کله ئے داسے کرشمه نهٔ وه لیدلے چه جماد شے دِے د سخی په شان آوازونه کوی.

## د حلول عقیده او اقسام

دا عقیده د یونان والو وه، بیا بنی اسرائیلو یهودو ته رانقل شوه، بیا هغوی نه نصاراؤ ته او د نصاراؤ نه زمونږ ددے اُمت متصوفه (صوفیاؤ) واخسته. (ابن عربی، تلمسانی، ابن سبعین، بایزید بسطامی، حاجی امداد الله مکی دیوبندی وغیره) حلول په دوه قسمه دے (۱) یو حلول کلی. چه الله تعالیٰ (عیاذاً بالله) په هر مخلوق کښې دننه ورننوزی، انسان، حیوان، زمکه آسمان او ګټه او لوټه کښې. دا د ډیرو صوفیانو عقیده ده. هغوی وائی چه

الله تعالیٰ پدیے عالم کښې داسې دے لکه د انسان په بدن کښې چه مالګه، چونه، خوږه وغیره دی۔ دا کفری عقیده ده۔ دا خبرے د انسان په خُله او په قلم نهٔ راځی لیکن د نقل کفر کفر نباشد په درجه کښې بیانیږی، چه خلق ترے ځان اُوساتی۔

(۲) دویم حلول خاصه دے او هغه دا چه الله تعالیٰ هر شی کښې نشته، خو په خپلو خواصو او نیکانو صالحینو بندګانو کښې ورننوزی لکه دا د عیسایانو عقیده وه چه الله تعالیٰ (نعوذ بالله) په عیسیٰ علیه السلام کښې حلول کړے دے۔ نو ددے یهودیانو دا عقیده وه چه الله تعالیٰ په دے سخی کښې حلول کړیدے۔ (د هغه په آواز دهوکه شو)۔ نو د سخی عبادت عین د الله تعالیٰ عبادت دے۔ (عیاذاً بالله العظیم)۔ او زمونږ پدیے امت کښې د ډیرو متصوفو دا عقیده وه او حسین بن منصور الحلاج یو زندیق انسان به دا دعوه کوله۔ (اَنَا الْحَقُّ) (زهٔ الله یم)

او کله به ئے وئیل : (سُبْحَانِیْ مَا اَعْظَمَ شَانِیْ) (مالره پاکی ده چه زهٔ څومره لوئی شان والا یم) د بایزید بن بسطامی هم دا عقیده وه لکه اخون درویزه بابا په خپل کتاب ارشاد الطالبین ص (۹) کښې لیکی : چه بایزید به وئیل : (سُبْحَانِیْ، اَنَا الْحَقُّ) او شاګردانو ته ئے اُووئیل چه زما پدیے خبرو مه خفه کیږئ ځکه چه زهٔ کله دا کلمات وایم نو په دغه وخت کښې په ما کښې الله (العیاذ بالله) حلول کړے وی۔ او صحیح اسلامی عقیده دا ده چه الله تعالیٰ د ټول مخلوق نه بهر او جدا دے او د هغوی دپاسه دے، ټول مخلوق وړوکے او الله تعالیٰ عظیم ذات دے، پدیے کمزوری مخلوق کښې هیچرے هغه حلول نکوی۔

**ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ** : (اَیْ اِلٰهًا) (یعنی بیا تاسو سخی په اُلوهیت اُونیولو) او عبادت مو ورله شروع کړو۔ فراء بغوی لیکی : چه دوی به د هغے نه ګیر چاپیره طوافونه کول او ګډیدل به او دا طریقه په هندوانو کښې هم موجوده ده او په صوفیاؤ کښې هم دا طریقه شته چه په رقص (ګډا) او سرودونو سره عبادت کوی، او نوم ورله قوالی او سماع ږدی۔ دا د یهودیت سره مشابهت دے۔

**مِنْۢ بَعْدِهٖ** : اَیْ مِنْ بَعْدِ ذَهَابِ مُوْسیٰ اِلَی الطُّوْرِ (پس د تلو د موسیٰ علیه السلام نه طور ته)

﴿وَاَنْتُمْ ظٰلِمُوْنَ﴾ دومره ظالمان وئ چه الله تعالیٰ مو نهٔ پیژندلو، د سخی عبادت مو شروع کړو، او حال دا چه احسانات درسره الله تعالیٰ کړی وو۔ دلته ظلم په درجه د شرك کښې مراد دے۔

## ثُمَّ عَفَوْنَا عَنْكُمْ مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۵۲﴾

بیا مونږ معافی اُوکړه تاسو ته پس ددے (شرك کولو) نه (په توبه) دے دپاره چه د الله تعالیٰ شکر اُوکړئ۔

**تفسیر** : موسی ﷺ چه کله د طور نه راغے ورے وئیل : دا تاسو څه کړیدی؟ نو بیا دوی کښې اکثرو توبه ویستله. لږ لږ کسان پاتې شو، لکه سورة الاعراف (۱۵۲) کښې الله فرمائي : (إِنَّ الَّذِينَ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ سَيَنَالُهُمْ غَضَبٌ مِنْ رَبِّهِمْ وَذِلَّةٌ). دا هغه کسان دی چه توبه ئے نه وه ایستلے، غالباً بنی اسرائیلو توبه اُوویستله، او د هغے تفصیل روستو راځی چه دوی قتل ته تیار شو چه مونږ ځان وژنو. نو ګوره الله رب العزت درته شرك معاف کړے دے. دا څومره لویه خبره او لوئی انعام دے، پکار دا ده چه تاسو ئے هلاك کړی وے.

(**لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ**) -دے دپاره مے معاف کړئ چه تاسو شکر اُوکړئ. نو د احسان په بدله کښې شکر پکار دے.

د شکر ماده په قرآن کریم کښې (۷۳) کرته ذکر ده، شکر په لغت کښې خوربوالی او د طعام اثر په حیوان کښې ښکاره کیدو ته وائی. لکه عرب وائی : (شَكَرَتِ الدَّابَّةُ) (اثر د خوراك په حیوان کښې ښکاره شواو خورب شو) او حدیث د مسلم کښې دی : (إِنَّ الدَّوَابَّ لَتَشْكُرُ مِنْ لُحُومِهِمْ) نو شکرته هم شکر ځکه وائی چه څوك د الله تعالیٰ شکر کوی نو هغه نعمت غتیږی او اثر ئے رابښکاره کیږی.

په اصطلاح کښې (ظُهُورُ أَثَرِ نِعْمَةِ اللّٰهِ عَلٰى لِسَانِ عَبْدِهٖ ثَنَاءً وَاعْتِرَافًا، وَعَلٰى قَلْبِهٖ : شُهُودًا وَمَحَبَّةً، وَعَلٰى جَوَارِحِهٖ انْقِيَادًا وَطَاعَةً) (مدارج السالکین لابن القیم ۲/۲۴۴)

(د الله تعالیٰ د نعمت اثر ښکاره کیدل په ژبه د بنده په ثناء وئیلو او په اقرار کولو د نعمت سره او په زړه باندے په محبت کولو سره او په اندامونو باندے په طاعت او تابع کیدو سره) حاصل ئے دا دے : د الله تعالیٰ احسان په ځان منل، او د هغه دپاره بندګی او عمل کول په اندامونو. او په زړه کښې د هغه سره محبت ساتل او په ژبه د هغه حمد او صفت کول د هغه شکر دے.

## د شکر مادے

شکریو څو مادے غواړی چه هغه راشی نو انسان پوره شکرګزار جوړیږی. او حافظ ابن القیمؒ فرمائي : څومره تعریفونه د شکر چه کیږی او شویدی نو هغه ټول دے ته راجع کیږی.

(۱) مَحَبَّةُ الْمُنْعِمِ (د نعمت کونکی سره په زړه کښې محبت ساتل)

(۲) نِسْبَةُ النِّعْمَةِ إِلَى الْمُنْعِمِ (د نعمت نسبت به انعام کونکی ته کوی)

(۳) (ثَنَاءُهٗ عَلَيْهِ) (صفت کول د نعمت کونکی).

(٤) ذِكْرُ النِّعْمَةِ وَالْاِعْتِرَافُ بِهَا) (د نعمت تذکره کول او په هغې باندې اقرار کول)۔
(٥) خُضُوْعُ الشَّاكِرِ لِلْمَشْكُوْرِ) (منعم ته عاجزی کول)
(٦) اِسْتِعْمَالُ النِّعْمَةِ فِيْ رِضَى الْمُنْعِمِ) (دغه نعمت د هغه په رضا کښې استعمالول او د هغه د خفګان په ځائے کښې نه استعمالول)۔ (عدة الصابرين ص (١٤٩) والمدارج (٢/٢٤٤)

ددے قواعدو نه معلومه شوه چه د شکر کولو مرکزی دوه ارکان دی۔ اول رکن: نسبت کول د نعمت دی مُنعم ته چه الله تعالیٰ دے او دا درجه د توحید او د ترك شرك ده او دوېم رکن: نعمت په رضا د منعم کښې خرچ کول او دا درجه د سنت ده ځکه چه ځایونه د رضا د الله تعالیٰ په سنت سره معلومیږی نو معلومه شوه چه هر کفر او شرك او بدعت او نور ګناهونه دا ټول ناشکری ده۔

حمدون القصارؒ وائی: شکر دیته وائی: (أَنْ تَرٰى نَفْسَكَ فِيْهَا طُفَيْلِيًّا) (یعنی چه ته خپل نفس پدے نعمت کښې طفیلی او سوالی اُوګڼړے او ځان اهل او مستحق اُونه ګڼړے) لکه جنیدؒ دا معنیٰ ادا کړیده: (أَنْ لَّا تَرٰى نَفْسَكَ أَهْلًا لِلنِّعْمَةِ)
(خپل نفس اهل د نعمت اُونه ګڼړے)
ابو عثمانؒ وائی: شکر دیته وائی: (مَعْرِفَةُ الْعِجْزِ عَنِ الشُّكْرِ)
(چه د انسان دا علم راشی چه زهٔ د شکر کولو نه عاجز یم) بس دا شکر دے۔

**بیا** شکر د اعلیٰ ذات هم وی او د مساوی هم وی او د ادنیٰ هم۔
نو شکر د الله تعالیٰ (بِالْعُبُوْدِيَّةِ لَهٗ) (په عبادت کولو دے هغه لره) لکه حدیث کښې دی چه نبی ﷺ به تهجد دومره اُوږده کول چه خپے به ئے اُوپړسیدلے، نو صحابه کرامو ورته اُوفرمایل: چه ولے دومره اُوږد عبادت کوے حال دا چه الله تعالیٰ تاسو ته ټول ګناهونه معاف کړیدی؟ نو نبی ﷺ اُوفرمایل: (أَفَلَا أَكُوْنُ عَبْدًا شَكُوْرًا) (آیا زه د الله تعالیٰ شکر ګزار بنده جوړ نشم) نو اُوګوره عبادت ته ئے شکر اُووئیلو۔
(٢) شکر د مساوی (بِالْمُكَافَاتِ) (په بدلے ورکولو سره) وی چه ته هم ورسره احسان اُوکړے۔
(٣) او شکر د ادنیٰ (بِالرَّحْمَةِ وَالشَّفَقَةِ وَالْاِحْسَانِ)۔ (په هغه رحم او شفقت او احسان کولو سره) وی او چه د هغه لږ خدمت په ډیر باندے منظور کړی۔ او څوك چه د مخلوق شکر نشی کولے او نهٔ ئے کوی نو هغه د الله تعالیٰ هم نشی کولے ځکه چه د مخلوق شکر آسان دے۔ حدیث کښې دی: (مَنْ لَّمْ يَشْكُرِ النَّاسَ لَمْ يَشْكُرِ اللّٰهَ) (ترمذی، ابو داود بسند صحیح)

(اَنِ اشْكُرْ لِيْ وَلِوَالِدَيْكَ) (لقمان)

(والدين الله تعالىٰ د خپل ځان سره په شکر کولو کښې ددې وجه نه شريك کړل)

## آلات د شکر

شکر بيا په درې څيزونو سره کيږي په زړه سره هم وي (چه د منعم نه رضا وي او د هغه سره محبت ساتي) او په خوله باندې صفت كول د هغه دى او د هغه د انعام تذكره کول چه ما سره ئې دا انعام کړيدې. او شکر په اندامونو دا دې چه د هغه په خدمت کښې به اُولګي او که د عبادت مستحق وي لکه الله تعالىٰ شو نو بيا به ورله عبادت اُوکړي. او حمد صرف په ژبه وي.

د شکر پوره تفصيل په (الفوائد ٢/ ٩٨) کښې اُوګوره.

**فوائد الشكر** : (١) شکر الله تعالىٰ ته ډير محبوب عمل دې، (٢) شکر سبب د زيادت د نعمتونو دې، (٣) (الشكر صيد المفقود وقيد الموجود) (شكر سره ورك شوې شې ملاويږي او موجود شې د ضائع کيدو نه رابنديږي) شاعر وائي :

اِذَا كُنْتَ فِيْ نِعْمَةٍ فَارْعَهَا فَاِنَّ الْمَعَاصِيْ تُزِيْلُ النِّعَم

(کله چه ته په يو نعمت کښې يې نو د هغې لحاظ ساته ځکه چه ګناهونه نعمتونه زائل کوي)

(٤) شکر والا ته الله تعالىٰ عذاب نهٔ ورکوي، آيت کښې دي : (مَا يَفْعَلُ اللّٰهُ بِعَذَابِكُمْ اِنْ شَكَرْتُمْ) (النساء) (الله تعالىٰ ستاسو په عذاب څه کوي که تاسو شکر اُوکړئ)

(٥) شکر ګذار ته الله تعالىٰ ښائسته جزاء او بدله ورکوي الله تعالىٰ فرمائي : (وَسَيَجْزِى اللّٰهُ الشّٰكِرِيْنَ) (آل عمران) (زر دې چه الله تعالىٰ به شکر ګذارو ته ښائسته جزاء ورکړي)

(٦) شکر سبب د نجاة دې. د الله تعالىٰ ارشاد دې : (كَذٰلِكَ نَجْزِىْ مَنْ شَكَرَ) (القمر)

(٧) شکر ګذار د الله تعالىٰ د آيتونو او کائناتو نه عبرت اخلي. (اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَآيَاتٍ لِكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ) (سباء والشورى) شکر ګذار سره حساب نهٔ کيږي . او د شکر نور فوائد هم شته.

شکر د الله تعالىٰ په صفت کښې په معنىٰ د ښکاره کولو د نعمت دې او قبلول د شکر دي. دارنګه (اَلْاَجْرُ الْجَزِيْلُ بِالْعَمَلِ الْقَلِيْلِ)

(په لږ عمل باندې ډيره بدله ورکول) او دارنګه د عمل قدردان په معنىٰ سره هم راځي.

## وَاِذْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتَابَ

او کله چه ورکړو مونږ موسىٰ (عليه السلام) ته کتاب (تورات)

وَالْفُرْقَانَ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ﴿۵۳﴾

او فرق کونکے معجزے (دحق او د باطل ترمینځ) دے دپاره چه تاسو هدایت واخلئ۔

**تفسیر** : پدے آیت کښې شلورم خاص نعمت دے چه هغه تورات ورکول وو، الله تعالیٰ موسی علیه السلام ته د بنی اسرائیلو د هدایت دپاره تورات ورکړو، دا یو عظیم نعمت وو، دلته ورته دا نعمت یادوی، دے دپاره چه پدے کښې موجود بشارت رایاد کړی او په رسول الله ﷺ باندے ایمان راوړی او په دین اسلام باندے عمل اُوکړی چه د ګمراهئ نه نجات حاصل کړی۔

په آیت کښې د (کتاب) نه مراد (۱) یا خو تورات دے او (فرقان) د هغه عطف تفسیر دے، دا په کښې یو خاص صفت وو چه د حق او باطل ترمینځ فرق کونکے وو۔ نو د تورات دوه نومونه شو۔

(۲) – یا د (کتاب) نه مراد تورات دے او د (فرقان) نه مراد هغه معجزات دی چه موسی علیه السلام ته د حق او د باطل او د کفر او د ایمان ترمینځ د فرق او جدائی راوستو دپاره ورکړے شوی وو۔ چه هغه سپین لاس، امسا وغیره وو۔

(۳) فرقان کله رعب ته هم وئیلے شی۔ لیکن دا قول کمزورے دے۔ او پدے کښې دے امت باندے هم احسان ذکر کول مقصود دے چه تاسو ته ئے هم د هدایت کتاب قرآن کریم درکړیدے۔ اول تفسیر ظاهر دے۔ وجه دا ده چه بل آیت کښې دی :

﴿ وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى وَهَارُوْنَ الْفُرْقَانَ وَضِيَاءً وَذِكْرًا لِلْمُتَّقِيْنَ ﴾ (الانبياء/٤٧)

بیا قرآن او تورات ته فرقان وائی پدے کښې اشارات دی (۱) اشاره ده چه دا دواړه تفصیل د احکامو کوی (۲) (يُفَرِّقَانِ بَيْنَ الْحَقِّ وَالْبَاطِلِ وَالْحَلَالِ وَالْحَرَامِ)(دواړه د حق او باطل او حلال او حرامو ترمینځ فرق کوی) (۳) دواړه په خپل مقصود کښې ښهٔ وضاحت کونکی دی۔

(٤) دواړه بنده ته هغه حکمة ورکوی په کوم باندے چه خیر او شر په ژوند کښې پیژندلے شی۔

(لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ) دا هم دلیل دے چه (كِتَابُ اللهِ لِلْهِدَايَةِ) د الله تعالیٰ ټول کتابونه د هدایت دپاره راغلی دی۔ نو د (هُدًى لِلْمُتَّقِيْنَ) سره ددے هم تعلق دے۔

وَإِذْ قَالَ مُوْسَى لِقَوْمِهِ يَا قَوْمِ إِنَّكُمْ ظَلَمْتُمْ أَنْفُسَكُمْ

کله چه اُووئیل موسی علیه السلام خپل قوم ته، اے قومه زما ! یقیناً تاسو ظلم کړے په ځانونو خپلو

بِاتِّخَاذِكُمُ الْعِجْلَ فَتُوْبُوْا اِلٰى بَارِئِكُمْ فَاقْتُلُوْا اَنْفُسَكُمْ‌ؕ

په سبب د نیولو ستاسو سخی لره په خدائی توب سره، پس توبه اُوباسئ خالق خپل ته، نو اُووژنئ ځانونه خپل.

ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ عِنْدَ بَارِئِكُمْ‌ؕ فَتَابَ عَلَيْكُمْ‌ؕ

دا کار غوره دے ستاسو دپاره په نیز د خالق ستاسو، نو الله مهربانی اُوکړه په تاسو، (توبه ئے درله قبوله کړه)

اِنَّهٗ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ﴿٥٤﴾

یقیناً الله تعالیٰ ډیر توبه قبلونکے، مهربان دے.

**تفسير** : په دے آیت کښ پنځم خاص نعمت دے چه د ګناه د معاف کولو نه پس ئے سزا هم معاف کړه. او تخفیف ئے پکښ راوستو. او دا د مخکنی آیت د مغفرت او معافئ تفصیل دے.

هرکله چه دوی شرك اُوکړو نو موسیٰ علیه السلام راغلو، دوی ته ئے غصه اُوکړه چه تاسو خو ځان هلاك کړو نو دوی ته د توبے احساس اُوشو چه توبه اُوباسو (سورة الاعراف ١٤٩) کښ راځی چه دوی پدے خپل شرك پښیمانه شو. نو بیا دلته تفسیرونه دی. (١) یو دا چه د دوی توبه کښ دوه اجزاء وو، یو په خوله باندے توبه ویستل، او دویم ځانونه وژل. او دا صرف پدے موقعه کښ ورته وئیل شوی وو، همیشه دپاره دا حکم نهٔ وو. چه توبه کښ به ځان وژنی. لکه زمونږ په دین کښ هم په بعض صورتونو کښ د توبے سره سره د بعضے ګناهونو سزا د مجرم وژل دی لکه مثلاً د قصدی قتل او په ګواهئ سره د ثابتے شوے زنا سزا ګانے قتل او سنګسارول دی چه په توبه سره هم دا ګناه نهٔ معاف کیږی.

(٢) دویم تفسیر دا دے چه د هغوی توبه دا وه چه قتل ته ځان تیار کړی او د خولے توبه نهٔ وه. نو بناء په دے (فَاقْتُلُوْا) به تفسیر وی دپاره د (تُوْبُوْا) او د توبے نه مراد به اراده د توبے، او توبے ته ځان تیارول وی، او قتل به حقیقی توبه وی. اول قول اظهر دے ځکه چه هغه په دویم مشتمل دے.

د علی رضی الله عنه نه روایت دے چه بنی اسرائیلو موسیٰ علیه السلام نه تپوس اُوکړو چه زمونږ ددے ګناه توبه څهٔ شے دے؟ نو موسیٰ علیه السلام ورته اُوفرمایل: په تاسو کښ دے بعض بعضو لره

قتـل کـړی، نـو هغـوی چـړے راواخستـے او یو بل قتـل کـول ئے شروع کـړل، پدے کښې بیا دا ونیـلے شـویـدی (چـه مـرفوع معتـمد نص پکښې نشتـه) چه دوی کله اوویا زره کسان قتـل شو، پـدے کښې موسی او هارون علیـهما السلام د الله تعالیٰ نه دعاګانے اُوکړے چه یا الله ! دا خـلق معاف کړه نو الله تعالیٰ موسیٰ عليه السلام تـه د وحی په ذریعه خبر ورکړو چه دوی ته حکم اُوکـړه چـه اُوس قتـل بـنـد کـړئ، کـوم چه قتـل شو نو د هغوی ګناه معاف شوه او کوم چه باقی پاتے شو نو د هغوی توبه قبوله شوه۔

پـدے کښې یوه بله رایه دا ده چه د لاوی بن یعقوب اولادو د سخی عبادت نهٔ وو کړے نو هغوی تـه حـکـم اُوشو چه هغوی دِے دا نور (شرك کونکی) قتـل کړی، نو هغوی دغه شان اُوکړل، بیا الله تـعـالیٰ د ټـولـو تـوبه قبوله کړه او همدا رایه راجح معلومیږی ځکه موحدینو مشرکانو لره قتـل کـړل۔ (تیسیر الرحمن)

او هـمـدا خبـره د تـورات باب الخروج نه معلومه ده باب (۳۲– آیات ۲۵–۳۰) نو کوم علماء چه فرمائی چه دوی بالکل ندی قتـل شوی، و خبره ئے ضعیفه ده۔

نـو پـدے کښې الله تعالیٰ دا مهربانی اُوکړه چه ډیر خلق ئے بغیر د قتـل نه معاف کړل، تولو خـان اُونـهٔ وژلو او کوم چه قتـل شو نو هغوی په آخرت کښې د رحمت او مهربانیٔ مستحق جـوړ شـول۔ نـو دا پـه مـوجـوده یهودو هم بل انعام شو چه که ستاسو پلاران ئے ټول وژلی وے، نو ستاسو نسل به کمزورے وے۔

**یا قوم : فائده** : د انبیـاء کـرامـو (عـلیهـم السـلام) د بیان همیشه دا طریقه وی چه خپل قـوم تـه ډیـر په نرم انداز خبره کوی، داسـے ورتـه نهٔ وائی چه ایے مشرکانو، کافرو، ظالمانو !۔ نـو د داعـی دپاره پـکـار ده چـه پـه خـپـلـو الفاظو کښې نرمی اُوکړی دے دپاره چه خبره ئے په مخاطبینو اثر اُوکړی۔

**بـاتّـخاذکُمُ الـعجل** : ددے مـفـعـول ثانی حذف دے یعنی (اِلٰهاً) (یـعـنـی په سبب د نیولو ستاسو سخی لره په اُولو هیت او معبود ګرزولی وو)۔

(فَتُوبُوٓا اِلٰی بَارِئِکُمْ) بـارئ: هـغـه ذات ته وائی چه په جدا جدا شکل او په اخلاقو او صفاتو سره د مـخـلـوق پـیـدا کـونـکے وی، چه د هغوی د اندامونو ترمینځ ښائسته مناسبت وی۔ دا لـفـظ ئے ځکه راوړو چه پدے کښې دوی ته یو قسم زورنه ده چه الله تعالیٰ ستاسو خالق دے او شکل ئے درله ښائسته کړیدے او ترتیب ئے درکړیدے۔ نو څنګه د یو بد شکله او په کم

عقلتیا مشهور حیوان عبادت مو کړیدے؟ دا ډیر لوئی ظلم دے۔ نو ډیره لطیفه اشاره شوه د دوی ظلم او بے عقلی ته۔

(ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ عِنْدَ بَارِئِكُمْ) یعنی په ظاهره کښې خو به تاسو ته تکلیف وی خو د الله تعالیٰ په نیز دا ډیر غوره دے، په دے تاسو ته ډیر لوئی اجر درکوی۔ نو ترغیب ورکوی توبے ویستلو ته او پدے کښې اشاره ده چه مجرم له په سزاء ورکولو کښې ډیر خیر او فائدے موجودے دی، اګرکه هغه ته نهٔ وی معلومے۔ او د الله تعالیٰ د حدودو په نافذ کولو عجیب خیرونه دی۔ اګرکه انسان ته به لږ شان تکلیف هم رسی خو روستو ورله جنتونه او نعمتونه ورکوی۔

فَتَابَ عَلَيْكُمْ : یعنی هرکله چه تاسو قتل ته تیار شوئ او څه ناڅه کسان په کښې قتل شو نو الله تعالیٰ په باقی مانده کسانو باندے احسان اُوکړو او توبه کښې ئے ورله تخفیف پیدا کړو په دعاء د موسی او هارون علیهما السلام سره۔ او دا قانون دے چه څوك د الله تعالی حکم ته تیار شی، الله تعالیٰ ورسره ډیر احسان کوی۔

بعض علماء وائی : دوی بیا مړه نهٔ شول، بلکه دوی دا اراده اُوکړه چه مونږ ځان وژنو۔ نو الله تعالیٰ توبه راولیږله چه ما معاف کړئ، د دوی رشتینے نیت ئے اُوپیژندلو چه دا خلق رشتینی نیت والا دی۔ نو بس قتل ئے ورته معاف کړو، دا قول بعض مشائخ غوره کوی۔

عام مفسرین داسے وائی : چه نهٔ، دوی په یو بل باندے ګوزارونه شروع کړل، ډیر کسان اُووژلے شو، بیا موسی عليه السلام د الله تعالیٰ نه دُعا اوکړه چه اے الله! بنی اسرائیل به ختم شی۔ ته مهربانی اُوکړه۔ الله تعالیٰ اُوفرمایل : څه معاف شو۔ څه نه څه کسان ترے اُووژلے شو، څوك زرګونه یادوی، څوك کم یادوی، دا بیا تاریخی واقعات دی۔ حدیث پکښې نشته۔ ددے د خاطره انسان ئے هسے نقل کولے شی۔ او هَمدا زمونږ په نیز غوره دے ځکه د تورات عبارت پرے دلیل دے او په قرآن کښې د هغے مخالفت هم نشته بلکه تائید ئے کوی۔

**سوال** : هرکله چه د سخی عبادت کونکی قتل شو نو هغوی ته (فتاب علیکم) ځنګه وائی؟۔ **جواب** : دے موجوده اولادو ته ئے په طور د انعام ذکر کوی چه ستاسو د مشرانو توبه مے قبوله کړے ده۔ او ترغیب ورکوی چه تاسو هم د خپلو شرکونو او مخالفتونو نه الله تعالیٰ ته توبه اُویاسئ۔

۲- **جواب** : دلته توبه په معنیٰ د تخفیف د حکم سره دے یعنی الله تعالیٰ درته حکم آسان کړو چه بعض قتل شو او بعض پاتے شو۔ او تول ئے قتل نهٔ کړئ۔ او دا قول راجح دے وجه دا ده

چه قبول التوبه خو مخکښې آیت په (عفونا) کښې ذکر شوه، نو دلته تخفیف مراد دے۔
دارنګه توبه وئیلے شی (اِسْتِعْمَالُ الْعَبْدِ فِیْ طَاعَةِ اللّٰهِ تَعَالیٰ)
(چه الله تعالیٰ بنده لره د ګناه نه روستو په خپل طاعت کښې استعمال کړی)
نو دغه ژوندی او مړی دواړه په طاعت کښې استعمال شو۔ دا د توبے حقیقت دے۔
(التَّوَّابُ الرَّحِیْمُ) هر وخت چه څوک توبه ورته اُوباسی الله تعالیٰ ئے قبلوی۔ او پدے کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ د توبے طریقے خپله ښائی او بیا د توبے نه پس رحمتونه هم کوی۔ دا دوه صفتونه مخکښې هم تیر شو د آدم واقعه کښې بار بار دے سورت کښې رازی، اشاره ده چه اے الله کتابو توبه اُوباسئ وقت تیر ندے، موقعه شته۔

**حکمتونه** : پدے آیت کښې ډیرو حکمتونو او فوائدو ته اشاره ده (۱) اول اجتماعی طریقے سره توبه ویستلو کښې زور ډیر وی (۲) د مشرکینو نه بیزاری او هغه د خپل مینځ نه ویستل پکار دی۔ (۳) د شرك نهایت قباحت او د توحید انتهائی عظمت ته اشاره ده ګویا کښې که بنے لاس شرك اُوکړی نو په چپ لاس کټ کول پکار دی او بالعکس۔ (٤) اخیارو اشرار قتل کړل د خاندانی او قبائلی تعصب ختمولو دپاره۔او چه هیڅ قسم فتنه پیدا نشی او بنی اسرائیل پاك شی (٥) د مرتد سزاء قتل ده په پخوانو ادیانو کښې هم۔
(٦) د ایمان مضبوطولو ته اشاره ده چه اهل توحید ډیے د اهل شرك کردنونه او څټونه پریکړی دے دپاره چه د دوی په ایمان کښې قوت راشی او الولاء والبراء راښکاره شی۔
(٧) کومه ګناه چه د مشرانو د غفلت په وجه عوام اُوکړی نو ددے کفاره په ټولو اداکول پکار دی۔ (٨) د توبے د قبولیت شرط دا دے چه د اصل ګناه نه بیزار شی۔

| |
|---|
| وَاِذْ قُلْتُمْ یٰمُوْسٰی لَنْ نُّؤْمِنَ لَكَ حَتّٰی نَرَی |
| او کله چه وئیلی وو تاسو، اے موسیٰ! هیچرے ایمان نهٔ راوړو مونږ په تا بانده ترڅو چه مونږه اُووینو |
| اللّٰهَ جَهْرَةً فَاَخَذَتْکُمُ الصّٰعِقَةُ وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ﴿٥٥﴾ |
| الله تعالیٰ لره ښکاره نو تاسو ونیولئ تندر، او تاسو کتل۔ |

**تفسیر** : دا بله واقعه ده چه پدے کښې یو تفسیر دا دے چه کله موسیٰ علیه السلام دوی ته د

شرك كولو نه پس د توبے ترغيب ورکړو نو د توبے دپاره موسیٰ عليه السلام د دوی نه اوويا مشران منتخب كړل او كوهِ طور ته ئے د دويم ميقات (ملاقات) دپاره بوتلل، نو كله چه موسیٰ عليه السلام سره الله تعالىٰ يو اځے خبرے اُوكړے چه دوی به په توبه كښې ځان قتلوی نو موسیٰ عليه السلام دوی ته په واپسئ كښې په لاره كښې دا ذكر كړه نو دوی دا بے ادبی اُوكړه چه د الله تعالىٰ د ليدلو مطالبه ئے اُوكړه چه مونږ ته دِے الله تعالىٰ ځان رابښكاره كړی نو د الله تعالىٰ په خلاف ئے انتهائی جرأت اُوكړو او د ايمان بالغيب نه منكر شو. (ځكه په دنيا كښې د هيڅ طاقت نشته چه الله تعالىٰ لره اُووينی) نو په دوی باندے د آسمان د طرف نه تندر راپريوتو چه سمدستی ئے مړهٔ كړل، موسیٰ عليه السلام دعاگانے شروع كړے چه اے الله! دا سفهاء (بے وقوف) وو، معاف ئے كړه! نو الله تعالىٰ په خپل فضل او كرم سره دوی دوباره ژوندی كړل. دا تفسير د سورة الاعراف (۱۵۵) نه معلوميږی او دا راجح دے.

(۲) – دويم تفسير دا دے چه كله موسیٰ عليه السلام اول ځل د كتاب د اخستو دپاره كوهِ طور ته لاړو او كتاب ورته ملاؤ شو او دوی ته ئے د هغے اوامر او نواهی بيان كړل نو دوی ته گران بښكاره شو، نو دوی مطالبه اُوكړه چه دا به مونږ هله منو چه الله تعالىٰ مونږ ته مخامخ راشی او دا اُووائی چه دا زما كتاب دے، ورے منئ. نو الله تعالىٰ پرے غر راوچت كړو. بيا ئے اُومنل. ددے تفسير په بنا به دا وينا د ټولو بنی اسرئيلو وی، سوا د مخلصينو نه او اول تفسير سره دا صرف وينا د اويا كسانو ده. ليكن دا تفسير غوره نهٔ دے. وجه دا ده چه پدے واقعه كښې خو دوی مړهٔ شوی نهٔ وو، صرف غر پرے الله تعالىٰ راوچت كړے وو. او دوی په سجده پريوتی وو او ظاهره كښې ئے خبره منلے وه. اگركه په دغه واقعه كښې ئے هم د بے ادبئ خبرے كړيدی چه مونږ منلو ته تيار نهٔ وو. (وَعَصَيْنَا)

او پدے كښې اشاره ده چه دغه اوويا كسان پدے وينا سره مرتد شوی وو، پدے وجه الله تعالىٰ ورله سزا د مرگ وركړه ليكن د توبے او د موسی عليه السلام د دعاء په بركت بيرته ژوندی شو. بعض وائی : د دوی مقصد انكار نهٔ وو بلكه د جهالت د وجه نه ئے داسے خبره كړے وه نو مرتد نهٔ دی، ليكن سزا د مرگ ورله پدے وجه وركړے شوه چه دوی بے ادبی د الله تعالىٰ او د هغه د رسول (موسی عليه السلام) اُوكړه.

دلته بعض تفسيرونو كښې دريمه قصه ليكلے ده چه اويا كسانو د الله تعالىٰ خبرے واوريدلے او بيا ئے د الله تعالىٰ د ليدلو مطالبه اُوكړه كما فی السراج والخازن وغيرهما.

لیکن دا خبره یقینی غلطه ده ځکه کلام د الله تعالیٰ صرف موسیٰ علیه السلام آوریدلے دے، لکه د (إِنِّي اصْطَفَيْتُكَ عَلَى النَّاسِ بِرِسَالَاتِي وَبِكَلَامِي) (اعراف) نه دا خبره معلومه ده۔

**فَلْتُمْ**: دا وینا خو موجوده کسانو نۀ وه کړے بلکه د دوی مشرانو کړے وه لیکن د مشرانو خبره خلق کشرانو ته کوی چه ګوره ستاسو مشرانو داسے خبرے کړی دی۔

يَامُوسىٰ : دوی خپلو پیغمبرانو ته یارسول الله یا نبی الله نۀ وئیلو بلکه خپل نوم ئے ورته اخستو۔ دا دلیل دے د دوی د بے ادبئ، په خلاف د صحابه کرامو د رسول الله ﷺ چه هغوی هیڅکله رسول الله ﷺ ته پس د پوهے نه یامحمد نۀ دے وئیلے بلکه دا وینا (يَا مُحَمَّدُ) الله تعالیٰ په دوه آیتونو د سورة النور (۶۳) (لَا تَجْعَلُوا دُعَاءَ الرَّسُولِ بَيْنَكُمْ كَدُعَاءِ بَعْضِكُمْ بَعْضًا) او سورة الحجرات (۲) (وَلَا تَجْهَرُوا لَهُ بِالْقَوْلِ كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ أَنْ تَحْبَطَ أَعْمَالُكُمْ) سره حرامه کړیده۔ لکه سورة النور کښ به راشی ان شاء الله تعالیٰ۔

لَنْ نُؤْمِنَ لَكَ : دوی خو ایمان راوړے وو، خو بیائے هم ځان نه ایمان نفی کولو، ظالمان وو، د ایمان په خوند نۀ پوهیدل۔ حال دا چه دا لاتوړے له هم تلی وو، ددے وجه نه دے امت ته وئیلے شویدی چه تاسو به ایمان د ځان نه نۀ نفی کوئ. اګرکه لږ ساعت دپاره وی، او په قسم کښ وی، داسے به هم نه وائے چه زۀ به مسلمان نۀ یم که دا کار ما اُوکړو او یا داسے اُووائی : ما دِے الله تعالیٰ د ایمان نه خلاص کړی) که رشتینی وی نو هم اسلام ته به بیرته روغ راواپس نۀ شی۔ ددے الفاظو استعمالول هم په احادیثو کښ حرام شویدی۔

لَنْ نُؤْمِنَ لَكَ : دا د کفر خبره دوی کړے ده، مفسرین وائی دا مسلمانان وو خو د جاهلیت د وجه نه ئے دا لفظ وئیلے دے۔ مراد ددے نه دا دے (لَنْ يَكْمُلَ إِيْمَانُنَا) چه زمونږ ایمان کاملیږی نۀ. ظاهر دا ده چه دا د دوی د بے ادبئ کلمه وه، او د الله تعالیٰ د حکم او د ایمان څه پرواه ئے نۀ لرله۔ لکه روستو راځی ۔ (آلْئٰنَ جِئْتَ بِالْحَقِّ) (اُوس دِے حق بیان کړو) دا هم د بے ادبئ خبره ده۔

**فائده**: دا آیت دلیل دے چه الله تعالیٰ په دنیا کښ نشی لیدلے کیدے، داسے طاقت الله تعالیٰ په دنیا کښ انسان له ندے ورکړے چه الله تعالیٰ اُووینی لیکن په قیامت کښ به مؤمنین صادقین الله تعالیٰ لره لیدلے شی، الله تعالیٰ به پکښ طاقت د لیدلو پیدا کړی۔ لکه دا خبره د قرآن او د صحیح احادیثو نه ثابته ده۔ او دا مذهب د مسلمانانو دے په خلاف د معتزلو نه۔

الصَّاعِقَةُ : تندر ته وائی دلته ئے یو څو مصداقات دی (۱) مرګ پرے راغلو۔

(۲) په دوی باندے اُور نازل شو چه دوی ئے اُوسیزل۔ یعنی د اُور تندر۔

(۳) د آسمان د طرف نه پرے چغه راغله لکه د صیحے د ثمودیانو او د قوم شعیب علیه السلام او د قوم لوط علیه السلام۔

(٤) ډیر ملائك چه د هغوی په کشاری آوریدلو یا د هغوی په لیدلو سره دوی بے هوشه شول او د یرے نه مړهٔ شول (خازن) او سورة الاعراف (۱۵۵) کښې ئے دیته رجفه وئیلے ده یعنی زلزله د زمکے یا هیبت او خوزیدل د زړونو مراد دے۔ او حقه دا ده چه صاعقه (كُلُّ شَيْءٍ غَيَّرَ الشَّيْءَ وَأَفْسَدَهُ) ته وئیلے شی (هر هغه شے چه بل شی کښې تغییر راولی او هغه فاسد اُوګرځوی)۔ لهذا دے ټولو شکلونو ته شامل لفظ دے کما فی ابن جریر (فی حم السجدة)۔

**وَأَنتُمْ تَنظُرُونَ** : (۱) (تَنظُرُوْنَ اِلَى الصَّاعِقَةِ النَّازِلَةِ قَبْلَ اَنْ تُصِيبَكُمْ) (یعنی تندر ته مو کتل مخکښې د رسیدلو نه)۔

(۲) (يَنظُرُ بَعْضُكُمْ اِلَى بَعْضٍ كَيْفَ يَأْخُذُهُ الْمَوْتُ) یو بل ته مو کتل چه مړهٔ کیدلی (بغوی، خازن) دا جمله ئے ځکه ذکر کړه چه عذاب انسان پسے راروان وی او دا ورته ګوری او لا بدن ته ئے نهٔ وی رسیدلے نو پدے کښې ډیر رعب وی چه ټول زړه د انسان رانیسی۔

(۳) بعض وائی : تَنظُرُوْنَ د نَظْرَةٌ نه دے په معنیٰ د انتظار سره۔ (اَیْ وَاَنْتُمْ تَنْتَظِرُوْنَ اِجَابَةَ السُّؤَالِ فِيْ حُصُوْلِ الرُّؤْيَةِ لَكُمْ) (روح المعانی) (تاسو په انتظار وئ چه اُوس به زمونږ سوال قبول شی او د الله تعالیٰ رؤیة به راته حاصل شی)۔

(٤) تَنظُرُوْنَ (اِلَى اَثَرِهَا الْبَاقِيْ فِيْ اَجْسَامِكُمْ بَعْدَ الْبَعْثِ) (روح) (یعنی تاسو کتلو هغه اثر د عذاب ته چه ستاسو په بدنونو کښې باقی وو پس د راپورته کیدو نه)

ثُمَّ بَعَثْنَٰكُم مِّنۢ بَعْدِ مَوْتِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿٥٦﴾

بیا مونږ راژوندی کړئ پس د مرګ ستاسو نه، دے دپاره چه تاسو شکر اُوکړئ۔

**تفسیر** : دا بل نعمت دے په بنی اسرائیلو چه د مرګ نه روستو ئے دوباره ژوندی کړیدی په سبب د دعاء د موسیٰ علیه السلام چه هغه وئیلی وو: (رَبِّ لَوْ شِئْتَ اَهْلَكْتَهُم مِّن قَبْلُ وَاِيَّايَ) (اعراف : ۱۵۵)۔ یعنی اے الله ! تا به دا مخکښې وژلی وے ځکه چه زه به بنی اسرائیلو ته څه وایم هغه خو تهمتیان قوم دے، وائی به زمونږ غوره خلق دے بوتلل او مړهٔ دے کړل نو

ای الله ! دا راژوندی کړه ! او دا حقیقي مرګ دے، صرف بے هوشي نۀ وه۔او دیته عقوبي (سزائي) مرګ وائي، اجلي مرګ نۀ دے۔
کله چه الله تعالیٰ دوی لره راژوندي کړل نو زیر زیړ وو او شکلونو کښې ئے دغه آثار ښکاره کیدل، بچو کښې ئے هم بیا دغه آثار وو۔ الله تعالیٰ ورسره څومره انعام کړے چه پس د مرګه ئے راژوندي کړل، که همداسے ئے پریخي وے نو سیده به جهنم ته تلي وے۔ نو الله تعالیٰ ورسره څومره احسان اُوکړو۔
دنیا کښې الله تعالیٰ مړی راژوندي کړیدي۔ یوه واقعه دا ده څلور به روستو پدے سور ت کښې نورے راځي۔ (۷۳) کښې او (۲٤۳) او (۲٦۰) کښې۔

## مقاصد الواقعة

او پدے واقعه کښې غرض ۱ – د الله تعالیٰ قدرت ښکاره کول دي، ۲ – اثبات د آخرت پرے کیږي۔ ۳ – او د نبي معجزه پکښې ذکر ده۔ ٤ – کله نا کله سزا ورکول سبب د معاف کیدو ګرځي۔ ٥ – او په بني اسرائیلو باندے انعام او احسان ذکر کول دي چه د الله تعالیٰ شکر اُوکړئ، په محمد رسول الله ﷺ باندے ایمان راوړئ۔
**سوال**: د قرآن کریم د سورة الانبیاء (۹۵) نه معلومیږي: (وَحَرَامٌ عَلٰى قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَاهَا أَنَّهُمْ لَا يَرْجِعُوْنَ) د الله تعالیٰ فیصله خو دا ده چه څوک مړۀ شي نو هغه دنیا ته دوباره نۀ راواپس کیږي نو دوی څنګه دوباره راواپس شو ؟۔
**جواب**: مرګ دوه قسمه دے (۱) اجلي مرګ دے چه په خپله نیټه مړۀ شي نو بیرته نشي راتلے۔ (۲) او بل عقوبي او عقابي (سزائي) مرګ دے، چه په طور د سزاء الله تعالیٰ وژلے وي، او خپله نیټه ئے نۀ وي پوره۔ نو پدے کښې دوباره راتلل ممتنع نۀ دي۔

وَظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْغَمَامَ وَاَنْزَلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى ۔ كُلُوْا

و سوریے کړو مونږ په تاسو باندے وریځے او رااولیږل مونږ په تاسو باندے ترنجبین او مرزان، خورئ

مِنْ طَيِّبٰتِ مَارَزَقْنٰكُمْ ۔ وَمَا ظَلَمُوْنَا وَلٰكِنْ كَانُوْا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿٥٧﴾

د پاک هغے نه چه مونږ درکړیدي تاسو ته او دوی ظلم اُونکړو په مونږ باندے لیکن په ځانونو ئے ظلم کولو۔

**تفسیر** : په دے آیت کښې بل (۷) انعام دے، هرکله چه دوی په صحرائے سینا (میدان تیه) کښې اُوسیدل چه هیڅ بندوبست نۀ وو، سمدست کورونه جوړول هم د دومره تعداد دپاره عرفاً ممکن نۀ وو، نو یو ځائے کښې چه خوراك څکاك نۀ وی نو نۀ نیك عمل کیږی او نۀ ژوند تیریږی نو د ژوند ضروریات ئے ورله پوره کړل یو په میدان کښې گرمی وه نو د هغې د زائله کولو دپاره ئے پرے د بره نه (بے بارانه) وریځے راخورے کړے او د خوراك دپاره ئے ورلـه مـن او سلویٰ نازل کړل او اُوبه ئے ورته د کاڼړی نه را اُوویستلے نو ټول ضرورتونه پوره شو او دین او کتاب هم ورته ورکړے شو۔

**الْغَمَامَ** : جمع د غمامة ده، دا هغه سپینے نرئ وریځو ته وائی چه د انسان زړه پکښې نۀ تنگیږی، صرف د نمر گرمی او تیزه رڼرا کمه شی، نو ډیره تیاره هم نۀ پیدا کوی او گرمی هم نۀ پیدا کوی۔ ورنه په وریځ کښې تیارۀ وی، د انسان زړه پکښې تنگ وی۔

(مَنّ) (ترنجبین) د شبنم په شان یو شے دے چه د آسمان نه نازلیدلو، او په خوږ والی کښې د شهدو په شان دے۔ په ژمی کښې اکثر د بنوټانو په وَنو باندے کیږی، په یخو علاقو کښې وی، او هغه د ترکاریٔ په ځائے کار ورکوی۔

مفسرینو ددے په مصداق کښې ډیر اقوال ذکر کړیدی (۱) ترنجبین (۲) خوږه جاوله۔ (۳) کبین (٤) خوگ شربت۔ حافظ ابن کثیرؒ فرمائی : چه دا ټول اقوال یوبل ته نزدے دی ځکه چه دغه نعمت (ترنجبین) که یواځے اُوخوړلے شی نو طعام او حلویٰ وه، او چه د اُوبو سره یوځائے شی نو شربت به ترے جوړ شو او که بل څیز سره به مرکب شو نو بله نوعه خوراك به جوړ شو۔ او حدیث کښې راغلی دی : (اَلْكَمْأَةُ مِنَ الْمَنِّ وَمَائُهَا شِفَاءٌ لِلْعَيْنِ) (مسلم)

(خریړے د ترنجبین نه دے او ددے اُوبه د سترگو دپاره شفاء ده)

نو خریړی ته ئے من پدے وجه اُووئیلو چه دا هم بے تکلیفه، بغیر د تخم نه راخیژی۔

یا مطلب دا چه بنی اسرائیلو ته په مَنّ کښې دا هم ورکړے شوے وو۔

او (سَلویٰ) مرزان وو۔ ابوالعالیهٔ نه نقل دی چه دا سمانیٔ مرغیٔ وے۔ ابن عباس ﷺ نه نقل دی چه دا د سمانیٔ په شان مرغیٔ وے، عکرمهٔ فرمائی : دا مرغیٔ د هندستان د ملك وے چه د چینچڼرے نه غټے وے او دیته په پښتو ژبه کښې مرز (بټیر) وائی۔

پدے کښې بیا بعض مفسرین وائی چه دا به ورته پاخه راتلل، لیکن راجحه معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ به ورته په زمکه پیدا کول، د یو ځائے نه به ورته راتلل، لیکن په آسمانی تدبیر

سره پیدا کیږي نو ځکه ئې أَنْزِلْ لفظ ذکر کړو او د ظاهري عادت خلاف وو ځکه ترنجبین په ونو او یخو علاقو کښې وي او دوي په ګرم او هوار میدان کښې وو. او مرزان د انسان نه تختي، او په فصلونو کښې وي لیکن هغه به نهٔ تختیدل، د دوي خوا ته به راتلل او دوي به ذبح کول. د چرګانو پشان. دا د بني اسرائیلو کرامت او د موسیٰ ؑ معجزه او د الله تعالیٰ د قدرت نښه وه. الله تعالیٰ بې اسبابو هم رزق ورکولے شي۔

او الله تعالیٰ ورته دا وئیلي وو: (کُلُوْا) (خورئ) یعني حلال ئې ګڼړئ، یو خو حلال دي او بل طیبات، مزیدار دي، صحت هم پکښې ښه کیږي، برکتناك هم دي، دلته وقف دے۔ دوي ته دا وئیلے شوي وو چې طغیان به نهٔ کوئ، (وَلَا تَطْغَوْا فِیْهِ) (طه: ۸۱)

او دا طعام به ځان له ذخیره کوئ هم نهٔ، لیکن بې صبري، او اظهار د ناراضګۍ، بې ادبي شکایتونه او د الله تعالیٰ ناشکري د هغوي شیوه جوړه شوې وه، نو دوي ناشکري شروع کړه لکه روستو راځي، دوي اُوونیل: دا خو راله زړه وهي، ترسکن ځیزونه پکار دي. او دغه طعامونه ئې ذخیره کول هم چه د هغې په وجه به زر سخا کیدل او چینجي به پکښې پیدا کیدل، نو د الله د عذاب مستحق شو، دغه طعام پرې الله تعالیٰ کم کړو۔

طیبات: (ما اُغذي و اُنمي) (هغه خوراکونو ته وئیلے شي چه غذائیت پکښې وي او نمو او ترقي پکښې وي)۔ (۲) دویم: طیب هغه طعام دے چه ذاتاً او کسباً حلال وي۔

نو الله تعالیٰ فرمائي: (وما ظلمُونا) یعني کله چه ئې دا نعمتونه په ځان قطع کړل نو په الله بانديې څه ظلم رانغې، هغه ته هیڅ نقصان اُونهٔ رسیدو، بلکه د خپل ځان نقصان ئې اُوکړو چه الله تعالیٰ ترې نعمتونه قطع کړل، بیا دهقانیانې او زمینداریانې به ئې کولې او چاودلي پوندې به کرزیدل او خر مخونه به ئې سیولي وو. او د الله تعالیٰ عبادت هم ترې پاتې وو. په مشقتونو اخته شول۔ دا د نعمت د ناشکرئ نتیجه ده۔

| |
|---|
| وَإِذْ قُلْنَا ادْخُلُوْا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ فَكُلُوْا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ |
| اوکله چه مونږ اُوونیل دا خل شئ دې کلي ته، نو خورئ د هغې نه کوم ځائې کښې چه ستاسو خوښه وي |
| رَغَدًا وَّادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَّقُوْلُوْا حِطَّةٌ |
| فراخه، او داخل شئ دروازې (د کلي) ته سجده کونکي، او وایئ تاسو کلمه د حطة (بخښنه اُوکړه مونږ ته) |

نَّغْفِرْ لَكُمْ خَطٰيٰكُمْ ۚ وَسَنَزِيْدُ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۵۸﴾

موږ به اُوبخو تاسو ته ګناهونه ستاسو، او زر دے چه ډیر به کړو نیک عملو لره.

**تفسیر** : پدے آیت کښې اُوس الله رب العزت یو عذاب ذکر کوی. چه ګوره دوی ته دوه حکمونه شوی وو، هغه ئے بدل کړل، یو سجده او بل ذکر. دوی ذکر هم بدل کړو او سجده ئے هم بدله کړه، الله رب العزت دوی لـه د ذکر په بدلولو عذاب ورکړو. نو په سجده بدلولوئے په طریقه اولیٰ پرے راولیږلو.

د واقعے تفصیل دا دے چه بنی اسرائیل په دے میدان (صحرائے سینا) کښې وو چه موسیٰ ﷺ دوی تـه حـکـم اُوکړو چه تاسو به یو کلی (بیت المقدس یا اریحاء وغیره) ته داخلیږئ، الله تعالیٰ په تاسو جهاد فرض کړیدے لکه دا سورة المائده کښې راځی نو دوی دولس کسان د معلومات دپاره اُولیږل، وے لیدل چه هغه خلق جبارین، سخت بدنونو والا وو، نو دوی بزدله شو او انکارئے د جهاد نه اُوکړو، موسیٰ ﷺ ورته ډیرے زاری ګانے اُوکړے، لیکن دوی ورلـه خبره نۀ منله، نو موسیٰ ﷺ دعاء اُوکړه چه یا الله ! موږ ددے قوم نه واخله، نو هغه وفات شو، او دوی څلویښت کالو پورے په میدان کښې حیران پراته وو. بیا پرے الله تعالیٰ رحم اُوکړو چه یوشع بن نون ﷺ ئے ورتـه پیغمبر راولیږلو او دوی د هغه سره جهاد ته څلویښت کالـه روستو تیار شو، کله چه بیت المقدس فتح شو، نو الله تعالیٰ دوی ته دوه امرونه کړی وو، یو دا چه دے کلی تـه د اُوسیدو دپاره داخلیږئ نو سر به خکته کوئ (عاجزئ سره به داخلیږئ). بل دا چه د حِطَّةٌ (اے الله موږ ته ګناهونه معاف کړه) لفظ ذکر به کوئ، لیکن دے ظالمانو سرکشی اختیار کړه، عمل ئے هم بدل کړو چه په کوناتو باندے داخل شو (سجده ئے اُونکړه) او د حطة په ځائے (حِنْطَةٌ فِيْ شَعْرَةٍ) (په ویښتو کښې بند غنم غواړو) وئیلو سره داخل شو. نو پدے کښې د الله تعالیٰ د حکم انتهائی اهانت او سپکوالے وو، پدے وجه الله تعالیٰ دوی په طاعون (ننکو) باندے مبتلا کړل. (بخاری، ومسلم)

(۲) دویم قول د مفسرینو دا دے چه د جهاد واقعه جدا ده او دا واقعه جدا ده، دوی ته وئیل شوی وو چه دغه کلی ته داخل شئ، اُوسیږئ، هلته خوراکونه کوئ، خو دوه کارونه به کوئ، سجده به کوئ او ذکر به کوئ په حنطة سره. نو دوی تبدیل القول والعمل دواړه اُوکړل. دا دواړه

احتمالات صحیح دی ځکه چه دلته مقصود تعداد النعم والنقم دے په بنی اسرائیلو۔

**اُدْخُلُوْا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ** : دا دخول د سکنیٰ (اُوسیدو) دپاره وو، خو په جهاد به ورننوزئ او ځائے به ئے فتح کوئ لکه سورة الاعراف (١٦١) کښې راځی : (وَاِذْ قِيْلَ لَهُمُ اسْكُنُوْا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ) هلته په سکنیٰ باندے امر راغلے دے، او دلته په دخول۔ او سکنیٰ خو د دخول نه روستو وی۔ نو ګویا کښې دخول علت دے دپاره د سکنیٰ۔

**الْقَرْيَةَ** : ددے قریه په تعیین کښې د مفسرینو ډیر اقوال دی : بیت المقدس وو، اریحا، رمله، شام، اردن، فلسطین، تدمُر، ایلیا، بَلْقاء یا مصر وو۔ لیکن ابن کثیرؒ وئیلی دی چه صحیح دا ده چه دا بیت المقدس دے۔

**فَكُلُوْا** : فاء ئے راوړه ځکه چه دا د تعقیب دپاره ده نو خوراك هم د داخلیدو نه روستو وی او په سورة الاعراف کښې (وَكُلُوْا) کښې واو راوړے دے ځکه چه واو کښې تعقیب نهٔ وی بلکه د مطلق جمع دپاره وی یعنی اُوسیږئ او خوراك هم کوئ۔

نو دا آیتونه مونږ ته دا وائی چه تاسو دا اذکارِ شرعیه مهٔ بدلوئ او افعالِ شرعیه مهٔ بدلوئ ورنه هلاك کیږئ لکه څُونږ ډیر مقلدین دا کار ډیر کوی، احکام شرعیه بدلوی، په غلطو طریقو پرے عمل کوی چه کوم ئے مزاج غواړی۔

**(رَغَدًا)** (اَیْ كَثِيْرًا وَاسِعًا) (قرطبی) ځکه په دے شام علاقه کښې فراخیانے ډیرے دی۔ په رغد کښې فراخوالی د خوراك ته او په حیث شئتم کښې فراخوالی د مکاناتو ته اشاره ده۔

وادخلوا الباب : ددے دروازے نه مراد باب القریه (د کلی دروازه) ده، لکه پخوا به د هر کلی نه دروازه چاپیره وه۔ او همدا صحیح قول دے۔ بعضو وئیلی دی، باب المسجد مراد دے۔ لیکن دا قول ضعیف دے ځکه چه مسجد په هغه وخت کښې لا جوړ نهٔ وو۔ بعض وائی : باب القبه وه کوم طرف ته به چه موسیٰ علیه السلام مونځ کولو۔ مګر اول قول صحیح دے۔ قرطبیؒ وئیلی دی : دا دروازه اُوس مشهوره ده په باب حطه سره۔

**(سُجَّدًا)** (١) یوه معنی دا ده چه سجده د شکر اُوکړئ پس د داخلیدو نه۔ په داخلیدلو کښې سرے سجده نهٔ شی کولے۔ (او سجده د شکر په ډیرو احادیثو کښې راغلے ده، لکه حدیث د کعب بن مالك وغیره شو۔ کومو علماؤ چه نهٔ ده منلے نو هغوی ته دے باره کښې احادیث نهٔ دی رسیدلی)

(٢) دویمه ظاهره معنیٰ دا ده چه تاسو داخلیږئ نو سرونه الله تعالیٰ ته ښکته کړئ،

عاجزئ سره داخل شئ، لکه رسول الله ﷺ چه کله د فتح په وخت مکې ته داخليدو، نو سر ئې دومره ښکته کړے وو چه د خپل اوښ د څټ سره لګيدو. الله تعالیٰ ته ئې عاجزي کوله. نو دې سجدې نه مراد انحناء ده يعنې سر ښکته کړئ عاجزي الله تعالیٰ ته اوکړئ، الله تعالیٰ په دې باندې انسان نه رضا کيږي، د بخاري د روايت نه معلوميږي: (فَدَخَلُوا يَزْحَفُوْنَ عَلٰى اَسْتَاهِهِمْ) (بخاري) (دوي داخل شو په داسې حال کښې چه په کوناټو توليدل) ددې نه معلوميږي چه دا په ولاړه مراد ده يعنې مطلب ئې دا دے چه مونږه سر نۀ شو ښکته کولے، سر ئې اوچت کړے وو، په کناټو باندې روان وو. د الله تعالیٰ حکم ئې بالکل ماتولو، ګپ ورته ښکاره کيدلو.

**حِطَّة** : راجح دا ده چه دا د هغوی د استغفار کلمه وه. حطة حطة سره به ئې ذکر کولو او معنیٰ ئې دا ده چه اے الله! مونږ ته زمونږ ګناهونه اوبخه. (الحسن وقتادة)

يا: مونږ اقرار کړيدے په ګناهونو). څوك وائي: بله کلمه وه خو حطة سره ترې الله تعالیٰ تعبير کړيدے لکه تعوذ تعبير دے د (اعوذ بالله من الشيطان الرجيم) نه او تسميه تعبير دے د (بسم الله الرحمن الرحيم) نه. نو دا حطة هم يو تعبير دے. نو بيا بعض وائي: دے نه مراد کلمه د (لا اله الا الله) ده (عكرمةؒ). څوك وائي: (سبحان الله الحمد لله) کلمه مراد ده. څوك وائي: (اَسْتَغْفِرُ اللهَ) مراد ده. (ابن عباسؓ). دا ټول احتمالات پکښې دي خو داسې کلمه وه چه په هغې ټول ګناهونه رژيدل. او د الله تعالیٰ تعظيم پکښې راتلو. حطة د حط نه ماخوذ دے رژولو ته وئيلے شي. لکه (وَحُطَّ عَنِّيْ بِهَا وِزْرًا) . ظاهر دا ده چه لفظ د حطة باندې ورته امر شوے وو او عربي او عبراني دواړو کښې نږدې والے دے نو حطة کښې معنیٰ د ګناه رژيدلو پرته ده او همدا ظاهر د قرآن دے او حديث کښې (فَقَالُوْا حِنْطَةٌ) (نو هغوی حِنْطَة اووئيلو) نون ئې پکښې زيات کړو.

حافظ ابن کثيرؒ وئيلي دي: حاصل ددې دا دے چه دوی ته حکم شوے وو چه د فتح په وخت کښې دوی الله تعالیٰ ته په قول او عمل سره خضوع او عاجزي اوکړي او د خپلو ګناهونو اقرار اوکړي او د هغې نه استغفار او بخنه اوغواړي او د الله تعالیٰ د نعمتونو شکر اوکړي. (۱/۲۷۳)

**نَّغۡفِرۡ لَكُمۡ**: په دې ذکر اذکارو کښې دا فائده ده چه ګناهونه ورسره معاف کيږي.

**وَسَنَزِيۡدُ الۡمُحۡسِنِيۡنَ** :(۱) – (وَسَنَزِيْدُ اَجْرَ الْمُحْسِنِيْنَ مِنْكُمْ) يعنې تاسو کښې چه کوم

نیك عمله خلق دی هغوی له به زیات اجر ورکړم، کومو چه د سخی عبادت نهٔ دے کړے.(قرطبی) (۲) یا ستاسو ددے ذکر په وجه به ستاسو نیکیانے زیاتے کړم.

۳- یا عامه معنیٰ مراد ده (سَنَزِیْدُ الْمُحْسِنِیْنَ فِیْ اِحْسَانِهِمْ) چه نیکی مو کوله نو الله به درله احسان نور هم زیاتوی.(٤) یا دا چه نیك عمله به زیات کړو ځکه چه لږ کسان نیك عمله وی نو د هغوی د وجه نه الله تعالیٰ نور کسان نیك عمله او ښه کوی. نیك عملیٔ سره معاشره ښائسته کیږی. نو که تاسو ښه شویٔ، نو ستاسو په وجه به ستاسو اُولاد او ستاسو ملګری ښه شی محسنین به نور هم زیات شی.

(۵) یا دا چه نغفر او سنزید د دوه قسمه خلقو بدله ده، کوم کسانو چه من او سلویٰ کښی خیانت یا نور ګناهونه کړی وی نو ددے کلمے په وجه به د هغوی ګناهونه اُوبښلے شی او چا چه دا خیانت یا نور ګناهونه نهٔ وی کړی نو هغوی له به په سبب د دغه عباداتو ثواب زیات کړے شی.(تفسیر النیسابوری ۱ / ۲۲۹) (٦) یا دا چه څوك دغه طاعت په ښائسته طریقه سره اُوکړی نو د هغه ګناه به هم معاف شی او درجات به ئے هم اُوچت شی او اجر به ئے هم زیات شی.

او پدے کښی اشاره ده دے ته چه دا ذکر د نیك عملو کار دے. دے باندے سړے د احسان درجے ته رسیږی، او نور هم زیاتیږی.

محسن هغه دے چه د توحید عقیده ئے صحیح زده کړی وی او د خپل نفس ښائسته تربیت ئے کړے وی، او د فرائضو په ادا کولو ئے توجه کړی وی او نور مسلمانان د هغه د شر نه محفوظ وی.(قرطبیٓ، اللباب)

(۲) دارنګه علامه حرالیؒ وائی : احسان دیته وائی :

(اَلْبُلُوْغُ اِلَی الْغَایَةِ فِیْ حُسْنِ الْعَمَلِ) (نظم الدرر ۱/ ۱۰۱)

(محسن هغه چا ته وائی چه په نیك عمل کښی انتها درجے د حسن (ښائست) ته رسیدلے وی) او حسن د عمل په دوه څیزونو سره راځی یو دا چه په اخلاص او توحید سره وی، د شرك نه پاك وی او بل اتباع د سنت پکښی وی.

**فائده** : دلته ئے واو راوړو او په سورة الاعراف (۱٦۱) کښی ئے سَنَزِیْدُ الْمُحْسِنِیْنَ بغیر د واو نه راوړیدے. وجه دا ده چه دلته مجموعه مغفرت او زیادت یوه جزاء ده دپاره د مجموعه فعلینو چه هغه دخول د باب او قول د حطه دے او واو هم دپاره د جمع وی. او سورة الاعراف کښی تقسیم د دواړو جزاګانو دے په دواړه فعلینو باندے یعنی نَّغْفِرْ لَکُمْ

متعلق دے د قول د حِطَّةٌ سره او سَنَزِ الْمُحْسِنِيْنَ متعلق دے د دخول الباب سُجَّداً سره۔

(الرازی، اللباب ۱/۳۳۱ احسن الکلام)

فَبَدَّلَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا قَوْلًا غَيْرَ الَّذِيْ قِيْلَ لَهُمْ

پس بدل کړو هغهٔ کسانو چه ظلم ئے کړے وو وینا لره، وائے خــتــه غیر د هغے وینا نه چه ونیلے شوے وه دوی ته۔

فَأَنْزَلْنَا عَلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿۵۹﴾

پس راولیږلو مونږ په هغه کسانو چه ظلم ئے کړے وو بد عذاب د آسمان (د طرف) نه پدے وجه چه دوی نافرمانی کوله۔

**تفسیر** : په دے آیت کښ د دنیا تخویف بیانوی په ذکر کولو د عذاب په بنی اسرائیلو او سبب د هغے تبدیـل د ویـنـا دے۔ او دلتـه ئے تبدیل د قول ذکر کړو نو هرکله چه دوی ته په تبدیـل د قـول سره ظالـمـان اُوونیـل شـو او سزا ورکړے شوه نو په تبدیل د فعل سره به په طریق اولیٰ ظالمان وی، اوسخته سزا به ئے وی ځکه تبدیل د فعل غټ جرم دے۔

(فَبَدَّلَ) دا لـفظ متـضـمن دے معنیٰ د اَخَذَ لـره نـو پدے وجه په غیر الذی کښ اعتراض نهٔ پیدا کیږی چه دلته خو معنیٰ دا راوځی چه کومه وینا چه ورته کړے شوه نو د هغے نه غیر ئے بدله کړه نو بیا څنګه مستحق د عذاب شو؟۔ ځکه دوی خو په منقول ذکر کښ تبدیلی اُونـکـړه۔ نودلته معنیٰ دا ده چه دوی په بدله کښ واخسته وینا لره چه سیوا وه د هغه وینا نه چه دوی ته وئیلے شوے وه، نو بَدَّلَ په معنیٰ د اِسْتَبْدَلَ دے۔ (۲) یا بَدَّلَ په خپله معنیٰ دے یعنی بدل ئے کړو او د غیر نه مخکښ (اَخَذُوْا) (وائے خسته) لفظ پټ مراد دے۔

نو دوی دا لفظ بدل کړو او (حِنْطَةٌ فِيْ شَعْرَةٍ یا حِنْطَةٌ فِيْ شَعِيْرَةٍ) (غنم چه سره د وربشو نه وی) (یا حَبَّةٌ فِيْ شَعْرَةٍ) کما فی حدیث الصحیحین وغیرهما) وئیل ئے شروع کړل۔

بـعـض وائی داسے ئے وئیل : هطاً سُمعاثاً ازبةً مزبا) دا عبرانی ژبه ده یعنی دانے د غنمو سرے سـوریٰ کړے شوے چه په هغے کښ تور وبښته وی) اول قول حدیث کښ راغلے دے۔ لکه نن صبا بـعـض کـفـار وائـی اسـلام او مونځونه په ځائے پریده د خلقو د خیتو غم کول پکار دی، روټی، کپړا، مـکان ددے کوشش پکار دے۔ او بعض نام نهاد مسلمان بادشاهان هم دغه شان خبره کوی چه اسلام څه ته وائی (العیاذ بالله) ددے نورو څیزونو غم کول پکار دی۔

الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا : دوه ځل ورته الله تعالیٰ ظالمان اُووئیل او یو ځل فاسقان. (فَبَدَّلَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا) (عَلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا) دا د الله تعالیٰ د غضب الفاظ دي. ځکه چه دوی ډیر ظلم کړے وو.

(رِجْزًا) سَيِّءُ الْعَذَاب (بد عذاب) ته وئیلے شي. دا بد عذاب د طاعون بیماري وه. چه اُویا زره کسان پکښې اُووژلے شو (ابن زید) او یو حدیث کښې دي چه دا د مخکښنو امتونو دپاره عذاب وو او ددے امت دپاره شهادت دے. (۲) - بعض وائي : د رجز نه مراد غضب د الله تعالیٰ دے چه د بره نه پرے نازل شو. (ابو العالیة)

(مِنَ السَّمَاءِ) معنی ده : (مُقَدَّرًا مِنَ السَّمَاءِ) د آسمان نه مقرر وو. ځکه الله تعالیٰ بره دے.

(بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ) کله چه دوی نافرمانی او فسق شروع کړو نو الله تعالیٰ پرے عذابونه راولیږل. او ددے نه معلومیږي چه دوی کښې ددے مذکوره ګناهونو نه علاوه نور ګناهونه هم وو. بیا فسق ئې د ظلم نه روستو ذکر کړو. وجه دا ده چه ظلم کله ګناهِ صغیره ته وئیلے شي او فسق خاص دے د ګناه کبیره پورے نو معلومه شوه چه د دوی ظلم په درجه د ګناه کبیره کښې وو. غټ مجرمان وو.

## فائده-- د الفاظ شرعیه ؤ بدلول حرام دي:

دلته مفسرینو (جصاص، تفسیر کبیر، بدائع التفسیر د ابن القیم) لیکلی دي چه دا آیت دلیل دے چه اذکار شرعیه او الفاظِ نبوی بدلول سبب دے د عذاب د الله تعالیٰ. (فَالطَّاعُوْنُ بِالرَّصَدِ لِمَنْ بَدَّلَ قَوْلًا اَوْ فِعْلًا الَّذِیْ اُمِرَ بِهٖ) (طاعون په انتظار د هغه چا کښې دے چه قول او فعل کښې تبدیلی کوی کوم باندے چه دهٔ ته حکم شوے وی) او هغه په طور د عبادت وی.

قرطبیؒ وئیلی دي : چه په دین کښې زیادت کول او په شریعت کښې ابتداع (بدعت پیدا کول) ډیر لوئی خطر او سخت ضرر دے. ځکه چه تغییر په یوه کلمه د توبه کښې سبب د عذاب دے نو ستا څه ګمان دے په بدلولو د صفاتو د الله تعالیٰ. او علامه جصاص، امام رازی او ابوحفص الدمشقیؒ په اللباب کښې پدے مقام کښې د اذکار او اقوال شرعیه د بدلولو تفصیل ذکر کړیدے. او وئیلی ئې دي چه شریعت کښې کوم اذکار راغلی دي نو د هغې تبدیل ناجائز دے نو د قرآن کریم قراءت په فارسیؤ کښې یا تکبیر تحریمه او تعوذ او تسمیه په فارسی یا بله ژبه سره اُووائي. یا د الله اکبر او اعوذ بالله او بسم الله په ځائے نور کلمات ادا کړی. ددے وجه نه حدیث د صحیحین وغیره کښې راغلی دي چه براء بن عازب

ﷺ ته رسول الله ﷺ په دعاء د خوب کښې (وَبِنَبِيِّكَ الَّذِیْ أَرْسَلْتَ) اُوخودلو نو هغه چه خانله یادولو نو (وَبِرَسُوْلِكَ الَّذِیْ أَرْسَلْتَ) ئې اُوونیلو نو نبی ﷺ هغه رد کړو اګرکه په ورسوللك کښې ډیره مدحه ده په نسبت د نبیك سره. نو دا دلیل دے چه پیغمبری الفاظ په نورو الفاظو بدلول -اګرکه هغه ستا په ذهن کښې راجح ښکاری- صحیح نهٔ دی.

دارنګه په دے کښې داخل دی هغه څوك چه د شرعی درود الفاظ بدلوی په نورو الفاظو سره لګه درود تاج او درود لکهی او په جنازو کښې غلط درودونه وئیل وغیره یا په دعا د اَللّٰهُمَّ أَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ کښې د ځان نه نور کلمات زیاتول لکه (حَیِّنَا رَبَّنَا بِالسَّلَامِ وَأَدْخِلْنَا دَارَكَ دَارَ السَّلَامِ) . دارنګه مسنون اذکار پریخودل او د ځان نه اذکار جوړول او په هغے باندے عبادت کول. دارنګه الله تعالىٰ ته د خدائے نوم وئیل، د اذان په دعاء کښې (وَالدَّرَجَةَ الرَّفِيْعَةَ وَارْزُقْنَا شَفَاعَتَهُ) زیاتول، دارنګه په اذان کښې حی علی خیر العمل زیاتول، نیتونه د ځان نه جوړول (نَوَيْتُ أَنْ أُوَدِّیَ لِلّٰهِ تَعَالىٰ أَرْبَعَ تَكْبِيْرَاتِ الْجَنَازَةِ) دارنګه سورة الضحىٰ کښې تکبیرونه وئیل وغیره. یا د سورة یٰس په هر مُبِيْن کښې اذان وئیل. دا ټول منع او ناکاره بدعات دی، دا آیت او دا حدیث پرے دلیل دے.

وَاِذِ اسْتَسْقٰى مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ فَقُلْنَا اضْرِبْ بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ ؕ

او کله چه اُوبه طلب کړے موسیٰ (علیه السلام) دپاره د خپل قوم نو مونږ اُوونیل اُووهه په امسا خپلے سره (دغه) کاڼړے

فَانْفَجَرَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ؕ قَدْ عَلِمَ كُلُّ اُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ ؕ

نو روانے شوے د هغے نه دولس چینے، په تحقیق سره معلومه وه هرے یوے ډلے ته خپل ځائے د سکلو (ګودر)،

كُلُوْا وَاشْرَبُوْا مِنْ رِّزْقِ اللّٰهِ وَلَا تَعْثَوْا فِى الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ ﴿٦٠﴾

(مونږ اُووئیل) خورئ او سکئ د رزق د الله نه، او مهٔ ګرځئ په زمکه کښې فساد کونکی.

**تفسیر:** کله چه دوی په میدان تیه کښې پراته وو نو د دوی اُوبو ته ضرورت وو او د دریاب اُوبه خو ښُکل کیږی نهٔ او دا قوم تګی وو، نو دوی موسیٰ (علیه السلام) ته شکایت اُوکړو، هغه د

الله تـعـالیٰ ته دعاء اُوکړه چه اے الله ! زما قوم تنگے دے، دوی باندے باران اُولیږه۔ نو الله تعالیٰ ورته اُوفرمایل : دغه امسا باندے کاڼړے اُووهه، اُوبه به راوځی، موسیٰ علیه السلام دغه شان اُوکړل نـو د بنـی اسرائیـلو د دولسـو قبیلو دپاره دولس چینے راپیدا شوے چه هرے قبیلے ته خپله خپلـه چینه متعین شوه۔ او په دے طریقه ئے ژوند تیرولو چه اختلافات ئے رانهٔ شی۔ ځکه بنی اسرائیل جګړه مار قوم وو۔ نو په دے آیت کښی دا بل نعمت ذکر دے۔

اِسۡتَسۡقٰى : د اِسۡتِسۡقَـاء معنیٰ ده د اُوبو او د باران طلب کول۔ دلته جار مجرور پټ دے (مِنۡ رَّبِّهٖ) یعنی د خپل رب نه ئے باران طلب کړو۔

**فوائد** : (۱) دا آیـت دلیـل دے چـه معجزات من جانب الله دی، د موسیٰ علیه السلام په علم او قدرت کښی دا نهٔ وه چه د کاڼړی نه اُوبه راوباسی۔

(۲) انبیـاء عـلیهـم الـسـلام هـم د الله تـعالیٰ محتاج بندګان دی د هغوی په لاس کښی څه قدرت نشته چه بارانونه اُوکړی او خپل قوم خړوبه کړی۔

(۳) استـسـقـاء کـول او په دے کـښی مونـځ کـول یـا صرف په دعاء باندے اکتفاء کـول سنت طریـقـه ده او دا د نبی ﷺ طریقه وه چه د الله تعالیٰ نه به ئے باران غوختلو ځکه باران ته د امت ډیـر ضرورت وی، او نبی ﷺ به چه کله استـسقاء کوله نو مانځه دپاره به بهر میدان ته وتلو (مُتَبَذِّلًا خاشعًا خاضعًا) په زړو جامو کښی او په عاجزئ سره، دے وخت کښی د زړونو د سختوالی د وجه نه خوك د الله تعالیٰ نه سوال نکوی بلکه د موسمیاتو ماهرینو او ریډیو او ټی وی نـه مـعـلومات کوی، او ددے نه ماړهٔ دی چه د الله تعالیٰ نه د باران سوال اُوکړی او شرعی استـسقاء ته حاضری اُوکړی۔

کله کله نبی ﷺ د جُمعے په ورځ په خطبه کښی د باران دپاره دعاء کړیده۔ او کله به په عام حالت کښی منبر ته اُوختلو او دعاء به ئے په شریکه اُوکړه۔ او د باران په غوختو کښی د عربو د جاهـلیـت والو طریقه دا وه چه غوا به ئے راوُنیوله او د هغے د لکئ پوزے به ئے تونے غوټه کړے او بیا به ئے اُور وراچولو او هغے ته به ئے بَيۡقُوۡرَة مُسَلِّعَة وئیـله۔ نو غوا به منډے وهلے نو دوی به وئیـل : اُوس بـه بـاران کیـږی، نو دا یو غلط رواج وو، حیوان له به ئے ضرر ورکولو، بـعـضـو بـه د ستـورو په پریوتو او راختو کښی باران ګنړلو۔ کله به ئے وئیل مِجدح ستورے چه پـریـوزی نـو بـاران کیـږی۔ او دا رواجونه زمونږ په دے امت کښی هم موجود دی چه کله چـمـچـمیر غواړی۔ او په خلقو باندے اُوبه اچوی او بعضے قبرونو باندے اُوبه اچوی او په دے

کښې باران کمېږي دا ټول بدعات او ناروا کارونه دي۔
بِعَصَاكَ : الله تعالیٰ داسې عظيم قدير ذات دې چه د موسى عليه السلام دغه يوې امسا نه ئې مختلف کارونه اخستل، درياب ئې پرې اُوچ کړو او لارې پکښې جوړې شوې او دلته ئې اُوچ کاڼړې اُووهلوتو اُوبه ئې ترې اُوويستلې، او د فرعون مخې ته به ئې ګوزار کړه نو اژدها به ترې جوړه شوه هغه ذات قادر على الاضداد دې۔
او امسا ګرځول زمونږ د نبي ﷺ طريقه هم وه څکه پدې کښې ډيرې فائدې دي چه هغه قرطبيؒ په تفسير د سورة طه کښې ذکر کړيدي۔ چه دا ستره جوړيدې شي، د کوهې نه پرې اُوبه راويستې شي، مار لړم او دشمن وغيره مدافعت پرې کيږي او په منزل کښې د انسان مدد پرې کيږي، او د بچو او اهل د يرولو او تربيت کولو ذريعه ده۔ نو دلته وقف دې۔ موسىٰ عليه السلام هغه کاڼړې په اَمسا سره اُووهلو نو دولس چينې روانې شوې۔
الْحَجَرَ : پدې کښې ابوحيان په البحر المحيط کښې څوارلس اقوال ذکر کړيدي چه دا کومه کتيه وه؟ (۱) ظاهر دا ده چه قرآن کريم ددې تعيين نهٔ دې کړې نو بس هره کتيه چه وي په معلومولو کښې ئې څه فائده هم نهٔ ښکاري۔
(۲) بعض وائي : دا هغه کتيه وه چه موسىٰ عليه السلام نه ئې جامې تختولې وې۔ او تفسير ماجدي کښې د انګريزانو سياحانو تصديقات نقل کړيدي چه په هغوی کښې بعضو ليکلي دي چه دغه کتيه اُوس هم شته دې چه تقريباً پنځلس فټه دنګه ده او مخې طرف ته لږه مائله ده او د (ليجا) په وسيع وادي کښې د راسِ سفسفه خواته موجوده ده۔ (احسن الکلام)
(۳) د تورات په سفر الخروج کښې راغلىٰ دي چه دا هغه کتيه ده چه الله تعالىٰ د موسىٰ عليه السلام سره ددې نه خبرې کړې وې او دا په جبل حوريب کښې موجوده ده۔ (التنوير)
فانفجرت : سورة الاعراف کښې فانبجست راغلې دې۔ انفجار ډيرې اُوبه او انبجاس لږې اُوبه روانيدو ته وائي نو اول کښې لږې اُوبه روانې شوې او بيا ډيرې شوې۔ دلته تعداد النعم دې نو څکه ورته ډيرې اُوبه يادوي۔
قَدْ عَلِمَ كُلُّ أُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ :
**نکته** : دې نه دا فائده حاصليږي چه په يوه کورنۍ کښې اختلافات ډير شي نو د هغې د حل طريقه يوه دا ده چه ټول خلق متفيان شي، که ډير خلق په يو ځائې اُوسيږي نو د هغوی ژوند تيريږي څکه چه د يو بل حق به پيژني او يو بل ته به درګذر او معافي کوي او

احسانات بـه کـوی نـو اختـلافـات بـه ختـم شی، او کـه نـهٔ وی نـو بیا ډیے بیـل بیـل شی نـو پـه بیلتون سره هم اختلافات ختمیږی۔

**کُلُوۡا وَاشۡرَبُوۡا مِنۡ رِّزۡقِ اللّٰهِ**: مرزان او ترنجبین او دا مزیدارے اُوبـه څکئ او مزے کوئ۔ او په ځان ئے مه حراموئ او دارنګه صبا دپاره ئے مه ذخیره کوئ۔

مِنۡ رِّزۡقِ اللّٰهِ: ټـول رزقـونـه د الله تـعالیٰ د طرفـنه دی لیکن دلته ئے الله تعالیٰ نسبت ځکه اُوکړو چه دا بغیر د اسبابو نه دوی ته ملاویدل، کرل ریبل، کوهیان وستل وغیره پکښ نهٔ وو۔

وَلَا تَعۡثَوۡا فِی الۡاَرۡضِ مُفۡسِدِیۡنَ : تَعۡثَوۡا (عَثَا یَعۡثُوۡ) خپـلـه معنیٰ د فساد کولو ده لکه حدیث د دجال کښ راځی (عَاثٍ یَمِیۡنًا وَّشِمَالًا) ۔ (یعنی دجال به په زمکه کښ ښی او ګس طرفته د فساد دپاره ګرځی) لیکن مُفۡسِدِیۡنَ (حال) ئے د تاکید دپاره ذکر کړو۔ یعنی فساد مه کوئ په زمکه کښ فساد کونکی۔ بیا پکښ تجرید کیږی نو د تَعۡثَوۡا نه د فساد معنیٰ جدا کړے شی او صرف معنیٰ د ګرزیدو پاتے شی۔

**فائده عجیبه** : د فساد نـه ئے خصوصی ولے منع کړل ؟ ځکه چه سړے ځوان وی، خوراك ښکاك کوی، برابر وی او اُوزګار هم وی نو بیا ترے غټ مفسد جوړیږی، ددے وجه نـه الله تـعالیٰ عام بندګان په کارونو مشغول کړیدی، که نه وی، الله تعالیٰ کولے شو چه دے ټولو ته ئے تیاره ورکولے، ترکاری به هم پهیدلے او ډوډئ به هم پخیدلے لکه څرنګ چه اُوبه پهیږی خو بیا به دنیا د فساد نه ډکه شوی وے، دا خو الله تعالیٰ انسانان په کارونو مشغول کړی دی۔ د عالـم نه د فساد د ختمولو دپاره۔ او امتحان هم پکښ غرض دے چه دوی ددے کارونو سره د الله تعالیٰ بندګی کوی او که نه ؟ یو شاعر (ابو العتاهیه) وائی : ۔

إِنَّ الشَّبَابَ وَالۡفَرَاغَ وَالۡجِدَه مَفۡسَدَةٌ لِلۡمَرۡءِ اَیُّ مَفۡسَدَه

(شباب (ځوانی)، فارغوالے، او مالداری سړی له پوره خرابونکی دی)

مګر که الله تعالیٰ په انسان باندے رحم اُوکړی۔ بل دے کښ د یهودو بد مزاج ته اشاره ده چه دوی کښ فساد دے، بل په فساد سره الله تعالیٰ ناراض کیږی ځکه د اول د سورت نه لفظ د فساد شروع شویدے تقبیحاً له۔ (ډدے د قباحت دپاره)

وَاِذۡ قُلۡتُمۡ یٰمُوۡسٰی لَنۡ نَّصۡبِرَ عَلٰی طَعَامٍ وَّاحِدٍ فَادۡعُ

او کله چه اُووئیل تاسو اے موسیٰ! هیچرے مونږ صبر نهٔ کوو په یو قسم طعام باندے، پس دُعا اُوغواړه

لَنَا رَبَّكَ يُخْرِجْ لَنَا مِمَّا تُنْۢبِتُ الْاَرْضُ مِنْ بَقْلِهَا

زموږ دپاره د رب خپل نه چه راوباسی موږ دپاره د هغه څه نه چه زرغونوي ئې زمکه، د هغې د ترکاریانو (سبزیانو) نه

وَقِثَّآئِهَا وَفُوْمِهَا وَعَدَسِهَا وَبَصَلِهَا، قَالَ

او بادرنګ او (ترې) د هغې نه او د اوګې د هغې نه او د دالو د هغې نه او د پیازو د هغې نه. اُووئیل موسیٰ علیه السلام:

اَتَسْتَبْدِلُوْنَ الَّذِیْ هُوَ اَدْنٰی بِالَّذِیْ هُوَ خَیْرٌ،

آیا په بدل کښې اخلئ تاسو هغه شے چه هغه معمولی دے په مقابله د هغه شی کښې چه هغه ډیر غوره دے،

اِهْبِطُوْا مِصْرًا فَاِنَّ لَكُمْ مَّا سَاَلْتُمْ، وَضُرِبَتْ

(نو) کوز شئ یو ښارته، پس یقیناً ستاسو دپاره (په دے ښار کښې) هغه شے دے چه غواړئ تاسو او اُووهلے شو

عَلَیْهِمُ الذِّلَّةُ وَالْمَسْكَنَةُ وَبَآءُوْا بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ، ذٰلِكَ

په دوئی باندے ذلت (رسوائی) او خواری (غریبی)، او اخته شو په غضب د الله، دا (غضب، ذلت او مسکنت)

بِاَنَّهُمْ كَانُوْا یَكْفُرُوْنَ بِاٰیٰتِ اللّٰهِ وَیَقْتُلُوْنَ النَّبِیّٖنَ بِغَیْرِ الْحَقِّ،

په سبب ددے دے چه یقیناً وو دوی چه کفر به ئې کولو په آیتونو د الله او وژل به ئې پیغمبران په ناحقه (بغیر د جرم شرعی نه)

ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّكَانُوْا یَعْتَدُوْنَ ﴿٦١﴾

دا (کفر) په دے وجه ووچه دوی نافرمانی کوله او وو دوی د حد نه تیروتونکی۔ (زیاتے کونکی)۔

**تفسیر** : په دے آیت کښې الله تعالیٰ دویم عذاب ذکر کوی په بنی اسرائیلو چه هغه ذلت او مسکنت او غضب دے چه سبب ددے ناشکری وه یعنی دا دومره ناشکره قوم دے چه د

الله تعالیٰ د نعمتونو په مقابله کښې خپل خواهشات رامخکښې کوی۔ نو الله تعالیٰ پرې ذلت راوستو او په دوی کښې نور خباثتونه هم وو چه هغه کفر او قتل د انبیاؤ او عصیان او اعتداء چه ددې جرمونو په نتیجه کښې په دوی باندې همیشه دپاره غضب او ذلت مسلط شو نو بس دوی چه په دنیا کښې په هر ځائے کښې اُوسیدلی دی نو قومونو دوی لره ذلیله کړیدی، او دوی به خپله همیشه ذلیله وی، که د دوی سره دولت او حکومت هم راشی نو په دوی باندې به د ذلت او مسکنت ځادر غوړیدلے وی۔

واقعه داسې وه چه کله چه دوی میدان تیه کښې پراته وو، او د الله تعالیٰ د طرفنه ورته تیاره میلاویده نو دوی ناشکری شروع کړه او دا ئے اُووئیل چه یوقسم طعام دې۔ (ترنجبین او مرزان) نور څه پکښې نۀ راځی نو ځان ئے نازولے کړے وو، ته به وائے چه ډیرې غټې مجاهدې او کارنامې ئے کړیدی نو د موسیٰ ﷺ نه ئے درخواستونه شروع کړل چه مونږ ته سبزی، دال مسور، پیاز اُوګه پکار ده، موسیٰ ﷺ اُورټل او منع ئے کړل چه تاسو څنګه خلق یئ چه لذیذ او پاکیزه خوراکونه پریدئ چه تیار راځی او د دغه څیزونو مطالبه کوئ، خو دوی نۀ منع کیدل. نو موسیٰ ﷺ ورته اُوفرمایل چه دا څیزونه خو په ښارونو کښې ملاویږی۔ ځائله کارونه کوئ او دا څیزونه پیدا کوئ نو الله تعالیٰ دوی په ذلت او مسکنت اخته کړل او مرزان او ترنجبین ئے پرې بند کړل بیا دلته د مفسدینو حال بیانیږی ورنه په دوی کښې نیکان خلق هم وو، د موسیٰ ﷺ ټول ملګری خراب نۀ وو خو الله تعالیٰ دې موجوده بنی اسرائیلو ته فرمانی چه ستاسو مشران داسې بد اخلاقه او خیټه ور خلق وو۔ د خیټو دپاره هغوی د موسیٰ ﷺ خبره نۀ منله نو پدې کښې اشاره ده چه موجوده اهل کتاب د خیټو دپاره د آخرنی نبی (محمد رسول الله ﷺ) خلاف کوی، که انسان دنیا شاته ګوزار کړی نو په مخالفت کښې به نۀ واقع کیږی۔

**فائده** : بیا ددې څیزونو خوراك ناروا نۀ دې لیکن دوی دا په طریقه د ناشکرئ سره غوختل چه الله ورله یو نعمت ورکولو او دوی اُووئیل دا مونږ نشو خوړلے، (لن نصبر) لفظ ئے خطاء وو۔ که دوی داسې وئیلی وې چه اے د الله رسوله ! یا ئے وئیلی وې چه اے موسیٰ ﷺ ! مونږ یو درخواست کوو که ته زمونږ نه نه ناراضه کیږی او الله تعالیٰ مونږ نه نۀ ناراضه کیږی نو دا دې الله تعالیٰ بدل کړی او خپله ئے هم د الله تعالیٰ نه غوختلی وې نو کیدې شی چه الله تعالیٰ ورله بدل کړی هم وې۔ خو دوی ځانونه په الله تعالیٰ نازولی کول

او جرأت ئې په الله تعالیٰ کولو- چه مونږ پدې خوراکونو صبر نشو کولې، مونږ له دې نور طعامونه راشي !- (۲) دويم دا چه پدې مطالبه کښې دا نقصان وو چه د الله تعالیٰ د رسول په مقابله کښې وه، موسیٰ ﷺ دوی ته اُوويل : چه دا طعامونه مهٔ غواړئ نو دوی خپله رايه د هغه په رايه مقدمه کړه او د هغه خبره ئې ګوزار کړه- نو ځکه الله تعالیٰ ورله سزا ورکړه- او دا مرض زمونږ پدې امت کښې ځومره زيات دې چه خپله رايه او د خپل يو ليډر، مشر او امام خبره او رايه د الله تعالیٰ د رسول په خبره مخکښې کوی- والله المستعان-
دارنګه ددې سزا سبب يواځې دا مطالبه نهٔ وه بلکه دوی کښې نور مرضونه هم پيدا شوی وو چه انبياء وژل، اعتداء او عصيان کول-

**طعام واحد**: دلته **سوال** دې چه طعامونه خو دوه وو- نو ځنګه طعام واحد وائی ؟

**جواب**: دلته يو نوع طعام مراد دې- يعنی هر وخت کښې دا يوه نوع طعام راځي- (بحر العلوم) (۲) يا دا چه يو په منزله د اُوبو وو او دا بل په منزله د ترکارئ وو- (كَانُوا يَعْجِنُونَ أَحَدَهُمَا بِالآخَرِ) (عبد الرحمن بن زيد بن اسلم) او دواړه به ئې يو ځائې کول- نو يو طعام به ترې جوړ شونو دې مجموعې ته ئې يو ونيلې دې- (طبرىؒ، بغوىؒ)
(۳) يا دا چه وحدت نه مراد دا دې چه تبديلی پکښې نهٔ راځي- (اللباب)-

## د دعاء مطالبه د بل چا نه څه حيثيت لري ؟

فَادْعُ لَنَا رَبَّكَ :دیته د ژوندی په دعاء سره وسيله نيول وائی- او د يو نيک عمله سړی دعا وسيله کول جائز دی چه هغه ژوندې وی او تا له دعا غواړی، لکه نبی ﷺ ته عمر فاروق ﷺ راغلو چه زه عمرې له ځم نو نبی ﷺ ورته اُوفرمايل : (أَشْرِكْنَا يَا أُخَيَّ فِيْ دُعَائِكَ) (ابو داود، ترمذی) (مونږه هم دعاګانو کښې شريک کړه) نو نبی ﷺ د عمر ﷺ نه مطالبه د دعاء کوی، ليکن بل طرفته د ابوذر غفاری ﷺ نه نقل دی چه د خلقو نه ډيرې دعاګانې مهٔ طلب کوه بلکه ته نيک عمله شه نو د مؤمنانو په دعاګانو کښې به ستا برخه وی کوم چه په تشهد کښې کيږی-

شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله فرمائی : په هر وخت کښې د هر چا نه د دعا مطالبه بدعت دې لکه پدې وخت کښې دا زمونږ عادت جوړ شويدې چه خلك هر نيك او بد ته وائی دعا کوه- دا طريقه د صحابه کرامو نهٔ وه بلکه په يو وخت کښې به ئې چرته د يو نيك

عمله سرې نه د دعاء مطالبه اوکړه. (مجموع الفتاوی)
تُنۢبِتُ الۡاَرۡضُ : زمکه سبب د انبات (راز رغونولو) دے نو ځکه ئے هغے ته نسبت کړيدے او کله فاعل حقيقي ته نسبت کيږي، نبي ﷺ فرمائي (اِنَّ مِمَّا يُنْبِتُ الرَّبِيْعُ الْبَقْلَ مَا يَقْتُلُ حَبَطًا) (صحيحين) نو سپرلي ته ئے نسبت د زرغونولو کړيدے نو کله کله سبب ته هم نسبت جائز دے. يعني د الله تعالیٰ په امر داسے کوي.
بَقۡلِهَا : ترکاريانو او سبزي جاتو ته وئيلے شي دائے ځکه غوختل چه دوي په مصر کښې پدے باندے اموخته وو.
قِثَّآءِ : بادرنګ (۲) تری.
فُومِهَا : (۱) اَلثُّوۡمُ : (يعنی اوږه) (مجاهد) (۲) بعض وائي : فوم غنمو ته وائي. (۳) ټولے دانے د غلے. اول قول غوره دے. ځکه بل قراءت کښې وَثُوۡمِهَا راغلے دے او ثوم اوږے ته وئيلے شي.
عَدَسِهَا : مسور دالو ته وئيلے شي. بصل : پياز.
ددے ټولو د غوختلو وجے دا دي : چه قثاء : بارد رطب دی او ثوم (اوګه) حار يابس ده او عدس بارد يابس (نفاخ) دی، (باد پيدا کوي). او بصل حار رطب دی او چه پاخه شي نو بيا بارد رطب شي. (بحر المحيط، روح المعاني) او دا څيزونه د يو بل سره يو ځائے پخولے هم شي.او بيا پکښې د يو صفت غلبه په بل راشي نو د عام انسانانو د ټولو مختلفو طبائعو سره برابر شي.
(بِالَّذِيۡ هُوَ خَيۡرٌ) غوښه په دنيا کښې ډير غوره شے دے خاصکر د مارغانو غوښه او بيا خاصکر هغه غوښه چه د الله د طرف نه راځي نو هغه د برکت نه هم ډکه وي، الله تعالیٰ منتخبه کړي وي او دغه شيان صحت له دومره طاقت نۀ ورکوي معمولي شيان دي، انسان چه غوښه ځلويښت ورځو کښې اونه خوري نو عقل کښې ئے کمے راځي. دارنګه من او سلوئ بے تکلفه ملاويدل او ددے څيزونو په پيدا کولو کښې تکليف هم دے، نو هغوي نۀ حصاريدل چه مونږ مخامخا دا غواړو. دا څيزونه د بني اسرائيلو دپاره هم حلال وو او زمونږ ددے امت دپاره هم حلال دي په راجح قول د علماؤ کښې خو صرف د مانځه په وخت او د مسجد يا ګنړے ته د تللو په وخت به ئے نۀ استعمالوي، ددے نه نبي ﷺ منع فرمائيلے ده چه څوک پياز اوګه استعمال کړي نو بيا دِے زمونږ مسجد ته نۀ راځي. بعض خلق ئے په مسجد کښې خوري نو دده به څه حال وي ؟.
اَتَسۡتَبۡدِلُوۡنَ : همزه دپاره د استفهام توبيخي ده. پدے کښې سخته زورنه ده چه ستاسو دا

مطالبه غلطه ده. په باب د استبدال کښې قاعده دا ده چه ددے مفعول مطلوب وی (الَّذِیْ هُوَ اَدْنٰی) او مدخول د باء ئے متروك وی (بِالَّذِیْ هُوَ خَیْرٌ) معنیٰ دا ده چه تاسو ادنیٰ شے اخلئ او غوره شے پریدئ. (البحر المحیط)

**بِالَّذِیْ هُوَ خَیْرٌ** : من او سلویٰ کښې خیر زیات دے د دوی د مطلوبه خوراکونو نه او ددے خیریت شپږ وجے امام قرطبیؒ او بوحیانؒ ذکر کړیدی (۱) د یو شی غوره والے په قیمت راځی نو د مَنّ او سلویٰ قیمت ډیر زیات دے په نسبت د دغه پنځو څیزونو. (۲) په مَن او سلویٰ سره الله تعالیٰ په دوی احسان کړے او ورته ئے د هغے په خوراك امر کړے وو نو معلومه شوه چه د هغے په خوړلو کښې شکر د الله تعالیٰ دے. او دغه پنځه څیزونه داسے نهٔ دی. (۳) مَنّ او سلویٰ په لذت او خوند او مزیدار والی کښې ضرور افضل دی د دغه څیزونو نه. (٤) من او سلویٰ بے تکلیفه او بغیر د مشقت نه ملاویدل او دغه څیزونه په زمینداریٔ او مشقتونو سره ملاوېږی. د خیټے دپاره به انسان د الله تعالیٰ د بندګیٔ نه پرے اُوځی. (۵) د مَنّ او سلویٰ په حلالوالی کښې هیڅ شك او شبهه نهٔ وه ددے وجه نه هغے ته ئے طیبات وئیلی وو او ددے څیزونو په حاصلولو کښې د زمینداریٔ سامان او بیع او شراء لره دخل وی او په هغے کښې ډیر شبهات راتلے شی. (٦) په مَنّ او سلویٰ کښې غذائیت او طبی فوائد دومره دی چه هغه په دغه څیزونو کښې نشته، ځکه سلویٰ غوښه ده او خاصکر د مرز په غوښه کښې ډیر طاقت، غذائیت او فوائد وی. او غوښه سید الادام فی الدنیا والآخره ده. (۷) دارنګه من او سلویٰ الله تعالیٰ منتخب کړی وو. او دغه خوراکونه د دوی انتخاب وو. او د الله تعالیٰ انتخاب ضرور د بنده په حق کښې غوره وی د بنده د انتخاب نه.

**فائده** : ډیر خوارکونه تیارول او د هغے استعمالول د انسان دپاره الله تعالیٰ جائز کړیدی خو په شرطونو باندے (۱) چه اسراف به پکښې نهٔ وی، (۲) وخت به پرے ډیر نهٔ مصرف کوی، چه صرف خیټه ئے نصب العین ګرځولی وی، (۳) او د الله تعالیٰ د ذکر او عبادت نه به پرے ځان نه ورانوی، (٤) او د فخر او کبر سبب به ئے نهٔ جوړیږی که دا شرطونه پکښې نهٔ وو نو بیا دداسے ډیرو خوراکونو نه ځان ساتل پکار دی. او که بغیر د تکلف نه ملاویدل نو د هغے استعمال بالکل جائز دے. هیڅ حرج پکښې نشته.

امام شافعی رحمه الله فرمائی : (طَلَبُ فُضُوْلِ الدُّنْیَا عُقُوْبَةٌ عَاقَبَ اللّٰهُ بِهَا اَهْلَ التَّوْحِیْدِ)
(د دنیا زیاتی خواهشات طلب کول سزا ده چه الله تعالیٰ دا سزا موحدینو ته ورکوی) د

دوی د بعض گناهونو د وجه نه. اشاره ده چه توحید والو دپاره خو د الله تعالیٰ په بندگیٔ کښې وخت تیرول او د دنیا نه گوزاره حال ژوند تیرول پکار دی۔

اِهْبِطُوْا : دلته وقف دے، معنیٰ دا ده چه دوی نهٔ حصار یدل او خپله مطالبه ئے کلکه نیولے وه، چه که ادنیٰ وی هم مونږ ئے غواړو. نو الله تعالیٰ ورته اُوفرمایل : اِهْبِطُوْا۔ بیا موسیٰ عليه السلام هم دوی دپاره دا دعاء طلب نکړه ځکه چه هغه ته معلومه وه چه دا هسے خواهش پرست او مزه خوښی دی، د الله تعالیٰ په منتخب کړو خوراکونو کښې سرکشی کوی۔

مِصْرًا : ۱- بعض مفسرین وائی : دا مشهور مصر د فرعون دے۔ یعنی کوم د ذلت ځائے نه چه تاسو راوتلی یئ نو هلته بیرته واپس لاړ شئ، ستاسو هم دغه ذلت خوښ دے، ځیٔ لاړ شیٔ خپل مالوف د ذلت نه ډک او خکته درجے غلامانه زندگی دوباره اختیار کړیٔ، هلته به درته دا ځیزونه فراخه ملاویږی او هغه اُوچت نصب العین پریدیٔ کوم دپاره چه تاسو منتخب شوی یئ۔ که دا مقصد شی نو بیا به دا د موسیٰ عليه السلام د طرف نه یو قسم تادیب او توبیخ وی او هغوی ته به شرم ورکول مقصد وی۔ چه تاسو خپله غلامانه زندگی رایاده کړیٔ او د الله تعالیٰ شکر اُوکړیٔ چه د ذلت نه ئے راخلاص کړیٔ او تیاره خوریٔ۔ او دا سید قطبؒ غوره کړیدے۔ (فی ظلال القرآن ۱ / ٤٤) وجه دا ذکر کوی چه مسکنت او ذلت او غضب راتلل به دوی باندے په دے مرحله کښې نهٔ وو بلکه دا د موسیٰ عليه السلام د زمانے نه څو نسلونه روستو اُوشو کله چه دوی انبیاء قتل کړل او اعتداء او عصیانانو کښې واقع شو۔ او پدے کښې دا راز هم وو چه تاسو خو دار الهجرة کښې یئ او څوك چه د دار الهجرة نه بیرته بغیر د څه عذر نه واپس کیږی نو هغه ذلیله کیږی او ثواب د هجرت ئے هم باطلیږی۔

(۲) اکثر مفسرین وائی : (مِصْرًا مِنَ الْأَمْصَارِ) یعنی تاسو چه څه طلب کویٔ نو دا خو بالکل معمولی شے دے، ددے دپاره دومره غټ درخواست او دعاء کولو ته ضرورت نشته بلکه یو ښار د ښاریو ته ورشیٔ هلته دا ځیزونه په کافی مقدار ملاویدے شی او همدا راجح ده ځکه مصراً نکره ده او که هغه معروف مصر وے نو بیا خو غیر منصرف پکار وو۔

وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ وَالْمَسْكَنَةُ : ذلیل هم شو او خواری هم وریاندے راغله، خواهشاتو کښې الله تعالیٰ دا مرض اچولے دے چه انسان ورسره ذلیل او رذیل او خوار کیږی۔ او دوی کښې اُوس هم دغه رذالت او ذلت موجود دے۔ دا خو ئے د دنیا حال شو۔

ضُرِبَتْ : د ضرب په صله کښې چه عَلیٰ راشی نو په معنیٰ د الصاق او الزام او احاطے سره

وی نو معنی دا ده چه ذلت پرے داسے احاطه اُوکړه لکه څنګه چه خیمه د کسانو نه تاوه وی، نو دا کنایه ده د احاطے او شمول او عموم نه او د لزومِ معنیٰ ده یعنی دوی پورے ذلت او مسکنة انختلو او ګیره ئے ترے واچوله د هر طرف نه۔

اَلذِّلَّةُ : (۱) د بدن ذلت هم پرے راغلو او مسکنة د مال سره تعلق لری یعنی بدنی او مالی ذلت باندے اختـه شـول۔ (۲) یا: ذلة، فقر القلب ته وائی یعنی زړه ئے هم ذلیله او فقیر او مسکنة : ظاهری فقیری، ظاهری بدن ئے هم ذلیله وی۔ (معالم)

حسنؒ وائی : مسکنة جزیے تـه وئیلے شی۔ لکه روستو زمانو کښې په دوی باندے د بادشاهانو د طرفه جزیے وهلے شوے وے۔ مفسر امام ضحاك بن مزاحم د عبد الله بن عباس ﷺ نه د ذلت او خوارئ دا مفهوم نقل کړیدے : (هُمْ اَهْلُ الْقِبَالَاتِ یعنی الْجِزْیَة)

(دوی به تل دپاره خلقو ته قلنګونه ورکوی په خپله به هیڅ طاقت او اقتدار نهٔ لری)

## د یهودو د ذلت بیان

او دا د قرآن کریم اخبار بالغیب دے چه صادق شویدے، هر یهودی به ذلیله او خوار وی، اګرکه ظاهری مالداره وی خو زړه به ئے ذلیله او خوار وی او اسلامی دور حکومت کښې به یهودیانو باندے جزیے مقررے وے، نو یهودیان که هر څومره مالدار وو، زړے زړے جامے به ئے اچولے او خان بـه ئے خوار ښکاره کولو دے دپاره چه زیاته جزیه ترے وانخستے شی۔ او دارنګه تاریخ شاهد دے چه څومره یهودیان تیر شویدی نو پدے تولو باندے نورو خلقو حکومتونه کړیدی او دوی ئے پکښې ذلیله کړیدی تردے چه مجوسو به د دوی نه جزیے او جبایات اخستل۔ دوی دومره غټ جرمونه کړی وو چه الله تعالیٰ همیشه دپاره په دنیا کښې ذلیلـه کړل او دغه غلط خویونه د دوی افراخ او بچو ته هم رانقل شویدی۔ نو دوی هم همغه شان ذلیله دی۔ مفسرین لیکی: «نشته دے هیڅ شخص زیات ذلیل او حرصناك د یهویانو نه» ۔ (هرځائے کښې چه یهودی ګورے نو ذلیله به وی او مسکنت به پرے راغلے وی۔ بلکه روستو سورة الاعراف (۶۷) آیت کښې راځی، الله تعالیٰ دوی سره دا وعده کړیوه (وَاِذْ تَاَذَّنَ رَبُّكَ لَیَبْعَثَنَّ عَلَیْهِمْ اِلٰی یَوْمِ الْقِیَامَةِ مَنْ یَّسُوْمُهُمْ سُوْءَ الْعَذَابِ) ۔ (چه قیامته پورے به په دوی باندے عذابونه رالیږی)، اُوس هم یهود په عذاب کښې ګرفتار دی اګرچه مسلمانانو باندے ظلمونه هم کوی او وژنی ئے هم لیکن بیا هم دوی په عذاب کښې ګرفتار دی، یوه

جینې ځان پورې بم اُوتړي او د دوی ډیر کسان پرې مردار کړي، په خوف کښې ژوند تیروي.
امام ابن کثیر رحمه الله د یهودیانو د ذلت او خوارئ مفهوم داسې نقل کوي: (لَایَزَالُوْنَ مُسْتَذِلِّیْنَ مَنْ وَجَدَهُمْ اِسْتَذَلَّهُمْ وَضَرَبَ عَلَیْهِمُ الصَّغَارَ) (که دوی هر څو مره مالداره شي همیشه به تېولو قومونو کښې ذلیل او سپك ګنړلې شي د چا چه پرې وَس بر شي دوی به ذلیله کوي او په دوی به د غلامۍ تاپې لګوي).
**سوال**: اُوس خو یهودیان مشهور دي په مالدارۍ او بادشاهي ورسره ده نو دلته څنګه وائي چه دا خوار دي؟ **جواب - ۱**: مونږ ته داسې ښکاره کېږي چه هغوی مالداره او دولت مند دي او پیسې ورسره دي او په نفس الامر کښې همدا دولت د دوی دپاره ذلت او مسکنت دې. اګرکه مونږ ته نې ذلت نهٔ ښکاري او الله تعالیٰ د هغوی د ذلت او مسکنة خبر ورکړیدې نو اګرکه مونږ ته ظاهره کښې مالدار ښکاري خو دوی ذلیله دي.
**۲- جواب**: مالداري سبب د عزت نهٔ دې. حدیث کښې دي: (لَیْسَ الْغِنٰی عَنْ کَثْرَةِ الْعَرَضِ) (مالداري په ډیرو سامانونو) او دولتونو او حکومتونو نهٔ ده) وَلٰکِنَّ الْغِنٰی غِنَی النَّفْسِ) (متفق علیه) (اصلي مالداري هغه ده چه زړه ئې غني او مالداره وي)
او یهودو کښې په زړه کښې غربت او فقر او فاقه او حرص لیکلې شویدې. (وَلَتَجِدَنَّهُمْ اَحْرَصَ النَّاسِ عَلٰی حَیٰوةٍ) نو د ذلت نه مراد حرص د دنیا دې.
**۳- جواب**: تفسیر ماجدي کښې ئې لیکلي دي چه نن صبا زمانه کښې اګرکه یهودیان په ظاهر کښې په دنیا کښې په مالدارۍ مشهور دي لیکن حقیقت کښې د هغوی مالداري صرف د خواصو یو څو کسانو ده او هر چه د هغوی عوام دي نو ډیر مفلسان دي څکه چه د هغوی نظام د سرمایه دارۍ دې چه په هغې نظام کښې عام خلق مفلس او ذلیل وي. او زه وایم چه اُوس هم یهود سره دبادشاهۍ نه ذلیله دي وجه دا ده چه د نصاراؤ د لاس نه لاندې دي، د هغوی غلامان دي، هغوی چه څه ورته وائي هغه کوي، نو دائې ذلت دې.
تفسیر معارف کښې داسې تحقیق کوي: په سورة آلعمران (۱۱۲) کښې الله تعالیٰ فرمائي: (ضُرِبَتْ عَلَیْهِمُ الذِّلَّةُ اَیْنَمَا ثُقِفُوْٓا اِلَّا بِحَبْلٍ مِّنَ اللّٰهِ وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ) (تاپه شویدې په دوی ذلت او بې قدري چرته چه موندلې شي مګر که دوی راتینګ کړي یو داسې ذریعه چه د الله تعالیٰ د طرفه وي یا د خلقو د طرفه وي) د الله تعالیٰ د طرفه ذریعه دا ده چه ایمان راوړي نو بس ذلت به ترې ختم شي، او د مخلوق د طرفه ذریعه دا ده چه د خلقو سره د صلح معاهده

اُوکړی، ددے یو صورت دا هم کیدے شی چه د مسلمانانو سره ئے صلح اُوشی یا د جزئے په ورکولو سره د مسلمانانو په ملك کښې اُوسیږی۔ یا الناس لفظ عام دے یعنی د نورو غیر مسلمو سره د صلح کولو په وجه د هغوی په پناه کښې راشی نو هله په امن کښې کیدے شی دا هله چه (الا بحبل) کښې استثناء متصل واخستے شی لکه دا صاحب کشاف غوره کړیدے۔ او ډیرو مفسرینو دا استثناء منقطع اغستے ده نو پدے صورت کښې به مطلب دا وی چه په قومی حیثیت سره خو به دوی ذلیله او خوار پاتے وی اگرچه د قانون الهی په لَمن کښې راتلو سره به د دوی ځنے کسان محفوظ شی یا د نورو خلقو ډاډ موندلو سره به په خپلے خوارئ او ذلت پرده واچوی۔ پدے طریقه سره د بعض مسلمانانو دا شبهات هم ختمیږی چه الله تعالیٰ د دوی ذلت او رسوائی بار بار بیان کړیده او حال دا چه په فلسطین کښې د دوی ریاست او حکومت قائم دے۔ ددے لنډ جواب دا دے چه دغه اسرائیلی حکومت د برطانیے او امریکے د یو چهاونړئ حیثیت لری، که دوی ترے لاس واخلی نو یو میاشت هم دغه حکومت قائم نشی پاتے کیدے، دوی ئے پُشت پناهی کوی۔ او د مغربی ملکونو په نظر کښې هم اسرائیل د دوی د غلام نه زیات بل حیثیت نهٔ لری۔ نو دوی د بل چا په پناهی کښې قائم دی او هغه هم سره د ذلت نه لکه چه مخکښې بیان شو۔

علاوه لا دا چه په دنیا کښې د تولو نه مخکښې یهود راغلی دی او حال دا چه په تولِه دنیا کښې دوی د فلسطین په یوه معمولی علاقه باندے ریاستَ کوی (چه هغه هم نیمه ده) چه دا د تولے دنیا په نقشه کښې د یوے نقطے حیثیت لری او بل خوا د نصاراؤ او د مسلمانانو (د تنزل په دے دور کښې هم) څو مره غټ غټ حکومتونه قائم دی دا ددے خبرے لوئی ثبوت دے چه الله تعالیٰ په یهودو باندے د ذلت او خوارئ تاپے وهلی دی چه تر قیامته پورے به پرے باقی پاتے وی۔

**فائده** : نبی ﷺ د داسے آیتونو نه استنباط کړیدے لکه په حدیث د بخاری کښې راغلی دی، ابوامامه ﷺ ایوه، جغ او څه سامان د دهقانئ اُولیدو نو وے فرمایل : ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی : (لَایَدْخُلُ هٰذَا بَیْتَ قَوْمٍ اِلَّا اَدْخَلَهُ اللّٰهُ الذُّلَّ) (بخاری ٢١٩٦) بَابُ مَا یُحْذَرُ مِنْ عَوَاقِبِ الْاِشْتِغَالِ بِآلَةِ الزَّرْعِ) (دا د چا کور ته نهٔ داخلیږی مگر الله تعالیٰ هغه کورته ذلت ورداخلوی) امام بخاریؒ ددے معنیٰ کوی چه پدے سره ذلت هله دے چه خلق کروندوته متوجه شی او جهادونه او نور فرائض دینیه ترے پاتے شی، مونځ نهٔ کوی یائے په پټی کښې کوی، د الله تعالیٰ بندگئ ته اُوزگار نهٔ وی نو دا ذلت دے۔او دا مطلب نهٔ دے چه هر څوك

چه د هقانی کوی نو هغه به ذلیله وی، ځکه چه صحابه کرامو کښې هم دهقانان موجود وو او ډیر ایمان والا کروندے کوی۔ مطلب دا چه دا کارونه او دا څیزونه غالباً سبب د ذلت دے خو بعضو دپاره به سبب نۀ ګرځی، د الله تعالیٰ نه به پکښې یره کوی۔

**فائده** : الله تعالیٰ دا سزا د ذلت هر هغه چا ته ورکوی چه د یهودو دغه صفات پکښې راشی لکه اهل بدع او فاسقان شو۔ د شاه ولی الله الدهلوی قول مونږ په سورة الفاتحه کښې ذکر کړے (اِنْ شِئْتَ اَنْ تَرٰی اُنْمُوْذَجًا مِنَ الْیَهُوْدِ) (که ته غواړے چه نمونه د یهودیانو پدے اُمت کښې اُوګورے نو د خپلے زمانے ناکاره علماؤ ته اُوګوره)۔ چه د یهودو به شان حق به پټوی او د یهودو به شان پردی مالونه به خوری او حق نه به منع کول کوی او د کافرو سره اُودریږی او د مؤمنانو سره ئے مینه کمه وی او کافرو سره ډیره وی، او ذلت هم پکښې وی چه ښه مالدار به وی د خلقو نه به زکاتونه اخلی او خپله زکوٰة نۀ ورکوی، خلقو نه سوالونه کوی او که څوك چنده ورکړی د مدرسے او طالبانو دپاره نو دوی ئے د ځان دپاره استعمالوی او پرواه نۀ لری چه دا حرام مال دے۔ او کار کم کوی او شهرت ډیر کوی دا هغه ذلت او مسکنت دے چه په بعض ملیانو کښې موجود دے، پدے وجه مالدارو خلقو ته مُلیان پدے سپك ښکاره شویدی۔ چه دا خو سوالګر دی، دا خو څه ضروری نۀ ده چه انسان لس مدرسے جوړے کړی او د هغے حاجات پوره کوی په خپل ذلت او چندو باندے۔ دوه کسان ډیر دی خو چه صحیح د دین کار کیږی او ستا ذلت پکښې نۀ وی۔

او حدیث کښې راغلی دی : (وَجُعِلَ الذِّلُّ وَالصَّغَارُ عَلٰی مَنْ خَالَفَ اَمْرِیْ)

(احمد، والبخاری فی ترجمة الباب)

(الله تعالیٰ ذلت او سپکوالے مقرر کړیدے هغه چا دپاره چه زما د امر او حکم مخالفت کوی) نو هر مبتدع او فاسق به ذلیله وی۔ او هر مخالف د سنت به هم ذلیل وی لکه الله فرمائی : اُولٰٓئِكَ فِی الْاَذَلِّیْنَ (مجادله/ ۲۰) ۔ دا کسان به ذلیله وی۔

(وَبَآءُوْ) باء : اخته کیدو او مستحق کیدو ته وئیلے شی۔ او دے کښې ئے د آخرت حال بیان شو۔ چه هلته به مغضوب علیهم وی، د الله تعالیٰ د رحمت نه به جدا وی۔

**بِغَضَبٍ** : دلته ئے عذابونه دوه بیان کړل او نعمتونه ډیر، اشاره ده چه د الله تعالیٰ رحمت د هغه په غضب مقدم دے۔

**ذٰلِكَ** : اشاره ده غضب، ذلة او مسکنة درے واړو ته په تاویل د مذکور سره۔ او دا دفع د

سوال ده چه صرف ددې ترکاریانو غوختلو په وجه پرې غضب اُوشو، دا خو د غضب سبب نه دې؟ نو الله تعالیٰ وجه بیانوی چه الله تعالیٰ هسې غضبونه په چا نهٔ کوی بلکه په دوی کښې نور مرضونه وو. غضب پرې ځکه راغلو چه دوی به د الله تعالیٰ د آیتونو تصدیق نهٔ کولو، د انبیاء علیهم السلام معجزات به ئې نهٔ منل. لکه اُوس هم دوی د قرآن تصدیق نهٔ کوی. دې سورة کښې د ایمان موضوع ده نو ځکه د هغې مقابل کښې ئې کفر لفظ راوړو. چه په آیتونو باندې کفر د ذلت سبب دې او د الله تعالیٰ په آیتونو ایمان د عزت سبب دې.

وَيَقْتُلُوْنَ النَّبِيّٖنَ : یعنی کوم داعین د حق چه د دوی خیر خواه وو، هغه به ئې قتلول. د خپلې خیر خواهی نه هم غافله قوم دې.

بِغَيْرِ الْحَقِّ : (حق نه مراد جرم دې) ناحقه به ئې وژل، هیڅ شرعی جرم به ئې نهٔ وو کړې، بلکه دوی ته به ئې د حق خبرې بیانولې ځکه ئې وژل. نو دا قید واقعی او اتفاقی دې، دپاره د زیات قباحت د دوی او احترازی نهٔ دې. او یو انسان چه قتلولې شی نو په یو د درېو سببونو چه د واده نه روستو زنا اُوکړی، یا مرتد شی یا قتل اُوکړی او په انبیاء علیهم السلام کښې دا یو کار هم نهٔ وو نو د هغوی قتلول ناحقه شو. لکه ددې سورة (۸۷) کښې راغلی دی (اَفَكُلَّمَا جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ) چه د دوی د خواهش مطابق خبره به ئې کوله نو دوی به خوښول او که د دوی د مزاج خلاف به وه. نو بیا به ئې تکذیب کولو او قتلول به ئې. اګرکه دوی به په زړونو کښې هم دا کار ناحقه او ناروا کار ګڼړلو لیکن عناد او ضد ړانده کړی وو.

## مسئله د قتل الانبیاء :

دا آیت دلیل دې چه انبیاء علیهم السلام وژل شویدی. او د ارادې د قتل معنیٰ کول د ظاهر د قرآن او د صحیح احادیثو خلاف دی. په قرآن کریم کښې لس آیتونو کښې قتل الانبیاء ذکر دې. او ظاهر د قرآن کریم د بعض اوهامو په وجه پریخودل تحریف وی.

او پدې باره کښې تقریباً (۱۶) احادیث راغلی دی. او اجماع د ټول امت ده سویٰ د شرذمه قلیله نه چه د هغوی د خبرې هیڅ تائید او اعتبار نشته.

۱ـ حدیث کښې دی : (اَشَدُّ النَّاسِ عَذَابًا رَجُلٌ قَتَلَ نَبِيًّا اَوْ قَتَلَهٗ نَبِيٌّ) (مسند احمد ۱/۴۰۷) ابن کثیر) (سخت عذاب والا هغه سړې دې چه نبی ئې وژلې وی یا نبی دهٔ لره قتل کړې وی) نو ګوره که نبی نهٔ وژلې کیدې نو دا خبره بیا څنګه صحیح کیده؟.

۲- سعید بن المسیب رحمه الله فرمائي: بخت نصر (بادشاه) دمشق ته راغلو وې لیدل چه د یحیٰی ﷺ وینې جوش وهلو نو د هغې باره کښې ئې تپوس اُوکړو، خلقو خبر ورکړو نو هغهٔ د یحیٰی ﷺ د وینې په بدله کښې اویا زره (۷۰۰۰۰) کسان قتل کړل نو د یحیٰی ﷺ وینه په آرام شوه. (البدایة والنهایة لابن کثیر ۲/۵۰) وقال اسناد صحیح)

۳- محمد رسول الله ﷺ د یهودو د زهرو دلاسه شهید شوی دے. او شهادت په توره او په زهرو یو شے دے. (بخاري، فتح الباري)

٤- عبد الله مسعود ﷺ فرمائي: (كَانَتْ بَنُو إِسْرَائِيلَ فِي الْيَوْمِ تَقْتُلُ ثَلَاثَمِائَةِ نَبِيٍّ ثُمَّ يُقِيمُوْنَ سُوْقَ بَقْلِهِمْ مِنْ آخِرِ النَّهَارِ) (ابوداود الطیالسي، ابن کثیر ۱/۱۰۲) والدر المنثور (۱/۷۳)

(بني اسرائیلو به په یوه ورځ کښې درے سوه انبیاء قتل کړل او بیا به ئې په همدغه ورځ کښې مازیګر بازار اُولګولو او سبزیانے به ئې خرخولے. دا حدیث موقوف بمنزلة المرفوع دے. او سند ئې بالکل صحیح دے.

۵- بخاري کښې د خباب بن الارت ﷺ په حدیث کښې دي: ستاسو نه مخکښو خلقو کښې داسے خلق وو چه د اُوسپنو په ګمنزو به ئې سرونه ګمنزل کولے شي د غوښے او هډوکو او پلو ترمینځ، خو دے کار به د دین نه نهٔ اړولو او آره به ورته د سر په مینځ کښې کیخودلے شوه او دوه ټکړے به کړے شو خو دے به د دین نه نهٔ ګرځولو ـــ الخ)

حافظ فتح الباري (۲/۱۳۱) کښې لیکي: ابن التينؒ وئیلي دي چه ددے خلقو نه مراد انبیاء علیهم السلام او د هغوی اتباع دي. باقي اُولس دلائل په فتاوی الدین الخالص (۲/۹۲) کښې اُوکوريٰ.

کوم کسان چه د انبیاؤ د قتل قائل نهٔ دي لکه په مصر کښې بعض خلق دي او دغه شان بعض نور علماء چه دا په شعوري یا غیر شعوري طور سره د یهودیانو د رضا کولو کوشش کوي نو د انبیاؤ د قتل نه انکار کوي.

روح المعاني کښې دوی ته ملحدین وئیلے شویدي، فتاوی اللجنة (۳/۲۵۱) کښې د سعودي علماؤ فتوی نقل کړیده چه څوك د قتل الانبیاء نه منکر دي نو دوی د خپلو یهودي ورونو نه دفاع کوي، او دے ته ئې الحاد في آیات الله او تلاعب بکتاب الله وئیلے دے.

نو هغوی ته یو څو شبهات راپیدا شویدي (۱) یو دا چه قرآن کریم کښې راغلي دي: (إِنَّا لَنَنْصُرُ رُسُلَنَا وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا) (غافر: ۵۱) (إِنَّهُمْ لَهُمُ الْمَنْصُوْرُوْنَ) الصافات (۱۷۲)

(الله تعالیٰ د رسولانو د نصرت وعده کړیده) نو که نبي قتل کړے شي نو بیا د هغه نصرت

اُونهٔ شو ؟ **الجواب** (۱) : د نصرت نه مراد غلبه د حجت ده یعنی انبیاؤ سره الله تعالیٰ دا مدد کړیدے چه حجت ئے په ټولو خلقو غالب وی، څوك پرے غلبه نشی کولے.
(۲) دویم جواب : شهادت هم نُصرت دے. (۲) کله دا شبهه کوی چه دا خو دین ته نقصان دے، ځکه د نبی په وجه خو دعوت ختمیږی ؟.
**الجواب** : دا صحیح ده چه نبی راشی نو سمدست نهٔ وژلے کیږی بلکه دین بیان کړی، خلق پوهه کړی، نو بیا وژلے شی. نو دین ته ئے هیڅ نقصان نهٔ ملاویږی.
۲- دویم وایو چه په دغه آیت کښ خو الله تعالیٰ ایمان والا هم ذکر کړیدی چه دوی سره هم مدد کوی نو آیا هغوی هم نهٔ دی وژلے شوی ؟.
(۳) دریم دا چه : انبیاء الله تعالیٰ قتل ته ولے پریخودل. نو عامو تفاسیر (قرطبی، ماوردی، ثعالبی وغیره) لیکلی دی : (نَیْلاً لِدَرَجَةِ الشَّهَادَةِ) دے دپاره چه د شهادت درجه حاصله کړی، ځکه شهادت د الله تعالیٰ په نزد یو کرامت دے نو دا هم بعینه د نبی نصرت دے چه هغه له الله تعالیٰ د نبوت سره شهادت هم ورکړی.
بعض علماء دا فرق کوی (لکه قاسمیؒ، آلوسیؒ) چه رسولان نهٔ دی وژلے شوی او انبیاء وژلے شویدی. لیکن دا فرق هم د سورة البقره (۸۷) آیت د ظاهر خلاف معلومیږی او په هغے کښ تاویل کوی لیکن تاویل ئے مزیدار نهٔ دے. د ظاهر خلاف دے.
ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ : اشاره ده کفر او قتل ته. یعنی دوی کښ د نافرمانئ مرض وو، او د الله تعالیٰ د حدودو نه به ئے تجاوز کولو په دے وجه دوی دا کفر بآیات الله او قتل الانبیاء شروع کړه. ځکه دا قانون دے : (اَلْمَعْصِيَةُ تَجُرُّ اِلَى الْمَعْصِيَةِ) (یوه ګناه سرے بلے ته راکاږی) دوی اول نافرمانی او ګناهونه شروع کړل په هغے ئے پرواه نهٔ کوله بیا ئے اعتداء (ظلم او زیاتے او د حدودو نه تیروتل) شروع کړل، بیا ئے خبره قتل الانبیاء ته اُورسوله نو بیا کفر بآیات الله ورته معمولی ښکاره شوه نو الله تعالیٰ هم بیا انسان ته صبر نهٔ کوی نو غضب او ذلت او مسکنت ئے وربانده نازل کړو.(۲) بعض وائی : دے کښ هم هغه غضب او ذلت او مسکنة ته اشاره ده نو دا بیا تاکید دے او د غضب دپاره څلور اسباب شو، کفر، قتل، عصیان او اعتداء.
**يَعْتَدُوْنَ** : اعتداء په اصل کښ د حد نه تجاوز او تیریدلو ته وئیلے شی بیا په عرف کښ ئے په هره ګناه او ظلم اطلاق کیږی. (قرطبی) د دوی ډیرے اعتداګانے وے (۱) د خالی په ورځ به ئے ښکار کولو . (۲) خپل مینځ کښ به ئے یو بل باندے ظلمونه هم کول. د کورونو نه

به ئے وېستل (۳) موسیٰ علیه السلام باندې به ئے اعتراضونه کول۔ (٤) د الله تعالیٰ حکمونو ته تیار نۀ وو۔ (۵) سورة یونس (۷٤) کښې تکذیب د آیتونو ته اعتداء وئیل شویده۔
(٦) غټه اعتداء ئے شرك وو د الله تعالیٰ سره۔ عزیر علیه السلام ته ئے ابن الله (د الله ځوی) وئیلو۔
اُوس ترغیب توبې ته ورکوی او دا د دعوت بنه طریقه ده چه د چا تردید او عیب بیان شی بیا ترغیب د توبې او ایمان ورکړے شی۔

| |
|---|
| اِنَّ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِیْنَ هَادُوْا وَالنَّصٰرٰی وَالصّٰبِئِیْنَ |
| یقیناً هغه خلق چه ایمان ئے راوړے او هغه خلق چه یهودیان دی او عیسائیان او صابیان |
| مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْیَوْمِ الْاٰخِرِ وَعَمِلَ صٰلِحًا فَلَهُمْ |
| چا چه ایمان راوړو (د دوی نه صحیح ایمان) په الله او په ورځ د آخرت او عمل ئے اُوکړو نیك نو د دوی دپاره |
| اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَلَاخَوْفٌ عَلَیْهِمْ وَلَاهُمْ یَحْزَنُوْنَ ﴿٦٢﴾ |
| اجر د دوی دے په نیز د رب د دوی او نۀ به وی هیڅ یره په دوی او نه به دوی غمژن شی۔ |

**تفسیر** : د بنی اسرائیلو خطابات شروع دی چه الله رب العالمین بنی اسرائیل یعنی یهود او نصاراؤ ته او خصوصاً یهودو ته دعوت ورکوی چه راشئ په الله تعالیٰ او په پیغمبر باندې صحیح ایمان راوړئ، قرآن ستاسو دپاره د هدایت کتاب دے، ولې کفر کوئ، الله تعالیٰ تاسو سره ځومره انعامات کړیدی اُوګوره ستاسو په مشرانو ئے عذابونه هم راوستی دی، د هغوی نه څو لګ شان عبرت واخلئ نو په دے آخر د خطاب کښې تر دوه شپیته آیت پورے الله تعالیٰ ترغیب ورکوی ایمان او عمل صالح ته چه ګوره ډلو او تنظیمونو او نومونو له اعتبار نشته چه یو سړے وائی یهودیت غوره دین دے، نصرانیت غوره دے او صابئین غوره دی۔ لکه نن صبا هم ډیر مشرکان ځانته اهل السنة والجماعة وائی او په واقع کښې نۀ وی۔ صرف دے نومونو او لیبلو له اعتبار نۀ شته بلکه ایمان او عمل صالح لره اعتبار دے، او داسې ترغیب ورکوی چه مخکښې مو هر څه کړی وی خو اُوس راشئ ایمان راوړئ او نیك عمل شروع کړئ، الله تعالیٰ به

مو معاف کړي، الله تعالیٰ داسې مهربان دې چه هغه زاړه ګناهونه درله بخي او مغفرت درته کوي. لکه دا د الله تعالیٰ قانون دې چه ډلو او نومونو له اعتبار نهٔ ورکوي لکه یهودو به وئیل چه مونږ غوره مخلوق یو، یهودیت غوره دین دې، دا ټول مخلوق الله تعالیٰ یهودو لره پیدا کړیدی، عیسایانو به وئیل چه زمونږ په شان دین د چا نشته، صابئین وائي زمونږ په شان نشته، نو الله تعالیٰ په دوی رد کوی چه نهٔ! ایمان او عمل لره اعتبار دې، په هره زمانه کښې چه وی، په هرځائې کښې چه وی، د الله تعالیٰ د ډلو سره کار نشته، د الله تعالیٰ د صفاتو سره کار دې، چا کښې چه ایمان او عمل صالح صفت وی نو دا د الله تعالیٰ دوست دې او ده لره به اجر ورکوی، او هیڅ غم به پرې نهٔ وی.

(الذین آمنوا) **سوال** : اَلَّذِیْنَ آمَنُوْا اسم د اِنَّ دې او مَنْ آمَنَ ئې خبر دې او دلته اسم او خبر دواړه یو شې دی، نو حمل د شي په خپل ځان راځي. او دا بې فائدې وی. ځکه معنیٰ به دا شي چه هغه کسان چه ایمان ئې راوړیدې چا چه ایمان راوړو. او دا تحصیل د حاصل دې.

**الجواب** : ددې دوه تفسیرونه دی (۱) اول دا چه الذین آمنوا نه مراد مؤمنان ددې اُمت دی چه صرف د خولې دعویدار دی، نو روستو من آمن کښې صحیح حقیقي ایمان مراد دې. یعني صرف دعویدار ایمان والو کښې که چا صحیح حقیقي ایمان راوړو نو یره به پرې نهٔ وی. (۲) دویم دا چه آمَنُوْا نه حقیقي مؤمنان مراد دی او مَنْ آمَنَ نه اعلیٰ درجه د ایمان مراد ده. ځکه چه ایمان کښې ډیرې مرتبې دی. یعني په ایمان والو کښې که چا اعلیٰ درجه ایمان راوړو الخ. لکه دا د قرآن کریم په نورو آیتونو کښې هم شته. (یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ آمَنُوْا آمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ) (النساء:۱۳۶) او همدا خبره راجحه ده ځکه چه ایمان کله مطلق ذکر شي نو مراد ترینه شرعي ایمان وی. (۲) دویم دا چه دا کلام په محاوره بناء دې لکه خلق وائي که اهل حق وی او که اهل باطل چا چه د حق اتباع اُوکړه نو هغه کامیاب دې. نو دارنګه دا آیت هم دغه شان په محاوره بناء دې.

۲- بعض علماء پدې کښې یو بل ترکیب هم کوی چه بعید دې، هغې کښې تقطیع راځي. چه اِنَّ الَّذِیْنَ آمَنُوْا دپاره خبر (فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ) دې او (وَالَّذِیْنَ هَادُوْا) مستقله مبتداء ده او (مَنْ آمَنَ) ئې خبر دې. دا ترکیب ضعیف ځکه دې چه د مبتداء او خبر ترمینځ فاء راوړل صحیح نهٔ وی ځکه دواړو کښې اتصال او حمل وی او فاء انفصال پیدا کوی.

او (وَالَّذِیْنَ هَادُوْا) نه مراد (یهودیان) د موسی علیه السلام تابعدار دی چه اوله کښې بنهٔ خلق وو، د

موسىٰ ؑ تابعدار وو۔ الله تعالىٰ ته رجوع کونکي خلق وو، بيا روسته د يهود نوم د حيله گرو دے۔ هر حيله گر، هر ظالم، هر زياتے کونکے، غصب کونکے، د غلطو عقيدو والا ته يهودي وائي۔ او دوي په هغه زمانه کښې په مصر او د هغے په ماحول او د فسلطين او د هغے په ماحول کښې اُوسيدل، اُوس هم هلته زيات دي۔

يهود ته ځکه يهود وائي چه هَادَ په معنىٰ د تَابَ او رَجَعَ او مَالَ (مائل کيدو) سره دے نو دوي اوله کښې توبه ويستلے وه۔ الله تعالىٰ ته ئے وئيلي وو: (اِنَّا هُدْنَا اِلَيْكَ) (اعراف: ۱۵۶) (اَىْ تُبْنَا) (مونږ تا ته توبه اُوباسو) نو يهود معنىٰ توبه گار۔ او تَهَوَّدَ اَىْ دَخَلَ فِى الْيَهُوْدِيَّةِ يعني د تهود معنى ده: د يهوديت په دين کښې داخل شو) بيا دا نوم په دوي باندے همداسے پاتے شو، نو بعد التبديل هم دوي ته يهود وائي اگر که اُوس توبه گار نهٔ دي۔ يا دوي د اسلام نه مائل شوي (اوړيدلي) وو۔ (معالم التنزيل للبغوى)۔

۲- بعض وائي: هَادَ او تَهَوَّدَ په معنىٰ د سر خوزولو سره دے، دوي ته به ئے ځکه يهود وئيل چه کله به تورات لوستل کيدو نو دوي به سر خوزولو، حرکت کښې به راتلل، او اُوس هم دوي چه کله تورات اُوري، يا ئے وائي نو سر خوزوي۔ او زمونږ ددے زمانے قاريانو هم د هغوی نه چل زدهٔ کړو، د تلاوت په وخت سر خوزوي، دا طريقه صحيح نهٔ ده۔ بلکه قرآن کريم ته په آرام کيناستل پکار دي۔

۳- بعض وائي: دا د يعقوب ؑ مشر ځوي يهوذا بن يعقوب ؑ په اولادو کښې راغلي دي او په عربيء کښې ذال په دال بدليدل مشهور دي، لکه نمروذ او نمرود۔ (ابن کثير، قرطبى)

٤- يا د هَوَادَة نه دے په معنىٰ د مينے محبت سره او دوي هم د يو بل سره مينه محبت ساتلو۔

**النصٰرىٰ**: دا جمع د نصراني ده، او نصراني منسوب دے نصران ته يا ناصره ته چه دا د يو کلي نوم وو چه په هغے کښې عيسى ؑ پيدا شوے وو، او اُوسيدو او دا په فلسطين کښې د بيت المقدس نه په شمالي جانب کښې تقريباً اويا ميله لرے وو۔ نو چا چه به د عيسى ؑ د تابعدارئ او د مدد دعوىٰ کړے وه چه مونږه ددهٔ مددگار يو، نو هغوی ته به ئے نصارىٰ وئيل۔ (۲) ځوک وائي: دوي ته دا نوم ځکه ورکړے شو چه دوي کښې حواريونو وئيلي وو: (نَحْنُ اَنْصَارُ اللّٰهِ) (مونږ د الله تعالىٰ د دين مددگار يو)۔

**فائده**: قرآن کريم او احاديثو کښې دوي ته نصارىٰ نوم ورکړے شويدے نو دوي ته مسيحين يا عيسايان وئيل مناسب نهٔ دي لکه دا خبره بکر بن عبد الله ابوزيد په معجم

المناهی اللفظیه (۱/۲۱) کښې ذکر کړیده چه پدے سره د عیسی علیه السلام د نوم بے ادبی ده څکه چه دوی خو د هغه دین بدل کړیدے۔ او په هیڅ نص کښې هم ددے استعمال نۀ دے راغلے او نه په تاریخ او اقوال د علماؤ کښې دا نوم موجود دے نو دا یوه محدثه تسمیه ده۔ لهذا ددے نه ځان ساتل پکار دی۔

صَابِئِيْن: ددے په تفسیر کښې ډیر اقوال دی: ۱- مشهوره دا ده چه دا په یو قوم وو چه عراق کښې اُوسیدل او ( لا اله الا الله) کلمه به ئې وئیله نور دین ئې نۀ وو۔ او عقیده ئې د ستورو د تاثیر لرله۔ چه د عالَم تدبیر ستوری کوی۔ (قرطبی) دے وجه نه مشرکانو به مسلمانانو ته صابئین وئیل۔ (صُباة) به ئې ورته وئیل۔ (اَوَ يُتُمُ الصُّبَاةَ -بخاری ۱/۲) چه دوی هم د صابئینو په شان د لا اله الا الله کلمه وائی۔

۲- سید قطبؒ دیته ترجیح ورکړیده چه دا د عربو مشرکانو نه یوه ډله وه چه د بعثت د رسول الله نه مخکښې دوی د خپل قوم د موروثی شرکی دین نه جدا شوی وو او د بتانو په عبادت کښې ئې شك پیدا شوے وو۔ نو دوی ځانله په خپل غور او فکر سره یوه عقیده غوره کولو کوشش کولو نو صحیح توحید ته اُورسیدل، او دا دعویٰ به ئې کوله چه مونږ په دین حنیف باندے یو کوم چه ابراهیم علیه السلام پیش کړے وو۔ نو دوی د بتانو عبادتونه ترك کړی وو، اګرکه خپل قوم ته ئې د عقیدۀ توحید دعوت نۀ ورکولو۔ ددے خلقو په باره کښې به مشرکانو وئیل چه دا خلق صابیان دی۔ یعنی د خپل پلار نیکه دین ئې پریخے دے۔ لکه روستو زمانه کښې به مشرکانو دا طعن مسلمانانو ته ورکولو چه دوی صابیان دی۔ (فی ظلال القرآن ۱/۷٤)

۳- بعض وائی: صابئین هغه چا ته وائی چه د یو دین نه نقل کیږی بل دین ته۔ نو دوی د یهود او نصاراؤ دین پریخودے وو او د ملائکو عبادت به ئې کولو۔

٤- بعض وائی: دا د ابراهیم علیه السلام قوم وو (کَلْدَانِیین) چه د ستورو عبادت به ئې کولو۔ او په شام او حران کښې د هغوی قبلے جنوبی طرفته جوړے شویدی۔ اُوس هم د دوی عبادت خانے شته۔ او دوی اُوس هم په عراق موصل کښې اُوسیږی۔ یو سړے د صابئینو نه زمونږ خواته د عراق نه راغلے وو، مسلمان شوے وو، هغه اُووئیل: زمونږ دین اُوس هم په عراق کښې شته۔ او دا قول امام رازیؒ په تفسیر کبیر کښې غوره کړیدے او وئیلی ئې دی چه د دوی د ستورو په باره کښې دوه قسمه عقیدے وے ۱-یو دا چه خالق د عالَم الله سبحانه دے لیکن دغه الله تعالیٰ حکم کړیدے چه ددے ستورو تعظیم اُوکړے شی او دا د مانځه او دعاء او

تعظیم دپاره قبله جوړه شي. ۲- دویم دا چه الله تعالیٰ آسمانونه او ستوري پیدا کړل او بیا ددې عالم تدبیر همدغه ستوري کوي چه خیر، شر مرض او صحت دوي راولي. نو په بشر باندې واجب دی چه د دوي تعظیم اُوکړي ځکه چه دا آلِهَه مُدَبِّرَه (تدبیر کونکي) ددې عالم دي او بیا دا د الله تعالیٰ عبادت کوي. (کبیر ۲/۱۸۹)

٤- بعض وائي: دا کتابیان دي او زبور به ئې لوستلو او د دین دعوه به ئې کوله. ځان ته به ئې د یحیی علیه السلام تابعدار وئیل او قبلې ته به ئې پنځه مونځونه هم کول لیکن د ملائکو عبادت به ئې هم کولو. (الحسن وقتادة) (قرطبي) زیاد بن ابي سفیان دوي اُولیدل چه پنځه مونځونه کوي او کعبې ته مخ کوي نو جزیه ئې ترینه لرې کړه بیا خبر شو چه ورسره د ملائکو عبادت هم کوي نو بیرته ئې پرې مقرر کړه. (قرطبي) ددې وجه نه امام ابو حنیفه او اسحاق رحمهما الله په دوي باندې د اهل کتابو حکم جاري کړې وو په باره د نکاح او ذبیحه کښې.

۵- امام مجاهدؒ وائي: (قَوْمٌ بَيْنَ الْيَهُوْدِ وَالنَّصَارىٰ وَالْمَجُوْسِ لَيْسَ لَهُمْ دِيْنٌ) (دا یو قوم دې د یهود او نصاریٰ او مجوسو ترمینځ چه په هیڅ دین نهٔ دي روان).

وهب بن منبهؒ نه د صابئینو متعلق تپوس اُوشو نو هغه اُووئیل: (اَلَّذِيْ يَعْرِفُ اللّٰهَ وَحْدَهٗ، وَلَيْسَتْ لَهٗ شَرِيْعَةٌ يَعْمَلُ بِهَا وَلَمْ يُحْدِثْ كُفْرًا) (هغه څوک چه صرف الله تعالیٰ یواځې پیژني او په هیڅ شریعت عمل نهٔ کوي او کفر ئې نهٔ وي کړې)

ابن کثیرؒ د اقوالو ذکر کولو نه روستو وائي: (وَاَظْهَرُ الْاَقْوَالِ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ - قَوْلُ مُجَاهِدٍ وَمُتَابِعِيْهِ وَوَهْبٍ: اَنَّهُمْ قَوْمٌ لَيْسُوْا عَلٰى دِيْنِ الْيَهُوْدِ وَلَا النَّصَارىٰ وَلَا الْمَجُوْسِ وَلَا الْمُشْرِكِيْنَ وَاِنَّمَا هُمْ قَوْمٌ بَاقُوْنَ عَلٰى فِطْرَتِهِمْ وَلَا دِيْنَ مُقَرَّرٌ لَهُمْ يَتَّبِعُوْنَهٗ وَيَقْتَفُوْنَهٗ)

(ظاهر قول د مجاهدؒ او د وهبؒ دې چه دا یو قوم دې چه نهٔ په دین د یهودیانو، نهٔ د نصاراؤ نه د مجوسو او نهٔ د مشرکانو روان دي بلکه دا هغه خلق دي چه په خپل فطرت باندې پاتې دي او د دوي هیڅ مقرر دین نشته چه دهغې تابعداري اُوکړي. ددې وجه نه مشرکانو به مسلمانانو ته دا طعن ورکولو چه دوي صابیان دي ځکه چه په هغه زمانه کښې د ټولو دینونو د زمکې والونه وتلي وو. انتهیٰ.

نو الله تعالیٰ دې ټولو ډلو ته د صحیح ایمان دعوت ورکوي.

**آمَنُوْا**: د ایمان موضوع شروع ده نو ځکه ئې ایمان مطلق ذکر کړو مراد ترې نه ایمان شرعي دې یعني ټولو ایمانیاتو باندې ایمان لرل. کوم ته چه شریعت دعوت ورکوي.

﴿ وَعَمِلَ صَالِحًا ﴾ او ددغه ایمان سره نیك عمل كوی څكه چه دا د صحیح ایمان نخه ده۔ ﴿ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴾ دا لفظ ئے دوباره راوړو، مخکښ (۳۸) کښ تیر شو څکه چه د ټولو انسانانو د کوششونو مقصد هم دغه دوه څیزونه دی۔

(۲) دویم مقصد د آیت دا دے چه په تیر شوی قومونو کښ کومو خلقو د خپلے زمانے د نبی اتباع کرے نو هغوی له به الله تعالیٰ نیکه بدله ورکوی او همدا حال به ترقیامته پورے وی چه د نبی ﷺ نه روستو قیامته پورے کومو خلقو د رسول الله ﷺ تابعداری اُوکړه نو هغوی ته به اَبدی سعادت او نیکبختی ملاویږی او هیڅ قسم خوف به پرے نهٔ وی۔ عبد الله بن عباس رضی الله عنه نه نقل دی چه ددے آیت نه دا آیت روستو راغلے دے (ومن يبتغ غير الاسلام ديناً فلن يقبل الخ) یعنی د دین اسلام راتلو نه روستو نور ټول دینونه منسوخ شو۔

حدیث کښ دی: وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَا يَسْمَعُ بِيْ رَجُلٌ مِنْ هٰذِهِ الْاُمَّةِ يَهُوْدِيٌّ وَلَا نَصْرَانِيٌّ ثُمَّ لَا يُؤْمِنُ بِيْ اِلَّا دَخَلَ النَّارَ (صحيح مسلم كتاب الايمان باب وجوب الايمان برسالة محمد)

(قسم په هغه ذات چه زما نفس د هغه په لاس کښ دے پدے امت کښ چه کوم شخص زما په باره کښ واوری که هغه یهودی وی او که نصرانی بیا په ما ایمان رانهٔ وړی نو هغه به ضرور اُور ته داخلیږی)۔ نو کوم خلق چه د وحدت ادیان کوشش کوی دا سو چه دروغ وائی دا قرآن او احادیث شاته ارتول دی۔

وَاِذْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّوْرَ ؕ خُذُوْا مَا

او کله چه مونږ اخستے وه وعده ستاسو نه او اُوچت کړے وو مونږ ستاسو دپاسه طور غر، (مونږ اُووئیل) واخلئ هغه (کتاب)

اٰتَيْنٰكُمْ بِقُوَّةٍ وَّاذْكُرُوْا مَا فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿۶۳﴾

چه مونږ تاسو ته درکړیدے په قوت سره او راياد کړئ هغه احكام چه په دے کښ دی، دے دپاره چه تاسو کښ تقویٰ راشی۔

**تفسير**: ددے ځائے نه اُوس بل خطاب دے بنی اسرائیلو ته چه دا تر دویمے رکوع (۸۲) آیت پورے چلیږی۔ په دے کښ ددے خبرے بیان دے چه دے اهل کتابو (یهودو) کښ ډیر عیبونه راجمع شوی دی څه په مشرانو کښ او څه په دوی کښ۔ د دوی د مشرانو درے عیبونه ذکر کوی۔ چه دے نه بیلہ بیلہ ډله جوړیږی۔ ۱- لوظ ماتول په باره د کتاب د الله کښ۔ (ثُمَّ

تَوَلَّيْتُمْ) ۲- د الله تعالىٰ په احکام شرعیه ؤ کښې حیلې کول۔ (وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ الَّذِيْنَ اعْتَدَوْا) ۳- د دنیا دپاره قتل کول او په پاکو خلقو بهتان او تهمت لګول۔ (وَاِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا) دومره غلط خلق دي او ځان ته پاك وائي، عجیبه ده !!۔ او دا صفات سره د روستنو نه تول په موجوده یهودو کښې وو، د مشرانو تقلید ئې کړے وو۔ (٤) ځلورم د الله تعالىٰ او رسول الله ﷺ په حکمونو کښې تال متهول تاخیر کول۔ لکه وَاِذْ قَالَ مُوْسىٰ ......اِنَّ اللهَ يَاْمُرُكُمْ) کښې رازي۔

نو الله تعالىٰ فرمائي : په داسے مشرانو پسے ولے ځئ چه داسے عیجن خلق وو۔ او تاسو کښې اُوس موجوده پنځه عیبونه دي۔ اُوګوره ځان ته بنه خلق وایئ لکه دوی به ځان ته وئیل: (نَحْنُ شِعَبُ اللهِ الْمُخْتَارُ) (مونږ د الله تعالىٰ غوره ډله یو) اُوس هم تول یهود وائي : دا تول مخلوق الله تعالىٰ مونږ له پیدا کړیدے، زمونږ د خدمت دپاره دي، که مونږه ئې وژنو او که مونږ ترے مال اخلو نو مونږ له جائز ده، د دروغو دعویٰ ئې کړیده، جنت هم الله تعالىٰ مونږ له پیدا کړیدے۔ او د الله تعالىٰ دوستان هم دا مونږ یو۔ الله رب العزت دلته ورله عیبونه راښکاره کوي چه دا څنګه دعویٰ کوئ، نو د دوی د دین په باره کښې تصور غلط شوے وو نو څکه الله تعالىٰ د هغے اصلاح کوي چه دا تصورات غلط دي ځان ته اُوګوره چه ته څومره ګنده وے۔ او پنځه عیبونه او خباثتونه د کشرانو راوړي : ۱ -تحریف معنوی کول۔ ۲- منافقت کول۔ ۳- تقلید کونکی امیان۔ ٤ -تحریف لفظي کول۔ ۵- د جنت دعوه کول سره د بد عمل کولو نه۔ او په آخر کښې به تخویف اُخروی (د آخرت یره) او زیرے بیانوي۔ او د یا بني اسرائیل نه د بني اسرائیلو تقریباً پنځوس عیبونه بیانول شروع دي چه دا سبب دے د نقل کیدو د رسالت او خلافت د دوی نه بني اسماعیلو ته۔ او پدے تولو واقعاتو کښې ترغیب الی الایمان دے۔

## ربط او تړون:

مخکښې آیت کښې د ایمان او عمل صالح تذکره اُوشوه او دوی ته دعوت ورکړے شو نو اُوس وائي چه اے یهودو ! تاسو کښې بیا هم دغه صفات رانغلل بلکه په ځائے د ایمان او عمل صالح په تاسو کښې خباثتونه پیدا شو چه په هغے سره تاسو نه دغه صحیح ایمان زائل شو۔

پدے دوه آیتونو کښې د دوی د نقض عهد تذکره کوي۔

**مِیْثَاقَکُمْ**: دا لوظ ئې د دوی د مشرانو نه اخستے وو چه د الله تعالىٰ په کتاب به عمل کوئ او ددے منلو ته به تیار شئ۔ ﴿وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّوْرَ﴾ غرئې په دوی ولے اُوچتولو ؟ څکه چه

دوی ته کله موسی علیه السلام د طور نه تورات راوړو او ورته ئې اُووئیل چه شابئ دے باندے عمل اُوکړئ نو دوی اُووئیل: په دے باندے به څوك عمل کوی؟ دا خو احکام شاقه (گران احکام) دی۔ دے ته مونږ نشو تیاریدلے۔ نو جبرئیل علیه السلام ته الله تعالیٰ امر اُوکړو چه ورشه او غر پرے اُوچت کړه نو غرئے پرے راوچت کړو، او داسے شو لکه د یو څپر په شان یا د چهترئ یا د وریځے په شان۔ لکه سورة الاعراف (١٧١) کښې راځی: (وَإِذْ نَتَقْنَا الْجَبَلَ فَوْقَهُمْ كَأَنَّهُ ظُلَّةٌ) دوی پوهه شو چه اُوس راباندے راغورزیږی نو په سجده پریوتل، کړه سجده ئې اُوکړه، په یوه سترگه ئې غرۀ ته کتل او په یوه سترگه ئې سجده اُوکړه، اُوس هم یهودیان کړه سجده کوی۔ وائی په دے سجده زمونږ مشران خلاص شوی دی۔

الطور: طور: (كُلُّ جَبَلٍ ذَاتُ نَبَتٍ حَسَنٍ) (هر هغه غر ته وئیلے چه ښائسته گیاه گانے پکښې راتو کیدلی وی) لکه (وَشَجَرَةً تَخْرُجُ مِنْ طُورِ سَيْنَاءَ) (المؤمنون: ٢٠)

مجاهدؒ او ابو العالیهؒ وائی طور په سریانئ کښې هر غر ته وئیلے شی۔ (١) دلته ترے مراد عام غر دے چه دوی د هغے په خوا کښې وو۔ لکه سورة الاعراف (١٧١) کښې نَتَقْنَا الْجَبَلَ) کښې ورته جبل (غر) وئیلے شویدے۔ ابن کثیرؒ وائی همدا ظاهر تفسیر دے۔ (٢) یا هغه خاص غر چه موسی علیه السلام ته پکښې د الله تعالیٰ تجلی شوے وه۔

(خُذُوا مَا آتَيْنَاكُمْ بِقُوَّةٍ) قوت معنوی مراد دے یعنی (اَیْ بِالْعِلْمِ وَالْعَمَلِ) د کتاب په طاقت باندے نیولو معنیٰ دا ده چه علم او عمل کښې ئې راولئ ځکه چه یو شے چه علم کښې راشی، هغه کلك شی او بیا کوم شے چه عمل کښې راولی هغه د انسان نه نۀ هیریږی۔ او ورسره په قوت کښې دا هم داخل ده چه په ښې لاس به ئې نیسی۔ بے ځائے به ئې نۀ اږدی چه اُوغورزیږی۔ دا بے ادبی ده او کوم خلق چه د الله تعالیٰ د کتاب ادب نۀ کوی، بے ځائے اږدی او دپاسه پرے خپے اړوی نو دوی ته الله تعالیٰ د دین صحیح پوهه نۀ ورکوی۔ او په علم کښې ئې برکت نۀ وی۔ او دیته قوت ظاهری وائی۔

(٣) قتادهؒ وائی د قوة نه مراد (بِالْجِدِّ) دے یعنی په جِدّئ او رشتینے طریقے سره اخستل دی۔

مَا آتَيْنَاكُمْ: نه مراد تورات دے۔

﴿وَاذْكُرُوا مَا فِيهِ﴾ ددے نه دا معلومیږی چه د الله تعالیٰ د کتاب درس او تدریس فرض دے ځکه صرف (وَاحْفَظُوا) (حفظ ئې کړئ) ئې نۀ دے وئیلے، ځکه صرف یادول مقصود نۀ دی، بلکه تذکر مقصود دے چه د هغے په ژبه تلاوت کوی او د هغے نه فوائد ایمانی او

مقاصد راوباسی او تدبر پکښې اُوکړے شي، او خلقو ته بیان کړے شي۔ نو کوم مدرسه او کوم دعوت کښې چه قرآن نهٔ بیانیږي، هغه ناقص دے۔ او ددے نه معلومه شوه چه د الله تعالیٰ کتاب به بار بار وئیلے شي۔
﴿وَاذْكُرُوْا﴾ دیته واثي چه زاړه خبره سرې ته بیرته رایاده کړي، تاته دا معلومه ده چه مونځ فرض دے، لیکن قرآن کښې به ترغیب راشي چه دا مونځ ډیر اُوچت عمل دے، نو ستا شوق به پیدا شي۔ نو ﴿اُذْكُرُوْا﴾ معنیٰ دا چه رایاد کړئ هغه مسائل چه په دے کتاب کښې دي نو تقویٰ به درکښې پیدا شي۔ هدى للمتقين هم پدے وجه دے۔ حدیث کښې دي: (إِنَّ الْمُؤْمِنَ خُلِقَ مُفْتَنًا تَوَّابًا نَسَّاءً، إِذَا ذُكِّرَ ذَكَرَ) (مؤمن پداسے حال پیدا شوے دے چه په دهٔ به فتنے راځي، دا به ډیر توبه ویستونکے وي، هیره به ترے کیږي، کله چه ورته خبره وریاده کړے شي نو داثے یاده وي) (الصحيحة رقم: ۲۲۷٦) و (۳۱۳۲)
**فوائد الآيات** : (۱) دلته **سوال** دے چه دا زور پرے الله تعالیٰ ولے کولو؟ دا خو مجبوره کول دي ایمان ته او جبري ایمان خو قبول نهٔ دے ځکه په دین کښې خو زور نشته؟ ﴿لَا اِكْرَاهَ فِي الدِّيْنِ﴾ (۱) **یو جواب** دا دے چه نواب صدیق حسن خان په فتح البیان کښې د قفال نه نقل کړیدي چه یو اکراه ده او بل اجبار دے۔ نو په اکراه کښې اختیار باقي وي او په اجبار (مجبوره کولو) کښې اختیار باقي نهٔ وي، لکه د زنکدن په وخت کښې ایمان راوړلو له اعتبار نشته۔ نو دا اجبار او الجاء نهٔ وه بلکه اکراه وه او په اکراه کښې انسان اختیار استعمالولے شي چه مثلاً هغه ته اُووئیلے شي چه یا به عذاب درکوم یا به دا کار کوے نو هغه سوچ اُوکړي چه کوم ورته آسان او غوره ښکاره شي نو هغه اختیار کړي او په داسے وخت کښې خو ایمان قبلول په حدیث کښې هم راغلي دي۔ لکه واقعه د اسامه بن زید ﷺ او خالد بن ولید ﷺ پرے دلیل دے۔ اګرکه د تورے د لاندے راشي او کلمه وائي نو بیائے هم الله تعالیٰ قبلوي او د هغه قتل به منع وي۔ او دا د سورة النساء (۹٤) آیت نه هم معلومیږي: ﴿وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ اَلْقٰى اِلَيْكُمُ السَّلٰمَ لَسْتَ مُؤْمِنًا﴾ او هرچه ﴿لَا اِكْرَاهَ فِي الدِّيْنِ﴾ دے نو د هغے مطلب دا دے چه د زړه په عقیده کښې په چا باندے زور نهٔ چلیږي، ځکه هغے ته رسیدل ممکن نهٔ دي۔ دا جواب کمزورے دے ځکه اکراه کښې اختیار باقي نهٔ وي۔ ځکه یو طرف ته عذاب وي بل طرف ته کار۔ او د عذاب برداشت خو مشکل وي نو اختیار مسلوب شو، دا اختیار به هله باقي وي چه درے شیان وي (۱) عذاب (۲) خوراك کول مثلاً (۳) دغه کار کول فتدبر۔

۲- **دوېیم جواب** : یو اعمال دي، بلکه عقیده ده، په عقیده کښې زور نهٔ وي. د هر چا خوښه ده چه ایمان راوړي او که نهٔ او هر چه اعمال دي نو په هغې کښې زور شته.

۳- **جواب** : (د ټولو نه قوي) دا دے چه په دین کښې زور نشته چه څوك پکښې په زوره داخل کړي یعنې په کافرو زور نشته، او چه څوك ایمان راوړي، او بیا د اسلام نه فائدے اخلي، زکاتونه او میراثونه اخلي او هغه بیا بد عملونه کوي نو په هغه زور شته، مونځ به پرے په زور کیږي، مهر به په زور ورکوي، خپل بچو، ښځې له به خرچه په زور ورکوي، ولے د اسلام دعویٰ کوي او د اسلام نه فائدے اخلي نو په اسلام باندے به خرچه هم کوي. او کافرو باندے به زور نهٔ کوي، ترغیب به ورکوي که راځي ایمان راوړي، که نهٔ وي، جزیه دے قبوله کړي او که نهٔ وي نو جنګ ته دے تیار شي. او که جنګ نهٔ کوي نو هغې دپاره دغه حکم دے چه د مسلمانانو په ملك کښې دے اُوسیږي او جزیه دے ورکوي. نو دا خلق مسلمانان وو خو په کتاب د الله تعالیٰ ئے عمل نکولو چون وچرا به ئے کوله او بغاوت ئے اُوکړو نو ځکه دا سزا ورته ورکړے شوه او زبردستي پرے اُوکړے شوه او په حدیث کښې هم راغلي دي : (وَاضْرِبُوهُمْ عَلَيْهَا وَهُمْ أَبْنَاءُ عَشْرِ سِنِينَ) (ماشومان په مانځه نهٔ کولو اُووهئ کله چه د لسو کالو شي).

دارنګه رسول الله ﷺ د هغه خلقو کور سیزلو چه جماعت ته نهٔ حاضریږي نو آیا په مسلمان باندے دا څه زور نشو ؟!. او لکه څنګه چه د دنیا په ټولو حکومتونو کښې هم د باغیانو خلقو سزاء، د عام مخالفو او دشمنانو قومونو نه جدا وي یعنې یا خو به د حکومت د قوانینو تابع کیږي او یا به وژلے شي او همدغه وجه ده چه په اسلام کښې د مرتد سزا وژل دي نهٔ د کافر.

(۲) رفعنا کښې اشاره ده دیته چه اے خلقو! تاسو د الله تعالیٰ په کتاب ځان پورته نکړو چه په هغې سره خلق اُوچتولے شي (د غر په شان) لکه حدیث کښې دي : (إِنَّ اللَّهَ يَرْفَعُ بِهَٰذَا الْكِتَابِ أَقْوَامًا وَيَضَعُ بِهِ آخَرِينَ) (احمد، ومسلم) (الله تعالیٰ پدے کتاب څه خلق پورته کوي او څه خکته کوي) نو ځکه ئے تاسو خکته کړئ او طور غرئے درباندے پورته کړو.

(۳) **فَوْقَكُمْ** : دا فوقیة حقیقي وو او پدے کښې تاویلونه کول چه دا حقیقي پورته کیدل نهٔ وو، بلکه هسے دهمکي وه چه دا غر درباندے راپورته کوم - غلط دي او تحریف دے، وجه دا ده چه ددے ډیرے قرینے دي یو دا چه سورة الاعراف (۱۷۱) کښې وائي : (وَإِذْ نَتَقْنَا الْجَبَلَ)

او نتق د بیخ نه راویستلو او پورته کولو ته وئیلے شي۔ (طبری)۔
بل دے دپاره (رَفَع او فَوْقَ او ظُلّة او وَاقِعٌ بِهِمْ) الفاظ استعمال دي یعنی د دوی دپاسه پورته کړے شو او داسے شو لکه د وریځ یا چهتریٔ په شان او قریبه وه چه راپریوتونکے وو په دوی باندے۔ دارنګه دوی بیا ګکه سجده ولے کوله۔ دارنګه ددے تائید پخپله د یهودیانو د کتابونو نه کیدے شي : تالمود شرح د تورات کښې ئے لیکلي دي چه دا حقیقي رفع وه۔
او کتاب جیوش انسائیکلو پیډیا (۲۳۱/٤) کښې هم دا تصریح شته (تفسیر ماجدی) احسن الکلام۔
(٤) پدے کښې معجزه د موسی ﷺ او د الله تعالیٰ د قدرت نخه وه چه د زمکے نه غر د چهتریٔ په شان پورته کولے شي۔
(۵) (تَتَّقُونَ) د تقوی د پیدا کیدو یوه طریقه الله تعالیٰ موږ ته دا اُوخودله چه قرآن ته تاسو کیني، دا اُوریٔ او دا بیانویٔ نو په دے کښې به نوے نوے خبرے راځي یا زړے خبرے به راځي په هغے سره به ستاسو ایمان کښې تازګي پیدا کیږي او تقوی به مو زیاتیږي۔ خو پدے شرط چه انسان ورته په صحیح نیت او توجه سره کیني۔ او ددے مثال داسے دے لکه ونے ته اُویه اچول نو قرآن د زړه د تازه کولو کتاب دے۔ دا آیت تعلق لري د هدی للمتقین سره۔ (٦) معلومیږي چه تقوی غایه ده د هر عمل، او مقصودي شے دے۔

| |
|---|
| ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ فَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ |
| بیا تاسو واوړیدلیٔ پس ددے (لوظ) نه نو که چرته نهٔ وے فضل د الله په تاسو او مهربانی د هغهٔ |
| لَكُنْتُمْ مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿٦٤﴾ |
| خامخا وے به تاسو د تاوانیانو نه۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې ددے خلقو لوظ ماتول او د الله تعالیٰ احسان ذکر دے په دوی باندے چه عذاب ئے نهٔ دے ورکړے۔ نو تاسو له شکر پکار دے۔ او د دغه فاسدو مشرانو تابعداري نهٔ ده پکار، نو دا کشرانو ته د دعوت طریقه شوه۔
تَوَلَّيْتُمْ : دا څنګه واوړیدل نو ددے تشریح روستو (۹۳) آیت کښې راځي (قَالُوْا سَمِعْنَا

وَعَصَيْنَا) یعنی اول کښې ئې اُومنله خو روستو ئې مخالفت شروع کړو۔
فَضْلُ اللهِ : (۱) فضل د الله تعالیٰ دا دے چه توفیق د توبے ئې درکړو او رحمت ئې دا دے چه توبه ئې درله قبوله کړه۔ (۲) بعض وائی : فضل الله قرآن، او رحمت نبی ﷺ دے۔ که الله تعالیٰ روستو زمانه کښې دا قرآن او نبی محمد ﷺ نۀ رالیږلے۔ نو تاسو له ئې عذاب درکولو۔ خو الله تعالیٰ په روستنو خلقو امتحان کولو چه دے آخری نبی او قرآن باندے ایمان لری او که نه ؟ که هغه ئې اُونه منلو نو بیا به ورله عذاب ورکړی۔ نو تاسو د رسول الله ﷺ د بعثت په وجه بچ شوئ نو راشئ ایمان خو راوړئ۔ نو بناء پدے دا موجوده یهودو ته خطاب شو۔ (۳) بعض وائی : فضل او رحمة عام دی چه دواړه مجموعه سبب د تاخیر د عذاب شو۔
**فائده** : قرآن کریم کښې اکثر مواقعو کښې فضل او رحمت جمع کیږی ځکه دا دواړه یو بل ته قریب شیان دی او د یو بل متمم دی، فضل کښې د زیادت معنیٰ ده او رحمت کښې د شفقت معنیٰ ده نو اشاره ده نعمت ورکولو ته او د تکلیف او مشقت پورته کولو ته۔
**الْخٰسِرِيْنَ** : (اَيِ الْمُهْلَكِيْنَ) خاسر پدے مقام کښې تباه شوی ته وائی یعنی تباه شوی به وے۔ الله تعالیٰ درباندے فضل او رحمت اُوکړو، سره د نافرمانئ نه ئې درته څه اُونه وئیل۔ صبر ئې درته اُوکړو۔

| |
|---|
| وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ الَّذِيْنَ اعْتَدَوْا مِنْكُمْ فِي السَّبْتِ |
| او یقیناً تاسو ته معلوم دی هغه کسان چه زیاتے ئې کړے وو ستاسو نه په ورځ د خالی کښې، |
| فَقُلْنَا لَهُمْ كُوْنُوْا قِرَدَةً خٰسِئِيْنَ ﴿۶۵﴾ |
| پس اُوونیل مونږ دوی ته شئ تاسو شادوګان ذلیلان۔ |

**تفسیر** : د نقض عهد (لوظ ماتولو) دویم مثال راوړی (الحیل فی الاحکام) چه دا داسے خلق وو چه دوی د الله تعالیٰ لوظونه مات کړی دی چه حیلے او چلونه ئې د الله تعالیٰ په احکامو کښې کړیدی۔ او دا ئې روستو ځکه ذکر کړو چه ددے واقعے زمانه روستو وه او دا نور مشران د یهودو مراد دی۔ (۲) دارنګه مخکښې نقض العهد وو فِسْقاً۔ یعنی مخکنو به د الله تعالیٰ حکمونه ماتول په فسق او نافرمانئ سره او دا نقض العهد دے بالحیل) په حیلو سره۔

یعني دے کسانو به د الله تعالیٰ حکم ماتولو په حیلو او چلونو سره۔
د واقعے تفصیل دا دے چه دا کسان د داود ﷺ په زمانه کښې د دریاب په غاړه یو کلی کښې چه د ایله په نوم وو او عَقَبَهٔ داؤد هم ورته وائي – اُوسیدل، دوی باندے الله تعالیٰ د خالي په ورځ د ماهیانو ښکار حرام کړو، وجه دا وه چه بنی اسرائیلو ته الله تعالیٰ د موسیٰ ﷺ په واسطه فرمایلی وو: چه په هفته کښې یو ورځ د خپل رب د عبادت دپاره خاص کړئ او زما په نیز د جُمعے ورځ غوره ده، خو ستاسو خوښه ده، نو دوی پکښې اختلاف اُوکړو او خانله ئے د هفتے ورځ منتخب کړه، نو الله تعالیٰ پرے د خالي په ورځ د دنیا هر کار حرام کړو، که ښکار کول وو او که نور تجارتونه وغیره۔ او هر کله چه دوی د خالي د ورځے انتخاب پخپله مرضیٔ اُوکړو نو الله تعالیٰ پرے امتحان اُوکړو۔ نو دا عمل چلیدو تردے واقعے پورے، لیکن په دوی کښې نور فسق او فجور زیاتیدو، نو زړه ئے صبر اُونکړو، ښکاره ماهیان به ئے لیدل چه ډیر به راتلل تردے چه اُوبه به د کثرت د مهیانو په وجه کمے ښکاره کیدے، آخر دا چه د ماهیانو د رانیولو دپاره ئے چلونه جوړ کړل او هغے ته ئے کندے اُوکنستلے، او په هغے کښې به ماهیان راغلل نو دوی به ورته بند اُوتړلو او بیا به ئے د اتوار په ورځ رانیول۔
دارنګه بله طریقه: د جُمعے په ورځ به ئے کندے اُوبو کښې واچولے نو د خالي په ورځ به پکښې مهیان ګیر شو بیا به ئے د اتوار په ورځ راویستل، نو د جُمعے په ورځ کندے اچول او کندے کنستل حرام نهٔ وو لیکن دوی دا حیله ګرځولے وه دپاره د ښکار په خالي ورځ کښې نو ځکه الله تعالیٰ دیته اعتداء اُوئیله۔ نو دوی باندے به که چا اعتراض اُوکړو چه تاسو دا څهٔ کوئ نو هغوی به تاویل کولو چه مونږ خو د خالي په ورځ د عبادت نه پدے کار نهٔ یو مشغول شوی، او ښکار مو نهٔ دے کړے (خپے ئے لا په اُوبو کښې دی) نو ددے نه په عوامو کښې دا متل مشهور شو چه ملا صاحب ئے خپے اُوبو ته کوی۔ یعني حیلے ورله ورځی۔
د دوی دا تاویل باطل وو ځکه دا د دوی د عذاب سبب شو۔ وجه دا وه چه ماهی کله ستا ډنډ ته راغلو نو دا مملوك شو، ددے وجه نه د هر یو خپل خپل ډنډ معلوم وو۔ او چه کله عامو اُوبو کښې وی نو بیا د ټولو مشترك وی۔
(۲) حسن بصریؒ فرمائی: دوی به د خالي په ورځ ښکار کول حلال ګڼړل نو دا د دوی اعتداء وه۔ (القرطبی، والنکت والعیون للماوردی) لیکن اول قول غوره دے۔
بیا په دوی کښې درے ډلے جوړے شوے یو ښکار کونکی بل منع کونکی او بل نیکانو لره

منع کونکی وو چه پریده چه خپل کار کوی تاسو دیر نصیحت ورته اُوکړو، خو ستاسو خبره نهٔ منی نو ځله ئے منع کوئ نو الله تعالیٰ پرے عذاب راوستو اوله ډله ئے هلاك کړه او ظاهر دا ده چه دویمه ډله ئے هم هلاکه کړیده لکه اعراف کښې به ددے تفصیل راځی ان شاء الله تعالیٰ او نهی عن المنکر والو له ئے نجات ورکړو۔

## په دین کښې حیلے کول حرام دی

حیله دیته وائی چه د الله تعالیٰ د حکم خلاف وی او چه قرآن او حدیث کښې کوم عمل راغلے وی یا په وحی سره ثابت شوے وی نو هغه حیله نهٔ ده، بلکه هغه حکم شرعی وی۔ ددے وجه نه زمونږ په دین کښې حیلے (چلونه) نشته۔ رسول الله ﷺ فرمائی : (لَا تَرْتَكِبُوْا مَا ارْتَكَبَتِ الْيَهُوْدُ) (دیهودو په شان کار مه کوئ) (فَتَسْتَحِلُّوْا مَحَارِمَ اللهِ بِاَدْنَى الْحِيَلِ) ۔(تاسو به حلال حرام کړئ په ادنیٰ (معمولی) حیلو سره۔ (ترمذی- ارواء الغلیل رقم ١٥٣٥ بسند حسن)

ددے وجه نه بعض اهل بدع د حیلو د اثبات دپاره د قرآن او د حدیث نه غلط استدلال کوی لکه وائی : یوسف علیه السلام د ورور په پاتے کولو کښې حیله کړے وه (كَذٰلِكَ كِدْنَا لِيُوْسُفَ) (دغه شان کید مونږ د یوسف دپاره کړے وو) دارنګه کله وائی چه ایوب علیه السلام د خپل قسم نه د ځان ویستلو دپاره جارو چه سل ډکی پکښې وو په هغے باندے ښځه اُووهله۔ (وَخُذْ بِيَدِكَ ضِغْثًا فَاضْرِبْ بِهٖ)۔

**الجواب** : دا استدلال خطاء دے یو خو دیته حیلے ویل صحیح نهٔ دی ځکه چه دا خو دے انبیاؤ ته د الله تعالیٰ حکمونه وو۔ نو دا په وحی سره ثابت شو۔ دارنګه پدے باندے نورے حیلے قیاس کول قیاس مع الفارق دے ځکه چه د نورو حیلو دپاره د وحی ثبوت نشته۔ او د دغه الفاظو نه خصوصیت هم معلومیږی چه (کدنا) کښې نسبت الله تعالیٰ ځان ته کړیدے نو دا په وحی سره وو او (لیوسف) کښې لام د اختصاص دے یعنی خاص وو د یوسف دپاره۔ لکه ددے تفصیل علامه ابن القیمؒ په اغاثة اللهفان (۱۰۲/۲) کښې ذکر کړیدے او په حیله ګرو ئے رد نه کړیدی۔ چه په دے واقعه باندے دلیل نیول هله صحیح دی چه زمونږ په دین کښې دا کارونه جائز شی او حال دا چه دا زمونږ په دین کښې حرام دی چه پلار په یو داسے عمل خفه کړی او په ورور باندے تهمت د غلا اُولګوی او د بل ملك قانون پرے جاری کړی۔ الخ نو پدے باندے قیاسونه کول غلط شو۔

امام بخاریؒ په خپل صحیح کښې کتاب الحیل او کتاب ترك الحیل ددې دپاره راوړیدې چه په دین کښې حیلې نشته۔ او دغه مخکښې حدیث هم پوره تردید د حیلو کوی۔
اوددې اُمت روستنو متأخرینو هم په دین کښې حیلې زیاتی کړیدی۔ عالمگیری وغیره د کتاب الحیل په نوم بابونه راوړیدی او حیلې ئې ثابتې کړیدی، د اُوداسه حیلې، د مانځه او د زکوٰة او شفعې وغیره چه بعض حیلې ئې دا دی:
۱- اوداسه او اُوبو کښې دا حیله کوی چه یو ډنډ چه عَشَرًا فِیْ عَشَرٍ نهٔ وی او گندگی پکښې پریوزی او تهٔ ترې اُودس کوې نو دا اُوبه خو نجسې دی نو حیله دا ده چه ددې خواته به ویاله اُویاسې او دغه اُوبه به ورته راکولاوې کړې نو چه اُوبهیدلې بس ستا دپاره پرې اُودس جائز شو، ځکه چه دا جاری اُوبه شوې۔
۲- په مانځه کښې ئې حیله دا ده چه د سحر سنت د جُمعې په خت نهٔ کیږی مگر ته اول نیت اُوتړه بیا ئې مات کړه نو د (لَزِمَ النَّفْلُ بِالشُّرُوْعِ) قانون په وجه به لازم شی نو بیا د جماعت د اُودریدو په وخت هم کیږی۔
۳- د زکوٰة حیله دا ده چه کله کال پوره کیدو ته نزدې شی یوه ورځ یا دوه ورځې پاتې شی نو ټول مال ښځې ته اُوبخه، بس ته فقیر شوې په تا زکوٰة نشته خو چه دغه دوه درې ورځې تیرې شوې، بیرته ترې واخله (ځکه چه هبه کښې رجوع جائز گڼړی) نو پدې پیسو کال تیر نشو نو هر کال دا کار کوه په تا باندې به هیڅ کله زکوٰة نهٔ راځی۔
٤- طلاقو کښې حیله دا ده چه سړې درې طلاقه ښځې له ورکړی نو ښځه خو ترې ځی نو زر دې ځان کافر کړی نو بیا به تجدید د نکاح اُوکړی۔
۵- په شفعه کښې حیله دا ده چه د شفیع طرف ته ډیوې کرځې په مقدار معمولی شان زمکه نهٔ خرڅوی نو بس شفعه به ئې باطله شی۔
٦- د غلا حیله دا ده چه غل نه لاس پرې نکړې شی چه یو غل دې کور ته داخل شی او هلته نه دې بل غل ته سامان راگوزار کړی، یا دې اُوبو کښې روان کړی نو بس دواړو غلو نه لاس نهٔ کټ کیږی۔ (عالمگیری)
۷- د قضائی مونځونو دپاره حیلهٔ اسقاط ته جائز وائی او دې دپاره ئې په شامی او عالمگیری وغیره کښې شرطونه وئیلی دی۔ او حال دا چه د مانځه فدیه په قرآن او حدیث کښې نهٔ ده راغلې، صرف د امام محمدؒ گمان د دوی دپاره دین گرځیدلې دې چه هغه وئیلی

دی چه زما امید دے چه که فدیه د مونځونو ورکړی نو قبوله به شی۔ نو دا د حیله ګرو دین دے، د یهودو په شان صفات ددے امت په اهل بدعو کښ هم کامل مکمل راغلل۔ د الله تعالیٰ حرام ئے په معمولی حیلو او شبهاتو حلال کړل۔ او دا د منافقانو خصلت دے يُخَادِعُوْنَ اللهَ وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا۔ د الله تعالیٰ سره دهوکے کوی۔
نو الله تعالیٰ مونږ منع کوی چه تاسو د الله تعالیٰ په حکمونو کښ چل ول مه کوئ۔ سیده ساده ئے اُومنئ۔

**فائده:** دا یهود الله تعالیٰ پدے وجه هلاك کړل چه د سحر نه مابنام پورے دماهیانو ښکار ورله حرام وو، (اګرکه ماهی حلال شے دے خو صرف دوی به د خالی په ورځ ښکارکولو)، نو څه به وی حال د هغه چا چه تهوله ورځ زنا ګانے کوی، پردی مالونه خوری، خیانتونه، دوهکے او دروغ وائی، د امام یا لیډر دپاره د الله تعالیٰ د نبی ﷺ د احادیثو نه جوابونه کوی، خائنته وکیل احناف او وکیل المقلدین وائی۔ نو دا څومره اعتداء او زیاتے دے، آیا په دوی به عذاب نۀ راځی؟ آیا دوی سره الله تعالیٰ کُنے وعده کړیده چه تاسو هرڅه کوئ تاسو خلاص یئ او صرف هغوی مجرمان وو ؟۔ والله المستعان ولا حول ولا قوة الا بالله۔

وَلَقَدْ عَلِمْتُمْ : تاکید سره ئے دا واقعه ذکر کړه (لِأَنَّهُمْ كَانُوْا يَتَكَاتَمُوْنَهَا فِيْمَا بَيْنَهُمْ) موجوده یهودیانو به دا واقعه خپل مینځ کښ د کشرانو او مخالفینو نه پټه ساتله ځکه چه د دوی د مشرانو دوهوکه او شرم پکښ وو۔ چه د ختیے دپاره ئے د الله تعالیٰ حکم مات کړیدے، ددے وجه نه په سورة الاعراف (۱٦۳) کښ داسے الفاظ دی : (وَاسْئَلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ) او پدے کښ ورته الله تعالیٰ توبیخاً وائی چه آیا تاسو مشرانو ته نۀ ګورئ چه الله تعالیٰ ورله د حیلو او چلونو په وجه څنګه سزا ورکړه نو آیا تاسو عبرت نۀ اخلئ!۔ نو دوی عبرت وانخستو نو الله تعالیٰ تهول ذلیله کړل ترقیامته پورے۔

الَّذِيْنَ : ددے نه مراد حالات د هغه کسانو دی او عین هغه خلق دوی ته نۀ وو معلوم۔ نو ددے وجه نه بعض مفسرین وائی چه دلته علم په معنی د معرفت دے ځکه معرفت تعلق لری د احوالو د شی سره۔ او علم تعلق لری د ذات د شی سره۔ (القرطبی و الطبری)

(۲) امام بغوئ فرمائی : ظاهر دا ده چه دوی ته عین هغه کسان معلوم وو۔ (معالم التنزیل)

(فِي السَّبْتِ) (أَيْ فِيْ تَعْظِيْمِ السَّبْتِ) یعنی په تعظیم د خالی کښ چه د خالی د ورځے تعظیم ئے سم نۀ کولو۔ ۲- یا د خالی په ورځ به ئے زیاتے کولو۔لکه مخکښ د هغے بیان تیر شو۔

السَّبْت : دا په معنیٰ د راحت او ارام سره دے لکه مَسْبُوت اُوده انسان ته وئیلے شي چه په آرام پروت وی۔ (وَجَعَلْنَا نَوْمَكُمْ سُبَاتًا) نو یهودو به هم پدے ورځ د دنیا د کارونو نه آرام کولو۔ (۲) یا سبت په معنیٰ د قطع سره دے، نو دوی به پکښې د خپلو کارونو نه منقطع شوی وو۔ (۳) یا په معنیٰ د فراغت سره ده نو الله تعالیٰ پدے ورځ د مخلوق د پیدائش نه فارغ شوے وو۔ (ابو عبیده) (النکت والعیون ۱/۵۷)

كُوْنُوْا : دا امر کونی دے، امر شرعی نهٔ دے۔ بلکه دیته خطاب التعجیز والتسخیر وائی۔ او پدے کښې مقصد دا وی چه سمدستی عذاب پرے نازل شو۔

**قِرَدَةً خَاسِئِيْنَ** : الله تعالیٰ ترے شادوګان جوړ کړل او ذلیله ئے کړل او ددے زیات تفصیل سوره اعراف (۱۶۳) کښې راځی او دوی حقیقةً شادوګان شوی وو. دوه درے ورځے وو بیا الله ختم کړل۔ کوم تفاسیرو چه لیکلی دی چه مخونه ئے د شادوګانو په شان شوی نهٔ وو۔ بلکه معنوی مسخ وه یعنی زړونه ئے مسخ شوی وو۔ لکه دا قول د مجاهدؒ نه نقل دے نو دا صحیح نهٔ ده۔ ابن کثیرؒ د ډیرو علماؤ اقوال راوړیدی چه دا مسخ صوری او معنوی دواړه وه۔ یعنی زړونه او مخونه دواړه ئے مسخه شوی وو۔ او د مجاهدؒ قول ته ئے شاذ او غلط او د قرآن کریم مخالف وئیلے دے۔ دغه شان سید قطبؒ وئیلی دی چه دا ضروری نهٔ ده چه د دوی جسمونه هم د شادوګانو په جسمونو بدل شوی وی، کیدے شی چه د روح، فکر، شعور او د مزاج په اعتبار سره هغوی نه شادوګان جوړ شوی وی، او د شادوګانو په شان حرکتونه ئے کړی وی ځکه د فکر عکاسیت او اثر په مخ، شکل او هیبت او حرکات او سکناتو باندے پریوزی، د انسان په ظاهری حالت باندے د هغه د فکر زور اثرات پریوزی۔ (فی ظلال ۱/۴۹) نو دا خبره هم غلطه ده او د ظاهر د قرآن کریم خلاف ده۔

خَاسِئِيْنَ : اَیْ مُبْعَدِیْنَ مَطْرُوْدِیْنَ۔ (معالم)۔ (هلاك شوی، شړلے شوی)۔

**فائده** : د شادو خپل شکل ډیر مزیدار دے لیکن انسان نه چه شادو جوړه شی ډیر بد ښکاری نو ځکه ئے ورسره خاسئین لفظ اُوئیلو چه دوی ډیر بد شکل ښکاره کیدل۔ او دوی له ئے دا جزاء ځکه ورکړه چه شادو په ظاهر کښې په شکل د انسان دے خو په حقیقت کښې انسان نهٔ دے نو دوی هم په ظاهر کښې د حق مطابق عمل کولو لیکن په حقیقت کښې هغه باطل عمل وو۔ نو جزاء من جنس العمل ورکړے شوه۔ د الله تعالیٰ د حکم شکل ئے بدل کړو نو د دوی شکلونه بدل کړے شو۔ او دغه شان زړونه ئے هم مسخ شو۔ (ابن کثیر ۱/۲۹۰)

بیا د دوی نسل باقی نهٔ دے پاتے شوے لکه دا د ابن عباس ﷺ نه نقل دی۔او هرچه شادو حیوان دے نو دا خو د پخوانه موجود دے، دا د هغوی نسل نهٔ دے۔ لکه قرطبیؒ کښې ددے تفاصیل اُوګوره۔

**سوال** : دا خلق چه مسخ شول نو د دوی عقل او فهم خو پاتے نشو نو دوی په خپل عذاب څنګه پوهیدل ؟ **جواب** : په مسخ سره صرف د دوی ظاهری شکل بدل شوے وو او په خبرو او انسانی کارونو باندے قادر نهٔ وو، لیکن په دے پوهیدل چه الله تعالیٰ مونږ له د ګناه د وجه نه داسے عذاب راکړے دے۔ لکه د ابن عباس ﷺ نه امام طبریؒ نقل کړیدی چه دوی کښې به یو تن د خپلوان خواته ورغلو، د هغه جامے به ئے بوئی کولے او ژړل به ئے نو هغه به ورته اُووئیل : آیا مونږ تاسو ددے کار نه نهٔ وئ منع کړی نو دهٔ به په سر اشاره اُوکړه چه آؤ۔ (طبری واللباب للدمشقی)

**فَجَعَلْنٰهَا نَكَالًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهَا**

نو مونږ اُوګرځوله دا واقعه (یا دا کلے) عبرت ناکه سزا د هغه چا دپاره چه مخکښې ددے کلی نه دی

**وَمَا خَلْفَهَا وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿٦٦﴾**

او هغه چه روستو دی ددینه۔او وعظ او نصیحت دپاره د تقوی والو (ددے امت)۔

**تفسیر** : مخکښې آیت کښې قصے ته اشاره اُوشوه نو اُوس ددے نه عبرت راوباسی، ځکه مقصود په قصه کښې د هغے نه عبرت اخستل وی، چه ګوره دا یو قوم دے الله تعالیٰ ورله د دریاب په غاړه رزق ورکوی او سمدست هلاکیږی دا ولے ؟ دا د الله تعالیٰ د نافرمانئ د وجه نه۔

**فَجَعَلْنٰهَا** : دا ضمیر (١) راجع دے قریه (کلی) ته ځکه مقام ئے تقاضا کوی۔ او همدا راجح دے۔(ابن کثیر) (٢) یا راجع دے عقوبة (سزا) ته۔ (٣) یا راجع دے امة (دغه ډلے) ته۔

(٤) یا راجع دے مَسْخَةٌ (د دوی مسخ کولو) ته۔ (٥) یا راجع دے قیصے او واقعے ته۔

(اللباب ١/٣٦٣)

(٦) د ابن عباس ﷺ نه طبریؒ نقل کوی چه ضمیر حیتان (مهیانو) ته راجع دے۔

(٧) بعض وائی : قردہ (شادوګانو) ته راجع دے۔(طبری)

**نَكَالًا** : نکال اصل کښې منع ته وئیلے شی، او دا عذاب هم سبب د منع شو د نورو خلقو

دپاره چه د دوی په شان کار اُوکړی. دارنګه نکال په معنیٰ د عقوبة یعنی عبرت ناکه سزا سره دے۔ (قرطبی عن الازهری) لکه د غل نه د لاس د پریکولو په باره کښې راځی: (نَکَالاً مِنَ اللّٰهِ) (المائدة: ۳۸)

لِمَا بَيْنَ يَدَيْهَا: (۱) (هَا) ضمير قريه (کلی) ته راجع دے او (مَابَيْنَ يَدَيْهَا) نه مراد حاضر او نزدے کلی او (مَا خَلْفَهَا) نه وړاندے کلی مراد دی. (یا مخکښې کلی او روستو کلی، ځکه د هر کلی نه څه مخکښې کورونه وی او څه روستو) ددے ټولو دپاره عبرت شو چه څوك (په بنی اسرائیلو کښې) د خالی د ورځے بے عزتی کوی دغه به ئے حال وی.

(۲) - یا د زمانے سره لګی یعنی (مَابَيْنَ يَدَيْهَا) نه مراد د هغه زمانے خلق دی او (مَا خَلْفَهَا) نه مراد روستنی اُمتونه دی.

(۳) ابن عطیة وئیلی دی چه ها ضمیر عقوبة (سزا) ته راجع دے او (مَابَيْنَ يَدَيْهَا) نه مراد تیر شوی (زاړهٔ) ګناهونه او (مَا خَلْفَهَا) نه روستنی ګناهونه دی. یعنی دا سزا د تیر شوو ګناهونو او د روستنو ګناهونوه په کوم باندے چه هلاك شو چه مهیان ښکار کول دی.

ابن کثیرؒ اول قول ته ترجیح ورکړیده. تائید کښې ئے آیت پیش کړیدے. (وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا مَاحَوْلَكُمْ مِنَ الْقُرٰى وَصَرَّفْنَا الْاٰيَاتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ) (احقاف: ۲۷)

مَوْعِظَةً: موعظه مصدر میمی دے د وعظ نه دے (۱) په معنیٰ د زجر او منع سره دے، یعنی دا منع کونکے شو. (۲) او موعظه کله تخویف ته وئیلے شی.

(۳) او کله تذکیر او عبرت ته هم وئیلے شی. (طبری)

مفسرینو داسے الفاظ وئیلی دی: (نَهْيًا وَزَاجِرًا وَتَذْكِرَةً وَعِبْرَةً) (یعنی دا نهی او منع کونکے او نصیحت او عبرت دے دپاره د متقینو) خپله به هم ترے عبرت واخلی او بل ته به هم وعظ او نصیحت اُوکړی چه دغه شان کار اُونکړی.

لِلْمُتَّقِيْنَ: د متقین نه مراد امة د محمد ﷺ دے. (اَیْ لِلْمُتَّقِيْنَ مِنْ هٰذِهِ الْاُمَّةِ (خازن) (بحر العلوم) دوی به هم عبرت واخلی چه څوك د الله تعالیٰ دغه شان نافرمانی کوی نو د هغوی به هم دغه شان انجام وی. اوکله چه په یوه علاقه عذاب راشی، نو هغوی له عبرت اخستل پکار دی، چا باندے سیلابونه په دے وخت کښې راځی چا باندے زلزلے راځی، غرونه پرے راپریوزی، دا هم د الله تعالیٰ بندګان دی مونږه هم یو، ولے په هغوی راپریوزی؟ نو دا د الله تعالیٰ د نافرمانئ په وجه، مونږه هم که هغه شان شو نو مونږ سره به هم دغه

شان معامله کیږی، د الله تعالیٰ یو شان بندګان دی۔ نو صرف په تقویٰ سره بچ کیږی۔
(۲) یا د هر امت متقیان مراد دی۔ (ابن عباس - آلوسی)
او همدا خبره ظاهره ده ځکه چه عموم اولیٰ دے۔

**فوائد** : (۱) ددے قصے فائده دا ده چه الله تعالیٰ مخلوق د خپلے بندګئ دپاره پیدا کړیدے، نو که دوی خپلے خوښے او طبع ته پریدیٰ نو په جسمانی لذتونو کښې به اخته شی ځکه چه دوی پرے د وړوکوالی نه اموخته دی نو الله تعالیٰ عبادات مقرر کړل او په معین اوقاتو کښې ئے مکرر کړل دے دپاره چه د بندګانو نه د طبیعتونو خیرے ختم شی، او تیاره د خواهشاتو ئے ختمه شی نو څوك چه ددے عباداتو خیال نهٔ ساتی نو د هغه د استعداد رڼړا به زائل شی او د زړه ډیوه به ئے مړه شی۔
۲ - بنده له پکار دی چه نصیحت واخلی د الله تعالیٰ د وعدو او وعیدونو نه۔
(۳) د معصیت (ګناه) نحوست (سپیره والے) (٤) د حکم شرعی حقیقت له اعتبار دے، ظاهر له اعتبار نشته که یو سړے ظاهراً ځان دین دار ښکاره کړی او حقیقت کښې نهٔ وی نو دا فائده نهٔ ورکوی۔ (۵) متقین هغه خلق دی چه ډیر احتیاط کوی او د شوائبو د حرامو نه پرهیز کوی۔ (٦) حرام په ډیر قسمه دی۔ (۷) تقویٰ سبب د عبرت دے۔

وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖٓ اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكُمْ اَنْ تَذْبَحُوْا بَقَرَةً ۔ قَالُوْٓا

اوکله چه اُووئیل موسیٰ خپل قوم ته یقیناً الله امر کوی تاسو ته چه حلاله (ذبح) کړئ یوه غوا، دوی اُووئیل :

اَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا ۔ قَالَ اَعُوْذُ بِاللّٰهِ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْجٰهِلِيْنَ ﴿٦٧﴾

آیا ته نیسی مونږ په ټوقو باندے، هغه اُووئیل : زهٔ پناه غواړم په الله سره ددے نه چه زهٔ شم د ناپوهانو نه۔

**تفسیر** : اُوس یوه بله واقعه راوړی چه په دے کښې هم د دوی حیله ذکر ده دپاره د ساقطولو د حکم د الله تعالیٰ۔ د الله تعالیٰ حکمونو منلو ته سمدست تیار نهٔ وو۔ دا د یهودو مرض وو۔ چه الله تعالیٰ به امر راولیږلو د پیغمبر په ژبه، دوی به وئیل که دا داسے شی او که داسے شی، چون وچرا او تعنت او تاخیر به ئے کولو۔ پدے وجه په احادیثو د رسول الله ﷺ کښې چون وچرا نهٔ ده پکار۔ چه که پدے عمل اُوشی نو داسے داسے به اُوشی۔ لکه

ډیر متأخرین دا کارونه کوی، د نبی ﷺ احادیثو له بے ځایه لارے گوری، او په هغے باندے ئے حملوی۔ او دا مشابهت د یهودو سره دے۔ او نبی ﷺ فرمائی: تاسو به د یهودو د طریقو پسے روانیږئ څنگه کارونه چه هغوی کړیدی زما اُمت به هم داسے کارونه کوی۔ لکه مثلاً یو حدیث به راشی، منلو ته به ئے تیار نهٔ وی ولے ؟ ځکه چه دا زمونږ د مذهب سره موافق نهٔ دے، دا د یهودو خبره ده۔ نو الله تعالیٰ پدے آیتونو کښں زمونږ تربیت کوی او مونږ یروی چه تاسو ددے خپل نبی په خبرو کښں چون وچرا اُونکړئ بلکه فی الفور تسلیم شئ۔او دا توقے مه کنړئ۔ (أَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا) نو عنوان د آیت دے: (بَيَانُ تَعَنُّتِ الْيَهُودِ فِي أَحْكَامِ اللّٰهِ وَتَأْخِيرُهُمْ) (د یهودو تعنت او چون وچرا او تاخیر په احکامو د الله تعالیٰ کښں)۔

**اَنْ تَذْبَحُوا بَقَرَةً**: د ذبح کولو د بقرے امر ئے ورته ولے کولو ؟ (۱) نو یو د دوی طاعت او عدم طاعت معلومول مقصد وو چه دوی څومره تابعدار دی او څومره نهٔ دی۔ د الله تعالیٰ په هرڅه کښں امتحان وی۔ ۲ – دویمه وجه امام قرطبیؒ، ماوردیؒ او ابن القیم صاحبؒ په بدائع التفسیر (۱/ ۳۲۰) کښں لیکلے ده: (لِيُهَوِّنَ عَلَيْهِمْ مَعْبُودَهُمْ) (دے دپاره چه دوی ته معبود سپك بنکاره کړی) ځکه دوی د غوا عبادت کړے وو۔ نو ورته اُوونیل شو چه دا په خپل لاس ذبح کړئ چه تاسو ته پته اُولگی چه دا چا له ضرر او فائده نهٔ شی ورکولے، او پدے کښں تنبیه وه چه دا قسم حیوان د ذبح او د حرث او د سقی (ایوے، اُوبه خور) د تذلیل نه ځان نشی بچ کولے۔ نو دا به څنگه د اُلوهیت دپاره صلاحیت اُولری۔لکه یو مشرك تازه مؤحد شی نو هغه ته اُوونیل شی چه د فلانی زیارت (بابا) نه جنډے ماتے کړه، دے دپاره چه هغه ته معلومه شی چه دا چا له نفع او نقصان نشی ورکولے او هیبت د بابائے د زړه نه اُوځی۔

او پدے واقعه کښں شخصی جزئی ډیر فوائد به راځی لکه د بنی اسرائیلو تعنت او چون وچرا، او ډیر بے ځایه تپوسونه، او دا اُمت منع کول دی چه د یو شی په حکمة نهٔ پوهیدلے نو بس تسلیمیږه، په هغے اعتراض مهٔ کوئ۔ دا عظیمه فائده ده۔

**فائده** : غوا أَبْلَدُ الْحَيَوَانِ (په حیواناتو کښں ډیر کم عقل) دے، اگرکه مشهور نهٔ دے او بنی اسرائیل پدے کم عقل حیوان باندے دوه ځل دوهوکه شویدی۔اشاره ده چه مشرك دغه شان کم عقل اوکم دماغے وی۔په معمولی څیزونو د عظیم ذات نه دهوکه شی۔

(۲) دویم قول: پدے کښں د عام مفسرینو قول دا دے چه دا واقعه مخکښں وه په ذبح د غوا باندے او تقدیم تاخیر په واقعه کښں شویدے دپاره ددے چه د هرے واقعے نه خپلے خپلے

فـائـدے راوځی لیکن ددے قول معتمد تائید نشته۔ لهذا د قتل واقعه ددۓ اصل سبب او باعث نۀ وو، هغه په کښ خود بخود راپیښه شویده۔ دلائل دا دی : ۱ - ځکه که هغه سبب وے نـو دوی بـه سـمدستـی ذبـح کـړی وے، تهال متهول ته ضرورت نۀ وو ځکه چه قاتل زر معلوم شویوے۔ او حال دا چه د ابن عباس ﷺ نـه نقل دی چه دوی څلویښت کاله پس ذبح کړے وه۔ ۲ - دویم دا چه دا واقعه ئے په (اِذْ) لفظ سره راوړه، اشاره ده چه دا مستقله واقعه ده او د یهـودیانـو حیلـه پکښ ذکر ده۔ ۳ - دریم دا چه ترتیب قرآنی دلالت کوی چه دا واقعه مقدم وه او واقعه د قتل النفس روستو وه۔

يَأْمُرُكُمْ : **فائده** : ددے نـه مـعلومیږی چه امر د شارع د وجوب دپاره وی مګر که دلیل ددے په خلاف موجود شی۔ (۲) **فائده** : بنـی اسرائیلو کښ تعنت زیات وو، د نبی د خبرے پوره احترام ئے نۀ کولو نو ځکه موسی ﷺ پدے مقام کښ الله تعالیٰ ته نسبت د امر اُوکړو چه دا زما امر نـۀ دے بـلـکـه دا د الله تعالیٰ امر دے نو ددے عملی کول فرض دی۔ او قرآن او حدیث کښ د تاکید په صورت کښ او د حل او حرمت په باب کښ الله تعالیٰ تـه نسبت کیږی۔

بَقَرَةً : ددے نـه حـقیـقـی ظاهری غوا مراد ده او نفس ترے نۀ دے مراد لکه بعض صوفی مفسرین لیکی چه مراد دلته خپل نفس نه بد صفات وستل او هغه د شهواتو نه منقطع کول مقصد دے۔

**فائده** : غـوا ګانے الله تعالیٰ ددے دپاره پیدا کړیدی چه (۱) هغه ذبح کړے شی او د غوښے او د هډوکـو نـه ئے فـائده واخستے شی۔ (۲) د هغے نه پئ (شوده) حاصلول۔ (۳) ایوه کول (٤) او ارټ کـښ استـعـمـالـول۔ (اوبـه پـرے راویستل) ددے نـه مـاسوا نورے فـائدے ترے اخستـل صـحـیـح نـۀ دی لـکـه هغے باندے بعض خلق ګاړی تړی، بعض خلق پرے سورلی کـوی دا ظـلـم دے۔ حـدیث کـښ دی : یـو سړے پـه غوا باندے سور وو نو هغے ورته خبرے اُوکړے : (اِنَّـا لَـمْ نُخْلَقْ لِهٰذَا، اِنَّمَا خُلِقْنَا لِحَرَاثَةِ الْاَرْضِ) (مـونـږ دے (سوریدلو) له نۀ یو پیدا شوی، مـونـږ د زمـکـے د کـروندے دپاره پیدا یو) خلقو اُووئـیـل : (سُبْـحَـانَ اللّٰهِ بَقَرَةٌ تَتَكَلَّمُ) تـعـجـب دے ! غوا هم خبرے کوی) نو نبی ﷺ اُوفرمایل : زۀ پدے ایمان راوړم او ابوبکر او عـمـر ئـے هـم راوړی۔ او پـه دغـه مقام کښ ابوبکر او عمرؓ نۀ وو موجود، (او د هغوی د ایمان ګواهي ئے ورکړه) (متفق علیه، مسند احمد ۲/۲٤٥، السنن الکبری : ۸۱۱٤)

(اَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا) هـمزه د تعجب دپاره ده، او هُزُواً مصدر مبنی للمفعول دے یعنی (مَهْزُوًّا بِنَا) (آیا ته مونږ توقه کړے شوی جوړوے) یعنی توقے راپورے کوے)

(۱) د غوا محبت ئې دومره زړه ته داخل شوې وو چه د هغې په ذبح کولو ئې تعجب کولو (وَاُشْرِبُوْا فِیْ قُلُوْبِهِمُ الْعِجْلَ) نو ځکه ئې اُووئيل : تهٔ مونږ سره توقې کوې. مطلب ئې دا وو چه د غوا په حلالو کښې څه فائده ده ؟ لهذا دا د جاهلانو خبرې دي.

او(۲) دويمه وجه د تعجب ئې دا وه چه دوی په حكمة نهٔ پوهيدل : او مطلب ئې دا وو : (نَسْئَلُكَ عَنِ الْقَتِيْلِ وَعَمَّنْ قَتَلَهُ وَتَأْمُرُنَا بِذَبْحِ الْبَقَرَةِ) (معالم) مونږ تا نه ددې وژلې شوی او د قاتل په باره کښې تپوس کوو او تهٔ مونږ ته د غوا په ذبح کولو حكم کوې) دواړو کښې څه مناسبت دې. دا خو توقې ښکاره کيږی. (بنا په يو تفسير)

**فائده** : کله چه يو حكم شرعي راشي او انسان د هغې په حكمة باندې نهٔ پوهيږی نو هغه له تسليمدل پكار دي او خپل عقل به نهٔ استعمالوی. بلكه دا د يهودو كار دې.

(۲) دويم پدې كښې نسبت د استهزاء نبی (موسی) ﷺ ته دې.

**فائده** : آيا ددې کلمې په وئيلو سره دوی كافر شول او كه نهٔ ؟ نو پدې كښې دوه قوله دي (۱) اول دا چه دوی پدې کلمه کافر شويدی. وجه دا ده چه پيغمبر ته ئې د توقو نسبت كړيدې او د نبی امر ورته توقې ښكاره شويدی. دويم دا چه موسی ﷺ خو ورته د الله تعالىٰ خبره كړې وه او دوی هغې ته توقې اُووئيلې. غرض ئې دا وو چه موسیٰ ﷺ به مونږ ته د ذبحې امر په رشتيا سره نهٔ کوی نو دا نيت د خيانت دې نبی ته په وحی الهی کښې او دا كفر دې. (۲) دويم قول دا دې چه دا جاهلان وو. د نبی شان ئې سم نهٔ پيژندلو او د دوی اراده صحيح وه ليكن الفاظ ئې د زړه د سختوالی نه كارهٔ وئيلی دی. نو پدې سره كافر شوی نهٔ دی اګر كه دا كار ګناه ده. دوی له پكار وو چه په ښائسته طريقه ئې داسې تپوس كړې وې چه ددې غوا په ذبح كولو كښې به څه حكمة وی چه مونږه پرې عمل اُوكړو ؟.

(الْجَاهِلِيْنَ) (۱) (اَیِ الْمُفْتَرِيْنَ عَلَى اللّٰهِ) (د دروغ جوړونكو نه په الله تعالىٰ) دې نه دا فائده معلومه شوه چه مفتری علی الله (په الله تعالىٰ باندې دروغ جوړونكې) جاهل وی يعنی دا خو د ناپوهو كار دې چه په الله تعالىٰ باندې دروغ جوړوی. (۲) بعض اهل لغت وائی چه جهل او جهالة کله نفس استهزاء ته وئيلې شی نو معنیٰ دا ده : (اَیِ الْمُسْتَهْزِئِيْنَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ) (معالم، خازن، اللباب) (چه زهٔ شم د توقو كونكو نه په مؤمنانو پسې) او ددې نه معلومه شوه چه په خلقو پسې توقې او استهزاء كول جهالت دې.

۲- دارنكه د ځان نه فتوې وركول چه الله تعالىٰ داسې داسې وئيلی دي او هغه نهٔ وی

وئیلي نو دا وینا ګانې جهالت دې۔ ۳- په توقو کښې دروغ وئیل هم کبیره ګناه ده۔
(٤) بعض وائي : (اَلْجَاهِلِيْنَ بِالْجَوَابِ لَا عَلٰى وَفْقِ السُّؤَالِ) (معالم، خازن) يعنی الله تعالىٰ پورې پناه غوارم چه زهٔ د جاهلانو نه شم په جواب غیر موافق د سؤال) چه تاسو رانه د قتل د نفس سوال کړے وی او زهٔ درته د هغې مخالف جواب درکوم بلکه دا غوا ذبح کول بعینه ستاسو د سوال جواب دے، پدے سره به قاتل معلوم شي۔
(۵) بعض وائي : (مِنَ الْجَاهِلِيْنَ بِمَا فِي الْاِسْتِهْزَاءِ فِيْ أَمْرِ الدِّيْنِ مِنَ الْعِقَابِ الشَّدِيْدِ وَالْوَعِيْدِ الْعَظِيْمِ) (اللباب) (چه زهٔ شم د ناخبرو نه په هغه سخت عذاب او مضبوط وعید چه په دین کښې په استهزاء باندے حاصلیږي) يعني ما ته خو په دین کښې د توقو سزا او عذاب معلوم دے نو زه به څنګه توقے اُوکړم۔
بیا پدے جمله کښې ډیر تاکیدات دی (۱) یو دا چه د استهزاء نه په الله تعالىٰ پورې پناه طلب کول ضروری دی۔ (۲) استهزاء خو د جاهلانو کار دے۔ (۳) او اشاره ده چه زهٔ جاهل نهٔ یم او تاسو جاهلان ئې چه ما ته د توقو نسبت کوئ۔(قرطبی)
**فائده :** جهل معنیٰ : په نالائقه طریقه سره څه کار کول دی، (مفردات راغب) يعنی الله تعالىٰ ته د داسے څیز نسبت کول چه هغه ئې امر نهٔ وی کړے دا خو جهل دے۔
او اسباب د جهل نهه دی (۱) استهزاء فی احکام الله (د الله تعالىٰ په احکامو کښې استهزاء کول) لکه پدے آیت کښې شوه۔ (۲) نفس بے خبری د حقیقت نه۔ (سورة البقره : ۲۷۳)
(۳) دریم هر قسم ګناه کول جهل دے۔ (سورة النساء : ۱۷)۔
(٤) څلورم : طلب د تشبیه د مشرکانو (سورة الاعراف : ۱۳۸)
(۵) پنځم : فقراؤ پورے مسخرے کول۔ (سورة هود : ۲۹)
(٦) شپږم : پردو زنانو ته میلان کول۔ (سورة یوسف : ۳۳)
(۷) اُووم : بد فعلی د نارینو سره (سورة النمل : ۵۵)
(۸) اتم : خیانت کول په امانت د الله تعالىٰ کښې (سورة الاحزاب : ۷۲)
(۹) نهم امر : کول په عبادت د غیر الله۔ (سورة الزمر : ٦٤)
نو دوی پوهه شو چه خبره خو رشتیا ده نو بیائې چون وچرا شروع کړله په تپوسونو کولو سره دے دپاره چه دا حکم منسوخ شي، همغه شان په زړه کښې ئې محبت د غوا پاتے وو۔

قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا

دوی اُووئیل : دعا اُوغواړه زمونږ دپاره د رب خپل نه چه بیان کړی مونږ ته

مَا هِيَ، قَالَ اِنَّهٗ يَقُوْلُ اِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا فَارِضٌ

چه څنګه ده دا غوا (عمرئې څومره دے) اُووئیل موسی علیه السلام یقیناً الله فرمائی دا غوا ده، نه بوډئ (زړه) ده

وَّلَا بِكْرٌ عَوَانٌ ۢ بَيْنَ ذٰلِكَ ۚ فَافْعَلُوْا مَا تُؤْمَرُوْنَ ﴿٦٨﴾

او نهٔ نوئے خوانه ده، درمیانه ده په مینځ د دے کښې، بس اُوکړئ هغه کار چه تاسو ته ئے حکم کیدے شی۔

**تفسیر**: اُدْعُ لَنَا رَبَّكَ : دا هم د تعنت او د سختئ الفاظ دی، چه ګویا دا د موسیٰ علیه السلام رب دے او د دوی نهٔ دے، دارنګه ګویا کښې ددے سوال تعلق صرف د موسیٰ علیه السلام او د هغه د رب سره دے او د دوی ورسره څه خاص دلچسپی نشته دے، دا صرف د موسیٰ علیه السلام او د هغه د رب معامله ده. بیا موسیٰ علیه السلام ته دا وئیل چه هغه دے خپل رب نه معلومه کړی چه دا غوا څه شے دے، دلته مقصد خو دا وو چه غوا څنګه وی، لیکن دوی د استهزاء او انکار په طور تپوس کوی چه غوا لا څه شے دے؟، ګویا کښې دوی د غوا د ماهیت (حقیقت) نه خبر نهٔ دی. (فی ظلال)

يُبَيِّنْ لَّنَا مَا هِيَ: یعنی عمرئې څومره دے. او دا وره ده او که غټه ؟. مفسرین فرمائی : د عبد الله بن عباس رضی الله عنه نه نقل دی : (فَلَوْ اَنَّهُمْ عَمِدُوْا اِلٰى اَدْنٰى بَقَرَةٍ فَذَبَحُوْهَا لَاَجْزَأَتْ عَنْهُمْ وَلٰكِنَّهُمْ شَدَّدُوْا عَلٰى اَنْفُسِهِمْ بِالْمَسْأَلَةِ فَشَدَّدَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ بِالْمَنْعِ) (بحر العلوم للسمرقندی ١/٦٦ وغیره) که دوی هره غوا رانیولی وے او حلاله کړے وے نو بس فرض به ادا شوی وے لیکن دوی په ځان سخته کړه په تپوسونو نو الله تعالیٰ هم پرے سخته کړه). نو دغه رنګه په احکام شرعیه ؤ کښې هم سختی نهٔ ده پکار. بس چه الله تعالیٰ او رسول یو امر اُوکړو نو (آمَنَّا او سَلَّمْنَا) وئیل پکار دی. او په جلتئ سره هغے باندے عمل پکار دے.

نبی صلی الله علیه وسلم هم ددے نه منع کړیده چه بے ځایه تپوسونه به نهٔ کوئ او په مطلق حکم به عمل کوئ. لکه حدیث کښې دی : نبی صلی الله علیه وسلم اُوفرمایل : حج فرض دے، اقرع بن حابس رضی الله عنه تپوس

اُوکړو : هر کال ؟۔ نو نبي ﷺ پدې غصه شو چه هر کال فرض وې نو ما به درته وئيلي وې۔ بيا ئې اُوفرمايل : (ذَرُوْنِيْ مَا تَرَكْتُكُمْ) (يعني ما چه د يو شي تشريح نۀ وي کړې نو د هغې په ځايه تپوس نه ما نه مۀ کوئ)۔ (بخاري وصحيح مسلم : ١٣٣٧)

که د غوا وړوکوالې، غټوالې او رنګ او عمل وغيره د الله تعالیٰ مراد وې نو خپله به ئې د هغې بيان کړې وې، هرکله چه الله تعالیٰ د هغې بيان اُونکړو نو بس يوه غوا ذبح کولو سره کار پوره کيدو۔ او دا قانون په احکام شرعيه ؤکښې ډير پکار راځي چه يو مقام کښې الله تعالیٰ آساني کړې وي او حکم ئې مطلق ذکر کړې وي نو انسان به په هغې کښې د ځان نه قيدونه نۀ لګوي، لکه بعض فقهاؤ په باب د مسح د جوربين او خفين وغيره کښې قيدونه لګوي چه هغه په احاديثو کښې نۀ دي ثابت۔

اِنَّهٗ : دا ضمير شان دې يعني شان دا دې۔

فَارِضٌ : ډير عمر والا بو ډۍ ته وائي چه ډير بچي ئې راوړي وي۔

بِكْرٌ : ديته وائي چه نوې ځوانه وي، حمل ئې لا نۀ وي شوې۔ عوان ديته وائي چه درميانه عمر والا وي يو بچې دوه ئې پيدا شوي وي۔ (بين ذلك) يعني په بينونت حقيقي سره يعني نۀ فارض ته ماثله ده او نۀ بکر ته۔

﴿ فَافْعَلُوْا مَا تُؤْمَرُوْنَ ﴾ چون وچرا مه کوئ۔ او د الله تعالیٰ په امر کښې تاخير مه کوئ۔ او امر ئې ورته دوباره اُوکړو دپاره د تاکيد چه دا حکم په ډيرو تپوسونو نۀ منسوخ کيږي بلکه دا به ضرور کوئ۔

قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا مَا لَوْنُهَا ۚ قَالَ

دوی اُووئيل اُوغواړه زمونږ دپاره د رب خپل نه چه بيان کړي مونږ ته چه څه دې رنګ د دې، اووئيل هغه

اِنَّهٗ يَقُوْلُ اِنَّهَا بَقَرَةٌ صَفْرَآءُ ۙ فَاقِعٌ لَّوْنُهَا تَسُرُّ النّٰظِرِيْنَ ﴿٦٩﴾

يقيناً الله فرمائي چه يقيناً دا يوه غوا ده زيړ رنګ والا، خالص دې زيړ رنګ د هغې۔ خوشحاله کوي کتونکو لره۔

**تفسير** : دا بل تعنت او تشدد دې چه بار بار تپوسونه کوي او په خپل ځانونو باندې ئې وسيعه دائره تنګه کړه، ځکه مخکښې په هر قسم غوا ذبح کولو باندې عمل کيدو اُوس به دغه شان صفاتو والا غوا پيدا کوي۔ نو دوی اُووئيل : کوم قسم غوا حلاله کړو، زيړه، سپينه، توره ؟۔

(فَاقِعٌ) دے تـه وائـی چـه زیړ والـی کښې زیادت او کمال وی، بل رنګ پکښې نهٔ وی. یعنی خالص زیړ رنګ. او فاقع تاکید صرف د زیړ رنګ دپاره راځی نهٔ د بل رنګ دپاره. لکه په عربئ کښې د سور رنګ تاکید په اَلْاَحْمَرُ الْقَانِیُ او د تور رنګ تاکید په اَلْاَسْوَدُ الْحَالِكُ او د سپین رنګ اَلْاَبْیَضُ الْخَالِصُ یا اَلنَّاصِعُ او د شین رنګ په اَلْاَخْضَرُ النَّاضِرُ سره راځی.

﴿تَسُرُّ النّٰظِرِیْنَ﴾ ځکه خربه ده، مزیداره، ښائسته ده. او زمیندار او شپونکے او هر څوك چه ورته ګوری نو پرے خوشحالیږی، ځکه حیواناتو کښې هم الله تعالیٰ یو ډول اچولے دے.

**فائده** : عام مفسرینو د علی او ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړیدی چه هغوی به ترغیب ورکولو په زیړ پیزار اغوستلو کښې او وئیل به ئے چه زیړ رنګ په زړه کښې خوشحالی پیدا کوی او غم لرے کوی د وجه ددے آیت نه. او ابن زبیرؓ او یحیی بن ابی کثیرؒ د تور پیزار نه منع کوله چه دا انسان له غم جوړوی. (القرطبی ١/ ٤٥١) (الثعلبی) روح المعانی، اللباب، تفسیر ابی السعود ١/ ١١٢) لیکن دا د تجربے خبره ده او حکم شرعی نهٔ دے.

قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ یُبَیِّنْ لَّنَا مَا هِیَ ،

دوی اُووئیل : اُوغواړه زمونږ دپاره د رب خپل نه چه بیان کړی مونږ ته چه څنګه دے صفت (عمل) ددے غوا،

اِنَّ الْبَقَرَ تَشٰبَهَ عَلَیْنَا ؕ وَاِنَّآ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ لَمُهْتَدُوْنَ ﴿٧٠﴾

یقیناً دا غوا ګډه وډه شوه په مونږ باندے او یقیناً مونږ که چرته د الله خوښه شی خامخا مقصد ته رسیدونکی یو.

**تفسیر** : پدے کښې د دوی دریم سوال ذکر کوی او دا د مخکنی سوال نه هم ډیر بے ضرورته دے ځکه چه د غوا عمل او کار معلوم ول په ذبح کولو کښې ضروری نهٔ دی. لیکن دا د چون وچرا والا خلق وو. یعنی مقصد ئے دا وو چه بله نخه وغیره پکښې شته او که نهٔ، دارنګه ارتی ده او که غیر ارتی ده. کج روی او د الله تعالیٰ د رسول په ډیرو تپوسونو تنګول د بنی اسرائیلو فطرت ثانی وو.

مَاهِیَ : یعنی زیړے غواګانے خو ډیرے دی، خو دا کارنده ده او که نهٔ ده ؟.

﴿اِنَّ الْبَقَرَ تَشٰبَهَ عَلَیْنَا﴾ اَلْبَقَرُ: اسم جنس دے، یعنی دا جنس غوا په مونږ ګډوډه شوه. الله تعالیٰ خو ورته صفا بیان کړے وو خو دوی په ځان ګډه وډه کړه. ذهن کښې ئے شکوك او

شبهات راتلل۔ لیکن یوه خوږه کلمه ئې اُووئیله نو د هغې د برکت نه ئې عمل اُوکړو، او شکونه ئې ختم شو او تسلي ئې اُوشوه۔

**فائده** : پدې کښې اشاره ده چه د الله تعالیٰ او د هغه د رسول بیان مکمل وي لیکن کوم خلق چه په کښې شکونه کوي، یا پرې نۀ پوهیږي او تسلي ئې نۀ کیږي نو دا د هغوي خپل نقصان دے۔

﴿ وَاِنَّا اِنْ شَاءَ اللهُ لَمُهْتَدُوْنَ ﴾ انابت پکښې راغلو نو الله تعالیٰ ورته هدایت اُوکړو، مقصد ته ئې اُورسول۔ حدیث کښې راغلي دي : (لَوْ لَمْ يَسْتَثْنُوْا لَمَا بُيِّنَتْ لَهُمْ آخِرَ الْاَبَدِ) (ابن جریر، ابن کثیر) (که دوي ان شاء الله نۀ وے وئیلے نو قیامته پورې به دوي ته بیان نۀ وے شوے)۔ هم دغه شان به دوي سوالونه کولے۔ یهود خو قیامته پورې شته نو دا سوالونه به دوي باندې واردیدلے۔ او دا کلمه داسې عظیم الشان ده چه سلیمان ﷺ نه هیره شوه نو د هغه د سلو بي بیانو نه هیڅ اولاد پیدا نۀ شول بلکه یو ناتمام بچے پیدا شو۔ او د نبي ﷺ نه هیره شوه نو خلوېښت یا پنځوس ورځې وحي بنده وه۔

لَمُهْتَدُوْنَ : (۱) لَمُهْتَدُوْنَ اِلَى ذَبْحِهَا (یعنې مونږ به ددې ذبح ته اُورسیږو) (۲) لَمُهْتَدُوْنَ عَلٰى اِجْرَاءِ اَحْكَامِ اللّٰهِ) د الله تعالیٰ د حکم عملي کولو ته به اُورسولے شو) (۳) لَمُهْتَدُوْنَ اِلَى وَصْفِهَا) (خازن) (ددې صفاتو ته به اُورسولے شو)۔

| |
|---|
| قَالَ اِنَّهٗ يَقُوْلُ اِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا ذَلُوْلٌ |
| اُووئیل موسیٰ ﷺ یقیناً الله تعالیٰ فرمائي : یقیناً شان دا دے چه دا یوه غوا ده چه نۀ دې خټ اړولے شوے د هغې |
| تُثِيْرُ الْاَرْضَ وَلَا تَسْقِى الْحَرْثَ ۚ مُسَلَّمَةٌ لَّا شِيَةَ فِيْهَا قَالُوا |
| چه اړوي زمکه او نۀ اُوبه کوي فصل لره ۰ روغه رمټه ده، هیڅ داغ نشته پدېکښې، دوي اُووئیل : |
| الْـٰٔنَ جِئْتَ بِالْحَقِّ ۚ فَذَبَحُوْهَا وَمَا كَادُوْا يَفْعَلُوْنَ ﴿۷۱﴾ |
| اُوس دې راوړو پوره بیان، نو حلاله ئې کړه او نیژدې نۀ وو دوي چه دا کار ئې کړے وے۔ |

**تفسیر** : لَا ذَلُوْلٌ : (یعنې مُذَلَّل)، دې ته وائي چه تابع کړے شوې وي، خټ ورله چا اړولے وي

په جغ باندے۔ يعنی کار ئے کړے نهٔ دے۔
تُثِيْرُ الْأَرْضَ : دا صفت د ذلول دے د (لَا) د لاندے دے۔ یعنی زمکه وغیره ئے نهٔ ده اړولے، قولبه پرے نهٔ ده شوے ځکه کله چه په غوا باندے قولبه اُوشی نو بیا ئے ځتّ واوړی۔ او ددے بعض خلق داسے معنیٰ کوی چه اړوی زمکه۔ دا معنیٰ صحیح نهٔ ده۔ ځکه که دا معنیٰ واخلو نو بیا د (تُثِيْرُ الْأَرْضَ) او (ذَلُوْلٌ) تعارض راځی ځکه چه زمکه ئے واړوله نو بیا خو مذلله شوه، بلکه دلته معنیٰ د نفی ده۔
(وَلَا تَسْقِي الْحَرْثَ) یعنی چا پرے فصل هم نهٔ دے اُوبه کړے۔
مُسَلَّمَةٌ : (اَیْ سَالِمَةٌ مِنَ الْعُيُوْبِ وَالْآثَارِ) (ابن عباس، قتاده) (د عیبونه نه روغه ده) (۲) (مُسَلَّمَةُ الْقَوَائِمِ وَالْخَلْقِ) (عطاء الخراسانی) (زاد المسیر) (یعنی روغو خپو او اندامونو او شکل والا ده)۔
(شِيَةَ) (اَیْ لَا لَوْنَ فِيْهَا غَيْرَ الصُّفْرَاوِيَّةِ) (د زیړ رنګ نه پکښې علاوه بل رنګ نشته) او شِيَةٌ اصل کښې (وَشْیٌ) دے، هغه داغ او اثر او بدل رنګ ته وئیلے شی چه د عام رنګ نه مخالف وی۔ (مفردات)۔
**بِالْحَقِّ** : د حق دوه معنے دی : ۱- حق مقابل د باطل: اُوس دِے حق بیان کړو او اُوسه پورے دے هسے باطلے خبرے کولے۔ نو ابن جریر الطبریؒ او ابن القیمؒ لیکی : (هٰذِهٖ رِدَّةٌ ظَاهِرَةٌ) دا دلیل دے چه دا مرتدین وو د اسلام نه، ولے پیغمبر ته څوك داسے وائی چه دا خبره باطله ده۔ بلکه د پیغمبر ټولے خبرے حقے دی۔ ۲- دویم راجح دا ده چه دوی مسلمانان وو لیکن جاهلان وو، د حق معنیٰ ده (اَلْبَيَانُ الْكَامِلُ) یعنی اُوس دِے پوره بیان اُوکړو۔ او اُوسه پورے دِے ناقص بیان وو۔ دا خبره ئے هم غلطه ده، (او پدے باندے دا سخت ګناهګار شویدی) وجه دا ده چه اُوسه پورے هم ښهٔ پوره کامل بیان وو خو دوی په ځان په زوره سختوله، بس یوه غوا راونیسئ، حلاله ئے کړئ، کار به اُوشی۔ د مبتدعینو هم دا طریقه ده چه د هغوی د پیغمبر په کامل بیان باندے یقین نهٔ راځی بلکه هغه ورته ناقص ښکاری او د خپلو مشرانو مُلیانو خبرے ورته کاملے ښکاری، قرآن او حدیث ورته نیمګړی ښکاری چه پدے کښې خو لسمه حصه دین هم نشته۔ وائی : دا امامانو پوره کړیدے!!!۔
(فَذَبَحُوْهَا) نو بس په دغه وخت کښې ئے حلاله کړه۔
(وَمَا كَادُوْا يَفْعَلُوْنَ) یعنی نزدے نهٔ وو چه دوی مخکښې ددے بیان نه دا کار کړے وے، ځکه د غوا تقدس او عظمت ئے په زړه کښې پروت وو، دا د دوی بل قباحت وو۔ خو د ان شاء الله په

وجه دوی له الله تعالیٰ خیر او برکت ورکړو۔ او د غوا ذبح کولو ته تیار شو۔
(۱) وَمَا كَادُوا يَفْعَلُونَ لِغَلَاءِ ثَمَنِهَا) (نږدې نهٔ وو چه دوی دا کار کړې وې د وجه د ډیروالی د پیسو ددې نه) دا وجه ابن جریرؒ غوره کړیده او ابن کثیرؒ کمزورې کړیده۔ (۲) دویمه وجه: (وَمَا كَادُوا يَفْعَلُونَ خَوْفَ الْفَضِيحَةِ) (د شرم نه یریدل چه که غوا ذبح کړو او مړې پړې راژوندې شي نو حال به ښکاره شي او اُوبه شرمیږو) دا وجه هم دومره غوره نهٔ ده۔
(۳) غوره دا ده چه (وَمَا كَادُوا يَفْعَلُونَ لِتَعَنُّتِهِمْ وَفَسَادِ أَنْفُسِهِمْ) (یعنی دوی دا کار نشو کولے ځکه چه په دوی کښې تعنت (چون وچرا) او فساد د نفسونو وو) د الله تعالیٰ حکم ته نهٔ تیاریدل لیکن دَ ان شاء الله په وجه ورته توفیق ملاؤ شو)۔
مفسرین وائی: دغه غوا د یو یتیم سره پیدا شوه چه مور ورته وئیلی وو چه دا په سل روپئ خرڅه کړه، نو یو سړی ورله دوه سوه روپئ ورکولے لیکن دے د مور تابعدار وو، لاړو د مور نه ئې تپوس اُوکړو چه په دوه سوه ئې رانه غواړی ورکړم؟ مور ورته اُووئیل: خرڅه ئې کړه۔ بیا چه راغلو نو بل سړی ورته درې سوه یادې کړې، بیا مور پسې لاړو، بیا چه راغلو سړے نهٔ وو، نو په دغه طریقه دغه غوا پاتې شوه او څه موده بعد ددې بنی اسرائیلو ورته حاجت راغلو نو دوی ددې غوا مطالبه اُوکړه، نو هغوی ورته اُووئیل: دومره قیمت به راکوئ چه ددې غوا څرمن د سرو زرو نه ډکه شي، الله تعالیٰ دې بنی اسرائیلو ته سخته کړه ځکه دوی چون وچرا کوله، لیکن دې یتیم ته ئې فائده ورکړه ځکه چه د مور خادم وو نو دوه فائدې پکښې راووتلے یو دا چه څوك د الله تعالیٰ په حکمونو کښې چون وچرا کوی نو الله تعالیٰ به ئې ورته سختوی او کله چه د مور او پلار خدمت کوی نو الله تعالیٰ به ورته کارونه آسانوی او په مالونو کښې به ئې برکت اچوی۔

## فوائد القصة:

پدې واقعه کښې ډیر فوائد دی: (۱) د غواګانو رنګونه او عمل ذکر شویدې۔ (۲) د یهودو تعنت او په دین کښې چون وچرا۔ (۳) د هغه آوامرو چه عقل د بنده ورته نهٔ رسیږی د هغې مقابله په عقل باندې کول نهٔ دی جائز۔ (٤) د بنی اسرائیلو بی ادبی۔ (۵) د ان شاء الله برکات۔ (٦) پیغمبرانو ته د استهزاء نسبت کول۔ (۷) استهزاء کول جهالت دے۔ (۸) عظمت د بقرې په زړونو ددې یهودو کښې۔

## په دے قصه کښې خارجي فوائد

(۱) اَلدَّلَالَةُ عَلٰى نُبُوَّةِ مُحَمَّدٍ ﷺ) د نبي ﷺ رشتينوالے او نبوت ترے معلوم شو چه د داسے واقعے خبرئے وکړو چه خپله ورته نهٔ وو حاضر شوے۔ معلو ميږي چه دا په وحي سره معلومه شويده او يهودو پرے اعتراض هم اُونکړو چه دا واقعه غلطه ده۔ نو دا دليل د يهود او مشرکانو دواړو دپاره شو۔

(۲) (اِثْبَاتُ نُبُوَّةِ مُوْسٰى عَلَيْهِ السَّلَامُ) (د موسیٰ ؑ نبوت ترے ثابت شو۔

(۳) (اِثْبَاتُ الْبَعْثِ بَعْدَ الْمَوْتِ مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ بَيْنَ الرُّسُلِ) د ټولو رسولانو ترمينځ دا خبره ثابته وه چه بعث بعد الموت راتلونکے دے)۔ دنيا کښې پرے ډير دلائل شته۔

(٤) (اِثْبَاتُ اَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْفَاعِلُ الْمُخْتَارُ) (دے نه دا ثابتيږي چه الله تعالیٰ د هر څيز فاعل مختار دے، د هغه خوښه ده چه کوم شے پيدا کوي او په کوم شي امر کوي او کوم نهٔ پيدا کوي او نهٔ پرے امر کوي۔

(۵) مقصد (تَعْدِيْدُ النِّعَمِ عَلٰى بَنِىْ اِسْرَائِيْلَ) (بني اسرائيلو باندے نعمتونه شماري)۔

(٦) (اِخْبَارُ النَّبِيِّ ﷺ بِقَدِيْمِ كُفْرِهِمْ وَخِلَافِهِمْ وَتَعَنُّتِهِمْ عَلَى الْاَنْبِيَاءِ وَعِنَادِهِمْ وَبُلُوْغِهِمْ فِىْ ذٰلِكَ مَا لَمْ يَبْلُغْهُ اَحَدٌ مِنَ الْاُمَمِ قَبْلَهُمْ) نبي ﷺ ته خبر ورکوي چه دوي د پخوا نه دغه شان انکاريان او خلاف کونکي دي او انبياؤ سره تعنت او عناد کوي او دومره سخت عناديان دي چه د دوي نه پخوانو امتونو دومره عناد نهٔ دے کړے) د الله تعالیٰ آيات او دلائل ئے اُوليدل، نو نور ئے هم زړونه سخت شو۔

(۷) نو په دے کښې يو قسم تسلي هم ده نبي محمد رسول الله ﷺ ته چه هرکله دوي د خپلو انبياؤ سره داسے کارونه او مخالفتونه کړيدي نو دا څه ناشنا نهٔ ده چه د دوي کشران د هغه سره دغه شان معامله اُوکړي۔ (فَلْيَهُنْ عَلَيْكُمْ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَالْمُؤْمِنُوْنَ مَا تَرَوْنَهٗ مِنْ عِنَادِهِمْ وَاِعْرَاضِهِمْ عَنِ الْحَقِّ) (اللباب) ۔ (نو اے نبي او مؤمنانو تاسو باندے د دهغوي عناد او اعراض د حق نه مشکل پرے نهٔ وزي)۔

(۸) (تَحْذِيْرُ اَهْلِ الْكِتَابِ الْمَوْجُوْدِيْنَ فِىْ زَمَنِ النَّبِيِّ ﷺ) (موجوده اهل کتابو ته يره ورکوي چه د مشرانو په شان کارونه اُونکړي ورنه په دوي به هم هغه شان عذابونه راشي کوم چه د دوي په مشرانو په دغه مختلفو واقعاتو کښې راغلي وو)۔

(۹) اسباب د زوال الخلافة هم بیان شول۔

وَاِذۡ قَتَلۡتُمۡ نَفۡسًا فَادّٰرَءۡتُمۡ فِيۡهَا

او کله چه قتل کړو تاسو یو نفس نو مختلف شویٔ د هغهٔ په باره کښې (چه دا به چا وژلے وی؟)

وَاللّٰهُ مُخۡرِجٌ مَّا كُنۡتُمۡ تَكۡتُمُوۡنَ ﴿۷۲﴾

الله تعالیٰ راویستونکے دے هغه څیزونو لره چه تاسو ئے پټوئ۔

**تفسیر** : اُوس الله تعالیٰ د دوی بل (خلورم) عیب بیانوی (اِتِّهَامُ الْاَبْرِیَاء) چه ګوره دوی کښې دا مرضونه هم دی چه په پاکو خلقو باندے تهمتونه لګوی، په دے طریقه چه یو سړے راولګیدو او تره ئے مړ کړو په دے وجه چه ددهٔ ښځه یا لور په نکاح واخلی (بناء په دوه روایتونو) او مال به ئے هم راته پاتے شی او نور خامن د هغه نهٔ وو۔ (او ډیر ظالمان ددے امت هم دا کار کوی) کله ئے چه مړ کړونو په یو طرف کښې د چا کور مخے ته ئے واچولو، سحر کښې په هغه باندے خلق راجمع شو چه دا قتل چا کړیدے نو پدے کښې دا سړے راغلو او په هغه خلقو ئے د دروغو دعوه اُوکړه چه تاسو زما تره وژلے دے ما ته ددهٔ دیت راکړئ نو د منافقت ژړاګانے ئے شروع کړلے او په سر باندے ئے خاورے بادولے،

(دا د یهود او نصاراؤ طریقه وه، اُوس هم مسلمانان قتل کړی او دزے بمباری پرے اُوکړی، تکلیفونه ورکړی او وائی چه دا مجاهدینو اُوکړل)

نو الله رب العالمین د دوی دا عیب بیانوی چه ګوره کار خپله غلط اُوکړی او بیا ئے په بل چا اَړوی، موسیٰ عليه السلام ته خبر اُوشو چه داسے واقعه ده، نو هغه خلقو ته اُووئیل چه قتل په تاسو راغلے دے، تاسو به اُوس دیت ورکوئ نو هغوی اُووئیل : مونږ ته دیت ورکول آسان دی لیکن دا خو لوئی عیب او شرم او پیغور دے زمونږ دپاره چه قتل رابانده راواوړی، ته د الله تعالیٰ نه دعا اُوغواړه چه مجرم مونږ ته ښکاره کړی، نو هغه دعا اُوغوښته کړه نو پدے کښې موسیٰ عليه السلام ته وحی اُوشوه چه دا تیاره غوا هم حلاله شوے ده، او مړے هم شوے دے، ددے غوا نه یوه حصه راواخله دا مړے پرے اُووهه، دا سړے به راوژوندے شی او خپل حال به اُووائی۔ (لکه پدے کښې راجح تفسیر همدا دے)۔ نو هغه ئے پرے اُووهلو او سړے راوژوندے

شو، او د قاتل نوم ئې اُوخودلو. لیکن دے ظالم بیا هم نهٔ منله او انکار ئې کولو چه دا ما نهٔ دے وژلے.

نو دلته په مړی باندے الله تعالیٰ مړے راژوندے کړو. دا د الله تعالیٰ د حکمة او د طاقت نخه ده. (دا دویمه واقعه ده چه الله تعالیٰ پس د مرګه مړی راژوندی کړیدی) دے نه معلومه شوه چه بهتان تړل او د حقائقو نه انکار کول د یهودو مرض وو. د عبد الله بن سلام ﷺ په واقعه کښې هم راځی چه دهٔ کله ایمان راوړو نو رسول الله ﷺ ته ئې اُوفرمایل: (اِنَّ الْیَهُوْدَ قَوْمٌ بُهْتٌ) (یهودیان ډیر بهتانیان خلق دی او که زما د اسلام نه خبر شی نو په ما به بهتان اُوتړی، ستا په نزد به زهٔ عیبجن ښکاره شم، تهٔ د دوی نه زما په باره کښې تپوس اُوکړه، تپوس ئې اُوکړو: (اَیُّ رَجُلٍ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ فِیْکُمْ؟) عبد الله په تاسو کښې څنګه سړے دے؟ هغوی اُووئیل: ډیر ښه سړے دے. (خَیْرُنَا وَابْنُ خَیْرِنَا وَسَیِّدُنَا وَابْنُ سَیِّدِنَا) (دا هم ښهٔ سړے دے او دده پلار هم ښهٔ سړے وو) نبی ﷺ اُوفرمایل: که عبد الله بن سلام ایمان راوړی نو ستاسو به څه حال وی؟ هغوی اُووئیل: (اَعَاذَهُ اللّٰهُ مِنْ ذٰلِكَ) (الله تعالیٰ دے ئې د اسلام نه اُوساتی) هغه چرته دا کار کوی؟) دے کښې عبد الله بن سلام راووتو او کلمه د توحید ئې اُووئیله نو دوی سمدست اُووئیل: (شَرُّنَا وَابْنُ شَرِّنَا) (دا هم ډیر ناکاره سړے دے، پلار ئې هم ناکاره وو) د هغه تنقیص ئې شروع کړو. عبد الله اُوفرمایل: یارسول الله! زهٔ ددے خبرے نه یریدلم. (صحیح بخاری) اُوګوره مخامخ لږ ساعت کښې ئې د خپلے خبرے نه رجوع اُوکړه، دا د یهودو او د نصاراؤ کار دے. مسلمان که د دوی په خبرو تیروځی نو ډیر بد به کوی. الله تعالیٰ مونږ ته قرآن کریم کښې بار بار وئیلی دی چه دوی چل ول او دوهوکه کونکی دی، دوی تاسو سره دهوکه کوی هسے په خله مو خوشحالوی خو ارمان دے چه رجوع قرآن کریم ته اُوشی.

## ددے واقعے فوائد:

(۱) په بریانو (پاکو خلقو) تهمت لګول ګناه کبیره ده او د یهودو مرض دے.

(۲) اِثْبَاتُ الْمَعَادِ الْمُتَّفَقِ بَیْنَ الرُّسُلِ (د آخرت په راتللو ټول انبیاء علیهم السلام متفق دی چه ضرور به راځی. او د هغے دپاره تیاری پکار ده.

(۲) قُدْرَةُ اللّٰهِ (د الله تعالیٰ قدرت رابنکاره کیدل).

(۳) د الله تعالیٰ طریقه دا ده چه هر فاعل لره الله تعالیٰ د هغه د قصد نقیض ورکوی کله

چه هغه د الله تعالیٰ د حکم خلاف کوی مثلاً یو انسان د بل چا د سپکاوی اراده کوی نو هغه به الله تعالیٰ اُوچتوی، او که د هغه بیعزتی کوی هغه به الله تعالیٰ عزتمند کوی او چه انسان بل ته کوهے کنی نو خپله به پکښې واقع کیږی۔ لکه دے قاتل دا اراده کړے وه چه زۀ به ددے ترۀ مال او ښځه واخلم لیکن الله تعالیٰ ددۀ د قصد نقیض اُوکړو او دا ئے خلقو کښې اُوشرمولو او مقصد ته اُونۀ رسیدو۔ (٤) ملزم له اقرار پکار دے۔

(٥) قَسْوَةُ قُلُوْبِ الْاُمَّةِ الْاِسْرَائِيْلِيَّةِ۔ د بنی اسرائیلو د زړونو سختوالے هم معلومیږی چه مړے ژوندے هم شو بیا هم قاتل منکر وو۔

قَتَلْتُمْ: قتل یو تن کړے وو لیکن تولو بنی اسرائیلو کښې دا مرض وو۔ نو ځکه تولو ته خطاب کوی۔

فَادّٰرَءْتُمْ فِيْهَا: چا په یو باندے گمان کولو او چا په بل باندے، د پټولو دپاره۔

**فائده**: اِخْتَلَفْتُمْ ئے اُونۀ وئیلو ځکه چه اختلاف دیته وائی چه هر یو منکر وی د کار نه او دلته اِدَّارَءَ دیته وائی چه په یو بل باندے ئے اړوی، چه تا کړیدے او بل وائی تا کړیدے۔

فِيْهَا: نفس ته ضمیر راجع دے۔ بیا دلته وقف دے چه دا اختلاف ئے ولے کولو؟ (لِتَكْتُمُوْهُ) (دے دپاره چه دا مړے مو پټولو او د دنیا مال مو غوره کولو)۔

(وَاللّٰهُ مُخْرِجٌ مَّا كُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ) (مُخْرِجٌ اَیْ مُظْهِرٌ فِی الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ)

(الله تعالیٰ راښکاره کوی په دنیا او آخرت کښې) هغه شے چه بندگان ئے پټ ساتی۔

**فائده**: دے نه دا قانون معلوم شو چه یو سړے په پټ ځائے کښې گناه اُوکړی نو الله تعالیٰ ئے راښکاره کوی او دغه شان که چا نیك عمل په پټ ځائے کښې اُوکړو نو الله تعالیٰ ئے راښکاره کوی لهذا ریاء ته هیڅ ضرورت نشته۔ په حدیث د عثمان ؓ کښې راځی چه که یو سړے په کانړی کښې دننه یو عمل اُوکړی چه د هغے هیڅ دروازه او روشندان نۀ وی نو ددۀ عمل به ضرور خلقو ته راوځی، هرڅنګه چه وی۔ (مسند احمد ۲/۲۸ رقم ۱۱۲٤٦) وسنده حسن)

فَقُلْنَا اضْرِبُوْهُ بِبَعْضِهَا ۚ كَذٰلِكَ

پس مونږ اُووئیل چه تاسو اُووهئ دی مړی لره په بعض حصه ددے غوا (یا ددے مړی) دغه شان

يُحْيِ اللّٰهُ الْمَوْتٰى وَيُرِيْكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿٧٣﴾

راژوندی کوی الله تعالیٰ مړو لره او ښائی تاسو ته نخے د قدرت خپل دے دپاره چه د سوچ نه کار واخلئ۔

**تفسیر** : (بِبَعْضِهَا) دا ضمیر بقرة ته راجع دے۔ یعنی په بعض حصه د غوا سره دا مړے اُووهئ۔ لکه همدا د جمهورو مفسرینو رایه ده او همدا راجح ده، بیا پدے کښې به حکمة الله تعالیٰ ته معلوم وی چه د غوا په بعض اندام باندے وهلو سره مړے څنګه راژوندے کوی، خو د الله تعالیٰ د عجیب قدرت نظاره پکښې ضرور شته۔

(۲) دے کښې دویم تفسیر زمونږ بعض مشائخو دا هم کړیدے چه د بعضها ضمیر نفس ته راجع دے۔ او نفس مؤنث سماعی دے، دے ته ضمیر د مؤنث راجع کول صحیح دی۔ معنیٰ دا ده : اُووهئ دے نفس لره په بعض ټکړه ددے نفس سره لکه لاس د هغه شو، لکه څنګه چه الله تعالیٰ قادر دے چه د غوا په بعض ټکړه سره مړے ژوندے کړی نو دغه شان د مړی په بعض اندام سره لکه لاس وغیره سره هغه راژوندے کړی۔ او دوی وئیلی دی چه دا احتمال ځکه غوره دے چه یو خو مشهور قول والا سره صحیح یقینی روایات نشته بلکه اسرائیلیات دی، او بل طرفته دا (غیر مشهور) احتمال د قانون د عربیت برابر هم دے۔ دریم دا چه پدے کښې دا فائده هم راځی چه د غوا کرامت او عظمت به هم معلوم نهٔ شی، بلکه دلته د نفس په بعض حصه باندے نفس راژوندے شویدے۔ نهٔ د غوا په ذریعه۔ دارنګه هره واقعه په (اِذْ) سره شروع کیدو نه استقلال د هرے واقعے معلومیږی۔ لهٰذا د مړی راژوندی کول د غوا سره تعلق نهٔ لری۔

دلته وقف دے (فَضْرِبُوْهُ بِبَعْضِهَا فَحَيِيَ) (یعنی هغوی اُووهلو په بعض حصه د غوا نو مړے راژوندے شو)۔ او خپل قاتل ئے اُوخودلو چه قاتل ئے وراره دے، بیا مفسرین لیکی : د تورات د قانون مطابق هغه قاتل د میراث نه محروم شو او داسے زمونږ په شریعت کښې هم دی چه قاتل به د میراث نه محرومیږی اګرکه قتل خطاء ئے کړے وی. ځکه دا دده سزاء ده چه دهٔ د مال دپاره قتل کړیدے نو الله تعالیٰ ئے د هغه مال نه محروموی۔

(كَذٰلِكَ يُحْيِ اللّٰهُ الْمَوْتٰى) دیته (قِيَاسُ الْإِعَادَةِ عَلَى الْبَعْثِ الدُّنْيَوِيِّ) وئیلے شی یعنی (دوباره ژوند ئے قیاس کړیدے په دنیا کښې مړی ژوندی کولو باندے) یعنی قیامت به هم داسے راځی څنګه چه دنیا کښې مړی راژوندی کړیدی، دا د قرآن طریقه ده چه خبره یوه شروع کړی یو مثال بیان کړی او بیا د هغه مثال نه فائدے راوباسی، دا میوه دار مثالونه دی۔نو یو پدے کښې اثبات د آخرت او بل د الله تعالیٰ قدرت خلقو ته معلوم شو۔

بیا دا مړے الله تعالیٰ همداسے په خپل امر سره هم راژوندے کولے شو، لیکن خلقو ته ئے د

موسیٰ علیه السلام معجزه هم خودله، دے دپاره چه هغوی اُونهٔ وائی چه دا په جادو سره راژوندے شو۔ (۲) د التحرير والتنوير نه معلوميږی چه پدے کښې د الله تعالیٰ د هغه امر حکمة وو چه دے يهوديانو ته ئے په ذبح د بقره سره کړے وو، د کوم نه چه دوی په اول د آوريدو کښې نفرت او انکار کړے وو۔ يعنی الله تعالیٰ ورته دا ښائی چه ددے غوا ذبح کولو کښې او پدے امر باندے عمل کولو کښې دا فائده اُوشوه چه قاتل معلوم شو۔

كَذٰلِكَ : کښې کاف تشبيهی دے او ذلك اشاره ده دغه قتيل (وژلے شوی) ته او يُحْيِ اللّٰهُ الْمَوْتٰى ئے مشبه ده۔ او پدے جزئی واقعے سره اثبات د آخرت ځکه کوی چه عربو مشرکانو او بنی اسرائيلو باندے رد شی چه هغوی شك کوی په بعث بعد الموت کښې او اختلاف ئے کولو، بعضو وئيل چه روح به دوباره په بل شکل ژوندے کيږی او بعضو به وئيل چه تول اجزاء د بدن سره نشی ژوندے کيدلے نو په دے واقعے سره معلومه شوه چه په کوم حال انسان مړ وی نو په هغه حال به ژوندے کيږی۔ او الله تعالیٰ پدے قادر دے۔

وَيُرِيكُمْ آيٰتِهٖ : دا د تاکيد دپاره وائی چه الله تعالیٰ تاسو ته د بعث بعد الموت ثابتولو دپاره ډير دلائل درخائی، صرف دا يو دليل نهٔ دے بلکه دغه شان نور هم ډير شے دلائل موجود دی۔ يريکم نه مراد په سترگو ليدل او بصيرت د زړه دواړو ته شامل دے۔

نو دا خطاب بنی اسرائيلو ته وو۔ (يَعْنِيْ قُلْنَا لَهُمْ) : مونږ هغوی ته دغه شان وئيلی وو۔ چه تاسو ته الله تعالیٰ نخے د قدرت خائی دے دپاره چه تاسو نور گنا هونو نه منع شئ۔

۲ - يا دا خطاب امة محمد (صلى الله عليه وسلم) ته دے۔ چه دغه واقعاتو نه عبرت واخلئ۔ دغه شان به الله تعالیٰ مړی په قيامت کښې هم راژوندی کوی۔ او د نبی صلى الله عليه وسلم د صدق نخے درښائی۔ يا مطلب دا دے : (آيَاتِهِ الْمُتَضَمِّنَةِ لِقُدْرَتِهٖ وَحِكْمَتِهٖ) (درښائی تاسو ته خپل هغه آيتونه چه مشتمل دی په قدرت د الله تعالیٰ او حکمت د هغه)۔

آيٰتِهٖ : ئے جمع راوړه۔ ۱ - ددے وجه دا ده چه د قيامت په اثبات باندے ډير دلائل دی۔

۲ - يا ترے مراد نخے د قدرت د الله تعالیٰ دی۔ (۲) - بعض وائی : دا يوه واقعه ترے مراد ده چه الله تعالیٰ دوی ته په سترگو اُوخودله ليکن جمع ئے ځکه ذکر کړه چه دا مشتمله وه په ډيرو فائدو او دليلونو باندے۔ چه هغه د الله تعالیٰ په هر څه باندے قادر او عالِم کيدل، او په ايجاد او خلق کښې مختار کيدل، او صدق د موسی علیه السلام او د پاکو خلقو برائت معلوميدل، او دغه تهمت په قاتل باندے متعين کيدل، نو دا اگر که يو آيت دے ليکن په ډيرو آيتونو

او دلیلونو مشتمل شو۔(تفسیر الرازی وروح المعانی)
﴿لَعَلَّکُمۡ تَعۡقِلُوۡنَ﴾ چه تاسو عقل او سوچ اُوکړئ چه الله تعالیٰ زمونږ خومره قادر مطلق ذات دے، نو قیامت به هم راولی،۲- او سوچ اُوکړئ په حکمتونو د الله تعالیٰ کښې۔ ۳- او سوچ اُوکړئ چه الله تعالیٰ نقیض القصد د انسان کوی کله چه هغه د الله تعالیٰ د حکم خلاف کوی۔ ٤- دارنګه (لَعَلَّکُمۡ تَفۡهَمُوۡنَ اَنَّ الَّذِیۡ یُخۡبِرُکُمۡ بِهٖ مُحَمَّدٌ ﷺ حَقٌّ) پوهه شئ چه دا محمد رسول الله ﷺ تاسو ته د څه خبر درکوی نو دا حق دی۔(بحر العلوم)
(۴) یا عقل په معنیٰ لغوی سره دے بندیدل او منع کیدل یعنی منع شئ د مخالفت کولو او ګناهونو نه۔یعنی ګناه به نه کوئ څکه الله تعالیٰ مو ګوری۔(القرطبی)

ثُمَّ قَسَتۡ قُلُوۡبُکُمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ ذٰلِكَ فَهِیَ کَالۡحِجَارَةِ اَوۡ اَشَدُّ قَسۡوَةً ؕ

بیا سخت شو زړونه ستاسو پس ددے نخو نه، پس دا په شان دکانړو شو یا زیات په سختوالی کښې۔

وَاِنَّ مِنَ الۡحِجَارَةِ لَمَا یَتَفَجَّرُ مِنۡهُ الۡاَنۡهٰرُ ؕ وَاِنَّ مِنۡهَا

(څکه) یقیناً بعض د کانړو نه خامخا هغه دی چه بهیږی د هغے نه نهرونه او یقیناً بعضے ددے نه

لَمَا یَشَّقَّقُ فَیَخۡرُجُ مِنۡهُ الۡمَآءُ ؕ وَاِنَّ مِنۡهَا لَمَا

خامخا هغه دی چه اُوچوی نو راوځی د هغے نه اُوبه او یقیناً بعض ددے نه خامخا هغه دی

یَهۡبِطُ مِنۡ خَشۡیَةِ اللّٰهِ ؕ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعۡمَلُوۡنَ ﴿۷٤﴾

چه رارغړی د وجے د یرے د الله تعالیٰ نه او نهٔ دے الله بے خبره د هغے عملونو نه چه تاسو ئے کوئ۔

**تفسیر**: اُوس موجوده یهودو ته الله تعالیٰ خطاب کوی (کوم چه د نزول د قرآن په وخت کښې موجود وو) او ممکن ده چه د هغه زمانے یهود هم مراد وی چه تاسو د الله تعالیٰ د قدرت دومره نخے اُولیدلے او اُوپیژندلے، ستاسو مشرانو سره ئے څنګه کارنامے کړیدی او بیا هم تاسو د هغوی په نقش قدم روان یئ او پدے نبی او پدے قرآن کریم باندے ایمان نهٔ راوړئ او زړونه

مو سخت دي د الله تعالیٰ د توحید او د رسالت د رسول الله ﷺ اقرار نهٔ کوئ.
او پدې آیت کښې ربط او تعلق د موجوده یهودیانو دے د ماقبل سره په قسوت د زړه کښې چه د پخوانو په شان ستاسو زړونه هم سخت شو چه د الله تعالیٰ امر او حکم په تاسو اثر نهٔ کوی.
یعنی ددے سترګو لیدلو واقعاتو تقاضا خو دا وه چه د هغوی په زړونو کښې نرمی پیدا شوی وے او د الله تعالیٰ په یاد کښې مشغول شوی وے لیکن د هغوی د زړونو د سختئ ګواهی الله تعالیٰ ورکړه چه دا د کاڼړی نه هم ډیر سخت دی او د کاڼړو سره ئے مثال ځکه ورکړو چه کاڼړے د اوسپنے نه هم ډیر سخت دے ځکه اوسپنه په اور ویلی کیږی او کاڼړے نهٔ ویلی کیږی ، بیا الله تعالیٰ اوفرمایل چه کاڼړی خو د دوی د زړونو نه غوره دی ځکه بعض کاڼړی داسے وی چه د هغے نه نهرونه روانیږی، بعض چوی او د هغے نه چینے روانیږی او بعض کاڼړی خو داسے وی چه د الله تعالیٰ د ویرے نه اوخوزیږی او خکته راپریوزی او په دوی مجرمینو کښې هیڅ اثر نهٔ کیږی، کله ئے هم خپل ګناهونه را یاد نهٔ کړل چه اوژاړی او الله تعالیٰ ته توبه اوباسی او ددے نبی ﷺ صحیح تابعدار شی.
ثُمَّ : ددے نه مراد یا احیاء المیت دے. (۱) (یعنی ثُمَّ بَعْدَ اِحْيَاءِ الْمَيِّتِ) (بیا پس د راژوندی کولو د مړی نه ستاسو زړونه سخت شو) (۲) دویم : اشاره ده یُرِيْكُمْ آيَاتِهٖ ته یعنی (ثُمَّ بَعْدَ إِرَائَةِ الْآيَاتِ) (بیا پس د نخو د قدرت لیدلو نه).
**فنشث** : بعض حکماؤ نه نقل دی چه د قسوت معنیٰ ده وچیدل د زړونو او د زړونو وچیدل په دوه قسمه دی یو اوچ والے دے : (عَنْ مَاءِ خَشْيَةِ اللّٰهِ) (د الله تعالیٰ د ویرے نه پکښې اوبه نهٔ راځی) (۲) دویم (عَنْ مَاءِ شَفَقَةِ الْخَلْقِ) چه په مخلوق باندے د شفقت کولو د اوبو نه اوچ شی). (بحر العلوم للسمرقندی ۱/ ۷۰)
**فائده** : قسوة په لغت کښې (غِلْظُ الْقَلْبِ وَصَلَابَتُهٗ) (مفردات) ته وائی : یعنی د زړه سختیدل او کلک کیدل) دی او په اصطلاح کښې : (عَدَمُ التَّأَثُّرِ مِنْ آيَاتِ اللّٰهِ) ته وئیلے شی (یعنی د الله تعالیٰ د قرآن او د رسول الله ﷺ د حدیث نه فائده نهٔ اخستل او نهٔ متأثره کیدل)
(۲) دارنګه امام زجاج فرمائی: (اَلْقَسْوَةُ فِی الْقَلْبِ ذَهَابُ اللِّيْنِ وَالرَّحْمَةِ وَالْخُشُوْعِ) (بحر العلوم واللباب) (د زړه سختوالے دا دے چه نرمی، رحم او شفقت او خشوع ترے ختمه شی)
او دا زړه سختیدل په اصل کښې د یهودو مرض دے چه زمونږ دے امت ته رانقل شویدے.
الله تعالیٰ سختو زړونو والو ته بښیرے کړیدی : (فَوَيْلٌ لِّلْقَاسِيَةِ قُلُوْبُهُمْ مِّنْ ذِكْرِ اللّٰهِ)

(الزمر:٢٢) (هلاكت دے وى سخت زړونو والو دپاره د الله تعالىٰ د ذكر نه)

مالك بن دينار رحمه الله نه نقل دى: (مَا ضَرَبَ اللّٰهُ عَبْدًا بِعُقُوبَةٍ أَشَدَّ عَلَيْهِ مِنْ قَسْوَةِ الْقَلْبِ) (په بنده باندے د الله تعالىٰ د عذابونو نه سخت عذاب دا دے چه د هغه زړه سخت كړى) چه ذكر، تلاوت ايمان او عمل صالح ورله خوند نهٔ وركوى۔ حديث د ابن عمر رضي الله عنه كښې مرفوعاً نقل دى، رسول الله ﷺ فرمايلى دى: (لَاتُكْثِرُوا الْكَلَامَ بِغَيْرِ ذِكْرِ اللّٰهِ فَإِنَّ كَثْرَةَ الْكَلَامِ بِغَيْرِ ذِكْرِ اللّٰهِ قَسْوَةٌ لِلْقَلْبِ وَإِنَّ أَبْعَدَ النَّاسِ مِنَ اللّٰهِ الْقَلْبُ الْقَاسِىْ) (ترمذى باسناد حسن غريب وشعب الايمان:٤٩٥١) (د الله تعالىٰ د ذكر نه علاوه ډيرے خبرے مهٔ كوئ ځكه چه ډيرے خبرے په غير د ذكر د الله نه قسوت (سختوالے) د زړه دے او يقيناً د الله تعالىٰ نه ډير لرے زړه سخت زړه دے)۔ (راجح دا ده چه دا د عيسىٰ عليه السلام كلام دے لكه دا خبره شيخ البانىؒ په الضعيفه كښې ذكر كړيده)۔

٣- حديث د انس رضي الله عنه كښې مرفوعاً دى: (أَرْبَعٌ مِنَ الشَّقَاءِ: جُمُوْدُ الْعَيْنِ وَقَسَاوَةُ الْقَلْبِ وَطُوْلُ الْأَمَلِ وَالْحِرْصُ عَلَى الدُّنْيَا) څلور خيزونه د بدبختىٔ نښه ده، د سترګو اُوچيدل، د زړه سختوالے، اُوږد اميد، او د دنيا حرص)۔ (البزار وَفِىْ إِسْنَادِهٖ نَكَارَةٌ وَجَهَالَةٌ وَمَعْنَاهُ صَحِيْحٌ)

## فائده : د قسوة القلب اسباب :

قسوت پيدا كيږى (١) د معاصى او ګناهونو نه (٢) د غفلت عن ذكر الله نه چه انسان د الله تعالىٰ د ذكر نه غافل شى۔(٣) (كَثْرَةُ الْكَلَامِ) (ډيرے خبرے كول بغير د ذكر د الله تعالىٰ نه) (٤) (كَثْرَةُ الطَّعَامِ)۔(ډير خوراك كول) (٥) (كَثْرَةُ الْمَنَامِ) (ډير خوبونه كول)

(٦) (كَثْرَةُ الْمُخَالَطَةِ)۔(د خلقو سره ډير ګډون كول او په دنيا كښې ډير مشغوليدل)۔

پكار ده چه د بنده اكثر اوقات د الله تعالىٰ سره وى، او د هغه سره خلوت كښې وى)۔ بيا د مخالطة ډير قسمونه دى۔

د علماؤ سره مخالطت په ورځ كښې دوه درے ځل ضرورى دے، چه د هغوى مجالسو كښې حاضر شى او د دين د خبرو نه خبر شى او بعض مخالطتونه د دوائى په شان وى چه هغه به په هغه وخت كښې كولے شى چه انسان ورته ضرورت راشى لكه اصحاب الكسب والمعاش۔ دكانداران وغيره سره به د ضرورت په وخت ملاويږے۔

او بعض مخالطتونه د بيماريو او زهرو په شان وى چه هغوى سره ملاؤ شوے نو بيا به

لړ بيمارېږي يا به ډېر يا به بالكل مړ كيږي، لكه اصحاب الفسق۔ كه لږ فاسق وو نو لږ به دې گمراه كړي، او كه ډېر وي، ډېر به دې گمراه كړي، او كه مشرك سره ملاؤ شوې نو عقيده به دې خرابه كړي۔

## د قسوة القلب د زائله كيدو اسباب :

قسوت ختميږي په (۱) (كَثْرَةُ ذِكْرِ اللّٰهِ) (د الله تعالىٰ ذكر ډېر كول)
(۲) (كَثْرَةُ ذِكْرِ الْمَوْتِ)۔ (مرگ ډېر يادول)۔
(۳) (اَلْاِطِّلَاعُ عَلَى الْقُبُوْرِ) (د قبرونو ملاقات له تلل)۔
(٤) (تِلَاوَةُ الْقُرْآنِ وَتَدَبُّرُهٗ)۔ (په ښائسته آواز سره قرآن كريم لوستل)۔ (تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُوْدُ الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ ثُمَّ تَلِيْنُ جُلُوْدُهُمْ وَقُلُوْبُهُمْ اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ) (الزمر: ۲۳)۔ حديث كښې دي :(اِنَّ الْقُلُوْبَ تَصْدَاُ كَمَا يَصْدَاُ الْحَدِيْدُ، قِيْلَ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ ! وَمَا جَلَاؤُهَا ؟ قَالَ : تِلَاوَةُ الْقُرْآنِ)
(شعب الايمان، محمد بن نصر، وابونعيم في الحلية ۸/ ۱۹۷) وَسَنَدُهٗ مُنْكَرٌ وَمَعْنَاهُ صَحِيْحٌ)
زړونه زنگين كيږي لكه څنگه چه اوسپنه زنگينه كيږي، عرض اوشو : ددې صفائي په څه سره ده؟ وې فرمايل : مرگ ډېر يادول او تلاوة د قرآن كريم)۔
(٥-٦) يو صحابيؓ رسول الله ﷺ ته د زړه د سختوالي شكايت اوكړو نو هغه ورته اوفرمايل : (اَطْعِمِ الْمِسْكِيْنَ وَامْسَحْ رَأْسَ الْيَتِيْمِ) (احمد، فتح البارى (۱۱/ ۱۵۱) واسناده حسن)۔
(مسكين له خوراك وركړه او د يتيم په سر لاس راكاږه) يعني شفقت اوكړه۔
(۷) ام الدرداء رضي الله عنها نه نقل دي چه اتباع الجنائز۔ (۸) او عِيَادَةُ الْمَرِيْضِ او اِطِّلَاعِ عَلَى الْقُبُوْرِ) سره د زړه سختوالے ختميږي۔
(اَوْ اَشَدُّ قَسْوَةً) پدې كښې اتفاق دې چه (اَوْ) د شك دپاره نهٔ دې څكه چه الله رب العزت شك نهٔ كوي، (۱) نو بعضو وئيلي دي چه (اَوْ) په معنىٰ د واو دې۔
(۲) بعضو وئيلي دي چه (او) د ترقئ دپاره دې په معنىٰ د بل دې يعني بلكه د كاڼړي نه هم زيات سخت دي۔ (۳) يا (او) په خپله معنىٰ دې او شك په نسبت د مخاطب او رائي (ليدونكي) دې۔ يعني ته ورته اوگوره يا به درته دا زړونه د كاڼړو په شان ښكاره شي يا زيات د كاڼړو نه۔ (اللباب ۱/ ۳۸۵)
(٤) راجح دا ده چه حافظ ابن القيمؒ فرمائي : په عربئ كښې ددې مجموعه معنىٰ داسې

وی: (اِنْ لَّمْ تَزِدْ قَسْوَتُهَا عَلٰی قَسْوَةِ الْحِجَارَةِ فَلَيْسَتْ دُوْنَهَا) (كه زړونه د كاڼړو نه زيات سخت نهٔ وی نو كم خو ترے نهٔ دی) يعنی د كاڼړی نه هم زيات سخت دی۔

**فائده**: علامه ابو حفص ابن عادل الدمشقی رحمه الله د زړونو د كاڼړو د زيات سختوالی درے وجے ذكر كړيدی: (۱) اوله دا چه كه بالفرض په حجاره كښی عقل پيدا شی او دا نخے اُووينی نو حق به قبلوی لكه په سورة الحشر (۲۱) كښی دی۔ (لَوْ اَنْزَلْنَا هٰذَا الْقُرْآنَ عَلٰی جَبَلٍ لَّرَاَيْتَهٗ خَاشِعًا)۔ ۲- دويمه وجه دا چه الله تعالیٰ كوم حوادث په حجاره كښی پيدا كوی نو د كاڼړی د طرفنه په هغے كښی هيڅ امتناع نهٔ وی اگر كه سخت هم وی بلكه هغه د الله تعالیٰ د ارادے مطابق اوړی او دے خلقو ته دومره آيات او نعمتونه راځی او بيا هم طاعت نه منع كيږی او زړونه ئے د الله تعالیٰ د حقوقو معرفت ته نهٔ نرميږی۔

(۳) دريم دا چه د كاڼړو نه بعض فوائد خو اخستلے كيږی مگر ددے خلقو په زړونو كښی هيڅ خير او فائده نشته۔ (اللباب ۱/۳۸۵)

وَاِنَّ مِنَ الْحِجَارَةِ: اُوس د كاڼړو اقسام بيانوی دے دپاره چه كاڼړی خو د دوی د زړونو نه ډير غوره دی ځكه چه هغوی كښی د الله تعالیٰ نه خشيت موجود دے، چا كښی په يوه طريقه او چا كښی په بله طريقه۔ او فائدے ترے خلقو ته ملاويږی، اُوبه ترے رابهيږی، او د دوی په زړونو هيڅ اثر نهٔ كيږی، فوائد ترے نهٔ ملاويږی۔ نو كاڼړی د دوی نه الله تعالیٰ غوره حساب كړل۔

(مِنْ خَشْيَةِ اللهِ) دا د درے واړو سره لگی۔ لكه د مجاهدؒ نه ابن كثيرؒ نقل كړيدی۔ چه د هر كاڼړی نه چه اُوبه (نهر) روانيږی يا د اُوبو په وجه چوی (لړے اُوبه) يا د غر د سر نه رارغړی نو دا د الله تعالیٰ د يرے د وجه نه دی او پدے خبره باندے قرآن نازل شويدے۔ (ابن كثير واللباب)۔

**فائده**: شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله فرمائی: د غرونو اُوبه ټولے د باران نه دی، ډيرے داسے دی چه الله تعالیٰ د كاڼړو نه ويستلی دی د چينو په شكل۔ اگر كه آسمانی اُوبه زياتے دی او د كاڼړو اُوبه كمے دی او په كاڼړو كښی ئے الله تعالیٰ پيدا كوی په خپل قدرتِ كامله سره لكه اثر كنډيشن كښی چه يخوالے پيدا كوی۔ دارنگه په كاڼړو كښی دننه هم د الله تعالیٰ د يرے نه اُوبه پيدا كيږی۔

**فائده**: پدے آيت كښی د كاڼړو درے حالات ذكر شو نو پدے كښی د انسانانو د زړونو درے حالاتو ته اشاره ده۔ نو كوم زړونه چه ډير سخت نهٔ دی، بلكه د كاڼړو په شان وی، نو د قرآن او دينی مواعظ او نصيحت اوريدو په وخت كښی په هغوی كښی دغه شان درے حالات پيدا

کیږی اول دا چه زړهٔ کښې ئے خشیة (یره) پیدا شی، قرآن او مواعظو ته ځان راخکته کړی غوږ ورته کیدی، زړه کښې ئے اوښکے راشی، دویمه درجه کښې بیا ئے سترګو کښې اوښکے راشی او دریمه درجه کښې ئے بیا اوښکے ډیرے بهیږی که چا کښې دا درے حالات پیدا نهٔ شی نو هغه بیا د کاڼړو نه هم سخت زړه دے۔

﴿وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ﴾ : (۱) دا قسم جمله یا کنایه وی د مهلت نه یعنی اے بنده ګانو تاسو چه کوم عملونه کوئ الله تعالیٰ ترے غافل نهٔ دے، عذاب به درکوی لیکن خبره د مهلت ده، تاسو له ئے مهلت درکړیدے، آخرت کښې به په بد عمل سخته سزا درکوی۔ (۲) او پدے جمله کښې د مؤمنانو دپاره بشارت وی چه الله تعالیٰ به د عملونو بدله درکوی۔ مه خفه کیږئ۔

أَفَتَطْمَعُوْنَ أَنْ يُّؤْمِنُوْا لَكُمْ وَقَدْ كَانَ فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ يَسْمَعُوْنَ

آیا تاسو طمع لرئ (اے ایمان والو!) چه دا یهودیان به ایمان راوړی ستاسو په خبره او حال دا چه وو یوه ډله د دوی نه چه اوریدو به ئے

كَلَامَ اللّٰهِ ثُمَّ يُحَرِّفُوْنَهٗ مِنْۢ بَعْدِ مَا عَقَلُوْهُ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿۷۵﴾

کلام د الله، بیا به ئے بدلولے معنے د هغے، روستو د هغے نه چه پوهه به شو په معنی د هغے، او دوی پوهیدل (چه دا ګناه ده)۔

**تفسیر** : ددے ځائے نه روستو پنځه ډلے بیانوی چه هغه د نبی ﷺ په وخت کښې د موجوده یهودیانو وے۔ (او دا بیلے بیلے ډلے نهٔ وے بلکه دا مجموعه صفات په یهودو کښې تقسیم وو نو ځکه ترے په ډلو تعبیر کیږی) او د دوی پنځه خباثات او عیبونه دی۔ ۱- یو علماء چه تحریف معنوی به ئے کولو۔ ۲- دویم منافقان ۳- دریم امیان مقلدین ٤- څلورم علماء تحریف لفظی کونکی۔ ۵- پنځم: ځان دپاره د جنت خاص کونکی حال دا چه عقیده ئے باطله وه۔ پدے آیت کښې اوله ډله ذکر ده۔

**ربط او ترون** : تردے ځائے پورے الله رب العالمین د بنی اسرائیلو د مشرانو درے ډلے بیان کړے یعنی د هغوی درے بد صفات۔ اوس ددے ځائے نه الله تعالیٰ د بنی اسرائیلو چه کوم موجوده ډلی دی د رسول الله ﷺ په زمانه کښې، د هغے تذکره کوی چه دا ټول بد صفات د مشرانو وی او که د کشرانو دا اوس هم یهود او نصاراؤ کښې موجود دی۔ ددے دا مطلب نهٔ دے چه دا صفاتو والا پخوا تیر شویدی او اوس نشته دے۔ بلکه دا بد صفات

دوی کښې اُوس هم شته۔ اُوس دے آیت کښې الله تعالیٰ خطاب کوی مؤمنانو او پیغمبر ته چه د هغوی دا طمع وه چه مونږ به دے خلقو ته دعوت ورکړو، ایمان به راوړی ځکه ددوی زړونه پاك وو، هر سړے په خپل ځان باندے قیاس کوی (اَلْمَرْءُ یَقِیْسُ عَلٰی نَفْسِهٖ) دوی دا گمان کولو چه دا خو د حق خبرے دی، او د جنت ذریعه ده، د اُور نه د بچاؤ ذریعه ده، دا خلق به ئے ولے نهٔ منی؟ تیار اهل کتاب دی، دینداره خلق دے او علماء دی، او که دوی ایمان راوړو نو د دوی په وجه به ډیر خلق ایمان راوړی، نو الله تعالیٰ د مؤمنانو او د خپل پیغمبر طمع قطع کوی چه دا سخت زړی خلق دے، ددے خلقو نه به د ایمان طمع نهٔ کوئ ځکه چه یو سړی ته د الله تعالیٰ کتاب معلوم شو او بیا ئے پکښې غلط تفسیرونه او تاویلونه شروع کړل نو دهغه نه د هدایت طمع مهٔ کوه، دا بعض خلق دے وخت کښې د بدعتیانو په باره کښې وائی چه فلانے مُلا دے، هغه سره لږه نرمی پکار ده، کیدے شی چه ښه شی، نهٔ بلکه چه شیخ الحدیث اوشیخ القرآن شو۔ په قرآن او حدیثو باندے پوهه شو او بیا هم بدعت کوی نو هغه به کله پو هیږی، سپین گیر توب ته اُورسی، عمرئے د ځلوبښتو نه واوړی نو هغه به کله سمیږی۔ نو پدے آیت کښې خبر ورکوی د هغوی د عدم ایمان نه۔ چه دوی سره خپل کتابونه موجود دی او په هغے کښې تحریف کوی هغه سم نهٔ منی، نو ستاسو خبره به څه اُومنی، نو د دوی د ایمان طمع مهٔ کوئ۔

(اَنْ یُّؤْمِنُوْا لَكُمْ) یعنی تصدیق (اعتماد) به اُوکړی ستاسو په خبره، یا ایمان به راوړی ستاسو د وجه نه او ستاسو په دعوت باندے۔

(كَلَامَ اللهِ) د کلام الله نه دلته تورات مراد دے۔ یعنی دوی ته به کوم امی د تورات یو آیت راوړو چه دے کښې دا مسئله ده او د آخری نبی بشارت پکښې دے نو دوی چه به واوریدو نو زر به ئے پکښې غلط تاویل (او تحریف) اُوکړو، چه ددے نه مراد دا نبی نهٔ دے، هغه به روستو راځی وغیره۔ (۲) او دا تفسیر ضعیف دے چه د کلام الله نه مراد دا دے چه دوی د الله تعالیٰ خبرے براهِ راست اوریدلے وے کومے چه موسیٰ علیه السلام سره په کوهِ طور کښې کیدلے، نو دوی اوریا کسانو هم هغه اوریدلے وے، دا باطل تفسیر دے، د الله تعالیٰ خبرے د موسیٰ علیه السلام نه بغیر په هغه زمانه کښې هیچا نهٔ دی اوریدلی۔ هارون علیه السلام هم نهٔ دی آوریدلی، او بیا د دوی او موسیٰ علیه السلام امتیاز څه شو، او بعض اهل علمو پدے تفسیر باندے سخت انکار کړیدے لکه هغه ابن الجوزی په خپل تفسیر زاد المسیر (۱/۱۰۳) کښې نقل

کړیدے۔ بلکه دلته د کلام الله نه مراد تورات دے، دائے اوریدلے وو۔
او د کلام الله اطلاق په ټولو آسماني کتابونو کیږي، نو د بعضو خلقو دا خبره کول چه کلام الله صرف قرآن ته وئیلے شي او تورات، انجیل او زبور د الله تعالیٰ کتابونه وو خو کلام ئے نهٔ وو، دا خبره غلطه ده، وجه دا ده چه الله تعالیٰ په هره ژبه خبره کولے شي نو په تورات هم الله تعالیٰ تلفظ کړیدے نو هغه هم د الله تعالیٰ کلام دے۔ او هغے ته هم په احادیثو کښې کلام الله وئیلے شویدے۔ او پدے آیت کښې هم۔
یُحَرِّفُوْنَهٗ : (یُغَیِّرُوْنَ مَا فِیْهَا مِنَ الْاَحْکَامِ) (یعنی احکام د تورات به ئے بدلول چه یو د هغے نه صفت د محمد ﷺ دے او آیت د رجم دے)
(مِنْۢ بَعْدِ مَا عَقَلُوْهُ) (اَیْ مِنْ بَعْدِ مَا فَهِمُوْا مَعْنَاهُ) یعنی پس د هغے نه چه په خپل اصلی مقصد به ئے پوهه شو او سره د پوهے نه به ئے دغه شان تحریف کولو۔
(وَهُمْ یَعْلَمُوْنَ) (۱) (اَیْ وَهُمْ یَعْلَمُوْنَ اَنَّهُمْ مُخْطِئُوْنَ فِیْمَا ذَهَبُوْا اِلَیْهِ مِنْ تَحْرِیْفِهٖ وَتَاْوِیْلِهٖ) (ابن کثیر) یعنی دوی پوهیدل چه دا تحریف ډیر بد او غلط کار دے او مونږ په کښې په خطا یو) ۔ د تحریف په قباحت باندے پوهیدل۔(۲) (وَهُمْ یَعْلَمُوْنَ اَنَّهُمْ کَاذِبُوْنَ) (مجاهد، وقتادة) (بغوی) (دوی پوهیږی چه دوی دروغجن دی)۔
د (عَقَلُوْهُ) او (یَعْلَمُوْنَ) فرق دا دے چه د عقل معنی ده د هغے په معنیٰ باندے به پوهه شو او د (یعلمون) معنیٰ ده د تحریف په قبح پوهیدل چه دا ډیر بد کار دے۔
**فائده** : ددے قیدونو نه معلومه شوه چه یو انسان د یو آیت معنیٰ کوی لیکن هغه غلطه وی خو ده ته پته نهٔ وی چه دا غلطه ده، نو دا انسان گناهګار نهٔ دے اګرکه ددهٔ په باره کښې به داسے وایو چه معنیٰ ئے خطاء ده، او انسان خطاء شویدے۔ او دیته به تحریف نشی وئیلے کیدے ځکه تحریف کښې مقصد د دغه غلطے معنے باقی پریخودل وی په خلقو کښې چه پدے باندے عمل کوئ او دلته که دهٔ له تنبیه ورکړے شی نو دا هغه معنیٰ پریږدی۔ او توبه الله تعالیٰ ته اُویاسی۔
دویم یَعْلَمُوْنَ بِقَبَاحَةِ التَّحْرِیْفِ دا قید ځکه لګوی چه کیدے شی چه یو انسان تحریف کوی او دا ورته ګناه نهٔ ښکاری چه ددے آیت یا داسے مطلب وئیل یا داسے وئیل، یا چا له رجم ورکول یا مخ تورول دواړه یو شے دے، مخ تورول به هم د الله تعالیٰ د حکم په شان وی او ددے په قباحت باندے نهٔ پوهیږی چه د الله تعالیٰ په حکم بدلولو کښې څومره نقصان دے نو دا هم

ماخوذ دے خو دومره نۀ، څکه چه جاهل دے، خو چه یو سړی ته د الله تعالیٰ حکم معلوم دے او د هغے د بدلولو په نقصان هم پو هیږی او بیا ئے هم بدلوی نو دا غټ مجرم دے۔

**فائده:** تحریف په لغت کښې په یو شی کښې تغییر او تبدیل پیدا کولو ته وئیلے شی۔ او تحریف دوه قسمه دے: ۱- تحریف لفظی: یو دا دے چه د الله د کتاب الفاظ بدل کړی او ددے په ځائے نور الفاظ کیدی۔ یا پکښې تقدیم او تأخیر اُوکړی، یا بعض الفاظ کټ کړی، او مخکښې روستو اُووائی۔ دا هم دوی کړیدے لکه (اظهار الحق د علامه کیرانوئ او -اَلْجَوَابُ الصَّحِیْحُ لِمَنْ بَدَّلَ دِیْنَ الْمَسِیْحِ ) د شیخ الاسلام) کښې ئے لیکلی دی۔ چه دوی د رجم په ځائے (تَحْمِیْم) د مخ تورولو او خره باندے سوره ولو قانون ایخودے وو۔

ددے وجه نه ابن عباس رضی الله عنهما نۀ چه بخاریؒ نقل کړیدی چه د الله تعالیٰ په کتاب کښې تحریف نشی کیدلے نو د هغے مطلب دا دے چه داسے نشی کیدے چه په هره نسخه کښې به خامخا تحریف شوے وی بلکه داسے ممکن ده چه یوه نسخه داسے وی چه په هغے کښې تحریف نۀ وی شوے۔ اګرکه دوی کوشش کړیدے چه تحریفونه پکښې اُوکړی۔

۲- تحریف معنوی: دیته وائی چه د الله تعالیٰ د کتاب غلط تفسیر او غلطه معنیٰ اُوکړی د خپلے رائے، خواهش او غلطے عقیدے مطابق۔ او د الله تعالیٰ احکام بدلوی، حرامو نه حلال جوړ کړی او حلالو نه حرام۔ او دا تحریف په قرآن کریم او احادیثو کښې هم کیدے شی، د یهودو هم عادت وو، او ددے امت مبتدعین، قدریه، جبریه، معتزله، خوارج او روافض ټول د قرآن کریم او احادیثو نه استدلالونه کوی او هغه خپلے رائے ته راتاووی۔ او تحریف لفظی قرآن کریم کښې نشی کیدے۔ الله تعالیٰ وعده کړیده (اِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَاِنَّا لَهٗ لَحَافِظُوْنَ) (الحجر:۹) (مونږ دا قرآن نازل کړیدے او مونږه ددے حفاظت کونکی یو)۔ او دا دواړه سخت ناروا کارونه دی، د الله تعالیٰ شریعت بدلول دی۔

او پدے کښې د مفسرینو هغه استنباطات نۀ دی داخل چه د آیت نه ئے کوی څکه چه هغه د خپل خواهش دپاره نۀ کوی، دارنګه هغه د سیاق او سباق د آیت نه معلومیږی۔

او دے آیت کښې دا اشاره ده چه کوم کسانو ته حق واضحه شی او بیا هم د خپلے رائے او د خپل تنظیم د وجه نه د الله تعالیٰ په کتاب او احادیثو د نبی ﷺ کښې تاویلات کوی نو دۀ ته غالباً هدایت نۀ کیږی۔

وَاِذَا لَقُوا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قَالُوْٓا اٰمَنَّا ۚ وَاِذَا خَلَا بَعْضُهُمْ

او كله چه دوی يو ځائے شی د مؤمنانو سره، دوی وائی مونږ ايمان راوړيدے او كله چه جدا شی بعض ددوی

اِلٰى بَعْضٍ قَالُوْٓا اَتُحَدِّثُوْنَهُمْ بِمَا فَتَحَ اللّٰهُ

د بعضو (مشرانو) سره نو هغوی ورته وائی: آيا تاسو بيانوئ دے مؤمنانو ته هغه شے چه راكولاؤ كړيدے الله

عَلَيْكُمْ لِيُحَآجُّوْكُمْ بِهٖ عِنْدَ رَبِّكُمْ ۗ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿٧٦﴾

په تاسو، انجام دا دے چه دوی به جګړے كوی تاسو سره په نزد د رب ستاسو، آيا تاسو عقل نه لرئ.

**تفسير** : اُوس په دوی كښ دوېمه ډله منافقان وو د هغوی حال بيانوی چه كله دوی د مسلمانانو سره ملاؤ شی نو وائی مونږ ستاسو په شان مسلمانان يو، ليكن كله چه خپل مينځ كښ كينی يا كشران د مشرانو خوا له لاړ شی، بل څوك نهٔ وی نو يو بل ته وائی چه الله تعالىٰ تاسو له علم در كړيدے، پوهه ئے دركړيده، د خپلو كتابونو تحريف ئے درته زده كړيدے نو دا دے مؤمنانو ته ولے بيانوئ! ځكه چه مخكښ به يهوديانو مسلمانانو ته دا بيان كولو چه دا خبرے خو زمونږ په كتاب كښ ئے هم ليكلی دی. او ددے پيغمبر صفات خو زمونږ كتاب كښ هم شته نو مؤمنان به ئے نور هم مضبوطول، نو مشرانو ورته اُووئيل چه دوی ته دا خبرے مهٔ بيانوئ ځكه بيا به دوی د قيامت په ورځ د الله تعالىٰ په دربار كښ تاسو باندے ګواهی كوی او بحث به درسره كوی، وائی به چه اے الله! دے خلقو ته ښه حق معلوم وو او مونږ ته ئے بيان كړلو او خپله ئے نهٔ منلو بيا به هلته خړ سترګی ناست يئ، قيامت خو تاسو هسے هم منئ (ځكه دوی د قيامت منونكی وو)۔ ليكن كافر وو۔

(وَاِذَا لَقُوا الَّذِيْنَ آمَنُوْا) مخكښ هم د دوی صفات تير شويدی خو هغه د عامو منافقانو په باره كښ وو، او دا د يهوديانو مُليانو منافقان دی۔

**بِمَا فَتَحَ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ** : د فتح ډيرے معنے دی (۱) يعنی هغه علوم چه الله تعالىٰ تاسو ته راكولاؤ كړيدی او بل چا له ئے نهٔ دی وركړی نو دا دے عوامو ته مهٔ بيانوئ۔ (قفال)

(۲) (بِمَا بَيَّنَهُ اللّٰهُ لَكُمْ مِنَ الْعِلْمِ بِصِفَةِ النَّبِيِّ مُحَمَّدٍ ﷺ وَنَعْتِهٖ) (كسائی)

(هغه خبرے چه الله تعالیٰ بیان کړیدی تاسو ته په تورات کښې چه دا حق نبی دے او الله تعالیٰ دده صفت پکښې بیان کړیدے) نو دے عربو مشرکانو او مؤمنانو ته دا خبرے مه ښکاره کوئ او اقرار دده په نبوت مه کوئ، بیا به دوی ستاسو په خبره دلیل نیسی او وائی به چه تاسو دا اقرار کوئ چه دا حق نبی دے او بیا تابعداری ئے نه کوئ۔ نو د الله تعالیٰ په نیز به ورته شرمنده شئ او هغوی به دریاندے غالبه شی۔

(۳) (بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ مِنَ الْعَذَابِ لِيُعَيِّرُوكُمْ بِهِ وَيَقُولُونَ فَمَنْ أَكْرَمُ عَلَى اللَّهِ مِنْكُمْ) (اللباب) یعنی دوی ته مه بیانوئ هغه عذابونه چه الله تعالیٰ په تاسو او ستاسو په مشرانو نازل کړیدی ځکه بیا به تاسو ته پیغور درکوی او وائی به چه تاسو څنګه په الله تعالیٰ عزتمند یئ چه عذابونه ئے درکړیدی) یعنی بیا به ورته بیعزته ښکاره کیږئ۔ او حال دا چه یهودیانو به ځانونه د الله تعالیٰ غوره ډله شمارله۔

(٤) (بِمَا قَضَى اللَّهُ لَكُمْ وَعَلَيْكُمْ) (عطاء الخراسانی) (تفسیر ابن ابی حاتم) (یعنی هغه څه چه الله تعالیٰ ستاسو دپاره یا په تاسو باندے فیصله کړیده) دا خپل واقعات (ښه او بد) دوی ته مه بیانوئ بیا به دریاندے دلیل نیسی۔ نو دغه شان جاهلان ئے اُوساتی۔ چه دریاندے غالبه نشی۔

(**لِيُحَاجُّوكُمْ بِهِ**) (۱) دا (لام) د عاقبت دپاره دے یعنی انجام به دا شی چه دا خلق به تاسو سره د الله تعالیٰ په دربار کښې بحث کوی۔ (۲) یا متعلق دے د اتحدثونهم پورے۔ او لام په معنیٰ د کی (سبب) سره دے او دا علت د تحدیث دے یعنی تاسو ئے ددے دپاره بیانوئ چه دلیلونه دریاندے اُونیسی؟) یعنی ستاسو بیان به علت شی ددے چه بیا به دریاندے دلیلونه نیسی۔

(عِنْدَ رَبِّكُمْ) ددے درے مصداقات دی (۱) (عِنْدَ رَبِّكُمْ أَیْ فِی الْآخِرَةِ) یعنی په قیامت کښې به درسره جګړه کوی او د الله تعالیٰ په دربار کښې به ستاسو په خلاف دلیل پیش کړی چه دوی مونږ ته مسئلے کړیدی او خپله ئے تابعداری نه ده کړے۔ لکه تفصیل ئے مخکښې ذکر شو۔ او په التنویر کښې ابن عاشور رحمه الله همدا معنیٰ غوره کړیده۔ او رد ئے کړیدے په استبعاد د بیضاوی چه هغه وئیلی دی چه دا معنیٰ ضعیفه ده ځکه چه د دوی دا خبرے او دا حقائق پټ ساتل دوی ته په قیامت کښې څو فائده نشی ورکولے، او الله تعالیٰ ته خو معلوم دی، نو څنګه کشران منع کوی۔ نو ابن عاشورؒ فرمائی : چه دا تفسیر د عقیدے د یهودیانو مطابق دے چه هغوی به د الله تعالیٰ تشبیه د انسانانو د حاکمانو سره ورکوله چه لکه څنګه په انسان باندے حیله پټیږی نو په الله تعالیٰ هم پټه پاتے کیږی۔ (العیاذ بالله)

او ددے دپاره ئے د یهودیانو د کتابونو (سفر التکوین) نه مثالونه پیش کړیدي۔ لهذا کشرانو ته وائي چه تاسو عوام مه پوهه کوئ په حق باندے چه قیامت کښې دربانديے دلیل پیش نکړي او چه دوی دربانديے دلیل پیش نکړو نو مغلوب به نشئ۔ او خپله به ئے دا بهانه کوله چه مونږ هم د خپلو پیغمبرانو تابع یو او اهل کتاب یو۔ پدے دهوکه شوي وو۔

(۲) - بعض مفسرین وائي : چه (عِنۡدَ رَبِّكُمۡ) نه کتاب الله او فیصله مراد ده۔ (أَیۡ فِیۡ كِتَابِ رَبِّكُمۡ وَحُكۡمِهٖ) ځکه د الله تعالیٰ په کتاب کښې جګړه کول داسے دی لکه د الله تعالیٰ په دربار کښې جګړه کول۔

نیشاپوریؒ معنیٰ کوی : (لِيَحۡتَجُّوۡا عَلَيۡكُمۡ بِمَآ أَنۡزَلَ عَلَيۡكُمۡ رَبُّكُمۡ فِيۡ كِتَابِهٖ)

معنیٰ دا ده : جګړه به درسره کوی په هغه خبره چه الله تعالیٰ تاسو ته په کتاب خپل کښې نازل کړیده، یعنی دا تورات به درپسے راخلي چه ګوره دے کښې ئے داسے مسئله لیکلے ده او تاسو مونږ ته بیان کړیده او اوس ئے نهٔ منئ۔ ځکه چه بعض یهودیانو به مؤمنانو ته تورات ورخودلو چه ددے نبي صفات زمونږ په کتاب کښې هم شته لیکن مشرانو یهودو منع کړل او دا د یهودو صفت وو چه دوی مؤمنانو ته حق نهٔ بیانولو۔ د بعض جاهلانو مُلیانو دا عادت دے، هغوی وائي چه عوامو ته دین بیانول نهٔ دی پکار، دوی بیا په مُلیانو مستېږی نو دوی همداسے غافل ساتل پکار دی۔ لیکن اوله معنی ظاهره ده۔ کله به دے یهودیانو مؤمنانو ته د خپلو مشرانو واقعے او قصے او عذابونه او نقمتونه بیانول نو مشرانو منع کړل چه صبا له به درته وائي چه ستاسو مشران خو خراب خلق وو، تاسو ئے څنګه تابعداری کوئ نو دغه شان غافله ئے اُوساتئ چه بحث درسره نشي کولے۔

(۳) (لِيُحَاجُّوۡكُمۡ عِنۡدَ رَبِّكُمۡ فَتَظۡهَرُ لَهُمُ الۡحُجَّةُ عَلَيۡكُمۡ، فَيَكُوۡنُوۡا أَوۡلىٰ بِاللّٰهِ مِنۡكُمۡ) (الحسن)

(تفسیر النکت والعیون للماورديؒ)

(یعنی دوی ته دا حق مهٔ بیانوئ ځکه چه دوی ته به ستاسو په خلاف حجت او دلیل ښکاره شي نو دوی به په تاسو غالبه شي لهذا دوی به الله تعالیٰ ته ستاسو نه زیات قریب شي) او تاسو به مغلوبه شئ، ځان ته به بیا غوره نشئ وئیلے۔

(أَفَلَا تَعۡقِلُوۡنَ) (۱) دا قول یا د مشرانو دے کشرانو ته او پدے کښې زیات تاکید دے په توبیخ ورکولو هغوی ته یعنی دومره عقل مو نشته چه دشمنان په ځان خبروئ، دشمن ته ولے خبر ورکوئ۔ چه د قیامت په ورځ به مو شرموی۔ او کوم انسان چه دشمن ته ځان پاتے

راولی نو دا یے عقلہ وی۔ (۲) یا د اقول د الله تعالیٰ دے او خطاب دے مؤمنانو ته چه اے ایمان والو! د یهودیانو نه تاسو ددے منافقت او د حق د پټولو باوجود اُوس هم د ایمان طمع کوئ، لږ سوچ اُوکړئ چه یو انسان د حق د ښکاره کولو نه خلق منع کوی نو دا به څنګه حق ته راشی۔ (قاله الحسن – اللباب) اول قول ډیر ظاهر دے۔

﴿اَوَلَا يَعْلَمُوْنَ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ﴿۷۷﴾﴾

آیا نهٔ پوهیږی دا یهود چه یقیناً الله پوهیږی په هغه څه چه دوی پټوی او په هغه څه چه دوی ئے ښکاره کوی۔

**تفسیر**: اُوس الله تعالیٰ په دوی او په دغه ضدیان علماؤ باندے رد کوی چه علماء ئے د حق د خبرے د ښکاره کولو نه منع کوی او منافقان ئے پټ کفر کوی، دوی خو د خلقونه دا خبرے پټے ساتی، خو الله تعالیٰ ته د دوی هر حالت معلوم دے، ددے ټولو سزا به ورکوی۔

او لا یعلمون: پدے کښې ضمیر مشران او کشران ټولو ته راجع دے۔

﴿ اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ﴾ کومه خبره چه دوی پټوی او کومه خبره چه ښکاره کوی ټول الله تعالیٰ ته معلوم دی۔ نو ولے به ئے الله تعالیٰ نهٔ راښکاره کوی څکه که تا مؤمن ته بیان نکړه نو الله تعالیٰ ته خو ستاسو دروغ معلوم دی هغه به ئے راښکاره کړی، د هغه په مخکښې به اُوشرمیږی هغه به ئے ټولو خلقو ته ښکاره کړی چه دا هغه شرمیدلی دی۔ پدے کښې د حق او د کفر پټول او د ایمان ښکاره کول په طریقه د منافقت سره داخل دی۔

﴿وَمِنْهُمْ اُمِّيُّوْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ الْكِتٰبَ

او بعض د دوی نه امیان (اَن پړه، ناخوانده) دی چه نهٔ پوهیږی په کتاب

اِلَّآ اَمَانِيَّ وَاِنْ هُمْ اِلَّا يَظُنُّوْنَ ﴿۷۸﴾﴾

مګر روان دی د ارزوګانو (خواهشاتو) پسے او نهٔ دی دوی مګر ګمان (او اټکل) کوی۔

**تفسیر**: د دوی دوه ډلے بیان شوے یو منافقان دی، دویم تحریف کونکی په تحریف معنوی سره نو اُوس دریمه ډله د عوامو امیانو بیانوی۔ اُمِّيُّوْنَ جمع د اُمی ده، او امی

منسوب دے ام تـه يعني د مورنه چه ځنګه ناپوهه پيدا وو نو هغه شان ناپوهه دے۔ هيڅ خط او کتابت او لوستل ئے نهٔ دی زده کړی۔ او دا صفت په عامو انسانانو کښې قبيح دے ليکن زمونږ د نبی کريم ﷺ په صفت کښې د مدحے صفت دے۔

(۲) ابن عاشور رحمه الله فرمائی : (وَالْأَظْهَرُ أَنَّهُ مَنْسُوبٌ إِلَى الْأُمَّةِ بِمَعْنَى عَامَّةِ النَّاسِ فَهُوَ يُرَادِفُ الْعَامِّيَّ) (ډيره ظاهره دا ده چه امی منسوب دے امت ته په معنیٰ د عامو خلقو سره نو دا بيا د عامی په معنیٰ دے)۔ چه قرائت او کتابت باندے نهٔ پوهيږی۔

او مطلب دا دے چه دا ټول په کفر او ضلالت کښې سره يو برابر دی، علماء ئے تحريف د الله تعالیٰ د کتاب کوی او عوام خلق ئے په ليکلو او لوستلو نهٔ پوهيږی چه پخپله د تورات مطالعه اُوکړی او د نبی ﷺ د نبوت دلائل اُوپيژنی او ايمان راوړی، بلکه د دوی ټوله اثاثه بے بنياده ارمانونه او آرزوګانے او خواهشات دی چه د علماؤ نه ئے موندلی دی، هغوی ورته وائی چه الله تعالیٰ به دوی معاف کوی ځکه چه د دوی انبياء چه دوی د هغوی اولاد دی، هغوی به دوی لره سفارش کوی او دارنګه جنت د دوی پورے مختص دے۔

او دارنګه وئيل به ئے چه مونږ د الله تعالیٰ ځامن او محبوبان يو، د انبياؤ اولاد يو۔

دارنګه مُليانو ورته وئيلی وو چه مونږ به تاسو د الله تعالیٰ د عذابونو نه خلاصوو، او مونږ به جهنم ته صرف د يو څو ورځو دپاره ځو، پدے جالونو کښې خپلو مُليانو انخلولی وو، هيڅ تحقيق ورسره نهٔ وو، په جهالت ئے سر وو، دا د دوی د ايمان حصه وه، لکه دا کار بعينه زمونږ ددے امت اميانو باندے خپلو باطل مُليانو او پيرانو اُوکړو چه دوی ته ئے وئيلی وو (الا بلا بگردن مولا) کله ورته وائی د امی سړی د دليل سره څه کار! د هغه دپاره د مولا خبره دليل دے۔ کله وائی : (قال قال بسيار است مرا قول ابوحنيفه کافيست) (فتاویٰ برهنه)

نو الله تعالیٰ فرمائی : ددا سے امت نه چه د هغوی د علماؤ دغه حال دے او د عوامو ئے دا حال دے- تاسو به ځنګه طمع د ايمان اُوکړئ۔

لَا يَعْلَمُونَ الْكِتَابَ : د کتاب نه تورات مراد دے۔ يا جنس کتاب چه تورات ته هم شامل دے۔

(إِلَّا أَمَانِيَّ) پدے کښې درے تفاسير دی او استثناء يا متصل يا منقطع ده۔

(۱) امانی : جمع د امنية ده د تمنی نه اخستلے شويدے په معنیٰ د قرءَ (لوستلو) سره لکه (إِذَا تَمَنَّى أَلْقَى الشَّيْطَانُ فِي أُمْنِيَّتِهِ) (الحج : ۵۲) (ای قرأ) کله چه قراءت کوی۔

دارنګه حسان بن ثابت رضی الله عنه د عثمان رضی الله عنه په مدح کښې داسے وئيلی وو :

تَمَنّٰى كِتَابَ اللّٰهِ أَوَّلَ لَيْلَةٍ وَآخِرَهُ لَاقٰى حِمَامَ الْمَقَادِرِ
تَمَنّٰى كِتَابَ اللّٰهِ أَوَّلَ لَيْلَةٍ تَمَنِّيَ دَاوٗدَ عَلٰى رَسْلٍ

(۱- په اول د شپه کښې ئې د الله تعالیٰ کتاب لوستلو او په آخر د شپه کښې د مقرر مرگ سره ملاؤ شو،
۲- په اول د شپه کښې ئې د الله تعالیٰ کتاب اُولوستلو لکه څنګه چه داود ﷺ زبور په آرام سره لوستلو)

نو د اماني نه مراد ظاهري قراءت او تلاوت دے۔ معنیٰ دا ده چه بعض په دوی کښې هغه خلق دی چه د کتاب الله علم ورسره نشته مګر ظاهري الفاظ لولی۔ او د حقائقو او معانیو نه ئې خبر نهٔ وی لکه زمونږ پدے اُمت کښې هم داسے خلق دی چه په تلاوت د قرآن باندے به بنهٔ پوهیږی لیکن حقیقت د قرآن نه نهٔ دی خبر او وائی چه مونږ اهل قرآن یو او مونږه د قرآن خادمان یو او صرف په تلاوت او حفظ باندے فخر کوی۔ او حال دا چه اصلی مقصد د قرآن په معنیٰ او تفسیر باندے ځان پوهول او بیا د هغے مطابق عمل کول او د هغے بیانول دی۔(دے آیت کښې سوچ اُوکړه)۔ او دا معنیٰ امام رازیؒ په تفسیر کبیر کښې غوره کړیده۔ دے دپاره چه د مابعد او د ماقبل د استثناء مطابقة راشی۔ او امام ابوحفص الدمشقی په اللباب کښې وئیلی دی چه دا قول د اکثرو اهل علمو دے او دا غوره دے نو استثناء متصل ده او اَمَانی په معنیٰ د لوستلو د الفاظو دے۔

نو هر کله چه دوی امیان دی او د لوستلو نه ماسواً په بل هیڅ څیز نهٔ پوهیږی نو دوی په عقیدو او عملونو کښې په څه پسے روان دی ؟ نو فرمائی : (ان هم الا یظنون) دوی د ګمانونو پسے روان دی چه علم ورسره نشته او ځان ته عالمان وائی، ځان ئې هسے په مُلیانو کښې شمارلے دے او مینځ کښې علم ورسره نشته۔ او ایمان ورسره نشته او ځان ته مؤمنان وائی۔ او دارنګه اهل حق نهٔ دی او ځان ته حق پرست وائی، پدے باندے دوی ځان کامیاب ګڼړی، او دا د ځان سره دوهوکه ده چه یو انسان پوهیږی نهٔ او ځان ته پوهه وائی۔ یو انسان د الله ولی، هدایت والا نهٔ دے او ځان د الله تعالیٰ ولی او هدایت والا ګنړی نو دا ځان سره دهوکه کوی۔

(۲) تفسیر : اَمَانی (تَمِنِیَّات) آرزوګانو او ارمانونو ته وئیلے شی او دا استثناء منقطع ده په معنی د لکن سره یعنی : (لٰکِنْ يَتَّبِعُوْنَ الْاَمَانِيَّ وَالتَّمَنِّيَاتِ) لیکن روان دی د تشو آرزوګانو پسے، صرف آرزو دے ته وائی چه سړے څه عمل نهٔ کوی او نیت لری چه زه بس بنه سړے یم او کامیاب، جنتی یم۔ او زه به متبوع یم او ټول خلق به زما تابع وی۔ ځان نه ئې پیران او

مشران جوړ کړي وي، او ګمانونو پسې روان دي۔

د يهودو دا صفت وو چه بس مونږ خو د پيغمبرانو اولاد يو او مونږ اهل کتاب يو۔ او مونږ د الله تعالیٰ غوره ډله يو۔ نو دوی په تشو ګمانونو ځان متبوع ګڼلو حال دا چه څوك د چا متبوع کيږي نو هغه په څه کار باندې، په څه عقيده، په څه عمل او څه اخلاقو او څه کارنامو باندې او په يقين او عمل باندې۔ نو دوی تورات صرف د خپلو آرزوګانو مجموعه ګڼله چه (لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ) او (لَنْ يَدْخُلَ الْجَنَّةَ)

د ځان نه ئې عقيده جوړه کړې وه او ګمان ئې دا وو چه دا ګنې په تورات کښې وئيل شويدي۔

او زمونږ په امت کښې هم ډير جاهلان شته، وائي مونږ مسلمانان يو دا جنت الله تعالیٰ چا له پيدا کړيدې؟، مسلمانانو له ئې پيدا کړيدې۔ سره ددې نه چه عقيده به ئې خرابه وي، عمل او اخلاق به ئې خراب وي نو صرف د اسلام په نوم هم ځان جنت ته بوځي۔ نو هغوی به هم داسې وئيل چه مونږ اهل کتاب يو او حال دا چه د کتاب نه د سره خبر نهٔ وو او ځان ته ئې اهل کتاب وئيل، دې امت کښې هم ډير خلق د قرآن او حديث نه هيڅ خبر نهٔ وي او په قرآن او حديث فخر کوي، او حال دا چه د قرآن او سنت خوا له نهٔ راځي۔ آرزو پسې روان وي۔ امام رازيؒ په تفسير کبير کښې ليکي: څوك چه پدې آيتونو کښې سوچ اُوکړي نو پدې کښې چه کومې فرقې ذکر دي دا به يقيناً پدې اُمت کښې اُومومي۔

(۳) تفسير: تَمَنّي کله په معنیٰ د کَذِبَ (دروغ وئيلو) سره هم راځي (الوسيط) نو اماني په معنیٰ د (اَلْاَکَاذِيْبُ وَالْمَکْذُوْبَاتُ) سره دې (يعني دروغ خبرې) او استثناء منقطع ده۔ (لٰکِنْ يَّتَّبِعُوْنَ الْاَکَاذِيْبَ) (يعني مشرانو ورته دروغ وئيلي دي په هغې پسې روان دي) لکه دې امت کښې هم چه څوك ډير دروغ وائي نو هغه پسې ډير خلق روان وي۔

(وَاِنْ هُمْ اِلَّا يَظُنُّوْنَ) صرف ګمان کوي او ګمان پسې په باب د عقيده او دارنګه په باب د اعمالو کښې روانيدل صحيح نهٔ دي، زمونږ دين ټول يقيني يقيني دې، خبر واحد ئې هم يقيني دې او قرآن ئې هم يقيني دې۔ او دا خبره چه خبر واحد (يوتن نقل کړې حديث) ګمان پيدا کوي – نو دا عقيده غلطه ده۔

خطيب شربينيؒ ليکي: ظن هغه رائې او عقيدې ته وائي چه هيڅ قطعي دليل ئې نهٔ وي اګرچه د هغې صاحب په هغې باندې يقين کوي لکه عقيده د مقلد او د حق نه د اوريدونکي په سبب د شبهې سره۔ (السراج المنير) نو په آيت کښې رد د تقليد دې چه چا

سره یقینی دلیل نۀ وی نو د هغه پسے روانیدل د یهودو صفت دے۔
نو پدے آیت کښې د اهل کتابو دا صفت ذکر شو چه دوی گمان پسے روان دی، دلیل ورسره نشته، ځکه چه ظن علم نۀ دے۔ او ځان ته بزرګان وائی او حال دا چه عقیده ئے خطاء ده۔ او په حق کښې دوی د تولو خلقو نه زیاتے جګړے کوی، او سخت دروغجن او غرور والا دی۔ دارنګه پدے آیت کښې الله تعالیٰ مونږ ته دا تنبیه هم راکوی چه تاسو د ځان نه دغسے کسان مۀ جوړوئ چه په څه نۀ پو هیږئ او دعوی غټے غټے کوئ، نۀ! د خپلے شرعٔ مطابق خپے اُوغزوئ۔
ابن جریرؒ معنیٰ کوی : یَتَخَرَّصُوْنَ الْکَذِبَ وَیَتَقَوَّلُوْنَ الْاَبَاطِیْلَ) دروغ جوړوی او باطلے خبرے کوی پیدا کوی۔ یعنی ظن په معنیٰ د دروغ وئیلو دے ځکه چه د دوی په صحت د خپلو خبرو باندے علم نشته۔ ۲- بعض معنیٰ کوی : اَکَاذِیْبَ سَمِعُوْهَا مِنْ عُلَمَائِهِمْ فَنَقَلُوْهَا عَلَی التَّقْلِیْدِ (البحر المحیط) (دوی دروغ د علماؤ نه اوریدلی دی نو په تقلیدی طریقه ئے نقل کوی) چه بس ملیانو او استاذانو داسے وئیلی دی، نور مونږ نۀ یو خبر۔ نو که مُلیان ئے غلط وی نو دوی هم په غلطه شو او که مُلیان ئے رشتینی شی نو دوی به هم رشتینی شی او بعینهٖ دیته تقلید وائی۔ او دا په دے آیت سره حرام دے۔
**فائده** : امانی که په معنیٰ د قرائة الالفاظ (الفاظ لوستلو سره) شی نو پدے کښې د دوی عمل ذکر شو او (اِلَّا یَظُنُّوْنَ) کښې ئے عقیده ذکر شوه چه د دوی عمل هم بے دلیل دے او عقیده ئے هم د ګمان او د دروغو او د تقلید ده۔ او که امانی په معنیٰ د تمنیات او خیالاتو سره شی نو بیا اِنْ هُمْ اِلَّا یَظُنُّوْنَ تاکید دے د امانی دپاره چه دوی کښې هیڅ قسم علم نشته۔
(۲) یا دا چه امانی نه مراد هغه خیالات او تقدیرات او فرضیات دی، چه ملیانو نه ئے اَوریدلی دی، په هغے هم عمل کوی او یظنون کښې د دوی خپل ګمانونه او خیالات مراد دی۔
**فائده** : او یَظُنُّوْنَ ئے جمله فعل مضارع سره ذکر کړه نۀ په اسم فاعل سره، اشاره ده چه ظن ددے عوامو همیشه نوے نوے پیدا کیږی نو دا دلالت کوی په ګډوډ والی د عقیدے د دوی۔ مشرکین عوام هم دغه شان کار کوی چه په خپلو معبودانو او باباګانو باندے ئے ګمانونه بدلیږی رابدلیږی، کله یو پسے منډے او کله بل پسے۔ او کله د یو بابا صفت او کله د بل۔

## مسائل الآیة :

(١) د آيت نه معلومه شوه چه علمونه كسبي امور دي او بديهي نهٔ دي ددے وجه نه الله تعالىٰ بدي وئيلے ده د هغه چا چه علم نهٔ لري او گمانونه كوي۔

(٢) او دليل دے چه تقليد باطل كار دے۔

(٣) گمراه كونكے مذموم دے او څوك چه د گمراه كونكي په گمراه كولو گمراه شي هغه هم مذموم دے ځكه الله تعالىٰ د دوي بدي بيان كړيده اگر كه بل گمراه كړے وي۔

(٤) په اصولو د دين كښې اكتفاء په ظن باندے جائز نهٔ ده۔ او آيت دليل دے چه گمانونه او آرزوگانے انسان لره حق ته نشي رسولے۔ (الكبير ٢/١٧١)

(٥) د كوم قول او عمل چه وجود او عدم برابر وي نو د هغے يو جانب ته تلل بغير د دليل نقلي نه نشي كيدلے۔

(٦) اُميت (امي كيدل) صفت د هغه چا هم دے چه قرائت (لوستل) نشي كولے او هغه څوك هم په اميانو كښې داخل دے چه لوستل كولے شي ليكن په معنىٰ ئے نهٔ پوهيږي۔

(٧) په آيت كښې بدي بيان شوه د هغه چا چه د الله تعالىٰ د كتاب د مقاصدو په پيژندلو باندے څه باك نكوي او ددے اهتمام ورسره نهٔ وي او مقصد ئے صرف الفاظ وي۔ لكه د صوفيانو ډله شوه۔

(٨) (إِنَّ مَنْ لَايَفْهَمُ الْمَعْنىٰ فَإِنَّهُ لَايَتَكَلَّمُ إِلَّا بِالظَّنِّ) څوك چه په معنىٰ او مقصد نهٔ پوهيږي نو هغه به په ظن سره خبرے كوي نو عامي سړے چه قرآن كريم د اول نه تر آخره پورے اُولولي ليكن په معنىٰ ئے نهٔ پوهيږي نو چه كله په يو حكم د احكامو د الله تعالىٰ كښې خبره كوي نو دده كلام به گمان وي، ځكه چه دا خو په حقيقت كښې علم نهٔ لري ځكه چه علم بغير د فهم د معنىٰ نه حاصليدل ممكن نهٔ دي۔

(٩) د آيت نه بدي د هغه چا معلومه شوه چه په ظن سره حكم او فيصله كوي او دا د يهودو صفت وو، او دا صفت په ډيرو هغو خلقو كښې هم موجود دے چه هغوي پدے خوشحاليږي چه دوي ته علماء اُووئيلے شي نو ته به گورے چه هغه به بغير د علم نه فتوے وركوي، ډير كرته د كتاب او سنت خلاف فتوىٰ وركوي او په خان نهٔ پوهيږي۔

(١٠) مُقلِد عالِم نهٔ دے ځكه چه هغه په معنىٰ او مقصد د آيت او حديث نهٔ پوهيږي۔

(وَقَدْ قَالَ ابْنُ عَبْدِ الْبَرِّ : أُجْمَعَ الْعُلَمَاءُ عَلىٰ أَنَّ الْمُقَلِّدَ لَيْسَ بِعَالِمٍ)

(ابن عبد البرّ فرمائي : د علماؤ پدے اتفاق دے چه مقلد عالِم نهٔ دے)۔ (تفسير ابن عثيمين)۔

فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ يَكْتُبُونَ الْكِتَابَ بِأَيْدِيهِمْ ثُمَّ يَقُولُونَ هَذَا مِنْ عِنْدِ اللَّهِ

پس هلاکت دے هغه کسانو له چه لیکی کتاب په لاسونو خپلو بیا وائی (خلقو ته) دا د طرف د الله نه دے،

لِيَشْتَرُوا بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا فَوَيْلٌ لَّهُمْ مِّمَّا كَتَبَتْ

دے دپاره چه واخلی په هغے پیسے لگے (دنیا) پس تباهی ده دوی لره د وجه د هغے نه چه لیکلی دی

أَيْدِيهِمْ وَوَيْلٌ لَّهُمْ مِّمَّا يَكْسِبُونَ ﴿۷۹﴾

لاسونو د دوی، او هلاکت دے دوی لره د هغے نه چه دوی کوم کسب کوی (مال پرے گټی)۔

**تفسیر**: اُوس خلورمه ډله تحریف لفظی کونکی بیانوی چه د الله تعالیٰ د کتاب (تورات) آیاتونه او د هغے احکام به ئے د دنیا د متاع او فاندو دپاره بدلول او د خپل تحریف شوی کلام په باره کښې به ئے خلقو ته وئیل چه دا د الله تعالیٰ کلام دے، او د خپلو حرکتونو په وجه ئے درے قسمه ظلمونه کول. یو به ئے د خلقو دین بدلولو، بل به ئے ددغه مُحرّف کتاب نسبت الله تعالیٰ ته کولو۔ او بل به ئے د هغوی نه په ناجائز طریقه مال خوړلو، پدے وجه په آیت کښې درے ځله د هغوی دپاره (وَيْلٌ) ذکر شویدے۔

او ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی: په تورات کښې د رسول الله ﷺ داسے صفات وو (حَسَنُ الْوَجْهِ، حَسَنُ الشَّعْرِ، اَكْحَلُ الْعَيْنَيْنِ، رَبْعَةُ الْقَامَةِ) (ښائسته مخ، ښائسته ویښتو والا، رنجینی سترگو درمیانه قد والا به وی) نو دوی د هغے په ځائے داسے اُولیکل: (اَزْرَق، سَبِطُ الشَّعْرِ) (شین سترگے، پرتو ویښتو والا) نو عوامو ته به ئے خودل چه په تورات کښې ددے نبی صفات علاوه ددے نه موجود نۀ دی. نو هغوی به ئے د ایمان راوړلو نه منع کړل۔

(ابن ابی حاتمؒ، سیوطیؒ)

دارنگه کله به ئے داسے تحریف کولو چه خپل الفاظ به ئے اُولیکل بیا به ئے وئیل قَالَ اللّٰهُ قَالَ الرَّسُوْلُ۔ الله تعالیٰ داسے وئیلی دی او رسول داسے وئیلی دی، د دروغو نسبت به ئے الله تعالیٰ ته کولو۔

ددے وجه نه شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ فرمائی: پدے آیتونو کښې اکرکه د یهودیانو د علماؤ بدی

ذکر شویده لیکن د دین اسلام د راتلو نه بعد هغه خلقو ته هم شامل دے چه د بدعتو ډثابتولو دپاره په قرآن او سنت کښې تحریف کوی۔ یا آیتونه او احادیث چه د دوی د اقوالو نه خلاف وی، هغه پټوی۔ (تیسیر الرحمن) زمونږ په دے امت کښې هم داسے طریقے سره تحریف ډیر زیات دے چه خلقو موضوعی حدیثونه ایجاد کړیدی او نبی ﷺ ته ئے نسبت کړیدے۔ اګرکه زمونږ په امت کښې علماء کرام رحمهم الله دغه موضوعی احادیث د صحیح احادیثو نه داسے جدا کړیدی لکه د وړونه چه ویښته جدا کولے شی ځکه چه احادیث وحی ده او د وحی د حفاظت ذمه واری الله تعالیٰ اخستے ده نو د هغے د حفاظت دپاره ئے داسے کره علماء پیدا کړیدی۔

(**فَوَيْلٌ**) د ویل ډیرے معانی علماؤ ذکر کړیدی (١) (اَلْوَيْلُ : جُمَّاعُ الشَّرِّ كُلِّهِ) (قاله الحرالی – نظم الدرر) (ټولو شرونو او ضررونو ته وئیلے شی)

(٢) د ابن عباس رضی الله عنه نه نقل دی : (اَلْوَيْلُ : اَلْمَشَقَّةُ مِنَ الْعَذَابِ) (د عذاب مشقت ته وئیلے شی) (٣) (شِدَّةُ الشَّرِّ) (ویل : سخت شر او تکلیف ته وئیلے شی) (خلیل)

(٤) اصمعیؒ وائی : ویل تفجع (فریاد) او وَيْح ترحم دے۔

(٥) وَيْل هغه چا دپاره استعمالیږی چه په هلاکت کښې واقع وی او ویح زجر دے هغه چا دپاره چه هلاکت ته نزدے شوے وی۔ (سیبویه) (٦) وَيْل : حزن او خفګان ته وئیلے شی۔ (ابن عرفه) (٧) بعض وائی : اصل کښې هلاکت ته وئیلے شی، هرڅوك چه په هلاکت کښې واقع شی نو دُعا د ویل کوی۔ لکه (يَا وَيْلَتَنَا مَالِ هٰذَا الْكِتَابِ) (تفسیر القرطبی)

(٨) – دارنګه په جهنم کښې یوه کنده ده او څوك چه هغے ته داخل شو نو هغه هلاك شو (ابن حبان فی صحیحه والحاکم وَصَحَّحَهُ هُوَ وَالذَّهَبِیُّ لٰکِنَّهُ حَدِیْثٌ ضَعِیْفٌ مَرْفُوْعًا)

او پدے باره کښې آثار د ابن عباسؓ، د عطاء بن یسارؒ نه نقل دی انظر : (الزهد لاسد بن موسی)

(٩) بعض وائی : (كَلِمَةُ تَهْدِيْدٍ وَوَعِيْدٍ) دا کلمه په مقام د دهمکی او سزا بیانولو کښې ذکر کیږی۔

نو د ویل معانی دی : حزن (خفګان)، هلاکت، عذاب، مشقت، شر او ضرر۔

**حاصل** دا چه وَيْل په اصل کښې د الله تعالیٰ د غضب الفاظ دی، کله چه الله تعالیٰ په بنده باندے غضب او غصه کوی نو ویل ورله استعمالوی۔

بِأَيْدِيْهِمْ : دا ورسره ځکه وائی چه کله لیکل په طریقه د امر سره وی، چه بل ته حکم اُوکړی چه داسے اُولیکه او خپل لاس سره ئے نهٔ وی لیکلے، خو چه تحریف اُوکړی او بیا ئے په خپل لاس هم لیکلے وی نو پدے کښې زیات قباحت دے چه ښه د پوهے او قصد سره دوی

دغه شان خلق گمراه کوی، د پیسے او د دنیا د مال متاع د خاطره۔
(لِيَشْتَرُوْا بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا) یعنی دنیا پرے اخلی، بلـه څه مجبورتیا ئے هم نشته۔
علامه ابن عادل الدمشقیؒ فرمائی : پدے کښِ دوه قسمه تنبیهات دی (۱) یو دا چه دا دلیل دے د دوی په نهایت شقاوت او بد بختی، باندے ځکه عاقل انسان په ثمن قلیل د دنیا باندے نهٔ رضا کیږی چه د هغے په وجه په آخرت کښِ د اَبَدی اجر عظیم نه محروم شی۔ (۲) دویم دا چه دوی دا کار د مال او جاه د طلب دپاره کړیدے۔ نو دا دلیل دے چه په باطل باندے مال اخستل اگرکه په رضا د جانبینو سره وی، هم حرام دی، ځکه دے یهودی مُلیانو ته چه به عوامو کوم مالونه ورکول نو هغه په محبت او رضا به ئے ورکول او الله تعالیٰ ئے بیا هم بدی بیان کړه۔ (اللباب)
ثَمَنًا قَلِيْلًا : د قلت وجوه درے دی (۱) فانی دی (۲) حرام دی ځکه حرامو کښِ برکت نهٔ وی۔ (۳) د آخرت په نسبت کم دی۔
**فائده** : په یهودو کښِ دا طریقه وه چه د الله تعالیٰ احکام به ئے بدلول او په هغے به ئے د خلقو نه پیسے اخستلے۔ او دا به ئے وئیل چه که مونږ دوی ته صحیح دین بیان کړو نو بیا زمونږ تنخواه گانے او کسبونه او خوراکونه بندیږی۔نو د یهودو چه څه مرضونه دی دا زمونږ پدے اُمت کښِ هم شته مُلا صاحب وائی : زهٔ به درله مسئله اُوگورم او ستا په حق کښِ به فیصله اُوکرم خو دومره شوره به راوړے، بعض ورته د چائے پانړے وائی۔ وکیلان، تهانیداران، کچهرو والا، ججان، ترائیفك والا او عام افسران دا کار کوی، مارے داړے کوی، د الله تعالیٰ د رضا دپاره هیڅ سره منړه نهٔ وهی۔ د جرگو او فیصلو والا مُلیان هم دا کار کوی۔ نو د دنیا دپاره د الله تعالیٰ حکم بدلوی، دا جائز نهٔ ده۔ نو رب العزت ورته باربار وعید او دهمکی بیان کړیده۔
(وَوَيْلٌ لَّهُمْ مِّمَّا يَكْسِبُوْنَ) پدے کښِ دوه معانی دی (۱) یو دا چه کومے پیسے ئے چه گټلی دی په دے ږ تباه شی۔(۲) – دویم دا چه عام گناهونه مراد دی یعنی دوی چه عام گناهونه کړیدی په هغے ږے هم تباه شی۔او همدا ظاهر ده ځکه دلته عموم دے۔
**فائده** : آیت کښِ درے ځله (ویل) ځکه اُووئیلو چه درے کارونه ئے کړی دی۔ ۱– دروغ ئے جوړ کړیدی او په خپل لاسونو ئے لیکلی دی۔ ۲– دویم بیا نسبت د دروغو ئے الله تعالیٰ ته کړیدے۔ دا بل جرم، ځکه چه کتاب ئے اُولیکلو نو داسے وینا ورله پکار وه چه دا زما

خپل کتاب دے، خپلے مسئلے درته کوم. نو دا لا دومره غټ جرم نهٔ وو لکه ډیر خلق قانون وضعی جوړ کړی لیکن هغے ته د الله تعالیٰ قانون نهٔ وائی دا هم مجرم دے لیکن ددے نه غټ مجرم هغه انسان دے چه قانون وضعی ته د الله تعالیٰ قانون وائی. په الله تعالیٰ باندے دروغ وائی. ۳- دریم دا چه بیا پرے دنیا هم گټی. نو دا ډیر لوئی مجرم دے، یو سړے په الله تعالیٰ باندے دروغ د دین دپاره اُووائی دا هم مجرم دے، خو بیا به هم سړے اُووائی چه د دین دپاره ئے دروغ وئیلی دی. لیکن ده د دنیا دپاره په الله تعالیٰ باندے دروغ اُوتړل، دا عظیم جرم دے. پدے وجه ئے ورله درے ځله هلاکت ذکر کړو. او دا څه د توقو خبره نهٔ ده چه الله ډیے چا ته ښیرے اُوکړی او یا ډیے خبر ورکړی چه دهٔ دپاره هلاکت دے او هغه ډیے بیا بچ شی!.

**فائده** : علامه قرطبیؒ لیکی: پدے آیت او ددے نه مخکنی آیت کښې تحذیر (یره ورکول) دی د تغییر او تبدیل او زیادت پیدا کولو نه په شرع کښې نو هر هغه څوک چه په دین کښې تغییر یا تبدیل اُوکړی یا په دین کښې بدعت پیدا کړی کوم چه په دین کښې نهٔ وی او په دین کښې جائز نهٔ وی. نو دا پدے وعید شدید او عذاب الیم کښې داخل دے. او دا کار پدے امت کښې ډیر واقع شویدے . (انا لله و انا الیه راجعون).

وَقَالُوا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ اِلَّا اَيَّامًا مَّعْدُودَةً ۚ قُلْ اَتَّخَذْتُمْ عِنْدَ اللّٰهِ عَهْدًا

او وائی دوی: هیچرے به نهٔ رارسی مونږ ته اُور مگر یو څو ورځے شمارلے شوے. نهٔ ورته اُووایه! آیا تاسو اخستے دے د الله سره لوظ

فَلَنْ يُّخْلِفَ اللّٰهُ عَهْدَهٗۤ اَمْ تَقُولُوْنَ عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۸۰﴾

نو (بیا خو) هیچرے خلاف نکوی الله تعالیٰ د لوظ خپل نه، بلکه تاسو وایئ په الله باندے هغه څه چه تاسو پرے نهٔ پوهیږئ.

**المناسبة** : پدے جملو کښې یو خو خبائث الیهود بیانیږی دویم د یظنون او الامانی تشریح ده.

**تفسیر**: دا پکښې بل صفت وو. دے ته زمونږ مشائخ کرام – رحمهم الله – د ډلے نوم اږدی. چه دا بیله ډله ده. دا یوه اصطلاح ده، ورنه دا بیل بیل جماعتونه نهٔ وو. بلکه په یهودیانو کښې مجموعه دا صفات موجود وو. تهمتونه به ئے هم لګول، چغلی به ئے هم کوله، تحریف به ئے هم کولو خو هر یو کس کښې دا کار نهٔ وو. مجموعی لحاظ سره دا بد صفات پکښې موجود وو. د عامو یهودو عقیده او دعوه دا ده (اَلْمُخَصِّصِيْنَ لِاَنْفُسِهِمْ بِالْجَنَّةِ) (ځان پورے جنت خاص

كونكي دي) چه جنت ته به صرف او صرف مونږه ځو او جهنم ته كه لاړ شو نو صرف يو څو ورځے به پكښې يو. دا ولے؟ وجه به ئے دا بيانوله چه زمونږ پلار نيكه د سخى عبادت كړيدے، او ددے په وجه به صرف ځلوپښت ورځے اُور ته ځو نور مونږ جنتيان يو. ليكن دوى ے دليله دروغ وائى. دارنګه دوى وائى: مونږه پاك خلق يو، هسے واړه واړه ګناهونه رانه شويدى، د هغے په وجه باندے به اُور ته ځو او بيا به جنت ته داخليږو، ځان ته ئے پاك وئيل او حال دا چه عقيده ئے غلطه وه. شرك او كفر او كبيره ګناهونه به ئے كول.

**شان نزول**: رسول الله ﷺ دوى نه تپوس اُوكړو (مَنْ أَهْلُ النار؟) چه اُور والا څوك دى؟ نو دوى د ځان نه جواب اُوكړو چه (نَكُوْنُ فِيهَا يَسِيرًا، ثُمَّ تَخْلُفُوْنَا فِيهَا) مونږ به يو څو ورځے اُور كښې يو، بيا به ترے رابهر شو او تاسو به زمونږ نه روستو پاتے شئ) نو نبي ﷺ ورته اُوفرمايل: (اخْسَئُوا فِيهَا، وَاللهِ لا نَخْلُفُكُمْ فِيهَا أَبَدًا) (احمد، بخاري، نسائي)

(كوزئ شئ پدے اُور كښې قسم په الله مونږ به تاسو نه روستو هيچرے نه پاتے كيږو).

يعنى دا اُمت به روستو نه پاتے كيږى بلكه مؤمنان كه د ګناهونو په وجه جهنم ته لاړ شى نو آخر كښې به راوځى او يهود به پكښې هميشه دپاره پاتے وى. بلكه د حديث نه معلومه ده چه هر مؤمن ته به الله تعالىٰ يو يهودي او كافر وركړى چه دا اُونيسه او د خپل ځان په بدله كښې ئے اُور ته بوځه. (هَذَا فِكَاكُكَ مِنَ النَّارِ) (مسلم) (دا ستا دپاره د اُور نه د آزادئ سبب شو) نو څوك چه د يهود او نصاراؤ ملګرے دے، هغه به هم د هغه سره شريك اُور ته ځى.

بيا دلته **سوال** دا دے چه داسے خبره خو زمونږ مسلمانان هم كوى، او دا د مسلمانانو عقيده ده چه الله تعالىٰ به مسلمانان جنت ته بوځى، كه څه موده د ګناهونو په وجه دوزخ ته لاړل، تلى به وى خو آخر به ئے الله تعالىٰ جنت ته بوځى نو څنګه هغوى پدے خبره كښې غلط شو او مسلمانان صحيح شو؟.

**جواب** دا دے چه هغوى دا خبره د ځان نه كوله، دليل ورسره نه وو او حال دا چه عقيده ئے غلطه وه، ځكه پرے الله تعالىٰ رد كوى، الله تعالىٰ ورته دا خبره نه وه كړے بلكه د ځان نه ئے عقيده جوړه كړے وه او د الله تعالىٰ كتابونه ئے سم نه منل، رسولان ئے نه منل، او دعوىٰ د جنت به ئے كوله. او مونږه مسلمانان چه دا خبره كوو، نو دا په دليل كوو. دليل د الله تعالىٰ او د هغه د رسول ﷺ مونږ سره موجود دے، قرآن او حديث كښې دا عقيده ذكر ده چه څوك مؤمن وى او د توحيد او د رسالت كلمه ئے وئيلى وى، او قيامت ئے منلے وى او نيك

عمل ئے کړے وی نو دا به یو وخت کښې الله تعالیٰ جنت ته بوزی، که پاك وو، اول نه به ئے سیده جنت ته بوزی، او که گنهگار وو نو کله چه د الله تعالیٰ خوښه وه۔ نو مونږه ئے په دلیل وایو او دوی ے دلیله لګیا دی۔

(اِلَّا أَیَّامًا مَّعْدُوْدَةً) (۱) د ابن عباسؓ او مجاهدؒ نه روایت دے چه یهودو به وئیل چه د دنیا عمر اُووه زره کاله دے او مونږ به د هر زرو کالو په مقابله کښې یوه ورځ عذاب خورو۔ (۲) د ابن عباس ﷺ یو بل روایت دے چه یهودو به وئیل: دومره موده به جهنم ته څو څومره موده چه زمونږ مشرانو د سخی عبادت کړیدے چه هغه څلویښت ورځے دی بیا به عذاب زمونږ نه ختم شی۔ نو دا آیت نازل شو۔ (ابن جریرؒ، ابن کثیرؒ)

دا د دوی هغه آمانی (آرزوګانے) وے۔ کفر پکښې موجود وو او ځان ئے جنتیان ګنړل۔ او دا دلیل ئے غلط وو، ځکه چه د مشرانو د شرك په وجه کشرانو ته عذاب نۀ ملاویږی۔

۲- دویم دا چه هر کله مشرانو ئے توبه اُوویستله او الله تعالیٰ قبوله کړه نو بیا عذاب ځنګه ورکولے شی۔ دارنګه اوله خبره ئے هم غلطه ده ځکه چه دوی به یا ګناهګار او مجرمان وی یا به نۀ وی، که نۀ وی نو ولے اُووه ورځے عذاب ځان دپاره منی او که مجرمان وی نو بیا اُووه ورځے د کوم ځائے نه شوے بلکه همیشه به پکښې پراته وی۔

(۳) وجه: دوی به وئیل مونږ پاك خلق یو، د الله تعالیٰ د ځامنو پشان یو، او د الله تعالیٰ محبوبان یو۔ لکه روستو سورة المائده کښې راځی۔ صرف مونږ انسانان یو، که کوم صغیره ګناهونه رانه شوی وی که په هغے مو چرته یو څو ورځے جهنم ته بوځی، وی به ګنے باقی آخری تهکانه زمونږ جنت دے۔ او دا د بعض جاهلانو طریقه هم وی چه وائی زما یاد نشی چه ما داسے غټه ګناه کړیوی او حال دا چه د ګناهونو په ګنده حوض کښې غوپه وی۔

(عِنْدَ اللّٰهِ عَهْدًا) دا د دوی په دین کښې غلط تصور وو۔ او الله تعالیٰ په قرآن کریم کښې همیشه دپاره د انسان غلط تصورات او خیالات برابروی نو دوی سره الله تعالیٰ چرته لوظ کړیدے چه آؤ یهودی به جنتی وی۔ آیا دوی ته چرته وحی راغلے ده، اُوډ بنائی۔ نو د عهد نه مراد وعده د نجات د عذاب نه ده۔ ۲- یا د عهداً نه مراد کلمه د لا اله الا الله ده۔ یعنی آیا تاسو دا کلمه وئیلے ده، توحید مو قبول کړیدے، ایمان مو راوړیدے، او که هسے ځان ته جنتیان وایئ؟ ځکه ددے لوظ نه ماسوئ انسان جنت ته نشی داخلیدے۔(ابن عباس او ابن مسعود رضی الله عنهما دا تفسیر کړیدے) (ابوحیان، معالم التنزیل)

(فَلَنْ يُّخْلِفَ اللّٰهُ عَهْدَهٗۤ) یعنی الله تعالیٰ چه چا سره لوظ اُوکړو هغه بیا جنت ته بوزی۔
(اَمْ تَقُوْلُوْنَ) (اَمْ) په معنیٰ د (بَلْ) سره دے یعنی بلکه تاسو په الله باندے دروغ وایئ او پوهیږئ نهٔ چه دا په الله دروغ دی چه الله به مونږ جنت ته بوځی ۔ په تقول علی الله باندے الله تعالیٰ ډیر غصه کیږی، دائے د شرك نه لویه گناه شمارلے ده۔لکه په سورة الاعراف (۳۳) کښې به راشی۔دا آیت دلیل دے چه څوك په الله تعالیٰ باندے په جهالت سره دروغ اُووائی نو دا هم مجرم دے او ددهٔ جهالت عذر نهٔ دے۔ کله چه په ملك د اسلام کښې وی یا علماء اهل حق موجود وی۔

| |
|---|
| بَلٰى مَنْ كَسَبَ سَيِّئَةً وَّاَحَاطَتْ بِهٖ |
| داسے نهٔ ده، (بلکه) چا چه اُوکړه گناه (شرك) او راګیر کړو ده لره |
| خَطِيْٓـئَتُهٗ فَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۸۱﴾ |
| گناه ددهٔ (تردے چه پرے مړ شی) نو هغدا کسان اُور والا دی دوی به په دے کښې همیشه وی۔ |

**تفسیر** : اُوس الله تعالیٰ تخویف او بشارت بیانوی یعنی د آخرت یره او زیرے۔ غرض پکښې رد دے د وینا او دعوے د یهودیانو او هغوی ته دعوت دے چه د الله رب العزت کار د صفاتو سره دے که چا کښې بد صفات وی نو هغه تول اُور والا دی، او چا کښې چه نیك صفات دی هغه جنتیان دی۔ د الله تعالیٰ د یوے ډلے سره کار نشته چه یهود، نصاریٰ یا د موسی علیه السلام قوم یا د نبی علیه السلام قوم یا بلے ډلے سره ئے کار نهٔ شته بلکه صفاتو سره ئے کار دے۔ که تا کښې بنه صفات وی نو ته جنتی ئے او که بل کښې وو نو هغه دے۔ نو مناسبت ددے په طریقه د نتیجه د کلام د هغوی دے۔
نو معنیٰ د آیت دا ده چه خبره داسے نهٔ ده چه تاسو ته به اُور نهٔ رسیږی بلکه تاسو به اُور کښې همیشه پاتے کیږئ ځکه هر څوك چه ستاسو په شان شرك کوی او گناهونه پرے غلبه اُوکړی او داسے گیره ترے واچوی لکه څنګه چه دیوالونه په کور والو باندے احاطه کړیوی او پدے حالت کښې بیا مړ هم شی او ایمان د هغه زړه ته داخل نهٔ شی او توبه الله تعالیٰ ته اُونهٔ باسی نو دا اُور والا دی او دوی به پکښې همیشه وی۔
(بَلٰى) یعنی آؤ تاسو به همیشه جهنم ته ځئ (تَحْقِيْقٌ لِطُوْلِ مُكْثِهِمْ فِى النَّارِ) (بلیٰ سره

تحقیق او اثبات ددے خبرے دے چه دوی به په اور کښې همیشه وی) د بلیٰ نه مخکښې نفی وی نو دے سره اثبات کیږی یعنی: (بَلٰی اَیْ نَعَمْ تَمَسُّکُمُ النَّارُ) (آؤ تاسو ته به ضرور اور رسیږی)

(مَنْ کَسَبَ) من موصوله دے او مقصد پکښې تعمیم دے، ښځے او سړی، او یهودی او غیر یهودی ټولو ته شامل دے۔

کسب: په لغة کښې اِسْتِجْلَابُ النَّفْع (فائده راخکلو) ته وئیلے شی۔ او د سیئه دپاره تهکماً استعمال شویدے ځکه چه خلق کسب دے له کوی چه فائده ورته حاصله شی او دوی ځان ته گناهونه راکاږی۔ او کله کسب په معنی د مطلق عمل سره وی۔ او دلته ئے لفظ د کسب ځکه استعمال کړیدے چه په خپل فکر او سوچ او خپل اختیار سره ئے کړیدے، ولے که انسان نه بے اختیاره گناه اوشی، نو په هغے داسے عذاب نشته۔

دا دلیل دے چه انسان د خپلو عملونو کاسب (کونکے) دے، او خالق نهٔ دے۔ او انسان ته الله تعالیٰ قدرت د کسب ورکړیدے، او پدے کسب سره به ده ته بدله د خیر یا د شر ورکولے شی۔ او دا د اهل السنة مذهب او عقیده ده۔

(سیئة) **فائده**: اول خطیئه وی بیا سیئه وی بیا ذنب بیا معصیة وی۔ سیئه خو مطلق گناه ته وئیلے شی، صغیره وی او که کبیره۔ (خازن) ځکه چه پدے سره انسان بد رنگیږی او انسان خفه کوی۔ گناه نه مراد دلته شرك دے۔ (ابن عباسؓ، مجاهدؒ، عطاءؒ وغیره)

(۲) یا د سیئة نه مراد هغه کبیره گناهونه دی چه الله تعالیٰ په هغے باندے وعده د اور کړیده۔ (حسن وقتادة) (قرطبی)

(واحاطت به خطیئته) د خطیئه اطلاق په قرآن کریم کښې کله په هغه خطاء باندے هم کیږی چه غیر اختیاری د انسان نه اوشی د هغے په مقابله کښې عَمْد راځی۔ (وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَأً) (النساء: ۹۲) او عام ځایونو کښې قصداً گناه دپاره استعمال دے۔ تردے چه د خطیئے اطلاق په کفر هم کیږی او په گناه کبیره هم (اِنَّهٗ کَانَ خِطْأً کَبِیْرًا) (اسراء: ۳۱)

دلته قصداً گناهونه مراد دی۔ او خطیئة جنس دے، مراد ترے ډیر گناهونه دی۔

بیا دلته **سوال** دے چه دا آیت خو د خوارج او معتزلو دپاره دلیل دے چه چا گناه کبیره اوکړه نو هغه کافر دے او همیشه جهنمی دے۔ وجه دا ده چه دلته ئے په گناه باندے همیشه جهنم وئیلے دے۔ دلیل دے چه دا کافر دے او همیشه جهنمی دے۔ او د اهل السنة والجماعة مذهب خو دا دے چه د شرك او کفر او نفاق نه علاوه په نورو کبیره گناهونو انسان نهٔ کافر کیږی او نهٔ

همیشه جهنمی کیږی بلکه د الله تعالیٰ مشیئة ته سپارلے شویدے، که هغه ورته بخنه کوی او که عذاب ورکوی، خو علیٰ کل حال په جهنم کښې به همیشه دپاره پاتے نهٔ وی؟۔

**الجواب** : د عبد الله بن عباسؓ، مجاهدؒ، عطاءؒ وغیره نه نقل دی چه د سیئه نه مراد شرك دے۔ (۲) دویم دا چه سیئه او خطیئه دواړه جنس دے، ټولو ګناهونو ته شامل دے او (اَحَاطَتْ) کښې د احاطے نه د هر طرف نه په ګناه کښې راګیرول مراد دی چه په خوله کښې ئے هم ګناه، په زړه کښې، په سترګو، په غوږونو او په ټول بدن او مال او هر حالت کښې ګناه ګناه وی، نو بیا دا حال د مسلمان نهٔ وی، بلکه مسلمان به ضرور په یو وخت کښې نیك عمل کوی، که یو ځائے کښې ګناه کوی نو په بل ځائے کښې نیك عمل کوی۔ ددے وجه نه سلفو ددے تفسیر په کفر او شرك سره کړیدے۔ (السراج المنیر، والتحریر والتنویر لابن عاشور)

(۳) یا سیئه نه مراد کبیره ګناه او شرك دے او خطیئه نه عام ګناهونه مراد دی۔

وَاَحَاطَتْ : (بِاَنْ مَاتَ عَلَيْهِ وَلَمْ يَتُبْ) (ربیع بن خیثم) (مړ شی په دغه شرك او توبه اُونهٔ باسی) (سَدَّتْ عَلَيْهِ جَمِيْعَ مَسَالِكِهِ) (ټول اطراف او لارے ورله بندے کړی) چه هیڅ خیر د هغه په زړه او بدن کښې نهٔ راځی، او ایمان ورته نهٔ داخلیږی۔

(اَحَاطَتْ بِحَسَنَتِهِ خَطِيْئَتُهُ) (ابوعلی) زاد المسير (۱۰۸/۱) وفتح القدير (۱۶۴/۱) للشوكانی)

(یعنی دده ګناهونو نیك اعمال برباد کړی وی)۔

(۳) (اَوْبَقَتْهُ ذُنُوْبُهُ، دَلِيْلُهُ قَوْلُهُ تَعَالىٰ : اِلَّا اَنْ يُحَاطَ بِكُمْ) (بغوی)

(هلاك کړی دهٔ لره ګناهونه لکه په الا ان یحاط بکم کښې احاطه په معنیٰ د هلاکت دے)۔

لهذا دا آیت د کافر په باره کښې دے ځکه پدے کښې اعلیٰ درجه ذکر ده، نو پدے کښې د معتزله او خوارجو هیڅ دلیل نشته۔ لیکن مسلمان له هم د داسے حال نه یره پکار ده۔

(فَاُولٰٓئِكَ اَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيْهَا خَالِدُوْنَ) په یو ګناه سرے په اُور کښې همیشه کیږی نهٔ، بغیر د شرك نه، لیکن دلته ډیر ګناهونه دی یعنی ډیر ګناهونه ئے کړیدی تردے چه په هغے کښې کفر او شرك هم داخل دے۔

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۸۲﴾

او هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے او نیك عملونه ئے کړیدی هغه کسان هم دوی جنتیان دی، دوی به په دے کښې همیشه وی۔

**ربط** : ربط په طریقه د تقابل تضاد سره دے چه مخکښې ترهیب وو او اُوس ترغیب دے۔

**تفسیر** : د ایمان نه مراد شرعي ایمان دے، نۀ د یهودو ایمان. دلته د ایمان نه کامل ایمان مراد دے لکه څنګه چه مخکښې کامل ګناهګار مراد وو چه هغه مشرك دے، پدے وجه ئے ورسره دلته عمل صالح هم ذکر کړو۔

**فائده** : دلته خازن لیکي : عمل صالح په ایمان کښې داخل دے لیکن جدا ئے ذکر کړو پدے کښې اشاره ده چه دۀ د ایمان په افعالو کښې هر یو فعل کړیدے، او هسے تش د خولے مؤمن نۀ دے۔ (۲) بعض وائي : آمنوا کښې معنیٰ د ماضي ده او عملوا الصالحات کښې د مستقبل ده (فَکَأَنَّهٗ تَعَالٰی قَالَ : آمَنُوْا اَوَّلًا ثُمَّ دَاوَمُوْا عَلَیْهِ آخِرًا وَیَدْخُلُ فِیْهِ جَمِیْعُ الْاَعْمَالِ الصَّالِحَاتِ) (خازن) (ګویا کښې الله تعالیٰ داسے اُوفرمایل : چه اول دوی ایمان راوړیدے، او بیا پدے ایمان باندے په اعمالو سره همیشه والے کوی تر مرګه پورے۔ او پدے کښې ټول اعمال صالحه داخل دی۔ نو دا مقابل شو د مخکښې تخویف سره۔

| |
|---|
| وَاِذْ اَخَذْنَا مِیْثَاقَ بَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ لَا تَعْبُدُوْنَ اِلَّا اللّٰهَ وَبِالْوَالِدَیْنِ |
| او کله چه مونږ اخستے وه مضبوطه وعده د بنی اسرائیلو نه چه بندګی به نکوئ مګر د یو الله تعالیٰ او د مور او پلار سره به |
| اِحْسَانًا وَّ ذِی الْقُرْبٰی وَالْیَتٰمٰی وَالْمَسٰکِیْنِ وَقُوْلُوْا لِلنَّاسِ حُسْنًا وَّاَقِیْمُوا الصَّلٰوةَ |
| احسان (خیګړه) کوئ او د خپلوانو او د یتیمانانو او مسکینانو سره، او وایئ خلقو ته ښائسته خبرے، او پابندی د مانځه کوئ |
| وَاٰتُوا الزَّکٰوةَ ثُمَّ تَوَلَّیْتُمْ اِلَّا قَلِیْلًا مِّنْکُمْ وَاَنْتُمْ مُّعْرِضُوْنَ ﴿۸۳﴾ |
| او زکوٰة ورکوئ بیا تاسو واوړیدئ (ددے وعدے نه) مګر لږ کسان ستاسو نه او همیشه تاسو اعراض کونکی یئ۔ |

**تفسیر** : په دے یو رکوع کښې تر (۸۶) آیت پورے څلورم قسم خطاب دے بنی اسرائیلو ته او پدے کښې د دوی نور قبائح الله تعالیٰ بیانوی چه دا خبائث د قرآن د نازلیدو په وخت په موجوده یهودیانو کښې موجود وو، هغه دا دی چه دے یهودیانو ته په څلورو خبرو امر

شوے وو نو هغوی ماتے کړے او هغے بانديے ئے راتګ اُونکړو او د څلورو خبرو نه منع شوی وو په هغے بانديے ئے راتګ اُوکړو نو الله تعالیٰ فرمائی : چه څوك داسے کار کوی نو ژهٔ به دوی دنیا کښې شرموم او دغسے ئے دے خلقو سره اُوکړل چه په دنیا کښې ئے اُوشرمول. بیا د هغوی بل نقض عهد (لوظ ماتول) ذکر کوی او په آخر کښې ئے تخویف ورکړیدے چه د الله تعالیٰ امرونه څوك ماتوی هغه به شرمیږی. اول امر دوی ته دا وو چه تاسو به د مور او پلار او خپل خپلوان او یتیمانانو او مسکینانو سره احسان کوئ، خلقو سره به ښے خبرے کوئ، مونځ به کوئ، زکوٰة به ورکوئ او ورسره دا اَمر شوے وو چه د یهودیانو نه قیدی چه چرته تاسو اُولیدلو، نو هغه به آزادوئ، او ددے خبرو نه منع شوی وو چه د غیر الله عبادت به نهٔ کوئ او د یو بل وینې به نهٔ تویٔ کوئ، او خلق به د خپلو کورونو نه نهٔ اُوباسئ، او یو بل سره به په ظلم اوګناه کښې تعاون نکوئ، نو دوی راولګیدل هغه حکمونه ئے مات کړل او صرف په هغه یو ئے عمل کولو، هغے کښې به ئے هم څه فائده وه څکه به ئے پرے عمل کولو لکه د هغے قصه روسته بیانیږی. صرف بعض یهودیان پدے وعده کلك پاتے شو او دا حقوق ئے اداء کړل لکه عبد الله بن سلام او د هغه هغه ملګری چه په رسول الله ﷺ بانديے ئے ایمان راوړے وو. الله تعالیٰ فرمائی : ګوره دے بنی اسرائیلو نه ما وعدے اخستے وے، لیکن تول ئے ګډ وډے کړے. په دے کښې مونږ ته تنبیه ده چه اے بندګانو ! دا وعدے تاسو نه هم اخستے شوی دی او دا کومے وعدے چه دلته ذکر کیږی دا مونږ نه هم اخستے شوی دی، څوك چه مؤمن دے، هغه بانديے هم دا څیزونه فرض دی. او دے اُمت ته خصوصی خطاب پدے څیزونو بانديے په سورة النساء (٣٦) آیت کښې راروان دے.

**مناسبة** : دا دے چه یو خطابات د بنی اسرائیلو شروع دی (٢) دویم یهود ځان غوره ګڼړی نو الله تعالیٰ بیان د خباثتو کوی چه غوره نهٔ دی بلکه ګنده دی. (٣) دریم دا د ﴿وَقَالُوا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ﴾ او ﴿بَلَىٰ مَنْ كَسَبَ سَيِّئَةً﴾ تشریح ده چه راشیٔ د دوی ګناهونه واورئ، دا خو مشرکان دی، عبادت د غیر الله ئے کړیدے نو د معتزلو په تفسیر به رد هم راشی. او دے ته دلالة الاقتران وئیلے شی.

﴿وَإِذْ أَخَذْنَا﴾ (١) دا وعده یا په ژبه د موسی ﷺ اخستے شوے وه، (٢) یا په تورات کښې ذکر ده، نو په تورات کښې الله تعالیٰ امرونه راولیږل. نو تورات چه چا اُومنلو ګویا کښې هغه نه دا وعده واخستے شوه چه ته به دا حکمونه منے. لکه مونږ قرآن منلے دے نود الله تعالیٰ سره

مو لوظ کړیدے چه دے کښې څه حکمونه دی هغه به منو په اندازه د طاقت زمونږ۔
**فائده** : په کلمه د اذ سره ئے بحث د بنی اسرائیلو بیرته شروع کړو او لفظ د بنی اسرائیل ئے راوړو او خطاب ئے اُونکړو پدے کښې اشاره ده چه دا حکمونه پخوانو او اُوسنو ټولو ته دی نو موجوده یهود هم پدے حکمونو کښې داخل دی۔ یواځے مشران نهٔ دی مراد۔
**لَا تَعْبُدُوْنَ اِلَّا اللهَ**: دلته نفی په معنیٰ د نهی ده۔(اَیْ لَاتَعْبُدُوْا اِلَّا اللّٰهَ)
(بندګی مهٔ کوئ سوا د الله تعالیٰ د نه د بل چا) او په طریقه د نفی ذکر کولو کښې مقصد تاکید دے۔ چه تاسو بندګی نهٔ کوئ یعنی ستاسو د شان سره دا لائقه ده چه تاسو دے بندګئ د غیر الله اُونکړئ۔ پدے کښې اشاره ده دے ته چه دے یهودیانو دا لوظ هم مات کړیدے چه د الله تعالیٰ بندګی ئے پریخودے ده او د غیر الله بندګی ئے شروع کړیده، د عیسیٰ علیه السلام او عزیر علیه السلام بندګی شروع کړیده۔ او د مشرکانو سره ملګری شوی وو او هغوی ته ئے وئیلی وو چه ستاسو دین غوره دے او د ولاء او براء مسئله پکښې نهٔ وه۔ دوی کښې اصالةً شرك نهٔ وو لیکن روستو پکښې راغلو۔ دا حقوق الله شو۔
دویم په حقوق العباد کښې اول حق د مور او پلار دے نو هغے باندے امر کوی:
**وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا** : اِحْسَانًا مفعول مطلق دے د پټ فعل دپاره (اَیْ اَحْسِنُوْا بِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا) (د مور او پلار سره ضرور احسان اُوکړئ) نو دا به لفظاً انشاء عطف شی په معنیٰ انشاء باندے چه لا تعبدون دے۔ یا تقدیر داسے دے (وَتُحْسِنُوْنَ بِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا)
(تاسو احسان کوئ د مور او پلار سره) نو جمله خبریه به په خبریه عطف شی۔
**فائده**: د مور او پلار سره احسان په دوه قسمه دے: (۱) دینی احسان (۲) او دنیوی۔
دینی احسان ډیر اهم دے ځکه که ته د مور او پلار سره په دنیا کښې ډیر احسان او اکرام اُوکړے خو چه هغوی اُور ته لاړل نو څه فائده ئے اُوکړه ۔ نو اول احسان هغوی سره دعوة د توحید دے چه د توحید دعوت ورکړه او ډیر په ښائسته طریقه او اخلاقو سره او دغه شان په نورو احکامو د دین باندے پوهه کول۔ (۲) دنیوی احسانات دوه قسمه دی (۱) د مرګ نه مخکښې (۲) د مرګ نه روستو۔
د مرګ نه مخکښې احسانات درے قسمه دی (۱) بِالْمَالِ : چه هغوی له مال، نفقه، جامے او څائے ورکړے شی۔ (۲) بِالْخِدْمَةِ۔ د هغوی خدمت اُوکړے۔ (۳) بِالْاَخْلَاقِ الْحَسَنَةِ (د مور او پلار ادب کول او ښائسته اخلاق ورسره کول، په نوم باندے ورته آواز نهٔ کول، د هغوی د

خبرے نه نهٔ مخکښ کیدل، هغوی سره تواضع کول۔
(۲) او د مرگ نه روستو: حدیث کښې دی: ۱- (اَلْاِسْتِغْفَارُ لَهُمَا) دوی له په ژوند کښې او پس د مرگ نه استغفار غوختل۔ ۲- (وَاِكْرَامُ صَدِيْقَيْهِمَا) (د مور او پلار د دوستانو سره تعلق ساتل او د هغوی اکرام کول) ۳- (وَصِلَةُ الرَّحِمِ الَّتِیْ لَاتُوْصَلُ اِلَّا بِهِمَا) (هغه صله رحمی پالل چه د هغوی په وجه پیدا شوی وی) ٤- (وَاِيْفَاءُ عَهْدِهِمَا) (د هغوی وعده پوره کول) ٥- (وَالدُّعَاءُ لَهُمَا) (هغوی دپاره دعاګانے غوختل)۔ ٦- (وَالصَّدَقَةُ عَنْهُمَا) (د هغوی د طرفه صدقه کول)۔ ۷- (وَتَنفِيْذُ وَصِيَّتِهِمَا) (د هغوی وصیت نافذ کول او په هغے باندے عمل کول)۔ ۸- (اَدَاءُ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ وَالصَّوْمِ عَنْهُمَا) (که په هغوی باندے حج او عمره او روژے پاتے وی نو هغه اداء کول)۔
۹- (زِيَارَةُ قَبْرِهِمَا) (د هغوی د قبر ملاقات ته تلل)۔
کله چه انسان دا په خپل ځان باندے حقوق اُوګنړی نو بیا ددے کول ورته آسان وی او چه کله ئے دین او حق نهٔ ګنړی نو بیا ورته بوج وی۔ د مور او پلار سره احسان قرآن کریم کښې نهه کرته ذکر دے ځکه چه د انسان په پیدائش کښې د الله تعالیٰ نه روستو اول سبب مور او پلار دی، او یواځے سبب نهٔ بلکه بیا دوی ډیر خدمتونه او مشقتونه د بچو دپاره برداشت کړیدی۔ او دا د انسان نه بیا هیر شی۔ علماء کرام فرمائی: بچے چه د مور او پلار هر څومره خدمت اُوکړی، نهٔ ئے شی پوره کولے اګرکه د هغوی ګندګی صفا هم کړی، ځکه چه د بچی په طبیعت کښې پدے خدمت باندے یو قسم بوج وی او نفرت ورځی او د هغه په مرګ خوشحالیږی او مور به د بچی ګندونه په خوشحالئ صفا کول او دعاء به ئے ورته کوله۔ او د هغه په غټ والی خوشحالیدل۔
صحیح حدیث کښې راغلی دی: یو سړی اُووئیل: یارسول الله! (مَنْ اَبَرُّ؟ قَالَ اُمَّكَ، قَالَ: ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ: اُمَّكَ، قَالَ: ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ: اُمَّكَ، قَالَ: ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ: اَبَاكَ، ثُمَّ اَدْنَاكَ اَدْنَاكَ) (سنن ابی داود رقم: ٥١٤٠) زهٔ د چا سره احسان او نیکی اُوکړم؟ وے فرمایل: مور سره، بیا چا سره؟، مور سره۔ بیا چا سره؟ مور سره۔ بیا چا سره؟ وے فرمایل: پلار سره او بیا چه څومره تا ته نزدے (خپلوان) وی۔
﴿وَذِي الْقُرْبٰى﴾ د خپلوانو سره احسان هم (۱) بِالْمَالِ: چه مال درله الله تعالیٰ درکړے وی نو هغوی باندے اُولګوه، نفقه یا صدقه ورکړه۔ (۲) بِالْخِدْمَةِ: د هغوی خدمت کول۔

(٣) بالزِّيَارَة : د خپلوانو ملاقات له تلل، دے سره هم يو نوع احسان د هغوی سره کيږی.
(٤) عِيَادَةُ الْمَرِيْض : د هغوی د بيمارانو تپوس. (٥) اِتِّبَاعُ الْجَنَائِز : د هغوی په جنازه کښې شرکت کول.(٦) (وَمِنْ ذٰلِكَ الْإِحْسَان : اَلْأَمْرُ بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّهْيُ عَنِ الْمُنْكَرِ)
(بعض احسان دا هم دے چه هغوی ته د نيکئ امر اُوکړے شی او د بدئ نه منع کړے شی).

## د صلة الرحم فائدے :

حديث کښې دی: (مَنْ اَحَبَّ اَنْ يُّبْسَطَ لَهٗ فِيْ رِزْقِهٖ وَيُنْسَأَ لَهٗ فِيْ اَثَرِهٖ فَلْيَصِلْ رَحِمَهٗ) (بخاری)
(څوك چه غواړی چه رزق ئے فراخه شی او عمر ئے زيات شی نو صله رحمی دے قائموی)
حديث د ابو هريره ﷺ کښې مرفوعاً نقل دی: (تَعَلَّمُوْا مِنْ اَنْسَابِكُمْ مَا تَصِلُوْنَ بِهٖ اَرْحَامَكُمْ فَاِنَّ صِلَةَ الرَّحِمِ مَحَبَّةٌ فِى الْاَهْلِ، مَثْرَاةٌ فِى الْمَالِ، مَنْسَأَةٌ فِى الْاَثَرِ) (احمد، والترمذی بسند صحيح) (دومره نسب ضرور زده کړئ چه په هغے سره تاسو خپلولی اُوپالئ، ځکه خپلولی پالل په کورنئ کښې محبت پيدا کوی او مال زياتوی، (يعنی مال کښې برکت راځی) او عمر کښې تاخير (زيادت) پيدا کوی.
**وَالْيَتٰمٰى** څومره چه دِے وسه کيدله. او په دغه ترتيب سره به احسان کولے شی.
يَتيم په مارغانو کښې هغه دے چه مور ئے مړه وی، او په انسانانو کښې هغه دے چه پلار ئے مړ وی او حيواناتو کښې هغه دے چه دواړه ئے مړه وی.(كما فی حاشية رياض الصالحين)
علامه ماوردیؒ فرمائی: يتيم هغه چا ته وائی چه پلار ئے مړ وی او نابالغ وی. يا مور ئے مړه وی. او ددهٔ سره احسان پدے وجه پکار دے چه يو خو دا وړوکے دے، بل پلار يا مور ئے نشته بل دا چه ددهٔ څوك مشر نشته چه ددهٔ د کارونو او حاجتونو اصلاح اُوکړی.
د دوی سره احسان (١) په مال هم شته (٢) په اخلاق استعمالولو سره. (٣) او په ادب ورکولو سره اگرکه په وهلو سره وی. عائشه رضی الله عنها فرمائی: (اِنِّیْ لَاَضْرِبُ اَحَدَهُمْ حَتّٰى يَنْبَسِطَ) (السنن الكبرى للبيهقى باب ما جاء فى تأديب اليتيم) (زه خپل يتيم دومره وهم تردے چه برابر شی) او جابر ﷺ ته رسول الله ﷺ فرمايلی وو: (أَفَأَضْرِبُهٗ ؟ قَالَ : نَعَمْ، مِمَّا تَضْرِبُ مِنْهُ وَلَدَكَ) (ابويعلى الموصلى) (اتحاف الخيرة المهرة) وفى سنده حجاج بن ارطاة)
(بچے چه په کومه خبره وهے په هغے يتيم هم وهلے شے) ځکه دا د هغه تربيت دے. کوم شے چه عرفاً او شرعاً احسان شمارلے شی هغه به ورسره کوی.

**وَالْمَسَاكِيْنِ :** مسکینانو سره احسانات مالي هم دي، که مال نۀ وي نو نرمه خبره ورسره کول او اخلاق ورسره استعمالول. او د هغوی سره په بدن مدد کول. د هغوی بوج سپکول. سفارش ورله کول، کار ورله پیدا کول.

**وَقُولُوْا لِلنَّاسِ حُسْنًا :** (خلقو سره ښې خبرې کوئ) انسان د عامو خلقو سره د مال احسان نشي کولے چه هر چا ته پیسے ورکړی نو ځکه ئې د هغوی سره په قولي احسان باندے امر اُوکړو بیا ددے احسان ډیر مصداقات دي :

(۱) (قُوْلُوْا لَهُمْ صِدْقًا وَحَقًّا فِيْ شَأْنِ مُحَمَّدٍ ﷺ) (ابن عباس، سعید بن جبیر، ابن جریج) (بغوی) (یعنی تاسو خلقو ته د نبي ﷺ په باره کښې رښتیا او حقه خبره کوئ نو چا چه درنه تپوس اُوکړو نو رښتیا ورته وایئ او دده صفت بیان کړئ او دده شان مۀ پټوئ)

(۲) – دارنگه په ښائسته اخلاقو ورسره ملاؤ شي. ښائسته اخلاق ورسره استعمال کره. بیا حسن اخلاق او ښې خبرې دیته وائي چه شریعت ورته ښه وئیلي وي که په هغه بد هم لګي، خو ته به ئې ورته وائے.

(۳) ابن عباس رضي الله عنه فرمائي : په لا اله الا الله (توحید) باندے ورته حکم اُوکړئ.

(٤) او دلته ددے معنیٰ دا هم ده : (مُرُوْهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ وَانْهَوْهُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ) (په نیکئ باندے امر کوئ او د منکراتو نه خلق منع کړئ) (قاله سفیان الثوریؒ) دا د خلقو سره احسان دے او دا بعینهٖ خوش اخلاقي ده.

(۵) – (اَللِّيْنُ فِي الْقَوْلِ) په خبرو کښې خلقو سره نرمي کول. (حسنؒ)

(٦) (حُسْنُ الْعِشْرَةِ) ښه ژوند ورسره تیر کره. (ابن جریرؒ، ابن کثیرؒ)

دا ټول مصداقات دلته مراد دي. او که پدے یو آیت باندے مونږ عمل اُوکړو نو دا هم زمونږ دپاره ډیر ماحول او معاشره برابروي. پدے سره اخلاق برابرېږي چه چا سره کیناستے پاځیدے، نو ښه خبره ورسره کوه، داسے خبره مۀ کوه چه هغه پرے خفه کیږي، درد ورته رسیږي، او حدیث کښې داسے راغلي دي (وَلْيَأْتِ إِلَى النَّاسِ بِمَا يُحِبُّ أَنْ يَأْتُوْا إِلَيْهِ) (چه بل سره هغه شان سلوك کوه چه ته ئې غواړے چه تا سره ئې خلق اُوکړي). (مسند احمد ۱۹۲/۲ بسند صحیح) مثلاً ته یو مسلمان ته داسے مۀ وایه چه دے غوړ ته، دے سترګے، دے ځُلے ته ډیے اُوګوره داسے بل پورے توقے او استهزاء مۀ کوه لکه څنګه چه ته غواړے چه ما پورے ډیے اُونکړے شي، خلقو ته په هغه طریقه راځه په کوم چه ته غواړے.

په قرآن کریم کښې په نورو ځایونو کښې هم دا امر شته۔ ﴿وَقُل لِّعِبَادِي يَقُولُوا الَّتِي هِيَ أَحْسَنُ﴾۔(الاسراء/۵۳) ښهٔ خبره کوه هیڅ کله به جګړه نهٔ پیدا کیږي۔
بل امر : ﴿ وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ ﴾ دا خو ډیر ضروري حکمونه دي۔ او دا ئې تخصیص بعد التعمیم اُوکړو د زیات اهتمام دپاره۔
**ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ** : دا جمله پکښې مقصودي ده نو ځکه ئې رامخکښې کړه۔ او خطاب موجوده یهودو ته وو اګرکه آوریدلي مشران وو، لیکن دوي هم د هغوي تابعداري کوي۔
﴿إِلَّا قَلِيلًا﴾ دے قلیل کښې عبد الله بن سلام او د هغه ملګري مراد دي کوم له چه الله تعالیٰ د ایمان توفیق ورکړو او پدے لفظ ذکر کولو کښې غالباً دا حکمة بیانول مقصود دے چه په یو قوم کښې د څه صالح افرادو وجود د عذابِ الهي نه مانع نهٔ وي۔
او پدے الا قليلًا کښې د هغوي په توبیخ او بدي بیانولو کښې انصاف کوي او فضیلت د هغه چا ترے معلومیږي چه هغوي په دغه لوظونو د الله تعالیٰ محافظت کړے وي۔ او پدے کښې خلقو ته دا رهنمائي ده چه په هر امت کښې به څه مخلصین ضرور موجود وي او دوي اګرکه موجود وي خو بیا به هم عذاب په امت راځي کله چه په دوي کښې منکرات زیات شي۔ (الوسیط)
﴿وَأَنتُم مُّعْرِضُونَ﴾ (۱) د تولیتم معنیٰ دا ده (تَوَلَّيْتُمْ بِالْفِعْلِ) چه بالفعل تاسو مخ اړولے دے۔ او (وَأَنتُم مُّعْرِضُونَ) جمله اسمیه ده د دوام او وصف ثابته معنیٰ پکښې پرته ده یعني ستاسو عادت هم دا دے چه همیشه تاسو د الله تعالیٰ حکمونه ماتوئ، د یهود او نصاراؤ دا مرض دے۔(۲) - یا تولي په بدن سره وي او اعراض په زړه سره وي۔ (قرطبیؒ)
(۳) - یا تولي د میثاق نه ده او اعراض د ایمان نه په آخري نبي باندے۔
(٤) - یا تولي په تیره شوے زمانه کښې ده او اعراض، حالي او آینده زمانه کښې مراد دے۔
(۵) یا تَوَلَّيْتُمْ کښې خطاب مشرانو ته دے او أَنتُمْ کښې کشرانو ته یعني ستاسو مشران ددے لوظونو نه آوریدلي وو او تاسو هم د هغوي په شان اعراض کوئ اے کشرانو !۔
(٦) مُّعْرِضُونَ ئې روستو د تَوَلَّيْتُمْ نه راوړو پدے کښې اشاره ده چه د دوي دا آوریدل مجبوراً او سهواً او خطاً نهٔ وو بلکه (أَنتُم مُّعْرِضُونَ) تاسو ښهٔ قصداً او په جرأت او بے باکئ سره دغه وَصیتونه پریخودل او پدے کښې تدبر او پدے باندے عمل مو پریخودلو۔ (التنویر)

وَاِذۡ اَخَذۡنَا مِیۡثَاقَکُمۡ لَا تَسۡفِکُوۡنَ دِمَآءَکُمۡ

او کله چه واخسته مونږه مضبوطه وعده ستاسو نه چه نهٔ به توئ کوئ وینے د یو بل (په ناحقه)

وَلَا تُخۡرِجُوۡنَ اَنۡفُسَکُمۡ مِّنۡ دِیَارِکُمۡ ثُمَّ اَقۡرَرۡتُمۡ وَاَنۡتُمۡ تَشۡهَدُوۡنَ ﴿۸۴﴾

او نهٔ به اُوباسئ خپل ځانونه (یو بل) د کورونو خپلو نه بیا تاسو اقرار اُوکړو او تاسو ګواه یئ۔

**تفسیر** : په دے آیتونو کښې د دوی بل عهد او لوظ او د هغوی مخالفت ذکر کوی۔

**شان نزول** : دے آیتونو باندے انسان هله پوهیږی چه د واقعے نه خبر شی هغه دا ده چه په مدینه طیبه کښې د یهودیانو دوه ډلے اُوسیدلے، بنو نضیر او بنو قریظه د دوی به په خپلو کښې اختلافات راتلل او هرچه بنو قینقاع وو نو دا د بنی نضیرو سره ملګری وو، بیا دا یوه ډله د یهودو د آوس قبیلے ملګری وو او آوس عرب وو، او دا بله ډله (بنو نضیر) د خزرج والو ملګری وو، او دا هم عرب وو، انصار مدینه وو۔ د آوس او خزرج به اصل کښې جګړه راتلله او دے یهودو به راپارول چه جګړه کوئ مونږ درپسے شا ته ولاړ یو، پیسے به ئے ورکولے او بیا به ئے د هغے په عوض کښې د هغوی نه باغونه او زمکے قبضه کولے، تردے چه هغوی ئے غریبان کړل، ددے وجه نه خیبر او نورے علاقے یهودیانو پدے طریقه نیولے وے، نور خلق به ئے په جګړه آچول او دوی به سَیل کولو، (دے زمانه کښې هم اُوس د هغوی دا طریقه ده، مسلمانان جنګول او خپل مابین کښې خلق اچول او هغوی ئے سَیل کوی لګیا وی)۔ نو په دے مابین کښې به چه کله د آوس حمله وه په خزرج باندے نو هره فرقه د یهودو به د خپلو حلفاؤ ملګرے شوه نو بنو قریظه ۇ به خزرجیان هم وژل او بنو نضیر به ئے هم وژل او دغه شان بل طرفته واخله (یعنی هرے ډلے د یهودو به عرب هم وژل او خپل یهود به ئے هم وژل) او د کورونو نه به ئے ویستل او مالونه او سامانونه به ئے لوټ کول، حال دا چه دا په تورات کښې په دوی باندے حرام شوی وو لیکن چه یهودیان به د دوی قید ته راغلل، د دوی حلفاؤ به اُونیول نو دے یهودیانو به خپلو حلفاؤ له پیسے راجمع کړے چه دا زمونږ یهودی د قید نه بچ شی نو خپلو ملګروته به ئے اُوئیل : دا پیسے واخلئ او دا کسان پریږدئ نو هغوی به ورته وئیل چه دا څه وجه ده چه تاسو دوی سره زمونږ په مدد

کښې جنګونه کوئ او کورونو نه ئې هم مونږ سره اُوباسئ او قتلوئ ئې هم او چه مونږ ئې اُونیسو نو تاسو پیسې راجمع کړئ او دا پرې خلاصوئ؟ نو هغوی به وئیل چه مونږ خو تاسو سره اُوس قسم کړیدے چه ستاسو مدد به کوو، او په دے هم خفه کیږو چه زمونږ ملګری ذلیله شی، او دا به ئې وئیل چه مونږ ته د الله تعالیٰ حکم دے په تورات کښې چه یهودی مو چرته لیدلو او هغه قید ته اچولے شوے وو، هغه به راخلاصوئ.

(په مدینه کښې د اَوس او خزرج جګړے د څلویښتو کالو نه راروانې وے چه هیڅ صلح پکښې کار آمد نهٔ راتلله، هرکال به ئې جګړے تازه کیدلے، نو په یوه موقعه کښې خزرجیان کمزوری شو، نو دوی مکې ته د قریشو نه د مدد اخستو دپاره لاړل نو رسول الله ﷺ ورته په مکه کښې د اسلام دعوت ورکړو نو دوی خپلو کښې اُووئیل چه مونږ کوم کار له راغلی یو، د هغې نه دا غوره ده چه دے سړی باندے ایمان راوړو، کیدے شی چه ددهٔ په وجه زمونږ صلح او جوړجاړے راشی، نو ایمان ئې راوړو او بیا همغه شان اُوشوه چه د رسول الله ﷺ په وجه هغوی خپل مینځ کښې ورونه ورونه شو. (فَأَصْبَحْتُمْ بِنِعْمَتِهِ إِخْوَانًا)

**فائده**: یهود د عیسیٰ او د نبی علیهما السلام د راتلو نه مخکښې په اوله کښې مسلمانان وو نو هغوی به پدے حکم باندے عمل کولو. او دا زمونږ دے امت ته هم حکم دے چه قیدی چرته وی او مسلمان وی او د نورو مسلمانانو وَس وی نو ضرور به ئې راخلاصوی، د خپل طاقت مناسب مال به لګوی، خبره به کوی. په هره طریقه چه آزادولے شو کوشش به کوی. کافرو ته به ئې نهٔ سپاری خو افسوس په دے نام نهاد مسلمانانو چه دوی د مسلمان د راخلاصولو په ځائے آزاد مسلمان د یو څو روپاتو په بدله کښې د کافرو په پنجه کښې ورکوی !! دا کوم اسلام دے ؟). لا حول ولا قوة الا بالله.

نو الله رب العالمین دا آیتونه راولیږل چه یهود دومره ظالمان دی ګوره کومو حکمونو کښې ئې چه لږه شان فائده وه نو هغې باندے ښه عمل کوی ځکه دا مال به ئې چه راجمع کړو غالبه دا ده چه دوی به پکښې وهلو هم، غلا به ئې کوله او په دے قتل او کورونو نه ویستلو کښې ئې فائده نهٔ وه نو پدے حکم به ئې کولاؤ عمل نهٔ کولو. او زمونږ ددے زمانے د بدعتیانو طریقه هم دا ده چه کومه طریقه باندے ورته پیسے ملاویږی، مال په هغې کښې ډیر وی نو په هغې ډیر ښه عمل کوی او کومه کښې چه مال او دولت نهٔ وی نو د هغې پرواه نهٔ لری.

**اضافی تشریح**: د زیاتی فائدے دپاره دا تاریخ هم یاد کړه: رسول الله ﷺ چه کله

مدینے ته هجرت اُوکړو نو مدینه کښې درے قسمه یهودیان اُوسیدل، بنو نضیر، بنو قریظه، بنو قینقاع، بنو قریظه د قباء نه شاته او بنو قینقاع د مسجد نبوی په خوا کښې یو بازار دے۔ هلته اُوسیدل۔ او بنو نضیر اخوا آباد وو۔ رسول الله ﷺ د هجرت سره سمدست د دوی سره صلح اُوکړه چه تاسو به مونږ ته څه نهٔ وایئ او مونږ به تاسو ته څه نهٔ وایو۔ (او دا هم نبوی سیاست دے ځکه چه د رسول الله ﷺ هدف مشرکان وو، دے دپاره چه سنګرونه زیات نشی ځکه چه دا د قتال او جهاد طریقه ده چه په هر ځائے کښې به ئے نهٔ شروع کوے، دشمنان به ځان ته نهٔ ډیروے، غټ دشمن سره به اول شروع اُوکړے د هغے نه پس به بیا په آرام آرام نورو دشمنانو سره شروع کوے) نو پدے کښې د اَوس او د خزرج جګړے خو د اسلام په وجه ختمے شوے، او یهودیان په خپلو علاقو کښې په آرام اُوسیدل، کله چه د بدر غزا اُوشوه او رسول الله ﷺ له الله تعالیٰ غلبه په مشرکانو ورکړه نو یهودیان اُوویریدل چه دا نبی خو غالبه کیږی۔ نو ورانے ئے شروع کړو (حال دا چه دے ظالمانو به د رسول الله ﷺ د راتللو نه مخکښې د عربو د مشرکانو سره د جګړے په وخت وئیل چه د یو نبی زمانه رانزدے شوے ده، کله هغه راغے مونږ به ورسره ملګری کیږو او تاسو به داسے وژنو لکه د عادیانو، خو چه کله راغلو نو دوی ئے اول خلاف شو۔ (دا د باطل پرستو طریقه وی، د حق دعوے کوی خو چه حق راشی نو بیا ئے خلاف همدا کوی) نو رسول الله ﷺ دوی ته اُووئیل: چه ورانے مهٔ کوئ، زمونږ او ستاسو خو صلح ده، ورنه ستاسو سره به هم هغه شان کار اُوشی کوم چه د مکے والو سره اُوشو۔ نو دوی به وئیل چه اے محمد! پدے مه دوکه کیږه چه تا د قریشو اَوباش (ساده ګان، بے تجربے) خلقو سره جنګ اُوکړو، که مونږ سره دے جګړه راغله نو تا ته به پته اُولګی۔ نو پدے مابین کښې یوه مسلمانه زنانه د بنو قینقاع په بازار کښې د یو دوکاندار سره څه سودا کوله نو یو یهودی راغلو او د هغے لنګ ئے د شا پورے اُوتړلو او هغے ته پته نهٔ وه، نو چه هغه پاڅیدله نو شا ته بنکاره شوه نو ټولو یهودیانو ورپورے اُوخوندل (ځکه دا بازار د یهودیانو وو) نو پدے کښې یو مسلمان تیریدو، هغه چه دا حال اُولیدو نو دغه یهودی ئے قتل کړو، یهودیان راجمع شو او دغه مسلمان ئے شهید کړو، رسول الله ﷺ ته خبر اُوشو نو هغه پرے حمله اُوکړه او دغه خلق ئے محاصره کړل نو په هغوی باندے رعب راغلو سره د ډیر والی نه نو پدے کښې عبد الله بن ابی بن سلول رئیس المنافقین نورے اسلام رابنکاره کړے وو۔ نو دهٔ سوال زاری شروع کړه چه دا

زما دپاره پريده، رسول الله ﷺ اُوفرمايل : زۀ ئے خامخا وژنم۔ خو دا کلك اُونختلو چه خامخا به ئے پريدے۔ نو رسول الله ﷺ ددۀ لحاظ اُوکړو او هغوی ئے پدے شرط پريخودل چه دلته مدينه کښې به نۀ اُوسيږی نو پدے طريقه ذليله شو، دکانونه او باغونه او کورونه او بازارونه تړے پاتے شو او خيبر او شام علاقو طرف ته لاړل۔ بيا چه کله د اُحد غزا اُوشوه نو رسول الله ﷺ د ديت د قرض دپاره د بنو نضيرو خوا ته ورغلو چه مونږ له قرض راکړئ نو دوی غلطه اراده اُوکړه او دا مشوره ئے اُوکړه چه تيار راغلے دے راځئ د جرندے پل به پرے د بره نه راګوزار کړو۔ او تړے خلاص به شو۔ نو الله تعالىٰ ورته خبر ورکړو او يو روايت کښې دی چه يوے مسلمانے زنانه ورته خبر ورکړو چه دوی داسے غلطه اراده کړے ده۔ نو رسول الله ﷺ د هغه ځائے نه په جلتئ واپس لاړو او صحابه کرام (جنود الله) ئے ځان سره کړل او په دوی باندے ئے حمله اُوکړه نو دوی ئے شپږ اته يا پنځلس ورځے محاصره کړل بيا فيصله پدے اُوشوه چه تاسو به د مدينے نه اُوځئ او د يو اُوښ په اندازه سامان ځان سره وړلے شئ لکه دا په سورة الحشر کښې تفصيلًا راځی۔ نو هغوی خپل کورونه ورانول او دروازے به ئے تړے وړلے۔ په څلورم کال چه کله د خندق (الاحزاب) واقعه راغله نو بنو قريظه ۋ پکښې وعده ماته کړه او د مشرکانو ملګرتيا ئے شروع کړه نو د خندق د غزا د ختميدو نه پس سمدستی وريسے رسول الله ﷺ ورغلو او هغوی هم محاصره کړل تردے چه د سعد بن معاذ ﷺ په فيصله راکوز شو، ځوانان جنګيان ئے اُووژلے شو او ماشومان او زنانه ئے وينځے او غلامان شو۔ او څه موده بعد بيا په يهودو باندے په خيبر کښې هم حمله اُوشوه نو هغوی ئے هم اُونيول او هلته ئے دهقانان کړل بيا د سيدنا امير المؤمنين عمر فاروق ﷺ په دور کښې د هغه ځائے نه هم اُوشړل او شام او اذرحاء ته لاړل بيا څه ډيره موده بعد د مسلمانانو د غفلت او اختلافاتو د وجه نه هغوی کښې قوت پيدا شو۔ تردے چه پنځمه صدئ کښې حروب صليبيه پيدا شو او په هغے کښې ډير مسلمانان شهيدان شويدی۔ دا د دوی مختصره خاکه وه۔ يهوديان او نصارىٰ چونکه مسلمانانو هميشه ذليله کړيدی نو ځکه اُوس ډير په غصه دی چه دوی زمونږ پلاران او نيکونه د خپلو علاقو نه شړلی دی۔ نو ځکه دوی اُوس غلبه په عامو ملکونو اُوکړه او په عامه دنيا کښې د دوی تسلط دے، او الله تعالىٰ دا وعده کړيده چه بيرته به مسلمانانو ته خلافتِ اسلامی ورکوی۔ او دا وخت ان شاء الله تعالىٰ څه بعيد نۀ دے۔ الله تعالىٰ دِے مونږ او تاسو ددے اهل اُوګرځوی۔ آمين۔

**دمائكم** يعنى د يو بل وينے مراد دى. ځکه چه د مسلمان وينه تويه ول داسے دى لکه خپله وينه تويول او دا رنګه کله چه ته د هغه وينه تويه وے نو هغه به ستا وينه تويوى نو داسے شوه لکه چه تا خپله وينه تويه کړه. او (اَنْفُسَكُمْ) نه مراد هم همجنس او ملګرى دى. دليل پرے روستو آيت کښ (وَتُخْرِجُوْنَ فَرِيْقًا مِّنْكُمْ مِّنْ دِيَارِهِمْ) لفظ دے. او د هغوى ويستل داسے دى لکه د ځان ويستل يا دا چه هغه دے اُوويستلو نو هغه به تا اُوباسى. نو داسے شو لکه چه تا ځان اُوويستلو.

**وَاَنْتُمْ تَشْهَدُوْنَ** يعنى تاسو دا ګواهى ورکوئ چه دا د الله تعالىٰ حکم دے. نو بيا خو تاسو له ددے وفاء پکار ده. ۲- يا تَشْهَدُوْنَ په معنىٰ د تَعْلَمُوْنَ دے يعنى تاسو پوهيږئ.

ثُمَّ اَنْتُمْ هٰٓؤُلَآءِ تَقْتُلُوْنَ اَنْفُسَكُمْ وَتُخْرِجُوْنَ فَرِيْقًا مِّنْكُمْ مِّنْ دِيَارِهِمْ

بيا تاسو دغه کسان يئ چه تاسو وژنئ خپل رونړه او تاسو اُوباسئ يوه ډله ستاسو نه د کورونو د هغوى نه،

تَظٰهَرُوْنَ عَلَيْهِمْ بِالْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ، وَاِنْ يَّاْتُوْكُمْ اُسٰرٰى

تاسو مدد کوئ د يو بل سره د هغوى په مقابله کښ په ګناه او په ظلم کولو باندے.او که راشى دا خلق تاسو ته قيديان،

تُفٰدُوْهُمْ وَهُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْكُمْ اِخْرَاجُهُمْ اَفَتُؤْمِنُوْنَ

تاسو فديه (جرمانه) ورکوئ د هغوى د طرفه او حال دا دے چه حرام شويدى په تاسو باندے ويستل د دوى نو آيا تاسو ايمان لرئ

بِبَعْضِ الْكِتٰبِ وَتَكْفُرُوْنَ بِبَعْضٍ فَمَا جَزَآءُ مَنْ يَّفْعَلُ ذٰلِكَ مِنْكُمْ اِلَّا خِزْىٌ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا

په بعضے کتاب او کفر کوئ په بعض حصه پس نه ده بدله د هغه چا چه کوى دا کار ستاسو نه مګر شرم په ژوند دنيوى کښ

وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ يُرَدُّوْنَ اِلٰٓى اَشَدِّ الْعَذَابِ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۸۵﴾

او په ورځ د قيامت به دوى واپس کړے شى سخت عذاب ته او نه دے الله ناخبره د هغے عملونو نه چه تاسو ئے کوئ.

**تفسير**: پدے کښ د بنى اسرائيلو بدى ذکر کول دى په ماتولو د درے لوظونو يو دا چه خپل مينځ کښ يو بل وژنئ، بل دا چه د کورونو نه ئے اُوباسى. دريم دا چه د يو بل سره په ګناه او ظلم

کښې مدد کوی. او دا د هغه اعراض بيان دے کوم چه په مخکښې آيت کښې ذکر شو.
ثُمَّ أَنْتُمْ هٰؤُلَاءِ: أَنْتُمْ مبتداء او هٰؤُلَاءِ ئے خبر او تَقْتُلُوْنَ جمله حال دے.
(۲) دويم أَنْتُمْ مبتداء او هٰؤُلَاءِ خبر يعنى تاسو دغه کم عقل خلق يئ او (تَقْتُلُوْنَ) جمله مستأنفه ده پدے کښې بيان د هغوى د کم عقلتيا دے.
﴿تَظٰهَرُوْنَ عَلَيْهِمْ بِالْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ﴾ يعنى د خپلو ملګرو په مقابله کښې د نورو کافرو (عربو) سره ملګرى شئ او بيا په ظلم او ګناه کښې ملګرتيا ده. حال دا چه خلق د مظلوم ملګرتيا کوى نهٔ د ظالم، او د يو بل سره په ګناه او ظلم باندے مدد کول جائز نهٔ دى.
تَظٰهَرُوْنَ: تظاهر د يو بل سره تعاون کولو ته وئيلے شى اصل کښې د ظهر نه دے ملا ته وئيلے شى نو په تعاون کښې هم د يو بل ملا قوى کول وى.
(اثم) هغه ګناه ته وائى چه جنس ئے حرام وى، يعنى ټول حرام وى، لږ وى او که ډير.
(عدوان) هغے ته وائى چه په هغے کښې زيادت حرام وى، مثال ئے دا دے چه شراب لږ او ډير ټول حرام دى، نسوار لږ او ډير ټول حرام دى، د اوداسهٔ په اُوبو کښې لږے استعمالول جائز خو اسراف پکښې ګناه ده. دوډئ خوراك جائز دے خو زيادت پکښې ګناه ده. دے ته عدوان وائى.
۲ - (اثم) کله محرم الجنس ته وائى يعنى چه جنس او ذات ئے حرام وى) او (عدوان) بدعت ته وائى. نور فرقونه په سورة المائده کښې رازى ان شاء الله تعالىٰ.
**فائده**: په دے آيت کښې بالاثم والعدوان په باء سره ذکر دے او په سورة المائده (۲) آيت کښې (وَلَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ) په عَلىٰ سره ذکر دے، ددے وجه د فرق دا ده چه په باء کښې اشاره ده چه دا تعاون په قتل او اخراج پخپله ګناه او ظلم دے لکه څنګه چه قتل او اخراج هم ګناه او عدوان دے. او په لفظ د علىٰ کښې اشاره ده چه تعاون کول د بل چا سره په داسے طريقه چه هغه له تمکين او قدرت ورکړى په ګناه او عدوان کولو باندے يعنى اسباب د ګناه ورله جوړ کړى اګرچه پخپله ئے په هغه عمل کښې شرکت نهٔ وى کړے نو تعاون على الاثم عام دے د تظاهر د ګناه نه. يعنى تعاون على الاثم عام دے که خپله ئے په هغه ګناه کښې شرکت کړے وى او که ذريعه جوړ شوے وى او تظاهر دېته وائى چه خپله هم پکښې شريك وى.
تُفٰدُوْهُمْ: تاسو فديه ورکوئ د دغه خپلو ملګرو. د راخلاصولو دپاره.
(وَهُوَ) دا ضمير شان دے مخکښې مرجع نهٔ غواړى يعنى شان او حال دا دے.
(اِخْرَاجُهُمْ) هرکله ئے چه ويستل حرام دى نو قتل خو ئے په طريقِ اولىٰ حرام شو. څنګه

قتل خو پوره ویستل دی او مقبرے ته رسول دی۔ نو په ادنیٰ طرف ذکر کولو سره تنبیه اُوشوه په اعلیٰ طرف باندے۔
﴿ أَفَتُؤْمِنُونَ بِبَعْضِ الْكِتَابِ وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ ﴾ د ایمان نه مراد دلته عمل دے۔ عمل کویٔ په بعض او انکار کویٔ د بعضو نه۔ مراد دا دے چه عمل پرے نهٔ کویٔ، یهودو خو به تول تورات منلو۔ نو د کفر نه مراد (ترک عمل) (عمل پریخودل) دی۔ دے ته کفر عملی وائی۔ د ایمان اطلاق په عمل باندے کیږی او د کفر اطلاق هم په گناه باندے کیږی۔
امام مجاهد داسے معنیٰ کوی :(انْ وَجَدْتَهُ فِيْ يَدِ غَيْرِكَ فَدَيْتَهُ وَاَنْتَ تَقْتُلُهُ بِيَدِكَ)
(که د بل په لاس کښں دغه یهودی اُوموموے نو بیائے په فدیه سره راخلاصوے (پدے حکم خو عمل کوے) او حال دا چه په خپل لاس ئے وژنے۔ (او دا وژل خو حرام دی) پدے حکم عمل نهٔ کوے۔
**فائده** : عمل په ایمان کښں داخل دے او په ترک د جمیع اعمالو انسان کافر کیږی او په ترک د بعضو په کفر عملی کښں واقع کیږی۔
﴿ فَمَا جَزَاءُ مَنْ يَفْعَلُ ﴾ دلته اُوس د دوی عذاب بیانوی چه څوک چه ځان بزرگ گنړی او مینځ کښں د الله تعالیٰ حکم ماتوی نو داسے انسان لره الله تعالیٰ شرموی، دوی وائی مونږه اهل کتاب یو او مینځ کښں ئے د الله کتاب شاته غورزولے دے۔ د دوی ددے مبغوض عمل د وجه نه الله تعالیٰ په دوی باندے په دنیا کښں څنگه ذلت او رسوائی راوسته، وے ئے شرمول، ذلیله ئے کړل، خپل رسول ئے د هغوی په خلاف راپورته کړو چه د هغے په نتیجه کښں دوی قتل، قید او بند او د جلا وطنی په مصیبتونو کښں مبتلا شو، مدینے منورے نه ئے اُوشړل، خیبر ته لاړل بیا د خیبر نه شام ته اُوشړلے شو۔ توله دنیا کښں الله تعالیٰ سپک کړل۔ او په آخرت کښں به هم د دنیا په نسبت په سخت عذاب کښں مبتلا کیږی، د هغه ځائے وعده ورسره الله تعالیٰ اُوکړه۔
**خِزْیٌ** : د دنیا د عذاب دپاره استعمالیږی او د آخرت د عذاب دپاره اَخْزیٰ (دیر شرمونکے) استعمالیږی۔ لکه (وَلَعَذَابُ الآخِرَةِ اَخْزیٰ وَهُمْ لَايُنْصَرُوْنَ) (حم السجدة:۱۶)
دارنگه خِزْیٌ، غضب، شرمندگی، رسوائی، بے حیائی او په مصیبت کښں مبتلا کیدو ته وئیلے شی۔ لهذا دا هر قسم ذلت او سپکاوی ته شامل دے۔ او دا وعده د یهودو سره الله تعالیٰ پوره کړیده۔ هر ځائے کښں یهودی ذلیل دے۔ او دا ذلالت ورته د الله تعالیٰ د شریعت او د هغه د امرونو په مخالفت کښں اُورسیدو۔ نو هر څوک چه د پیغمبرانو او د الله تعالیٰ د

شریعت خلاف کوی نو الله تعالیٰ به ئې ذلیله کوی۔
نو الله تعالیٰ پرې اُوس سمدستي په دنیا کښې ولې عذاب نهٔ راولي ؟ نو الله تعالیٰ فرمائی :
﴿ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴾ الله تعالیٰ ته معلوم دی په خپل وخت کښې به پرې سزا راولي۔

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا بِالْاٰخِرَةِ

دا هغه کسان دی چه اخستے ئې دے ژوند دنیوی په مقابله د آخرت کښې

فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿۸۶﴾

نو سپک به نهٔ کړے شي د دوی نه (مقرر) عذاب او نهٔ به د دوی سره مدد اُوکړے شي۔

**تفسیر** : په دے آیت کښې تتمه ده د مخکنی خطاب په زجر او تخویف اخروی سره او د تیر شوو بدو صفاتو سبب ذکر شویدے چه هغه دنیا غوره کنړل دی په آخرت باندے۔ دارنګه دوی دا سوچ اُوکړو که مونږ د خپلو حلیفانو (قسمیانو) مدد اُونهٔ کړو نو خلق به راته بیغور کوی، اُویه شرمیږو نو پدے وجه ئې د آخرت عذاب قبول کړو۔
(اِشْتَرَوُا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا بِالْاٰخِرَةِ) یعنی که دوی آخرت منلے نو دا کارونه او دا ګناهونه به ئې نهٔ کولے۔ خو دوی آخرت پریخوستے دے او دنیائې غوره کړیده۔ دا مرض دے اُمت کښې هم اُوس ډیر زیات راغلے دے۔ (والعیاذ بالله) د مال دپاره خپل آخرت تباه کوی په غلطو او دروغو قسمونو سره۔
﴿ فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ ﴾ (اَيِ الْعَذَابُ الْمُقَدَّرُ لَهُمْ) یعنی کافرو له چه کوم عذاب الله تعالیٰ مقرر کړیدے هغے کښې به سپکوالے، ختموالے، کم والے نهٔ راځی او دا مطلب نهٔ دے چه د کافرو دپاره به سپک عذاب نهٔ وی ځکه ابو طالب دپاره سپک عذاب دے چه په خپو کښې به ئې د اُور څپلۍ اچولی وی او د هغے په وجه به ئې دماغ خوټ کیږی۔ او دا به ګمان کوی چه زما د ټولو خلقو نه زیات سخت عذاب دے۔ (الحدیث) (رواه البخاری)۔

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَقَفَّيْنَا مِنْۢ بَعْدِهٖ بِالرُّسُلِ

او یقیناً مونږ ورکړے وو موسیٰ (علیه السلام) ته کتاب (تورات) او راولیږلی وو مونږ د هغه نه روستو ډیر پیغمبران

وَاٰتَيْنَا عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنٰتِ وَاَيَّدْنٰهُ

او مونږ ورکړې وو عیسیٰ ځوی د مریم (علیها السلام) ته ښکاره دلیلونه (معجزات) او مضبوط کړے وو مونږ هغه لره

بِرُوْحِ الْقُدُسِ اَفَكُلَّمَا جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ بِمَا لَا تَهْوٰٓى اَنْفُسُكُمُ

په روح پاك سره آیا پس هر کله چه به راوړو تاسوته یو رسول هغه مسئلې چه نه به خوښولے زړونو ستاسو،

اسْتَكْبَرْتُمْ فَفَرِيْقًا كَذَّبْتُمْ وَفَرِيْقًا تَقْتُلُوْنَ ﴿۸۷﴾

تاسو به لوئی اُوکړه، نو یوه ډله (د پیغمبرانو) تاسو دروغژنه کړه او بله ډله د پیغمبرانو تاسو وژله.

**تفسیر**: ددے ځائے نه (۸۸) پورے بل (پنځم) خطاب دے چه په دے کښې غرض دا دے چه الله تعالیٰ دوی ته تورات ورکړو نو دوی هغه بدل کړو او د موسیٰ ﷺ نه روستو په دوی کښې الله تعالیٰ نور انبیاء او رسولان راولیږل دے دپاره چه تورات نافذ کړی لیکن دوی د هغوی سره بدترینه معامله اُوکړه، هغوی ئے دروغجن کړل او ډیرئے پکښې شهیدان کړل او په آخر کښې الله تعالیٰ عیسیٰ ﷺ راولیږلو چه هغه د الله تعالیٰ په حکم سره په بعض احکاماتو د تورات کښې تبدیلی اُوکړه نو بنی اسرائیلو هغه هم دروغجن کړو او د هغه په خلاف ئے د حسد او عناد نه کار واخستو، د انبیاء علیهم السلام سره د دوی داسے معامله ځکه راغله چه د هغوی خبرے د دوی د خواهشاتو مطابق نهٔ وے او هغوی به دوی ته د تورات په صحیح احکامو باندے د عمل کولو دعوت ورکولو۔

حاصل مطلب دا چه دے یهودو کښې دا مرض هم موجود دے (اِنْكَارُهُمْ مِنَ الْاَنْبِيَاءِ السَّابِقِيْنَ) (چه دوی انکار د پخوانو پیغمبرانو نه هم کړیدے)۔ او بیا خصوصاً ددے پیغمبر نه ئے هم کړیدے۔ لکه روستو راځی۔ نو دوی د پخوانو انبیاؤ خبره نهٔ ده منلے کوم چه دوی ته راغلی وو۔ د دوی د بنی اسرائیلو نه وو، نو محمد رسول الله ﷺ به دوی څه اُومنی، دا خو به خامخا نهٔ منی۔ دا په (وَلَمَّا جَاءَهُمْ رَسُوْلٌ) کښې بیانیږی۔ دا دومره ضدیان او عنادګر خلق دی چه د رسولانو سره د دوی دړے دی۔ دا د یهودو صفت دے چه د الله تعالیٰ او د رسولانو خبرے ته تیار نهٔ دی۔ کومه چه د خواهش خلاف وی، بلکه رسول پرے

دپاسه وژنی هم۔ او دا صفت چه په سرې کښې راشی چه د پیغمبر هغه خبره منی کومه چه د خواهش مطابقه وی او بنه پرې لګیږی او کومه ئې چه خواهش خلاف وی او بنې پرې نهٔ لګی نو هغه نهٔ منی۔ نو ده کښې د یهودو صفت راغلے دے۔

ددے تولو خبرو غرض دا دے چه اے یهودیانو ! تاسو څنګه ځان ته بنه خلق وایئ، چه مونږ د الله تعالیٰ غوره ډله یو۔ او دا تول مخلوق الله تعالیٰ مونږ له پیدا کړیدے۔ تاسو کښې دا مرضونه دی، آیا داسې ناجوړه، داسې کافران او قاتلین د انبیاء علیهم السلام د الله تعالیٰ دوستان کیدے شی ؟!۔ بل پدے کښې مونږ ته اشاره ده چه اے مؤمنانو! د یهودو د صفاتو نه به ځان ساتئ۔ بل دا چه دوی نه الله تعالیٰ د دین مشری ولے واخسته، په دے وجه چه دوی کښې دا مرضونه راغلل۔ که تاسو کښې اے مؤمنانو ! دا مرضونه پیدا شول نو الله تعالیٰ به تاسو نه هم ددین مشری واخلی۔ دا ددے آیتونو مجموعی لحاظ سره اغراض دی۔

نو په دے آیتونو کښې انکار د دوی د مخکنو پیغمبرانو نه بیا ددے نبی نه بیا دعوه د دوی چه مونږ په تورات عمل کوو نو په هغوی باندے رد چه تاسو تورات کوم دے چه منلے دے، که تاسو په هغے عمل کولے نو بیا مو انبیاء علیهم السلام ولے وژل، تاسو کښې خو دا دا عیبونه دی، بیا دوی دعوے د جنت شروع کړے چه نورے خبرے پریده خو جنت صرف مونږ پورے خاص دے۔ نو دوی سره به اعلان د مباهلے اُوکړے شی، لیکن الله تعالیٰ فرمائی : دوی ته د خپل ځان باطلوالے معلوم دے کله مباهله کولے شی؟۔

## تفسیر او فوائد :

(**وَقَفَّيْنَا**) قَفَّيْنَا : د تقفیه نه اخستے شویدے، او تقفیه د قفا نه دے په معنیٰ د شا پسے ورپسے کیدلو دے، نو دلته معنیٰ ده : (أَرْدَفْنَا وَأَتْبَعْنَا بَعْضَهُمْ خَلْفَ بَعْضٍ) (طبری)

(یعنی روستو مو راولیږل او بعض مو د بعضو پسے کړل)

مِنۢ بَعْدِهٖ : یعنی روستو موسی علیه السلام نه۔ د هغه نه روستو څکه وائی چه اکثر پیغمبران د موسیٰ علیه السلام نه روستو راغلی وو او د هغه تابع وو، تورات به ئې لوستلو، خپله وحی به هم ورته الله تعالیٰ کوله او تورات به ئې هم لوستلو او هغې ته به ئې دعوت ورکولو تر عیسیٰ علیه السلام پورے بیا عیسیٰ علیه السلام ته هم الله تعالیٰ تورات ورکړو خو لږ زیادت ئې پرے اُوکړو انجیل ئې ورله ورکړو۔

وَآتَيْنَا عِيسَى : دا ولے ذکر کوی ؟ ځکه چه ددے یهودو د عیسیٰ علیه السلام سره سخته دشمنی وه، نو پدے کښې اشاره ده چه عیسیٰ علیه السلام د بنی اسرائیلو پیغمبر دے او دوی نهٔ دے منلے نو دا نبی به څه اُومنی، دا غټ ضدیان دی۔

**عیسی** : په عبرانئ او سریانئ ژبه کښې يَسُوْع يا يَشُوْع دے، او دا په عبرانئ ژبه کښې په معنیٰ د سَيِّد او مبارك سره دے۔ یعنی الله تعالیٰ پکښې برکت اچولے دے۔ عیسیٰ علیه السلام ته په دیرشتم کال د عمر باندے نبوت ورکړے شو بیا درے کاله روستو آسمان ته پورته کړے شو۔

**ابن مریم** : قرآن او سنت کښې د زنانو نو مونه غالباً نهٔ ذکر کیږی بلکه پلار ته نسبت کیږی لیکن د عیسیٰ علیه السلام نسبت مور ته کیږی پدے کښې اشاره ده چه دا بے پلاره د الله تعالیٰ په قدرت پیدا شوے وو۔ مریم علیها السلام چه کله د ناصره علاقے نه روانه شوه بیت المقدس ته تلله نو په لاره کښې ئے په بیت الشرق کښې عیسیٰ علیه السلام پیدا شو او مریم د دیارلسو کالو په عمر وه۔

**مَرْیَم** : عبرانی لفظ دے په معنیٰ د خادم سره۔ کله چه عربی ته رانقل شو نو هیڅ معنیٰ ئے نشته مګر هغه عرب چه نصرانیت ئے اختیار کړے وو هغوی په معنیٰ وصفی کښې استعمال کړو، نو مریم به ئے هغه زنانه ته وئیله چه د ښځو د صفاتو نه وړاندے وی او د سړو سره مشابه وی، او مریم کښې هم د سړو په شان صفات وو۔ چه د بیت المقدس خدمت به ئے کولو۔ ددے وجه نه قرآن کریم کښې ددے په باره کښې (وَكَانَتْ مِنَ الْقَانِتِيْنَ) لفظ استعمال شویدے۔ چه دے کښې د سړو په شان صفات د عبادت وو۔ (التنویر)

(الْبَيِّنَات) : جمع د بَيِّنَةٌ ده په قرآن کریم کښې (٥٦) کرته راغلے دے په اصل کښې : (ما يَتَبَيَّنُ به الحَقُّ) (هر هغه شے چه په هغے سره حق واضح کیږی) بیا ددے اطلاق کیږی۔ (١) په دلائل وحییه او عقلیه (٢) او په معجزاتو۔ او دلته ترے معجزات مراد دی په حقانیت د عیسیٰ علیه السلام چه هغه معجزات په سورة آل عمران (٤٩) او المائده (١١٠) کښې ذکر دی چه بعض معنوی دی او بعض ظاهری دی۔ لکه انجیل کتاب، مړی ژوندی کول، او د ختے نه مارغه جوړول، بیا په هغے کښې پوکی کولو سره مارغه جوړیدل د الله تعالیٰ په حکم سره، او د هغه په لاس بیماریانے جوړیدل، او ډیر د غیبو خبرے بیانول لکه خلقو چه په کورونو کښې څه ذخیره کړی وی د هغے خبر به ئے ورکولو۔

او البینات ذکر کولو کښې اشاره ده چه دے یهودو ظالمانو ته د عیسیٰ علیه السلام نبوت ښه

بسکاره شوي وو او معجزات ئې ليدلي وو، بيا ئې هم هغه نه منلو. نو پدې کښې زياته بدي او قباحت د دوى دے.

أَيَّدْنَاهُ : د تَأْيِيدْ نه دے په معنىٰ د مضبوط والي او قادره کولو او قدرت ورکولو سره دے.

بِرُوحِ الْقُدُسِ : ددے ډير مصداقات بيان شويدي (۱) يو دا چه دا نوم د جبريل ﷺ دے لکه په سورة النحل (۱۰۲) کښې دا معنىٰ ده، او حسان بن ثابت ﷺ د جبريل ﷺ متعلق فرمائي :

وَجِبْرِيلُ رَسُولُ اللّٰهِ فِينَا    وَرُوحُ الْقُدْسِ لَيْسَ بِهِ خَفَاءُ

(او په مونږه کښې جبريل د الله تعالىٰ استاذے دے او پاك روح دے چه هيڅ پټوالے پرے نشته)

او حديث کښې دى چه نبي ﷺ په حسان ته داسے دعا کوله : (اَللّٰهُمَّ أَيِّدْهُ بِرُوحِ الْقُدُسِ) (اے الله دا په روح القدس (جبريل) سره مضبوط کړه) او هغه ته روح پدے وجه وائي چه هغه وحي راوړي او وحي سبب د ژوند د زړونو دے.

(۲) دويم دا چه روح القدس نه مراد انجيل دے او دے ته ئې روح پدے وجه وئيلے دے چه دا د الله تعالىٰ کتاب دے او هغه سبب د ژوند د زړونو وي. د الله تعالىٰ کتاب چه د انسان سره موجود وي نو د هغه پدے سره ډيره تسلي کيږي، مصيبت چه راځي قرآن زر راواخله نو دے سره به تسلي اُوشي.

(۳) امام مجاهد فرمائي : القدس او قدوس نوم د الله تعالىٰ دے. نو نسبت د روح الله تعالىٰ ته د تشريف د وجه نه دے. يعنى د الله تعالىٰ روح. او د الله تعالىٰ د طرفه روح (وحي) راوړنکے. يعنى روح جبريل دے او القدس الله تعالىٰ دے. لکه آيت کښې دى : (قُلْ نَزَّلَهُ رُوحُ الْقُدُسِ مِنْ رَّبِّكَ بِالْحَقِّ) (النحل : ۱۰۲)

(٤) بعض وائي : روح القدس د الله تعالىٰ اسم اعظم دے چه پدے سره به عيسىٰ ﷺ مړى راژوندى کول. (قاله سعيد بن جبير وعبيد بن عمير) (القرطبي)

(٥) يا روح القدس پخپله عيسىٰ ﷺ دے خو دهٔ له الله تعالىٰ پاك روح ورکړے وو، ځکه چه د سړي او د ښځے د گندگو نه صفاء وو، روحانيت ئې لرلو، نرم اخلاقو والا وو. (البغوي)

(٦) روح عيسىٰ ﷺ دے او القدس الله تعالىٰ دے يعنى روح الله او عيسىٰ ﷺ ته روح الله ځکه وائي چه دا د الله تعالىٰ په امر پيدا وو. اضافت تشريفي دے.

اول قول ډير ظاهر دے. او بيا پنځم قول.

**فائده** : تائید (او ملاتړ) د جبریل ﷺ د ټولو انبیاء علیهم السلام سره وو لیکن د عیسیٰ ﷺ سره ئې خصوصي تائید وو او هغه دا چه (۱) جبریل ﷺ ددهٔ مورته چه مریم ده ددهٔ بشارت ورکړے وو۔ (۲) د جبرئیل ﷺ په پوکې سره عیسی ﷺ د مور بې بې په ګیډه شوے وو۔ (۳) جبریل ﷺ به په ټولو حالاتو کښې د هغه تربیت کولو۔
(٤) جبریل ﷺ به ورسره ګرځیدو چه کوم خوا به عیسی ﷺ تلو۔ وجه دا ده چه یهودیان د هغه سخت مخالف وو، د هغه د مرګ پلان ئې جوړولو۔ او پدے مقام کښې د عیسیٰ ﷺ تذکر هم ددے دپاره کوی چه اے یهودیانو ! تاسو خو عیسی ﷺ قتل کولو لیکن هغه درنه ما خلاص کړے وو د جبریل په واسطه۔ څکه چه د عیسی ﷺ دشمنان د یهودیانو نه ډیر وو عیسی ﷺ به بیانونه کول او یهودو باندے به ئې ردونه کول، د هغه په بیانونو کښې ډیر ردونه موجود دی۔ چه اے مُلیانو ! څنګه نرمے نرمے خبرے کوئ او زړونه مو د شرمخانو دی او څنګه حرامے خورئ، دنیا مو ولے غوره کړے ده ! او دا کارونه کوئ ! نو هغوی له به ډیر قهر ورتلو چه دا سړے څه راغلے او ځان مونږ ته بزرګ بزرګ کوی دا وژل پکار دی۔ بیا ئې ظالم بادشاه ته پړے شیطانی هم اُوکړه او د هغه د قتل اراده ئې هم اُوکړه چه د هغے واقعات روستو قرآن کریم کښې راځی۔
(۵) او آخر دا چه د جبریل ﷺ په ذریعه آسمان ته هم اُوخیژولے شو۔
دے ځائے پورے مقدمه وه اُوس زجر ورکوی۔
**أفكلما** : کښې دا همزه په (اِسْتَكْبَرْتُمْ) داخله ده (أَءِ اسْتَكْبَرْتُمْ كُلَّمَا جَاءَكُمْ رَسُوْلٌ بِمَا لَا تَهْوٰی أَنْفُسُكُمْ) آیا تاسو به ځان لوئی ګنړلو کله چه رسول درته داسے خبرے راوړی چه ستاسو د خواهش خلاف وی)
**بِمَا** : نه مراد وحی او دین او مسائل د دین دی۔
**لَا تَهْوٰی أَنْفُسُكُمْ** : او د دین مسائل اکثر د خواهش خلاف راځیٔ پدے کښې امتحان غرض وی۔ نسبت د هویٰ (خواهش) ئې نفس ته اُوکړو څکه چه ناکاره خواهش د نفس نه پیدا کیږی۔
**اِسْتَكْبَرْتُمْ** : یعنی تاسو ځان لوئی ګنړلے دے، او حق له مو دیکه ورکړیده او ددے رسول د اجابت نه مو انکار کړیدے۔ اِسْتِكْبَار : (بَطَرُ الْحَقِّ وَغَمْطُ النَّاسِ) (حق له دیکه ورکول او خلق سپك ګنړلو ته وئیلے شی) او دا مرض د شیطان او یهودیانو دے۔
﴿ فَفَرِيْقًا كَذَّبْتُمْ ﴾ یعنی فَفَرِيْقًا مِنَ الرُّسُلِ) یوه ډله د رسولانو۔

تقتلون : دا حکایت دے د حال ماضیه نه لیکن دوی به وخت په وخت وژل او په آینده کښې ئے اراده د وژلو هم وه۔ نو ځکه ئے تعبیر په مضارع سره اُوکړو، او دوی زمونږ د رسول الله ﷺ د قتـل ارادے هم کړیدی، لکه مخکښې بیان شو۔ یعنی دوی کښې دا مرض پیدا شو چه د خواهش خلاف مسئله به ورته اُوشوه نو وئیل به ئے دا مونږ نهٔ منو او دا سړے وژل غواړی نو دا یهود څنګه د الله تعالیٰ دوستان کیدے شی چه پیغمبران ئے وژلی دی ؟!۔

**فائده** : تکذیب ئے مقدم کړو په قتل ځکه چه د استکبار د وجه نه اول تکذیب پیدا شی بیا خبره قتل ته اُورسی، دویم دا چه تکذیب مشترك وو په مابین د مقتول او غیر مقتول دواړه قسمه انبیاؤ کښې، یعنی تکذیب عام دے او قتل خاص دے۔ او فریقاً فریقاً دوه ځله راوړو مطلب دا دے چه په کومو پیغمبرانو به ئے د قتل وسع اُورسیدلو نو هغه به ئے قتل کړل او په کومو چه به ئے وسع نهٔ کیدو نو د هغوی به ئے صرف تکذیب کولو۔

**فائده** : دا آیت ښکاره دلیل دے چه قتل د رسولانو شویدے۔

| |
|---|
| وَقَالُوْا قُلُوْبُنَا غُلْفٌ بَلْ لَّعَنَهُمُ اللّٰهُ |
| او وئیل به دوی روښه زمونږ ډك دی د علم نه (نهٔ) بلکه الله لعنت کړے دے په دوی باندے |
| بِكُفْرِهِمْ فَقَلِيْلًا مَّا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۸۸﴾ |
| په سبب د کفر د دوی، پس ډیر لږ کسان په دوی کښې ایمان راوړی۔ |

**تفسیر** : په دے آیت کښې د دوی کښې بل مرض دا ذکر دے چه ځان غټ علماء ګڼړی او د انبیاء (علیهم السلام) علم ته ځان محتاج نهٔ ګڼړی ځکه تکذیب د پیغمبرانو کوی نو دا د مخکښنی تکذیب طریقه بیانوی۔ چه دوی ته به چه کله اُووئیل شو چه راشئ د محمد رسول الله ﷺ خبرے واورئ نو دوی به وئیل مونږ سره د تورات علم دے، تورات کښې د الله تعالیٰ علم پروت دے۔ او هغه مونږ حاصل کړیدے۔ زمونږ چا ته ضرورت نشته۔

**شان نزول** : مفسرینو لیکلی دی چه نبی ﷺ کله د مدینے یهودیانو ته د اسلام دعوت ورکړو نو هغوی د نبی کریم ﷺ د نا امیده کولو دپاره چه دوباره دوی ته دعوت ورنکړی، او د سپکاوی په نیت۔ دغه خبره اُوکړه۔ (ابن عاشور) (وتیسیر الرحمن)

غُلْفٌ : (۱) جمع د غلاف ده لکه حُجُبٌ جمع د حِجَاب ده او غلاف په معنی د لوښی سره راځی معنیٰ ئې ده (اَوْعِيَةٌ لِکُلِّ عِلْمٍ) زمونږ زړونه د علم لوښی دی (مفردات راغبؒ) (والقرطبی) یعنی د علم نه ډك دی، هر قسم علمونه پکښې پراته دی، زمونږ دے نبی ته حاجت نشته، دا هسے خبرے دی، دا معنی ضحاك او عطیه د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړیده۔ اُوس هم ډیر منطقیان او فلسفیان وائی مونږه په حقائقو پو هیږو، په (قَالَ قَالَ) او (حَدَّثَنَا) باندے څه کار نهٔ کیږی، دا آسان کار دے نو قرآن او سنت ورته سپك ښکاری او خپلے لانجے ورته ښے ښکاری، ډیرو ضدیانو مُلیانو کښې هم دا مرض دے چه کله ورته څوك یوه حقه مسئله اُوکړی نو هغه وائی چه دا مسئلے مونږ ته مخکښې نه معلومے دی، مونږ په کتابونو کښې وئیلی دی، او حال دا چه هسے فخر کوی هیڅ هم نهٔ ورځی۔ نو الله تعالیٰ د دوی بدی بیانوی۔ نهٔ ! بلکه انصاف دا دے چه د حق خبرو پسے به بنده گرځی اگرکه هر څومره غټ عالِم وی، د انسان علم نهٔ پوره کیږی، چه څوك داسے اُووائی بس زهٔ په علم پوره شوم او نور اخوا نهٔ زده کوم، بلکه انسان همیشه دپاره علم زده کولو ته محتاج دے، نبی ﷺ ته هم الله تعالیٰ د علم د زیادت طلب کولو امر کړیدے (وَقُلْ رَّبِّ زِدْنِيْ عِلْمًا) (طه:۱۱٤) ۔ ددے معنیٰ تائید په سورة غافر (۸۳) کښې شته۔ (فَلَمَّا جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ فَرِحُوْا بِمَا عِنْدَهُمْ مِنَ الْعِلْمِ) (یعنی د رسولانو د بیناتو (واضحه خبرو) په مقابله کښې دوی خپل علم مخے ته کړو، او په رسول باندے د ایمان راوړو نه محروم شو) نو کله کله علم د انسان مانع د حق اُوکرځی۔ ددے نه یره پکار ده۔ انابت ډیر ضروری دے۔

(۲) – دویمه معنیٰ : غُلْف جمع د اَغْلَف ده په معنیٰ د بند سره لکه حُمْرٌ چه جمع د اَحْمَر ده۔ لکه دا معنیٰ په حم السجدة (۵) آیت کښې راغلے ده : ﴿وَقَالُوْا قُلُوْبُنَا فِيْ اَكِنَّةٍ مِّمَّا تَدْعُوْنَا اِلَيْهِ﴾ (یعنی زمونږ زړونه په پردو کښې دی ستا د دعوت نه) نو معنیٰ دا ده :

(قُلُوْبُنَا فِيْ غِطَاءٍ مِنْ قَوْلِكَ وَلَا نَفْقَهُ حَدِيْثَكَ فَلَوْ كُنْتَ نَبِيًّا لَفَهِمْنَا قَوْلَكَ) (بحر العلوم للسمرقندی : ۱/ ۸۰) (زمونږ زړونه ستا د خبرو نه په پرده کښې بند دی، ستا په خبره مونږ نهٔ پو هیږو۔ که ته نبی وے مونږ به ضرور ستا په خبره پو هیدلے) یعنی په مونږ محنت مهٔ کوه۔ (جاهل عنادی د پیغمبر په واضحه خبره هم نهٔ پو هیږی۔!)

او مقصد د دوی دا وو چه ستا خبرے غلطے دی، دا ته څه وائے، مونږ خو پدے نهٔ پو هیږو، که دا د عقل خبرے وے او پدے کښې څه معقولیت وے نو مونږ خو معقولے خبرے قبلوو،

ضرور به مونږ قبول کړی وے۔ اوله معنیٰ ظاهره ده۔ نو الله تعالیٰ پرے رد کوی :

﴿ بَلْ ﴾ ۔(بلکه) دا د اضراب دپاره دے، ددے معنیٰ دا ده چه د علم نه ډك نهٔ دی، هسے وائی بلکه الله تعالیٰ د دوی دکفر په وجه د دوی په زړونو لعنت کړیدے او په هغے ئے مهر وهلے دے۔او په ملعون زړه کښې علم نهٔ وی۔ او بناء په دویم تفسیر معنیٰ داسے ده : زړونه ئے بند نهٔ دی، دروغ وائی، بلکه زړه کښې ئے کفر پروت دے نو د هغے په وجه الله تعالیٰ په دوی لعنت کړیدے نو د حق او د نبی خواته نهٔ راځی، د هغه خبرے پرے اثر نهٔ کوی۔

﴿ لَعَنَهُمُ اللّٰهُ بِكُفْرِهِمْ ﴾ یعنی دوی کافر دی، الله تعالیٰ پرے لعنت کړیدے ځکه دوی حق ته غوږ نهٔ اږدی نو په ملعون ځائے کښې به څنګه حق الله تعالیٰ کیدی۔ د دوی زړونه خراب شویدی، او ګنده لوښی کښې صفا شے راتلل مشکل دی، مګر هله چه دا لوښے اُوینځلے شی۔ نو چه د دوی د زړونو کفر او تکبر اُوځی او حق ته مائل شی نو الله تعالیٰ به پکښې حق واچوی۔

**فَقَلِيلًا مَّا يُؤْمِنُونَ** : کلمه د ما د تاکید د قلت دپاره ده۔ (۱) – (اَیْ قَلِيْلٌ مِنْهُمْ يُؤْمِنُوْنَ)

لږ خلق ایمان راوړی۔ نبی ﷺ د دوی حسد داسے ذکر کړیدے : (لَوْ آمَنَ بِيْ عَشَرَةٌ مِنَ الْيَهُوْدِ لَآمَنَ بِيَ الْيَهُوْدُ) (بخاری رقم ٤٣٤ ١) (٣٧٢٥) (که په ما باندے لس یهودیان ایمان راوړی نو ټول یهودیان به ایمان راوړی) لیکن په ټول دورِ نبوت کښې لسو کسانو هم ایمان نهٔ وو راوړے۔ دومره غټ ضدیان دی، اسلام سره ئے سمه ګلکه دشمنی ده۔

۲ –(قَلِيْلٌ اِيْمَانُهُمْ لِاَنَّهُمْ يُؤْمِنُوْنَ بِبَعْضِ الْكِتَابِ وَيَكْفُرُوْنَ بِبَعْضٍ)(یعنی لږے خبرے منی۔ بعض خبرے منی او بعضے نهٔ منی)۔ یعنی زړه کښې ئے ایمان نشته بلکه په زړه کښې ئے کفر دے د کفر د وجه نه حق نه اَوری، عنادګر دی۔

**وَلَمَّا جَآءَهُمْ كِتٰبٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ**

او هر کله چه راغے دوی ته کتاب (قرآن) د طرف د الله نه، تصدیق کونکے دے د هغه کتابونو چه د دوی سره دی

**وَكَانُوْا مِنْ قَبْلُ يَسْتَفْتِحُوْنَ عَلَى الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَلَمَّا**

او وو دوی مخکښې ددے (نبی یا قرآن) نه چه طلب د فتح به ئے کولو د الله نه په مقابله د کافرانو کښې۔نو هر کله

جَآءَهُمۡ مَّا عَرَفُوۡا كَفَرُوۡا بِهٖ فَلَعۡنَةُ اللّٰهِ عَلَى الۡكٰفِرِيۡنَ ﴿۸۹﴾

چه راغلو دوی ته هغهٔ شے چه دوی پیژندلو نو کفرئے اُوکړو په هغې سره پس لعنت د الله دے په (داسے) کافرانو باندے۔

**تفسیر** : ددے آیت نه (۹۱) پورے شپږم خطاب دے بنی اسرائیلو ته او په دے کښې (اِنۡكَارُهُمۡ مِنۡ هٰذَا النَّبِيِّ مَعَ اسۡتِفۡتَاحِهِمۡ بِهٖ) بیانوی (یعنی دوی ددے نبی (محمد رسول الله ﷺ) نه هم انکار کړیدے سره ددے نه چه اول کښې به ئے پرے طلب د مدد کولو)۔ نو دوی په ټولو زمانو کښې د رسولانو مقابله کړیده، مشران او کشران ئے پدے مقابله کښې برابر دی نو ګویا کښې د ټولو یهودو دا طبیعت او فطرت ثانی جوړ شویدے چه د انبیاء علیهم السلام نه به انکار کوی۔

او حاصل ئے دا دے چه د مخکنی کتابونو او صحیفو نه دوی ته ددے نبی علامات او پیشنګویانے معلومے وے۔نو دوی به ونیل چه د یو نبی زمانه رانزدے شوے ده که هغه راغلو نو مونږ به پرے ایمان راوړو۔ اجمالاً ئے منلو لیکن کله چه راغلو تفصیلاً نو اُوس ئے نهٔ منی، (او دا زمونږ ددے اُمت د مقلدینو طریقه هم ده، قرآن او حدیث اجمالاً منی، دا وائی چه قرآن منم او ټول احادیث منم، بخاری منم، لیکن ددے بخاری نه یو حدیث د کتاب الصلاة یا کتاب الزکوة نه ورته شروع کړه چه دا حدیث د بخاری یا مسلم شریف دے نو بیا منلو ته تیار نهٔ دی، بیا وائی دا زمونږ مذهب کښې نشته۔ بعض خلق داسے وائی چه د الله تعالیٰ او د رسول په طریقو کښې د دواړو جهانو کامیابی ده لیکن کله چه ورته د الله د رسول ﷺ یوه طریقه بیان کړے چه د هغه د مذهب خلاف وی یا ئے په پارټئ کښې خوك نهٔ کوی نو بیا وائی دا نوے طریقے دی، دا مشرانو نهٔ دی وئیلی۔ نو بیا ئے منلو ته تیار نهٔ وی۔ دا د یهودو صفت دے او بعینه په دے امت کښې هم راغلو۔ داسے مرض به انسان ځان کښې نهٔ پیدا کوی، ګنے تاوان کښې به واقع شی او د ځان خیر خواه به نهٔ وی، د چا به څه اُوکړی، ځان به تباه کړی !۔

**مُصَدِّق** : پدے لفظ سره د دوی په توبیخ او زورنه کښې زیاتوالے پیدا کول دی چه که دوی د دعوت محمدی نه اعراض کړے وے پدے وجه چه هغې باندے څه دلیل نهٔ وے نو بیا به د دوی د اعراض دپاره څه نا څه عذر وے، لیکن اُوس عذر نشته ځکه چه دوی د هغه کتاب نه

اعراض کړیدے او کفر ئے پرے کړیدے چه هغه د دوی سره د موجود کتاب تصدیق کوی۔
﴿وَكَانُوا﴾ پدے سره د دوی په توبیخ کښې دویم تاکید دے چه کوره دوی خو اول کښې غوختلو او چه راغلو نو بیائے ترے انکار اُوکړو د حسد او ضد په وجه نو دوی په اعراض کښې معذور نهٔ دی۔
**مِنْ قَبْلُ** : (اَیْ مِنْ قَبْلِ مَجِیْءِ هٰذَا الرَّسُوْلِ) (یعنی مخکښې د راتلو ددے رسول (محمد ﷺ) نه (۲) یا ضمیر قرآن ته راجع دے۔ (مِنْ قَبْلِ مَجِیْءِ هٰذَا الْكِتَابِ) (مخکښې د راتلو ددے کتاب نه چه قرآن دے) د کتاب راتلل بغیر د رسول نه نهٔ وی۔ نو که دلته هریو ته ضمیر راجع شی صحیح دے۔
**ترکیب** : وَلَمَّا جَآءَهُمْ شرط دے او جزاء ئے پټه ده (كَذَّبُوْا بِهٖ) (یعنی تکذیب ئے پرے اُوکړو) یا (اِسْتَهَانُوْا بِمَجِیْئِهٖ) (البحر المحیط) (د هغه د راتلو سپکاوے ئے اُوکړو) هغه ئے معمولی اُوګنړلو۔ او (وَكَانُوْا) جمله حالیه ده دپاره د زیات توبیخ د دوی۔ معنیٰ دا ده : (هرکله چه دوی ته کتاب راغلو نو دوی د هغه راتلل معمولی اُوګنړل او حال دا چه مخکښې ددے کتاب یا ددے رسول (ﷺ) نه دوی به طلب کولو مدد د الله تعالیٰ نه ددهٔ په راليږلو)۔
﴿يَسْتَفْتِحُوْنَ عَلَى الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ یعنی د دوی به د کافرانو مشرکانو سره جګړے راتلے نو الله تعالیٰ نه به ئے دعا غوختله چه اے الله! ته هغه پیغمبر راولیږه چه کوم په آخره زمانه کښې راځی چه مونږ ورسره ملګری شو، او دا کافران مشرکان قتل کړو ځکه چه هغه هم اهل کتاب دے، زمونږ ملګرے دے او مونږ هم اهل کتاب یو، دوی به دا ګمان کولو چه مونږ به د هغه ملګری یو، د الله تعالیٰ نه ئے دا نهٔ غوختله چه اے الله! مونږ د هغه اول تابعدار کړه، هسے نه چه امتحان راشی او بیا اُوتختو۔ او د الله تعالیٰ نه به ئے د کافرانو په مقابله کښې طلب د فتح کولو (کله چه به جنګ ورته سخت شو) چه اے الله! دا کافران ذلیل کړه او محمد رسول الله ﷺ راولیږه۔ لیکن هرکله چه الله تعالیٰ راولیږلو او دوی ښه اُوپیژندلو نو سره د پوهے نه ئے د حسد او ضد په وجه په هغه کفر اُوکړو چه دا ولے په عربو کښې راغلو۔ او زمونږ د نسل نه رانغلو۔
**يَسْتَفْتِحُوْنَ** : بیا پدے مقام کښې څو توجیهات دی۔ (۱) اول دا چه يَسْتَفْتِحُوْنَ په معنیٰ د يَفْتَحُوْنَ دے او سین او تاء پکښې د تاکید دپاره زیاتی شویدی لکه په اِسْتَعْصَمَ او اِسْتَصْرَخَ او اِسْتَعْجَبَ کښې چه زیات شویدی۔ او فتح علم او خبر ورکولو ته وئیلے شی لکه عرب وائی : (فَتَحَ عَلَى الْقَارِیْ) اَیْ عَلَّمَهُ الْآيَةَ الَّتِیْ يَنْسَاهَا) (هیر شوے آیت ئے ورته یاد

کړي) نو معنیٰ دا ده (كَانُوا يُخبِرُونَ الْمُشْرِكِيْنَ بِأَنَّ رَسُوْلاً سَيُبْعَثُ فَيُؤَيِّدُ الْمُؤْمِنِيْنَ وَيُعَاقِبُ الْمُشْرِكِيْنَ) (ابن عاشور) (دوی به مخکښې ددې رسول د راتللو نه مشرکانو عربو امیانو ته خبر ورکولو ددې نبي په باره کښې چه د يو نبي زمانه رانزدې شوې ده چه هغه به راوځي، زمونږ د خبرې تصديق به کوی، نو مونږ به د هغه په ملګرتيا کښې تاسو داسې وژنو لکه د عاد او ارم په شان. (خازن، مدارك، معالم التنزيل)

او ددې تائيد دا دې چه قتاده انصاري د خپلو اشياخو نه نقل کوي چه دا آيت زمونږ- د انصار او يهودو په باره کښې نازل شويدې. - کوم چه د انصارو ګاونډيان وو- دې فرمائي: مونږ انصار په جاهليت زمانه کښې په يهودو باندې څه موده غلبه حاصله کړې وه او مونږ اهل شرك وو، او دوی اهل کتاب وو، نو دوی به مونږ ته وئيل: (اِنَّ نَبِيًّا (مِنَ الْأَنْبِيَاءِ) يُبْعَثُ الْآنَ نَتَّبِعُهُ، قَدْ أَظَلَّ زَمَانُهُ نَقْتُلُكُمْ مَعَهُ قَتْلَ عَادٍ وَإِرَمَ) (د يو نبي د راليږلو زمانه رانزدې شويده، هغه چه راشي نو مونږ به د هغه په ملګرتيا کښې تاسو داسې وژنو لکه د عاد او ارم په شان) ليکن هرکله چه الله تعالیٰ خپل رسول د قريشو نه راوليږلو نو مونږ ئې تابعداري اُوکړه او دوی پرې کفر اُوکړو. نو الله تعالیٰ د دوی په باره کښې فرمائي: (فَلَمَّا جَاءَهُمْ مَا عَرَفُوا كَفَرُوا بِهِ) (ابن كثير)

(۲) دويم: إِسْتِفْتَاح په معنیٰ د طلب د فتح او نصرت دې. (يَسْتَنْصِرُوْنَ بِمَجِيْئِهِ عَلَى أَعْدَائِهِمْ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ إِذَا قَاتَلُوْهُمْ) يعنی دوی به د الله تعالیٰ نه مدد طلب کولو په راتللو ددې نبي په مقابله د مشرکانو کښې چه کله به ئې د هغوی سره جګړه راغله نو داسې دعاء به ئې کوله: (اَللّٰهُمَّ انْصُرْنَا عَلَيْهِمْ بِالنَّبِيِّ الْمَبْعُوْثِ فِيْ آخِرِ الزَّمَانِ، الَّذِيْ نَجِدُ صِفَتَهُ فِي التَّوْرَاةِ فَكَانُوْا يُنْصَرُوْنَ) (معالم التنزيل) (اې الله! مونږ سره ددې مشرکانو په مقابله کښې د آخري نبي په راليږلو مدد اُوکړه، د کوم صفات چه مونږ په تورات کښې مونده کوو، نو دوی سره به مدد کيدې شو). او په يو روايت کښې داسې الفاظ دي (اَللّٰهُمَّ ابْعَثْ هٰذَا النَّبِيَّ الَّذِيْ نَجِدُهُ مَكْتُوْبًا عِنْدَنَا حَتّٰى نُعَذِّبَ الْمُشْرِكِيْنَ وَنَقْتُلَهُمْ) (ابن كثير عن ابى العالية)

(اې الله! دغه نبي راوليږه کوم چه مونږ خپل کتاب کښې ليکلے شوې مونده کوو دې دپاره چه مشرکانو لره عذاب ورکړو او هغوی قتل کړو).

او ددې معنیٰ تائيد په حديث کښې دې: ابن عباس ﷺ فرمائي: يهودو به د اَوس او خزرج په مقابله کښې په رسول الله ﷺ باندې مدد طلب کولو د هغه د بعثت نه مخکښې، نو کله چه هغه لره الله تعالیٰ د عربو نه راوليږلو نو دوی په هغه باندې کفر اُوکړو او انکار ئې اُوکړو

د هغه خبرو نه چه دوی به د رسول الله ﷺ په باره کښې (عربو ته) وئیلے۔ نو دوی ته معاذ بن جبل او بشر بن براء بن معرور اخو بنی سلمه رضی الله عنهما اُووئیل:

(یَا مَعْشَرَ یَهُوْدَ! اِتَّقُوا اللّٰهَ، وَأَسْلِمُوْا، فَقَدْ کُنْتُمْ تَسْتَفْتِحُوْنَ عَلَیْنَا بِمُحَمَّدٍ ﷺ وَنَحْنُ أَهْلُ شِرْکٍ وَتُخْبِرُوْنَنَا بِأَنَّهٗ مَبْعُوْثٌ وَتَصِفُوْنَهٗ لَنَا بِصِفَتِهٖ) (اے د یهودو ډلے! د الله نه یره اُوکړئ او راشئ اسلام راوړئ ځکه چه تاسو به زمونږ په مقابله کښې په محمد ﷺ باندے په حالت د شرك زمونږ کښې مدد طلب کولو او مونږ ته به مو دا خبر راکولو چه نبی راتلونکے دے او دهٔ صفات به مو راته بیانول) نو سلام بن مِشْکم د بنی النضیر نه اُووئیل:

(مَا جَاءَنَا بِشَیْءٍ نَعْرِفُهٗ، وَمَا هُوَ بِالَّذِیْ کُنَّا نَذْکُرُ لَکُمْ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ فِیْ ذٰلِكَ مِنْ قَوْلِهِمْ وَلَمَّا جَاءَهُمْ کِتَابٌ الخ) (ابن کثیر)

(مونږ ته دهٔ داسے څه نهٔ دی راوړی چه مونږه ئے پیژنو او دا هغه رسول نهٔ دے کوم چه مونږ تاسو ته ذکر کولو۔ نو پدے باره کښې الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو ولما جاء هم کتاب الخ)۔

(۳) دے کښې مفسرینو دریمه معنیٰ داسے کړیده (یَسْتَخْبِرُوْنَ عَنْهُ ﷺ هَلْ وُلِدَ مَوْلُوْدٌ صِفَتُهٗ کَذَا وَکَذَا) نقله الراغب وغیره (روح المعانی)

(یعنی دوی به د امیانو کافرانو نه خبر طلب کولو په باره د رسول الله ﷺ کښې چه آیا داسے ماشوم پیدا شویدے چه داسے داسے صفت ئے وی)۔ نو عَلیٰ په معنیٰ د مِنْ دے۔

## د یهود ضد او تعصب

فَلَمَّا جَاءَهُمْ مَا عَرَفُوْا: دے کښې د دوی قباحت راښکاره کوی چه پس د پیژندلو نه ئے ددے رسول نه انکار اُوکړو، ګویا کښې په پخوانو کتابونو کښې د رسول الله قلمی صورت پروت وو چه چا به لیدلو نو انکار به ئے نهٔ کولو مګر د ضد د وجه نه۔ لکه اهل سیر واقعه لیکلے ده چه صفیه رضی الله عنها فرمائی: زه خپل پلار حُیَیّ بن اَخْطَب او ترهٔ (ابو یاسر بن اَخْطَب) ته په ټولو اولادو کښې ډیره ګرانه اُوم، کله چه به سفر نه راغلل نو زهٔ به ورتللم ما سره به ئے ډیره خوش طبعی کوله، کله چه رسول الله ﷺ د مکے نه هجرت اُوکړو او قباء ته راغلو او بنی عمرو بن عوف کښې اُوسیدلو نو زما پلار او تره سحر وختی په تیاره کښې د هغه خوا ته ورغلل او بیرته ماښام کښې پټ راغلل۔ او پداسے حال کښې (فَاتِرَیْنِ، کَسْلَانَیْنِ، سَاقِطَیْنِ) چه (سست، ستومانه پریوتی) وو او ستومانه را روان وو۔ نو زه د خپل عادت

مطابـق مخې له ورغلم نو زهٔ ئې اخوا کړم او هيڅ التفات ئې راته اُونکړو نو زما تره زما پلار ته اُووئيل : (اَهُوَ هُوَ ؟) (آيا دا همغه پيغمبر دے چه مونږ سره ئې وعده شويده) همغه اُووئيل : (نَعَمْ وَاللّٰهِ) (قسم په الله همغه نبي دے) زما تره اُووئيل : (أَتَعْرِفُهُ بِعَيْنِهٖ وَصِفَتِهٖ ؟) (آيا ته ئې شخص او صفاتو سره پيژنې؟) همغه اُووئيل : آؤ، قسم په الله. زما تره ورته اُووئيل : (فَمَا ذَا فِيْ نَفْسِكَ مِنْهُ ؟) (نو ستا په زړه کښې دهٔ په باره کښې څه خيال دے) ايمان به راوړے او که نهٔ ؟. نو حُيَي بد بخت اُووئيل : (عَدَاوَتُهٗ وَاللّٰهِ مَا بَقِيْتُ) (دلائل النبوة للبيهقي: ٤ /٣٥٤) وسيرة ابن هشام) (زما په زړه کښې دهٔ سره دشمني ده قسم په الله څو پورے چه زهٔ ژوندے يم)

دا همغه حسد وو چه سره د پيژندلو نه ئې انکار کولو او بيا په همدے حالت کښې په محاصره د بني قريظه کښې مردار شو. عبد الله بن سلام ﷺ به فرمايل : زهٔ په خپل بچي کښې شك کولے شم خو پدے نبي کښې ئې نشم کولے.

**كَفَرُوْا بِهٖ** : د همغه نه ئې انکار اُوکړو او د همغه نعت او صفت ئې بدل کړو پدے يره چه د دوي نه به د دنيا منافع او فائدے زائل شي. (۲) يا پدے وجه چه د دوي دا ګمان وو چه دا آخري نبي به په بني اسرائيلو کښې راځي څکه چه په دوي کښې ډير رسولان راغلي وو نو دوي به عوامو ته د همغه د دين ترغيب ورکولو خو هرکله چه په عربو کښې په اولادو د اسماعيل ﷺ کښې راغلو نو دوي باندے دا ګرانه شوه نو په حسد او عناد او ضد کښې راغلل نو تکذيب ئې شروع کړو. (ليکن دا وجه ضعيفه ده څکه دوي ته يقيني معلومه وه چه دا به د عربو نه وي) (۳) يا د دوي دا ګمان وو چه دا به خاص عربو ته راليږلے شوے وي، نو څکه ئې ترے انکار اُوکړو. (تفسير النيسابوري ١/٣٦٦) واللباب (١/٤٥٢)

**مَا عَرَفُوْا** : **فائده** : ددے آيت نه معلومه شوه چه حق پيژندل او په هغې باندے يقين کول چه آؤ دا دين حق دے، دا صرف ايمان نهٔ دے بلکه ايمان ديته وائي چه د حق پيژندلو سره سره به د هغې منل کوي او د هغې تابعداري به کوي. نو څکه ئې دوي ته کافران اُووئيل، په نفس معرفة او پوهه باندے ايمان نهٔ حاصليږي ورنه بيا خو د شيطان د ټولو نه زيات حق پيژندونکے دے، مګر د حق پيژندلو سره سره د هغې نه انکار کول په کفر کښې نور هم زيات سختوالے راولي. پدے وجه د دوي د کفر وجه په روستو آيت کښې عناد خودلے شويدے.

**فَلَعْنَةُ اللهِ** : دا د الله تعالیٰ د طرف نه شيرے دي او د الله تعالیٰ شيرے قبولے وي.

د لعنة معنیٰ ده (اَلْاِبْعَادُ عَنِ الْخَيْرَاتِ الْحَقِيْقِيَّةِ الْبَاقِيَةِ) (النيسابوري)

(یعنی د همیشه حقیقی ښیګړو او رحمتونو نه ورانده کیدو ته ویلے شی)۔
بعض علماء فرمائی : لعنت په حق د کفارو کښې : (اَلطَّرْدُ وَالْاِبْعَادُ عَنِ الرَّحْمَةِ وَالْكَرَامَةِ وَالْجَنَّةِ عَلَى الْإِطْلَاقِ) (مطلقاً د رحمة، عزت، او جنت نه شړل او ورانده کولو ته ویلے شی) او په حق د ګناهګارو مؤمنانو کښې : (اَلْاِبْعَادُ عَنِ الْكَرَامَةِ الَّتِيْ وُعِدَ بِهَا مَنْ لَايَكُوْنُ فِيْ ذٰلِكَ الذَّنْبِ) (د هغه عزت او کرامت نه ورانده کول کوم بانده چه وعده شویده هغه چا دپاره چه په دغه ګناه کښې نهٔ وی) لکه حدیث کښې دی : (مَنِ احْتَكَرَ فَهُوَ مَلْعُوْنٌ) (وَفِيْ رِوَايَةِ مُسْلِمٍ : مَنِ احْتَكَرَ فَهُوَ خَاطِئٌ)
نو دلته معنیٰ دا ده چه دا د درجے د ابرارو نه شړلے شویدے، نهٔ د رحمة د غفار نه۔
**فائدة عجیبة** : په شریعت کښې د لعنت تقاضا کونکی څیزونه درے دی (۱) کفر، (۲) بدعة (۳) فسق۔ او بیا په هر یو کښې درے مرتبے دی۔ (۱) اول لعنت په عام وصف بانده لکه (لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الْكَافِرِيْنَ وَالْمُبْتَدِعِيْنَ وَالْفَاسِقِيْنَ)
(۲) لعنت په وصف خاص سره د مخکښې نه لکه (لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الْيَهُوْدِ وَالنَّصَارىٰ) یا (عَلَى الْقَدَرِيَّةِ وَالْخَوَارِجِ، وَالرَّوَافِضِ اَوْ عَلَى الزُّنَاةِ وَالظَّلَمَةِ وَآكِلِ الرِّبَا) دا ټول جائز دی۔
(۳) دریم لعنت په شخص معین بانده لکه یو شخص وائی : زید لعنه الله۔ یا اُووائی چه دا فلانے فاسق یا بدعتی یا منافق دے۔ نو په دے کښې تفصیل دے۔ (۱) که د یو تن شرعاً کفر ثابت وی نو په هغه لعنت ویل جائز دی په دے شرط چه بل مسلمان ته په کښې ضرر نهٔ وی لکه (لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى فِرْعَوْنَ وَاَبِيْ جَهْلٍ) ځکه دا ثابته ده چه دا خلق په کفر کښې وفات شویدی۔ (۲) او که شرعاً د هغه کفر نهٔ وی ثابت لکه لعنت په زید او عمرو وغیره نو په دے کښې ډیر خطر دے ځکه چه د هغه د خاتمے حال نهٔ دے معلوم، ډیر کرته داسے کیدے شی چه کافر مسلمان شی یا توبه اُوباسی او الله تعالیٰ ته مقرب جوړ شی او بیا پرے مرګ راشی نو هغه بانده د ملعون کیدو حکم څنګه جائز کیدے شی۔ لکه مثلاً وحشی بن حرب ﷺ ته اُوګوره چه د رسول الله ﷺ تره حمزه ﷺ ئے شهید کړے وو لیکن بیا ئے اسلام قبول کړو او الله تعالیٰ ورته د جنت زیرے ورکړو۔
او هرچه نبی اکرم ﷺ دے نو هغه ته په وحی سره معلومه شوے وه چه دا فلانے فلانے به کفر کوی، په دے وجه هغه ابو جهل، عتبه بن ربیعه وغیرهم په لعنت سره خاص کړیدی۔ او دکوم کسانو په باره کښے چه نبی اکرم ﷺ ته معلومات نهٔ وو نو په هغوی

باندے د لعنت وئیلو نه الله تعالیٰ په ﴿لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ﴾ (العمران: ۱۲۸) آیت کښې منع اُوفرمائیله، دارنګه هر هغه شخص چه د هغه په کفر باندے مرکیدل مونږ ته معلوم شی نو د هغه ذم او په هغه لعنت وئیل جائز دی۔ خو شرط دا دے چه بل مسلمان ته د هغه په لعنت وئیلو کښې ضرر نهٔ وی لکه د یو مسلمان پلار کافر وی، نو په دغه شخص باندے لعنت وئیلو سره د هغه مسلمان خوئے ته ضرر رسیږی نو دا کار هم جائز نهٔ دے، لکه د سعید بن العاص په باره کښې ابو بکر صدیق رضی الله عنه اووئیل: هٰذَا قَبْرُ رَجُلٍ كَانَ عَاتِيًا عَلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ) .(دا د هغه سړی قبر دے چه د الله او د رسول نه سرکشه وو) نو د هغه خوئے عمرو بن سعید غصه شو، ابو بکر رضی الله عنه ته ئے اُووئیل: (هٰذَا قَبْرُ رَجُلٍ كَانَ أَطْعَمَ لِلطَّعَامِ وَأَضْرَبَ لِلْهَامِ مِنْ أَبِيْ قُحَافَةَ)۔ (دا د هغه سړی قبر دے چه د ابو قحافه نه خلقو ته ډیر طعام ورکونکے (سخی) وو او ډیرے کوپړئ وهونکے وو) نو ابو بکر صدیق رضی الله عنه نبی اکرم ﷺ ته ددے ګیله اُوکړه۔ نبی اکرم ﷺ عمرو بن سعید رضی الله عنه ته اُوفرمائیل: د ابو بکر نه قلارشه! او بیا ئے ابو بکر رضی الله عنه ته اُوفرمایل: (يَا أَبَا بَكْرٍ! إِذَا ذَكَرْتُمُ الْكُفَّارَ فَعَمِّمُوْا، فَإِنَّكُمْ إِذَا خَصَّصْتُمْ غَضِبَ الْأَبْنَاءُ لِلْآبَاءِ) (مراسیل ابی داود- تخریج احادیث الاحیاء)۔

(کله چه تاسو کافر ذکر کوئ نو عموم طریقے سره ئے ذکر کوئ ځکه که تاسو تخصیص اُوکړئ نو ځامن به د پلارانو دپاره غصه کیږی) نو خلق ددے کار نه بند شو۔

دارنګه بل شرط دا دے چه هغه (شخص معین) باندے په لعنت او بد رد وئیلو کښې به دینی فائده وی مثلاً دا چه هغه مبتدع کافر وی، چه د هغه د شر نه خلق ځان اُوساتی لکه هغه د شر کتابونه لیکلی وی، نو ته د هغه بدی بیان کړے ددے دپاره چه خلق د هغه د شر نه محفوظ شی .او په عامو ګناهګارانو باندے لعنت وئیل هم صحیح نهٔ دی لکه صحیح بخاری کښې دی چه یو شخص دعبد الله په نوم چه لقب ئے حمار وو نبی اکرم ﷺ به ئے کله نا کله خندولو هغه شراب وڅکل او هغه ته سزا ورکړے شوه، نو یوه ورځ راوستے شو او امر اُوکړے شو چه جلد (دُرے) ورته ورکړئ نو په ناستو خلقو کښې یو سړی اُووئیل: (اَللّٰهُمَّ الْعَنْهُ! مَا أَكْثَرَ مَا يُؤْتَىٰ بِهٖ) .(دا ګس دے الله تباه کړی هر وخت راوستلے شی د سزا دپاره)۔نبی اکرم ﷺ اُوفرمایل: (لَا تَلْعَنُوْهُ، فَوَاللّٰهِ مَا عَلِمْتُ إِلَّا أَنَّهُ يُحِبُّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ)۔

(په ده باندے لعنت مه وایئ ځکه ما ته دا معلوم دے چه د الله او رسول سره محبت ساتی)۔ بل روایت کښې دی (لَا تَكُوْنُوْا عَوْنَ الشَّيْطَانِ عَلَىٰ أَخِيْكُمْ) (د شیطان سره د خپل

ورور مسلمان په مقابله کښې مدد مه کوئ) نو په معین فاسق باندې لعنت وئیل جائز نشو، اوکه فاسق مړشوې وی، نو په هغه لعنت وئیل خو ډیر سخت دی، مګر کله چه دهغه د شرنه د حفاظت په نیت په هغه لعنت أووئیلې شي نو دا جواز لری۔ کذا فی تحفة الاحوذی (۱۳۸/۳) نقلاً عن الطیبی، واحیاء العلوم (۱۵۷۳/۳) وفتح المجید ص (۱۲۵)۔

**حاصل** : داچه په اشخاصو باندې په لعنت وئیلو کښې خطره ده، ځان ترینه ساتل ضروری دی، خصوصاً چه کله دهغه فسق اوبدعت اوکفر معلوم نهٔ وی۔

بله **فائده** : لعنت کله دې ته وائي (لعنة الله علی فلان) دویمه معنیٰ ښیرې او بد دعائي کول دی لکه فلانے ډې الله تعالیٰ هلاك کړی، جهنمی ډې شي وغیره وغیره۔

**فائده بدیعه** : په شریعت کښې لعنت په کومو کسانو اوخیزونو باندې وئیلې شویدې، یعني

## د لعنت اسباب څه دی ؟ یا ملعونین څوك دی ؟

نو دادیره لویه موضوع ده، مونږ دهغې نه بطور اختصار څه ذکر کوو

○ د ابن مسعود ﷺ په حدیث کښې دی : (قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ : آكِلُ الرِّبَا وَمُوْكِلُهُ، وَكَاتِبُهُ، وَشَاهِدَاهُ إِذَا عَلِمُوْا ذٰلِكَ، وَالْوَاشِمَةُ، وَالْمَوْشُوْمَةُ لِلْحُسْنِ وَلَاوِى الصَّدَقَةِ، وَالْمُرْتَدُّ أَعْرَابِيًّا بَعْدَ الْهِجْرَةِ : مَلْعُوْنُوْنَ عَلٰى لِسَانِ مُحَمَّدٍ ﷺ يَوْمَ الْقِيَامَةِ) اخرجه الحاكم فی المستدرك وکذا فی صحیح الجامع الصغیر رقم (٥/٦٤)۔ یعنی : (۱) سود خوړونکے لعنتی دے، د الله لوی دشمن دے، مونځ اوروژه او نور عبادات ئے نهٔ قبلیږی، اود هغه کس نه د سود خور ګناه زیاته ده چه پنځه دیرش کرته دخپلې مور سره زنا أوکړی کما فی الحدیث۔ (۲) د سود مال په بل چا باندې خوړونکے ملعون دے۔ (۳) سودی کاروبار لیکونکے (منشی) (سودی بینك منیجر)۔ (٤) سودی کاروبار باندې ګواهی کونکے۔

(۵) خالونه لګونکے، ښځه وی که سړې۔ (٦) هغه کس چه په هغه خال لګولے شي۔

(۷) زکوٰة اوفرض عُشر منع کونکے۔ (۸) هغه کس چه هجرت أوکړی دکافرانو نه او بیا لاړشي اوبانده اوکلی کښې أوسیږی، او واپس جهاد ته نهٔ ځی، او نهٔ د خپل ملك دآزادولو کوشش کوی، داسلام د قائمولو په نیت۔

○ بل حدیث دابن عباسؓ کښې راځی : قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ : أَتَانِيْ جِبْرِيْلُ فَقَالَ : يَامُحَمَّدُ، إِنَّ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ لَعَنَ الْخَمْرَ وَعَاصِرَهَا وَمُعْتَصِرَهَا وَشَارِبَهَا وَحَامِلَهَا وَالْمَحْمُوْلَةَ إِلَيْهِ

وَبَائِعَهَا، وَمُبْتَاعَهَا، وَسَاقِيَهَا، وَمُسْقِيَهَا) اخرجه احمد (۱/۳۱۶) والبیهقی فی شعب الایمان (۲/۱۵۰)۔ (۹) شرابو باندے لعنت راغلے دے، هر قسم شرابو له گوتے وروړل جائز نهٔ دي۔ (۱۰) انګور نچوړونکے په نیت دشرابو۔(۱۱) هغه څوك چه د انګور د نچوړولو غوښتنه کوی دپاره د شراب جوړولو۔(۱۲) شراب څکونکے۔(۱۳) شراب باړونکے۔

(۱٤) چاکره چه دا اوړلے شي۔ (۱۵) شراب خرڅونکے، دارنګه هر نشائي څیز خرڅونکے۔

(۱٦) شراب اخستونکے۔(۱۷) په بل باندے شراب څکوونکے۔

(۱۸) بل چاته د شرابو ځائے ورښودونکے۔ (۱۹) تصویر جوړونکے، (مشکوٰة (۱/٤۱۲))۔ (۲۰) دمصیبت په وخت خپل مخ وهونکے۔ (۲۱) ګریبان شلونکے۔

(۲۲) دهلاکت اوتباهۍ خیرے کونکے۔ (۲۳) رشوت ورکونکے۔

(۲٤) رشوت اخستونکے، کما فی حدیث احمد وصحیح الجامع الصغیر (۹۰۷)۔

(۲۵) الواصله : د بل په سرکښے بازاري ویښته لګونکے ښځه۔ (۲٦) اَلْمُتَوَصِّلَه : هغه ښځه چه د بل چانه غواړي چه زما سر کښے بازاري ویښته اُولګوه۔ (۲۷) نَامِصَه : هغه ښځه چه د مخ وروځو ویښته اُوباسی۔ (۲۸) اَلْمُتَنَمِّصَه : هغه ښځه چه بل چاته حکم کوی چه زما دمخ نه ویښته اُوباسه. (۲۹) اَلْمُتَفَلِّجَاتِ : هغه زنانه چه خپل غاښونه تراشی دپاره ددے چه کولاۀ شی، او ډولی شی۔(۳۰) هغه سړے چه د زنانو لباس اچوی۔

(۳۱) هغه زنانه چه د سړو لباس اچوی۔(۳۲) هغه زنانه چه ځان نه سړے جوړوی۔

(۳۳) لَعَنَ اللّٰهُ السَّارِقَ يَسْرِقُ الْبَيْضَةَ). (البخاری ومسلم) ۔غل سړے یا غله ښځه که لږ څیز غلا کوی که ډیر سبب دلعنت دے۔(۳٤) لَعَنَ اللّٰهُ الْمُحَلِّلَ وَالْمُحَلَّلَ لَهٗ (ابوداود، ترمذی، ابن ماجه، جامع الصغیر ۲/۹۰۷) محلل : هغه سړے چه په درے طلاقو سره طلاقه شوے ښځه بیرته داول خاوند دپاره د یوے شپے د نکاح په وجه حلالوی۔(۳۵) مُحَلَّل لَه : هغه خاوند چه ښځه په درے طلاقو سره طلاقه کړی او بیا خفه وی نو بل سړی ته ښځه دیوے شپے دپاره په نکاح کړی۔(۳٦) اَلْمُخْتَفِیْ : هغه سړے چه دمړو نه کفنونه پټوی۔(۳۷)- مُخْتَفِيَه : مړو نه کفن پټونکے ښځه۔ (۳۸) لَعَنَ اللّٰهُ الْيَهُوْدَ اِتَّخَذُوا قُبُوْرَ اَنْبِيَائِهِمْ مَسَاجِدَ (نسائی ومشکاة وتحذیر الساجد ص:۱۷)۔ قبرخوا کښے مسجدونه جوړونکے او قبر دمسجد په حصه کښے داخلونکے۔ (۳۹) حیله ګول په حکمونو د الله تعالیٰ کښے لکه بعضے خلق د زکوٰة د اسقاط دپاره حیله جوړوی۔ (٤۰) حرام خور۔

(٤١) هغه زنانه چه مقبرے ته ډیره ځی۔ زنانو دپاره مقبرے ته تلل جواز لری په شروطو باندے، یو دا چه ډیره به نه ځی، شرك به نکوی، خاص بابا له به نهٔ ځی، دول سنګار به نهٔ بنکاره کوی، جزع فزع به نکوی، په دے باره کښے پنځه احادیث صحیحه دی کما فی احکام الجنائز للشیخ الالبانیؒ۔(٤٢) مخ باندے داغ لګونکے۔رواه مسلم۔

(٤٣) صحابو باندے لعنت ویونکے۔ کما فی صحیح الجامع الصغیر: (٩٠٩/٢) والطبرانی (٤٤) لَعَنَ اللّٰهُ مَنْ لَعَنَ وَالِدَیْهِ)۔(مور پلار ته کنځل کونکے، بدرد ویونکے)۔(٤٥) لَعَنَ اللّٰهُ مَنْ ذَبَحَ لِغَیْرِ اللّٰهِ)۔ الله نه سیوا د بل دپاره ذبح کونکے۔(٤٦) لَعَنَ اللّٰهُ مَنْ آوٰی مُحْدِثًا) ۔مجرم او بدعتی ته پناهی ورکول۔(٤٧) لَعَنَ اللّٰهُ مَنْ غَیَّرَ مَنَارَ الْأَرْضِ ۔ یعنی پردئ زمکے وهل اوخپل حق کښے داخلول۔رواه مسلم،صحیح الجامع ٩٠٩)۔(٥٠) حیوان مُثله کول، غوږونه خپے ورله پریکړی، شکل ورله خراب کړی (بخاری)۔ عَنْ مُعَاذٍ مَرْفُوْعًا: اِتَّقُوا الْمَلَاعِنَ الثَّلٰثَةَ: اَلْبَرَازَ فِی الْمَوَارِدِ، وَقَارِعَةَ الطَّرِیْقِ، وَالظِّلِّ. رواه ابو داود، صحیح الجامع (٨٢/١).

(٥١) یعنی په ګودرونو یا په عامو لارو کښے یا په هغه سورو کښے چه خلق ورته کینی متیازے کول سبب دلعنت دے۔(٥٢) په ولاړو اُوبو کښے متیازے کول۔ کما فی صحیح الجامع (١٠٢٤/٢)۔ (٥٣) ښځے سره په دبر کښے جماع کول .(مَلْعُوْنٌ مَنْ اَتٰی امْرَأَةً فِیْ دُبُرِهَا (رواه احمد وابوداود) وفی المشکاة (٢٧٦/٢) صحیح الجامع (١٠٢٤٢/٢) ابن القیمؒ ددے عمل (٢١) نقصانات ذکر کړیدی۔ (٥٤) کتمان الحق (حق پټول) کما فی البقرة : ٥٥) ﴿ اِنَّ الَّذِیْنَ یَکْتُمُوْنَ مَا اَنْزَلْنَا مِنَ الْبَیِّنَاتِ وَالْهُدٰی مِنْ بَعْدِ مَا بَیَّنّٰهُ لِلنَّاسِ فِی الْکِتَابِ اُولٰٓئِكَ یَلْعَنُهُمُ اللّٰهُ وَیَلْعَنُهُمُ اللّٰعِنُوْنَ ﴾ ۔ ددے تهولو کارونو نه هر مسلمان له ځان ساتل ډیر ضروری دی چه د الله تعالیٰ د رحمة نه وړاندے نشی۔وبالله التوفیق۔

عَلَی الْکَافِرِیْنَ : دلته عَلَیْهِمْ پکار وو، لیکن د ضمیر په ځائے ئے اسم ظاهر راوړو؟ حکمة دا دے چه دا معلومه شی چه دوی باندے دا لعنت د کفر د وجه نه راغلے دے۔

## مسئله - توسل بالذات بدعت دے:

د یستفتحون نه بعض بدعتیانو غلطه فائده اخستے ده، چه توسل بالذوات الفاضله ثابتولو کوشش ئے کړیدے چه الله تعالیٰ ته انبیاء علیهم السلام او نیکان خلق په دعاګانو کښې پیش کول جائز دی چه اے الله ! ما له دا دعا قبوله کړه په وسیله د فلانی شخص، وائی

پدے آیت کښې راغلې ده ځکه چه په بعض روایاتو کښې داسے دی چه دوی باندے به چه کله د عرب مشرکانو سره جنګ سخت شو نو تورات به ئې بهر را اُويستلو او لاس به ئې په هغه ځائے باندے کیخودلو چه کوم ځائے به د نبی ﷺ نوم وو او دوی به وئیل : (اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْأَلُكَ بِحَقِّ نَبِيِّكَ الَّذِيْ وَعَدْتَنَا اَنْ تَبْعَثَهُ فِيْ آخِرِ الزَّمَانِ الخ) روح المعانی والقرطبی) او مخکښې روایت مونږ اُووئیلو : هغے کښې (بالنَّبِيِّ) لفظ دے نو وائی چه د دے دوارو الفاظونه توسل په ذات د نبی ﷺ باندے ثابت شو؟۔ **الجواب** : په نیکانو خلقو باندے د توسل دوه صورتونه دی (۱) یو دا چه یو نیک انسان یو مجلس ته راوستے شی چه کیدے شی الله تعالیٰ دده د برکت او تقویٰ په وجه په نورو رحم اُوکړی نو دا خیر دے۔ ځکه د متقیانو مجلس کښې خیر وی، او د نیک مجالسو برکت وی۔

(۲) دویم په دعاء کښې نیکان پیش کول چه اے الله ! زه تا نه دعا غوارم په وسیله د فلانی۔ نو دا قسم دعاء نهٔ په قرآن کښې شته او نهٔ په احادیثو کښې او نهٔ اقوال د صحابه کرامو کښې بلکه دا د مبتدعینو خود ساخته بدعت دے۔ د هیڅ یو نبی په دعاء کښې به تاسو دا چرته قرآن کریم کښې نهٔ وی لیدلی۔ او کوم احادیثو کښې چه داسے دعاء راغلے وی هغه ضعیف دی یا غیر صریح دی۔ او صحیح روایت پکښې د سیدنا عمر فاروق رضی الله عنه دے چه هغه به سیدنا عباس رضی الله عنه راوستو او استسقاء کښې به ئې پرے دعاء کوله او داسے به وئے وئیل : (اَللّٰهُمَّ اِنَّا كُنَّا نَتَوَسَّلُ اِلَيْكَ بِنَبِيِّنَا فَتَسْقِيْنَا وَاِنَّا نَتَوَسَّلُ اِلَيْكَ بِعَمِّ نَبِيِّنَا فَاسْقِنَا) (بخاری)۔ (اے الله مونږ به تا ته ستا د نبی دعا وسیله کوله تا به باران کولو نو اُوس د هغه تره تا ته وسیله کوو نو په مونږ باران اُوکړه) لیکن هغے کښې توسل په ذات باندے نشته، بلکه د هغه په دعاء باندے وسیله ده یعنی اے الله ! مخکښې به مونږ د نبی ﷺ دعاء تا ته وسیله کوله او تا به باران کولو او اُوس د نبی ﷺ د تره دعاء ده، نو دا توسل دے په دعاء د ژوندی سړی او دا خو بالکل جائز دے۔ بلکه دا رد دے په توسل بالذات باندے ځکه که وسیله په یو ذات باندے جائز وے نو بیا ئې د نبی ﷺ ذات ولے نهٔ وسیله کولو چه هغه د عباس رضی الله عنه نه ډیر غوره دے، نو د عباس رضی الله عنه د راوستو مقصد بیا څه وو۔

دارنګه کله استدلال کوی په حدیث د ضریر البصر باندے چه نبی ﷺ ته ئې وئیلی وو : ما له دعا اُوغواړه نو نبی ﷺ اُویه راطلب کړے او اودس نه بعد ئې دعا اُوکړه نو دے ړوند اُووئیل : (اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ بِنَبِيِّكَ مُحَمَّدٍ ﷺ نَبِيِّ الرَّحْمَةِ اَللّٰهُمَّ فَشَفِّعْهُ فِيَّ) نو دا حدیث

صحیح دے لیکن پدے کښې وسیله ده په دعاء د ژوندی انسان چه زهٔ تا ته اُووایم چه ما له دعا اُوغواړه او بیا الله تعالیٰ ته اُووایم چه اے الله ! دا فلانے چه ما له کومه دعا غواړی ته ئے زما په باره کښې قبوله کړے. نو دا بالکل جائز عمل دے او پدے کښې توسل بالذات نشته. بلکه مسلمان دپاره دعا غوختل دی.

او هرچه ددے آیت نه دلیل نیول دی نو د هغے نه جواب دا دے چه دلته مفسرینو کښې (بِحَقِّ النَّبِيِّ) لفظ هیچا نهٔ دے وئیلے سوا د سُدی نه او سدی کذاب او ضعیف راوی دے. عام مفسرین داسے الفاظ وائی : لکه د ابن عباس ﷺ نه ابن کثیرؒ روایت نقل کړیدے (يَسْتَفْتِحُوْنَ بِخُرُوْجِ النَّبِيِّ) او (بِمَجِيْءِ النَّبِيِّ) (یعنی د نبی ﷺ په راوتلو او راتلو باندے به ئے د الله تعالیٰ نه مدد طلب کولو) لکه د هغه روایاتو تفصیلی بیان مخکښې اُوشو. نو دا توسل دے په بعثت او راتللو او د هغه په تابعداری کولو.

(۲) دویم جواب دا دے چه دا عمل د یهودیانو دے او الله تعالیٰ خودا په طریقه د مدح سره نهٔ دے ذکر کړے بلکه صرف خبر ورکول دی چه دوی به داسے کول. (۳) دارنګه دا تفسیر متعین هم نهٔ دے بلکه مفسرینو د استفتاح نورے معانی هم ذکر کړیدی کما مرّ.

(٤) دارنګه که بالفرض دا توسل بالذات شی نو دا دعا قبوله شوے هم نهٔ ده.

او فقهاء احنافو هم ددے دعاء تردید کړیدے او دیته ئے مکروه وئیلی دی. هدایه کتاب الکراهیة (٤/٤٧٤) کښې دی : (يُكْرَهُ أَنْ يَقُوْلَ الرَّجُلُ أَسْئَلُكَ بِحَقِّ فُلَانٍ لِأَنَّهُ لَا حَقَّ لِلْمَخْلُوْقِ عَلَى الْخَالِقِ) (دا مکروه ده چه سړے اُووائی : اے الله زهٔ تا نه د فلانی په حق سره سوال کوم ځکه چه د مخلوق هیڅ حق په خالق نشته). نور تفصیل د توسل په سورة المائده کښې راځی ان شاء الله تعالیٰ او الدین الخالص او حقیقة التوسل لابن تیمیةؒ او البانیؒ اُوګوره.

| |
|---|
| بِئْسَمَا اشْتَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ اَنْ يَّكْفُرُوْا بِمَآ اَنْزَلَ |
| بد دے هغه شے چه دوی خرڅ کړل په هغے سره ځانونه خپل چه کفر کوی دوی په هغه کتاب چه نازل کړیدے |
| اللّٰهُ بَغْيًا اَنْ يُّنَزِّلَ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ |
| الله تعالیٰ د وجه د کینی (او د حسد) نه چه نازلوی الله د خپلے مهربانئ نه په هغهٔ چا چه غواړی ئے د خپلو بندګانو نه. |

فَبَآءُوْا بِغَضَبٍ عَلٰى غَضَبٍ وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿۹۰﴾

پس اخته شول دوی په غضب دپاسه د بل غضب نه او خاص کافرانو لره عذاب ذلیله کونکے دے۔

**تفسیر** : په دے آیت کښې زجر او تخویف اُخروي دے دوی ته په ضد او حسد د دوی او دا تتمه ده د مخکنو خطاباتو۔

**ربط** : دا د مخکښې دپاره په طریقه د علت دے او هغه داسے چه دوی دا کفر پس د معرفت نه ولے کوی ؟ نو ددے وجه دا ده چه دوی یو دکان جوړ کړیدے او پدے کښې ئے حسد او عناد او بغاوت ایخوستے دے او ځان ئے پرے خرڅ کړیدے نو چه چرته حق راتلو او الله تعالیٰ په چا بانددے انعام کولو او پوهه د دین ئے ورکوله او نبی ئے جوړولو نو دوی به حسد او ضد لاس کښې راخلی او د هغے مقابله به پرے کوی۔ چه ولے الله تعالیٰ په مونږ تول فضل نهٔ کوی او بل له ئے ورکوی نو دا د الله تعالیٰ سره ضد کوی۔

بِئْسَمَا اشْتَرَوْا : اشتراء په معنیٰ د بیع (خرڅولو) سره دے۔ د خرڅولو معنیٰ دا ده چه کوم ځائے کښې کفر وی بس هغه قبلوی او اخلی ئے لکه یو سړے په یو شی باندے ځان ورخرڅ کړی بس د هغے نه تاوېږی راتاوېږی، هغه ورته مرغوب او محبوب وی نو دوی ته هم دا کفر بما انزل الله محبوب گرځیدلے دے، نو چه چرته کفر وی نو د دوی به ورسره کار وی۔

مَا : موصوله ده، مبهم دے او ان یکفروا بما انزل الله د هغے مخصوص بالذم دے۔ او بیان د ما دے۔ یعنی بد دے هغه شے چه دوی پرے ځان خرڅ کړیدے او هغه شے دا دے چه الله تعالیٰ د بره نه کوم کتاب رالیږلے دے بس دوی په دے ځان خرڅ کړیدے چه دا به نهٔ منو او کوم ځائے کښې چه حق وی د هغے منلو ته تیار نهٔ یو۔ یعنی کفر بما انزل الله باندے ئے ځانونه خرڅ کړیدی۔

دا ولے ؟ ځکه ضد او حسد کوی۔ حسد ولے کوی ؟ ځکه چه پدے قهر ورغلی دے چه الله ولے دا خپل فضل چه قرآن دے او وحی ده په بعض بندگانو کوی او په ما باندے ئے نهٔ کوی نو دوی د هغه سره کینه او بُغض ساتی، او د هغه حق نهٔ منی، او دا ډیر لوئی حسد دے۔ یهود په کینه کښې راغلل چه دا وحی ولے په دے عربو کښې راغله او زمونږ نه نقل شوه۔ دغه شان خبره حیی بن اخطب (د یهودیانو مشر) هم کړے وه چه ښه راته پته ده چه دا حق رسول دے۔ خو نهٔ ئے منم۔ او ډیر اهل الباطل هم دغه شان دی چه وائی ښه راته معلومه ده چه فلانی عالم سره حق دے

خو مونږه ئې اُوس نشو منلے او آخرت کښې به ورسره بيا راکاړو۔ والله المستعان۔
بَغْيًا : بغي اصل کښې طلب ته وئيلے شي او بيا په معنیٰ د ظلم استعماليږي ځکه په ظلم کښې طلب د زياتي وي۔ دلته ترې علو طلبي، او حسد او ضد مراد دے او دا علت دے د کفر دپاره يعني دا کفر په ما انزل الله ولے کوي؟ ځکه چه ضد او حسد کوي ددے سره چه الله تعالیٰ خپل فضل ولے په بعض بندگانو کوي يعني دے رسول ته ئې ولے نبوت ورکړو او دا په مونږ کښې ولے رانغلو۔ او دا بغي او حسد ددے امت خلقو ته خاصکر علماؤ ته رانقل شويدے۔ (لَتَتَّبِعُنَّ سُنَنَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ)
**فائده** : حسد ته ئې ظلم اُووئيلو ځکه چه ظلم هغه معاملے ته وئيلے شي چه په ناحقه وي او حسد تمني کول دي د زوال د نعمت د محسود نه او پدے کښې د حاسد حق نشته ځکه چه د هغه نعمت په زائله کيدو کښې دۀ ته ځه فائده نۀ حاصليږي او نۀ د هغے په بقاء کښې ځه ضرر۔ دے باره کښې متنبي ځه ښه خبره کړيده :

وَأَظْلَمُ خَلْقِ اللّٰهِ مَنْ بَاتَ حَاسِدًا لِمَنْ بَاتَ فِيْ نَعْمَائِهِ يَتَقَلَّبُ

(د الله تعالیٰ په مخلوق کښې غټ ظالم هغه څوك دے چه د هغه چا سره حسد کوي چه د هغه په نعمتونو کښې اوړي راوړي) نو يهود د ما انزل الله سره حسد کوي۔ او پدے حسد کوي چه زمونږ نه نبوت ولے عربو ته نقل شو۔
نو په دے کار باندے په دوي ځه اُوشو ؟ الله تعالیٰ فرمائي :
﴿ فَبَاءُوْا ﴾ : په معنی د (رَجَعُوْا) دے (يعني واپس شو) او پدے کښې تشبيه تمثيلي ده، د دوي حال ئې مشابه کړيدے د هغه تاجر سره چه خپله مبيعه ئې بهر وستلې وي د تجارت دپاره نو خساره ورته اُورسيږي او خپل کور ته تاواني راواپس شي۔
**بِغَضَبٍ عَلٰى غَضَبٍ** : يعني الله تعالیٰ پرے بار بار غضبونه اُوکړل۔ ظاهر دا ده چه ددے نه مراد سخت غضب دے لکه د نور علي نور (النور : ٣٥) په شان۔ او ددے نور مصداقات دا دي :

## د غضب علي الغضب مصداق

بيا ددے دواړو غضبونو مصداق ځه دے ؟ (١) نو اول غضب په سبب د حسد دوي دے۔او دويم غضب په سبب د کفر د دوي دے۔
(٢) اول غضب پدے وجه وو چه کفر ئې په عيسیٰ عليه السلام اُوکړو او دويم غضب پدے چه کفر ئې په

محمد ﷺ اُوكړو۔ (عكرمة) (۳) اول غضب په دے وجه چه عبادت د سخئ ئے كړے وو او دویم غضب پدے وجه چه د خالي په ورځ ئے د ماهيانو ښكار حلال ګڼړلے وو۔(بحر العلوم) (القرطبی)۔

(٤) – د ابن عباس ﷺ نه نقل دی چه اول غضب په سبب د تبديل او تضيع (ضائع كولو) د تورات دے او دويم غضب په سبب د كفر دے په محمد ﷺ باندے۔ (البغوی)

(٥) – قتادة وائى: اول غضب په كفر كولو په عيسىٰ او انجيل دے او دويم غضب په سبب د كفر په محمد ﷺ او قرآن دے۔ (بغوی)

(٦) – بعض وائى: په دوه معصيتونو دوه غضبونه نهٔ دی مراد، بلكه تاكيد او په دوی باندے شدتِ حال راتلل غرض دے۔ ځكه چه دوی هميشه د رسولانو تكذيب كړيدے نو هميشه پرے غضب راغلے دے۔ وهو الظاهر۔

﴿ وَلِلْكَافِرِيْنَ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴾ دوی خان عزت مند ګڼړی او نبوت خان پورے خاص كوی خو الله تعالىٰ به ئے ذليله كړی په دے عذاب باندے۔ مهين: معنى ده: ذليله كونكے، سپكونكے عذاب۔ او دا د كافرانو عذاب وی۔ او پدے يهودو كښ چونكه استكبار وو ځكه ئے دغه جرائم كول نو ځكه ورته سپك كونكے عذاب وركوی۔

**فائده**: عذاب مهين د كفارو او عذاب تاديبى د مؤمنانو وی۔

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ اٰمِنُوْا بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ قَالُوْا نُؤْمِنُ

او كله چه اووئيلے شي دوی ته ايمان راوړئ په هغه كتاب چه رانازل كړيدے الله، دوی وائی: مونږ ايمان لرو

بِمَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا وَيَكْفُرُوْنَ بِمَا وَرَآءَهٗ

په هغه كتاب چه نازل شوے دے په مونږ باندے او دوی كفر كوی په هغه څه چه ماسوئ دی ددهٔ نه

وَهُوَ الْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَهُمْ قُلْ

او حال دا چه هغه حق دے، تصديق كونكے دے د هغه كتابونو چه د دوی سره دی، تهٔ ورته اُووايه:

فَلِمَ تَقْتُلُوْنَ اَنْبِيَآءَ اللّٰهِ مِنْ قَبْلُ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۹۱﴾

نو تاسو ولے وژل انبیاء د الله تعالیٰ مخکښې ددے نه که چرته تاسو ایمان راوړونکی یئ۔ (په خپل تورات)

**تفسیر** : په دے آیت کښې دویم زجر دے په طریقه د مناظره سره او د دوی حسد پکښې ذکر دے، یعنی کله چه د مدینے یهودیانو ته اُووئیلے شی چه الله تعالیٰ په محمد ﷺ باندے کوم کتاب نازل کړیدے، پدے باندے ایمان راوړئ نو دوی وائی چه مونږ خو صرف په تورات ایمان راوړو یعنی د قرآن کریم نه انکار کوی، کوم چه د تورات تصدیق کوی۔ او حق کتاب دے۔ دے نه بعد الله تعالیٰ د هغوی په قول او عمل کښې تضاد او تباین بیان کړو چه که تاسو او ستاسو آباء واجداد په خپله دعویٰ کښې رشتینی یئ؛ چه تاسو په تورات ایمان راوړیدے نو بیا تاسو انبیاء علیهم السلام ولے قتل کول کوم انبیاء چه د تورات د احکامو د نافذ کولو دپاره رالیږلے شوی وو؟ او د تورات تصدیق ئے کولو؟ حقیقت دا دے چه تاسو د خپل نفس غلامان یئ؛ او صرف خواهش پرست یئ۔ او په تورات باندے د ایمان دعویٰ مو غلطه ده۔

**مناسبة** :(۱) دا بیان د حسد الیهود دے، (۲) مخکښې قانون چه بِئْسَمَا اشْتَرَوْا دے او دلته بیان المثال دے یعني د دغه قانون یوه جزئیه ده۔

﴿قَالُوْا نُؤْمِنُ بِمَا اُنْزِلَ عَلَيْنَا﴾ صرف مونږ خپل کتاب منو نور کتابونه نشو منلے، او دا صفت بعینه ددے امت په مقلدینو کښې پروت دے چه دوی ته کله اُووئیلے شی چه راځئ امام شافعیؒ، مالكؒ، احمدؒ، ابو حنیفهؒ ددے تولو احادیث به منو، دا تول زمونږ د دین حدیث دی که بخاری کښې دی او که مسلم کښې او که نورو کتابونو کښې، دا تول منل پکار دی، کوم چه صحیح ثابت وی نو هغوی وائی مونږ به د خپل مذهب والا احادیث منو او چه کوم د امام شافعیؒ، مالكؒ، او احمدؒ احادیث دی د هغے به تاویل کوو یا به ئے منسوخ کوو یا به ئے په هغه زمانه پورے خاص کوو۔ نو په څلورو مذاهبو کښې صرف هغه احادیث منی چه صرف امام صاحب راوړی وی، هغه نورو روایتونو منلو ته تیار نهٔ دی، او دے خبره باندے هر سړی له یواځے سوچ پکار دے چه آیا دوی ګنے دا کار نهٔ کوی؟۔ احادیث الخصوم راوړی او بیا د هغے نه جوابونه کوی۔

**نُؤْمِنُ بِمَا** : دا قول دوی په طریقه د عذر او ځان قلارولو سره وئیلو ځکه چه هرکله دوی

تـه د ايمان په ما انزل الله دعوت ورکړے شو نو دوی ته پته اُولګيده که مونږ خالصه امتناع اُوکړو (ځان منع کړو) نو دا خو په مونږ باندے يو پيغور او قباحت دے نو دوی د خپل ځان د عذر او د خپل ځان د رضا کولو دپاره داسے اُووئيل: (نُؤۡمِنُ بِمَاۤ اُنۡزِلَ عَلَيۡنَا) يعنی په ما انزل الله باندے مونږ هم ايمان راوړيدے او هغه مونږ ته حاصل شويدے کله چه مونږ په خپلو کتابونو ايمان راوړو، لهذا په ما انزل باندے ايمان مونږ ندے پريخے. ددے وجه نه ئے حکايت په لفظ د مضارع سره اُوکړو اشاره ده چه دوی وائی مونږ په ايمان بِمَاۤ اُنۡزِلَ عَلَيۡنَا باندے هميشه يو، او پدے کښ تعريض دے چه دوی نور کتابونو منلو ته تيار نهٔ دی. بس دغه زمونږ د نجات دپاره کافی دے.

وَيَكۡفُرُوۡنَ بِمَا وَرَآءَهٗ : وَرَآءَ د اضدادو نه دے کله په معنیٰ د روستو سره وی او کله په معنیٰ د مخکښ سره وی لکه سورة الکهف (۷۹) او سورة الدهر (۲۷) کښ دا معانی ذکر دی. او فراء بغوی ددے تفسير په سِوَیٰ سره ذکر کړيدے. او دا په سورة المؤمنون (۷) او سورة المعارج (۳۱) کښ استعمال دے.

**فائده** : حافظ ابن القيّمؒ په بدائع التفسير کښ ليکلی دی چه دا آيت دليل دے چه څوك په يو حق باندے ايمان راوړی او په بل حق باندے د تعصب د وجے ايمان نهٔ لری نو دا کافر دے. او معلومه شوه چه په دے زمانه کښ ډير خلق داسے دی چه دعویٰ د ايمان کوی او حال دا چه د ايمان نه بری دی. ولا حول ولا قوة الا بالله.

وَهُوَ الۡحَقُّ : دا دفع د وهم ده چه دوی په ماوراء (ماسوا) کتابونو باندے پدے وجه کفر کوی چه هغه به باطل وی ؟ نو جواب اُوشو چه هغه هم حق دی، خو دوی ئے نهٔ منی.

﴿ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَهُمۡ ﴾ بيا ورسره تصديق هم د دوی د کتابونو کوی لکه قرآن کريم تصديق د تورات او انجيل کوی، نو هرکله چه دوی د قرآن تکذيب اُوکړو نو داسے شوه لکه چه د خپل کتاب تکذيب ئے اُوکړو.

**قُلۡ** : پدے کښ اُوس الزامی رد کوی په هغوی باندے او د هغوی نه په طريقه د مناظره تپوس کوی: هغه داسے چه بنه زهٔ تا نه تپوس کوم چه ته وائی زه خپل کتاب منم، د خپل مذهب تابعداريم نو په خپل مذهب کښ ډے راګيروم آيا تورات کښ دا شته چه پيغمبران قتل کړئ، تاسو پيغمبران ولے وژنئ؟ دارنګه مقلدينو ته وايو چه تاسو د امام ابوحنيفةؒ مذهب هم نهٔ منئ؛ ځکه چه آيا هغه دا نهٔ دی وئيلی : (إِذَا صَحَّ الۡحَدِيۡثُ فَهُوَ

مَذْهَبِیْ) (رد المحتار ١/٦٣) رسم المفتی (٤/٢) فتاوی دیوبند) (١/٦٥) ایقاظ همم اولی الابصارص (٦٢) (کله چه حدیث صحیح ثابت شی نو دا به زما مذهب وی) نو په هر صحیح حدیث باندې عمل کوه، دا د امام ابو حنیفهؒ مذهب دې نو بل پکښې څه راویاسې؟۔ نو دا خلق د خپل خواهش تابع دی۔

فَلِمَ تَقْتُلُوْنَ : دا جزاء ده او روستو ان کنتم ئې شرط دې۔

﴿اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ﴾ (اَیْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ بِكِتَابِكُمْ فَلِمَ تَقْتُلُوْنَ) (که تاسو ایمان لرئ په خپل کتاب نو بیا تاسو رسولان ولې وژلی دی)، که تاسو دا دعوه کوئ چه مونږ خپل کتاب منو نو دا انبیاء مو بیا ولې وژل؟ دروغ وایئ، نه خپل کتاب منئ او نه د بل کتاب منئ او دا د عنادگرو کار دې چه نه پوره خپله منی او نه د بل، خپل مذهب ئې هم صحیح نه وی رانیولې، بلکه هغې کښې د خپل خواهش خبرو باندې عمل کوی۔

بیا خطاب اگرکه د مدینې حاضرین یهودیانو سره وو لیکن مراد د دوی نه د دوی اسلاف او مشران دی، یعنی ستاسو مشرانو ولې انبیاء علیهم السلام وژلی دی؟ - لیکن هرکله چه دوی د خپلو اسلافو پدې کار راضی وو نو د هغوی په شان شو۔ او دوی ته نسبت ددې قتلولو اُوشو، ځکه دوی هم د مشرانو په طریقه روان وو په تکذیب د رسولانو او په دشمنئ د هغوی کښې۔ دارنګه دې حاضرینو هم د رسول الله ﷺ د قتل ارادې کړې وې۔ پدې وجه ئې (تَقْتُلُوْنَ) صیغه د مضارع راوړه۔

نو د آیت نه معلومه شوه چه یهود نه په تورات ایمان لری او نه په قرآن کریم باندې او د دوی په خپل کتاب باندې دعویٰ د ایمان بالکل بې بنیاده ده۔

## د یهودو د ایمان د دعوې نور تردید

وَلَقَدْ جَآءَكُمْ مُّوْسٰى بِالْبَيِّنٰتِ ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ

او یقیناً راغلې وو تاسو ته موسیٰ (علیه السلام) په ښکاره دلیلونو (او احکامو) بیا تاسو اُونیولو سخې (په معبود جوړلو سره)

مِنْۢ بَعْدِهٖ وَاَنْتُمْ ظٰلِمُوْنَ ﴿٩٢﴾

پس (د تګ) د موسیٰ (علیه السلام) نه (کوهِ طور ته) او تاسو ظلم کونکی وئ (په شرك کولو سره)۔

**تفسیر** : دے آیت کښې اُووم خطاب دے او د هغے تتمه ئے ذکر کړیده په مباهله سره په آیت (۹٦) کښې ۔ او په دے آیت کښې مخکنی مضامین بیرته واپس کوی د نورو مقاصدو دپاره، مخکښې دا مضمون الله تعالیٰ بیان کړے وو د نعمت دپاره چه ګوره تاسو سخے په خدائیتوب نیولے وو، الله تعالیٰ درله توبه قبوله کړه نو شکر اُوباسئ، او دلته ئے د خباثت دپاره ذکر کوی چه ګوره تاسو د سخی عبادت کړے، تاسو څنګه د الله تعالیٰ دوستان کیدے شئ، تاسو هغه خلق یئ چه الله تعالیٰ درته وئیلی وو، تورات باندے عمل اُوکړئ او تاسو وئیلی وو: نهٔ ئے منو۔ د (لَانُسَلِّمُ) په غنډئ ولاړ یئ او وایئ چه مونږ ښه خلق یو، عجیبه ده !!۔او پدے کښې ترقی ده په نسبت د ماقبل۔ یعنی د هغوی د ایمان د دعوے نور تردید کوی پدے طریقه چه دوی ته د ابتدائی تاریخ واقعه د عبادت د سخی یادوی او د هغوی قباحت ذکر کوی چه تاسو خو د خپل ایمان او دینداریٔ دعوے کوئ چه نهٔ د قرآن کریم منلو ته تیاریئ او نهٔ د نبی آخر الزمان منلو ته، حالانکه ستاسو موجوده وخت پریدئ، ابتدائی تاریخ ته نظر واچوئ چه تاسو د موسی ﷺ په موجودګیٔ کښې د هغه واضحه معجزات لیدلی وو او بیا هم تاسو د عظیم ذات عبادت پریخودے وو او د یو مخلوق سخی عبادت مو شروع کړے وو۔ دا ستاسو عقلونه دی۔ ؟!۔

نو اُوس دوی الله تعالیٰ راګیر کړیدی او الله رب العالمین چه د چا په مقابله کښې راشی نو هیڅوك ئے ترے نشی خلاصولے، دوی داسے عظیم سیلاب راختستی دی چه هغه د قرآن سیلاب دے ۔ ددے وجه نه په یهودو باندے سورة البقره ډیره بده لګی۔ که په دے سورت انسان سم پوهه شی نو دے کښې د یهودیانو ټول مرضونه ئے رابښکاره کړیدی خو چه انسان دا آیتونه بار بار په تدبر سره لولی نو بیا په مقصد باندے ښه پوهیږی۔

**ربط او مناسبة** : مخکښې آیت کښې الله تعالیٰ د یهودو په کذب بیانی باندے دلیل قائم کړو چه دروغ وائی او پدے آیت کښې دا بیانیږی چه الله تعالیٰ د هغوی نه په توحید باندے د مضبوط اُوسیدو او د شرك نه په جدا کیدو باندے وعده اخستے وه لیکن کله چه موسیٰ ﷺ د خپل رب سره د مناجات (سرګوشیٔ) دپاره د طور غر ته لاړو نو دوی د سخی عبادت شروع کړو او توحید او هغه لوظ ئے هیر کړو۔

(بِالْبَيِّنَاتِ) ددے نه مراد (۱) هغه نهه معجزات وو کوم چه په سورة الاسراء (۱۰۱) کښې ذکر دی (وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى تِسْعَ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ) او د هغے تفصیل په سورة الاعراف (۱۳۳)

کښې ذکر دے (فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الطُّوفَانَ وَالْجَرَادَ الخ) او دا هغه نخے او دلائل وو چه موسی علیه السلام دوی ته د خپل نبی او رسول کیدو د ثبوت په طور پیش کړے وو لکه طوفان، ملخان، سپږے، چندخان، وینه، امسا، ید بیضاء (سپین لاس) په سمندر کښې لاره، د کاڼړی نه د چینو روانیدل او من او سلویٰ وغیره۔ دا ښه ښکاره دلائل ئے ورته پیش کړی وو۔

(۲) یا ددے نه مراد تورات دے۔ ظاهر دا ده چه دغه دلائل عقلیه او معجزات او بیانات د موسیٰ علیه السلام مراد دی۔ او تورات خو روستو نازل شوے وو د سخی د عبادت نه، لیکن کوم کسان چه بعد النزول مشرکان وو نو بیا تورات هم بینات کښې داخل دے۔

﴿ ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ مِنْ بَعْدِهِ ﴾ یعنی کوره چه سړی ته ښکاره دلائل هم بیان شی او بیا ئے هم نهٔ منی او د سخی عبادت کوی او پس د دلیل نه شرك کوی نو دا څومره لوئی جاهل دے؟۔ اِتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ اَیْ اِلٰهًا) (سخے مو په الوهیت اُونیولو)

﴿ وَأَنْتُمْ ظَالِمُونَ ﴾۔ ظلم وضع د شی ده په غیر موضع خپل کښې او معنیٰ ئے ده حق تلفی نو شرك هم د الله تعالیٰ حق مخلوق ته ورکول دی۔ او د الله تعالیٰ حق تلف کول دی۔ تفسیر معالم معنیٰ کوی : (وَأَنْتُمْ ضَارُّوْنَ لِأَنْفُسِكُمْ بِالْمَعْصِيَةِ وَاضِعُوْنَ الْعِبَادَةَ فِيْ غَيْرِ مَوْضِعِهَا) (یعنی تاسو ځانونو ته په ګناه باندے ضرر ورکړو، ایخودونکے وئ عبادت لره په غیر د خپل ځائے کښې) او بیا هم وایئ چه مونږ د الله تعالیٰ دوستان یو او مونږ پسے راځئ او هدایت لاره زمونږ سره ده۔

**فائده :** د یهودو په داسے قسم فخر باندے بعض مخکنو انبیاء علیهم السلام هم دوی ته توبیخ او زورنه ورکړے وه او د سخی عبادت ته تعریض کولو سره ئے داسے فرمایلی وو : «اے اسرائیل (بنی اسرائیل) تهٔ خو هغه ئے چه تا په اوله شپه کښې بے وفائی کړیده»۔ او همدا مطلب بعینه ددے (ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ) هم دے اګرکه د قرآن کریم تعبیر کښې ډیر کمال دے۔

## وَإِذْ أَخَذْنَا مِيْثَاقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّوْرَ خُذُوْا

او کله چه مونږ واخسته مضبوطه وعده ستاسو نه، او اُوچت کړو مونږ ستاسو دپاسه طور غر لره (اُوویل مونږ) اُونیسئ

مَآ اٰتَيْنٰكُمْ بِقُوَّةٍ وَّاسْمَعُوْا قَالُوْا سَمِعْنَا

هغه کتاب چه موږ درکړيدے تاسو ته په طاقت او واورئ (په قبلولو سره) دوی اُووئیل: موږ واوریدو

وَعَصَيْنَا وَاُشْرِبُوْا فِيْ قُلُوْبِهِمُ الْعِجْلَ بِكُفْرِهِمْ قُلْ

او موږه ئے نافرماني کوو، او څکولے شوے دے په زړونو د دوی کښې محبت د سخی په سبب د کفر د دوی، ته ورته او وايه

بِئْسَمَا يَأْمُرُكُمْ بِهٖٓ اِيْمَانُكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۹۳﴾

بد دے هغه شے چه حکم درکوی تاسو ته په هغے سره ایمان ستاسو که یئ تاسو ایمان لرونکی۔

**تفسير**: په دے آیت کښې د دوی بل عیب بیانوی په اعراض کولو سره د الله تعالیٰ د کتاب نه۔
**عنوان الآية دے** : (اِعْرَاضُهُمْ عَنْ كِتَابِ اللّٰهِ وَعَنِ الْعَمَلِ بِهٖ)
(دوی د الله تعالیٰ د کتاب نه هم اعراض کړیدے او په هغے باندے ئے عمل پریخودلے دے)
یعنی دا دومره عناد کر او نفس پرست خلق دے چه الله تعالیٰ د دوی په زړونو کښې د هیبت پیدا کولو دپاره د طور غر د دوی په سرونو باندے راپورته کړو او دوی ته ئے اُووئیل چه تورات په مضبوطئ سره واخلئ او پدے کښې موجود اوامر او نواهي په غور سره واورئ او په هغے باندے عمل اُوکړئ نو هغوی اُووئیل چه موږ ستاسو خبره واوریده لیکن زړه کښې ئے دا وه چه ستا د حکم منلو ته تیار نۀ یو۔ لکه ددے تفصیل په (۶۳،۶۴) آیت کښې تیر شو۔
**فائده** : داسے آیت مخکښې هم تیر شو لیکن هلته ددے مقصد دپاره وو چه د دوی نقض عهد ئے بیانولو او دلته ئے ددے دپاره بیانوی چه دا دومره ناکاره خلق دی چه دوی نقض عهد اُوکړو، (د الله تعالیٰ لوظونه ئے مات کړل) توحید ئے هم پریخودو او په شرك کښې مبتلا شو او د الله تعالیٰ د کتاب نه ئے هم ورسره اعراض اُوکړو۔ (۲) امام بیضاویؒ لیکی: دا قصه ئے دوباره مکرر کړه: (لِلتَّنْبِيْهِ عَلٰى اَنَّ طَرِيْقَتَهُمْ مَعَ مُحَمَّدٍ ﷺ طَرِيْقَةُ اَسْلَافِهِمْ مَعَ مُوْسٰى) (التنوير) (پدے کښې تنبيه ده پدے خبره چه ددے موجوده یهودو طریقه د محمد ﷺ سره داسے ده لکه څنګه چه د دوی د مشرانو طریقه وه د موسیٰ علیه السلام سره، چه د هغه

نه او د هغه د کتاب نه ئې اعراض کړے وو۔ او پدے کښې يو قسم الزامي رد دے پدے يهودو چه تاسو د خپل اسلافو په نقش قدم روان يئ ځکه فرع د خپل اصل تابع وي او ولد سر ابيه وي۔ او ديته خطابي احتجاج وائي۔ او دارنګه پدے کښې تسلي شوه رسول الله ﷺ ته چه مه خفه کيږه که دوی ستا تکذيب اُوکړي نو د دوی مشرانو د موسی ؑ تکذيب کړے وو سره د واضح دلائلو نه۔

﴿وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ﴾ دوی ته ئې اُووئيل چه په تورات باندے عمل اُوکړئ نو دوی اُووئيل: دا ډير ګران احکام دي، دے ته مونږ تيار نهٔ يو نو الله تعالیٰ جبريل ؑ ته حکم اُوکړو چه دا غر پرے را اُوچت کړه چه دوی ئې مني او که نهٔ ؟۔

﴿وَاسْمَعُوا﴾ يعني قبول ئې کړئ۔ **فائده**: واسمعوا ذکر کول روستو د (خذوا) نه څه فائده ورکوي؟ حال دا چه د دواړو معنے يو شان دئ؟۔ نو وجه دا ده (١) چه واسمعوا تاکيد دے د خُذُوا مَا آتَيْنَاكُمْ دپاره يعني نفس اخستل کافي نهٔ دي ترڅو پورے چه د هغے طاعت نهٔ وي شوے او په هغے کښې تدبر نهٔ وي شوے۔ نو دلته د سماع نه سماع د طاعة او وتدبر او سماع د قبولية مراد ده۔ او پدے تاکيد راوړو کښې اشاره ده دے ته چه دے خلقو باندے ګمان وو د اِهمال او اِخلال چه دوی به دا کتاب مهمل پريدي او پدے امر کښې به خلل پيدا کړي نو خبره ئې پرے مؤکد او مضبوطه کړه چه ضرور به دا قبلوئ۔ (٢) يا دا چه خُذُوا مَا آتَيْنَاكُمْ نه مراد اهتمام کول دي د تورات او ابتدائي اهتمام د کلام دا وي چه هغے ته غوږ کيخودے شي۔ بناء پدے توجيه واسمعوا تاکيد نهٔ دے بلکه مستقل فائدے والا کلام دے۔

**فائده**: د نبوت د دلائلو او د علمي معجزاتو نه دا ده چه قرآن کريم اشارات کوي هغه عباراتو ته چه په هغے باندے موسی ؑ بني اسرائيلو ته خطاب کړے وو او په تورات کښې ليکلې شويدي نو امر په سماع (اَوريدو) باندے د موسی ؑ په خطاباتو کښې بار بار راغلے دے «واوره اے اسرائيل» نو پدے وجه دلته (وَاسْمَعُوا) لفظ راوړے شو چه مراد ترے نه امتثال او عمل کول دي په دغه امر باندے۔ او دا دے يهودو ته واضح وو د خپلو کتابونو نه، نو دوی پرے پوهيدل چه نفس سماع (آوريدل) نهٔ ده مراد بلکه صحيح قبلول مراد دي۔

﴿قَالُوا سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا﴾ دوی اُووئيل: بس قبول دے، بالکل لبيک۔

وَعَصَيْنَا: **سوال**: سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا دواړه خو اجتماع د ضدينو ده ځکه چه د سمعنا معنیٰ دا ده چه مونږ خبره منو او د عصينا معنیٰ دا ده چه مونږ به مخالفت کوو او نهٔ ئې

منو۔ نو هرکله چه دوی عصینا اُووئیله نو الله تعالیٰ پرے دغه غر ولے نهٔ راګوزارولو ؟

ددے **جواب** (۱) : د یهودو دوه ډلے وے، مشران او بل روستنی۔ نو مشرانو ئے سَمِعْنَا اُووئیل نو په هغے سره طور د هغوی د سرونو نه لرے شو او کشرانو د طور د لرے کیدو نه روستو اُووئیل عَصَيْنَا، مونږ منلو ته تیار نهٔ یو۔ دا ګران احکام دی۔ دا وجه ده چه دلته ئے (قَالُوْا) سره تعبیر کړیدے نهٔ په (قُلْتُمْ) سره۔

۲- **دویم جواب** : په هغه زمانه کښ حاضرین دوه ډلے شول یوے ډلے سمعنا اُووئیل او بلے ډلے عصینا لیکن په قبولیت د بعضو سره عذاب لرے شو د ټولو نه۔

(۳) دریم **جواب** : په ژبه سره ټولو سَمِعْنَا اُووئیل او عَصَيْنَا ئے په زبانِ حال سره اُووئیل۔ یعنی دوی اګرکه په هغه زمانه کښ سَمِعْنَا اُووئیل۔ لیکن د هغوی عمل دا شو چه څه ئے اَوریدلی وو نو د هغے نافرمانی ئے اُوکړه، نو د دغه صورتِ حال نه کوم چه د دوی د عمل نه ظاهر شوے وو الله تعالیٰ تعبیر په عَصَيْنَا سره اُوکړو۔

(٤) **جواب** : راجح جواب دا دے چه دا دواړه د بیلے بیلے زمانے الفاظ دی خو الله تعالیٰ د خلاصے په طور دواړه په یو ځائے جمع کړیدی۔ یعنی دوی خو په دغه زمانه کښ د یرے د وجه نه سَمِعْنَا اُووئیل۔ لیکن روستو زمانه کښ ئے بیا دغه سَمِعْنَا باندے عمل اُونکړو بلکه عَصَيْنَا لفظ ئے اُووئیلو چه مونږ دے احکامو منلو ته تیار نهٔ یو۔ وجه د ترجیح دا ده چه د (٦٤) آیت نه معلومیږی چه دوی اول قبولیت کړے وو او (ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ) سره دا ذکر ده چه دوی روستو زمانه کښ تولی کړے وه۔ یعنی د یرے په وخت کښ ئے د قبولیت آوازونه شروع کړل او کله چه امن وامان راغلو او غر لرے شو نو دوی بیا نخرے شروع کړے او په موسیٰ ﷺ ئے ټـنـج کولو چه دا خو ګران احکام دی۔ او دا د ناپوهه انسان کار وی چه کله پرے یره او تکلیف راشی نو بیا خبره منی او عاجزی او زاری کوی او چه کله د صحت حالت وی نو بیا ئے په الله تعالیٰ باندے هیڅ پرواه نهٔ وی، د هغه د حکمونو لحاظ نهٔ ساتی۔ نو په وخت د یره کښ د الله تعالیٰ حکمونه منل او کله چه راحت راشی نو بیا پریخودل، دا د یهودو طریقه ده، مؤمن سړے په راحت او مصیبت دواړو کښ د الله تعالیٰ تابعدار وی۔

اُوس ددے وجه بیانوی :

﴿ وَاُشْرِبُوْا فِيْ قُلُوْبِهِمُ الْعِجْلَ ﴾ یعنی د دوی په زړه کښ کفر پیدا شوے وو، زړونه ئے خراب شوی وو، ددے په وجه محبت د سخی پکښ ورننوتے وو۔ څکه کله چه زړونه خراب شی نو

بیائے د گندہ ځیزونو سرہ محبت پیدا شی نو په هغوی باندې د الله رب العالمین حکمونو اثر نهٔ کولو، کله چه د غیر الله محبت د چا زړه ته یو ځل ننوځی بس بیا پرې د حق خبرې اثر نکوی۔ هر قسم گنده کارونه به د هغه نه صادرېږی، کفر، شرك عصیان د الله تعالیٰ او مخالفت د رسولانو۔ او پدې کښې انتهائی درجه مبالغه ده چه د دوی د کفر او عناد د وجه نه الله تعالیٰ د دوی په زړونو کښې محبت د سخی گوزار کړو۔او په کفرئے نور هم کلك کړل۔

(أُشْرِبَ) دیته وائی چه سړې اُوبه او پئ گډوډ کړی چه بیائے جدائی نشی کیدې چه پئ کوم دی او اُوبه کوم دی ؟ ۔یعنی محبت د سخی ئے د زړونو مساماتو ته سم ننوتې دې، چه د هغې په محبت رنگ شویدی۔او بل رنگ نهٔ قبلوی۔

**فائده** : د فصحاءِ عرب په نیز د اِشراب دوه معانی دی (۱) اوله معنیٰ څکول، سیراب کول او مړول په اُوبو سره، دا بیا دوه قسمه دې ۱- یو دا چه ځمکه اُوبه کړې شی او مړه کړې شی چه د هغې نه بوټی پیدا شی نو دغه شان په مینه د سخی سره د دوی زړونه پوره اُوبه شوی او ماړه شویدی نو د هغې نه ډیر خباثات او قباحتونه پیدا شویدی۔

۲- دویم د نشائی ځیزونو څکول دی لکه چه نشه کونکی شراب په چا باندې اُوڅکولې شی نو هوش او حواس ئے خراب شی او داسې بے عقله شی چه د حرام، حلال او د مور او خور تمییز نشی کولې نو دغه شان محبت د سخی د دوی په زړونو کښې دغسې ورننوتلې دې چه عقل او معرفت د حق د دوی نه بهر شویدې چه دوی د شرك او توحید فرق نشی کولې۔ (۲) دویم معنیٰ د اشراب : د یو رنگ سره بل رنگ پوره گډوډول لکه عرب وائی : (ثَوْبٌ مُشْرَبٌ بِحُمْرَةٍ) (جامه کښې سور رنگ پوره گډوډ کړې شویدې) چه د جامې په ټولو مساماتو کښې دننه ننوتلې دې نو دغه شان محبت د سخی د دوی زړونو له داسې رنگ ورکړیدې چه بل رنگ نهٔ قبلوی۔ (تفسير فتح العزيز واحسن الكلام)

اُشْرِبُوْا : ددې دپاره فاعل حقیقی الله تعالیٰ دې په نیز د اهل السنة والجماعة لیکن اسباب ئے ډیر دی لکه سامری، شیاطین الجن او شیاطین الانس۔ ددې وجه نه صیغه د مجهول مناسب وه۔

الْعِجْلَ : دا مفعول به دې د (اُشْرِبُوْا) دپاره لیکن څکول د سخی خو ممکن نهٔ دی نو دلته مضاف حذف دې (اَیْ مَحَبَّةَ الْعِجْلِ) (گډوډ شویدې د دوی په زړونو کښې محبت د سخی)۔

**تنبیه** : بعض خلقو پدې مقام کښې د (اُشْرِبُوْا فِیْ قُلُوْبِهِمُ الْعِجْلَ) داسې معنیٰ کړیده چه کله

موسیٰ علیه السلام د طور نه راغلو نو سخې ئې مات رامات کړو او د هغې ذرات ئې دریاب ته وارتول نو دوی ته اُوونیلے شو چه ددے نه اُوبه اُوڅکئ دے دپاره چه معلومه شي چه چا د سخي عبادت کړیدے او چا ندے کړے. نو د چا په زړه کښې چه د سخې محبت پروت وو او عبادت ئې کړے وو نو په هغوی باندے اثر اُوشو او په شونډو کښې آثار راښکاره شو. او چا چه د سخي عبادت نهٔ وو کړے نو په هغوی اثر اُونهٔ شو. دا تفسیر کول خطاء دی، وجه دا ده چه د سخې عابدان بیل معلوم خلق وو. موسیٰ علیه السلام په هغوی رد کړے وو لکه سورة الاعراف (۱۵۰) کښې راځي. نو د هغوی معلومولو ته حاجت نهٔ وو. دارنګه هغوی خو توبه هم ویستلې وه او بعض پکښې تو پے پاے شول. بلکه دلته اشراب خلط او ګډون ته وئیلے شي. بله وجه دا ده چه دا د عربي محاورے خلاف ده، بیا به ئې دا لفظ نهٔ وئیلے چه (فی قلوبهم).

**قُلْ بِئْسَمَا** : د دوی د قول په باطل والي باندے دا بل رد دے چه دوی وائي مونږ په خپل تورات ایمان راوړو نو آیا په تورات کښې عبادت د سخي چرته شته ؟ نو که تاسو په تورات ایمان لرئ نو ولے داسے بد کارونه کوئ نو معلومه شوه چه تاسو کښې ایمان نشته. دا به څهٔ ایمان وی چه انسان ته په بدو باندے حکم کوی. او دا څنګه ایمان بالتورات دے چه د الله تعالیٰ عبادت نهٔ بلکه د سخي عبادت او د الله تعالیٰ مینه نهٔ بلکه په هغه کفر کول او د الله تعالیٰ د امر تابعداری نهٔ بلکه د هغه عصیان کول او حال دا چه دعوه د منلو د تورات ده، عجیبه خبره ده !!، یو انسان ځان ته مسلمان او مؤمن وائي او بیا کارونه د کفر کوی، د کفارو ملګرتیا کوی، د لادینیکالے نظام نافذ کوی. نو دا به څه ایمان وی ؟!.

نهٔ بلکه ایمان خو انسان نیك اعمالو ته راکاږی. خو د دوی ایمان نشته بلکه مشرکان دی. نو دے شرك نورو بدو اعمالو ته راخکل، انکار ته ئې راخکل. ددے نبی صفاتو پټولو او د حق نه د خلقو اړولو ته ئې راخکل لکه د بعض خلقو په زړونو کښې د یو امام او یو عالم محبت سم وردننه شوے وی چه د الله تعالیٰ او د رسول خبرو ته بیا تیار نهٔ وی، د هغې ماتولو ته شپاړس کرت تیار دے لیکن د امام خبرے ماتولو ته تیار نهٔ دے، دا هم من وجه د یهودو سره مشابهت دے. د عالِم سره به مینه لرے خو د علم په درجه کښې، پیغمبر او اِلٰه به ترے نهٔ جوړوے.

**اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ** :(وَالْاِيْمَانُ لَا يَاْمُرُ بِالْفَحْشَاءِ) یعنی که تاسو ځان ته مؤمنان وایئ نو ایمان خو په بدو باندے حکم نهٔ کوی او تاسو ته ئې په بدئ حکم کړیدے نو دا دلیل دے چه تاسو کښې ایمان نشته بلکه هسے د دروغو دعوه د ایمان ده.

قُلْ اِنْ كَانَتْ لَكُمُ الدَّارُ الْاٰخِرَةُ عِنْدَ اللّٰهِ خَالِصَةً

ورته اُووايه كه چرته وى ستاسو دپاره كور روستنے په نزد د الله باندے سو چه،

مِّنْ دُوْنِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۹۴﴾

سوئ د نورو خلقو نه نو تاسو آرزو د مرگ اُوكړئ كه تاسو رشتينى يئ.

**تفسير**: پدے آيت كښې د مخكنو خطاباتو تتمه بيانوى په اعلان د مباهلے سره او په دے كښې د دوى د غلطے عقيدے ترديد ذكر دے، هغه دا چه دوى به وئيل، حق دين صرف زمونږ دے او زمونږ د دين نه ما سيوا ټول دينونه باطل دى، او جنت مونږ پورے خاص دے، نو الله تعالىٰ دوى باندے رد اُوكړو. چه ددے ډيرو بدو صفاتو سره سره تاسو بيا هم په پټو سترگو دعوے د جنت كوئ نو ورته اُووايه: راځئ چه مباهله اُوكړو.

بيا په آيت كښې دوه تفسيرونه دى ۱ – الدار الآخرة نه مراد جنت دے او د خالصة معنىٰ ده: (سَالِمَةً) چه د شركت د بل چا نه پاك وى يا په معنىٰ د خاصةً سره دے يعنى چه صرف تاسو پورے خاص وى. او تمنى آرزو ته وئيلے شى. او ان كنتم صادقين يعنى فى قولكم كه پدے خپل قول كښې رشتينى يئ چه مونږ جنتيان يو. نو معنىٰ به دا شى: چه الله تعالىٰ دوى ته اُووئيل كه تاسو خان ته رشتينى وايئ او جنت صرف ستاسو دپاره وى نو د الله تعالىٰ نه د مرگ سوال اُوكړئ دے دپاره چه تاسو په جلتئ سره د دنيا د پريشانو نه نجات موندلو سره د جنت راحتونو ته اُورسيږئ، دارنگه د مرگ سوال اُوكړئ ځكه چه كوم شے د انسان محبوب وى نو د هغے ذريعه هم ورته محبوبه وى اگركه فى نفسه ترخه او بد گنړلے شى او د جنت ته د رسيدو ذريعه مرگ دے نو د مرگ سوال تاسو له پكار دے. په دنيا كښې څه كوئ (او دا زمونږ ددے امت د سلفو طريقه هم وه چه هغوى به مرگ هم محبوب گنړلو ځكه دا وسيله ده د رسيدلو محبوب حقيقى ته چه الله تعالىٰ دے. لكه ابو درداء ﷺ فرمائى: خلق مرگ بد گنړى زۀ ئے ښه گنړم، بلال ﷺ به په مرض الوفات كښې وئيل: (غَدًا نَلْقَى الْاَحِبَّةَ مُحَمَّدًا وَصُحْبَه) (صبا به د خپلو دوستانو سره ملاويږو چه محمد ﷺ او د هغه ملگرى دى) دغه شان حذيفه ﷺ نه هم نقل دى.

او عُمير بن الحمام ﷺ فرمائیلی دی:

جَرْيًا اِلَى اللّٰهِ بِغَيْرِ زَادٖ اِلَّا التُّقٰى وَعَمَلَ الْمَعَادٖ

او جعفر بن ابی طالب ﷺ په غزوهٔ موته کښې اُوفرمایل:

يَا حَبَّذَا الْجَنَّةُ وَاقْتِرَابُهَا طَيِّبَةً وَبَارِدٌ شَرَابُهَا

او عبد الله بن رواحه ﷺ چه کله غزوهٔ موته ته روانیدو نو داسے ئے وئیلی وو:

لٰكِنَّنِىْ اَسْأَلُ الرَّحْمٰنَ مَغْفِرَةً وَضَرْبَةً ذَاتَ فَرْغٍ تَقْذِفُ الزَّبَدَا

اَوْ طَعْنَةً مِنْ يَدَىْ حَرَّانَ مُجْهِزَةً بِحَرْبَةٍ تَنْفُذُ الْاَحْشَاءَ وَالْكَبِدَا

حَتّٰى يَقُوْلُوْا اِذَا مَرُّوْا عَلٰى جَدَثِىْ اَرْشَدَكَ اللّٰهُ مِنْ غَازٍ وَقَدْ رَشَدَا

تمنی د مرګ جائز نۀ ده لیکن دا یهودیانو ته تهکماً او استهزاءً وئیلے شی او پدیے سره د یهودیانو دعوه رد کول دی چه څئ تاسو له تمنی جائز ده که ځان ته جنتیان وایئ نو مرګ اُوغواړئ چه زر ورشئ۔ او صحابه کرامؓ چه مرګ غوختلے دے نو د هغے مطلب دا نۀ دے چه اے الله! په مونږ باندے مرګ راوله بلکه دا ئے د زړه خواهش وو چه مرګ راشی نو د خپلو ملګرو سره به ملاؤ شو۔ یا ئے شهادت غوختلے دے۔ او حدیث کښې منع د مرګ غوختلو د وجه د تکلیف او د دنیوی ضرر نه ده۔ او که د دین د حفاظت د وجه نه وی یا شهادت وی نو مرګ طلب کول جائز دی۔

بناء پدیے باندیے دا آیت به رد وی د هغه دعوے د یهودیانو چه د دوی نه الله تعالیٰ په بل ځائے کښې ذکر کړیده چه جنت مونږ پورے خاص دے او دیته قرطبیؒ او بیضاویؒ میلان کړیدے۔ نو پدیے کښې به د مخکنو آیتونو سره پوره مناسبت نۀ وی بلکه صرف مناسبت به پدیے کښې وی چه پدیے کښې هم رد دے په بله باطله عقیده د دوی باندے۔ چه اعمال ئے بد دی او دعوے د جنت کوی۔

**او ابن عاشورؒ** وئیلی دی چه دا اصل کښې رد دے په ماقبل دعوئ د دوی باندے چه دوی وئیلی وو (نُؤْمِنُ بِمَا أُنْزِلَ عَلَيْنَا) او دا ئے د محمد ﷺ د دعوت د نۀ قبلولو په عذر کښې وئیلی وو چه مونږ په خپل تورات باندے کلک یو او د هغے نه بل طرف ته نۀ اوړو او دوی پدیے کار سره د الله تعالیٰ د محبت مستحق شویدی او آخرت به هم د دوی په برخه کښې وی نو هر کله چه الله تعالیٰ د دوی دعوئ د ایمان په ما انزل علیهم باندے باطله کړه چه تاسو خو په دے دعوه کښې دروغجن یئ ځکه دلائل دا دی چه ستاسو نیکونو د انبیاؤ سره

څو مره قبیح کارونه کړیدي او د اوامرو د تورات نه ئې خروج کړیدے په شرك کولو د الله تعالیٰ سره په عبادت د سخي، نو ددے پسے ئې د هغوی د عقیدے باطلوالے ذکر کړو چه دا هغه خلق دي چه دوي وائي چه څو پورے مونږ په تورات تمسك کوو نو د الله تعالیٰ رحمت او جنت به دوي پورے خاص وي او څوك چه د تورات خلاف کوي نو هغه دپاره به د آخرت نه هیڅ برخه نهٔ وي نو الله تعالیٰ د دوي د عقیدے مطابق ورته د آخرت خبره ذکر کوي چه هرکله چه تاسو په آخرت ایمان لرئ او دا وایئ چه دا زمونږ پورے خاص دے نو ځئ مرګ اُوغواړئ ځکه چه د چا په آخرت کښې غټه برخه وي نو هغه له خو مرګ غوختل پکار دي چه حیاة دائمه او همیشه نعمتونو ته اُورسیږي لیکن هرکله چه دوي مرګ نهٔ غواړي، معلومیږي چه د دوي ایمان په آخرت نشته او هرکله ئې چه ایمان په آخرت نشته نو معلومه شوه چه ایمان ئې په تورات نشته. نو په دعوه د ایمان بما انزل علینا کښې دروغجن شو. بناء پدے باندے دا به مربوط وي د ماقبل آیتونو سره.

**لیکن** پدے تفسیر باندے یو اعتراض دا دے چه یهودوهم دا وئیلے شو چه اے نبي! تاسو او ستا صحابه هم د جنت دعویٰ کوي نو تاسو ولے مرګ نهٔ غواړئ؟ نو معلومه شوه چه دا ملازمه نشته. ۲ - دارنګه جنتي کیدل دے لره مستلزم نهٔ دي چه انسان به مرګ غواړي بلکه ډیر انبیاء علیهم السلام او نیکان خلق جنتیان دي او د مرګ سوال ئې نهٔ دے کړے. ۳- بلکه د مرګ د سوال نه نبي ﷺ منع کړے ده. هرکله چه دا تفسیر مَوْرِدُ د اعتراض دے نو دا راجح نهٔ دے.

(۲) - نو دے کښې غوره تفسیر هغه دے چه ابن کثیرؒ او ابن قیمؒ غوره کړیدے او دا د ابن عباس ﷛ تفسیر دے چه دلته مقصد دعوت او اعلان د مباهلے دے یعنی اے یهودو! که تاسو دا وایئ چه جنت مونږ پورے خاص دے او زمونږ حق دے نو د حق د ثابتولو دپاره اول دلیلونه پیش کول پکار دي لیکن تر اُوسه پورے معلومه شوه چه ستاسو هیڅ دلیل د حقانیت نشته او بیا هم په تعصب او ضد باندے کلك ولاړیئ نو راځئ چه مرګ اُوغواړو او د مرګ د آرزو معنیٰ دا ده چه (اُدْعُوا الْمَوْتَ عَلٰی اَكْذَبِ الْفَرِیْقَیْنِ) (دعا د مرګ اُوکړئ په دروغجن د دواړو ډلو باندے) یعنی اے الله! که مونږ دروغجن یو نو مونږ مړه کړه او که دوي دروغجن وي نو دوي هلاك کړه. چه دا دنیا ترے بے غمه شي. دیته مباهله وائي. تاسو ځان ته په حق وایئ او ځان ته د الله دوستان وایئ نو راځئ چه ښیرے اُوکړو چه څوك

په ناحقه وی هغه به الله تعالیٰ تباه کړی چه پته مو اُولګی۔ لیکن دوی ته خان معلوم دے چه مونږ په ناحقه یو۔ کله چه دوی ته رسول الله ﷺ دغه شان اُوونیل : نو دوی انکار اُوکړو ځکه دوی ته خپل جرمونه او ګناهونه معلوم دی او د هغے خبر قرآن ورکړیدے۔

**فائده** : مباهله وئیلے شی الله تعالیٰ ته عاجزی کول په دعاء او ښیرو کښې۔ چه اے الله ! څوك په ناحقه وی او په خلقو باندے تلبیس راولی او حق نهٔ منی نو ته ئے تباه کړے۔ مباهله په قرآن کریم کښې په درے آیتونو کښې ذکر ده۔ سورة الجمعه او سورة آلعمران (ثُمَّ نَبْتَهِلْ) کښې او دے آیت کښې۔ مباهله به په دینی کار کښې کولے شی۔ دنیاوی معامله کښې جائز نهٔ ده۔

دارنګه د مخالف حجتونه او اشتباهات به اول رد کړے شی خو چه هغه بیا هم په ضد کللك ولاړ وی نو د مباهلے دعوت به ورکړے شی۔ دے کښې بعض علماء وائی دا د رسول الله ﷺ پورے خاص وه لیکن صحیح دا ده چه په هر دور کښې مباهله کول جائز وی۔ او علماء کرامو په خپلو ادوارو کښې د مخالفینو سره کړیده۔ شیخ الاسلام ابن قیمؒ په قصیده نونیه کښې فرمائی : ما هم خلقو ته د دلائل پیش کولو نه بعد او د هغوی د شبهات ختمولو نه بعد د مباهلے دعوت ورکړیدے لیکن هیڅوك نهٔ دے تیار شوے۔ ثناء الله امرتسری رحمه الله د نصاراؤ سره مباهله کړیده۔ دارنګه د مرزا غلام احمد قادیانی سره۔ او دغه شان نورو علماؤ هم کړیده۔

**الدَّارُ الآخِرَةُ** : اطلاق په جنت کیږی، ورنه روستونے کور خو د هر چا دپاره شته۔

(فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ) زړه کښې تمنا نهٔ ده مراد، بلکه الفاظ وئیل مراد دی یعنی د مرګ دعاء کول۔ او دلته ئے د مباهلے نه تعبیر په تمنی سره اُوکړو ځکه چه په مباهله کښې هر فریق دا ارمان لری چه ددهٔ مخالف هلاك شی۔ او مباهله په مرګ اُوشوه ځکه چه دوی ته ژوند ډیر عزیز دے۔ او دغه شان مباهله په سورة آل عمران (٦١) او سورة الجمعه (٦) کښې ذکر ده۔

وَلَنْ يَّتَمَنَّوْهُ اَبَدًا بِمَا قَدَّمَتْ

او هیچرے دوی آرزو د مرګ نکوی همیشه دپاره په سبب د هغه عملونو چه مخکښې لیږلی دی

اَيْدِيْهِمْ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ بِالظّٰلِمِيْنَ ﴿٩٥﴾

لاسونو د دوی او الله تعالیٰ پوهه دے په ظالمانو باندے۔

**تفسیر** : په دے آیت کښې دا واضحه کوی چه دوی د مرګ طلب هیڅکله نهٔ کوی هر سړی ته خپل ځان معلوم دے چه زهٔ څو مره اُوبو کښې یم، دوی ته هم خپل عملونه معلوم دی چه مونږ غټ مفسدان یو، که مړه شو نو سمدواره جهنم ته روان یو، خو هسے دعوئ نے کرے ده۔ نو پدے کښې نبی ﷺ او ایمان والو ته یو پیشینګوئی او خبردارے ورکول دی دے دپاره چه د دوی یقین زیات شی او یهودیانو دپاره یو تحدی شی څکه چه دوی به دا کلام آوری او غواړی به چه خلاف اُوکړی لیکن نهٔ ئے شی کولے۔ نو دوی ته به پته اُولګی چه د آخرت کور د دوی پورے خاص نهٔ دے۔ (ابن عاشور)

امام بخاریؒ وغیره د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه که یهودیانو د مباهلے ددے دعوت نه روستو د مرګ تمنا کړے وے نو ټول په ټوله به مړهٔ شوی وے او په جهنم کښې به ئے خپل ځائے په خپلو سترګو لیدلے وے۔

**بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ** : ددے نه مراد نفسونه دی لیکن خلق غالباً کارونه په لاسونو کوی نو څکه ئے لاسونو ته نسبت اُوکړو۔ او د (مَا قَدَّمَتْ) نه مراد هغه تحریف وو چه په لاسونو سره به ئے لیکل، دارنګه نور قسماقسم مرضونه او ګناهونه مراد دی چه هغه دوی ته معلوم دی۔

**فائده** : (لَنْ) ئے اُوویلو چه دوی به هیڅرے تر قیامته پورے دا کار اُونکړی، او دا پیشین ګوئی بالکل رشتینے شویده۔ دا دلیل دے د الله تعالیٰ د علم۔ یهود او نصاریٰ مباهله د هیڅا سره نکوی۔ نو پدے کښې د الله تعالیٰ د کتاب او د نبی ﷺ حقانیت او صدق معلوم شو۔

یهودو د خپل عادت مطابق په ډیر جرأت سره په جواب کښې داسے وئیلے شو چه مونږ خو د مرګ ډیر آرزو کونکی یو، لیکن انسان نه د خپل زړه حال پټ نهٔ وی پدے وجه دا حقیقت دوی دپاره ډیر تریخ او خپله دوی ته په خپلو نظرونو کښې ډیر رسوا کونکے ښکاریدو چه څنګه داسے اُووائی چه مونږ د مرګ آرزو لرو، ګویا کښې د مرګ لفظ د دوی په خوله اخستل او سمدست د دوی مړهٔ کیدل دی نو دوی ته ژوند دومره محبوب دے چه د مرګ نوم هم په خوله نهٔ اخلی۔

**وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ بِالظّٰلِمِيْنَ** : یعنی الله تعالیٰ ته د دوی ظلم او ګناهونه معلوم دی نو پدے وجه دوی تمنی د مرګ نشی کولے او خپل نبی ته ئے خبر ورکړو چه دوی کښې ظلم دے څکه دوی مرګ نشی غوختلے۔

**فائده** : د (عَلِيْمٌ بِهِمْ) په ځائے ظالمین اسم ظاهر راوړو، دے دپاره چه د دوی صفت اُوکړی په ظلم

سره چه دوی کښې ظلم هم راغلے دے۔ او دا جمله خبریه ده په تهدید او توبیخ کښې استعمال ده ځکه چه قدیر ذات چه کله د ظالم په ظلم خبر شي نو د هغه د سزاء نه نهٔ روستو کیږي۔ (التنویر)

وَلَتَجِدَنَّهُمْ اَحْرَصَ النَّاسِ عَلٰى حَيٰوةٍ وَمِنَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا

او خامخا ته به اُومومے دوی لره ډیر حرصناك د خلقو نه په ژوند (دنیوی) او د هغه کسانو نه چه شرك ئے کړیدے،

يَوَدُّ اَحَدُهُمْ لَوْ يُعَمَّرُ اَلْفَ سَنَةٍ وَمَا هُوَ بِمُزَحْزِحِهٖ

خوښوی هر یو د دوی نه کاش چه عمر ورکړے شي زرکاله او نهٔ دے دغه عمر خلاصونکے دوی لره

مِنَ الْعَذَابِ اَنْ يُّعَمَّرَ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ بِمَا يَعْمَلُوْنَ ﴿۹۶﴾

د عذاب نه که عمر ورکړے شي۔ او الله تعالیٰ لیدونکے دے د هغه عملونو چه دوی ئے کوی۔

**تفسیر** : **ربط** : اُوس الله تعالیٰ فرمائی : دعا د مرګ په ځائے پریده، دوی خو دنیا او په دنیا کښې د اُوږد عمر لیوالہ دی، ددے خواهش لری ځکه چه د مرګ نه روستو دوی ته د بد انجام پته وه، نو هغوی خو دا غوختل چه خو مره کیدے شی د هغوی نه مرګ روستو شی، اګرکه پدے ژوند کښې به بد حالي او رذالت هم راځی- دے دپاره چه د عذاب نه بچ پاتے شی، هغوی خو د مشرکانو نه هم د ژوند ډیر طلبګار دی چه د هغوی سره لا څه آسمانی کتاب نهٔ وو، او کومو چه د مرګ نه روستو په دوباره ژوند باندے یقین نهٔ لرلو، پدے وجه ئے په دنیا کښې د اُوږد عمر خواهش لرلو۔ مطلب دا چه یو طرف ته خو دوی د الله تعالیٰ سره د محبت او محبوبیت دعوے کوی او بل طرف ته د دنیا د ژوند د محبت حال ئے دا دے چه د تولے دنیا والو نه زیات د ژوند حریصان دی۔

(اَحْرَصَ النَّاسِ) صیغه د اسم تفضیل ئے ذکر کړه ډیر والی ته اشاره ده۔ یعنی د دوی دنیا ډیره سخته خوښه ده، ددے وجه نه چه دوی کښې یو کس مری نو ډیر سخت خفه کیږی او په جنګونو کښې پرے رعبونه هم راځی، هسے وائی چه دا کماندوز دی، غرئے ترے جوړ کړیدے، حال دا چه په جنګ کښې ملاؤ شی نو بیا ترے په خختګ کښې متیازے روانے وی، لاندے ئے

د متیازو دپاره ځان ته بل جانګے اچولے وی، دا دومره بزدله خلق دی. مسلمان خو په آخرت باندے یقین راوړے وی، وائی که مړ شوم، شهید به شم او که ژوندے پاتے شوم نو غازی به یم او آخرت خو حق دے او الله رب العزت به مونږ له جنت راکوی او هغوی له اُور دے.

﴿ وَمِنَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا ﴾ پدے کښې دوه تفسیره دی : (۱) - دا یا د ماقبل سره لګی او عطف دے په الناس باندے نو د (اَحْرَصَ) د لاندے دے (اَیْ لَتَجِدَنَّهُمْ أَحْرَصَ مِنَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا) (یعنی دوی د مشرکانو نه هم زیات حرصناك دی). ځکه چه مشرکان خو د آخرت ژوند او بعث بعد الموت نهٔ منی نو هغوی ته هم دنیا خوښه ده خو دومره نهٔ او دے یهودو ته ډیره خوښه ده، وجه دا ده چه دوی خو آخرت منی خو د هغے دپاره ئے په ایمان او اعمالو تیارے نهٔ دے کړے، خپل ځان ورته معلوم دے نو دوی ته د دنیا نعمتونه اصلی نعمتونه او د دنیا ژوند اصلی ژوند ښکاره کیږی، ځکه مرګ پسے سمدست جهنم ته تلل دی. نو د دوی د آخرت نه خوف زیات دے ځکه دنیا ورته ډیره ښه ښکاره شویده.

قرآن کریم په ډیرو مقاماتو کښې د یهودو موازنه د عرب مشرکینو سره کړیده او دائے خودلے ده چه دوی د عقیدے او د عمل په اعتبار سره د مشرکینو نه هم بے کاره خلق دے، حال دا چه مشرکینو سره څه کتاب او شریعت نهٔ وو، او یهودو د شریعت او د کتاب اُوچت آوازونه او نعرے وهلے او ددے باوجود دوی د اخلاقی پسماندګئ په اعتبار سره مشرکان روستو پریخی وو، او حال دا چه دوی به مشرکان نهایتِ سپك ګنړل.

(۲) دویم دا چه دا خبر دے د مبتدا محذوف دپاره (وَمِنَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا قَوْمٌ أَحْرَصُ النَّاسِ) (یعنی بعض د مشرکانو نه داسے قوم دے چه ډیر حرصناك دی).

(۳) یا عطف دے په هم ضمیر (اَیْ وَلَتَجِدَنَّ مِنَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا أَحْرَصَ النَّاسِ) (ته به موندہ کړے د مشرکانو هم ډیر حرصناك د خلقو نه).

(٤) یا په علی حیوة باندے کلام تمام شو. او (مِنَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا) خبر مقدم دے او (يَوَدُّ أَحَدُهُمْ) نه مخکښې مبتداء مقدره ده (اَیْ مِنَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا قَوْمٌ يَوَدُّ أَحَدُهُمْ لَوْ يُعَمَّرُ) نو د دوی سره ئے په حرص کښې عام مشرکان هم ملګری کړل. نو اول یهود او بیا دا مشرکان په دنیا باندے ډیر حرص لری. او ددے نه مراد یا عرب مشرکان دی یا مجوس دی. یا هر هغه کافر دے چه د بعث بعد الموت عقیده نهٔ لری.

عَلٰى حَيٰوةٍ : ئے نکره راوړه مقصد پکښې تنویع ده یعنی هر څنګه ژوند چه وی اګر که د

ډیر مشقت ژوند وی خو چه ژوند وی او مرګ نهٔ وی۔
دومره حرص ئې دے : ﴿ یود احدهم لو یعمر الف سنة ﴾ چه دا بیان دے د هغوی د احرص کیدو۔ چه زر کاله عمر غواړی ددے وجه نه د دوی په دعاګانو کښې راځی : (عِشْ اَلْفَ نَيْرُوْزَ) (زر نیروزه (اخترونه) ډیر په تا راشی) دا به مجوسو هم وئیل او یهودو هم۔
دارنګه فارسۍ کښې ورته هزار سال دعا کوی۔ او دا دعا بو ډیٔ ګانو ښځو کښې هم مشهوره ده اُوس هغوی خپلو بچو ته وائی چه (زرکلنے شے) دا ددے مجوسو او یهودو نه نقل کړے شوے دعاء ده۔ ددے وجه نه علماء وائی دا دعا مکروه ده چه (الله تعالیٰ ډیر عمر ډیر کړه) ځکه دا مشابهت دے د یهود او مجوسو سره۔ داسے به وائی : چه (اَطَالَ اللّٰهُ بَقَاءَ كَ عَلٰى طَاعَتِهٖ) (الله ډیر تا له د خپل اطاعت دپاره اُوږد ژوند درکړی)۔یا (أَطَالَ اللّٰهُ بَقَاءَ كَ لِبَقَاءِ دِيْنِهٖ) (الله ډیر اُوږد ژوند د خپل د بقاء دپاره درکړی) لکه دا خبره ابن قیمؒ په زاد المعاد وغیره کښې ذکر کړیده۔لیکن امام بخاری وئیلی دی او دارنګه الادب المفرد او الصحیحه رقم () او الدین الخالص (۸/) کښې دی چه ددے وئیل مطلقاً جائز دی۔
(لَوْ يُعَمَّرُ) (لَوْ) تمنائیه مصدریه دے چه جزاء نهٔ غواړی۔ بعض وائی دا په تاویل د مصدر مفعول دے د (يَوَدُّ) دپاره۔ (اَیْ يَوَدُّ اَحَدُهُمُ التَّعْمِيْرَ) (خوښوی یو تن د دوی نه عمر ورکول دهٔ ته د زرو کالو) امام مجاهدؒ فرمائی : (حَبَّبَتْ اِلَيْهِمُ الْخَطِيْئَةُ طُوْلَ الْعُمُرِ) (ابن کثیر)
(دوی ته ګناهونو اُوږد عمر محبوب جوړ کړیدے)
﴿ وَمَا هُوَ بِمُزَحْزِحِهٖ مِنَ الْعَذَابِ اَنْ يُّعَمَّرَ ﴾ ۔ هُوَ ضمیر راجع دے اَحَدُهُمْ ته (۲) یا ضمیر مبهم دے او تفسیر ئې روستو ان یعمر دے۔ او ان یعمر په تأویل د مصدر سره فاعل دے د مزحزح دپاره۔ (اَیْ مَا هُوَ بِمُنْجِيْهِ مِنَ الْعَذَابِ تَعْمِيْرُهٗ) (یعنی نهٔ دے خلاصونکے دهٔ لره د عذاب نه عمر ورکول دهٔ ته زر کاله) لکه څنګه چه ابلیس ته عمر ورکړے شویدے خو دے عمر ورته څه فائده ورنکړه د الله تعالیٰ د عذاب نه ئې خلاص نکړو۔ او پدے کښې عجیبه نکته ده او هغه دا چه د یو سړی ډیر زر کاله عمر وی او په بادشاهت کښې ډیر تیر کړی خو چه بیا جهنم ته ځی نو دهٔ له دے عمر څه فائده ورکړه لکه دا مطلب په سورة الشعراء (۲۰۵) کښې راغلے دے۔
(اَفَرَاَيْتَ اِنْ مَّتَّعْنَاهُمْ سِنِيْنَ ثُمَّ جَاءَهُمْ مَا كَانُوْا يُوْعَدُوْنَ مَا اَغْنٰى عَنْهُمْ مَا كَانُوْا يُمَتَّعُوْنَ)۔
(خبر راکړه که دے مجرمانو له زه ډیر کلونه عمر ورکړم لیکن بیا دوی ته هغه عذابونه راشی د کومو چه دوی سره وعده شوے ده (د شرك او کفر په وجه) نو دوی له به دا عمر او دا

ژوند څه فائده ورکړی څه عذاب به ترې واړوی ؟) نهٔ ئې شی اړولے نو بیا پدے ډیر عمر څه، بلکه ډیر عمر خو خلق دے دپاره غواړی چه د الله تعالیٰ د عذابونو نه خلاص شی او اُوچتو مرتبو ته اُورسیږی او د الله تعالیٰ په قرب او طاعت کښې ئے تیر کړی۔ او مالك حقیقی رضا کړی۔ دارنګه که د یو انسان لږ عمر وی خو چه مالك حقیقی ترے رضا وی نو دا کامیاب دے۔ نو اصل شے خپل خالق او مالك رضا کول دی۔ نو پدے کښې یهودو ته یو قسم دعوت دے چه راشئ ایمان راوړئ او خپل رب راضی کړئ او مخالفتونه پریدئ۔

﴿ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ بِمَا يَعْمَلُوْنَ ﴾ الله تعالیٰ ته دا ټول معلوم دی او بیا به د هغے مطابق سزا ورکوی۔ بصیر دلته په معنیٰ د علیم سره دے لکه پدے قول د شاعر کښې راغلی دی :

فَإِنْ تَسْأَلُوْنِيْ بِالنِّسَاءِ فَإِنَّنِيْ بَصِيْرٌ بِأَدْوَاءِ النِّسَاءِ طَبِيْبُ

او دا جمله خبر دے خو استعمال دے په تهدید او توبیخ کښې ځکه چه یو قدیر ذات د بنده په جرم او عمل باندے پوهه شی او هغه ته خبر هم ورکړی چه ما ته ستا دا عمل معلوم دے نو دا دلیل وی چه عقاب او عذاب به دهٔ خامخا نازلیدونکے دے۔

## فوائد الآیات :

ددے مجموعه مخکنو آیتونو نه مونږ ته راتلونکی بعض تعلیمات او فائدے حاصلیږی :

۱ - **اوله فائده** : پدے کښې یو اهم حقیقت خو دا واضح شویدے چه الله تعالیٰ چه کوم شریعت بندګانو ته ورکړی نو د هغے حق د هغے په هر جزء باندے عمل کولو سره اداء کیږی، که یو شخص د هغے په هغه اجزاؤ باندے عمل کوی چه ددهٔ د خواهش موافق وی، او کوم چه ددهٔ د خواهش خلاف وی نو هغه ګوزاروی، نو دا شے د قرآن کریم په اصطلاح کښې ایمان ببعض الکتاب او کفر ببعض الکتاب دے او داسے ایمان د الله تعالیٰ په نیز نهٔ یواځے دا چه معتبر نهٔ دے بلکه دداسے خلقو سزا قرآن کریم دا بیان کړیده چه "د دوی دپاره د دنیا په ژوند کښې رسوائی او شرمندګی ده او په آخرت کښې به سخت ترین عذاب ته راخکلے شی"۔

(۲) دویم حقیقت دا واضح شویدے چه د قومی تفاخر، د ډله بازئ عصبیت او د جماعتی برتری ګمان د حق د قبلولو په لاره کښې د ټولو نه غټ رکاوټ دے، کومه ډله چه پدے بیمارئ کښې مبتلا شی نو هغه دپاره د هغه حق نه سوا چه دا ئے حق ګنړی بل حق قبلول ناممکن شی، دا شے د هغه استکبار جرړه ده کوم چه په قرآن کریم کښې د ابلیس

خصوصیت ښودلے شویدے۔ او د همدے نه هغه حسد پیدا کیږی چه کوم حق چه ددهٔ د خواهش خلاف وی نو د هغے نه نفرت کوی۔
۳- دریم حقیقت دا واضح شو چه لکه څنګه د ژوند د تریخوالی او تکلیفونو نه تنګ راتلو سره د مرګ آرزو کول یا خود کشی کول د ایمان او تعلق بالله منافی دی نو دغه شان د ژوند او اوږدوالی د عمر حریص کیدل او د مرګ نه تیختہ کول هم د ایمان او د محبتِ الٰهی منافی دی، کوم خلق چه په الله تعالیٰ او په آخرت باندے ایمان لری، او د الله تعالیٰ سره محبت لری، هغوی د مرګ نه تیختہ نهٔ کوی بلکه هغوی د الله تعالیٰ په لاره کښ د مرګ تمنا کوی، دارنګه ضمناً دا حقیقت هم واضح شو چه کوم شے چه انسان لره د مرګ نه یروی، هغه په حقیقت کښ ګناه او د الله تعالیٰ نه د بغاوت زندګی ده، که یو انسان خپل ژوند د ګناهونو او د نافرمانیانو نه د پاک ساتلو کوشش اوکړی نو مرګ د هغه دپاره یو محبوب شے جوړیږی۔ (تدبر قرآن)۔ بله فائده دا ده چه کبر هغه علماؤ کښ وو۔

| |
|---|
| قُلْ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ فَاِنَّهٗ نَزَّلَهٗ عَلٰى قَلْبِكَ |
| اُووایه څوک چه وی دشمن د جبریل (علیه السلام) (هغه تباه دے) پس یقیناً هغه نازل کړیدے دا قرآن په زړه ستا باندے |
| بِاِذْنِ اللّٰهِ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَهُدًى وَّ بُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۹۷﴾ |
| په حکم د الله، تصدیق کونکے دے د هغه کتابونو چه مخکښ ددے نه دی او هدایت دے او زیرے دے دپاره د مؤمنانو۔ |

**تفسیر**: دے نه روستو د یهودو پرله پسے نور قبائح هم شروع دی،
(۱) **اوله طریقه مضمون**: زمونږ د مشائخو طریقه دا ده چه وائی چه ددے ځائے نه روستو زمونږ د رسول الله ﷺ په باره کښ د بنی اسرائیلو د پنځه شبهو جوابونه بیانیږی او بیا هغوی ته پنځه زجرونه دی، د دوی په خباثتونو بیا د دوه شبهاتو جوابونه دی بیا پنځه امور دی چه تعلق لری د رسالت د رسول الله ﷺ سره۔ نو اوله شبهه په باره د جبریل علیه السلام کښ وه چه وحی دا راوړی او دا خو زمونږ دشمن دے نو مونږ ئے څکه نهٔ منو۔
۲- دویمه شبهه په باره د سلیمان علیه السلام کښ وه چه دے خو ساحر وو او ته ورته نبی وائے۔
۳- دریمه شبهه په باره د هاروت او ماروت کښ چه دا ملائک وو او خلقو ته به ئے سحر

خودلو نو معلومه شوه چه سحر جائز دے او نه هغے ته کفر وائے. ٤- څلورمه شبهه په باره د (رَاعِنَا) لفظ کښې چه تر اوسه پورے صحابه کرامو استعمالولو نو جائز وو نو مونږ ترے ولے منع کوے. ٥- پنځمه شبهه کله یو حکم کوے او صبا له د هغے نه خلاف بل حکم کوے نو ته په خپله خبره کښې شکی یې. او د الله تعالیٰ په کلام کښې خو شك نهٔ وی نو ته نبی نهٔ یې. بیا پنځه زجرونه دی په پنځه کارونو او اقوالو د هغوی باندے؛ اول زجر په اعتراضونو کولو په رسول الله ﷺ باندے. ۲- دویم : خلق د دین نه اړول په سبب د حسد سره. ۳- دریم : ځان دپاره د جنت دعویٰ کول. ٤- څلورم : د یو بل د کتاب (حق) نه انکار کول. ٥- پنځم : د الله تعالیٰ د مساجدو نه اهل توحید منع کول. بیا شپږمه شبهه ده په باره د نسبت د اولادو کښې الله تعالیٰ ته بیا اوومه شبهه : ځان دپاره د وحی او د نبوت خواهش کول. بیا د رسالت سره متعلق پنځه امور راوړی :

۱- د رسول الله ﷺ صدق او هغه ته تسلی ورکول. ۲- د یهود او نصاراؤ سره د مسلمانانو اتحاد ممکن نهٔ دے. ۳- دلیل نقلی د اهل کتابو مؤمنانو نه.

٤- څلورم : ترغیب. ٥- تخویف اخروی. لکه چه تفصیل ئے راروان دے.

(۲) **طریقه مضمون** : بل طرف ته دا آیتونه داسے هم لګی چه پدے کښې الله تعالیٰ د یهود او نصاراؤ مسلسل بدیانے او اعتراضونه بیانوی تر (۱۲۳) پورے، او غرض پدے کښې دا دے چه دے یهودو کښې دا مرضونه او قباحتونه دی پدے وجه د دوی نه خلافت ارضی او دینی واخستے شو او امت محمدیه ته ورکړے شو نو دوی په حسد کښې راغلل. نو پدے آیتونو کښې د یهودو د قرآن او ددے رسول سره د دشمنئ نور تفصیل دا بیانوی چه یهود پدے دشمنئ کښې د الله تعالیٰ، د هغه د ملائکو، د هغه د انبیاء او جبرئیل او میکائیل تولو دشمن جوړ شو، او پدے طریقه ئے الله تعالیٰ خپل دشمن جوړ کړو چه ولے ئے دا وحی زمونږ نه نقل کړه. بیا فرمائی چه د قرآن سره د دشمنئ وجه دا نهٔ ده چه د حق دلائل په دوی باندے واضح شوی نهٔ دی بلکه دلائل خو پوره واضح شویدی لیکن دا نافرمان او لوظ ماتونکی خلق دی، د ابتداء نه د دوی دا عادت راروان دے چه کله هم دوی د الله تعالیٰ سره کوم لوظ او عهد کړیدے نو هغه د دوی نه یو جماعت په خپله موقعه کښې مات کړیدے، نو ددے آخری رسول په باره کښې هم دوی دغه طریقه اختیار کړه، دا خو د تورات د پیشنګوئیانو مطابق راغلے دے لیکن یهودو په تورات باندے د ایمان مدعی کیدو سره په ضد کښې راغلل او د الله

تعالیٰ کتاب ئے شاته گوزار کړو گویا کښې دوی هیڅ نۀ پو هیږی۔ بیا فرمائی : د دوی اصلی دلچسپی د الله تعالیٰ د کتاب سره نۀ ده بلکه د شیطانی عملیات کو دو، منترو او جادو سره ده کوم چه دوی ته فلسطینیانو او گلدانیینو وغیره خودلی وو، په کو دو، تعویذونو او سحر او جادو باندے د الله تعالیٰ د کتاب نه بالکل بے پروا شو۔

**ربط او تړون** : مخکښې د دوی دعوئ ذکر شوه چه (نُؤْمِنُ بِمَا اُنْزِلَ عَلَيْنَا) مونږ په خپل کتاب تورات ایمان راوړیدے او بس همدا زمونږ کافی دے نو الله تعالیٰ ورله په دغه دعوئ باندے ردونه ذکر کړل په قل قل سره لکه (قُلْ فَلِمَ تَقْتُلُوْنَ اَنْبِيَآءَ اللّٰهِ) دارنگه (قُلْ بِئْسَمَا يَاْمُرُكُمْ بِهٖٓ اِيْمَانُكُمْ) او دوی وئیل چه ددے په وجه مونږ جنتیان یو نو د هغے تردید ئے اُوکړو په (قُلْ اِنْ كَانَتْ لَكُمُ الدَّارُ الْاٰخِرَةُ) سره نو بیا د دوی حسد او ضد دومره زیات شو چه وحی راوړونکی ملائك (جبریل) ﷺ باندے ئے اعتراض شروع کړو نو پدے آیت کښې د دوی د دغه حسد او دروغو خبرے تردید کیږی۔ دارنگه مخکښې د دوی عداوت د قرآن سره ذکر شو دلته عداوت مع جبریل بیانوی دارنگه مخکښې بهانه ده په ترك د اتباع الرسول کښې (وَقَالُوْا قُلُوْبُنَا غُلْفٌ) دلته د اتباع الرسول د پریخودلو بهانه ذکر کوی په عداوت د جبریل ﷺ سره۔

نو ددے آیت نه د یهودو اوله بدی دا بیانوی چه دوی به د جبریل ﷺ او د نورو ملائکو سره دشمنی کوله دا به ئے وئیل چه دا وحی مونږ ځکه نۀ منو چه دا جبرئیل (ﷺ) راوړیده۔ نو عنوان د آیت دے : (عَدَاوَةُ الْيَهُوْدِ لِجِبْرِيْلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ) (د یهودو ددے قرآن او رسول سره ئے دومره دشمنی ده چه ددے په وجه ئے د جبرئیل ﷺ سره دشمنی شروع کړه)۔

**شان نزول** : لکه ددے آیتونو شان نزول هم دا دے : ابن جریر الطبریؒ او ابن کثیرؒ وئیلی دی چه د مفسرینو پدے باره کښې اجماع ده چه دا آیتونه د یهودو په جواب کښې نازل شویدیٔ چه هغوی وئیلی وو جبریل (ﷺ) زمونږ دشمن دے او میکائیل (ﷺ) زمونږ دوست دے، که دا وحی میکائیل راوړے نو مونږ به ایمان راوړے وے۔

لیکن ددے په سبب د تعیین کښې اختلاف دے۔ (۱) – بعض وائی : ددے سبب د نبی ﷺ د نبوت په باره کښې د یهودیانو او د نبی کریم ﷺ ترمینځ مناظره وه چه د هغے خلاصه دا ده چه : څه یهود د نبی ﷺ خوا ته راغلل او وے وئیل چه مونږ ستا نه یو څو سوالونه کوو چه د هغے جواب د نبی نه سوا بل څوك نشی ورکولے، نبی ﷺ اُوفرمایل : صحیح ده، لیکن تاسو به دا لوظ ما سره کویٔ که زۀ تاسو ته ستاسو د سوالاتو صحیح

صحیح جوابات درکړم نو تاسو به زما تابعداري کوئ (اسلام به قبلوئ) هغوی اُووئیل : آو. نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : تپوس اُوکړئ څه چه غواړئ؟ هغوی اُووئیل : مونږ تا نه د څلورو څیزونو باره کښې تپوس کوو : (أَخْبِرْنَا اَیُّ الطَّعَامِ حَرَّمَ إِسْرَائِیْلُ عَلٰی نَفْسِهٖ مِنْ قَبْلِ اَنْ تُنَزَّلَ التَّوْرَاةُ ؟ وَأَخْبِرْنَا كَيْفَ مَاءُ الْمَرْأَةِ وَمَاءُ الرَّجُلِ ؟ وَكَيْفَ يَكُوْنُ الذَّكَرُ مِنْهُ وَالْأُنْثٰى ؟ وَأَخْبِرْنَا بِهٰذَا النَّبِيِّ الْأُمِّيِّ فِي النَّوْمِ وَوَلِيِّهٖ مِنَ الْمَلَائِكَةِ ؟)

(مونږ ته خبر راکړه چه کوم طعام دے چه یعقوب علیه السلام په خپل ځان باندے د تورات د نازلیدو نه مخکښې حرام کړے وو؟ او خبر راکړه چه د زنانه او د سړی اُوبه (منی) څنګه وی ؟ او ددے نه نارینه او زنانه څنګه پیدا کیږی ؟ او خبر راکړه چه ددے نبی امی په خوب کښې څه حالت وی ؟ او ددهٔ د ملائکو نه دوست څوك دے ؟) نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : تاسو نه د الله تعالیٰ لوظ اخلم چه که زهٔ خبر درکړم نو زما تابعداری به کوئ نو هغوی ورته عهدونه او لوظونه ورکړل څومره چه الله تعالیٰ غوختل. نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : زهٔ تاسو ته قسم په هغه الله درکوم چه تورات ئے په موسیٰ (علیه السلام) نازل کړیدے. آیا تاسو ته معلومه ده چه اسرائیل (یعقوب علیه السلام) سخت مریض شوے وو (د عرق النساء په وجه) او مرض ئے اُوږد شوے وو، نو الله دپاره ئے دا نذر اُوکړو که چرے الله تعالیٰ دهٔ لره ددے بیمارئ نه روغ کړو نو حراموی به محبوب طعام او شراب په خپل ځان او هغه ته محبوب طعام د اُوښانو غوښه وه او محبوب شراب د اُوښانو پئ وو؟ نو دوی اُووئیل : (اللهم ، نعم) (آؤ همداسے ده) بیا رسول الله ﷺ اُوفرمایل : اے الله ته په دوی ګواه شه. بیا ئے اُوفرمایل : قسم درکوم په هغه الله چه حقدار د بندګئ د هغه نه سوا هیڅوك نشته، هغه ذات دے چه تورات ئے په موسی نازل کړیدے. آیا تاسو ته معلومه ده چه (اِنَّ مَاءَ الرَّجُلِ اَبْيَضُ غَلِيْظٌ، وَاِنَّ مَاءَ الْمَرْأَةِ اَصْفَرُ رَقِيْقٌ، فَاَيُّهُمَا عَلَا كَانَ لَهُ الْوَلَدُ وَالشَّبَهُ بِاِذْنِ اللّٰهِ وَاِذَا عَلَا مَاءُ الرَّجُلِ مَاءَ الْمَرْأَةِ كَانَ الْوَلَدُ ذَكَرًا بِاِذْنِ اللّٰهِ، وَاِذَا عَلَا مَاءُ الْمَرْأَةِ مَاءَ الرَّجُلِ كَانَ الْوَلَدُ اُنْثٰى بِاِذْنِ اللّٰهِ ؟)

(اُوبه (مَنِی) د سړی سپینه، ټینګه وی، او منی د زنانه زیړه، نرئ وی، نو کوم چه بره شی نو بچے او مشابهت هغه ته کیږی د الله تعالیٰ په حکم سره، او کله چه د سړی اُوبه د ښځے په اُوبو پورته شی نو بچی نارینه وی د الله تعالیٰ په اذن او کله چه د زنانه اُوبه د سړی په اُوبو پورته شی نو بچے زنانه وی د الله تعالیٰ په اذن ؟) نو دوی اُووئیل : (اَللّٰهُمَّ، نَعَمْ) (آؤ، همداسے ده) نبی علیه السلام اُوفرمایل : اے الله ته پرے ګواه شه، بیا ئے اُوفرمایل : او تاسو ته قسم

درکوم په هغه الله چه تورات ئے په موسی نازل کړیدے آیا تاسو ته معلومه ده چه دا نبی امی ددهٔ ستر ګے اُودے کیږی او زړه ئے نهٔ اُوده کیږی ؟) دوی اُووئیل : آو، همداسے ده. وے فرمایل : اے الله ته ګواه شه. نو دوی اُووئیل : (أَنتَ الآن فَحَدِّثْنَا مَنْ وَلِيُّكَ مِنَ الْمَلَائِكَةِ فَعِنْدَهَا نُجَامِعُكَ أَوْ نُفَارِقُكَ) (ښه، اُوس دا راته اُووایه چه ستا په ملائکو کښ کوم یو دوست دے (وحی څوك راوړی؟) چه یا به تاسره متفق شو یا به درنه جدا شو. نو نبی ﷺ اُوفرمایل : (فَإِنَّ وَلِيِّيَ جِبْرِيلُ، وَلَمْ يَبْعَثِ اللَّهُ نَبِيًّا قَطُّ إِلَّا وَهُوَ وَلِيُّهُ) (زما دوست جبریل دے او الله تعالیٰ هیچرے هیڅ نبی نهٔ دے رالیږلے مګر جبریل ئے دوست دے) نو دے ضدیانو اُووئیل : اُوس به مونږ تا نه جدا کیږو، ځکه که ستا دوست د جبریل نه سوا د نورو ملائکو نه وے نو مونږ به ستا تابعداری او ستا تصدیق کړے وے، نو نبی ﷺ اُوفرمایل : (فَمَا مَنَعَكُمْ أَنْ تُصَدِّقُوهُ ؟) (جبریل ولے نهٔ منئ) (ستاسو وعدے څه شوے؟) نو دوی اُووئیل : (هُوَ عَدُوُّنَا) (دا زمونږ دشمن دے) نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو: (قُلْ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِجِبْرِيلَ إِلَى قَوْلِهِ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ) نو پدے وخت کښ دوی اخته شو په غضب دپاسه د غضب. (رواه الامام احمد فی مسنده وفی سنده شهر بن حوشب وهو حسن الحدیث وَوَرَدَ بِأَلْفَاظٍ أُخْرَى أَيْضًا) دا د یهودو لوظونه دی او دغه ئے بهانے دی !، د هر باطل پرست دغه مناظره وی چه وعدے به اُوکړی خو چه کله بنه پړ شی او دلیل ئے پاتے نشی نو بیا یوه بهانه اُوګوری چه ته خو فلانے ئے او که ته چرته فلانے وے نو مونږ به تسلیم شوی وے. د نبی ﷺ د حسد د وجه نه ئے ځانونه د خیر نه محروم کړل او د الله تعالیٰ او د هغه د ملائکو دشمنی ئے اعلان کړه. ولا حول ولا قوة الا بالله.

۲- بعض علماء وائی : ددے سبب د نزول د عمر بن خطاب رضی الله عنه او د یهودو ترمینځ مناظره وه د نبی کریم ﷺ په باره کښ. حافظ ابن کثیرؒ هغه په تفصیل سره ذکر کړیده او وئیلی ئے دی چه ددے روایت سند د عمرؓ او د شعبیؒ ترمینځ منقطع دے. او هغه دا ده چه شعبیؒ فرمائی : عمر فاروق خپلو ملګروته یوه ورځ اُووئیل : زه به یهودوته د هغوی مِدراس (مدرسے) ته حاضریدم (ځکه ددهٔ د کور په لاره کښ یهود راتلل) نو ما به د تورات نه تعجب کولو چه څنګه د قرآن او قرآن د تورات تصدیق کوی ؟ نو پدے مابین کښ یوه ورځ زه د هغوی خواته ورغلم، دوی اُووئیل : (يَا ابْنَ الْخَطَّابِ ! مَا مِنْ أَصْحَابِكَ أَحَدٌ أَحَبُّ إِلَيْنَا مِنْكَ) (اے ابن الخطاب ! ستا په دوستانو کښ ته مونږ ته ډیر محبوب ئے) دا وائی : ما ورته

اُووئیل : دا څنګه ؟ نو هغوی اُووئیل : وجه دا ده چه ته زمونږ خوا ته راځې۔ نو عمرؓ ورته اُوفرمایل : زۀ پدے وجه ستاسو خوا ته راځم چه د تورات نه تعجب کوم چه څنګه د قرآن او قرآن څنګه د تورات تصدیق کوی۔ نو پدے مابین کښې رسول الله ﷺ تیریدو نو دوی اُووئیل : اے ابن الخطاب ! دغه ستاسو ملګرے دے ورشه وروسته روان شه، دے فرمائی : ما دوی ته پدغه وخت کښې اُووئیل : زۀ تاسو ته په هغه الله قسم درکوم چه حقدار د بندګئ سوا د هغه نه نشته او هغه چه ستاسو نه ئے د خپل حق رعایت طلب کړیدے او خپل کتاب ئے تاسو سره ایخودے دے۔ آیا تاسو ته دا معلومه ده چه دا د الله تعالیٰ رسول دے ؟ نو دوی غلی شو، عالم او مشر ورته اُووئیل : تاسو ته ئے سخت قسم درکړو نو جواب ورکړئ، هغوی ورته اُووئیل : ته زمونږ عالِم او مشرئے، ته جواب ورکړه، نو هغه اُووئیل: هرکله چه تا مونږ ته دغه سخت قسم راکړو نو یقیناً مونږ ته معلومه ده چه دا د الله تعالیٰ رسول دے۔ سیدنا عمر فاروق ﷺ فرمائی : ما اُووئیل : خوار شئ نو بیا څنګه (په دۀ باندے) هلاك شوئ ؟ دوی اُووئیل: مونږ نۀ یو هلاك۔

عمرؓ اُوفرمایل : دا څنګه کیدے شی او حال دا چه تاسو ته معلومه ده چه دا د الله تعالیٰ رسول دے او بیا ئے اتباع او تصدیق نۀ کوئ ؟ نو دوی اُووئیل : زمونږ په ملائکو کښې یو دشمن دے او یو دوست دے، او ددۀ د نبوت پورے زمونږ دشمن ملائك پیوسته شویدے، ما اُووئیل : ستاسو دشمن او دوست څوك دے ؟ هغوی اُووئیل : دشمن مو جبریل دے او دوست مو میکائیل دے۔ عمرؓ اُوفرمایل : جبریل مو څنګه دشمن او میکائیل مو څنګه دوست شویدے؟۔ دوی اُووئیل : جبریل د تیز خوئی، د سختئ او د تنکسیا راوستلو او جنګونو او عذابونو راوستلو ملائك دے او میکائیل د شفقت او رحمت او تخفیف راوستو ملائك دے۔ عمرؓ اُوفرمایل : ددے دواړو مرتبه د الله تعالیٰ په نیز څنګه ده ؟ ورته وئیل : یو ئے ښی طرف ته دے او بل ئے ګس طرفته، عمرؓ فرمائی : ما اُووئیل : قسم په الله چه حقدار د بندګئ سوا د هغه نه نشته هغه ذات چه د دے دواړو ترمینځ دے، هغه دشمن دے د هغه چا چه د دوی دواړو سره دشمنی کوی او دوست دے د هغه چا چه دواړو سره دوستی کوی۔ او جبریل له مناسب نۀ دی چه د میکائیل د دشمن سره دوستی اُوکړی او نۀ میکائیل له مناسب دی چه د جبریل د دشمن سره دوستی اُوکړی۔ عمر ﷺ فرمائی : زۀ پاځیدم او د نبی ﷺ پسے روان شوم او هغه د خوخه د بنی فلان نه بهر شوے وو، نو ما ته

ئے اُوفرمایل : اے ابن الخطاب ! آیا ته څه آیتونه نهٔ لولم چه اُوس مخکښ ساعت کښ نازل شو. تردے چه دغه آیتونه ئے ماته اُولوستل. ما اُووئیل : یارسول الله ! زهٔ راتلم چه خبر درکړم خو لطیف خبیر ذات ما نه مخکښ خبر درکړو. (ابن جریر : ۳۸۲/۲)

## یهود او باطل پرست په سند اعتراض کوی

نو د دوی د شبهے حاصل دا دے چه دوی په سند اعتراض اُوکړو او دا د دوی ورانے ووء د قرآن کریم کذب او بطلان ئے ثابتولو، نو بیا د دے نبی د نبوت دعوٰی به هم ثابته نهٔ شی.
او دا د یهود او شیعه ګانو طریقه ده چه د سړی په سند اعتراض کوی په صحابه کرامؓ باندے هم اعتراض کوی چه صحابه کرامؓ بدنام شی نو ټول دین بد نام شو چه جبریل علیه السلام بدنام شو نو ټول دین ختم شو.
نو معلومیږی چه یهود، د قرآن کریم او د نبی کریم ﷺ په ضد کښ جبریل علیه السلام هم خپل مخالف ګنړی. او دا ممکن ده چه د یهودو علماؤ او لیډرانو ته دا خطره لاحقه شوی وی چه هسے نه د قرآن کریم دعوت زمونږ په عوامو تاثیر اُونکړی نو هغوی خپلو کشرانو کښ دا ډکوسله مشهوره کړه چه محمد (ﷺ) ته خو جبریل راځی او دا زمونږ دیرینه دشمن دے، په مونږ باندے فلانی فلانی آفتونه ده په لاسونو راغلی دی، پدے وجه مونږ په یو داسے شخص ایمان نشو راوړے چه د هغه زمونږ د مخالف ملائك سره تعلق دے. اګرکه د دوی مشرانو ته دا معلومه وه چه ټولو انبیاء علیهم السلام ته وحی جبریل راوړے ده، لکه ورقه بن نوفل وئیلی وو : دا (جبریل) هغه ناموس (استازے) دے چه وحی ئے په موسیٰ علیه السلام نازل کړے وه. او د دے تائید د دے نه هم کیږی چه په حدیث د اسلام د عبد الله بن سلام کښ راغلی دی چه کله هغه د نبی ﷺ نه د جبریل علیه السلام نوم واوریدو نو وے وئیل : (ذَاكَ عَدُوُّ الْيَهُوْدِ مِنَ الْمَلَائِكَةِ) (په ملائکو کښ د یهودیانو دشمن دے) یعنی دوی کښ دا خبره مشهوره وه چه جبریل علیه السلام زمونږ دشمن دے.
او علامه محمد الطاهر بن عاشورؒ لیکی چه د یهودیانو دشمنی د جبریل علیه السلام سره د نزول د قرآن د وخت نه شروع شوے ده، او بعض وائی : چه پدے وجه چه دهٔ په پخوانو اقوام مکذبو باندے عذابونه او وعیدونه نازل کړیدی. او دا قرطبیؒ د یو حدیث نه نقل کړیدی چه ترمذیؒ راوړیدے. (التنویر ۶۰۳/۱)

نو الله رب العزت دا آیتونه راولیږل او یهودئے پکښ سخت راګیر کړل چه که تاسو په غصه کښ د جبریل ﷺ مخالف شوی یئ چه هغه دا وحی محمد ﷺ باندے ولے نازله کړه او ستاسو په یو تن ئے ولے نازله نکړه نو دا سوچ اُوکړئ چه ستاسو دا خبره کوم حده پورے صحیح ده !، ددے معنیٰ خو دا شوه چه تاسو به الله تعالیٰ هم خپل مخالف ګنړئ ځکه چه جبریل ﷺ خو ستاسو د عقیدے مطابق هم د الله تعالیٰ یو ملائک دے، او د الله تعالیٰ قاصد دے، هغه هیڅ کار د الله تعالیٰ د حکم نه بغیر نشی کولے، هغه که چا له وحی راوړی یا په چا عذابونه رالیږی نو د الله په حکم سره نو ضرور دا کار به هم هغوی د الله تعالیٰ په حکم سره کړے وی، نو بیا خو تاسو یواځے د جبریل نه بلکه د الله تعالیٰ هم مخالف شوئ او الله تعالیٰ هم ستاسو مخالف شو۔

او داسے کتاب ئے نازل کړیدے چه هغه د مخکنو کتابونو تصدیق کوی نو کومه خبره ئے غلطه راوړے ده ؟، لهذا ستاسو دا خیال بکواس دے او په کبر او عناد باندے بنا دے۔ او د خپل کفر دپاره غلطه بهانه ده۔ نو دا د یهودو حماقت او بے وقوفی وه چه دومره ضد او حسد کښ راغلل چه جبریل ﷺ ئے هم خپل دشمن اُوګنړلو لکه د روافضو او شیعه ګانو د یو بے فرقے هم دا عقیده ده چه قرآن کریم په اصل کښ په علی ﷺ نازلیدو لیکن جبریل په غلطئ سره محمد (ﷺ) ته راوړو، نو دوی پدے ګناه باندے (نعوذ بالله) په جبریل امین باندے لعنت هم کوی۔

نو دا آیتونه دلیل دے چه ملائکو سره دشمنی کفر دے۔

## تشریح الکلمات

﴿ قُلْ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِجِبْرِيلَ ﴾ ددے جزاء محذوفه ده (فَقَدْ هَلَكَ) (نو دا تباه شو) یا فَقَدْ خَرَجَ مِنَ الْإِسْلَامِ) (د اسلام نه اُووتو) یا (فَلْيَخْلَعْ رِبْقَةَ الْإِسْلَامِ مِنْ عُنُقِهِ) (د اسلام پړے دِے د خپل څټ نه اُوباسي)۔ بیا دِے ځان ته مسلمان نهٔ وائی، ځکه دا د الله تعالیٰ د رسول نه منکر دے۔ یا (فَإِنَّهُ عَدُوُّ اللَّهِ) (د جبریل دشمني کونکے او مخالف په حقیقت کښ د الله تعالیٰ مخالف دے ځکه چه جبریل ﷺ خو د الله تعالیٰ په اذن سره دغه مَا أَنْزَلَ اللهُ او قرآن کریم ستا په زړه نازل کړیدے۔ یا (فَلَايُعَادِهِ وَلْيُعَادِ اللَّهَ) (هغه دِے د جبریل سره دشمنی نهٔ کوی بلکه الله تعالیٰ سره دِے اُوکړی) ځکه چه دا خو الله تعالیٰ رالیږلے دے۔

ابن عاشورؒ وائی : دا تقدیر ډیر احسن دے ځکه چه روستو د باذن الله سره ښه لګی۔ (التنویر)
نو بناء په اول قول به حاصل د جواب دا وی چه هغه د راتلونکو آیتونو نه معلومیږی چه جبریل علیه السلام دا وحی په اذن د الله تعالیٰ سره راوړیده او په وحی (قرآن) کښی ئے تصدیق او موافقت دے د مخکنو کتابونو سره او په دے کښی هدایت او بشارت دے او دشمنی د جبریل علیه السلام سبب دے د دشمنئ د الله تعالیٰ او د ټولو رسولانو او ملائکو سره، او سبب دے د کفر، او دا وحی آیات بینات دی او په دے باندے کفر کول کامل فسق دے، او دا اعتراض کونکی لوظونه ماتونکی دی، او بے ایمانه دی او ددے رسول په راتللو سره دوی خپل کتاب شاته غورزولے دے او د امیانو په شان شویدی او د سحر او منترو تابعداری ئے شروع کړیده۔
او دلته ئے فانه نزله جمله قائمقام د جوابِ شرط کړه، دے دپاره چه دا ښکاره کړی چه د جبریل علیه السلام سره د دشمنئ هیڅ وجه نشته ځکه دا خو یوه واسطه ده په نازلولو د قرآن کښی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته نو د دوی دشمنی اصل کښی د الله تعالیٰ سره ده۔
**فائده** : من کان عدوا الخ دا عام شرط دے او مراد پدے سره خاص یهودیان دی، عام لفظ ئے ځکه راوړو چه دوی ته پته اولګی چه الله تعالیٰ په دوی باندے هیڅ باک نکوی او نهٔ د دوی نه علاوه په بل چا باندے چه هغه د جبریل علیه السلام دشمنی کوی۔ یعنی جبریل علیه السلام الله تعالیٰ ته دومره قریب دے چه ددهٔ دشمنی هرڅوك کوی که دا یهود دی او که نور خلق دی نو هغوی باندے الله تعالیٰ هیڅ باك نکوی بلکه الله تعالیٰ به هم د هغوی سره دشمنی کوی۔
**عَدُوّ** : مُبغض (بغض کونکی) ته وئیلے شی۔ د عَدَا يَعْدُوْ نه دے په اصل کښی توپ وهلو ته وئیلے شی، ځکه چه بغض کونکے هم په مبغوض باندے ورټوپ کوی دے دپاره چه انتقام ترے واخلی۔ (التنویر)
**لِجِبْرِيْلَ** : عبرانی نوم دے د هغه ملائك چه الله تعالیٰ ئے په وحی رالیږی خپلو رسولانو ته۔ د دوه کلمو نه مرکب دے جبر او ایل۔ جمهور علماء وائی : دا د عبرانئ نه نقل شویدے په معنیٰ د عبد (بنده) سره او ایل الله ته وئیلے شی۔ (یعنی عبد الله) د الله تعالیٰ بنده۔
(۲) (وَالتَّحْقِيْقُ أَنَّهَا فِي الْعِبْرَانِيَّةِ بِمَعْنَى الْقُوَّةِ) (تحقیق دا دے چه دا په عبرانئ ژبه کښی په معنیٰ د قوت سره دے او ایل معنیٰ الله۔ یعنی قوة الله۔ او جمهور علماء فرمائی : ایل په عبرانی کښی د الله تعالیٰ نوم دے۔ لکه امام بخاریؒ د عکرمةؒ نه نقل کړیدی : چه جبر، میکا، اسراف، په معنیٰ د عبد سره او ایل په معنیٰ د الله تعالیٰ سره دے۔ لیکن ابوعلی

الفارسیؒ د جمهورو خلاف کریدے او وئیلی ئے دی چه جبر معنیٰ الله او ایل معنیٰ عبد او په عجمی ژبه کښې مضاف الیه مخکښې راوړلے کیږی په مضاف باندے لیکن دا قول د عبرانئ د ماهرین لغت په نزد خطاء دے۔ (التنویر)

تفسیر قرطبیؒ لیکلی دی: چه جبر په معنیٰ د عبد سره دے او میکا په معنیٰ د عبید (الله) سره دے۔

**فائده** : الله تعالیٰ ته بل نوم کیخودل ځرنګ دی لکه خدا یا کاډ وغیره نو ددے تشریح به سورة اعراف کښې راشی ان شاء الله تعالیٰ او زمونږ رساله «د لفظ خدا شرعی حیثیت» اُوګوره۔ دارنګه الدین الخالص (۲/۷)۔

**نَزَّلَهُ** : (هُ) ضمیر راجع دے قرآن او وحی ته کوم چه مخکښې په وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ اٰمِنُوْا بِمَا اَنْزَلَ اللّٰهُ کښې ذکر شویدے۔

**عَلٰى قَلْبِكَ** : کښې اشاره ده چه محل د وحی زړه او عقل دے او کوم علم چه په زړه کښې وی هغه پوخ وی، او اشاره ده چه قرآن کریم د زړه کتاب دے او پدے باندے زړه خوزول او زړه ته کوزول پکار دی، هسے په خوله باندے وئیل دومره ډیر اثر نهٔ لری۔

او اشاره ده چه د ټولو انبیاؤعلیهم السلام د وحی محل زړهٔ وی او د هغوی سترګے اُودے کیږی لیکن زړهٔ ئے نهٔ اُوده کیږی او ددے وجه نه د هغوی خوب لیدل هم وحی وی۔

بِاِذْنِ اللّٰهِ : **فائده** : اذن د الله تعالیٰ په دوه قسمه دے (۱) اذن شرعی (۲) اذن کونی تقدیری۔ اذن شرعی دیته وائی چه الله تعالیٰ امر اُوکړی چه داسے اُوکړئ او زما اجازه ده۔ او دا متعلق کیږی د هغه کارونو پورے چه شریعت پرے وارد وی او الله تعالیٰ پرے رضا وی۔ او عبادت وی۔لکه (قُلْ ءٰاللّٰهُ اَذِنَ لَكُمْ اَمْ عَلَى اللّٰهِ تَفْتَرُوْنَ) (یونس : ۵۹) یا (اَمْ لَهُمْ شُرَكٰٓؤُا شَرَعُوْا لَهُمْ مِّنَ الدِّيْنِ مَا لَمْ يَاْذَنْ بِهِ اللّٰهُ) (الشوریٰ : ۲۱) او اذن کونی دیته وائی چه الله تعالیٰ د یو شی اجازه ورکړی تقدیراً او کوناً چه دا به داسے کیږی، که شرعاً اجازه ورکوی او که نهٔ ؟۔ نو اذن کونی متعلق کیږی د خلق او تکوین (پیدا کولو د یو شی پورے) نو په کوم شی چه الله تعالیٰ اذن کړے وی نو د هغے واقع کیدل به ضروری وی او خامخا به کیږی۔ تخلف پکښې راتلل ناممکن دی۔ لکه په (مَنْ ذَا الَّذِيْ يَشْفَعُ عِنْدَهٗٓ اِلَّا بِاِذْنِهٖ) (البقره : ۲۵۵) یا (وَمَا هُمْ بِضَآرِّيْنَ بِهٖ مِنْ اَحَدٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ) (البقره : ۱۰۲) کښې همدا مراد دے۔

فرق د دواړو دا شو چه (۱) ماذون به شرعاً (کوم شی کښې چه شرعاً اجازت راغلے وی) هغه به کله واقع کیږی او کله نه، او ماذون به قدراً به خامخا واقع کیږی۔

(۲) دارنګکه بل طرف ته واخله چه مأذون به شرعاً به الله تعالیٰ ته ضرور محبوب وی او مأذون به قدراً به کله محبوب وی او کله به غیر محبوب وی۔ (تفسیر العثیمین)

او پدے مقام کښې دواړه قسمه د اذن مراد کیدے شی۔ چه الله تعالیٰ جبریل علیه السلام ته اجازه هم ورکړے وه چه دا وحی یوسه او بیا پرے رضا هم وو۔ او توفیق ئے هم ورکړو چه پیغمبر ته ئے راورسولو۔

﴿مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ﴾ مصدقاً حال دے د ضمیر د (نزله) نه او مطلب دا دے چه دغه قرآن چه سبب د عداوة د یهودیانو دے دا خو جبریل علیه السلام په داسے حال کښې نازل کړیدے چه تصدیق کونکے دے د مخکنو کتابونو چه تورات او انجیل دی او دا خو سبب د دشمنئ د جبریل نهٔ جوړیږی۔ ځکه که قرآن کریم تصدیق د مخکنو کتابونو نهٔ کولے نو د دوی اعتراض صحیح وو چه دا جبریل راوړیدے او هغه زمونږ دشمن ځکه دے چه زمونږ د کتابونو تردید ئے پکښې کړیدے نو هرکله چه دا کتاب (قرآن) د مخکنو کتابونو تردید نکوی بلکه صفت ئے کوی لکه سورة المائده (۴۸) کښې راغلی دی چه تورات او انجیل هدایت او نور وو۔ نو بیا څنګه دا خلق د جبریل علیه السلام سره دشمنی کوی؟ هغه خو څه بد کتاب نهٔ دے نازل کړے چه دوی پرے اعتراض اُوکړی۔ او پدے کښې اشاره ده چه ددے کتاب نه انکار کول دا انکار دے د خپلو کتابونو نه۔ ځکه انکار د مصدِّق (تصدیق کونکی) نه دا انکار وی د مُصدَّق (تصدیق کړے شوی) نه۔ نو د دوی دا دعویٰ باطله شوه چه وائی مونږ په خپل کتاب ایمان لرو ځکه چه که دوی په خپل کتاب ایمان لرلے نو دا قرآن به ئے اوله درجه کښې منلے، ځکه چه په مخکنو کتابونو کښې ددے قرآن د راتلو تذکره شویده نو ددے نازلیدل تصدیق د هغه خبر دے چه د دوی په کتاب کښې وو۔ دارنګکه ددے کتاب مضمون د مخکنو کتابونو سره موافق دے۔

**فائده** : مُصَدِّقاً وئیلو سره دفع د یو وهم اُوشوه هغه دا چه کله خو راویان د یو سند معتمد وی لیکن په متن (اصل) د حدیث کښې نقصان وی، ددے وجه نه محدثینو وئیلی دی چه صحت د سند مستلزم نهٔ دے صحت د متن لره، نو کیدے شی چه جبریل علیه السلام به صحیح وی لیکن قرآن کښې به څه نقصانات وی (العیاذ بالله)؟ نو د هغے جواب اُوشو چه قرآن کریم کښې هیڅ عیب نشته۔ بلکه ددے درے صفات دی۔ اول مُصدِّق او دویم هُدی او دریم بُشریٰ۔ یعنی دا داسے ښه کتاب دے چه تصدیق د مخکنو کتابونو کوی، او هدایت پکښې پروت دے، بے دلیله او د ګمراهئ خبرے پکښې نشته، ددے کمال ته اُوګوره او زیرے

دے په نتیجه کښې د ایمان والو دپاره۔
بُشْرٰی مصدر په معنیٰ د اسم فاعل دے یعنی مُبَشِّراً یعنی خوشحالی ورکونکے دے یعنی مؤمن په هر وخت کښې ددے په آوریدو سره په زړه کښې خوشحالی او اطمینان محسوس کوی او ظاهری مخ کښې ئے هم آثار د خوشحالئ ښکاره کیږی، او په مؤمن باندے هیڅ قسم بوج کیږی نه۔ او دارنګه ایمان والو ته وخت په وخت زیرے ورکوی۔ چه ته په هدایت ئے، ته کمال والا ئے او الله تعالیٰ تا نه راضی دے۔ او دا زیرے ورکوی چه دوی ته به الله تعالیٰ د دنیا او د آخرت خیر ورکوی۔ نو داسے کتاب چرته خطاء او غلط کیدے شی۔ نو که دا چرته غلط شخص راوړے وے نو دومره کمال به پکښې وو څه ؟ ۔
وَهُدًى وَبُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ) لِلْمُؤْمِنِيْنَ د دواړو سره متعلق دے یعنی قرآن کریم عامو خلقو ته هم هدایت او بشارت ورکوی لیکن فائده ترے مؤمنان اخلی څکه ئے دا ذکر کړل۔ او بشارت معنیٰ دا هم ده چه مؤمن سړے د قرآن په نازلیدو باندے ډیر خوشحاله وی چه ښه دے چه الله تعالیٰ یو داسے کتاب راولیږلو چه په هغے کښې د دین او د دنیا کامیابی ده او د مالك حقیقی سره د مؤمن تعلق پرے قائمیږی او دا واقعی خبره ده که دا کتاب نه وے نو امت به په کومو کندو د ګمراهئ او خرافاتو کښې مبتلا وے، لیږ سوچ ددے په نازلیدو اُوکړه تا باندے به حقیقت راکولاؤ شی۔
یا د هُدٰی معنیٰ دا ده چه هدایت دے د ټولو خلقو دپاره نو دا ثمره او فائده د قرآن شوه۔ او بشریٰ عاقبت او نتیجه د قرآن ده چه ایمان والا پرے کله ایمان راوړی نو هغوی ته زیرے ورکوی۔
**فائده** : (۱) دلته مؤمنین لفظ راوړو، سورة النحل کښې (وَبُشْرٰى لِلْمُسْلِمِيْنَ) وئیلے دے، یا خو تفنن دے۔ (۲) دلته موضوع د ایمان ده، هلته د شرك پریخودلو او تسلیمیدو ده۔
**فائده** : پدے آیت کښې د قرآن کریم پنځه صفات حاصل شو (۱) دا منزل من عند الله دے د الله په اذن۔ (۲) مُنَزَّلٌ عَلٰى قَلْبِ الرَّسُوْلِ (د پیغمبر په زړه نازل) دے (۳) مصدق د مخکنو کتابونو دے۔ (٤) هَادِیْ دے په کمال هدایت سره۔ (٥) زیرے ورکونکے دے ایمان والو ته۔ نو پدے کښې کرم الاصل او کرم المقر او کرم الفئة ذکر شو یعنی اصل ئے د الله تعالیٰ نه دے او هغه هم کریم دے او مقر (ځائے د اُوسیدو) ئے د نبی ﷺ زړه دے او هغه هم کریم دے۔ او ډله ئے هم معلومه شوه چه د مخکنو کتابونو په شان دے او د هغوی مصدق دے او هغه خو کریم کتابونه وو نو دا هم کریم دے۔ دارنګه دا قرآن خیر ورکونکے دے خپلو غوره اتباعو ته په جلتئ سره په دنیا کښې

او دوی سره د غوره عاقبت او انجام وعده کوی۔ او دا خصلتونه د یو کریم انسان وی چه اصل، کور او قوم ئے معلوم وی او بیا په فائدو ورکولو کښې سخی وی او وعده هم کوی۔(التنوير) اُوس خبره عامه کوی:

| |
|---|
| مَنۡ كَانَ عَدُوًّا لِّلّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَرُسُلِهٖ |
| څوك چه وی دشمن د الله تعالیٰ او د ملائکو د هغهٔ او د رسولانو د هغهٔ (هر یو چه وی) |
| وَجِبۡرِيۡلَ وَمِيۡكٰلَ فَاِنَّ اللّٰهَ عَدُوٌّ لِّلۡكٰفِرِيۡنَ ﴿۹۸﴾ |
| او د جبریل او میکائیل (علیهما السلام)، پس یقیناً الله تعالیٰ دشمن د کافرانو دے۔ |

**تفسير**: په دے آیت کښې بل رد دے په هغوی باندے چه د جبریل ﷺ سره دشمنی کول دا د الله تعالیٰ او د ټولو ملائکو او رسولانو سره دشمنی ده ځکه د جبریل ﷺ سره د هغوی دشمنی د هغه حق په وجه ده چه هغه د الله تعالیٰ د طرف نه په ټولو رسولانو نازل کړیدے۔ او د جبریل ﷺ سره دشمنی دا بعینه د میکائیل ﷺ سره هم دشمنی ده ځکه چه ملائك د یو بل نه جدا جدا نهٔ دی۔

امام بخاریؒ د ابو هریره ﷺ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل: الله تعالیٰ فرمائی: (مَنۡ عَادٰى لِىۡ وَلِيًّا فَقَدۡ اٰذَنۡتُهٗ بِالۡحَرۡبِ) (څوك چه زما د کوم دوست سره دشمنی کوی، زهٔ هغهٔ ته د جنګ خبر ورکوم) او د چا دشمن چه الله تعالیٰ شی نو د هغه دنیا او آخرت برباد شو، پدے وجه الله تعالیٰ د جبرئیل ﷺ د دشمنانو په خلاف پدے آیت کښې د خپل غضب اظهار کړیدے۔ او دده سره دشمنیٔ ته ئے کفر وئیلے دے۔

**میکال**: پدے کښې لغات دی: میکائیل: دا د جمهورو قراءت دے۔ (۲) میکائِل۔ بغیر د یاء نه او دا د نافع قراءت دے۔ (۳) او میکال بغیر د همزه او یاء نه او دا قراءت د حجازین او حفص دے۔

**وَجِبۡرِيۡلَ وَمِيۡكٰلَ**: د جبرئیل او میکائیل (علیهما السلام) تخصیص ئے اُوکړو سره ددے نه چه دا په ملائکو کښې داخل دی (۱) وجه دا ده چه بحث د دوی په باره کښې شروع وو۔ او میکائیل ئے ورسره یو ځائے کړو پدے کښې اشاره چه د جبریل ﷺ مخالف لکه ځنګه چه د الله تعالیٰ او د هغه د ټولو انبیاء او رسولانو مخالف دے نو دغه شان د میکائیل هم مخالف

دے څکه چه د تمام ملائکو او تمامو رسولانو ملت یو دے، د دوی ترمینځ څه رقابت نشته. چه د یو سره د چا دشمنی وی نو بل سره ډیے نے دوستانه وی.

(۲) پدے کښې اشاره ده شرافت او فضیلت د دواړو ته په نورو ملائکو باندے.

(۳) جبریل روح الله او امین د الله تعالیٰ دے په وحی باندے. او میکائیل امین دے په خزانو د فتح او د رحمت. (بدائع التفسیر لابن القیم)

جبرئیل ﷺ د وحی ملائك دے او میکائیل ﷺ په أَرْزَاقو (رزقونو) او بارانونو باندے مقرر دے. نو ددے (مَنْ كَانَ) جزاء پټه ده : (فَهُوَ كَافِرٌ) دا کافر دے.

﴿ فَإِنَّ اللهَ عَدُوٌّ لِلْكَافِرِيْنَ ﴾ او د الله دشمنۍ ته بیا د چا د پلار هم نشی ټینګیدے.

**فائده** : د الله تعالیٰ سره د عداوت صورتونه دا دی (۱) (اَلْاِشْرَاكُ بِهٖ) (د هغه سره شریکان جوړول. (۲) (سُوْءُ الْاَدَب) (د الله تعالیٰ او د هغه د کتابونو بے ادبی او انکار کول) (وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ اِذْ قَالُوْا مَا اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى بَشَرٍ مِنْ شَیْءٍ) (الانعام : ۹۱)

(۳) د الله تعالیٰ د اَولیاؤ سره عداوت کول. لکه حدیث تیر شو (مَنْ عَادٰی لِیْ وَلِیًّا فَقَدْ آذَنْتُهٗ بِالْحَرْبِ) (بخاری) (٤) مخالفت د الله تعالیٰ د احکامو نه، لکه سود او رشوتونه خوړول. سود خوړو ته الله تعالیٰ فرمایلی دی: (فَأْذَنُوْا بِحَرْبٍ مِنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ) (البقره : ۲۷۹)

**د ملائکو د عداوت صورتونه** : (۱) د هغوی نه انکار کول (۲) د هغوی سره کینه ساتل (۳) هغوی ته کنځل او بد رد او بد نسبتونه کول. هغوی ته بنات الله (د الله تعالیٰ لونړه) وئیل.

**د رسولانو د عداوت صورتونه** : (۱) د هغوی تکذیب کول (۲) په هغوی کفر کول (۳) د هغوی د طریقو نه انکار کول. (٤) د هغوی د قتل ارادے کول. لکه یهودیانو چه څنګه کړے وے.

## په مخکنو دوه آیتونو کښې بعض فوائد

(۱) قرآن کریم بشرئ (زیرے) دے ایمان والو دپاره او ددے علامه دا ده چه ته به ترے فائده اخلے نو کله چه تا خپل ځان اُولیدو چه فائده د قرآن نه اخلے، د هغے په لوستلو او زده کولو حرص کوے نو دا دلیل دے ستا د ایمان نو بس زیرے به درته رسیږی. او کله چه یو انسان قرآن بد اُوګنړی یا پرے عمل بد اُوګنړی یا د هغے په عملی کولو کښې دروند والے محسوس کړی نو دا ډیے یو هه شی چه ددهٔ نه ایمان ختم شویدے.

(۲) څوك چه د الله تعالیٰ سره دشمنی لری نو دا کافر دے. (فَإِنَّ اللهَ عَدُوٌّ لِلْكَافِرِيْنَ).

(۳) آیت نه خو معلومه شوه چه د ملائکو، او رسولانو سره دشمنی کول د الله تعالیٰ سره دشمنی ده. ځکه دا د الله تعالیٰ استاذی دی. خو څوك چه د ایمان والو سره دشمنی لری نو آیا دا به د الله تعالیٰ دشمن وی او که نهٔ؟ نو ددے نه آیت ساکت دے. خو د دین د اصولو نه داسے معلومیږی چه که پدے وجه ورسره دشمنی کوی چه دوی د رسولانو شریعت راتېنګ کړیدے نو ظاهره دا ده چه الله تعالیٰ د دوی هم دشمن دے. ځکه دا اصل کښې د رسولانو او د شریعت سره دشمنی ده. او حدیث نه معلومیږی چه دا هم د الله تعالیٰ دشمنان دی. (مَنْ عَادٰى لِيْ وَلِيًّا فَقَدْ آذَنْتُهٗ بِالْحَرْبِ) لکه مخکښې په صورتونو د عداوت د الله تعالیٰ کښې بیان شو. (٤) د الله تعالیٰ دپاره صفت د عداوة شته او دا د الله تعالیٰ صفت فعلی دے چه الله تعالیٰ دوستی او دشمنی کوی. او په خپل حقیقت باندے حمل دے.

(۵) د اهل حقو نه دفاع پکار ده.

(٦) پدے کښې تعریض دے چه یهود د الله تعالیٰ دشمنان دی.

اُوس ترغیب قرآن ته ورکوی او د هغه چا بدی بیانوی چه د الله دا آیتونه نهٔ منی :

وَلَقَدْ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ اٰيٰتٍۢ بَيِّنٰتٍ ۚ وَمَا يَكْفُرُ بِهَآ اِلَّا الْفٰسِقُوْنَ ﴿٩٩﴾

او یقیناً مونږ نازل کړیدی تا ته آیتونه ښکاره (مضمون والا) او انکار نهٔ کوی ددے نه مګر هغه کسان چه ډیر فاسقان دی.

**تفسیر** : په دے آیت کښې دغه یهودو ته زورنه او توبیخ دے چه د جبریل علیه السلام په واسطه خو واضح آیتونه نازل شویدی نو چه دا خلق ښکاره آیتونو ته فکر نهٔ کوی او صرف په عذر د دشمنئ باندے د جبرئیل علیه السلام سره د قرآن نه انکار کوی نو دا ډیر سرکشه خلق دے. دایو مناسبة هم شو (۲) بل دا چه د یهودو خباثت شروع دی نو دلته بل خباثت ذکر کیږی.

**شان نزول** : حافظ ابن کثیرؒ او ابن جریرؒ د محمد بن اسحاقؒ نه روایت راوړیدے چه ابن عباس رضی الله عنه فرمایلی دی : ابن صوریا الفطیونی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اُووئیل : (يَا مُحَمَّدُ! مَا جِئْتَنَا بِشَيْءٍ نَعْرِفُهٗ وَمَا اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلَيْكَ مِنْ آيَةٍ بَيِّنَةٍ فَنَتَّبِعُكَ، فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى فِيْ ذٰلِكَ مِنْ قَوْلِهٖ وَلَقَدْ اَنْزَلْنَا الخ) (اے محمد (صلی الله علیه وسلم) تا مونږ ته داسے څه رانهٔ وړل چه مونږ ئے اُوپیژنو او الله تعالیٰ په تا باندے څه واضحه نښه نهٔ ده نازله کړے چه مونږه ستا تابعداری اُوکړو نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو.) چه واضحه آیتونه نازل شویدی لیکن چا کښې چه کفروی نو

هغوی واضح دلیل ته واضح نهٔ وائی۔ او مطالبه د واضح کوی۔

(۱) د آیات بینات) نه مراد د قرآن کریم هغه آیتونه دی چه په هغے کښې الله تعالیٰ د یهودو پټ علوم او اسرار، د بنی اسرائیلو د پلارانو نیکونو خبرونه او د تورات او د هغوی د نورو آسمانی کتابونو هغه خبرے بیان کړیدی چه د هغوی د علماؤ نه علاوه بل هیچا ته نهٔ وے معلومے او هغه قدیم او جدید یهودیانو بدل کړی وے، نو ددے آیتونو د اوریدو نه بعد خو پکار دا وو چه هغوی په رسول الله ﷺ باندے ایمان راوړے وے کوم چه د هیڅ انسان نه د زدهٔ کړے نه بغیر د هغه خبرو اطلاع ورکړه لیکن هغوی ددے نعمت نه د سرکشئ او د دشمنئ او د بد نصیبئ د وجه نه محروم پاتے شو۔

د قرآن کریم آیتونو ته آیات بینات ولے وائی ؟ وجه دا ده چه دا (وَاضِحَاتُ الْمَعَانِي، ظَاهِرَةُ الدَّلَالَاتِ وَظَاهِرَةُ الْإِعْجَازِ) (معانی او مقاصد ئے هم واضح وی او دلالتونه ئے هم واضح وی او اعجاز ئے هم واضح وی)۔

(۲) دارنګه آیات بینات نه مراد د نبی ﷺ د نبوت او رسالت هغه واضح او قطعی دلیلونه دی چه په نبی ﷺ باندے نازل شویدی، برابره ده که هغه د قرآن کریم د مدلل بیاناتو په صورت کښې وی او که د هغه کارنامو، علامات، او شواهد او معجزاتو په شکل کښې وی کوم چه د هغه نه ښکاره شویدی۔ نو فرمائی : چه دا څیزونه دومره واضحه دی چه که چا کښې معمولی شان عقل وی نو هغه ددے نه انکار نشی کولے، مګر صرف هغه خلق انکار کوی چه نافرمان او سرکشان وی۔ نو معنیٰ به دا وی (وَلَقَدْ أَنْزَلْنَا إِلَيْكَ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ عَلَى صِدْقِ نُبُوَّتِكَ) (مونږ ډیر واضح دلائل او معجزات ستا د نبوت په رشتینوالی نازل کړیدی)

﴿ وَمَا يَكْفُرُ بِهَا إِلَّا الْفَاسِقُوْنَ ﴾ دا یهود او نصاریٰ او مشرکان ډیر سرکشه شوی دی څکه ئے نهٔ منی ګنے دا واضح آیتونه دی۔ د فسق تشریح مخکښې ذکر شویده۔ دلته د فاسق نه مراد الفاسق فی الکفر دے (أَيِ الْمُتَمَرِّدُ فِي الْكُفْرِ) (یعنی په کفر کښې سرکشه) او عام ګناهګار نهٔ دے مراد څکه ګناهګار خو د الله تعالیٰ قرآن منی۔ دلته ئے مصداق یهود دی۔

فسق نافرمانئ ته وئیلے شی او دا وړے ګناه ته هم وئیلے شی او غټے ته هم او کفر ته هم، په قرآن کریم کښې د غټو نافرمانیانو دپاره هم استعمال شویدے۔

ددے وجه نه حسن بصریؒ نه نقل دی چه فسق چه کله مستعمل شی په هره نوعه د ګناهونو کښې نو د هغے نوعے لوئی قسم پکښې مراد وی یعنی کله چه د مسلمانانو په

معاصيو کښې فسق ذکر شي نو مراد ددې نه کبيره گناهونه وي او چه په کفر کښې ذکر شي نو مراد ددې نه آخري درجه د کفر وي چه تجاوز ئې کړې وي په حالت د کفر کښې د حد نه يعني ضدي او عنادي او سرکشي کونکې په کفر کښې او داسې شخص د الله تعالیٰ د طاعت نه پوره وتلې وي۔ اعلیٰ درجه فاسق وي۔ ( تفسير النيسابوري)

او دلته همدا معنیٰ مراد ده۔ يعني دوی په کفر کښې د حد نه وتلي دي نو ځکه دا واضحه معجزات او دلائل هم ورته هيڅ نۀ ښکاري۔

بيا دلته دا **سوال** نۀ پيدا کيږي چه فاسق خو کبيره گناه والا ته هم وائي۔ نو ډير فاسقان شته او په آيتونو باندې کفر نکوي. ؟ **جواب** دا دې چه دلته فسق په اعلیٰ درجه کښې استعمال دې۔ يعني اعلیٰ درجه فاسق کفر کوي چه هغه کافر دې۔ او دليل پدې باندې دا دې چه اول کښې ئې (وَمَا يَكْفُرُ بِهَا) أووئيلو نو دې نه معلومه شوه چه د فسق نه مراد دلته اعلیٰ درجه فسق دې چه هغه مرادف د کفر دې۔ (٢) دويم د سياق نه معلوميږي چه آيتونه د يهودو په باره کښې دي او هغوی په قرآن کريم باندې کفر کولو۔

## فوائد الآية :

(١) - أَنزَلْنَا کښې انزال ونيلې شي د بره نه يو شې راخکته کول نو دا کلام (قرآن) د الله تعالیٰ کلام دې او الله تعالیٰ بره دې۔ پدې کښې معتزله او باطل پرست داسې معنیٰ کوي چه انزال خو صفت د جسم دې نو دا د الله تعالیٰ د کلام دپاره نۀ استعماليږي ليکن هرکله چه جبريل ﷺ د بره نه خکته راکوز شو او خلقو ته ئې ددې خبر ورکړو نو ديته ئې انزال أووئيلو۔ (تفسير رازي) مطلب ئې دا دې چه الله تعالیٰ بره نۀ دې، بلکه د جبريل راکوزيدو د وجه نه ئې د انزال لفظ استعمال کړيدې حال دا چه دا خبره خطاء ده بلکه الله تعالیٰ د عرش دپاسه دې او خپل کلام ئې د جبريل ﷺ په واسطه زمکې ته راکوز کړيدې حقيقةً۔

(٢) قرآن کريم وحي ده د الله تعالیٰ د طرف نه ـ (٣) پدې کښې عظمت د قرآن معلوم شو چه الله تعالیٰ ددې د انزال نسبت خپل ځان ته أوکړو۔ او ديته ئې آيت أووئيلو۔

(٤) د الله تعالیٰ علو ترې معلومه شوه۔ (٥) د قرآن کريم صفت دا دې چه دا آيات بينات (واضحه آيتونه) دي۔ نو ددې منافات نشته ددې آيت سره (مِنْهُ آيَاتٌ مُحْكَمَاتٌ هُنَّ أُمُّ الْكِتَابِ وَأُخَرُ مُتَشَابِهَاتٌ) (آل عمران : ٣) ځکه ددې تشابه نه مراد دا دې چه په بعض

خلقو متشابه دی، نهٔ په تولو۔ دارنګه دغه متشابهات به محکمات ته واپس کړے شی نو دا هم واضح شو۔ لکه همدغه آیت کښې ذکر دی۔

(٦) په قرآن کریم باندے کفر نهٔ کوی مګر فاسق۔ (٧) چا چه په قرآن کفر اُوکړو نو دا به غټ فاسق وی۔ (٨) د فاسق اطلاق په کافر باندے هم کیږی لهذا فسق دوه قسمه شو (١) فسق اکبر (یعنی کفر چه مخرج عن الملة وی) (٢) فسق اصغر یعنی عام ګناهونه چه دا مُخرِج عن الملة والایمان نهٔ دے لیکن د عدالت سره منافی دے۔

اَوَ كُلَّمَا عٰهَدُوْا عَهْدًا نَّبَذَهٗ فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ ۚ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿١٠٠﴾

آیا او هرکله چه دوی لوظ اُوکړی یو لوظ نو ماتوی دا لوظ یوه ډله د دوی نه، بلکه اکثر د دوی نه ایمان نهٔ راوړی۔

**تفسیر** : اُوس د دوی بل مرض د لوظ ماتول ذکر کوی او پدے باندے زجر ورکوی۔ او پدے کښې اظهار د تعجب دے د دوی په خبیث عادت باندے چه کله هم دوی د الله تعالیٰ سره کوم عهد او لوظ کړیدے نو هغه ئے مات کړیدے او یو قسم تسلی ده رسول الله ﷺ ته چه که دوی د قرآن کریم د آیتونو نه انکار کوی نو دا د څه تعجب خبره نهٔ ده ځکه دا خو د دوی او د دوی د مشرانو زوړ عادت پاتے شویدے چه همیشه د الله تعالیٰ د نخو نه انکار کولو سره راروان دی۔ نو وائی چه دا هغه جماعت دے چه ګډوډ خواهشات لری او په یوه رأیه او په یو لوظ مضبوط نهٔ دی۔ خپل مینځ کښې بعض د بعضو د عهد او د لوظ پابند او محافظین نهٔ دی که دوی یو مضبوط لوظ اُوکړی نو په دوی کښې یوه ډله پیدا شی هغه ئے مات کړی او د هغه نورو مخالفت اُوکړی۔

عٰهَدُوْا عَهْدًا : ددے نه کوم عهود او لوظونه مراد دی ؟ (١) عَهْدُ اللّٰهِ تَحْتَ الْجَبَلِ ۔ (د الله تعالیٰ سره ئے د طور د پورته کولو په وخت لوظ اُوکړو چه سمعنا (مونږ به د تورات پابندی کوو) لیکن بیا ئے اُونکړه۔ (عَصَیْنَا) دغه شان پدے سورت کښې نور ذکر شوی لوظونه او اوامر۔ (٢) (عَهْدُهُمْ مَعَ الْاَنْبِيَاءِ مِنْ بَعْدُ) (ددے نه روستو دوی د انبیاؤ سره لوظونه کړی وو هغه ئے هم مات کړل۔ (٣) (عَهْدُهُمْ اَخِيْرًا مَعَ النَّبِيِّ ﷺ) (په آخره کښې ئے د نبی ﷺ سره لوظونه کړی وو کله چه هغه مدینے ته راغلو نو تولو یهودو (بنو قینقاع، قریظه او بنی النضیر) سره ئے لوظونه اُوکړل چه یو بل سره به قتال نهٔ کوو۔ او د مشرکانو ملګرتیا به نهٔ

کوو لیکن دوی هغه ټول مات کړل۔ (فی ظلال القرآن ۱/٦٦)

(٤) الله تعالیٰ د دوی نه لوظ اخستے وو چه ایمان به په آخری رسول راوړئ نو دوی ترے انکار شروع کړو۔ (٥) هر قسم لوظ اګرکه خپل مینځ کښې وی د هغې هم پابند نهٔ دی۔ نو بس لوظ ماتول د دوی فطرت ثانی جوړ شویدے۔ (٦) دارنګه دوی خپل مینځ کښې دا عهد کړے وو چه کله محمد (ﷺ) مبعوث شو نو مونږ به د مشرکین عرب په مقابله کښې د هغه ملګری کیږو لیکن کله چه راغلو نو بیا ئے ترے انکار اُوکړو

**نَبَذَهُ** : (نَبْذ) (طَرْحُ الشَّيْءِ عَلىٰ سَبِيلِ النَّفْرَةِ) (په اصل کښې غورزول د یو شی دی په طریقه د نفرت سره) کله په معنیٰ د مطلق پریخودلو سره راځی۔

علامه ابن عاشورؒ فرمائی : نبذ وئیلے شی یو شے د لاس نه ګوزارولو ته او دا دلته استعاره شویدے د پاره د نقض العهد یعنی عهد ماتول او وفاء نهٔ کول ئے مشابه کړیدی د غورزولو د هغه شی سره چه هغه په لاس کښې نیولے شوے وو۔

**فَرِيقٌ مِّنْهُمْ** : دا اشاره ده چه ټولو عهدونه نهٔ دی مات کړی بلکه بعضو پکښې په عهد باندے وفاء کړیده لکه عبد الله بن سلام ﷺ وغیره۔

﴿بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ﴾ دلته الله تعالیٰ ترقی کوی په نبذ کښې او هغه داسے چه اول ئے نسبت د ذم او د لوظ ماتولو فریق ته اُوکړو دے دپاره چه بعض ایمان والا ترے اُوباسی او هغوی ته دا ذم شامل نهٔ شی۔ نو بیا دا وهم راتلو چه دغه لوظ ماتونکی به کم کسان وی نو په بل اکثرهم سره ئے دا وهم دفع کړو چه دا ډیر کسان دی۔ لهذا اکثرهم او دغه فریق دواړه یو شے دے۔ یعنی دغه لوظ ماتونکے فریق ډیر کسان دی او ایمان هم نهٔ راوړی، لهذا دا (بل) به د اضراب دپاره وی د یو وصف نه بل وصف ته یعنی د وصف د نقض العهد نه انتقال دے عدم ایمان د دوی ته۔ ځکه حقیقی مؤمن ضرور د لوظ پابند وی۔

(۲) دویم دا چه (نَبَذَهُ فَرِيقٌ) او (بَلْ أَكْثَرُهُمْ) کښې دوه قسمه خلق او دوه قسمه لوظ ماتولو ته اشاره ده نو یوه ډله لوظ ماتوی ظاهراً او اکثر پکښې هغه خلق دی چه باطناً لوظ ماتوی اګرکه ظاهراً هسے په لوظ پابند وی خو حقیقت کښې هغوی هم لوظ ماتوی۔

(۳) یا پدے کښې دوه قسمه خلقو ته اشاره ده اول هغه دی چه عهد ئے منلے دے خو روستو ئے مات کړیدے۔ دا یو فریق دے۔ اوبل قسم هغه دی چه د سره نه عهد هم نهٔ منی او دا اکثر خلق دی چه انکار کوی د عهد نه په ضد او عناد او په تحریف سره په عهودو د تورات کښې۔

(٤) یا اشاره ده چه څه کسان لوظونه د خلقو ماتوی او اکثر د الله تعالیٰ ماتوی، لایؤمنون دی.

**فائده** : اهل کتابو کښې څلور قسمه دلے وو (۱) بعض هغه خلق وو چه په تورات ئې ایمان راوړے وو او د هغے حقوق ئې پوره اداء کول لکه مؤمنان اهل کتاب. او دا کم خلق وو چه (بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ) پرے دلیل دے. (۲) دویم هغه خلق وو چه ښکاره طریقے سره ئې د الله تعالیٰ لوظونه مات کړی وو، او سرکشان وو. دا ذکر دی په (نبذ فریق) سره.

(۳) یوه هغه فرقه وه چه دا لوظونه ئې خو ښکاره نهٔ وو مات کړی لیکن دوی دا لوظونه د جهالت د وجه نه پریخی وو، دا پکښې اکثر خلق وو.

(٤) څلورم هغه فرقه وه چه ظاهره کښې ئې خو پرے تمسك کړے وو لیکن په پټه ئې ګوزار کړی وو، ښه پوهیدل لیکن د عناد او د حسد وجه نه ئې مات کړل او دا متجاهلین دی (چه خانونه ئې قصداً جاهلان کړیدی) (تفسیر ابی السعود، والبیضاوی وروح المعانی).

**فائده ۲** : دا آیت دلیل دے چه کفارو نه هم مطالبه د اعمالو کولے شي دلته ترے الله تعالیٰ د لوظ د پابندئ مطالبه کوی او په عدم وفاء باندے ورته زورنه ورکوی.

## فوائد الآية :

۱- د یهود او نصاراؤ په لوظ باندے دوهوکه کیدل نهٔ دی پکار ځکه دوی چه هر کله لوظ اُوکړی نو ماتوی ئې، د یهود او نصاراؤ اُوس وخت کښې هم دا طریقه ده چه د مسلمانانو سره لوظ اُوکړی چه دومره پیسے به درکړو او ستاسو حفاظت به کوو او ستاسو ملك به برابر کړو خو هیڅ کله ئې نهٔ پوره کوی، مسلمان به د دوی په وعدو او لوظونو نهٔ دوکه کیږی اکثرے ایمانه دی لږ کسان پکښې چرته ایمان راوړی.

(۲) د یو امت یو فریق لوظ مات کړی نو دا د ټول امت دپاره لوظ ماتول معتبریږی ترڅو چه هغوی ترے براءت نهٔ وی کړے، که هغوی براءت اُوکړی نو بیا هغوی ته د دغه لوظ ماتولو عار او شرم نهٔ لګیږی لیکن که غلی پاتے شي نو بیا د یو فریق لوظ ماتول د ټول امت لوظ ماتول دی ځکه دلته الله تعالیٰ د یو فریق په لوظ ماتولو سره ټولو ته توبیخ ورکړو.

(۳) پدے امت کښې که چا لوظ مات کړو نو دهٔ کښې به دوه محظوره (ممنوع کارونه) راجمع شي ۱- یو منافقت. ۲- او بل مشابهت د یهودو سره.

وَلَمَّا جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ نَبَذَ فَرِيْقٌ

او هرکله چه راغلو دوی ته رسول د طرف د الله نه، تصدیق کونکے د هغه کتابونو چه د دوی سره دی نو گوزار کړو یو ډلے

مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ ۙ كِتٰبَ اللّٰهِ وَرَآءَ ظُهُوْرِهِمْ كَاَنَّهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۰۱﴾

د هغه کسانو نه چه ورکړے شوے وو کتاب (تورات) د الله کتاب لره روستو د شاګانو نه ګویا که دوی نه پوهیږی۔

**تفسیر**: دے آیتونو کښې الله رب العزت زجر ورکوی چه د جبرئیل ؑ دشمنئ دوی غښ کفر ته اُورسول چه په آخری رسول باندے ئے کفر اُوکړو او د الله تعالیٰ کتاب ئے شاته گوزار کړو۔ یعنی د دوی دا مرضونه بیانوی چه اُوګوره دا داسے خلق دی چه د الله تعالیٰ کتاب دوی شاته غورځولے دے لکه د اَمیانو په شان، سره ددے نه چه دوی پوهیږی او د سره نه ئے راخلی هم نهٔ، او د الله رسول ورته ښه معلوم دے په کتاب کښې خو کتاب ئے خپل شاته گوزار کړیدے او د دوه قسمه جادو پسے روان شویدی۔

د سلیمان ؑ د زمانے جادوئے هم راواخستو او په هغے به ئے جادوګری کوله او د هاروت او ماروت جادوئے هم راواخستو او په دے باندے به ئے پیسے ګټلے۔ د یهودو سره څه وو؟ کودے منترے، جادو، دمونه دا د دوی دین وو۔ د رسول الله ﷺ په وخت کښې دوی سره څه د هدایت خبرے نهٔ وے چه خلق ورشی او دوی نه هدایت واخلی، ددے وجه نه عرب ترے متأثره هم نهٔ وو۔ چه اُووائی چه دا یهود ډیر ښه خلق دی او بزرګان دی څوك ترے خاص متاثر نهٔ وو۔ ځکه خپل عملونه ئے برباد وو، اخلاق ئے خراب وو، شومان وو، او د عقیدے کوم دعوت ئے هم نهٔ وو، ګنے که دوی چرته دعوت کولے، عام عرب به ئے خپل دین یهودیت کښې داخل کړی وے۔ خو د هغوی سره به دغه زمانه کښې څه وو؟ صرف جادو وو او خلقو له به ئے په سود پیسے ورکولے او دوه قومونه به ئے جنګول او د هغوی نه به زمکے نیولے۔

دا د دوی کارونه وو لکه په (الرحیق المختوم) کښې علامه مبارکفوری رحمه الله د دوی په تاریخ کښې دا مرضونه لیکلی دی۔ نو الله تعالیٰ فرمائی: چه دوی کښې دا مرضونه پیدا شو چه د الله کتاب ئے شاته گوزار کړو او د جادو پسے روان شو۔ دا آیتونه بعینه لګی زمونږ ددے زمانے د هغه چا سره چه قرآن او حدیث پریږدی او منطق او فلسفے او نورو علومو پسے روان

شی، په سلم العلوم کښې څلور کاله تیروی او په قاضی او حمد الله کښې درے درے کاله تیروی او حدیث په پنځه شپږ میاشتو کښې په یو گر او منډه کښې تیر کړی او بیا ئے نهٔ راخلی، نهٔ ئے مطالعه کوی، نهٔ ئے چرته درس کوی۔ د الله تعالیٰ د دین غم ورسره نهٔ وی او نهٔ د خپل عمل غم ورسره وی چه نیك عمل کول پکار دی، بلکه نیك عمل خو په قرآن او حدیث باندے کیږی چه دا ورته یاد نهٔ وی نو په څه به عمل اُوکړی !۔ د قرآن او حدیث نه علاوه په نورو کتابونو خو زړه سختیږی۔ دارنگه ډیر خلق د الله تعالیٰ د کتاب نه په دنیاوی علومو، سائنس، انجنیری او ډاکټری سره غافل شو۔ ولا حول ولا قوة الا بالله العظیم۔

**ربط** : ۱ - مخکښې آیت کښې د یهودو د لوظ ماتول ذکر شو چه دوی لوظ ماتونکی خلق دی نو پدے آیت کښې د هغے واقعاتی شهادت پیش کوی چه گوره کله چه دوی ته د الله تعالیٰ د طرف نه رسول راغلو چه د دوی د پیشنگویانو بالکل مطابق وو کوم چه د دوی سره د مخکښې نه موجود وے نو دوی هغه اُونهٔ منلو او د الله تعالیٰ کتاب ئے شاته گوزار کړو۔

۲ - دویم : مخکښې د عهود الهیه ؤ د ماتولو او گوزارولو تذکره اُوشوه نو پدے آیت کښې گوزارول د هغه کتاب ذکر کوی چه په هغے کښې دغه عهود ذکر وو۔

(رَسُوْلٌ) نکره کښې مقصد تعظیم دے یعنی دا عظیم رسول دے او دا تفخیم ذاتی دے یعنی ډیر د کمال نه ډك رسول دے، او ددے نه مراد محمد رسول الله ﷺ دے۔

(مِنْ عِنْدِ الله) پدے کښې بل تعظیم دے چه دا رسول د عظیم ذات د طرفه راغلے دے، د مخلوق رسول نهٔ دے۔ مصدق کښې تفخیم علمی دے چه داسے عظیم رسول دے چه د مخکنو کتابونو تصدیق هم کوی، د هغے علم ئے هم راگیر کړیدے۔ نو دوی سره په هغه باندے د ایمان نهٔ راوړلو هیڅ عذر نشته۔

فَرِيْقٌ : کښې اشاره ده چه ټول اهل کتابو د الله تعالیٰ کتاب نهٔ دے غورزولے بلکه څه کسانو پکښې ایمان هم راوړیدے لکه عبد الله بن سلام او نجاشی وغیره۔

اُوتُو الْكِتَابَ : **فائده** : د قرآن په اصطلاح کښې اُوتو الکتاب هغه کتابیانو ته وئیلے شی چه په کتاب ئے صحیح عمل نهٔ وی کړے یعنی دوی له کتاب ورکړے شویدے خو دوی د هغے حق نهٔ دے ادا کړے۔ نو دا په مقام د قباحت کښې استعمالیږی۔ او (آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ) په مقام د مدح کښې ذکر کیږی چه مونږ ورته کتاب ورکړیدے او دوی قبول کړیدے او عمل ئے پرے کړیدے۔ او (اُوتُوا نَصِيْبًا مِنَ الْكِتَابِ) هغه نیمگړی مُلیانو دپاره استعمالیږی چه

صحیح طریقے سره ئې کتاب الله نۀ وي زانیولے۔ (۱) دلته د أُوتُوا الْكِتَابَ نه د اهل کتابو علماء او مدرسین مراد دي (۲) یا هغه ټول خلق چه دعوی لري چه مونږ په کتاب الله باندې روان یو برابره ده که علم ورسره وي او که نۀ وي۔

﴿ كِتَابَ اللهِ ﴾ کتاب الله نه مراد (۱) یا قرآن کریم دے، یعنې دوی ته قرآن کریم راغلو نو دوی هغه کتاب ته هیڅ توجه ورنکړه ګویا کښې دوی ته هیڅ علم نشته چه یو کتاب راتلونکے دے، حال دا چه دوی ته ددې د مخکښې نه علم وو نو دوی ډیر اهل وو چه دا کتاب ئې قبول کړے وے۔ ځکه چه دوی خو د آسماني کتاب د وارث او امین کیدو مدعیان وو، لیکن په حسد او ضد کښې راغلل او سره د علم نه د الله تعالیٰ د کتاب نه منکر شو۔

(۲) دویم دا چه د کتاب الله نه مراد تورات او انجیل دي۔ مطلب به دا وي چه دے اهل کتابو د اهل کتاب کیدو سره د الله تعالیٰ کتاب (تورات) لره د نبي آخر الزمان په معامله کښې داسې ګوزار کړو ګویا کښې دوی ته پرې د سره علم نشته۔

او دا غوره تفسیر دے۔ د دوه وجو نه (۱) اوله وجه دا ده چه لفظ د نَبَذَ په هغه مقام کښې ذکر کیږي چه یو شے مخکښې نه ورسره وي او بیا ئې أُوغورځوي۔ او دوی سره مخکښې نه قرآن نۀ وو۔ اګر که ددې نه ابن عاشور رحمه الله دا جواب کړیدے چه دا بناء دے په تمثیل، نۀ په معنیٰ خپله۔ یعني دے معرضینو د الله تعالیٰ کتاب ته هیڅ اهتمام او اهمیت ورنکړو، داسې شو لکه چه د یو سړي په لاس کښې یو شے وي خو اهمیت ئې ورسره نۀ وي نو هغه ګوزار کړي۔ (التنویر ۱/۶۰۸)

(۲) دویمه وجه دا ده چه فریق لفظ ذکر کول دلیل دے چه دلته د کتاب الله نه تورات مراد دے ځکه که قرآن مراد شي نو بیا د فریق ذکر کولو هیڅ معنیٰ نۀ جوړیږي ځکه چه عامو اهل کتابو قرآن پریخودے وو۔ یواځې یو فریق نۀ وو پریخودے۔ (اللباب)

نو دلته **سوال** دا دے چه هغوی خو تورات نۀ وو غورځولے بلکه د هغې درس او تدریس به ئې کولو؟ **جواب**: هر کله چه قرآن او تورات دواړه په ایمانیاتو کښې د یو بل موافق وو، نو په قرآن ایمان نۀ راوړل او ددې نه انکار کول داسې دي لکه د تورات نه انکار کول ځکه دواړه د الله تعالیٰ کتابونه دي۔ ۲- دارنګه دوی ته وئیلے شوي وو چه په آخري رسول او کتاب باندې به ایمان لرئ او دوی ایمان رانۀ وړو نو ګویا کښې خپل کتاب ئې ګوزار کړو، عمل ئې پرې أُونکړو۔ لکه سفیان بن عیینۃ نه نقل دي چه (وَاِنَّ أَدْرَجُوْهُ فِي الْحَرِيْرِ

وَالدِّيْبَاجِ وَحَلَّوْهُ بِالذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَلَمْ يُحِلُّوا حَلَالَهٗ وَلَمْ يُحَرِّمُوا حَرَامَهٗ فَذٰلِكَ النَّبْذُ -قرطبی والنیسابوری) (یعنی اگرکه دوی په قسماقسم وریښمو او نرمو کپړو کښې تاؤ کړے وو او په سرو او سپینو زروئے خائسته کړے وو لیکن د هغے حلال حلال نهٔ گنړی او حرام ئے حرام نهٔ گنړی نو دا نبذ (پریخودل) شول۔ ○ امام شعبیؒ فرمائی : (هُوَ بَيْنَ أَيْدِيْهِمْ يَقْرَؤُوْنَهٗ وَلٰكِنْ نَبَذُوا الْعَمَلَ بِهٖ) (دوی به تورات په لاسونو کښې راخستلو او لوستلو به ئے لیکن عمل ئے پرے نهٔ کولو نو دا گوزارل شو)۔ (قرطبیؒ، الکشف والبیان للثعلبی)

او دا دلیل دے چه څوك قرآن کریم نهٔ راخلی او د هغے درس او تدریس او تعلیم نهٔ ورکوی او په هغے باندے عمل نهٔ کوی نو اگرکه ډیرو مزین او منقشو توتو کښې ئے تاؤ کړی او ډیر احترام ئے اُوکړی خو دا د کتاب غورزول دی، اصل مقصد د کتاب الله عمل کول او د هغے تعلیمات خپلول دی۔

﴿ وَرَاءَ ظُهُوْرِهِمْ ﴾ دا کنایه ده د اعراض کولو نه او تشبیه ده د هغه چا سره چه یو شے شا طرف ته گوزار کړی نو هغے ته کتلے نهٔ شی مگر هله چه سټ ئے کوږ شی او پدے کښې اشاره ده چه د الله د کتاب نه اعراض کول سبب د تنزل او شا ته راتلو دے۔

وراء لفظ هم شا ته وائی او ظهر هم شاته وائی نو وراء ئے مضاف کړو ظهر ته (لِتَاكِيْدِ بُعْدِ الْمَتْرُوْكِ بِحَيْثُ لَايَلْقَاهُ بَعْدَ ذٰلِكَ) دپاره د تاکید یعنی ډیر لرے ئے گوزار کړو گویا کښې دوباره ورته نهٔ واپس کیږی۔ (التنویر)

﴿ كَأَنَّهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴾ ددے مفعول پټ دے (۱) (كَأَنَّهُمْ لَايَعْلَمُوْنَ بِأَنَّهٗ كِتَابُ اللّٰهِ) (۲) او لَا يَعْلَمُوْنَ بِأَنَّ هٰذَا النَّبِيَّ حَقٌّ صَادِقٌ) یعنی نهٔ پو هیږی پدے چه دا د الله تعالیٰ کتاب دے) او پدے باندے عمل کول فرض دی۔ یا دا نبی رشتینے دے۔ اول قول غوره دے۔ او پدے کښې اشاره ده چه دوی به پو هیدل لیکن حسد راخستی وو۔

**فائده** : دے عالمانو ته ئے جاهلان اُووئیل څکه چه دوی د الله تعالیٰ کتاب شاته گوزار کړو او عمل ئے پرے پریخودو نو دوی نازل شو په منزله د جاهلانو گویا کښې دوی نهٔ پو هیږی په دے کتاب او جاهلان دی، څکه که دوی پو هیدلے نو په تقاضا د خپل علم به روان وے او په خپل کتاب به ئے عمل کولے۔ دارنگه دوی دا کتاب غورځولے وو مکابرةً او عناداً او عنادی اگرکه پو هه وی خو د جاهلانو پشان نازلولے شی۔

نو تورات کښې چه د الله تعالیٰ کوم حکمونه وو او کومے عقیدے وے او د الله تعالیٰ د تعلق کومے خبرے وے، د آخرت خبرے وے، د رسول الله ﷺ په باره کښې وے، دوی به د هغے غم نهٔ

کولو بلکه صرف د پیسو او مال غم به ئې کولو۔ او دا قانون دے چه د الله تعالیٰ کتاب ډې پریخودونو ضرور به بل څیز ته متوجه کیږي، اخبارونو ته به لاس اچوے یا به منطقونو او فلسفو کښې اخته کیږے ځکه چه انسان حساس دے ضرور به یو شي کښې مشغول کیږي، دا کـه د الله تعالیٰ بندګی کوی نو د غیر الله د عبادت نه به خلاص وی، که هغه ئې پریخوده نو د بل په عبادت به اوړي، کـه د رسول الله ﷺ تابعداری ئې کوله نو بنه ده، ګنې د بل چا په اطاعت باندے به اخته کیږي، که د آخرت تیاری ډې کوله، بنه ده، ګنې د نفس او د خواهش په بندګۍ به اوړے۔ د شیطان غلام کیږے به، که د الله تعالیٰ کتاب ډې وئیلو، نو بنه ده، ګنې په داسے غلطو کتابونو او غلطو کسبونو به ډې الله تعالیٰ واړوی چه ګمراه به ډې کړی نو دوی هم په غلطو کتابونو واوړیدل۔ چه هغه څه وو؟ هغه سحر او جادو وو۔

وَاتَّبَعُوْا مَا تَتْلُوا الشَّيٰطِيْنُ عَلٰى مُلْكِ سُلَيْمٰنَ ۚ

او روان شو دوی د هغه څه پسے چه لوستل به شیطانانو (جنی او انسی) په زمانه د بادشاهۍ د سلیمان (علیه السلام) کښې

وَمَا كَفَرَ سُلَيْمٰنُ وَلٰكِنَّ الشَّيٰطِيْنَ كَفَرُوْا يُعَلِّمُوْنَ النَّاسَ السِّحْرَ ۗ وَمَآ اُنْزِلَ

او کفر نه وو کړے سلیمان (علیه السلام) لیکن شیطانانو کفر کولو چه خودو به ئې خلقو ته جادو او هغه څه (پسے) چه نازل کړے شوے وو

عَلَى الْمَلَكَيْنِ بِبَابِلَ هَارُوْتَ وَمَارُوْتَ ۗ وَمَا يُعَلِّمٰنِ مِنْ اَحَدٍ حَتّٰى يَقُوْلَآ اِنَّمَا

په دوه ملائکو باندے په بابل ښار کښې چه هاروت او ماروت وو او هغوی به تعلیم نه ورکولو هیچا ته تردے چه اُونه ئې وئیل : یقیناً

نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ ۗ فَيَتَعَلَّمُوْنَ مِنْهُمَا مَا

موږه (ستاسو دپاره) امتحان یو، نو کفر مه کوه (په کولو د جادو) نو دوی به زده کولو د دغه دوو ملائکو نه هغه څه

يُفَرِّقُوْنَ بِهٖ بَيْنَ الْمَرْءِ وَزَوْجِهٖ ۗ وَمَا هُمْ بِضَآرِّيْنَ بِهٖ مِنْ اَحَدٍ

چه جدائی به ئې راوسته په هغې سره په مینځ د سړی او ښځه د هغه کښې او نه وو دوی ضرر ورکونکی په دے سره هیچا ته

اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَیَتَعَلَّمُوْنَ مَا یَضُرُّهُمْ وَلَا یَنْفَعُهُمْ ؕ

مگر په حکم د الله تعالیٰ او دوی به زده کولو هغه شے چه ضرر به ئے ورکولو دوی ته او فائده به ئے نه ورکوله دوی ته

وَلَقَدْ عَلِمُوْا لَمَنِ اشْتَرٰىهُ مَا لَهٗ فِی الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ ۫ؕ

او یقیناً دوی پو هیدل خامخا چه چا واخستو جادو لره (نو) نهٔ به وی دهٔ لره په آخرت کښې هیڅ برخه

وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهٖۤ اَنْفُسَهُمْ ؕ لَوْ كَانُوْا یَعْلَمُوْنَ ﴿۱۰۲﴾

او خامخا ډیر بد دے هغه شے چه دوی خرڅ کړیدی په هغے سره ځانونه خپل. آرمان که دوی پو هیدلے.

**تفسیر** : په دے آیت کښې بل عیب او مرض د یهودو ذکر کوی او په هغے باندے رټنه ورکوی، هغه دا چه دوی جادو پسے روان شو او د الله تعالیٰ کتاب ئے پریخودو. او دا جواب د اعتراض او شبهے دے چه دوی وئیلی وو سلیمان علیه السلام خو جادوگر وو او بادشاهی ئے د جادو په زور سره چلوله او تهٔ د هغه صفت کوے او د انبیاؤ په ډله کښې ئے شمارے نو ددے نه خو یو دا معلومه شوه چه ته په خپله حق نبی نهٔ ئے ځکه چه جادوگر ته نبی وائے.

(او د یهودو سلیمان او داود علیهما السلام خوښ نهٔ وو، ځکه ئے هغوی ته د جادو نسبت کولو وجه دا وه چه یهودو کښې دا مشهوره وه چه یو نسب کښې به بادشاهی چلیږی او بل کښې به نبوت، د یهودا په اولادو کښې به بادشاهت وی او د (لاوی) په اولادو کښې به نبوت وی او داود او سلیمان علیهما السلام له الله تعالیٰ دواړه جمع کړل نو دوی له پدے غصه ورغله، نو د دوی مخالفتونه ئے شروع کړل ددے وجه نه د هغه دور نه دوی دا خبره مشهوره کړیده چه سیاست او دین به دواړه نهٔ جمع کیږی، او (العیاذ بالله) داود علیه السلام غصب کړیدے چه دواړه ئے ځانله جمع کړیدی. دا وجه ده چه دوی په داود علیه السلام باندے بدنامے او تهمتونه هم لګولی دی، کله وائی چه فلانی ځائے کښې ئے ښځه اُولیدله او هغه ئے خوښه شوه او خاوند ئے ورله جهاد ته اُولیږلو چه ما ته ئے ښځه پاتے شی. دا د دروغو قصے ئے ورپسے جوړے کړیدی او بعض بے تحقیقه مفسرین دغه د دروغو قصے په خپلو تفاسیرو کښې رانقل کوی او رد پرے نهٔ کوی. د یهودو د دسیسو نه ځان خبرول پکار دی) لکه تفسیر

القاسمی سورة البقره واقعه د طالوت کښې اُوګوره (۱/ ۵۹٤)

(۲) دویم طریقه دا چه : تهٔ سحر ته کفر وائے او حال دا چه دا خو د سلیمان (ﷺ) عمل وو، او سلیمان تـه تـهٔ نبی هم وائے، او جادو ته کفر وائے نو ستا خبرو کښې تعارض دے۔ نو پدے وجه مونږ ستا نبوت نهٔ منو۔ او دا شبهه پدے وجه راپیدا شوے وه چه د سلیمان ﷺ په دور حکومت کښې د جادوګرئ سلسله ډیره عامه شوے وه، انسی او جنی شیطانانو د هغې عملیات شروع کړل نو سلیمان ﷺ چه کله د دوی نه خبر شو نو شیطانان ئے قیدیان کړل او د هغوی د سحر کتابونـه ئے ټول د خپل کرسی یا تخت نه لاندے دفن کړل نو د سحر چرچه ختمه شوه لیکن هرکله چه سلیمان ﷺ وفات شو نو شیطانان او جادوګرو هغه کتابونـه راویستل او نـهٔ صرف دا چه خلقو ته ئے اُوخودل بلکه خلقو کښې ئے دا مشهوره کړه چه د سلیمان ﷺ د قوت او اقتدار راز همدا (جادو) وو او خلقو ته ئے هغه کتابونه وربښکاره کړل (او بعض روایاتو نه معلومیږی چه دوی بعض مهرونه د سلیمان ﷺ د مهر په شان جوړ کړل او هغه ئے پرے اُووهل چه دا د سلیمان ﷺ او د هغه د ملګری آصف بن برخیا مهر دے، دے دپاره چه د خلقو یقین پرے پیدا کړی او سلیمان ﷺ پدے طریقه بدنام کړی او د روحانی علومو او د وحی مقابله پرے اُوکړی.

نو پدے بناء باندے ظالمانو خلقو سلیمان ﷺ تـه د کفر نسبتونه اُوکړل چه د هغې مدافعت او تردید الله تعالیٰ اُوکړو (ابن کثیرؒ وغیره)

نو **حاصل** د جواب دا شو چه تاسو په سلیمان ﷺ باندے دروغ جوړ کړیدی، هغه بالکل جادو نهٔ دے کړے خکه جادو خو کفر دے، او ددے کفر ارتکاب سلیمان ﷺ چرته کوی ؟ بلکه هغه خو په شیطانانو او جادوګرو باندے پابندی لګولے وه خو جادوګر او شیطانانو اُلټه سلیمان ﷺ په خپل بد عمل باندے بدنام کړو (او دا اهل حقو سره همیشه داسے کار کیږی، باطل پرست د خپل غلط عمل نسبت حق پرست ته کوی، غلطے مسئلے په هغوی باندے ورتپی۔ او اُوس هم ګمراهان او مشرکانو د نقشِ سلیمانی په نوم باندے کتاب لیکلے دے، مطلب ئے دا دے چه دا د سلیمان ﷺ تعویذګری او جادوګری ده۔ ولا حول ولا قوة الا بالله والله المستعان۔

نو پدے آیت کښې اشاره ده چه یهودیانو خپله دهغه شیطانانو نه جادو زدهٔ کړه کوم چه دوی سلیمان ﷺ ته په دروغه منسوب کړے وو، او دغه شان د بابل د ملائکو نه ئے هم

جادو زدهٔ کړه کوم چه د امتحان دپاره نازل شوی وو او خلقو ته به ئے وئیل چه جادو مهٔ زدهٔ کوئ، ځکه دا کفر دے۔ نو پدے طریقه یهودیانو د انبیاء او رسولانو علیهم السلام علوم او انوارات پریخودل او په دواړو لاړو سره ئے جادو زدهٔ کړو، د شیطانانو نه هم او د بابل د دواړو ملائکو نه هم۔یعنی سحر قدیم او سحر جدید دواړه ئے حاصل کړل۔ جادو دوی ولے زده کولو ؟ نو روستو راځی چه د ښځے او خاوند ترمینځ به ئے پرے جدائی راوستله، یوه ښځه به ئے خوښه شوه نو د جادو په زور به ئے د خاوند نه جدا کړه۔ او دغه شان هغه به بیا ددهٔ نه جدا کوله۔ او خپلو دشمنانو ته به ئے پرے ضررونه ورکول۔ او د دنیا مال او متاع به ئے پرے حاصلولو۔ کفر کوی او دنیا خوښوی۔ نو روستو ورته الله تعالیٰ ترغیب ورکوی چه ایمان تقویٰ اختیار کړئ او دا فسادونه پریدئ۔

## د جادو تاریخ

د جادو او دغه شان سفلی او شیطانی علومو چرچه چونکه په هر دور کښ راغلے ده لیکن د سلیمان ﷺ په زمانه کښ چه کومه چرچه او رواج وو نو دا په نورو دوروںو کښ دومره نهٔ وو، او اصل غرض ددے په پیدا کولو کښ د مفسدینو مقابله کول وو د روحانی علومو د انبیاء علیهم السلام سره۔ په روستو زمانو کښ چه کله یهودیان په دینی او اخلاقی انحطاط او پسماندګئ کښ مبتلا شو او د کتاب او شریعت ذوق او مزه په هغوی کښ مړه شوه نو دوی له هم ددغه مزخرفاتو زده کړے مزه ورکړه، ځکه چه پدے سره د خلقو نه مالونه او عزتونه په آسانئ سره لوټ کولے شی، نو دوی د هغه شیطانی علومو په جوش وخروش سره زده کړه شروع کړه، او دے ته د تقدس رنګ ورکولو دپاره به ئے ددے نسبت سلیمان ﷺ ته کولو او خلقو ته به ئے دا وئیل چه دا د سلیمان ﷺ علوم دی، هغه پدے سره ډیرے کارنامے کړیدی او بادشاهی ئے چلوله۔ لکه نن دور کښ هم کوم خلق چه د سفلی علومو ذوق لری نو دوی د خپلو خرافاتو په تائید کښ د سلیمان ﷺ نومونه پیش کوی کله وائی دا نقش سلیمانی دے۔

او کله وائی زمونږ علوم، منطق او فلسفه او حکمة او موسیقی او علم النجوم سلیمانی علوم دی۔ او دا تاریخ ورکوی چه دا علوم ارسطو، هغه د افلاطون، هغه د فیثاغورس او هغه د سلیمان ﷺ نه حاصل کړیدی۔ حال دا چه دا یوه خطرناکه دوکه ده، شیطان همیشه دپاره په

غلط کار کښې انسان اخته کړې او بیا هغه ته تسلي ورکوي او په معمولي او غلط نسبتونو سره ئې قلاروي، دے دپاره چه د هغه د جال نه بهر نشي. نو پدے طریقه سره د یهودو نه د سحر او ساحرئ علوم زمونږ دے امت ته هم رانقل شو، چه نجومیانو او شعبده بازو ددے نه عظیم کاروباري کارخانے جوړے کړے، هرځائے اشتهارات دي، خانداني جادو شکن، په یو منټ کښې حاجت پوره. (او فلان ماهر عملیات) (او عامل نجومي کاظمي) وغیره. دوي په خلقو جادو اُوکړي او بیا د شیطانانو په ذریعه هغه راوباسي او پیسے حاصلوي.

**ربط او مناسبه**: (تَرَكُوا كِتَابَ اللَّهِ وَأَقْبَلُوا عَلَى السِّحْرِ الْقَدِيمِ وَالْجَدِيدِ)

(د الله تعالیٰ کتاب ئې پریخودو او د قدیم او جدید سحر پسے روان شو)

(مُلْكِ سُلَيْمَانَ) نه مراد د هغه د بادشاهئ زمانه ده. نو دلته د عربي قاعدے مطابق مضاف محذوف دے. (أَيْ عَلَى عَهْدِ مُلْكِ سُلَيْمَانَ).

الله تعالیٰ په مینځ کښې جواب هم کوي: ﴿وما كفر سليمان﴾ خلقو هغه ته نسبت کړے وو چه سلیمان عليه السلام به جادو کوله، حال دا چه جادو شیطانانو کړے وو نو په دے ځائے کښې الله تعالیٰ په یوه خبره کښې دوه خبرے اُوکړے. (دا د الله تعالیٰ د کتاب کمال دے) یو دا چه د یهودو بدي ئې بیان کړه چه دا ظالمان په جادو پسے روان شو. او ورسره دا خبره ئې هم اُوکړه چه سلیمان عليه السلام ته غلط نسبتونه مهٔ کوئ، یهود ئې ورته کوي. هغه به سرے وو هغه په باره کښې به دا نهٔ وائے. نو بیا دا جادو چا کړے وو؟ : نو فرمائي چه دا شیطانانو کړے وو چه جادو له ئې ترتیب او تدوین ورکړے وو او دا به ئې استعمالولو.

او اصل سبب ئې دا وو چه شیطانان به آسمان ته ختل او د ملائکو نه به ئې یوه کلمه واوریدله نو هغې سره به ئې اُوبیا یا سل دروغه اُوویل او کاهنانو ته به ئې هغه بیان کړل نو پدے طریقه ډیر دروغ په کتابونو کښې اُولیکلے شو. او دا خبره په بني اسرائیلو کښې مشهوره شوه چه جنات او شیطانان په غیبو پوهیږي نو سلیمان عليه السلام چه الله تعالیٰ نبي کړو نو دغه کتابونه ئې ټول راجمع کړل او د خپلے کرسي لاندے ئې کیخودل لکه چه مخکښې بیان شو او دا روایت د ابن عباس رضي الله عنه نه حافظ ابن کثیرؒ او ابن جریرؒ نقل کړیدے.

**فائده۱**: وما كفر سليمان :کښې مدافعة الصالحين دے، سلیمان عليه السلام د الله نبي وو او یهودو متهم کړے وو په سحر نو الله تعالیٰ ئې صفائي بیان کړه او د هغه د طرف نه ئې مدافعت اُوکړو نو دے نه دا معلومه شوه چه د نیکانو خلقو مدافعت الله تعالیٰ ته محبوب

عمل دے نو هر صاحب سنت عالم چه خلقو بدنام کړے وی نو د هغه صفائی پکار ده لکه بعض خلقو امام بخاریؒ، امام ابن تیمیهؒ بدنام کړیدی نو د دوی صفائی په علماؤ لازم ده، کوثری گمراه امام ابن القیمؒ ته (۲۱) کنځلے کړیدی، دروغ ئے پرے وئیلی دی۔ او ابن تیمیهؒ ته ئے گمراه او امام الفتنه وئیلے دے۔ بعض ناپوهه ورته د مجسمه نسبت کوی۔ نو ددے مدافعت به کوے، دا هم یو قسم د دین حفاظت دے۔

ددے وجه نه ملاعلی القاری مرقاة کښ د ابن تیمیهؒ او ابن القیمؒ باره کښ لیکی : (كَانَا مِنْ أَوْلِيَاءِ هٰذِهِ الْأُمَّةِ)۔ (دا دواړه ددے امت د اولیاؤ نه وو)

البته د غلطو مُلیانو مدافعت کول گناه ده (وَلَا تَكُنْ لِلْخَائِنِيْنَ خَصِيْمًا) لکه بعض خلق د محیی الدین ابن عربی صفات بیانوی او دیته شیخ اکبر وائی، دا غلطه خبره ده ځکه ابن عربی د کفر عقیده لرله۔ حسین بن منصور الحلاج او نور د وحدة الوجود والا او گمراهانو باره کښ خلق مدافعت کوی، دا ناروا دی۔ لکه د دیوبند بعض مشران عقیده د وحدة الوجود لری نو رد پرے پکار دے، د هغوی نه مدافعت کول صحیح نهٔ دی۔

الشَّيٰطِيْنَ : (۱) ددے نه انسی شیطانان هم مراد دی چه په پخوا زمانه کښ ئے د سحر نه فائدے اخستے، او یهودو له ئے هم خوند ورکړو نو دوی هم د هغوی تابع شو۔ (۲) او جنی شیطانان هم مراد کیدے شی۔ کله شیطان دا کار کوی چه انسان ته یوه گمراهی اُوښائی او د هغے په ذریعه خلق گمراه کوی، خپله شیطان دومره کار نشی کولے، لیکن د انسانانو په ذریعه ډیر کار کولے شی۔ عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی : (( شیطان کله د یو انسان په شکل خپل ځان جوړ کړی او یو قوم ته لاړ شی او هغوی ته د دروغو تقریر اُوکړی نو خلق جدا شی بیا یوتن پکښ وائی : (سَمِعْتُ رَجُلًا أَعْرِفُ وَجْهَهٗ وَلَا أَدْرِيْ مَا اسْمُهٗ يُحَدِّثُ) (مقدمة صحیح مسلم) القرطبی (۱۰/ ۴۲۲) (ما د یو سړی نه واوریدل چه د هغه مخ پیژنم لیکن نوم ئے راته نهٔ دے معلوم چه داسے داسے مسئلے ئے کولے )) هغه شیطان وی، ډیرے مسئلے نبی بیان کړی یوه خبره نیمه پکښ دروغ او غلطه بیان کړی، ځکه هغه ته پته وی چه نبی خبرے خو خلق هسے هم آوری خو د هغے په ذریعه پرے دغه غلطه خبره هم اُومنی۔ ددے وجه نه د هر مُلا خبرے له اعتبار هم نشته ترڅو چه ورسره دلیل نهٔ وی۔

**فائده** : شیطانی دعوت دا دے چه ډیرے پکښ صحیح خبرے وی او لږے غلطے وی۔ نو د تبلیغیانو او دیوبندیانو دعوت هم صحیح نهٔ دے ځکه چه دوی ټول حق سو چه نهٔ

بیانوی۔ دارنگه د خوراج او مرجئه او تول اهل بدعتو دغه حال دے۔

**فائده ۲** : د کلام د اسلوب نه دوه خبرے ذهن ته راځی یو دا دے جمله معترضے بلاغت چه دا دے د وئیلو نه داسے محسوسیږی چه متکلم ته دا دے علو مو سفلیه نسبت سلیمان طرف ته کول دومره ناخوښ دی چه دا دے په تردید کښې دومره توقف هم نهٔ کوی چه کلام پوره کړی بلکه سلسله د کلام اُودرولو سره ئے فوراً دا دے تردید ضروری اُوګنړلو۔ دویم دا چه تردید ئے داسے اسلوب سره شروع کړو چه د هغے نه خپله دا خبره راوځی چه د سحر کفر کیدل یو داسے واضح حقیقت دے چه دا دے د ثابتولو ضرورت نشته۔

﴿يُعَلِّمُونَ النَّاسَ السِّحْرَ﴾ یعنی شیطانانو به خلقو ته جادو خودله او سلیمان ؑ هیڅ ته جادو نهٔ ده خودلے۔ بلکه د جادو خلاف ئے کړیدے۔ دا یهودو غلط مشهور کړے وو، او دا ئے په دے وجه غلط مشهور کړے وو چه ده سیاست هم واخستو او شریعت ئے هم واخستو او د دوی په نیز سیاست او شریعت دواړه نهٔ جمع کیږی نو دا ئے مشهوره کړه چه دهٔ دا کار د جادو په وجه اُوکړل۔

## بحث السحر

دلته یو څو بحثونه دی (۱) معنیٰ لغوی او اصطلاحی د سحر، (۲) اقسام د سحر (۳) اثر السحر (٤) حکم تعلیم السحر (٥) حکم الساحر (٦) علاج السحر۔

**لغةً** : سحر د فتح یفتح نه دے په لغت کښې (كُلُّ مَا لَطُفَ مَأْخَذُهُ وَخَفِيَ سَبَبُهُ) (النیسابوری) (هر هغه شے چه د هغے ځائے د راخستو باریك وی او سبب ئے پټ وی)۔

امام قرطبیؒ د سحر اته معانی ذکر کړیدی (۱) اول په معنیٰ د خداع او دوهوکے سره (سَحَرْتُ الصَّبِيَّ إِذَا خَدَعْتَهُ) (۲) په معنیٰ د خفاء (پټوالی) سره۔ او جادو هم ساحر په پټه کوی۔ (۳) صَرف۔ (اړول) لکه عرب وائی : (مَا سَحَرَكَ عَنْ كَذَا، أَيْ مَا صَرَفَكَ عَنْهُ) (د فلانی کار نه څه شی واړولے؟) او سحر هم د خپل جهت نه اړولے شوے وی)

(٤) اَلْاِسْتِمَالَه : (یو شے ځان ته مائله کول) او دا یو تفسیر دے په (بَلْ نَحْنُ قَوْمٌ مَسْحُورُوْنَ) (الحجر/۱٥) کښې۔

(٥) سحر او سحریه ۔ پرپوس (سُش) (یو اندام د انسان) دے چه په هغے سره انسان خوراك او څکاك ته محتاج وی۔(٦) هر هغه کلام او طریقه چه د هغے اخستل باریك وی۔

(جوهری) (۷) څیزونه په خیالاتو کښې بدلول۔ (۸) ساحر په معنیٰ د عالم سره۔ (وَقَالُوْا يَا أَيُّهَا السَّاحِرُ ادْعُ لَنَا).

**سحر په عرف او اصطلاح** کښې: (هُوَ أَنْ يَّفْعَلَ السَّاحِرُ أَشْيَاءَ وَمَعَانِيَ فَيُخَيَّلُ لِلْمَسْحُوْرِ أَنَّهَا بِخِلَافِ مَا هِيَ بِهِ) (قرطبی) (دیته وائی چه ساحر څه کارونه اوکړی چه په هغې سره جادو کړی شوی انسان ته داسې ښکاره کیږی چه دا څیزونه په خپل حقیقت نهٔ دی) لکه یو سړی ته د وړاندې نه د پیرانو تنور ښکاره شی دا پرې خیال اوکړی چه دا اوبه دی او هغه اوبه نهٔ وی۔ په کاړی او کشتئ کښې یو تن تیز مزل کوی نو هغه ته دا خیال راځی چه ما سره غرونه او ونې روانې دی۔

(۲) (تَمْوِيْهُ الْحِيَلِ بِإِخْفَائِهَا تَحْتَ حَرَكَاتٍ وَأَحْوَالٍ يَظُنُّ الرَّائِي أَنَّهَا هِيَ الْمُؤَثِّرَةُ مَعَ أَنَّ الْمُؤَثِّرَ خَفِيٌّ) (التنویر) (سحر: په پټه سره د دروغو حیلې ښائسته ښکاره کول پداسې حرکاتو او احوالو سره چه د لیدونکی دا ګمان راشی چه دا مؤثر دی او حال دا چه مؤثرئې پټ وی)۔

(۳) (مَا عَلِمَ ظَاهِرُهُ وَخَفِيَ سَبَبُهُ وَهُوَ التَّمْوِيْهُ وَالتَّلْبِيْسُ وَتَخْيِيْلُ غَيْرِ الْوَاقِعِ وَاقِعًا وَتَرْوِيْجُ الْمُحَالِ) (هغه شے چه ظاهرئې معلوم وی او سبب ئې پټ وی چه دیته دهوکه، تلبیس او په خیال کښې غیر واقع شے واقع ښکاره کول وائی او ناممکن شے خلقو کښې رائج کول) (ابن عاشورؒ)

(٤) (اَلسِّحْرُ: اِسْمٌ لِلْأَقْوَالِ وَالْأَفْعَالِ تَصْدُرُ عَنْ نُفُوْسٍ شِرِّيْرَةٍ (بِوَاسِطَةِ الْجِنِّ غَالِبًا) أَوْ بِمُبَاشَرَةِ أَعْمَالٍ مَخْصُوْصَةٍ لَا تَتَعَذَّرُ مُعَارَضَتُهُ وَيَجْرِيْ فِيْهِ التَّعَلُّمُ وَالتَّعْلِيْمُ) دا نوم دې د هغه اقوال او کارونو چه د شریر نفسونو نه صادریږی (په واسطه د پیریانو سره غالباً) یا په کولو د څه خاص کارونو سره چه د هغې مقابله ممکن وی۔ او امر خارق للعادة وی۔ (یعنی د عادت نه ناشنا وی) او تعلیم او تعلم پکښې جاری کیدې شی نو پدې سره ئې فرق راغلو د کرامة او معجزې نه۔

(۵) (وَفِي الشَّرْعِ: مُخْتَصٌّ بِكُلِّ أَمْرٍ يَخْفٰى سَبَبُهُ وَيُتَخَيَّلُ مِنْ غَيْرِ حَقِيْقَةٍ وَيَجْرِيْ مَجْرَى التَّمْوِيْهِ وَالْخِدَاعِ) (النیسابوری) (سحر په شریعت کښې: خاص دې د هر هغه کار پورې چه سبب ئې پټ وی، او د انسان په خیال کښې راځی او هیڅ حقیقت ئې نهٔ وی او دا د تلبیس او دهوکې په شان دې)۔

(٦) څه الفاظ او مقدمات دی چه د هغې په وجه تغییر راوستلې شی په یو شخص یا په یو شی کښې د الله تعالیٰ په اذن سره۔ لکه بیماریدل، زړه او دماغ بندیدل او د ښځې نه بندیدل۔ اګرکه یو شے حرام دے خو اثر کوی۔ او همدا خبره ظاهره ده څکه پدې نورو تعریفونو کښې انکار دے د اثر د سحر نه اګرکه بعض انواعو باندې صادقیږی۔

ابن عاشورؒ لیکلی دی: چه سحر د پخوانو علومو نه دے چه په مصر او مشرقی بلادو کښې په ښارونو د کلدان، او اهل بابل کښې په یوه زمانه کښې ښکاره شوے وو، د عیسیٰ علیه السلام نه مخکښې په قرن اربعین کښې، نو دا دلیل دے چه دغه دوه امتونو ته دا د خپلو مشرانو نه پاتے شوے وو څکه په مصر کښې د فراعنه ؤ د پنځم او شپږم خاندان په زمانه کښې ددے سحر څه آثار ښکاره شوی وو۔

او د عربو د سحر متعلق یو آزاد خیال وو او هغه دا چه د هغوی دا عقیده وه چه سحر په اشخاصو او زړونو اثر کوی، انسان اُلټه کوی او زړونه اړوی او مسحور د ساحر تابع کیږی پدے وجه هغوی به وئیل: غول (بلا) د جناتو ساحره ده، څکه چه دا لیدونکی ته په مختلف شکلونو ښکاره کیږی، او قریشو چه کله د رسول الله ﷺ معجزات اُولیدل نو وے وئیل: دا خو جادوګر دے۔ (وَإِنْ يَرَوْا آيَةً يُعْرِضُوا وَيَقُولُوا سِحْرٌ مُسْتَمِرٌّ (القمر: ۲) او حدیث (إِنَّ مِنَ الْبَيَانِ لَسِحْرًا) او عربو به د سحر سره تعلق نۀ لرلو څکه چه سحر د هغه طبیعی امورو د خصوصیاتو نه دے چه د لاسونو د صفائی سره تعلق لری او د عربو تعلق د لاسی امورو سره نۀ وو، بلکه د هغوی فکری مهارت وو۔ او د عربو به دا خیال وو چه د تولو نه په سحر باندے ډیر علماء یهودیان او صابئه دی یعنی بابل والا۔

او ددے آیت د سیاق نه هم داسے معلومیږی چه د عربو په نیز یهودیان ډیر مشهور وو په جادو سره، ددے وجه نه په مسلمانانو کښې دا خبره مشهوره شوے وه چه د مدینے یهودیانو په مسلمانانو جادو کړیدے نو د دوی به هیڅ اَولاد نۀ پیدا کیږی نو کله چه عبد الله بن زبیر د هجرت په ړومبنی کال پیدا شو نو مسلمانانو پرے ډیره خوشحالی اُوکړه، چه دا خرافه ختمه شوه۔ دا وجه ده د عربو مسلمانانو ترمینځ د سحر تذکره ډیره نۀ وه مګر هله چه مدینے ته ئے هجرت اُوکړو څکه مدینه کښې یهودیان اُوسیدل او د هغوی دا عقیده وه چه دوی په خلقو باندے جادو کوی۔ (التنویر وغیره)

## د سحر اقسام

د سحر دیارلس قسمه دی چه ابن کثیرؒ او امام رازیؒ په تفصیل سره ذکر کړیدی او اکثر اقسام ئے کفر دے څکه په هغے کښې استمداد (مدد طلب کول) وی د غیر الله نه، او پدے کښې د قرآن بے ادبی وی، په هغے باندے دپاسه ګرځیدل وی او کله په جنابت کښې مونځونه

کول وی، روژے پریخودل او په وینه او بولو باندے قرآن کریم لیکل (العیاذ بالله) او د شریر نفسونو سره محبت ساتل وی، چه بنده کله دغه کارونه اُوکړی نو دے کافر شی چه ددے په وجه شیطانان ورسره مددونه شروع کړی، غرضونه ئے پوره کوی لکه کله ئے په اُوبو کښې ډوبوی، او کله ئے په هوا باندے یو ځائے ته بوځی، کله ورته پردی مالونه راوړی لکه ډیر شیطانان د خائنانو مالونه غلا کوی او یا د هغه چا چه د الله تعالیٰ نوم ئے پرے نهٔ وی اخستے، کله ورله دشمنان وژنی، کله ورله څوك راتختوی، کله ورته پردی حالونه بیانوی څکه چه دے شخص خپل کفر وسیله او رشوت جوړ کړے وی د دوستانے د شیطان دپاره نو هغه هم ورسره مددونه شروع کړی۔

یعنی د ایمان او اسلام نه به ورته تیریږی نو هله به جادو زده کوی، ددے وجه نه اسلام منع کړیده د نُشره نه (یعنی حَلُّ السِّحْرِ بِالسِّحْرِ نه) چه جادو په جادو باندے ماتوی دا کار حرام دے، وجه دا ده چه خپل صحت به بنه کوی او ایمان به دلاسه ورکوی۔ د جادو هر کتاب چه کورے نو یا به پکښې د شیطانانو (سید الجان) نه پکښې مددونه غواړی، یا فلان یا فلان آوازونه به وی۔ یا به داسے الفاظ وی چه په معنیٰ به ئے نهٔ پو هیږی۔

**اقسام** : د سحر مشهور پنځه اقسام دی (۱) طلسم (بعض وائی دا مقلوب دے د مسلط نه) دیته وائی چه سماوی آثار راجمع کړی د زمکے د اجزاؤ سره، دے دپاره چه ددے نه څه عجیبه امر ښکاره شی۔ (۲) نیرنج بعض وائی دا معرب دے د (نیرنك) نه تمویه او تخییل ته وئیلے شی او دا پدے طریقه وی چه د زمکے بعض دوایانے د بعضو سره یو ځائے کړی او د هغے په ذریعه ناشنا کارنامے کوی خلق دهوکه کوی لکه بعض منتریان ځان پورے یو قسم دوائی اُومږی او بیا په اُور کښې لاس ننباسی یا اُور په لاس کښې راخلی او نهٔ سوزیږی۔

(۳) الرقیة : په اُوبو باندے دمونه اچوی او پوکی کوی او بیا هغه څکی او په انسان باندے ئے راړوی۔ (٤) خلقطیرات : دا هغه کرخے دی چه په هغے کښې ئے حروف لیکلی وی یعنی حلقے او دائرے جوړوی او دا عقیده ساتی چه ددے ډیر خاص تاثیر دے۔ لکه دا په تعویذ گرو کښې ډیر مشهور دے۔ (٥) شعبذه (دیته شعوذه هم وئیلے شی) مُعرب دے د شعباذه نه چه دا یو سړے وو، دهٔ ته دا علم منسوب دے او دا هغه خیالات دی چه بناء دی د لاسونو په صفائی او نظر بندئ باندے چه څیزونه ورته اُلټه ښکاره کیږی۔

علامه ابن عثیمینؒ فرمائی : سحر هغه غوټو او دمونو ته وئیلے شی چه ساحر په هغے

کښې پوکې اُوکړي نو په مسحور باندې د هغې د وجه نه په بدن او عقل اثر اُوشي۔ او دا په یو څو قسمه دې، بعض هغه جادو دې چه انسان قتلوي، بعض صرف مرض راولي، بعض هغه دې چه عقل زائله کوي، او انسان نشهٔ کوي۔ او بعض هغه دې چه د انسان حواسو کښې تغیر راولي نو بیا چه کوم شے نهٔ وي هغه اَوري۔ یا په ساکن باندې د متحرك گمان کوي او متحرك باندې د ساکن، او بعض هغه دې چه د چا د مینې د راجلب کولو دپاره وي او بعض هغه دې چه بغضاء او دشمني پیدا کوي۔ (تفسیر العثیمین)

## آیا د سحر تاثیر او حقیقت شته ؟ :

(۱) معتزله منکرین دي د حقیقت د سحر نه او دا وائي چه دا صرف تخیل او وهمي څیز دې حقیقي وجود نهٔ لري۔ او خودل د هغه شي دي چه د هغې حقیقت نهٔ وي په پټه او چل سره۔ **دلیل** : د موسیٰ علیه السلام په واقعه کښې راغلي دي : (يُخَيَّلُ إِلَيْهِ مِنْ سِحْرِهِمْ أَنَّهَا تَسْعَىٰ) (د موسی علیه السلام په خیال کښې راتلل چه دا امسا گانې او پړې منډې وهي) او په حقیقت کښې ئې منډې نهٔ وهلې۔ معلومه شوه چه دا وهمي او بې حقیقته شے دې۔

(۲) دارنگه نبي ﷺ باندې چه لبید بن اعصم یهودي سحر کړې وو نو په هغې کښې هم دا راځي چه نبي ﷺ ته به تخیل کیدو۔ (بخاري)

**الجواب** : هرچه واقعه د موسی علیه السلام کښې ورته (یخیل) لفظ استعمال شویدې نو (۱) ددې یو جواب دا دې چه دا خیالي تاثیر د انبیاء علیهم السلام پورې خاص دې، ځکه په هغوي باندې د سحر په وجه تاثیر عقلي نهٔ کیږي۔ (۲) جواب : جائز ده چه دغه خلقو داسې سحر کړې وي چه ددهٔ په خیال کښې دغه اثر اچول وي او عقل ختمول نهٔ وي۔ یعني دا یو قسم سحر به ئې کړې وي۔ چه هغه سحر تخییلي دې۔

(۳) جواب : که اُومنو چه دغه صورت کښې ئې اثر د تخییل کړې وو نو ددې نه دا نهٔ لازمیږي چه ددې گنې بالکل حقیقت نشته۔ (انظر تفسیر الوسیط لسید طنطاوی) والقرطبی)

(٤) که لږ سوچ اُوکړو نو پدغه آیت کښې د معتزلو هیڅ قسم دلیل نشته ځکه چه آیت او حدیث کښې خو دا نهٔ دي راغلي دي چه سحر یو خیالي شے دې او حقیقت نهٔ لري بلکه د همدغه آیت او حدیث نه ثابته ده چه سحر حقیقي شے دې ځکه ئې د موسی علیه السلام او د محمد رسول الله ﷺ په خیال باندې اثر کړې وو۔ که دا په زړه د ساحر کښې محض خیال

وي او حقيقة ئې نۀ لرلې نو اثرئې څنګه کولې شو ؟ ـ فتدبر ـ
بعض جاهلان وائي : سحر خو حرام کار دے او کفر دے نو څنګه اثر کوی ؟ جواب دا دے چه ولې حرام او کفر ګنے اثر نۀ کوی؟، د کفر اثر دا دے چه انسان جهنم ته رسوی او د الله تعالیٰ نه ئې وړاندے کوی، او شراب حرام دی خو چه نوش ډے کړل نو دماغ به درله بند کړی۔ او دا خبره د تشریح محتاج نۀ ده۔
(۲) جمهور اهل السنة والجماعة وائي : سحر ثابت دے عقلًا او واقع دے سمعاً۔
**دلائل** : عقلی دلیل دا دے چه سحر فی نفسه ممکن دے۔ وجه دا ده چه د الله تعالیٰ قدرت عام او شامل دے هر څه ته نو الله تعالیٰ قادر او خالق دے چه لکه څنګه چه په نیکو طریقو او کلماتو کښې اثر اچوی او د هغې یو حقیقت وی نو دغه شان په بدو طریقو او کلماتو کښې هم اثر اچونکے الله تعالیٰ دے او کاسب ئې ساحر دے۔ لکه څنګه چه په ګندګو او بول وبراز کښې د بدبوئی اثر دے نو دغه شان په غلطو کلماتو کښې هم معنوی اثر شته او دا د الله تعالیٰ په اذن سره کیږی۔
۲- **دلیل** : دا آیتونه دی : (وَمَا هُمْ بِضَارِّيْنَ بِهٖ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللّٰهِ) دا دلیل دے چه سحر ثابت دے حقیقةً او تاثیر لری او صرف تلبیس او تخیل نۀ دے، او دا هم ثابته شوه چه خالق د سحر الله تعالیٰ دے۔
۳- **دلیل** : الله تعالیٰ خپل نبی ته حکم کړیدے چه په الله تعالیٰ پورے پناهی طلب کړی د شَرُّ النَّفّٰثٰتِ فِي الْعُقَدِ نه او نفاثات نه مراد په قول د حسنؒ، عکرمهؒ، مجاهدؒ، قتادهؒ، او ضحاکؒ سَوَاحر (ساحران) دی۔ نو دا آیت دلیل دے چه د سحر اثر شته، ولې که نۀ وے نو الله تعالیٰ به خپل نبی ته حکم نۀ کولې چه د شرور د ساحرانو نه پناهی طلب کړی۔
٤- **دلیل** : دغه حدیث د بخاری چه په نبی ﷺ باندے سحر شوے وو، زنانو ته به نزدے شوے وو او دده به دا ګمان وو چه زۀ نۀ یم نزدے شوے۔ نو دا صریح دلیل دے چه د سحر حقیقت شته او د نبی ﷺ په بدن ئې یو قسم مرض او ثقل راوستے وو۔ نو که دا هسے خیالی شوے وے نو بیا ئې ولې دغه شان تاثیر کولو۔ (ابن قیم)
امام قرطبیؒ فرمائی : پدے باره کښې ګڼر دلائل راغلی دی چه سحر دپاره حقیقة شته او دا یقینی شے دے او الله تعالیٰ او د هغه رسول ددے په وجود او وقوع باندے خبر ورکړیدے۔او پدے باندے د فقهاؤ اجماع ده او د معتزلو خلاف له هیڅ اعتبار نشته، سحر د پخوانه مشهور دے

او خلقو پکښې خبرې کړېدي او د هيڅ صحابي او تابعي نه ددې انکار نهٔ دې نقل.

○ استاذ فؤاد عبد الباقي د علامه مازري رحمه الله نه نقل کوي چه : مذهب د اهل السنة والجماعة دا دې چه سحر ثابت دې او ددې دپاره د نورو ثابتو څيزونو په شان حقيقت شته، او ددې نسبت خيالات باطله ؤ ته کول غلط دي. ځکه چه سحر الله تعالیٰ په خپل کتاب کښې ذکر کړېدې او دائې ذکر کړېدي چه دا هغه شې دې چه ددې تعليم او تعلم کيږي، او پدې کښې ئې اشاره کړيده چه ددې په زدهٔ کړه بنده کافر کيږي، او دا د ښځې او د سړي ترمينځ جدائي راولي، او دا ټول نهٔ دي ممکن په هغه څه کښې چه د هغې حقيقت نهٔ وي او دا حديث صريح دې د سحر په اثبات کښې. چه دا څه څيزونه وو چه دفن کړې شوي وو او بيا راويستلې شو. او ددې حديث نه چه څوك انکار کوي پدې وجه چه پدې سره شك اوې عزتي په منصب د نبوت کښې راځي نو دا خبره غلطه ده وجه دا ده چه قطعي دلائل ددې حديث په صدق او صحت باندې دلالت کوي او پدې چه په نبي ﷺ باندې د سحر اثر نهٔ وو په تبليغ کښې. او قاضي عياض وئيلي دي چه په رواياتو کښې صفا راغلي دي چه سحر د نبي ﷺ په ظاهري اندامونو او بدن باندې اثر کړې وو، نهٔ په قول، زړه او اعتقاد باندې.

**بيا** فرمائي : سحر په دوه قسمه دې : ۱- يو قسم هغه دې چه د هغې په مزاوله (کولو) باندې قلب الحقائق مرتب کيږي لکه د انسان نه حيوان جوړ کړي يا د حيوان نه انسان. ددې نه معتزله انکار کوي چه بيا التباس د معجزې سره راځي او اهل السنة ديته هم جائز وائي اګرکه فعلًا واقع نهٔ دې. او د معجزې او سحر فرق دې چه په سحر کښې دعوه د نبوت او معارضه نهٔ وي. او معجزه کښې خو ښکاره کيږي په لاس د مدعي د نبوت په طريقه د تحدي او معارضې سره. دارنګه سحر کښې تعليم او تعلم جاري کيږي او د شرير انسان په لاس ښکاره کيږي په خلاف د معجزې نه. او ددې قسم سحر په واقع کيدو باندې دليل نشته چه يو ساحر داسې کار اُوکړي چه د هغه د ګوتو نه اُوبه روانې شي او خلق پرې ماړه شي، يا په امسا باندې درياب اُووهي او لښکر په هغې کښې تير شي، يا د امسا نه مار جوړ کړي. يعني د ساحر په لاس باندې داسې خوارق العادات کارونه نشي جاري کيدې کوم چه د انبياء عليهم السلام په لاسونو جاري کيږي دپاره د اعجاز.

(۲) دويم قسم هغه دې چه بعض د نفوس خبيثه خاوند ان د څه کارونو مزاوله (تجربه) اُوکړي چه د هغې په وجه باندې يو ضرر مرتب شي بغير د مسه کولو او د خواته ورتللو د

هغه انسان نه چا ته چه ضرر رسيدلے دے۔ يعني د وړاندے ځائے نه اثر اُوکړي۔ دا قسم هم د اهل السنة په نيز جائز او د معتزلو په نيز منع دے۔ ددے مثال دا دے چه په سحر سره ښځه او خاند جدا کول او پدے کښې د اهل السنة قول حق دے ځکه چه قرآن کريم د ساحرانو د طرفنه حکايت کړيدے چه دوي به د ښځے او سړي ترمينځ جدائي راوستله او حديث کښې دي چه نبي ﷺ کله د کوهي نه هغه ګمنزه او ويښته راويستل نو داسے شو : (كَأَنَّمَا نُشِطَ مِنْ عِقَالٍ) (ګويا کښې د پړي نه راکولاؤ شو)۔

(۳) دريم قسم هغه دے چه داسے اسباب اختياروَل چه په هغے باندے صرف ظاهري آثار مرتب شي، نهٔ حقيقي۔ او دا قسم د معتزله او اهل السنة ترمينځ اتفاقاً واقع دے۔ لکه قرآن کريم د ساحرانو د فرعون نه ددے حکايت کړيدے : (فَلَمَّا أَلْقَوْا سَحَرُوا أَعْيُنَ النَّاسِ وَاسْتَرْهَبُوهُمْ) او دا قول : (فَإِذَا حِبَالُهُمْ وَعِصِيُّهُمْ يُخَيَّلُ إِلَيْهِ مِنْ سِحْرِهِمْ أَنَّهَا تَسْعَى) (الوسيط لسيد طنطاوى ١/ ١٧٤) وتفسير حقي)

## د سحر تعلم اوتعليم

اسلام د سحر د زده کولو نه سخته منع کړيده ځکه چه پدے علم کښې ضرر دے او ددے په زده کولو ئے ډير عذابونه وئيلي دي۔ حديث کښې دي : (حَدُّ السَّاحِرِ ضَرْبَةٌ بِالسَّيْفِ) (الترمذى عن جندب وَصُحِّحَ مَوْقُوفاً) (د جادوګر حد دا دے چه په توره به وهلے شي) ددے وجه نه بعض علماؤ وئيلي دي چه سحر زده کول مطلقاً کفر دے ځکه الله تعالىٰ سحر ته کفر وئيلے دے۔ او بعض علماؤ وئيلي دي چه د سحر زده کول حرام او ګناه کبيره ده او که چرته په هغے عمل کوي نو بيا به کفر او شرك وي۔

امام رازيؒ په خپل تفسير کښې وئيلي دي چه د محققينو په اتفاق سره تعليم او تعلم د سحر قبيح نهٔ دے ځکه علم لذاته شريف شے دے، او د (هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ) عموم پرے دليل دے، دارنګه که سحر اُونهٔ پيژندلے شي نو فرق د معجزے او سحر نهٔ راځي او دا فرق پيژندل خو واجب دي نو تعليم د سحر هم واجب دے او کوم شے چه واجب وي نو هغه قبيح او محظور نهٔ وي۔ امام ابن کثير رحمه الله په هغه باندے سخت رد کړيدے چه دا خبره سوچه غلطه ده۔ دا خبره چه علم د سحر قبيح نهٔ دے، که د قباحت نه عقلي قباحت اخلے نو معتزله خو ددے په قباحت عقلي قائل دي او که دا مطلب وي چه دا

شرعاً قبیح نهٔ دے نو دا خبره هم خطاء ده، وجه دا ده چه پدے آیت کښې قباحت د تعلم السحر ذکر دے دارنګه صحیح حدیث کښې دی : (مَنْ أَتٰى عَرَّافًا (أَوْ كَاهِنًا،) فَقَدْ كَفَرَ بِمَا أُنْزِلَ عَلٰى مُحَمَّدٍ) (مسلم : ۲۲۳۰) (څوک چه جوګی (فالګر) ته راغلو نو دهٔ کفر اُوکړو په هغه کتاب چه په محمد ﷺ نازل شوے وو)

دارنګه سنن کښې دی : (مَنْ عَقَدَ عُقْدَةً وَنَفَثَ فِيْهَا فَقَدْ سَحَرَ) نسائی) ـ

(چا چه یو غوټه ورکړو او بیا ئے په هغے کښې پوکے اُوکړو نو دهٔ جادو اُوکړو).

دارنګه دا دعویٰ کول چه محققینو ددے په عدم قباحت اتفاق کړیدے دا هم غلطه ده، کوم عالم دا خبره کړیده؟، د هغوی نه نص پیش کول پکار دی.

دارنګه علم السحر د (قُلْ هَلْ يَسْتَوِى الَّذِيْنَ يَعْلَمُوْنَ) آیت په عموم کښې داخلول صحیح نهٔ دی ځکه چه د هغے نه مراد خو شرعی علم دے. دارنګه دا خبره چه فرق د معجزے او د سحر په تعلم د سحر راځی، دا خبره غلطه ده، ځکه چه د نبی ﷺ غټه معجزه قرآن کریم دے او دا په سحر سره معلومولو ته هیڅ محتاج نهٔ دے.

دارنګه زمونږ د امت صحابه کرام او تابعین وغیره ته د نبی ﷺ معجزات معلوم وو او حال دا چه په سحر نهٔ پوهیدل او نهٔ ئے تعلیم او تعلم کولو نو آیا هغوی نه هم دا واجب علم پاتے شویدے. (ابن کثیر) (دا د فلاسفو خرافات دی).

علامه ابن عاشور – رحمه الله – فرمائی : سحر د خباثت د نفس او د فساد د دین او د شر عمل او د خلقو د یره ولو سره پیوسته دے، ددے وجه نه ادیان حقه ؤ خلق د سحر نه یره ولی دی او پدے باندے مشغوله کیدل ئے د الله تعالیٰ د طاعت نه وتل ګنړلی، ځکه چه دا بناء دے په عقیده د تاثیر د آلهه ؤ او جناتو کوم چه منسوب دی آلهه ؤ ته په عقائدو د پخوانو کښې.

او موسیٰ علیه السلام هم خپل قوم د سحر او ساحرانو نه یرولے دے لکه په سفر استثناء باب (۱۸) آیات ۹ نه تر ۱۲) پورے : کښې راغلی دی چه موسیٰ علیه السلام خپل قوم ته اُووئیل:

«کله چه ته هغه زمکے ته داخل شے چه ستا رب الٰه ئے تا ته درکوی نو د دغه ځائے د خلقو په شان پلیت علم زدهٔ نکړے».

## د ساحر حکم

ددے وجه نه د اکثرو علماؤ رایه دا ده چه د ساحر حکم دا دے چه دا به وژلے شی ځکه چه دا

مفسد او زنديق دے، او د بعضو علماؤ دا فتوی ده چه ساحر کله په مسحور کښې يو جنايت راپيدا کړی نو د هغه نه به قصاص اخستے شي که قتل ئے اُوکړو، نو دا به پرے قصاصاً وژلے شي او که د قتل نه علاوه نور جنايت ئے اُوکړو نو د هغې مناسبت ديت به ترے اخستے شي۔ امام مالك وائي: ساحر به وژلے شي او د توبے مطالبه به ترے نشي کولے که چرته مسلمان وی۔ او که ذمی وی نو قتل ئے نشته بلکه ادب به ورکړے شي، البته که د سحر په وجه ئے مسلمان ته ضرر ورکړے وو نو بيا به وژلے شي ځکه چه دا ناقض العهد اُوګرځيدو۔ علامه باجيؒ په منتقی (۱۱۷/۷) کښې فرمائی: د امام مالك رأی دا ده چه سحر کفر او شرك دے او دليل دے په شرك باندے، که دا په پټه سره کوی نو دا زنديق دے ځکه اسلام ئے ښکاره کړيدے او باطن کښې ئے کفر دے۔ الخ)

او امام ابو حنيفةؒ فرمائي: ساحر سړے به وژلے شي او د توبے مطالبه به ترے نۀ کيږی او هرچه ښځه ده نو هغه به جيل ته واچولے شي تردے چه جادو پريدی۔ نو دۀ ساحر ته د مرتد حکم ورکړيدے۔

او بعض علماء وائي چه سحر مطلقاً کفر نۀ دے بلکه ددے حقيقت تالاش کول پکار دی که چرے د ايمان منافي کارونه پکښې وی نو بيا به دا کفر وی او که کفر پکښې نۀ وی او اهلاك النفس پکښې وی نو ددے حکم به د قطاع الطريق وی او پدے کښې مذکر او مؤنث برابر دی او توبه ئے هم قبليږی کله چه توبه اُوباسی۔

په تورات کښې هم د جادوګر سزاء قتل خودلے شويده۔ لکه په سفر اللاويين آيات (۲۰-۲۷) کښې دی: «کله چه په يو سړی يا ښځه کښې جان (پيرے) يا رمال وی نو دا به وژلے شي» (التنوير)

## د سحر علاج

هر کله چه سحر يو مرض دے او د هر مرض دپاره الله تعالیٰ ضرور علاج راليږلے دے، ددے وجه نه په غلطو طريقو سره د سحر علاج کولو مطلب دا وی چه صحت غوختل او ايمان د لاسه ورکول۔ لهذا مسلمان له مناسب دی چه په چا سحر اُوشی نو هغه به اول صبر کوی او بيا که علاج کوی نو صحيح سليم العقيده انسان نه به قرآنی او حديثی علاج کوی، جادوګرو له تلل د ايمان نه خلاصيدل دی۔ او زمونږ ډير مسلمانان سړی او زنانه پدے مرض کښې مبتلا دی چه کله بيماران شي نو بيا ترے ايمان او دين هير شي، صرف د صحت غم راخستی وی۔ نو د شرعی علاج په باره کښې علماؤ ډير کتابونه ليکلی دی

لکه یو د هغې نه وقایة الانسان (۲) الصارم البتار لعبد السلام بالی۔ او داسې نور مهم کتابونه۔ ددې په علاج کښې سورة البقره لوستل او آخری معوذتین سورتونه لوستل ډیر کار آمد دی، نبی ﷺ باندې جادو شوې وو نو الله تعالیٰ ورته دغه آیتونه بطور علاج راولیږل۔ خو پدې باندې یقین ضروری دې۔ زمونږ هم د سحر د علاج متعلق یوه رساله شته «د سحر او جادو او بد نظر علاج» د هغې نه فائده واخلئ۔

﴿وَمَا أُنزِلَ عَلَى الْمَلَكَيْنِ﴾ پدې کښې جواب د دریمې شبهې د یهودیانو دې چه سحر خو آسمانی علم دې ځکه چه دا په دوه ملائکو هاروت او ماروت نازل شوېدې او ته سحر ته کفر وائې نو معلومه شوه چه ته نبی نهٔ ئې؟ نو جواب اوشو چه هاروت او ماروت باندې کوم سحر نازل شوې وو نو هغه د خلقو د ابتلاء او امتحان دپاره نازل وو او دې دپاره چه خلق د معجزې او د سحر تمییز زدهٔ کړی، او هغوی به خلق ددې نه منع کول چه په سحر عمل اوکړی لیکن خلقو ترې غلطه فائده واخسته او هغه سحر په یهودیانو کښې مشهور شو۔

## په آیت کښې احتمالات

پدې آیت کښې مفسرین ډیر احتمالات ذکر کوی چه د هغې په وجه د آیت نه یوه مُعَمّه جوړه شویده، هغه ذکر کیږی بیا صحیح تفسیر۔

(۱) واو عطف دې په تَتْلُوْا او د وَاتَّبَعُوْا د لاندې دې او دا ظاهر احتمال دې۔ (۲) یا په مَا کَفَرَ عطف دې او په مَا کَفَرَ کښې ما نافیه ده نو دا هم نافیه ده۔ (۳) یا عطف دې په اَلسِّحْرَ باندې د یُعَلِّمُوْنَ د لاندې دې یعنی خلقو ته به ئې جادو هم خودلو او مَا اُنْزِلَ عَلَی الْمَلَکَیْنِ هم یعنی قدیم او جدید جادو به ئې خودلو۔ او لفظ د ما کښې دوه احتماله دی (۱) ما نافیه ده (۲) موصوله ده۔ اُنْزِلَ کښې دوه احتماله دی چه د نازلولو معنیٰ ئې ده او که د تعلیم معنیٰ ئې ده۔ او اَلْمَلَکَیْنِ کښې دوه قراءتونه دی۔ ۱ – په کسره د لام دې ۲ – او که په فتحه د لام۔ نو په کسره سره دوه بادشاهان مراد دی او که فتحه شي نو ملائك مراد دی بیا درې احتماله دی: (۱) یا جبریل او میکائیل مراد دی (۲) یا هاروت ماروت (۳) یا رَجُلَیْنِ مُتَظَاهِرَیْنِ بِالصَّلَاحِ ۔ دوه سړی وو چه ځانونه ئې نیك عمله ښکاره کړی وو لکه گویا کښې چه ملائك دی، خلقو به د ملائکو په شان گڼل۔

بِبَابِلَ : (۱)– دا متعلق دې د انزل پورې (۲) یا د یعلمون الناس پورې۔ هاروت ماروت (۱)

یا بدل دے د الشیاطین نه او بدل د تثنیه د جمع نه جائز دے۔ (قرطبی) (۲) یا بدل دے د ملکین نه او دا دواړه نو مونه دي د ملائکو۔ ۲- یا د دوه سړو ۳- یا د دوه بادشاهانو۔

اِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ : (۱) یوه معنیٰ امتحان۔ (۲) دویم : مونږ تجربه کاریو په سحر کښې۔ نو پدے کښې ترغیب دے خلقو ته۔ فَلَا تَكْفُرْ (۱) کفر مهٔ کوه جادو مهٔ زده کوه (۲) (فَلَا تَكْفُرْ عَنْ عِلْمِنَا) (زمونږ د علم نه انکار مهٔ کوه) او راشه زمونږ نه علم زده کړه۔ دا په هغه صورت کښې چه کله د هغه دوه کسانو خبره شي۔

فَيَتَعَلَّمُوْنَ مِنْهُمَا (۱) (فَيَتَعَلَّمُوْنَ مِنْ ضِدِّهِمَا عَنْ غَيْرِهِمَا) (د دوی د ضد نه به ئے د بل چا نه جادو زدهٔ کولو) (۲) ظاهر معنیٰ دا ده چه د دغه ملکین نه به ئے زده کولو۔ دا احتمالات چه یو بل سره ملاؤ شي نو دوه دیرشو (۳۲) ته رسیږي۔ لیکن پدے سره اصل مقصد د آیت خرابیږي۔ او دا مونږ د تبصرے دپاره ذکر کړل ورنه پدے کښې بعض احتمالات یقیناً غلط دي۔

## صحیح تفسیر

لهذا ظاهري او ښهٔ تفسیر دا دے چه دا جادو نازل شوے وو په دوه ملائکو چه هاروت او ماروت د هغوی نومونه وو او الله تعالیٰ د امتحان دپاره رالیږلي وو او په عراق بابل ښار کښې ئے رالیږلي وو چه تاسو لاړ شئ او خلقو ته جادو بیانوئ او دا ورته وایئ که جادو مو اُوکړو نو کافر کیږئ او که اُومو نکړو او ځان مو ترے ساتلو، نو د کفر نه به خلاصیږئ او الله تعالیٰ به اجر درکوی لیکن که یو سړے درته خامخا زده کوی نو بیا ئے ورزده کوئ۔ لکه یو سړي سره د جادو کتاب وي، وے گوري خو که عمل پرے اُوکړي نو کافر کیږي او که هسے ئے اُوگوري او عمل پرے نهٔ کوي نو بیا گناهگار نهٔ دے، دارنگه یو استاذ اُووائي : چه چا دوه روپئ د یو روپئ په عوض کښې واخستلے نو دهٔ سود اُوکړو لیکن کله چه یو آوریدونکے داسے واوري نو په هغے باندے عمل شروع کړي نو پدے کښې د استاذ گناه نشته بلکه د آوریدونکي گناه ده۔

نو تا باندے الله تعالیٰ اُوس امتحان کوی چه ته ئے کوے او که نهٔ ؟ ځکه دے کتاب کښې ډیرے مزیدارے خبرے وي لکه که دا سے دے اُوکړل نو فلانئ ځائے کښې به سړے دریاندے عاشق شي که داسے ډے اُوکړل نو ښځه به دریاندے عاشقه شي که دا ډے اُوکړو، دومره پیسے به درله راشي، که دا ډے اُوکړو نو دومره پیریان به ډے تابع شي، نو ستا به هم ورته

زړه اُوشی چه دا کار خو کول پکار دی نو دا امتحان دے په تا باندے چه ته ځان کافر کوے، دنیا غوره کوے او که دین غوره کوے؟ (لکه نن صبا هم ډیرو خلقو د پیسو دپاره دا چلونه زده کړل او په دیوالونو لیکی فلانی جادوشکن له راشئ؛ په ینځه منټه کښې به دِے حاجت پوره شی دوی ته وژتلل حرام او کفر دے).

نو پدے کښې دوه ملائک راغلل په شکل د انسانانو او خلقو ته به ئے جادو بیانولو او دا به ئے هم ورته وئیل چه دا جادو دے، غلط شے دے، خو کوره چه کافر پرے نهٔ شے، عمل پرے اُونکرے. دوی به وئیل چه خیر دے که مونږ پرے کافر شو خو ضرور ئے زده کوو. نو دوی به پرے کافر شو او هغه به ئے زده کړو او خپل مقصد به ئے پرے حاصلولو، چه د ښځے او د سړی په مینځ کښې به ئے جدائی راوستله چه هغه به خبر شو نو هغه به راغلو هغه به هم زده کړو نو هغه به بیا ددهٔ نه ښځه جدا کوله نو په عالَم کښې یو غټ فساد جوړ شو. نو اُوس دلته یو سوال دے او یوه قصه ده.

**سوال** دا دے چه الله تعالیٰ خو د آسمان نه غلطے خبرے نهٔ نازلوی (اِنَّ اللّٰهَ لَا یَاْمُرُ بِالْفَحْشَآءِ) (الله تعالیٰ خو په بے حیائی امر نهٔ کوی) او جادو خو کفر دے نو څنګه ئے ملائک پرے رالیږل، دا خو په زوره خلق گمراه کول ښکاره کیږی؟ ۲- دویم دا چه د الله تعالیٰ قانون دا دے چه د تعلیم دپاره انسانان رالیږی نو دلته ئے ملائک څنګه رالیږلی دی؟ دا دوه اشکالات د مفسرینو په ذهن کښې دی نو ځکه دلته بعض ما نافیه اخلی لکه روستو معنیٰ راځی.

**الجواب** : جواب دا دے چه الله رب العزت په بندګانو همیشه ابتلاء (امتحان) کوی څنګه چه اُوغواړی. او الله ربِ العزت امتحان اخستونکے ذات دے، بے امتحانه انسان نهٔ پریدی، کله مالی امتحان وی کله بدنی امتحانات وی، لکه په ایوب ؑ او کله دینی، د بے حیائی امتحانات وی لکه یوسف ؑ باندے ئے راوستو. کله د کفر او اسلام امتحان وی، کفر به رافراخه کړی او په هغے کښې به ډیر مال ملاویږی.

او ددے امتحان بل غټ مثال د دجال دے لکه دجال چه اُوس آخره زمانه کښې رالیږی نو هغه به خلقو ته وائی چه زهٔ رب یم، جنت او جهنم به هم ورسره وی او بارانونه به هم کولے شی او خلق به وژنی او ژوندی کوی به ئے، د چا مالونه به فراخه کوی او که څوک پرے ایمان نهٔ راوړی نو په قحط کښې به ئے مبتلا کوی، پټی او زمکے به ورله شاړے کړی او خوراکونه به پرے بند کړی، دا د الله تعالیٰ ابتلاء او امتحان دے، دے دپاره چه د کمزوری او قوی ایمان

والا پته اُولـګی، ځکه دا جنت خو څه سرائے نۀ دے چه هر څوك به ورځی، جنت ته الله رب العزت هغه بندګان بوځی چه هغه کښې اهلیت وی، امتحاناتو کښې تکړه وی (الله دے په مونږ باندے امتحانات نۀ راولی خبرے به کوو خو که چرته په مونږ امتحان راغلو نو بیا به دومره تکړه نۀ یو)

بیا الله تعالیٰ داسے رحیم او حکیم او علیم ذات دے چه په هر بنده باندے د هغه د طاقت مناسب امتحان راولی، داسے ابتلاء نۀ وی چه غر ورته په څټ کیدی، چه څومره سخت ایمان والا وی نو امتحان ئے هم سخت وی او چه ایمان ئے کمزورے وی نو امتحان ئے هم کمزورے وی۔ او په بنی اسرائیلو کښې ډیر عجائبات ښکاره شوی وو نو یو دے پکښې دا عجیبه کارنامه هم وی چه ملائك دے د هغوی د تعلیم السحر دپاره راکوز شوی وی، لکه سامری سخے جوړ کړو، په هغے کښې به آواز راتلو، دریاب ئے په خپلو سترګو کولاؤ اُولیدو، الله تعالیٰ پرے غر راوچت کړے وو۔ ملخان، چندخان ئے په قبطیانو مسلط اُولیدل۔ او په یو جام کښې به وینه او اُوبه وے، بنی اسرائیلی دپاره اُوبه او قبطی دپاره وینه به جوړیده۔ دغه شان نور۔

نو بناء پدے تفسیر: ﴿وَمَا أُنزِلَ عَلَى الْمَلَكَيْنِ﴾ د ﴿وَاتَّبَعُوا﴾ لاندے دے۔په ﴿مَا تَتْلُوا الشَّيَاطِينُ﴾ عطف دے او معنیٰ دا ده: دا یهود روان شو د هغه جادو پسے چه لوستو به شیطانانو انسی یا جنی په زمانه د سلیمان ﷺ کښې چه دا جدید جادو وو، شیطانانو ایجاد کړے وو او په هغه جادو پسے هم روان شو چه په دوه ملائکو هاروت او ماروت باندے په بابل کښې نازل شوے وو د امتحان دپاره۔ چه هغه ډیر غلیظ جادو وو، او دا قدیم (زوړ) جادو وو۔

مطلب دا چه یهودیانو زوړ او نوے جادو زدۀ کړو او په هغے باندے ئے عمل شروع کړو۔ او د الله کتاب ئے پریخودو۔ د قرآن په مقابله کښې ډیر څیزونه دی هغه زمانه کښې جادو وو او پدے زمانه کښې جادو هم دے، منطق او فلسفه هم ده، اخبارونه او مجلے هم دی۔او بے حیاء تصویرونه او موبائیلونه هم دی چه دا د انسان زندګی ختموی او خرابوی ئے۔ نو د کتاب او سنت په مقابله کښې ډیر دعوتونه کیږی۔ شپاړس سوه اخبارونه شائع کیږی هر کس دوه درے ګوری نو څوك د الله تعالیٰ د کتاب تلاوت ته اُوزګار نشته! او خرافاتو ته د هر چا توجه ده، که وارۀ دی که زاړه دی، او که ښځے دی او که سړی۔ إِلَّا مَنْ رَحِمَ رَبُّكَ فَإِلَى اللَّهِ الْمُشْتَكَىٰ مِنْ سُوءِ صَنِيعِ هٰؤُلَاءِ، هَدَانَا اللَّهُ وَإِيَّاهُمْ۔

## د هاروت ماروت قیصه

دلته بعض مفسرین ددے ملائکو متعلق یوه قصه لیکلے ده چه بے حقیقته ده۔

هاروت وماروت دوه ملائك وو او ډیر نیکان وو، ملائکو به د بندګانو ګناهونه لیدل چه هره ورځ به بره آسمان ته راختل نو دوی اُوویل : چه اے الله ! دا ستا څنګه بندګان دی چه دومره ګناهونه کوی ؟ نو الله تعالیٰ اُوفرمایل : که تاسو له مے خواهشات درکړل تاسو به هم دغه شان کوئ، نو دوی اُوویل: چه نهٔ مونږ به چرے هم داسے اُونکړو ؟ نو الله ورته اُوفرمایل : چه تاسو کښں دوه نیکان غوره کړئ نو دوی پکښں هاروت او ماروت غوره کړل ځکه چه دا په نیك عملیٔ زیات مشهور وو، دوی ئے زمکے ته الله تعالیٰ راکوز کړل او خواهشات ئے پکښں واچول او جادو ئے ورله ورکړو۔ نو دوی به خلقو ته جادو زده کولو۔ نو پدے کښں یوه زنانه د زهره په نوم ورله راغله (ښائسته وه) نو د دوی ورته توجه پیدا شوه نو هغے ورله ځان نهٔ ورکولو تردے چه هغے ورته اُوویل شراب به څکئ نو دوی شراب اُوڅکل او بیا ئے قتل اُوکړو بیا په زنا کښں واقع شو، او د دوی سره اسم اعظم وو، هغه ئے زهرے له ورکړو نو هغه پرے آسمان ته اُوختله (او زهره ستورے ترے جوړ شو) او دوی په زمکه کښں وو، نو الله تعالیٰ ورته اُوفرمایل : چه د آخرت عذاب مو خوښں دے او که د دنیا ؟ نو دوی د دنیا عذاب غوره کړو نو په بابل کښں په یو کوهی کښں د ژبو نه زوړند کړے شو۔

دا قصه یهودیانو جوړه کړیده او سوچه دروغ دی، د ډیرو وجو نه (۱) یو پدے کښں د بندګانو د ګناهونو دپاره عذر خودلے شویدے چه بندګان خواهشات لری، خیر دے که ګناهونه کوی۔ (۲) دویم دا چه د آیت خلاف دے (لَا يَعْصُوْنَ اللّٰهَ مَا أَمَرَهُمْ) (ملائك د الله تعالیٰ د هیڅ امر خلاف نکوی) هغوی کښں تکبر نشته، عاجز مخلوق دے۔

(۳) دا خبره هم خطاء ده چه هاروت او ماروت پکښں په نیك عملیٔ زیات مشهور وو بلکه د نصوص شرعیه ؤ نه معلومه ده چه په ټولو ملائکو کښں غوره ملائك جبریل او میکائیل وغیره دی۔ (٤) بله دا چه زهرے سره زنا اُوشوه نو زنا کاره، قاتله، شراب څکونکی څنګه بره اُوخیژی او ستورے ترے جوړ شی۔ (٥) بله دا چه دا ستورے خو د پخوانه دے۔ کوم وخت نه چه الله تعالیٰ آسمانونه پیدا کړیدی۔ (٦) هرکله چه اسم اعظم دوی ته یاد وو نو دوی پرے ولے نهٔ ختل چه زهره له ئے تشکیل کولو۔ (۷) بل د ژبے نه

زورندول هم ناممکن معلومیږي، نو دا ټولے د عقل او د دین مصادم خبرے دي۔
حافظ ابن کثیرؒ فرمائي : د هاروت وماروت باره کښې چه کومے قصے بني اسرائیلو مشهورے کړیدي نو د هغے په باره کښې هیڅ صحیح مرفوع متصل سند والا حدیث نشته (ابن کثیر والشفاء د قاضي عیاض) لهذا په هغے کښې د ملائکو ګستاخي ده د هغے بیانولو او ذکر کولو ته هیڅ ضرورت نشته۔ او په هغے سره د قرآن کریم تفسیر کول تحریف دے۔
۲– پدے کښې دویم تفسیر دا هم بعضو کړیدے چه د شیاطین نه مراد انسي شیطانان دي او د مَاتَتْلُوْا (هغه څه چه هغوی به بیانول) ددے نه مراد قصے او خرافات دي (او سلیمان کفر نۀ وو کړے) ددے نه مراد دا دے چه هغه د بتانو عبادت نۀ وو کړے۔ او لٰكِنَّ الشَّيٰطِيْنَ كَفَرُوْا) کښې د کفر نه مراد د نازل شوی آیتونو نه انکار یا د غیر الله عبادت، یا د جادو خودلو او ازدۀ کولو سره کفر کول دي۔ او د (هاروت وماروت) نه مراد دوه سړي دي چه خلقو به ورته ډیر د حسن ظن په وجه ملائك وئیل حال دا چه هغه نیکان خلق نۀ وو بلکه د خلقو د دوهوکه کولو دپاره به ئے ښکاره کول چه هغه ښه خلق دے او د جادو د زده کولو نه به ئے منع کول۔
ددے قول خلاصه دا ده چه یهودو د قرآن تکذیب اُوکړو او ددے په بدله کښې د هغه قصو او خرافاتو تصدیق ئے اُوکړو کوم چه انسي شیطانانو د سلیمان ؈ او د هغه د بادشاهۍ په باره کښې مشهور کړي وو چه سلیمان د بتانو عبادت کړیدے او کفرئے کړیدے حال دا چه سلیمان ؈ کفر نۀ دے کړے بلکه جنی شیطانانو کفر کړے وو، خلقو ته ئے جادو خودلو او وئیل به ئے چه دا هاروت او ماروت دوه سړو باندے نازل شویدے چه هغے ته به خلقو (د هغوی د ظاهري نیکۍ په وجه) ملائك وئیل، حال دا چه په دے دواړو باندے د الله تعالیٰ د طرف نه هیڅ نۀ وو نازل بلکه هغه دواړه داسے سړي وو چه د نیك کیدو دروغو دعوی ئے کوله او خلقو ته به ئے دا یقین ورکولو چه دوی خو خلقو دپاره صرف خیر غواړي او هغوی د کفر نه یروي۔ (تیسیر الرحمن)
لیکن د قرآن کریم سیاق ددے تائید نکوی پدے وجه ابن جریرؒ وغیره ددے تردید کړیدے (ابن کثیرؒ) بلکه دا دواړه ملائك وو او الله تعالیٰ ددے دپاره نازل کړي وو چه خلقو ته دا اُوښائي چه د انبیاء علیهم السلام په لاسونو باندے ظاهر شده معجزے د جادو نه مختلف دي او جادو هغه دے چه د کوم علم مونږ ته د الله تعالیٰ د طرف نه راکړے شویدے (په هغه دور کښې د جادو د عام کیدو په وجه خلقو نعوذ بالله انبیاء جادوګر او شعبده باز ګڼړل) نو

ددے مغالطے نه د خلقو د بچ کولو دپاره او د امتحان دپاره الله تعالیٰ ملائك نازل کړل. (والله اعلم) (تفسیر احسن البیان) وَهُوَ الظَّاهِرُ الَّذِيْ لَا مَحِيْدَ عَنْهُ.

**فائده:** په ملائکو باندے کوم شے نازل شوے وو، او هغوی به خلقو ته د کوم شی تعلیم ورکولو. نو پدے کښې مشهور قول دا دے چه ددے نه مراد جادو وو، چه دوی به خلقو ته بطور امتحان جادو خودلو. (۲) دویمه رآیه دا ده چه ددے نه مراد د څیزونو او د کلماتو د روحانی خواص او تاثیراتو هغه علم دے چه د هغے رواج د یهودو په صوفیاؤ او پیرانو کښې وو او کوم چه به هغوی د تعویذونو او دمونو او مختلف قسم عملیاتو په شکل د مختلف غرضونو دپاره استعمالولو. مثلًا د بعض امراض یا تکالیفو د ازالے دپاره یا د بد نظر او جادو وغیره د بد اثراتو د لرے کولو دپاره یا د شعبده بازو (جادوگرو) د فتنے د مقابلے دپاره یا د محبت او نفرت د اثراتو اچولو دپاره. نو دا علم پدے اعتبار سره د جادو او د نجوم وغیره علم نه بالکل مختلف وو، نهٔ پدے کښې د شرك کوم ملاوټ وو او نهٔ پدے کښې د شیطان او جناتو کوم دخل وو، لیکن د خپلو اثرات او نتائجو په پیدا کولو کښې دا د جادو په شان تیز اثر والا وو، او ممکن ده چه دا علم بنی اسرائیلو ته د بابل په زمانه کښې د دوه ملائکو په ذریعه پدے وجه ورکړے شوے وی چه ددے په ذریعه د بابل د سحر او ساحرئ مقابله اُوکړے شی او د خپل قوم د کم علمو او ساده لوحو خلقو زړونه د جادوگرو د رعب نه محفوظ شی، او ددے وجه دا ده چه په بابل کښې د سحر او ساحرئ او نجوم ډیر زور وو لکه دا د تورات د الفاظو نه معلومیږی. دویمه وجه دا ده چه د الله تعالیٰ دا طریقه ده چه په یو ځائے کښې د غلط علم رعب او زور وی، چه د هغے نه مفسدان خلق فائده اخلی نو هلته الله تعالیٰ د هغے د مقابلے دپاره ایمان والو ته داسے علم ورکوی چه جائز او فائده مند وی.

او دوی وائی دا د جادو علم نهٔ وو. وجه دا ده چه ملائك د شرك او کفر او د هغے د گندگیانو نه پاك دی او سحر خو یو غلط علم دے، د ملائکو په مزاج کښې د شرکیاتو او گندگیانو نه نفرت وی، نو د ملائکو لمن ددے نه پاکه ده، دویمه وجه دا ده چه ملائکو ددے علم دپاره کوم الفاظ استعمال کړیدی د هغے نه هم معلومیږی چه د هغوی علم د شیاطینو د سحر نه مختلف خصوصیات لرل، د شیاطینو علم خو کفر وو او ملائکو د خپل علم دپاره فتنه لفظ استعمال کړیدے، د فتنے معنیٰ د ازمیښت او امتحان ده. او په قرآن کریم کښې عموماً فتنه د هغه څیزونو دپاره استعمال ده چه اول کښې خو د انسان د نفع او فائدے دپاره

پیدا وی لیکن انسان هغه غلط استعمال کړی یا د حد نه زیات د هغې په محبت کښې ګرفتار شي نو هغه دپاره فتنه اُوګرځی، چه د هغې په سبب د فائدې په ځائې نقصان او ضرر شي. لکه مال او اولاد ته فتنه ته وئیلې شویده، نو هر چا ته دا معلومه ده چه دا څیزونه بذات خود شر نۀ دې بلکه د الله تعالیٰ نعمتونه دی، که انسان ددې صحیح مقام اُوپیژني نو دا ددۀ دپاره په دنیا او آخرت کښې نفع رسونکي جوړیدې شي لیکن کله چه انسان ددې په بې ځایه محبت کښې ګرفتار شي او د الله تعالیٰ او د آخرت نه پرې غافل شي نو دا د هغه دپاره وبال او عذاب جوړیږي. دغسې نور وجوه هم ذکر کوی.

لهذا ددې ملائکو علم یو جائز او مفید علم وو لیکن یهود راولګیدل، د خپل زړه د فساد د وجه نه به ئې دا په غلط نیت یادول او په غلطو مقاصدو کښې به ئې استعمالولو، د یو بل دشمنئ ئې پرې شروع کړه یو بل نه به ئې ښځې جدا کولې. نو نتیجه دا شوه چه دا علم د هغوی په نیز د سحر او ساحرئ یوه ضمیمه جوړه شوه او خوندئ ورله ورکړو تردې چه د الله تعالیٰ کتاب سره ئې هیڅ تعلق پاتې نشو او که پاتې شوې وو نو هم صرف د دمونو، عملیاتو او تعویذونو حد پورې چه فلانې آیت وئیلو سره دا فائده کیږی او فلانی آیت لیکلو سره دا اثر پیدا کیږی. نو خلاصه دا شوه چه دا جادو نۀ وو بلکه جائز دمونه وو لیکن یهودو ترې مقصد جوړ کړو او د الله تعالیٰ کتاب ئې پرې پریخودو لیکن اُوس یو سړې د قرآن نه دمونه اچوی، د الله تعالیٰ نومونه د دنیو منافعو دپاره استعمالوی او مقصد – چه عمل وو– هغه پاتې شي نو دا د مذمت خبره ده.

**وَمَا يُعَلِّمَانِ مِنْ أَحَدٍ** : پدې کښې یو قسم بریت دې د ملائکو، یعنی که ملائکو به چا ته دا علم خودلو نو دا تنبیه به ئې ورکوله چه ګوره زمونږ دا علم یوه فتنه ده نو تۀ دا د غلط مقصد پاره استعمال نکړې چه کافر نشې بلکه دا به صرف د صحیح مقاصدو دپاره استعمالوې. او که جادو وی نو بیا مه زده کوه.

(**إِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ**) فتنه لفظ جامع دې معنیٰ د ګډوډ والی او اضطراب (پریشانی) د احوالو د یو تن لره او په نفس او مال باندې د زړۀ پریدو اوګډوډ کیدو ته شامل دې کله په کښې د مضاف الیه په نسبت تخصیص کیږی. لکه فتنة المال، فتنة الدین. او هرکله چه پدې حالت کښې د خلقو ثابت قدمی مختلف کیږی د وجه د اختلاف د عقلونو او صبرنه نو ددې د لوازمو نه امتحان او اختبار دې، نو بیا د امتحان په معنیٰ استعمالیږی.

اِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ معنیٰ دا ده چه (اِنَّمَا نَحْنُ فِیْ فِتْنَةٍ یا لِلْفِتْنَةِ) (مونږ په امتحان کښې یو ستاسو دپاره) (یا مونږ د امتحان دپاره نازل شوی یو ستاسو دپاره) یا (اِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ لَّکُمْ) (مونږ ستاسو دپاره امتحان یو) چه آیا تاسو دا جادو زدهٔ کویٔ او که نهٔ.

**فائده** : ددے نه بعض علماؤ استدلال کړیدے چه د جادو زدهٔ کول کفر دے او ددے تائید د حدیث نه هم کیږی چه نبی کریم ﷺ فرمائی : (مَنْ اَتٰی کَاهِنًا اَوْ سَاحِرًا وَصَدَّقَهٗ بِمَا یَقُوْلُ فَقَدْ کَفَرَ بِمَا اُنْزِلَ عَلٰی مُحَمَّدٍ ﷺ) څوك چه کوم کاهن یا جادوګر ته راغلو او د هغه تصدیق ئے اُوکړو نو هغه په محمد ﷺ باندے د نازل شوی دین کفر اُوکړو (مسلم والبزار بسند صحیح والحاکم)

دارنګه (وَلَوْ اَنَّهُمْ آمَنُوْا وَاتَّقَوْا) نه هم ددے په کفر کیدو باندے استدلال کیدے شی او دا رایه د امام احمد بن حنبل او نورو سلف صالحینو ده. او بعض علماء وائی چه جادوګر کافر نهٔ دے لیکن د تعزیر په طریقه به د هغه سزا څټ وهل وی. حدیث د بخاری او مسند احمد وغیره کښې دی بجاله بن عبده وائی عمر ﷛ مونږ ته خط اُولیکلو چه هر ساحر او ساحره قتل کړئ نو مونږ درے جادوګر قتل کړل. د حفصے رضی الله عنها وینځے جادو کړے وه نو رسول الله ﷺ د هغے د قتل حکم اُوکړو نو هغه قتل کړے شوه. ترمذی کښې حدیث د جندب الازدی دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : د جادوګر سزا په توره سره قتل کول دی.

﴿فَلَا تَكْفُرْ﴾ (اَیْ بِتَعَلُّمِ السِّحْرِ) (کفر مهٔ کوه په زدهٔ کولو ددے جادو) یعنی چه جادو دِے زده کړه او عمل دِے پرے اُوکړو نو کافر کیږے لهذا عمل پرے مهٔ کوه او یهودو وئیل چه مونږ دِے کافر شو ایمان دِے لاړ شی خیر دے خو مونږه دا کار یو ځل کوو. ددے وجه نه قانون دا دے او رسول الله ﷺ منع هم کړے ده چه څوك دریاندے جادو اُوکړی نو د هغے د ماتولو دپاره به جادوګر ته نهٔ ځے چه دا ماله مات کړه ځکه ددے معنیٰ دا جوړی چه خپل صحت غواړے او ایمان ورکوے او د ایمان نه تا ته صحت لوئی شے ښکاری، نهٔ بلکه صبر به کوے. که صحت دِے لاړو او ختم هم شو، خیر دے خو خپل ایمان به نهٔ خرابوے. او شرعی دمونه په ځان باندے استعمالوه د بل چا نه د دم مطالبه هم د توکل نه بَری کیدل دی او د بے حسابه بے کتابه جنت ته د داخلیدونکو ډلے نه وتل دی لکه چه دا په حدیث د بخاری کښې راغلی دی.

﴿بَيْنَ الْمَرْءِ وَزَوْجِهٖ﴾ یعنی داسے جادو به ئے کولو چه د ښځے او د سړی دشمنی به راغله او دا یو داسے فساد دے چه ډیر فسادونو ته شاملیږی او په حدیث کښې دی : ابلیس د ښځے او خاوند په جدائی باندے ډیر خوشحالیږی او د هغه شیطان سره ډیر محبت کوی چه دا

تفریق راولی۔ او جادو کښې دا اثر الله تعالیٰ اچولے دے که څوك اووائی چه جادو خو مؤثر شو نو جواب : ﴿ وَمَا هُمْ بِضَارِّيْنَ بِهٖ مِنْ اَحَدٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللهِ ﴾ یعنی دوی چه دا ضرر ورکولو په جادو سره نو دا د الله تعالیٰ د ارادے مطابق وو او رب العزت په هغے کښې اثر اَچولے دے لکه په تهوپك، زهرو، روټئ، دوائیانو، په خبره او په ګندګیانو کښې ئے اچولے دے۔ دا دلیل دے چه سحر اثر لری د الله تعالیٰ په اذن او قدرت سره۔

﴿ وَيَتَعَلَّمُوْنَ مَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ ﴾ (۱) او هغه ضرورنه دا وو چه د سحر کولو په وجه به د ایمان نه خلاص شو (۲) دویم دا چه د یو انسان نه به ئے ښځه جدا کړه نو د هغه کور به ئے هم وران کړو۔ (۳) حسدونه او دشمنیانے به ددے نه پیدا کیدلے۔

ددینه دا فائده معلومه شوه چه هر هغه شے چه ضرر لری او فائده نهٔ لری نو هغه ناروا وی لکه غلط علوم شو، حکمة یونان او فلسفه شوه۔

وَلَقَدْ عَلِمُوْا : یعنی دوی ته د جادو اخستلو قباحت د تورات نه معلوم وو۔ او د دوی دا مشغولیت په دغه ضرری علمونو باندے د وجه د ناپو هئ نه نهٔ وو بلکه ښه عالمان وو چه ددے سره ثواب د آخرت بربادیږی او دا باطل علمونه دی۔

مِنْ خَلَاقٍ : خلاق د خیر برخے ته وئیلے شی۔ (التنویر)

﴿ وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهٖ اَنْفُسَهُمْ ﴾ هغه دا دے چه د الله او د رسول مخالفت به کوی او ضرری څیزونه به اخلی په دے ئے ځان خرخ کړے دے۔ ﴿ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴾ اول کښې وائی دیر ښه پوهیدل روستو وائی آرمان که پوهیدلے نو کلام کښې تضاد معلومیږی نو جواب دا دے چه سړے پوهیږی او عمل نهٔ کوی نو دا جاهل دے۔ او علم ئے نشته ځکه چه د علم په تقاضائے عمل اُونکړو۔

| |
|---|
| وَلَوْ اَنَّهُمْ اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَمَثُوْبَةٌ |
| او که کچرته دوی ایمان راوړے وے او د الله نه یریدلی وے (ځان ئے د شرك او جادو نه ساتلے وے) خامخا بدله |
| مِّنْ عِنْدِ اللهِ خَيْرٌ ۚ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۰۳﴾ |
| د الله تعالیٰ د طرف نه غوره وه (دوی له) آرمان که دوی پو هیدلے۔ |

**تفسیر** : په دے آیت کښې دوی ته د صحیح ایمان او د توبے دعوت دے۔ یعنی صحیح

ایمان راوړئ دا قرآن او دا رسول اُومنئ او بیا ورسره تقویٰ اختیار کړئ د هر قسم شرك، كفر جادو او غلطو علمونو نه ځان بچ کړئ۔

او دا د هغه شیاطین او خلقو سره هم لګی چه د سلیمان ؑ په زمانه کښ وو او د هغه یهودو سره هم لګی چه د الله تعالیٰ کتاب ئے شاته ګوزار کړے وو او سحر پسے روان شوی وو۔

آمَنُوا : یعنی شرکونه او جادو ګیری ئے نهٔ وے کړے او صحیح ایمان ئے راوړے وے۔

لَمَثُوبَةٌ : په معنیٰ د ثواب سره۔ دے دا ئے نکره راوړه اشاره ده چه معمولی ثواب د الله تعالیٰ هم ډیر شے دے۔ د ټولے دنیا نه غوره دے۔

مِنْ عِنْدِ اللهِ خَيْرٌ : سړے چه ایمان راوړی او جادو پریدی نو الله تعالیٰ ډیرے بدلے ورکوی په جادو ئے څه کول په قرآن کښ الله تعالیٰ ډیر خیرونه اچولی دی، هغه به ئے درله درکړی وے۔ او په انجیل کښ الله تعالیٰ ډیر خیرونه اچولی وو هغه به ئے درله درکړی وے لیکن چه سړے جائز څیزونو ته نهٔ ورنزدے کیږی او حرامو ته نزدے کیږی نو دنیا ئے هم خرابه شی او آخرت ئے هم خراب شی۔ وبالله التوفيق۔

لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ : یعنی د ایمان اود تقویٰ د خیر نه خبر نهٔ وو او د جادو معمولی دنیاوی فائدے ته ئے کتل چه هغه هم په حقیقت کښ ضرر وو څکه فرمائی (ولا ینفعهم) ۔ نو څکه په داسے هلاکتونو کښ مبتلا شو۔

**حكمة** : مخکښ ئے علم ثابت کړو (ولقد علموا) او دلته ئے وائی لو کانوا یعلمون (ارمان که پوهیدلے) یعنی جاهلان دی۔ (۱) ددے یوه فائده مخکښ ذکر شوه چه څوك په تقاضا د علم عمل نهٔ کوی نو نازلولے شی په منزله د جاهل۔ (أَيْ لَوْ كَانُوا يَعْرِفُونَ لِلْعِلْمِ حَقَّهُ) (بحرالعلوم) (آرمان که د علم حق ئے پیژندلے)

(۲) دویم دا چه لقد علموا کښ اثبات د جدا علم دے او دلته منفی علم جدا دے۔ابن عرفة فرمائی : بعض علماء فرمائی : په اول د آیت کښ ئے مطلق علم په ادنیٰ شی باندے ثابت کړو هغه دا چه د جادو اختنل سبب د تاوان دے په آخرت کښ۔ او په آخر د آیت کښ ئے علم حقیقی نفی کړو۔ (أَيْ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ عِلْمًا حَقِيقِيًّا لَمَا بَاعُوا أَنْفُسَهُمْ بِذَلِكَ) (تفسير ابن عرفة ۱۴۱/۱)

۳- قطربؒ او اخفشؒ وائی : لقد علموا نه شیاطین مراد دی او لبئس ما شروا به انفسهم لو کانوا یعلمون کښ انسانان (یهودیان) مراد دی۔(القرطبی و البغوی)

# فوائد الآیات

۱- دکتاب او سنت نه اعراض کول انسان ته د باطل دروازې کولاووی، قوانین وضعیه او دینی بدعات او عقلی ضلالات راپیدا کوی، وجه داده چه کتاب او سنت شر او فساد او ظلم بند کړیدې. نو یهودو د الله کتاب پریخودو نو په ظلمونو او شرونو کښې اخته شو.

۲- د سحر تعلیم او تعلم او ددې د استعمالولو حرمت او د ساحر کفر معلوم شو.

۳- الله تعالیٰ خالق د خیر او شر (ضرر) دې، نفع او ضرر صرف او صرف د هغه په اذن دی نو په نفع حاصلولو کښې او د ضرر په دفع کولو کښې الله تعالیٰ ته رجوع پکار ده په دعا او التجاء کولو سره.

٤- الله تعالیٰ د یهودو نه پدې دوه آیتونو کښې علم نفی کړو ددې نه دا فائده معلومه شوه چه مبهم او اجمالی علم په شان د هغه ظن دې چه یقین ورسره نهٔ وی، چه د انسان په بدن کښې هیڅ تغییر نهٔ راولی، نهٔ ئې په خیر آماده کوی او نهٔ ئې د شر نه منع کوی په خلاف د علم د پختگیٔ نه چه د راسخ فی العلم انسان سره رشتینې رغبت او عظیم رهبت (یره) وی چه دا ئې ایمان او تقویٰ او د شرك او گناهونو نه بچاؤ ته راکاږی.(ایسر التفاسیر ۱/٤۳)

۵- سحر شیطانی علم دې او یهودیانو دا د شیاطینو نه اخستې وو لکه (وَاتَّبَعُوا مَا تَتْلُو الشَّيَاطِينُ) پرې دلیل دې او بله دا چه لبید بن اعصم یهودی په نبی ﷺ باندې سحر کړې وو.

٦- سلیمان علیه السلام د جادو خلاف وو. (وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَانُ) ځکه دا کفر دې او هغه ددې د باقی پریخودلو نه بری وو.

۷- کله کله الله تعالیٰ انسانانو ته اسباب د گناهونو او شرونو آسانوی پدې کښې امتحان او ابتلاء وی په خلقو، چه څوك دا اختیاروی او څوك ترې ځان ساتی (وَمَا أُنزِلَ عَلَى الْمَلَكَيْنِ) نه معلومیږی. او یهودو ته ئې د خالی په ورځ مهیان ښکاره او ډیر راوستل.

۸- په انسان باندې لازم دی چه د خلقو خیر خواهی به کوی اگرکه خلق ددهٔ نه اعراض کوی لکه ملائکو به وئیل : (إِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ) .نو کله چه د یو بنده سره غلط شې وی او هغه خرڅوی نو واجب ده چه د هغې بیان به خلقو ته کوې.

۹- د جادو غټ اثر دا دې چه د ښځې او خاوند جدائی راولی. چه پدې عمل باندې شیطان ډیر خوشحالیږی ځکه چه کله ددواړو جګړه راشی نو بس توله عائلی زندگی تباه ده او دا مجمع د ټولو فسادونو ده.

۱۰ - دنیاوي اسباب که هرڅومره هم لوئی شي، ددے تاثیر نشته مګر د الله تعالیٰ په اذن دے۔ (وَمَاهُمْ بِضَآرِّيْنَ بِهٖ مِنْ اَحَدٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ)

۱۱ - د الله تعالیٰ قدرت د اسبابو دپاسه دے، که هرڅومره اسباب موجود شي خو چه الله تعالیٰ د هغے اذن نهٔ وي کړے نو هغه اثر نشي کولے۔ او ددے مطلب دا نهٔ دے چه اسباب اختیارول صحیح نهٔ دي بلکه په اسبابو کښې تاثیر الله تعالیٰ پیدا کوي۔

۱۲ - هر شے د الله تعالیٰ په اذن او حکم او مشئیت سره دے نو بس همیشه دپاره الله تعالیٰ ته لُجُوْء (زاري) او عاجزي پکار ده۔ چه د ضررونو نه دے اُوساتي او فوائد درکړي۔

۱۳ - د سحر زده کول خالص ضرر دے او هیڅ فائده پکښې نشته۔ (وَيَتَعَلَّمُوْنَ مَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ) نو نفع ئے ترے نفي کړه۔

۱٤ - د ساحر کفر مخرج عن الملة دے۔ ځکه (وَلَقَدْ عَلِمُوْا لَمَنِ اشْتَرٰىهُ مَا لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ) ۔او په آخرت کښې حصه او برخه د کافر نهٔ وي۔ او د مؤمن سړي چه هر څومره عذاب وي خو ضرور به ئے په آخرت کښې برخه وي۔ دا وجه ده ددهٔ حد قتل دے او طلب د توبے به ترے هم نهٔ کیږي۔

۱۵ - جزاء من جنس العمل وي، هرکله چه کافر الله تعالیٰ لره په دنیا کښې برخه (د عبادت) ورنکړه نو الله تعالیٰ دا په آخرت کښې د برخے نه محروموي۔

۱٦ - د یهودو سخته بدي معلومه شوه چه دوی د سحر دومره لیوالهٔ دي چه سم ځانونه ئے پرے خرڅ کړیدي۔ (تفسیر ابن عثیمین)

۱۷ - د اهل کتابو دا خوئی دے چه کله یوه مسئله راشي نو دوی پکښې د الله تعالیٰ کتاب پریدي او دلیل نیسي په باطل کتابونو باندے۔

۱۸ - د جادو د اثبات او ښه والي دپاره ئے د الله تعالیٰ په یو رسول (سلیمان عليه السلام) باندے دلیل نیولے وو۔

۱۹ - کله باطل مسائل انبیاء علیهم السلام ته په دروغو طریقو سره نسبت کیږي۔

۲۰ - کله بعض رشتیني خلقو ته بعض باطل کتابونه منسوب کیږي۔

۲۱ - د جادو په ذریعه شیطانانو د سلیمان عليه السلام په زمانه کښې په خلقو حق ګډوډ کړے وو۔

۲۲ - انسان که په علم کښې هر څومره مرتبے ته اُورسیږي بیا هم د الله تعالیٰ د مکر نه په امن کښې نهٔ دے۔

۲۳- الا باذن الله کښې توکل طرف ته متوجه کول دی چه هر کله سحر اثر کوی نو هر سړے به خفه شی نو الله تعالیٰ فرمائی : چه په الله تعالیٰ باندے توکل کوه۔

۲٤- یهودو دا عظیم جرمونه ولے کول ؟ سره ددے نه چه دوی ته د الله تعالیٰ حکم دینی راغلے وو لیکن د دوی د جاهلی عادت خلاف وو۔ نو رواج انسان په دین باندے د عمل کولو نه منع کوی۔

وَبِهٰذَا الْقَدْرِ نَكْتَفِىْ، وَ لِلّٰهِ الْحَمْدُ فِى الْاُوْلٰى وَالْآخِرَة

تَمَّ الْمُجَلَّدُ الْاَوَّلُ من تفسير "حِكْمَةِ الْقُرْآنِ"

ويتلوه المجلد الثانى من آية (١٠٤) ان شاء اللّٰه

واللّٰهَ أَسْأَلُ أَنْ يَنْفَعَنَا بِهٖ وَكُلَّ مَنْ يَقْرَأُهُ وَيَدْرُسُهُ وَيَنْظُرُ فِيْهِ وَيَسْمَعُهُ وَأَنْ يَجْعَلَهُ مَقْبُوْلًا لَدَيْهِ إِنَّهُ سَمِيْعٌ قَرِيْبٌ مُجِيْبُ الدَّاعِيْنَ، وَسُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوْبُ إِلَيْكَ وَصَلَّى اللّٰهُ وَسَلَّمَ عَلٰى نَبِيِّنَا مُحَمَّدٍ وَآلِهٖ وَصَحْبِهٖ أَجْمَعِيْنَ

وكتبه ابوزهير سيف اللّٰه البشاورى

وَرَاجَعَهُ الشيخ ابومحمد امين اللّٰه البشاورى "حفظه اللّٰه"

المرقوم: ١٤٣٠/ هجرية شهر ذى القعدة الحرام الموافق: ٢٠٠٩/١١/٢٥)

والطبعة الثانية: ١٤٣٢/شهر رمضان المبارك ٢٥/، الموافق: ٢٠١١/٨/٢٦)

**تفسیر حکمة القرآن**

---

**اول جلد پوره شو**

# فهرست د تفسیر "حکمة القرآن" جلد اول

❁❁❁❁❁❁❁❁